


# كشف البارى
عما فى
# صحيح البخارى

تصنيف

حضرت مولانا سليم الله خان

شيخ الحديث جامعه فاروقيه كراچى

# كشف الباري

## عما في

# صحيح البخاري

## كتاب الايمان

پہ تالیفي لحاظ سره جلد نمبر ②

**تاليف:-** صدر وفاق المدارس شيخ الحديث جامعه فاروقيه كراچی
سليم الله خان مدظله العالی

**ترتيب وتحقيق:-** مولانا نور البشر مدظله العالی

**پښتو مترجم:-** مولانا شاه فيصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم،

### خصوصيات

- داحاديثو تخريج
- دتعليقات بخاری تخريج كول
- د اسماء الر[illegible]
- د ګرانو لغاتو لغوی صرفی او نحوی حل
- ماقبل باب سره د ربط په باره کښې پوره تحقيق
- د حديث د مختلفو جملو په صورت کښې ترجمه
- د شرحې دهرې خبرې په حاشيه کښې حواله وركول
- د ترجمة الباب مقصد په بيانولو کښې پوره تحقيق
- د مختلفو مذاهب تحقيقی بيان او بيا دمذهب حنفی ترجيح
- د بخاری د اردو او د عربئ د شروحاتو خلاصه او جامع كتاب
- دحديث اطراف بيان چې په بخاری کښې دا حديث په كوم كوم ځائې کښې دې

# فهرست مضامين

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| صفحه | مضمون | شمیره |
| --- | --- | --- |



## ۸= بَاب حَلَاوَةِ الْإِیْمَانِ



## ۹= بَاب عَلَامَةُ الْإِیْمَانِ حُبُّ الْأَنْصَارِ

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## ۱۰ - بَابٌ مِنَ الدِّينِ الْفِرَارُ مِنَ الْفِتَنِ

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## ۱۴- بَابُ الْحَيَاءُ مِنَ الْإِيمَانِ



## ۱۵- بَابُ فَإِنْ تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ فَخَلُّوا سَبِيلَهُمْ

## ۱۸ - بَابُ إِفْشَاءِ السَّلَامِ مِنَ الْإِسْلَامِ



## ۱۹ - بَابُ كُفْرَانِ الْعَشِيرِ وَكُفْرٍ دُونَ كُفْرٍ

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## ٢٠- بَابُ الْمَعَاصِي مِنْ أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ وَلَا يُكَفَّرُ صَاحِبُهَا بِارْتِكَابِهَا إِلَّا بِالشِّرْكِ



## ٢١- باب ﴿وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا﴾

## ۲۴ = بَاب قِيَامُ لَيْلَةِ الْقَدْرِ مِنْ الْإِيمَانِ

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

## ۲۵- بَابُ الْجِهَادُ مِنَ الْإِيْمَانِ



## ۲۲ = بَابُ تَطَوُّعُ قِيَامِ رَمَضَانَ مِنَ الْإِيْمَانِ

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

۲۹- بَابُ الصَّلَاةُ مِنَ الْإِيمَانِ وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى: وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ

## ۳۰ - بَابُ حُسْنِ إِسْلَامِ الْمَرْءِ

## ۳۴ = بَابُ اتِّبَاعُ الْجَنَائِزِ مِنَ الْإِيمَانِ

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۳۵- بَاب خَوْفِ الْمُؤْمِنِ مِنْ أَنْ يَحْبَطَ عَمَلُهُ وَهُوَلَا يَشْعُرُ

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| صفحه | مضمون | شميره |
| --- | --- | --- |

# فہرس اسماء من ترجم لهم على حروف الهجاء

# (تقريظات الاعلام)

..................................

## تقريظ شيخ الحديث بدار العلوم الامدادية بشاور ونائب رئيس وفاق المدارس حضرة العلامة مولانا محمد حسن جان المدنى أطال الله عمرهم ونفعنا بعلومهم

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لوليه، والصلاة والسلام على نبيه وصفيه، سيدنا محمد وآله وصحبه، على من اتبع هداه فى شؤن حياته وهديه،

وبعد فإن الجامع الصحيح للإمام البخارى رحمه الله تعالى، يمتاز بميزات قيمة من بين كتب الحديث ويعتبره العلماء أصح الكتب بعد كتاب الله تعالى وقد شرحه المشائخ بشروح نيرة مستبينة فى كل عصر حتى فاق فى ذلك على جميع كتب السنة وقد شرحه فى عصرنا هذا فضيلة الشيخ مولانا سليم الله خان المحترم حفظه الله تعالى، شرحاً مفصلاً من كل ناحية فى اللغة السائدة فى عامة البلاد ،،الأردو،، وقد ترجمه إلى لغة بشتو السائدة فى مقاطعة سرحد وافغانستان أخونا فى الله وصاحبنا مولانا شاه فيصل المحترم فى لغته الفصحى وقد أجاد فى ذلك فلله دره وعليه مثوبته وأجره.

محمد حسن جان

۱۴۲۷/۱۲/۳ هجرى ۲۰۰۶/۱۲/۲۹م

..................................

## تقريظ شيخ الحديث بدار العلوم اكوره ختك حضرة العلامة مغفور الله (باباجى) مد ظلهم العالى وطال بقاءهم فينا

باسمه تعالى،

حامداً، مصلياً، مسلماً!

أما بعد فإن كتاب «كشف البارى شرح البخارى»، للعلامة المحقق صاحب القوة القدسية، بقية السلف، قدوة العلماء، إمام المحدثين فى هذا الزمان، مولانا سليم الله خان مد ظله، شرح جامع نافع ليس فيه تطويل ممل و لا اختصار مخل، مشتمل على زبدة ما فى الزبر المتطاولة ومغنى عنها، وفيه حقائق و دقائق فائقة وتوجيهات نفيسة ومزين من نكات الأكابرين، وفيه حل معاقد وكشف المغالق وتحرير الدعاوى بأحسن ترجيح وإقامة الدلائل بأوضح وجه وترجيح الراجح بالطريق الأوكد مجتنب عن مذهب البغى والإعتساف ومصداق قول الشاعر

فغى كل لفظ روض من المنى وفى كل سطر منه عقد من الدرر

وكيف لا يكون كذلك ومصنفه أجل فحول العلماء وأكملها، جامع الكمالات العلمية والعملية ومكارم العادات والأخلاق ومن كراماته مقبولية تصنيفه بين العوام والخواص فى مدة قليلة ومن كراماته وحسن إخلاصه أن أعطاه الله معاونين فاضلين جيدين فحلين فى العلم والعمر المتيقظين صاحبا القلم والتحرير الزكيين المستوقدين المدرسين فى الجامعة الفاروقية، الالمعى ابن الحسن العباسى، ونور البشر بارك الله فى علومهما وعمرهما.

لا يدرك الواصب المطرى خصائصه وأيك سابقاً فى كل ما وصفا

ولا يحتاج ذاته الأقدس إلى التعريف والتشهير ولا كتابه الجامع على الجامع، ولكن لفرط محبتى و شوقى حررت هذه الكلمات وإن كان فيها نقصاً لقصور علمى وقلة تجربتى فى هذا الباب وأرى أن الشرح وجامعه وحياته المباركة والمعاونين له من نعم الله تعالى على المعلمين والمتعلمين فحمد الله على نعمه،

ولما كان الشرح باللغة الأردية وإن كانت هذه اللغة شائعة لكن فى الإقليم السرحدى كثيراً من المتعلمين والمعلمين لايفهمون اللغة الأردية، ولا يستفيدون منها، فلتوسيع دائرة الإستفادة إعتنى الزكى المحقق الفاضل شاه فيصل مد ظله خريج وفاق المدارس والجامعة إمداد العلوم بشاور بترجمته باللغة السليمانية الفصحى البشاورية

ولقد أجاد فيها أفاد، ولله دره، والله المسئول أن يجعل سعيه مقبولاً وجهده من الباقيات الصالحات.

. أنا العبد الأحقر. مغفور الله مدرس جامعة حقانية اكوره ختك. ۲۶ جمادى الأخرى ۱۴۲۷ هجرى.

بسم الله الرحمن الرحيم

# مرتب درخواست

اللهم لك الحمد ،لا أحصى ثناءً عليك أنت كما أثنيت على نفسك اللهم صل وسلم وبارك على سيدنا محمد النبى الأمى وعلى آله وصحبه وتابعيهم ومن تبعهم بإحسان من الأئمة المجتهدين والعلماء المحدثين إلى يوم الدين

الحمدلله ! دالله تعالى ډيره لويه مهربانى ده.چه هغوى صرف په خپل فضل سره خپل كمزورى بنده ته توفيق وركړلو.چه نن د استاذ الاساتذه شيخ شيوخ الحديث حضرت مولانا سليم الله خان صاحب دامت فيوضاتهم وبركاتهم د صحيح بخارى د درسى افاداتو د دويم جلد عالمانو،اود علم دين طالبانواود علوم حديث د تګوپه خدمت كښې ددې د وړاندې كولوسعادت حاصلوى.

دحضرت شيخ الحديث دامت بركاتهم د درسى افاداتو نه خاص خاص مستفيدين د خپل استعداد مطابق فائده حاصلوى.خوحقيقت دا دې.چه د دې نه فائده اخستل اهل علمو دپاره اوس ممكن شو.دا درسى افادات چه دې ته ,,لألي مكنونه،، ونيل به بالكل صحيح وى. په اصل كښې دا د شيخ الاسلام حضرت مولانا سيد حسين احمد مدنى نورالله مرقده دعلومو او فنونواودحضرت شيخ صاحب په نيمه‌صدئ باندې دمحيط تدريسى تجربو.اود بې شميره كتابونواودحديث د شروحاتود مطالعې نچوړ دې.

په دې جلد كښې هم الحمد لله د هغه ټولو امورو التزام شوې دې.د كومو التزام چه په اولنى جلد كښې شوې وو.ددې امورو تفصيل مونږ د اولنى جلد په شروع كښې ذكر كړې دې.

دا كارلكه څنګه چه لوستونكو ته ښه معلومه ده.ډير علمى كار دې.ددې دپاره د وسيع مطالعۀ علمى پوخوالى او استحضار ضرورت دې.حالانكه احقر د ټولو خبرو نه خالى دې. ددې باوجود داسې علمى كار ته ملاتړل دخپلو مشفقو استاذانو،د دعاګانو او خاص كر د حضرت شيخ الحديث صاحب دامت بركاتهم نظر عنايت، اعتماد ،توجه‌حوصله افزائى او داد ګيرنې او دعاګانو نتيجه ده.

صرف احتمال نه دې بلكه عين ممكن ده.چه په دې كښې غلطيانې شوى وى. عالمانو ته درخواست دې.چه په غلطيانو باندې د خبريدو په صورت كښې دې دا د مرتب خامى اوګنړى. اوددې غلطيانونه دې مونږ خبر كړى.اودخپلو مفيدو مشورو او تجويزونو نه دې هم مونږ مستفيد كړى.احقربه ډير احسان منونكې وى.

دكتاب د ترتيب ،تحقيق نه واخله تر كمپوزنگ پروف ريډنگ (د مسودې تصحيح) او بيا د طباعت پورې په دې ټولومرحلو كښې ما سره زما مخلص ملګرو او دوستانوچه كوم تعاون كړې دې په دې باندې زه د دوى ټولواحسان منونكې يم. اود ټولو دوستانو او معززينودپاره دعاګو يم.الله تعالى دې دوى ته علمى اوعملى ترقۍ ملاؤ كړى اودوى ته دې ډيره بهترينه جزاء وركړى.

په آخر كښې محترمو لوستونكوته درخواست كوم.چه د حضرت شيخ الحديث صاحب دامت بركاتهم د صحت او عافيت دپاره په خصوصيت سره دعاګانې كوى. دغه شان د مرتب دپاره هم دعا كوئ.چه ددې كار زر ترزره د پوره كولو توفيق ورته وركړى.اوپه خپل دربار كښې ورته د قبوليت شرافت وركړى.او د صاحب تقرير دپاره د بنده دپاره اود د بنده دمورپلار دپاره.او د استاذانو او ټولو ملګرو اودوستانودپاره ئې د آخرت ذخيره اوګرخوى.آمين.

نورالبشر بن محمد نورالحق
استاذ جامعه فاروقيه
ورفيق شعبه تصنيف وتاليف جامعه

................................

# ضرورى وضاحت ازمترجم

① صرف د دويم او دريم جلد په ترجمه كښې ماسره زما محترم ورور مولانا برهان الدين صديقى فاضل دارالعلوم كراچۍ هم برخه اخستې ده.اوهغوى هم د څه حصې ترجمه كړې ده. نود خپل خان د دعا درخواست سره سره درنه د هغوى د دعا دپاره هم طلب كوم.

② په كشف البارى پښتو جلددويم وغيره كښې چه د كشف البارى د اولنو جلدونود صفحاتوپه ارقامو كومې حوالې وركړې شوى دى.نوهغه د كشف البارى اردو دى. چونكه پورته په متن كښې دكشف البارى د جلد او باب حوالې وركړې شوى دى ده. ددې وجې هغې ته په مراجعت كښې څه مشكل نشته.بيا هم كه موقع ملاؤ شوه.نو د پښتو كشف البارى د صفحو ارقام به په كښې اوليكو

# ۲- بَاب مِنَ الْإِيمَانِ أَنْ يُحِبَّ لِأَخِيهِ مَا يُحِبُّ لِنَفْسِهِ

وړاندې بيان شوې دي.چه امام بخارى رحمه الله دلته په تراجم كښې كله د اسلام ذكر كړې دې.او كله د ايمان .كله ئې دا موخر كړې دې.او كله مقدم كړې.دا د انبساط او انشراح برقرار ساتلو دپاره د دوى تفنن دې.

په دې باب كښې هم ونيلې شى.چه چونكه دلته ئې حديث كښې،،لايؤمن أحدكم،، كښې د ايمان ذكر وړاندې وو.ددې وجې امام بخارى رحمه الله ،،من الإيمان،، مقدم كړلو.او په وړاندينى باب كښې د نبى ﷺ ارشاد ،،تطعم الطعام وتقرأ السلام على من عرفت ومن لم تعرف،، كښې د ايمان يا د اسلام ذكر موجود نه وو.نوځكه ئې هلته د ،،من الإسلام،، موخر كړلو. دغه شان هلته ئې ،،من الإسلام،، اووئيل.او دلته ئې ،،من الإيمان،، لفظ راوړلو . ځكه چه په وړاندينى باب كښې د اطعام طعام او قراءت سلام ذكروو.كوم چه ظاهرى اعمال دى.اودهغې د اسلام سره تعلق دې.او دلته د محبت ذكر دې.كوم چه يو باطنى عمل دې.اود زړه سره تعلق ساتى نو ځكه ئې دلته د ،،من الإيمان،، ذكر اوكړلو . ځكه چه د ايمان تعلق هم د زړه سره وى.

**د ماقبل او ما بعد سره ربط** تركومې پورې چه د ربط تعلق دې.نووړاندې خودلى شوى دى چه انسان دپاره خو اول ددې خبرې اهتمام كول پكار دى.چه نورو ته د تكليف رسولونه منع شى. د دې ذكر په ،،باب من سلم المسلمون من لسانه ويده،، كښې ذكرشو.او د هغې نه پس دويم نمبرددې وو.چه دې د نورو سره د مواسات او غمخوارئ معامله اوكړى. د دې ذكر په ،،تطعم الطعام وتقرأ السلام،، كښې راغلې وو.ددې نه پس اوس د مساوات ذكر دې.چه سړې كوم څيز د خپل ځان دپاره خوښوى.هغه د نورو دپاره هم خوښ كړى.نوځكه د مواسات نه پس دلته د مساوات بيان كولې شى.

[۳] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَنْ حُسَيْنٍ الْمُعَلِّمِ قَالَ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ (١) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى يُحِبَّ لِأَخِيهِ مَا يُحِبُّ لِنَفْسِهِ

---

(١) الحديث أخرجه مسلم فى صحيحه فى كتاب الإيمان باب الدليل على أن من خصال الإيمان أن يحب لأخيه المسلم ما يحب لنفسه من الخير رقم ١٧٩ و ١٨٠ والنسائى فى سننه فى كتاب الإيمان وشرائعه باب علامة الإيمان رقم (٥٠١٩) و(٥٠٢٠) والترمذى فى جامعه فى كتاب صفة القيامة باب (بلا ترجمة) رقم (٢٥١٥) وابن ماجه فى سننه فى المقدمة باب فى الإيمان رقم ٦٦)_

## رجال الحديث

① **مسرهد**: دا مسدد بن مسرهد بن مسربل بن مرعبل بن ارندل بن سرندل بن غرندل بن ماسك بن مستورد اسدى دې.[1]

دا هم ونيلې شي چه ددوى نوم عبد الملك بن عبدالعزيز دى او مسدد يې لقب دې.[2]
د حماد بن زيد، سفيان بن عيينه، او يحى بن سعيد قطان رحمهم الله نه يې علم حاصل كړې دې
اود دوى نه چه چا احاديث اوريدلى دى په هغوى كښې ابوحاتم رازى، ابوداود، محمد بن يحى ذهلى، ابوزرعه او اسماعيل بن اسحاق رحمهم الله د غرونو پشان محدثين دى.[3]
حافظ ابن حجر رحمه الله د دوى په باره كښې فرمائيلى دى چه دې ثقه او حافظ وو. د تولو نه وړاندې په بصره كښې دوى ،،مسند،، ليكلې وو.[4] په رمضان ۲۲۸ﻫ كښې دوى وفات شوى وو.[5]

② **يحى**: دا يحى بن سعيد بن فروخ القطان تميمى دې. ددوى كنيت ابوسعيد دې.[6]
ددوى په جلالت قدر اوتوثيق باندې د تولو اتفاق دې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى، ،**ثقة متقن حافظ إمام قدوة**،،[7]
د يحى انصارى، محمدبن عجلان، سفيان ثورى ابن ابى ذئب امام مالك او امام شعبه رحمهم الله وغيره نه ئې احاديث اوريدلى دى.
د دوى نه چه چا حديث اوريدلى دى په هغوى كښې ددوى خپل استاذ حضرت سفيان ثورى، سفيان بن عيينه، شعبه، عبدالرحمن بن مهدى، امام احمد، امام يحى بن معين، امام على بن المدينى، امام اسحاق بن راهويه، امام ابوبكر بن ابى شيبه رحمهم الله او د دوئ نه علاوه نور اعلام محدثين شامل دى.[8]

---

[1] عمدة القارى (۱\۱۳۹)_
[2] تقريب التهذيب (ص.۵۲۸) قم الترجمة (۶۵۹۸)_
[3] عمدة القارى (۱\۱۳۹)_
[4] تقريب (.۵۲۸)_
[5] تهذيب الكمال (۲۷\٤٤۷)_
[6] تقريب (۲.۵۹۱) رقم (۷۵۵۷)_
[7] المصدر السابق)_
[8] عمدة (۱\۱٤۰)_

امام یحی بن معین رحمه الله فرمائی.چه امام یحی القطان رحمه الله شل کاله داسې تیرکړی وو.چه روزانه به ئې یوقرآن پاك ختمولو.[1]

اسحاق بن ابراهیم شهیدی رحمه الله فرمائی.چه ما یحی بن سعید ا لقطان لیدلې وو.چه هغوی به د مازیګردمانځه نه پس په خپل جمات کښې د منارۀ سره ډډه لګوله.اوبیا به دوی ته مخامخ علی بن المدینی،شاذکونی،عمروبن علی،احمد بن حنبل او یحی بن معین رحمهم الله اودریدل.اود ماښامه پورې به ئې ترې نه د احادیثو په باره کښې تپوسونه کول.دوی به په خپله هم چاته د کیناستلو نه وئیل.اونه به په دوی کښې چاته دا همت وو.چه هغه به ناست وو.ددوی تعظیم او قدر به د هغوی په زړونوکښې دومره زیات وو.[2]

په کال ۱۲۰ ه کښې د دوی ولادت شوې وو.اوپه کال ۱۹۸ ه کښې وفات شوې وو.[3]

عفان بن مسلم رحمه الله فرمائی.چه یوکس د یحی بن سعید دوفات نه شل کاله وړاندې خوب لیدلې وو،،بشر یحی بن سعید بأمان الله یوم القیامة،،[4]

④ **شعبه:** دا امیر المومنین فی الحدیث شعبه بن الحجاج بن الورد العتکی الازدی دې.د دوی حالات په ،،باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده،، لاندې ذکرشوې دې.

⑤ **قتاده:** دا قتاده بن دعامه بن قتاده بن عزیز سدوسی بصری دې.د دوی کنیت ابوالخطاب دې.اود مور نه ړوند پیدا شوې وو.[5]

په صحابوٌ رضی الله عنهم کښې ئې دحضرت انس بن مالك،حضرت عبدالله بن سرجس ،حضرت ابوالطفیل عامربن واثله رضی الله عنهم نه احادیث اوریدلی دی.دغه شان دحضرت سعید بن مسیب، حسن بصری ابوعثمان او محمد بن سیرین رحمهم الله نه هم د احادیثو سماع کړې ده.[6]

ددوی نه د سلمان تیمی،ایوب سختیانی،اعمش،شعبه او اوزاعی رحمهم الله نه علاوه نورو ډیرو حضراتو کسب فیض کړې دې.[7]

ددوی په جلالت شان ،حفظ ، توثیق فضل وشرف او اتقان باندې اجماع ده.[8]

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.چه دې حافظ،ثقه،او ثبت دې.خو مدلس دې.په دوی باندې د

---

[1] تهذیب الکمال(۳۱\۳۴۰)_
[2] تهذیب الکمال ( ۳۱\۳۴۲)_
[3] عمدة القاری (۱\۱۴۰)_
[4] تهذیب الکمال (۳۱\۲۴۳)_
[5] عمدة(۱\۱۴۰)_
[6] المصدرالسابق_
[7] المصدرالسابق_
[8] المصدر السابق

قدرى كيدو تهمت هم شته.(١)
خوددې باوجود اصحاب صحاح دوى حجت تسليم كړې دې خاص كرچه كله دوى دتحديث تصريح اوكړى.(٢) په ٦٠هـ يا ٦١هـ كښې پيدا شوې وو اوپه ١١٧هـ يا ١١٨هـ كښې وفات شوى دى.(٣)

⑤ **حسين معلم:** دوى د حسين بن ذكوان مُكَتِّب معلم بصرى دې.قتاده.عطاء بن ابى رباح او نافع مولى ابن عمر ﷺ نه روايت كوى.
اوددوى په شاګردانوكښې شعبه بن الحجاج.عبدالله بن المبارك.يحى القطان.او يزيد بن هارون وغيره حضرات دى.
يحى بن معين.ابوحاتم.اونسائي دوى ته ثقه ونيلى دى.(٤)حافظ ابن حجر رحمه الله فرمانى.«ثقة ربما وهم».(٥)

⑥ **انس رضى الله عنه:** دا مشهوراومعروف صحابى رضي الله عنه دې.د رسول الله ﷺ خاص خادم او حضرت انس بن مالك بن نضربن ضمضم بن زيد بن حرام بن جندب بن عامر بن غنم خزرجي انصارى رضي الله عنه دې(٦)
رسول الله ﷺ ددوى كنيت ابوحمزه كيخودې وو.ځكه چه دوى د حمزه نومې يوه سبزى ډيره زياته خوښوله.(٧)
حضرت انس رضي الله عنه د نبى كريم ﷺ لس كاله خدمت كړې دې.او د نبى ﷺ نه ډير احاديث اوريدلى دى.ددوى نه يو زر دوه سوه شپږ اتيا احاديث نقل دى.په دې كښې يو سل اته شپيته احاديث متفق عليه دى.اوامام بخارى رحمه الله په درې اتيا احاديثو كښې متفرد دې.او امام مسلم رحمه الله په يو اويا احاديثو كښې متفرد دې.(٨)
دحضرت انس مور بى بى حضرت ام سليم رضي الله عنها ددوى دپاره د نبى ﷺ نه د دعا درخواست كړې وو.نو نبى ﷺ دوى په مال.اولاد او اوږد عمر دپاره اوپه دې كښې د بركت دعا كړې وه. هم دا وجه وه.چه د حضرت انس رضي الله عنه عمرد سلو نه زيات وو.په بصره كښې د ټولو صحابو نه په آخره كښې دوى وفات شوى وو.په اولاد كښې د بركت دا حال وو.چه حجاج

---

(١) حافظ ذهبى رحمه الله په ميزان الإعتدال (٣٨٥\٣) كښې فرمانيلى دى.چه «ورمى بالقدر» اوپه تذكرة الحفاظ (١٢٤\١) كښې په جزم سره فرمانى.چه «كان يرى القدر»_
(٢) ميزان الإعتدال (٣٨٥\٣) رقم ٦٨٦٤)_
(٣) عمدة (١٤٠\١) وتهذيب الكمال (٥١٧\٣٣)_
(٤) تهذيب الكمال (٣٧٢\٦. ٣٧٣)_
(٥) تقريب التهذيب (ص.١٦٦) رقم ١٣٢٠)_
(٦) تهذيب الأسماء واللغات(١٢٧\١)_
(٧) جامع ترمذى .كتاب المناقب باب مناقب لأنس بن مالك رضي الله عنه رقم ٣٨٣٠)_
(٨) تهذيب الأسماء (١٢٧\١)_

کله بصرة ته راتلو.نود حضرت انس رضي الله عنه سلو ته نزدې په خپل لاس خپل اولاد دفن کړی وو په مال کښې د برکت اثر دا وو چه ددوی باغ به په کال کښې دوه خله میوه کوله.[1]
په کال ۹۳ ه کښې کله چه د دوی عمر یوسل دیرش کاله وو [2]
او بصره کښې وفات شو.امام محمد بن سیرین رحمه الله ورته غسل ورکړلو.او د بصرة نه یونیم فرسخ لرې په خپل کور کښې دفن کړې شو.[3]

دلته دوه سندونه دی.دامام بخاری رحمه الله د استاذ مسدد او د هغوی د استاذ یحی .هغه «عن شعبة عن قتادة عن أنس عن النبی ﷺ» روایت کوی.

اوبیا یحی بل استاذ حسین معلم دې.کوم چه «حدثنا قتادة عن أنس عن النبی ﷺ» سره نقل کوی.
امام بخاری رحمه الله د اولنی سند نه پس دویم سند ددې دپاره ذکر کړلو چه په اولنی سند کښې شعبة عن قتادة دې.او په دویم سند کښې «عن حسین المعلم حدثنا قتادة» دې.شعبه رحمه الله ،،عن،، استعمال کړې دې په کوم کښې چه د انقطاع او اتصال دواړو احتمال شته.او حسین معلم د تحدیث صیغه استعمال کړې ده.نوځکه مصنف رحمه الله دواړه جمع نکړل بلکه جدا جدا ئې ذکر کړل.خو که دا تصریح هم نه وه.نو بیا هم ،،شعبة عن قتادة،، کښې د تدلیس څه احتمال نه وو. ځکه چه شعبه د تدلیس په مسئله کښې ډیر سخت دې.[4]
بلکه ددوی خودا حال دې چه قتاده اګرچه مدلس دې.خو که دوی د قتاده معنعن روایت نقل کوی.نودا ګڼرلی شی.چه قتاده په دې روایت کښې تدلیس نه دې کړې.ګنی شعبه رحمه الله به ترې روایت هیڅ کله نه کولو.یعنی د قتاده رحمه الله کوم روایت چه په ..عن.. سره وی.که دا روایت شعبه نقل کړی.نو دا د دې خبرې ضمانت دې.چه دلته قتاده تدلیس نه دې کړې.[5]

**قوله: لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى يُحِبَّ لِأَخِيهِ مَا يُحِبُّ لِنَفْسِهِ:** په تاسو کښې هیڅ څوک تر هغه وخته پورې مومن نشی جوړیدې.ترڅوچه هغه د خپل ورور دپاره هغه څیز خوښ نکړی.کوم چه دې د خپل ځان دپاره خوښوی.دا حدیث د امام ابوحنیفه رحمه الله په پنځو منتخبو احادیثو کښې یوحدیث دې.اود امام ابوداود په څلورو منتخبو احادیثو کښې یو حدیث

[1] عمدة القاری (١١/١٤٠) وتهذیب الأسماء (١/١٢٧)_
[2] تهذیب التهذیب (١/٣٧٨ . ٣٧٩)-
[3] عمدة القاری (١١/١٤٠)_
[4] امام شعبه رحمه الله فرمائی.التدلیس أخوالکذب.. مقدمة ابن الصلاح ص.٣٥) دغه شان فرمائی. ((لأن أقع من السماء فانقطع أحب إلی من أن أدلس (سیر أعلام النبلاء (٧/٢٢٠) دوی د تدلیس په باره کښې تردې پورې بیان کړی دی ((لأن أزنی أحب إلی من أن أدلس سیر أعلام النبلاء (٧/٢١٠).
[5] قال عبدالرحمن بن مهدی:قال شعبة کنت أتفقد فم قتادة فإذا قال سمعت أو حدثنا تحفظته وإلا ترکته أنظر سیر أعلام النبلاء (٧/٢١٥) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی...روایة شعبة عن قتادة مأمون فیها من تدلیس قتادة لأنه کان لا یسمع منه إلا ما سمعه .. فتح الباری (١/٥٩) کتاب الإیمان باب حب الرسول من الإیمان )_

دي.كه چيرته په دې حديث باندې عمل اوكړې شي.چه كله د چا سره څه معامله كولې شي.نو سوچ كولې شي.كه زه د ده په ځائې ووم.نو آيا ما به دا څيزخوښولو.كوم چه زه دده سره كول غوارم.نود هر فساد جرړه به كټ شوې وه.د مساوات دا عمل د كمال ايمان مقتضى دې.په دې باندې د مرجئه ترديد هم اوشو.هغوى وائى.چه په طاعت باندې څه فائده نه ملاويږى.

**يواشكال او د هغې جواب** دلته يو اشكال كيږى.چه نبى ﷺ اوفرمائيل.چه په تاسو كښې هيڅ څوك مومن نشى جوړيدې.ترهغه وخته پورې چه ترڅو هغه د خپل ورور دپاره هغه څيز نه وى خوښ كړې. كوم چه د خپل ځان دپاره خوښوى.نو كه يو كس شرابى وى.يا غل وى نوآيا تر هغه وخته پورې به مومن نه وى.چه تر څوچه هغه د خپلو نورو ورونړو دپاره شراب او غلا خوښه نكړى.دا خبره خو د عقل نه خلاف ده.

ددې جواب دا دې چه د نسائى په روايت كښې الفاظ دا دى.((لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتّٰى يُحِبَّ لِأَخِيهِ مَا يُحِبُّ لِنَفْسِهِ من الخير))[1] په دې كښې ،،من الخير،، الفاظ دى.نو په اعتراض كښې د شرابو او سرقه مسئله دلته نشى چليدې.

**دخپل ورور دپاره دخپل خوښ څيزخوښولو څه مطلب دې** دويم اشكال دا كيږى.چه دا نبى اوفرمائيل.چه په تاسو كښې هيڅ څوك ترهغه وخته پورې مومن نشى جوړيدې.ترڅو چه دخپل ورور دپاره هغه څيز خوښ نكړى. كوم چه د خپل ځان دپاره خوښوى.ددې څه مطلب دې؟ آيا ددې مطلب دا دې.چه ده سره كوم څيز وى.چه تر څو پورې هغه بل ته ورنكړى.او په خپله خالى لاس پاتې نشى.نوترهغه وخته پورې دې مومن نشى جوړيدې؟ نودا معنى مراد اخستل خو صحيح نه دى.ځكه چه په يو ځائې كښې هم اسلام خپل منونكى په دې نه دى مكلف كړى.چه او بيا هغه هم په دې طريقه چه بغير ددې نه ايمان متحقق نشى .دغه شان دا ونيل هم صحيح نه دى.چه دده خواهش پكار دې.چه كوم څيز ما سره دې.بعينه هم دا څيز زما د ورور سره هم وى. چونكه يو څيز چه كله يو سره وى.نو هغه بل چاته نشى ملاويدلې. كه ته اووائې.چه مطلب دا دې.چه ددې نظير بل ورور ته ملاؤ شى.داصل ملاويدل مراد نه دى.نو بيا هم معنى نه صحيح كيږى.بيا خو به د هركمال او خوبئ خواهش دهر چا دپاره ضرورى وو.

نوددې جواب دا دې.چه په اصل كښې ددې حديث مفهوم باندې پوهه شئ.د حديث مفهوم دا دې چه په كومه طريقه تاسو دخپل ځان دپاره دا خواهش كوئ.چه زما عزت دې برقرار وى.ما سره دې انصاف كولې شى.كه زه څه ښه كار اوكړم.نود هغې داد گيرنه دې راته ملاؤ شى.زما دل شكننى دې اونكړې شى.زه دې د خپلو حقوقو نه محروم نكړې شم.هم دا جذبه پكار ده.چه ستا د بل ورور دپاره هم وى. چه د هغه عزت نفس برقرار وى.د هغه سره انصار كولې شى كه هغه قابل تعريف كار اوكړى چه د هغه حوصله افزائى اوكړې شى.هغه ته دې

[1] سنن نسائى (٢٢٧٠) كتاب الإيمان وشرائعه باب علامة الإيمان رقم ٥٠٢٠)_

هم د هغه حقوق ملاوٗ شي.د حديث د مفهوم د وضاحت نه پس اوس څه اشكال نه وارديږي اوګورئ په قرآن مجيد كښې د ناپ تول په سلسله كښې د تطفيف ذكر راغلې دې.دغه شان پوهه شه.چه په نورو معاملاتو كښې هم تطفيف كيږي.خلق د خپل ځان دپاره ددې خبرې خواهش لري.چه زمونږ د عزت نفس خيال دې اوساتلې شي.اود نورور خلقود عزت نفس خيال دې ونشي ساتلې.د خپل ځا دپاره ددې مطالبه كولې شي.چه زمونږ حقوق دې مونږ ته پوره ملاوٗ شي.اود نورو د حقوقو دوی څه خيال نه ساتي.«وقس على هذا» نو لكه څنګه چه په تول او ناپ كښې تطفيف ممنوع دې.دغه شان په دې معاملاتو كښې هم ددې نفي شوې ده.(١)

**دحديث پاک يو مقصد** يوه خبره دا هم شوې ده.چه په اصل كښې ددې حديث پاك مقصد او مدعا دا ده.چه تاسو د چا سره حسد مه كوئ.دحاسد خواهش دا وی.چه د محسود عليه سره كوم كمال دې.هغه كمال د هغه سره باقي پاتې نشي.برابر ده كه ماته حاصل وی اوكه نه.نبي ﷺ د «لايؤمن أحدكم حتى يحب لأخيه ما يحب لنفسه» عنوان اختيار كړلو.اومقصد ئې ا دې.چه تاسو د خپل ورور نه د هغه د خوبئ او صفت د زائله كولو خواهش مه كوئ.ستاسو خواهش خو دا پكار دې.چه لكه څنګه چه الله تعالى تاسو ته نعمتونه دركړي دی.دغه شان دې د هغه سره هم نعمتونه وی.تاسو دهغه نه د هغې د زوال تمنا مكوئ.(٢)

**دحديث پاک يو بل مطلب:** د حديث يو مطلب داهم بيان شوې دې.چه دا ارشاد د مشورې په باره كښې دې.كه يو كس ستا نه مشوره اوغواړي.نوخپل ځان د هغه په ځائې فرض كړه.اودا سوچ اوكړه.كه ته دده په ځائې وې.نو د خپل ځان دپاره به دې كوم څيز خوښولو.نو چه كوم څيز د خپل ځان دپاره خوښوې.هم د هغې مشوره وركړه.(٣)

امام غزالي رحمه الله يوه واقعه ليكلې ده.چه يو كس ته چا شكايت اوكړلو.چه زما په كور كښې مګې دی.چه ډير زيات ترې تنګ شوې يم.او ډير مو پريشانه كوی.څه كول پكار دی؟ نو هغوی ورته مشوره وركړه.چه د مګو علاج دا دې.چه ته يوه پيشو اوساته.هغه ورته اووئيل ما سره ويره ده.چه هسې نه د پيشو آواز واوری.اود ګاونډی كور ته لاړې نشي. اوكوم تكليف چه ماته اوس ملاويږی.هغه به ګاونډی ته ملاويږی.نو په دې صورت كښې به د خپل ورور دپاره د هغه څيز خوښونكې شم.كوم چه د خپل ځان دپاره نه خوښوم.(٤)

**د«لايؤمن» مفهوم** بهرحال دلته دكمال ايمان نفي مراد دې.او مقصد دا د.چه په كامل

---

١) فضل البارى(١١\٣٣٤، ٣٣٥)_
٢) امداد البارى (١٤\٣٦٤)_
٣) فضل البارى (١١\٣٣٥) وامداد البارى (١٤\٣٦٥)_
٤) فتح الملهم (١\٦٤٧) كتاب الإيمان باب الدليل على أن من خصال الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه من الخير)_

مومن كنبي دا جذبه پكار ده.(١) يا دا ونيلي شي چه دا د«تنزيل الناقص بمنزلة المعدوم»د باب نه دي او تنبيه او تذكير مقصود دي مطلب دا دي.كه په مومن كنبي دا صفت نه وي.نو د ده ايمان د څه كار نه دي؟ دايمان سره دا صفت ضرور پكار دي.ددي نه بغير يوكس د مومن ونيلو مستحق نه دي.دا «تنزيل الناقص بمنزلة المعدوم»دي.(٢)

دحضرت سليمان ﷺ دعا ﴿رَبِّ اغْفِرْ لِي وَهَبْ لِي مُلْكًا لَّا يَنبَغِي لِأَحَدٍ مِّنْ بَعْدِي﴾ باندي اشكال وارديږي.چه هغه ددي حديث سره منافى ده.ددي نه جواب دا دي.چه مونږ د حديث كوم مفهوم او مقصد بيان كړلو.د هغي نه پس دا اشكال باقى نه پاتي كيږي دغه شان ته داسي اووايه.چه دحضرت سليمان ﷺ دعا د جواز د بيان دپاره وه.يا هغه د امورو طبيعه د قبيلي څني وه.(٣)

# ۷= بَاب حُبُّ الرَّسُولِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْإِيمَانِ

په وړاندينى باب كنبي «من الإيمان» مقدم كړي وو.او دلته ئي «من الإيمان» موخر كړي دي.دا هم هغه تفنن دي.امام بخاري رحمه الله خو اول دا ثابته كره.چه د خلقو د ضرر نه خپل ځان بچ ساتل پكار دى.ددي نه ئي دا ثابته كره.چه مواسات په خپل مينځ كنبي كول پكار دي.او د نورو خلقو خيال ساتل او ځان خبرول پكاردى.ددي نه پس ئي مساوات بيان كرو.چه د خپل ورور دپاره هم هغه څيز خوښول پكار دى.كوم چه تاسو د خپل ځان دپاره خوښوئ.او اوس د هغي نه پس د مساوات وړاندينئ درجه بيانوى.چه د رسول الله ﷺ سره د خپل ذات نه زيات محبت كول پكار دى.

په اصل كنبي د محبت مركز خو دالله تعالى ذات دي.هغه خالق،مالك رازق دي.مدبر اوقيوم دي.خو الله تعالى ته د ټولو نه زيات نزدي محمد ﷺ دي.دوى په مخلوق كنبي د ټولونه زيات الله تعالى ته نزدي دى.او د الله تعالى د صفاتو د ټولو نه لوئي مظهردي.نو د محبت اصل مركز د الله تعالى ذات دي.و بيا د رسول الله ﷺ ذات دي.نو د رسول الله سره محبت د خپل ذات سره د محبت نه هم زيات ساتل پكار دى.

[۳] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى أَكُونَ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ وَالِدِهِ وَوَلَدِهِ

نبى كريم ﷺ فرمائى چه قسم دي په هغه الله دچا په لاس كنبي چه زما روح دي.هيڅ څوك نشى مومن كيدي ترڅو چه دهغه په نيز زه د خپل پلار.اواولاد نه زيات محبوب نشم.

---

١) فتح الملهم (١\٥٣٥) كتاب الإيمان باب الدليل على أن من خصال الإيمان أن يحب لأخيه المسلم ما يحب لنفسه من الخير)_

٢) فيض البارى (١\٨٢) باب من الإيمان ...)_

٣) تقرير بخارى (١\١٢٢)_

## رجال الحديث

① ابواليمان: د دوى حالات په ،،بدء الوحى،، د شپږم نمبر حديث لاندې تيرشوى دى.

② شعيب: ددوى حالات هم د ،،بدء الوحى،، د شپږم نمبر حديث په ضمن كښې تير شوى دى.

③ ابوالزناد: دا عبدالله بن ذكوان مدنى قرشى دې.ابوعبدالرحمن ددوى كنيت دې.او ابوالزناد د كنيت په صورت كښې ددوى لقب دې.(١)

په دې باندې به دوى خفه كيدلو.خو دوى هم په دې كنيت پشان نوم باندې مشهور دى.(٢)
د دوى په جلالت قدر او امامت باندې اتفاق دې.حضرت سفيان ثورى رحمه الله به دوى ته اميرالمومنين فى الحديث ونيل.ابوحاتم رحمه الله به فرمائيل.

((ثقة صاحب سنة وهو ممن تقوم به الحجة إذا روى عن الثقات))(٣)
ددوى شمار اګرچه په صغاروتابعينو رحمهم الله كښې كيږى.خو د دوى نه ډيرو تابعينو روايت كړې دې.او داد دوى په خصوصيات كښې ده.چه دوى د يو صحابى نه هم روايت نه دې اوريدلې.خوددې باوجود به تابعينو ددوى نه روايت كول.(٤)
امام احمد رحمه الله فرمائى.چه ابوالزناد په فقه كښې د ربيعه نه پورته دې.(٥)
امام بخارى رحمه الله فرمائى.چه دحضرت ابوهريره رضى الله عنه په اسانيدو كښې د ټولو نه اصح سند د ((أبوالزناد عن الأعرج عن أبى هريرة رضى الله عنه)) دى.(٦)
د شپږشپيته كالوپه عمر كښې په ١٣٠ هـ يا ددې نه پس وفات شوې دې رحمه الله (٧)

④ أعرج: دا ابوداود عبدالرحمن بن هرمز مدنى قرشى دې.دا تابعى دې.او ابوسلمه او عبدالرحمن بن القارى وغيره نه روايت كوى.ددوى نه دامام زهرى، يحى انصارى، اويحى بن ابى كثير رحمهم الله نه علاوه نوروحضراتو روايت كړې دې.ددوى په توثيق باندې د ټولواتفاق دې(٨)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.((ثقة ثبت عالم))(٩) په ١١٧ هـ كښې ددوى وفات شوې دې.(١٠)

---

(١) تقريب التهذيب (ص.٧٢٧) الكنى من الألقاب)_
(٢) عمدة القارى (١\١٤٢)-
(٣) المصدرالسابق)_
(٤) عمدة (١\١٤٣)_
(٥) المصدرالسابق)_
(٦) المصدرالسابق)_
(٧) تقريب (ص.٢٠٢) رقم ٣٣٠٢) وعمده (١\١٤٣)_
(٨) عمدة القارى(١\١٤٣)_
(٩) تقريب التهذيب(٢٥٢) رقم ٤٣٢)_
(١٠) عمدة (١١٤٣) وتقريب (٣٥٢)_

⑤ **حضرت ابوهريره** رضي الله عنه: د دوى حالات وړاندې د شعب الايمان د حديث په ضمن كښې تير شوى دى.

**[۱۵] حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وحَدَّثَنَا آدَمُ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ (۱) قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى أَكُونَ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ وَالِدِهِ وَوَلَدِهِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ**

## رجال الحديث

① **يعقوب بن ابراهيم:** دا ابويوسف يعقوب بن ابراهيم بن كثير بن زيد بن افلح عبدى دورقى دې.ثقه حافظ اومتقن وو.د ليث بن سعدليدل ئې كړى دى.ابن عيينه ،يحى القطان،يحى بن ابى كثير ﷺ اود نورو حضراتو نه ئې حديث روايت كړې دې.د دوى نه به ددوى ورور احمد بن ابراهيم ،ابوحاتم،او ابوزرعه روايت كولو.په ۲۵۲هـ كښې دوى وفات شوى دى.(۲) رحمه الله رحمة واسعة

② **ابن عُلَيّه:** دا اسماعيل بن ابراهيم بن مقسم (بكسر الميم وسكون القاف وفتح السين المهملة بعدها ميم) اسدى بصرى دې. دا ابن عُلَيّه په نوم باندې مشهور دې. عُلَيّه په اصل كښې د دوى د مور نوم دې.هم هغوى طرف ته منسوب دې.دوى به په دې نوم باندې خفه كيدلو.خو چونكه مشهور شوې وو پرې،ددې وجې به محدثينو ﷺ ورته اسماعيل بن عليه وئيل.البته امام شافعي رحمه الله چه به كله د دوى نه روايت كولو.نوفرمائيل به ئې.«أخبرنا إسماعيل الذى يقال له ابن علية»(۳)

امام شعبه رحمه الله به دوى ته سيد المحدثين وئيل.

امام احمد رحمه الله به فرمائيل «إليه المنتهى فى التثبت بالبصرة»

د دوى په جلالت شان باندې اتفاق دې.عبدالعزيزبن صهيب ،ايوب سختيانى نه علاوه د نورو محدثينو نه ئې اوريدل كړى دى.په ۱۹۳هـ يا ۱۹۴هـ كښې په بغداد كښې وفات شوې دې.(۴) رحمه الله رحمة واسعة.

---

(۱)الحديث أخرجه مسلم فى صحيحه كتاب الإيمان باب وجوب محبة رسول الله ﷺ .. رقم ۱۷۷و ۱۷۸) والنسائى فى سننه فى كتاب الإيمان وشرائعه باب علامة الإيمان رقم (۵۰۱۷و ۵۰۱۸) وابن ماجه فى المقدمة باب فى الإيمان رقم ۶۷)_

(۲) عمدة القارى (۱\۱۴۵)_

(۳) شرح نخبة الفكر(۱۳۹ ) معرفة من نسب إلى غيره أبيه)_

(۴) عمدة القارى (۱\۱۴۵) وتقريب التهذيب (۱۰۵) رقم ۴۱۶)_

③ **عبدالعزيزبن صهيب:** دا عبدالعزيز بن صهيب بنانى بصرى دې.تابعى دې. دحضرت انس رضی الله عنه نه ئې احاديث اوريدلى دى. شعبه رحمه الله به د دوى نه روايت كولو.او فرمائيل به ئې «**هوعندى الى أنس أحب الى من قتادة**» د دوى په توثيق باندې اتفاق دې.اصحاب اصول سته د د دوى روايات نقل كړى دى.

قاضى اياس بن معاويه رحمه الله به خانله د عبدالعزيزبن صهيب رحمه الله شهادت قبلولو.په كال ۱۳۰ھ كښې وفات شوى دى. **رحمه الله رحمة واسعة** (۱)

④ **آدم:** دوى آدم بن ابى اياس دى.او د دوى حالات د «**باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده**»، لاندې تيرشوى دى.

⑤ **شعبه:** د دوى حالات په «**باب المسلم من سلم المسلمون..**» كښې راغلى دى.

⑥ **قتاده** رحمه الله ⑦ **حضرت انس** رضی الله عنه: ددې دواړو حالات په مخكښنى باب كښې مونږ ليكلى دى.

**دحديث شرح** : امام بخارى رحمه الله دلته اولنې روايت د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه نقل كړې دې.په دې كښې د "**والذى نفسى بيده لايؤمن أحدكم حتى أكون أحب إليه من والده وولده**" الفاظ موجود دى.

دويم روايت د حضرت انس رضی الله عنه دې.ددې ئې دوه سندونه بيان كړى دى.اولنې سند،**عبدالعزيز بن صهيب عن أنس**،، په سند سره،دې.اود دويم سند ئې د ،،**عن قتادة عن أنس** رضی الله عنه،،په طريق سره نقل كړې دې.اودلته تحويل دې.(۲) خو امام بخارى رحمه الله چه د حديث كوم الفاظ نقل كړى دى.د عبدالعزيزبن صهيب په سند سره ئې نه دى نقل كړى.د قتاده د روايت الفاظ بعينه هم هغه دى.كوم چه د حضرت ابوهريره رضی الله عنه د روايت الفاظ دى.صرف په هغې كښې د «**والناس أجمعين**» زيادت دې.په خلاف د عبدالعزيزبن صهيب د روايت.په هغې كښې «**لايؤمن أحدكم حتى أكون أحب إليه من أهله وماله**» راغلى دى.دا الفاظ د ابوهريره رضی الله عنه دروايت مطابق نه دى.اودامام بخارى رحمه الله مقصد د ابوهريره رضی الله عنه د روايت تائيد دې.هغه د «**قتادة عن أنس**» د روايت د سند په الفاظو سره كيږى.اود «**عبدالعزيز بن صهيب**» د روايت په الفاظو سره نه كيږى.ددې وجې ئې د عبدالعزيز د روايت الفاظ ذكر نكړل.(۳)

---

۱) عمدة القارى (۱۴۵\۱) وتقريب (۳۵۷) رقم ۴۱۰۲)_

۲) د تحويل پوره بحث د بدء الوحى د پنځم حديث لاندې تير شوې دې..عبدالعزيز بن صهيب عن أنس رضی الله عنه.. دا د روايت الفاظ نه دى.نوځكه ئې ..عبدالعزيز بن صهيب رحمه الله د روايت الفاظ نه دى ذكر كړې (فتح البارى (۵۹\۱)_

۳) فتح البارى (۵۹\۱)_

**په حديث پاک کښې د قسم صيغه راوړلو وجه** دلته کښې يو سوال پيدا کيږي چه نبى ﷺ قسم اوخوړلو اووې فرمائيل چه په تاسو کښې هيڅ سړې مومن نشى کيدې ترڅو چه زه هغه ته د پلار او اولاد نه زيات محبوب نشم. د نبى ﷺ په وينا باندې خو په هرصورت کښې يقين کولې شى نو بيا د ،،والذى نفسى بيده،، د قسم صيغه نبى ﷺ ولې استعمال کړې ده؟

ددې يو جواب خو دا ورکړې شوې دې چه دا خبره اهمه ده او اهمه خبره د تاکيد په طريقه ذکر کولې شى نوځکه نبى ﷺ د تاکيد په طور ذکر کولودپاره د قسم صيغه استعمال کړله چه د قسم نه تاکيد پيدا شى.(۱)

**دويم جواب** دا دې چه په اصل کښې د محبت معامله لګه غوندې نازکه وى د سړى د خپل خان، خپل اولاد او خپل مور پلار سره زيات محبت وى په دې محبتونو باندې د نبى ﷺ محبت غالب کول ګران کار دې نوځکه نبى ﷺ قسم اوخوړلو او وې فرمائيل چه تر څو پورې د مور پلار، اولاد او ټولوپه مقابله کښې زما محبت زيات نه وى نو تر هغه وخته پورې ستاسو ايمان صحيح نه دې ددې اشکال لرې کولو دپاره چه د مور پلار، اولاد او خان سره محبت غيراختيارى دې اوپه باقى ټولو محبتونو باندې غالب وى نود نبى ﷺ محبت به څنګه غالب شى؟ نو نبى ﷺ قسم اوکړلو. او وې فرمائيل چه دا معمولى خبره مه ګنړئ دا ضرورى ده زه قسم کوم او وايم چه ددې نه بغير کار نه کيږى.

**د محبت معنى او ددې قسمونه** دلته په عالمانو کښې خبرې شوى دى چه دلته محبت نه کوم محبت مراد دې؟ اول تاسو د محبت معنى اوددې قسمونه زده کړئ. بيا به دې نه پس پوهه شئ چه دلته د محبت کوم قسم مراد دې.

امام راغب رحمه الله نقل کړى دى چه محبت :،،إرادة ماتراه أوتظنه خيراً،، ته وائى.(۲)

يعنى په کوم څيز چه ته د خير ګمان کوې اودهغې ته اراده اوکړې نودا محبت دې.

بيا د محبت څو قسمونه دى.

① يو محبت طبعى دې لکه د اولاد، مور پلار اويا خپل خان سره محبت شو د دې محبت منشا قرب دې دخپل خان سره قرب خو معلومه دې دغه شان د خپل مور پلار سره، ځکه چه دې د هغوى جزء دې اود بعضيت او جزئيت د وجې د دوى سره ډير زيات نزديکت وى دغه شان په خپل اولاد کښې هم د جزئيت او بعضيت قرابت موجود دې نود دوى سره هم محبت زيات وى دې محبت ته محبت طبعى وائى اودا غير اختيارى دې.

② دې نه علاوه يوبل محبت ،،محبت احسانى،، دې ،،الإنسان عبد الإحسان،، چه يو کس مونږ سره احسان اوکړى مونږسره ښه سلوك اوکړى نو زمونږدهغه سره محبت پيدا شى چونکه احسان کوم چه د دې محبت سبب دې هغه اختيارى فعل دې نو ځکه دا محبت هم اختيارى دې.

③ يو محبت ،،محبت جمالى،، دې په دې کښې د محبت سبب جمال وى او دا هم

(۱) فتح البارى (۱\۵۸) وعمدة القارى (۱\۱۴۳)_

(۲) المفردات فى غريب القرآن (۱۰۵)_

اختياري وي.څكه چه ته په خپل اختيا باندې دغه ښكلى ځيز ته ګورې.د هغې آواز طرف ته غوږ اږدى.او په خپل اختيار باندې د هغه سره ګډون او ربط قائم ساتې. نو هركله چه ته په خپل اختيار سره دا ټول كارونه كوې.نو وئيلى شي.چه دا محبت جمالى هم اختيارى دې.

④يومحبت دې ،،محبت كمالى،، يعنى دچا د څه كمال د وجې د هغه سره محبت كول وى. لوې لوې د كمال خاوندان تير شوى دى.اومونږ د هغوى واقعات.د هغوى د علومو او مهارتونوپه كتابونو كښې لوستنه كړې ده.دهغوى سره زمونږ محبت دې.چه دهغوى ذكر راشى.نود ادب خيال ساتو.په زړه كښې دننه هغوى ته ميلان پيدا كيږى.اوچه څوك هغوى په بدۍ سره ياد كړى.نود دفاع دپاره تيارېږو. اود هغوى په شان كښې ګستاخۍ اوريدو ته بيخى تيارنه يو.نودهغوى دكمال د وجې مونږ ته دا محبت دهغوى سره پيدا شوې دې.دا هم اختيارى دې. څكه چه مونږ د هغوى كمالات اويدلو لوستلو او په هغې كښې مو غوږ او فكر كړى دى. اودا ټول كارونه اختيارى دى.نودا محبت هم اختيارى شو.

⑤ددې نه علاوه يو بل محبت دې ،،محبت عقلى،، په دې كښې دا وى.چه نفع او نقصان سړې وينى.او بيا هغه د فائدې په صورت كښې محبت كوى.لكه كه زمونږ په لاس كښې يو غټ زخم راشى.او ددې خبرې ويره وى.چه دا به ښه نشى.ود بدن نورو حصو ته به سرايت اوكړى.اومونږ به هلاك شو.نو مونږ ډاكټر ته ورشو.او هغه ته درخواست كوو.چه آپريش اوكړئ.اوهغه ورته اووائى.چه دا اوليكه.چه په آپريشن كښې څه نقصان راشى.نو زه به د هغې ذمه وار نه يم.دې ورته دا هم اوليكى.څكه چه ده ته خپله فائده په نظر راځى.اګرچه طبعاً غوښې كټ كول اود هډوكي ماتول ئې خوښ نه وى.خو چونكه په دې كښې ورته فائده په نظر راځى. نو څكه دده د دې آپريشن او د دې ځيرى كولو سره عقلى محبت وى.

خلاصه دا چه د محبت پنځه قسمونه دى.

① حب طبعى② حب احسانى ③ حب كمالى④ حب جمالى⑤ حب عقلى [1]

اوس به تاسو دلته پوهه شئ.چه دلته كوم محبت مراد دې؟

قاضى بيضاوى رحمه الله فرمائى.،،المراد بالحب هنا الحب العقلى الذى هو ايثار ما يقتضى العقل السليم رجحانه وإن كان على خلاف هوى النفس،كالمريض يعاف الدواء بطبعه فينفر عنه،،[2]

يعنى دلته د محبت نه عقلى محبت مراد دې.په كوم كښې چه د عقل سليم مقتضى ته ترجيح وركولې شى.اګرچه د خپل خواهش خلاف وى.لكه مريض چه دوائى د خپل طبعيت په اعتبار سره نه خوښوى.اوددې نه تختى.

امام خطابى رحمه الله هم فرمائى.چه دلته طبعى نه بلكه اختيارى محبت مراد دې.[3] يعنى دا سوچ كول پكار دى.كه د نبى ﷺ مونږ تابعدارى اوكړو.اود نبى ﷺ سره محبت اوساتو.نوپه دې كښې زمونږ نفع او فائده ده.اوكه مونږ د نبى ﷺ تابعدارى اونكړو.اود دوى سره محبت

---

[1]) فضل البارى (۱۱۳۳۶)_

[2]) فتح البارى (۶۱۱) باب حلاوة الإيمان )_

[3]) فتح البارى(۵۹۱۱) باب حب الرسول من الإيمان )_

اونه ساتو نوزمونږ نقصان دې د دنيا فائده هم په دې كښې ده چه د نبي ﷺ تابعدارى اوكړې شي چه دا سوچ اوكړې نوته به دنبي ﷺ سره محبت شروع كړې دا محبت عقلى دې دلته خلقويه يوه غلط فهمي كښې پريوځي اوهغه غلط فهمي دا ده چه كيدې شي د امام خطابي او امام بيضاوى رحمهما الله مقصد دا وى چه حب عقلى دې حاصل كړې شي او هم په دې دې قناعت او اكتفا اوكړې شي خوا خبره صحيح نه ده د هغوى منشا دا ده چه د نبي ﷺ سره دا سوچ كول چه دوى سره محبت كول د الله تعالى سره محبت كول دى او د نبي ﷺ سره محبت كول د دوى په تابعدارئ باندې آماده كونكې او تيزونكې ده او په ې باندې مونږ ته فائده رسى نقصان نه رسى نوچه دا سوچ اوكړى محبت به ورسره كولې شى.

بيا دې په دې كښې حب احسانى هم شامل كړې شى چه د نبي ﷺ په مونږ باندې بې شميره احسانات دى دوى مونږ د ظلمت د تيرو نه راويستې يو اود هدايت په كهولاؤ لاره باندې ئې اودرولې يو دوى مونږ دالله تعالى د حكمونو نه خبر كړى يو دوى زمونږ د خير خيگړې دپاره ډير مشقتونه زغملى دى بغير د څه لالچ نه دخپل څه ذاتى مقصد نه بغير ئې زمونږ د كاميابئ او فلاح دپاره تكليفونه برداشت كړى دى اوخپل ځان ئې په امتحاناتو كښې اچولې دې نودا حب احسانى دې ورسره هم شامل كړې شى.

بيا دې ورسره حب كمالى هم شامل كړې شى چه نبي ﷺ ته الله تعالى كوم كمالات وركړې دى هغه د ,,بعد از خدا بزرك توئى قصه مختصر،، مطابق په مخلوق كښې چه چاته هم دغه كمالات نه دى وركړې شوى.

دغه شان د نبي ﷺ د جمال تصوركولې شى اوحب جمالى دې ورسره هم شامل كړې شى.

نوهركله چه ته ددې حب عقلى سره حب احسانى حب كمالى او حب جمالى هم جمع كړې نوبيا به دا محبت عقلى دومره ترقى اوكړى چه محبت طبعى به هم ددې په مقابله كښې هيڅ نه وى.(١)

**دحضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه واقعه** اوګورئ حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه په غزوه بدر كښې موجود دې او د دوئ خوئې عبدالرحمن د كافرانود لښكرد طرفه د مقابلې دپاره اعلان كوى (چه څوك به زما مقابلې ته راوخې) نوحضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د نبي ﷺ نه اجازت غوارى خونبي ﷺ اجازت نه وركوى (٢) د دوى محبت عقلى ترقى كړې وه او دې مقام ته رسيدلې وو چه د محبت طبعى اقتضاء هلته باقى پاتې نه وو.

**حضرت عبدالله بن عبدالله بن أبى رضي الله عنه واقعه** حضرت عبدالله يو صحابى دې كوم چه د عبدالله بن ابى ابن سلول راس المنافقين ځوئې وو دوى مخلص او صادق الايمان صحابى وو په يوه موقعه عبدالله بن ابى ابن سلول رئيس المنافقين اووئيل ﴿لَيُخْرِجَنَّ الْأَعَزُّ مِنْهَا الْأَذَلَّ﴾

---

(١) نبي ﷺ سره د محبت داهميت په باره كښې داحقرمترجم په تاليف ,,دمنبرګلونه،، كښې ,,په امت باندې دخپل پيغمبر ﷺ سره د مينې وجوب،، په موضوع باندې ليكلې شوې تقريرد كتلو قابل دې۔

(٢) الإستيعاب فى معرفة الأصحاب بهامش الإصابة-(٢/٤٠٠، ٣٩٩)_

نو نبي ﷺ ته دا خبره اورسيدله چه کهل د قران کريم په ذريعه ددې خبرې تصديق اوشو.نو حضرت عمر رضی الله عنه د نبي ﷺ نه د دې منافق د ختې وهلو اجازت اوغوښتلو.خو نبي ﷺ ورته اجازت ورنکړلو.

حضرت عبدالله رضی الله عنه نبي ﷺ ته تشريف يوړلو.او عرض ئې اوکړلو. يارسول الله! ماته معلوه شوې ده.چه تاسو د عبدالله بن ابی (زما د پلار) قتل کول غواړئ.که ستاسو دا اراده وی.نوماته حکم اوکړئ.چه زه تاسو ته دهغه سر راوړم. نبي ﷺ منع کړلو.او ورته ئې اورمائيل.مونږ به هغه سره د نرمئ معامله کوو.(١)

دلته په ځونې کښې محبت طبعی باقی پاتې نه وو.بلکه حب عقلی چه دايمان محبت دې.هغه غالب شوې وو.

**دحضرت عبدالله بن زيدبن عبد ربه واقعه** دغه شان حضرت عبدالله بن زيد رضی الله عنه دې.په خوب کښې هم دوی ته د اذان کيفيت خودلې شوې وو.دوی په خپل پټی کښې کار کولو چه ځونې ئې راغلو.نود رسول الله ﷺ د وفات خبر ئې ورته ورکړلو.چه دا ئې واوريدلو.نوسمدستی ئې دعا اوکړله.اې الله په کومو سترګو چه مې د رسول الله ﷺ ليدل کړی وو..اوس د هغوی ﷺ نه پس په دې سترګو بل څيز ليدل نه خوښوم.ته زما د سترګو نظر بوځه. نو د هغوی نظر لاړلو.① دا هم هغه حب عقلی دې.کوم چه ترقی اوکړله.اوهم دې مقام ته راورسيدلو کوم ته چه حب طبعی رسيږی.

**دحضرت عبدالله بن حذافه سهمی رضی الله عنه واقعه** حضرت عبدالله بن حذافه رضی الله عنه په يوه موقع د روميانو سره قيد شو.اتيا کسان دوی سره وو.د روم بادشاه حضرت عبدالله بن حذافه رضی الله عنه ته اووئيل.چه ته اسلام پريږده.اونصرانيت قبول کړه.زه به تا په خپل حکومت کښې شريک کړم.حضرت عبدالله بن حذافه رضی الله عنه دې پيشکش ته لته ورکړله.هغوی د حضرت عبدالله رضی الله عنه په سولئ باندې د خيژولو اوپه غشو باندې د ويشتلوحکم اوکړلو.نوهغه د سولئ سره اوتړلې شو.خودهغه په مخ باندې څه اثر نه وو.نودوی د هغه خائې راکوز کړې شو. اوبيا ئې په يوکړی کښې د اوبو ګرمولوحکم اوکړلو.کله چه اوبه ښه په جوش شوې يو قيدی ئې په هغې کښې ورواچولو.سمدستی دهغه غوښه د بدن نه جدا شوه.اوهډوکې په کښې بنګاره کيدل شروع شو.حضرت عبدالله ته اووئيلی شو.که اسلام نه پريږدې.اونصرانيت نه قبلوې.نوبه دې کښې به غورخولې شې.کله چه هغه د کړی طرف ته روان کړې شو.نودې په ژړا شو.هغوی دا اوکنړل.چه اوس دې اووريدلو.اوخپل دين به پريږدی.نو واپس ئې راؤغوښتلو.اوتپوس ئې ترې اوکړلو.چه ته ولې ژاړې.نوحضرت عبدالله بن حذافه رضی الله عنه جواب ورکړلو.چه زه په دې خبره ژاړم.چه زما صرف يو روح د الله تعالی په لار کښې قربانی کيږی.افسوس چه زما سل روحونه وو.او يو يو دالله په لار کښې اخستې شو.نوهغه ډير حيران شو.او بيا ئې اووئيل.که زما تندې دې ښکل کړلو.نو زه به تا آزاد کړم.دوی ورته اوفرمائيل.صرف مابه نه آزادوئ.بلکه زما ټول ملګری به آزادوې.نو هغه ورسره وعده

---

(١) سيرة ابن هشام بهامش الروض الأنف (٢١٨\٢)غزوة بنی المصطلق)_

اوکړله.دوی د هغه د سر نه بوسه واخستله.اوټول آزاد شول.مديني منورې ته راورسيدل.
حضرت عمر رضي الله عنه ته چه کله دا واقعه معلومه شوه.نوهغوی دحضرت عبدالله تندی نه بوسه
واخستله.[1]

**دحضرت خبيب رضي الله عنه واقعه** دحضرت عاصم بن ثابت رضي الله عنه په اميرئ کښې نبی ﷺ يوه سريه
ليږلې وه.چه په هغې کښې خبيب بن عدی رضي الله عنه هم وو.تفصيلي واقعه به په مغازی کښې د
غزوه رجيع په بيان کښې راشي.دلته کښې صرف دومره اوپيژنئ.چه حضرت خبيب کله
کافرانو دقتل دپاره بوتل.نو ابوسفيان چه تراوسه پورې مسلمان شوې نه وو. حضرت خبيب
رضي الله عنه ته اووئيل.،،أتحب أن محمدا أعندنا الآن مكانك نضرب عنقه وأنك في أهلك،، يعنی ته دا
خوښوې.چه هته په خپل کور کښې وې.او په دې وخت کښې مونږ سره محمد (ﷺ) وو.
اومونږ (معاذالله) هغه قتلولو.نوحضرت خبيب رضي الله عنه ورته فرمائی.،،والله ما أحب أن محمدا الآن في
مكانه الذي هو فيه تصيبه شوكة تؤذيه وأنا جالس في أهلي،، يعنی په الله قسم چه زه دومره خبره هم
نشم برداشت کولې.چه زه په خپل کور کښې ناست يم.او زما محبوب محمد ﷺ ته هلته په
خپل مقام کښې د يوازغی تکليف اورسی.په دې باندې ابوسفيان اووئيل.،،ما رأيت من
الناس أحدا يحب أحدا كحب أصحاب محمد محمدا،، يعنی د نبی ﷺ ملګری چه څنګه د هغوی سره
محبت کوی.داسې محبت اوتعظيم مادبل چا نه دې ليدلې.[2]

**ديوې صحابيه واقعه:** د يوې انصاری ميرمنې واقعه قاضی عياض رحمه الله په ،الشفاء،، کښې
ليکلې ده.چه د احد په ورځ د دغې ښځې خاوند.پلار،او ورور شهيدان شوی وو.کله چه
هغې ته د دې ټولو د شهادت خبر ملاؤ شو.نودې تپوس اوکړلو.چه رسول الله ﷺ څنګه
دې؟نو ورته اوخودلی شو.چه الحمد لله نبی ﷺ صحيح سلامت دې.نو هغې اووئيل.چه ماته
نبی ﷺ اوښائې.کله چه ئې نبی ﷺ اوليدلو.نوبې اختياره ئې د خولې نه اووتل.،،كل مصيبة
بعدك جلل،، يعنی چه تاسو روغ رمټ ئې.نوبيا هرمصيبت وړکوټې دې.[3]
دا د صحابه کرامو رضي الله عنهم هغه محبت عقلی وو.چه دې سره حب احسانی.حب کمالی، اوحب
جمالی هم شامل شوې وو.دکومې په وجه چه دغه محبت داسې محبت جوړ شوې وو.چه حب
طبعی ددې په مقابله کښې هيڅ نه وو.
علامه قسطلانی رحمه الله ددې محبت نوم حب ايمانی.،کيخودې دې.[4]بعضې حضرات دې ته
،،حب عشقی،، وائی.[5]،،حب ايمانی،يا حب عشقی هغه عقلی محبت وو. کوم چه ترقی

---

[1] الإصابة (٢٩٦\٢. ٢٩٧) رقم الترجمة (٤٦٢٢)_
[2] سيرة ابن هشام على هامش ..الروض الأنف .. (١٦٨\٢. ١٦٩)_ ذكريوم الرجيع في سنة ثلاث..)_
[3] فتح الباري (٦٤٣\١١) سيرة ابن هشام (١٤٣\٢) غزوة أحد قبيل غزوة حمراء الأسد..)_
[4] ارشاد السارى (٩٧\١)_
[5] درس بخاری.ازعلامه عثمانی رحمه الله (١٦٦\١)_

اوکړله اودې مقام ته راورسیدلو.خکه په قرآن مجید کښې فرمائي.﴿قُلْ إِن كَانَ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ وَإِخْوَانُكُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَالٌ اقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَاكِنُ تَرْضَوْنَهَا أَحَبَّ إِلَيْكُم مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَجِهَادٍ فِي سَبِيلِهِ فَتَرَبَّصُوا حَتَّىٰ يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ﴾ (١) دلته کښې هم ددې څیزونوذکردې.چه کوم سره محبت طبعي کولې شي.خوهغه دایمان محبت (که ته ورته حب ایماني وائې. اوکه حب عشقي.یاحب عقلي) په دې طبعي محبت باندې غالب شوې وو.

دلته په حدیث کښې ئې ((لايؤمن أحدكم حتى أكون أحب إليه من والده وولده والناس أجمعين)) فرمائیلي دي.دلته په مقابله کښې د والد او ولد محبت دې.او اشاره دې خبرې ته ده.چه هغه حب عقلي حاصلول پکار دي. دکوم حب عقلي سره چه دا ټول محبتونه جمع کولې شي.او بیا هغه ترقي کوي.دحب طبعي نه هم پورته شي.اودحب طبعي ددې په مقابله کښې هیڅ حیثیت پاتې نشي.

بعضې حضراتودا هم فرمائیلي دي.چه دلته محبت طبعي مراد دې.خکه چه مقابله د والد او ولد د محبت سره شوې دې.او دقران مجید په آیت کښې د آباء.ابناء.اخوان.ازواج.عشیره.اموال.تجارت.اوکورونوسره ورکړې شوې ده.اودا ټول محبتونه چونکه طبعي دي.نوځکه به دالله اود رسول د محبت نه هم طبعي مراد وي.(٢)

خوبیا به هغه اشکال راځي.چه محبت طبعي خو غیر اختیاري وي. او د غیراختیاري امورو انسان نشي مکلف کولې.نوځکه غوره خبره هغه ده.کومه چه تاته د محبت د تعریف اوددې دقسمونو نه پس اوخودلې شوه.چه دلته خطابي او بیضاوي رحمهما الله چه څنګه محبت عقلي او اختیاري مراد اخستې دې.هلته کښې ئې ترې ته مراد واخله.خودا کوتاهي اوستی مکوئ.چه په محبت عقلي باندې اکتفاء اوکړئ.نه بلکه منشاء او مقصد دا دې.چه د محبت عقلي سره نور محبتونه هم جمع وي.اوکله چه ورسره هغه جمع شي.نوبیا به دا محبت عقلي ترقي اوکړي.نوددې نه به محبت ایماني اومحبت عشقي جوړ شي.اودا به په محبت طبعي باندې هم غالب شي.

**د والد او ولد دتخصیص اوپه یوبل باندې دتقدیم وجه** دلته په روایت کښې د والد او ولد ذکردې.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.چه چه ددې وجه دا ده.چه د عاقل په نیزد دا دواړه د اهل اومال نه اوچت دي.بلکه بعضې دخپل ځان نه هم اوچت وي.خکه خو د حضرت ابوهریره رضي الله عنه په حدیث کښې د ،،نفس،، ذکرنشته.(٣)

بیا په ذکرشوو روایاتوکښې د ،،والد،، ذکر وړاندې اود ولد روسته دې. او داسې روایات هم شته.چه په هغې کښې د ،،ولد،، ذکر وړاندې دې.او د ،،ولد، روسته دې.( ) دهریو

---

١) سورة توبه:٢٤)_

٢) تقریر بخاری(١\١٢٣)_

٣) فتح الباری(١\٥٩)_

٤) ملاحظه:صحيح مسلم،كتاب الايمان باب وجوب محبة رسول الله ...)_

توجیه کیدې شی په کوم ځائې کښې چه د ..والد.. ذکر وړاندې دې نودا ددې وجې چه والد په وجود کښې هم د ولد نه مقدم دې اوپه مرتبه کښې هم .اوپه کوم ځائې کښې چه د ..ولد.. ذکر مقدم دې نوهلته به ونیلی شی چه د شفقت اومحبت په باره کښې چونکه ولد په والد باندې مقدم وی یعنی د والد محبت چه د ولد سره څومره زیات وی نود ولد محبت د والد سره دومره زیات نه وی نوځکه د ولد ذکرپه دې روایت کښې مقدم راغلې دې.(١)

**دوالد په مفهوم کښې ام دخول** بیا سوال دا پیدا کیږی چه آیا د ..والد.. په مفهوم کښې ..ام.. هم داخلیږی که نه؟ نوکه د ..والد.. نه ..من له الولد.. مراد وی نوپه دې کښې ..ام.. هم داخله ده.بلکه ددې معنی په اعتبارسره په کښې اجداد .جدات اوددې نه د پورته سلسلهٔ خلق هم داخلیږی.ځکه چه د ولادت تعلق ددې ټولو سره دې.داسې هم ونیلی شی چه په والدینوکښې صرف په پلارباندې اکتفاء اوکړې شوه.خوپه دې کښې مور هم داخله ده.(٢)

**په حدیث کښې د والد او ولد سره د خپل نفس ذکر ولې نشته؟** دلته کښې دا سوال هم کیږی چه د والد اوولد سره سره د خپل نفس ذکر ولې اونکړې شو؟حالانکه د نبی ﷺ سره محبت د خپل نفس نه هم زیات ساتل ضروری دې.

ددې جواب دا دې چه د حضرت انس رضی الله عنه په حدیث کښې د والد او ولد نه پس د ..والناس أجمعین.. الفاظ راغلی دی.ددې په عموم کښې نفس هم داخل دې.(٣)

ددې نه علاوه د حضرت عبدالله بن هشام رضی الله عنه په حدیث کښې د ..نفس.. ذکرهم شته.(٤)

**ایا په حدیث کښې دمحبت نه مراد تعظیم دې؟** قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه دلته په حدیث کښې د ..لایؤمن أحدکم حتی أکون أحب إلیه من والده وولده والناس أجمعین.. نه مراد دا دې چه د نبی ﷺ تعظیم د والداو ولد نه زیات پکار دې.لکه چه دهغوی په نیزدا د ایمان دصحت شرط دې.

خوصاحب د..المفهم.. دا خبره رد کړې ده.چه دتعظیم وجود دنفس ایمان دپاره ضروری ده. بلکه دلته خبره دکمال ایمان کیږی.نوددې نه هم هغه حب ایمانی اوحب عشقی مراد ده.(٥)

**دشیخ ابوالخراز رحمه الله واقعه** شیخ ابوالقاسم قشیری رحمه الله د شیخ ابوسعید خراز رحمه الله نه نقل کړې دی چه دوی یوځل نبی ﷺ په خوب کښې اولیدلو .اوعرض ئې اوکړلو ..یا رسول الله شغلتنی محبة الله عن محبتك.. یعنی دالله تعالی محبت زه ستا د محبت نه بند کړې یم.نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل ..یامبارك من أحب الله فقد أحبنی.. څوك چه د الله تعالی سره محبت

---

(١) فتح الباری (۱\۵۹)_

(٢) المصدر السابق)_

(٣) فتح الباری (۱\۵۹)_

(٤) صحیح بخاری کتاب الأیمان والنذور باب کیف کانت یمین النبی ﷺ رقم ۶۶۳۲)_

(٥) فتح الباری (۱\۵۹)_

كوى نوهغه زما سره محبت كونكې دې.

يو مطلب خو ددې دا وو.چه كله ستا دالله تعالى سره محبت دې نوستا زما سره هم محبت شته.د فكر ضرورت نشته.اود تشويش څه خبره نه ده.دالله تعالى د محبت په ضمن كښې زما محبت هم راځى.

اوددې يوبل مطلب دا هم دې.چه څوك د الله تعالى سره محبت كوى.هغه به زما سره خامخا محبت كوى.ته څنګه وائې.چه دالله تعالى محبت زه ستا د محبت نه ايسار كړې يم؟ چه دالله تعالى سره محبت كوى.هغه به زما سره څنګه محبت نه كوى.نوستا دپاره پكار دى.چه ته الله تعالى طرف ته متوجه ئې.اوددې كاراهتمام درله پكار دې.(١)

بهرحال د عرض كولومقصد دادې.چه په اصل كښې د محبت مركز خو دالله تعالى سبحانه وتعالى ذات دې.ځكه چه د محبت ټول اسباب على وجه الكمال په ده كښې موجود دى.اونبى ﷺ چونكه دالله تعالى په صفاتو موصوف دې.اودهغه دصفاتو مظهردې.دغه شان د نورټول مخلوق په مقابله كښې الله تعالى ته نزدې دې.نوځكه د نبى ﷺ سره محبت هم ضرورى شو.بيا څوك چه د نبى ﷺ په اسوه حسنه باندې چليږى.اودالله تعالى دصفاتو نقل كونكى دى.اود دوى په تعليماتو او هداياتوعمل كونكى دى.نودهغوى سره على قدرالمراتب هم هغه هومره محبت پكار دې.(٢)

**دحضرت عمر رضی الله عنه واقعه په هغې اشكال اودهغې جواب** دحضرت عمر رضی الله عنه واقعه ده.چه هغوى اوونيل.،،يا رسول الله لأنت أحب إلى من كل شئ إلا من نفسى،، يا رسول الله زما تاسو سره دهرڅيز نه زيات محبت دې.سوادخپل ځان نه،نونبى ﷺ اوفرمائيل،،لا والذى نفسى بيده حتى أكون أحب إليك من نفسك،،ترهغه وخته پورې خبره نه سميږى.ترڅو پورې چه زه تاته دخپل ځان نه هم زيات محبوب نه شم.نوحضرت عمر رضی الله عنه عرض اوكړلو.اوس تاسوسره زمادخپل ځان نه هم زيات محبت شو.نونبى كريم ﷺ اوفرمائيل،،الآن ياعمر،، يعنى اوس ياعمره خبره ټيك شوه.(٣)

دلته عام طور شارحين او محدثين هم دا خبره كوى.چه په اصل كښې حضرت عمر ته د خپل ځان سره محبت د نبى ﷺ په مقابله كښې زيات نه محسوس كيدلو.كله چه ورته نبى ﷺ تنبيه وركړله.نوهغوى سوچ اوكړلو.او د سوچ او فكر نه پس په هغوى باندې دا خبره څرګنده شوه.چه زه د نبى ﷺ د عزت دپاره خپل عزت قربانى كولې شم.په كوم ځائې كښې چه د نبى ﷺ د خولې يو څاڅكې غورځيږى. هلته زه خپل ځان قربانى كولې شم.نو زما يقيناً د نبى ﷺ سره د خپل ځان نه زيات محبت دې.وړاندې دوى ته ددې څرګندتيا او

---

(١) داحقرمترجم په نيزكه ددې نه داسې تعبيراوشى.چه ته دالله تعالى سره محبت كوې.نودالله تعالى هريوحكم به منې.اودالله تعالى په حكمونوكښې يوحكم دا هم دې.چه تاسودخپل پيغمبر ﷺ سره محبت كوئ.نويقينى ده چه ته به زما سره محبت كوې)

(٢) فضل البارى(١١٠٤٠،٣٤١)_

(٣) صحيح بخارى كتاب الأيمان و النذورباب كيف كانت يمين النبى ﷺ،رقم (٦٦٣٢)_

انشراح نه وو شوې.او كله چه نبي ﷺ دا خبره اوكړله نوهغوی سوچ اوكړلو.او د سوچ نه پس ئې انشراح صدر اوشو.(١)

خودا توجيه چه كومو شارحينو كړې ده.زړه پرې نه مطمئن كيږي.خكه چه حضرت عمر ؓ لوې مرتبې صحابي ؓ دې.چه د حضرت ابوبكرصديق ؓ نه پس د هغوی درجه ده.په ټول امت باندې هغوی ته فضيلت حاصل دې. آيا د دوی د نبي ﷺ د ذات سره د خپل ځان نه زيات محبت نه وو.يقيناً وو.نوبيا ئې ،،إلامن نفسى،،ولې اوونيل.

دلته به تاسوته د احنافو اصول استعمالول پكار راځي.په دې طريقه به مسئله آسانه اوسهل شي.داحنافو اصول دا دی.چه په مستثنی كښې د مستثنی منه خلاف حكم نه وی.بلكه مستثنی د مسكوت عنه په حكم كښې وی.(٢)

لكه چه حضرت عمر ؓ اوفرمائيل.چه تاسو زما په نيز د هرڅيز نه محبوب ئې. وړاندې وائی.،،إلامن نفسى،،خو زه د خپل ذات په باره كښې څه نشم وئيلې.په دې كښې زه خاموش يم.دا مطلب نه دې.چه تاسو سره زما د خپل ذات نه زيات محبت نه دې.خپل ذات چه څومره محبوب دې.دومره راته ته محبوب نه ئې.بلكه مراد دا دې.چه زه دخپل ذات په باره كښې څه نشم وئيلې.

په اصل كښې حضرت عمر ؓ د نبي ﷺ عاشق وو.اودمحبت دا خواهش وی.چه د محبوب د ژبې نه دا واورې.چه تالره زما سره د خپل ځان نه هم زيات محبت كول پكار دې.حضرت عمر ؓ هم ددې آرزو لرله.چه نبي ﷺ اوفرمائی.چه تالره زما سره دخپل ځان نه هم زيات محبت پكاردې.نو نبي ﷺ هم دغه شان اوفرمائيل. نو حضرت عمر ؓ سمدستی عرض اوكړلو.چه حضرت تاسو سره زما د خپل ځان نه هم زيات محبت دې.هغه وړاندې هم وو.خو هغوی د دې اظهار اونكړلو.په دې باره كښې ئې سكوت اختيار كړلو.چه د نبي ﷺ د ژبې نه ئې د محبت د زيادت مطالبه واوريدله.نوخوند ورته ملاؤ شو.نو دهغوی دا مقصد پوره شو.اوبيا ئې صراحت اوكړلو.(٣) والله سبحانه اعلم

كه د رسول الله ﷺ سره د محبت زيادت كه دنفس ايمان دپاره شرط وی اوكه د كمال ايمان دپاره ضروری اوګرځولې شي.كه دمحبت نه عقلي محبت مراد وی او كه بل محبت،خوپه هرحال كښې د مرجئه ترديد كيږي.چه محبت د رسول ﷺ كوم چه يوه نيكي ده.هغه د نفس ايمان يا د كمال ايمان فائده وركوی.(٤)

---

(١) فتح الباری(١١\٥٢٨) كتاب الأيمان والنذور باب كيف كانت يمين النبي ﷺ )_

(٢) فضل الباری(١\٣٤٢) دغه شان كشف الأسرارلعبدالعزيز البخاری (٣\١٢٢)_

(٣) فضل الباری(١\٣٤١-٣٤٢)_

(٤) امام العصرحضرت كشميری ؒ فرمائی.وليعلم أن حب النبي ﷺ ينبغي أن يكون من حيث ذاته الشريفة لا من حيث أنه هدانی .والقصر عليه ليس بذاک.فهو محبوب لذاته المباركة الطيبة. و محبوب لأجل [illegible] أخلاقه الكاملة أيضاً (فيض الباری ١\٨٣، ٨٤)_

# ۸- باب حلاوة الإیمان

[۱۶] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثَلَاثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ وَجَدَ حَلَاوَةَ الْإِيمَانِ أَنْ يَكُونَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا وَأَنْ يُحِبَّ الْمَرْءَ لَا يُحِبُّهُ إِلَّا لِلَّهِ وَأَنْ يَكْرَهَ أَنْ يَعُودَ فِي الْكُفْرِ كَمَا يَكْرَهُ أَنْ يُقْذَفَ فِي النَّارِ[۲۱، ۵۶۹۴، ۶۵۴۲]

**دترجمه مقصود اودماقبل سره ربط** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ،،حلاوت،، دایمان د ثمراتو ځنی دی.چونکه په ماقبل کښې ئې دا خودلی وو.چه دنبی ﷺ سره محبت دایمان جزء دی.اوس دا خودل غواړی.چه په دی محبت کښې په کوم څیزباندې خوږوالې او حلاوت پیدا کیږی؟(۱)

حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائی.چه امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب کښې د مرجئو ددې خیال تردید کوی.چه طاعات فائده مند نه دی.او معاصی مضر نه دی.نودا ئې ثابته کړه.چه د اعمالو په ذریعه په ایمان کښې حلاوت او خوند پیدا کیږی.دغه شان په وړاندې باب کښې ،،وآیة النفاق بغض الأنصار،، حدیث نه دا ښائی.چه معاصی مضر دی.(۲)

## رجال الحدیث

① **محمدبن المثنی:** دا ابو موسی محمد بن المثنی بن عبید عنزی بصری دې. د ،،زمن،، په لقب سره هم مشهور دې.اصلی شهرت ددوی په نوم او کنیت سره دې.

دوی د سفیان بن عیینه.وکیع بن الجراح،اسماعیل بن علیه او قطان رحمهم الله نه احادیث اوریدلی دی.او د دوی نه علم زده کونکو کښې ابوزرعه ،ابوحاتم، محمد بن یحی ذهلی او محاملی رحمهم الله وغیره دی.

خطیب رحمه الله فرمائی.چه دوی ثقه او ثبت دی.تول د حدیث امامان د دوی احادیث قابل احتجاج شماری.بغداد ته ئې تشریف یوړلو.اوهلته ئې د حدیث درس ورکړلو.او بیا بصرة ته واپس لاړلو.اوهلته په ۲۵۲ھ کښې وفات شو.

دوی او مشهور محدث محمد بن بشار المعروف په ،،بندار،، هم په یو کال یعنی ۱۶۷ھ کښې پیدا شوی دی.اوهم په یوکال یعنی ۲۵۲ھ کښې وفات شوی دی.

داصول سته مصنفینو رحمهم الله ددوی احادیث په خپلو صحاحوکښې نقل کړی دی. (۳)

---

(۱) فتح الباری(۱\۶۰)_

(۲) الأبواب والتراجم لصحیح البخاری (ص.۳۱) از حضرت شیخ الحدیث قدس سره)_

(۳) عمدة القاری (۱\۱۴۶) ... (ص.۵۰۵) رقم ۶۲۶۴)_

② **عبدالوهاب الثقفی:** دوی عبدالوهاب بن عبدالحمید بن الصلت ثقفی بصری دې.
ابو محمد ئې کنیت دې.
دوی د یحی انصاری،ایوب سختیانی او ددوی نه علاوه د نورو ډیر عالمانو نه احادیث لوستی دی.ددوی نه داحادیثو په اوریدونکو کښې امام شافعی،امام احمد ،امام یحی بن معین او امام علی بن المدینی رحمهم الله غوندې دعلم ستنې دی
دوی ثقه دی.البته دخپل وفات نه څه درې څلورکاله وړاندې ددوی په حافظه کښې تغیر راغلې وو.
اصحاب صحاح سته ددوی داحادیثو تخریج کړې دې.په کال ۱۰۸ھ کښې پیدا شوې وو.اوپه کال ۱۹۴ھ کښې وفات شو.(١)

③ **ایوب:** دوی ایوب بن ابی تمیمه کیسان سختیانی بصری دې.ددوی کنیت ابوبکر دې.
دوی حضرت انس رضی الله عنه لیدلې وو.اود عمربن سلمه جزمی ،ابوعثمان نهدی، حسن بصری، محمد بن سیرین.ابوقلابه او امام مجاهد رحمهم الله اود ډیرو محدثینو نه ئې روایت کړې دې.
دې روایت کونکی کښې پخپله حضرت محمد بن سیرین،عمروبن دینار ، قتاده، اعمش، سفیان ثوری،سفیان بن عیینه،حماد بن سلمه بن دینار.او حماد بن زید بن درهم رحمهم الله دی.دغه شان امام ابوحنیفه رحمه الله هم دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.،،ثقة ثبت حجة من کبار الفقهاء العباد،،یعنی اصحاب صحاحو ددوی نه احادیث اخستی دی.
په کال ۶۶ھ کښې پیدا شوې وو.اوپه کال ۱۳۱ ھ کښې وفات شوې وو.(٢)

④ **ابوقلابه:** دا مشهورتابعی رحمه الله عبدالله بن زیدجرمی دې.په خپل کنیت باندې مشهور دې.د حضرت ثابت بن قیس بن ضحاك انصاری رضی الله عنه،حضرت انس بن مالك رضی الله عنه نه سوا د نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم نه هم روایت کوی.ددوی په توثیق باندې د امامانو اتفاق دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.ثقة فاضل کثیر الارسال،،عجلی رحمه الله فرمائی ،،فیه نصب یسیر،،
په کال ۱۰۴ھ کښې د قضا په منصب نه اوتختیدلو اوپه شام کښې وفات شو (٣)

⑤ د **حضرت انس بن مالك** رضی الله عنه تذکره وړاندې تیره شوې ده.

---

(١) عمدة القاری(١\١٤٦) وتقریب (ص.٥٠٥) رقم ٤٢٦٤)_
(٢) عمدة القاری (١\١٤٦.١٤٧) وتقریب (ص.١١٧) رقم ٦٠٥)_
(٣) عمدة القاری (١\١٤٧) وتقریب (ص.٣٠٤) رقم ٣٣٣٣)_

**قوله ثَلَاثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ وَجَدَ حَلَاوَةَ الْإِيمَانِ:** (۱) درې څيزونه کوم چه په سړی کښې وی.نوهغه به دايمان خوند بيا مومی.

**ثلاث** د ،،**ثلاث خصال**،، يا ،،**خصال ثلاث**،، په تقديركښې دی.ددې دواړو تقديرونو نه پس دا اشكال باقی نه پاتې کيږی.چه،**ثلاث**،،نكره ده.دا مبتدا څنګه واقع شوې ده؟(۲)

**فائده** دا خبره دې معلومه وی.چه په هرځائې کښې دنكره كيدل ممنوع نه دی.بلكه نكره چونكه كاشفه نه وی.نوځكه ددې په مبتدا جوړولو كښې څه فائده نه وی. خوكه دنكره په مبتدا ګرځولوكښې څه فائده وی.نوبيا چه نكره مبتدا جوړه كړې شی.په دې كښې څه اشكال نشته.

علامه رضی رحمه الله ليكلی دی،،**إذا حصلت الفائدة فاخبرعن أی نكرة شئت وذلك لأن الغرض من الكلام إفادة المخاطب فإذا حصلت جاز الحكم سواء تخصص المحكوم عليه بشئ أولا**،، (۳) ،،**حلاوة**،، خوږوالی اوشيرين ته وائی.

دلته نبی كريم ﷺ د ايمان دپاره حلاوت ثابت كړې دې.دمومن چه ايمان طرف ته كوم رغبت وی.د هغې ئې د خوږ څيزسره تشبيه وركړې ده.اودا ئې ثابته كړې ده.چه څنګه د شهدود خوږوالی احساس هغه څوك كولې شی.چه هغه په صحت روغ وی.دغه شان د ايمان د حلاوت ادراك هم هغه څوك كولې شی.څوك چه صحيح وی.دشهدود حلاوت محسوسولو دپاره جسمانی صحت لازمی دې.اود ايمان دحلاوت معلومولو دپاره روحانی صحت ضروری دې.كه په يوكس د صفراء غلبه وی.نوشهد هم هغه ته تراخه ښكاری.دغه شان كه روحانی صفراء په چا كښې وی.نوهغه ته د ايمان حلاوت نه محسوسيږی.هغه ته په د اوامر شرعيه په تعميل كښې مشكلات وی.كه ده كښې روحانی مرض موجود نه وی.او د احكامو پوره كول دده دپاره څه ګران نه وی.

**دحلاوت نه حسی حلاوت مراد دې كه معنوی؟** دلته دا بحث شوې دې چه ددې نه حسی حلاوت مراد دې كه معنوی؟

امام نووی رحمه الله فرمائيلی دی.چه عالمانو رحمهم الله ددې نه معنوی اوباطنی حلاوت مراد اخستې

---

(۱) الحديث أخرجه البخاری أيضاً فی كتاب الإيمان باب من كره أن يعود فی الكفر كما يكره أن يلقى فی النار من الإيمان .رقم ۲۱ ) (وفی كتاب الأدب باب الحب فی الله رقم ۶۰۴۱) وفی كتاب الإكراه باب من اختار الضرب والقتل والهوان علی الكفر رقم ۶۹۴۱) والنسائی فی كتاب الإيمان وشرائعه باب طعم الإيمان رقم (۴۹۹۴) وباب حلاوة الإيمان رقم ۴۹۹۱ ) وباب حلاوة الإسلام رقم ۴۹۹۲) والترمذی فی جامعه فی كتاب الإيمان باب (بدون ترجمة بعد باب ما جاء فی ترک الصلاة رقم ۲۶۲۴ وابن ماجه فی سننه فی كتاب الفتن باب الصبرعلی البلاء رقم ۴۰۳۳)_

(۲) فتح الباری(۱\۶۰)_

(۳) شرح رضی علی الكافية (۱\۸۸،۸۹)_

دي اوددې نه په طاعاتوکولوسره خوند محسوسول.اودالله او د رسول ﷺ د راضى كولو دپاره قربانى كول.اودې ته د دنيا په ټولوخيزونو ترجيح وركول.دشريعت داحكامو په پوره كولوانشراح او انبساط موجود كيدل.(١)

**دحضرت ګنګوهى رحمه الله دخپل مرشدپه نوم خط** حضرت ګنګوهى رحمه الله دخپل مرشد په نوم خط اوليكلو.اوپه هغې كښې ئې ورته اوليكل.چه الله تعالى په خپل فضل اورحم سره ماته درې نعمتونه راكړل.

① زما كيفيت دا دې.چه په ما باندې د مدح اومذمت څه اثرنه كيږى.كه څوك مې تعريف كوى اوكه مذمت ماته ټول برابردى.

② دالله تعالى نه سوا د بل چانه د نفعې اونقصان رارسيدو ته مې څه خيال نه وى.

③ امورشرعيه ماته امور طبعيه ګرځيدلى دى.(٢)

هم دادې ((استلذاذبالطاعات اوانشراح صدراوانبساط)).چه بياتنګى نه محسوسيږى . چه سړې اوګې شى.نودهغه خوراك ته زړه كيږى.دغه شان چه كله د مونځ وخت راځى.نوطبعيت مونځ طرف ته مائله كيږى.

**دحلاوت نه حسى مراد اخستل زياته غوره ده** خوابن ابى حمزه رحمه الله چاچه دبهجة النفوس،،په نوم باندې دمنتخب بخارى شرح ليكلې ده. هغوى فرمائى.چه صوفياء كرامو رحمهم الله دلته د حلاوت نه حسى حلاوت مراد اخستې دې. اوهم دا صحيح ده.ځكه چه دوى دحديث ظاهر بغيردڅه تاويل نه اخستې دې.هغوى فرمائى. ،،وهذا أمرلايدركه إلا من وصل إلى ذلك المقام فلا يليق إدعاء أنه غيرمراد،،

وإذالم ترالهلال فسلم      لأناس رأوه بالأبصار(٣)

**ترجمه**: كه تاميا شت اونه ليدله.نوچاچه ليدلې وى.دهغوى خبره اومنه.

تونه ديدى گهے سليمان را      پس چه دانى زبان مرغان را

**ترجمه**: نوپه لفظ د حلاوت كښې د څه تاويل ضرورت نشته.

ذوق اين باده ندانى بخدا تانه چشتى

**دحضرت مولانا فضل الرحمن ګنج مراد ابادى رحمه الله يوه واقعه** دحضرت مولانا فضل الرحمن ګنج مراد آبادى رحمه الله واقعه وراندې هم تيره شوې ده.دحضرت شاه محمد اسحاق رحمه الله شاګرد وو. ډيرلوئې عالم .محدث. صوفى.او محقق وو. دوفات په وخت كښې ئې دا تاكيد كړې

---

(١) عزاه النووى رحمه الله إلى العماء انظر شرحه على صحيح مسلم (٤٩/١) كتاب الإيمان باب بيان خصال من اتصف بهن وجد حلاوة الإيمان)_

(٢) مكاتيب رشيديه (ص.١٠)_

(٣) فتح الملهم (٦٣١/١)كتاب الإيمان باب بيان خصال من اتصف بهن وجه حلاوة الإيمان)_

وو.چه ما سره د حديثو لوستل كوئ. نودوفات په وخت كښې ورته د صحيح مسلم وغيره كتابونو لوستل كولې شو.(١)دوى فرمائى كله چه زه سجده كوم نوداسې معلوميږى.لكه چه الله تعالى زاسره مينه اوكړله.(٢)
ښكاره خبره ده.چه الله تعالى د ټولو محبتونو مركزدې اودهغه د محبوبيت به څه وائې. اودهغه شان محبوبيت څنگه بيانولې شى.دا دانسان د طاقت خبره نه ده. كه دهغه د طرفه سرې په سجده كښې داسې خبره محسوس كړى نوبيا دهغې سجدې دكيفيت څه اندازه لگيدې شى.غالباً دوى هم په دې خبره كښې ددې بيان كړې دې چه دا حلاوت حسى دې.
بهرحال كوم حضرات چه دحلاوت نه معنوى حلاوت مراد اخلى.هغوى فرمائى .چه ايمان چونكه امر معنوى دې.نوددې حلاوت به هم معنوى وى.خودا حضرات فرمائى چه نه! دحلاوت لفظ چه كوم طرف ته اشاره كوى.اوددې نه چه كومه معنى متبادره ده.هغه حلاوت حسيه دې.نوهم دا به مراد اخستې شى.

**قوله**: أَنْ يَكُونَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا: هغه درې خبرې چه دهغې نه پس د حلاوت ادراك كيږى.د هغې بيان گيرى.په هغې كښې يوه خبره دا ده.چه د انسان دالله اودهغه د رسول سره محبت د ما سوا نه زيات شى.يعنى د دنيا او ما فيها نه زيات محبت ئې الله او دهغه رسول سره وى.
وړاندې خودلې شوى دى.چه د محبت د اصل مركز الله تعالى دې.دالله تعالى محبت اصل دې.اودهغه د رسول محبت د دې فرع ده.نوهغه هم شامل كړې شو. تاسو په دې كښې د نورو اولياؤ او صالحانو محبت هم شاملولې شئ.

**ما سواهما**،، كښې ،،هما،، ضميرالله او رسول طرف ته راجع دې.دلته دالله تعالى او رسول دواړو ضمائرجمع كړې شوى دى.په دې باندې يواشكال كيږى.چه امام مسلم (٣)ابوداود (٤)اوامام نسائى (٥) ﷫ دحضرت عدى بن حاتم﷜نه يو روايت نقل كړې دې.چه يوكس رسول الله ﷺ ته راغلو.هغه خطبه اوونيله.او وې ونيل.،،من يطع الله ورسوله فقد رشد ومن يعصهما فقد غوى،، نو نبى ﷺ اوفرمائيل.،،بئس الخطيب أنت قل ومن يعص الله ورسوله،، ددې روايت نه معلوميږى.چه الله اود الله درسول ضمير يوځائې ذكركول نه دى پكار.يعنى دواړه په يوضمير كښې جمع كول نه دى پكار.اوس اشكال دا كيږى.چه دلته خو نبى ﷺ دواړه په

(١) تذكره حضرت مولانا فضل الرحمن گنج مراد آبادى (ص.٦٠، ٩١)_
(٢) نيل المراد فى السفر إلى گنج مرادآباد شامل در ارواح ثلاثه تذكره..(ص.١٢٠)_
(٣) صحيح مسلم(١\٢٨٦) كتاب الجمعة فصل فى إيجازالخطبة وإطالة الصلاة)_
(٤) سنن أبى داود كتاب الصلاة تفريع أبواب الجمعة باب الرجل يخطب على قوس رقم ١٠٩٩ وكتاب الأدب باب بلا ترجمة (بعد باب لايقال خبثت نفسى رقم ٤٩٨١)_
(٥) سنن نسائى (٢\٧٨) كتاب النكاح باب ما يكره من الخطبة)_

يوضمير كښې جمع كړى دى.بلكه الله تعالى په قرآن پاك كښې په يوځائې كښې جمع كړى دى ﴿ إِنَّ اللَّهَ وَمَلَـٰئِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ ۚ يَـٰأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴾ (١)
اوحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په حديث كښې دى ،، من يطع الله و رسوله فقد رشد ومن يعصهما فإنه لايضر إلا نفسه،،(٢)
دحضرت عدى بن حاتم رضي الله عنه دحديث په بناء د بعضې عالمانو رحمهم الله رائې دا ده.چه دممانعت روايت د جواز په رواياتو باندې مقدم دې.ځكه چه د ممانعت روايت قولى دې.اوداجازت روايات فعلى دى.اوقول ته په فعل باندې ترجيح وى. دغه شان دا روايت مانع دې.او نور روايات مجيز دى.اودممانعت روايات د اجازت په رواياتوباندې راجح وى. اوبله دا چه دا روايت ناقل عن الاصل دې.او نور روايات باقى على الاصل دى ددې مطلب دا دې.چه اصل په اشياؤ كښې اباحت دې.نوچه د كوم رواياتونه جمع فى الضمير معلوميږى. هغه به په اصل باندې حمل كولى شى.اود ممانعت روايت چونكه ناقل عن الاصل وى.نوځكه به دا ونيلى شى.چه هم ممانعت دې.چه دې ته به په اجازت باندې ترجيح وى.بله داچه د ممانعت روايت يوه قاعده كليه ده.چه داسې مه وائې.اود اباحت درواياتو نه قاعده كليه نشى مستفاد كيدې.(٣)

**په خطيب باندې دانكار وجه** دامام نووى رحمه الله رائې دا ده.چه په دې خطبه وركونكى كس باندې د نبى ﷺ دانكار وجه دا وه.چه هغه په ،،من يعصهما،، كښې داختصارنه كار واخستلو .حالانكه په خطبه كښې تطويل مطلوب وى.ځكه چه دځې مقصد وعظ او زجر وى. اوپه دې كښې تفصيل مفيد وى.اونبى ﷺ چه په كوم ځائې كښې جمع فى الضمير كړې ده.نوهغه د تعليم مقام دې.اوپه تعليم كښې ايجاز او اختصارمفيد وى.(٤)
په دې باندې اشكال كيږى.چه دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت ته اشاره تيره شوه. اوهغه دخطبې په باب كښې وارد شوې دې.
ددې جواب دادې.چه ددې تعلق دنكاح خطبه سره دې.اوپه نكاح كښې ايجازمطلوب وى.(٥)
شيخ عزالدين عبدالسلام رحمه الله يوجواب دا وركړې دې.كوم چه په اصل كښې قاضى عياض رحمه الله ذكر كړې دې.هغه دا چه جمع فى الضميرد نبى ﷺ دپاره جائز وه.اود نبى ﷺ سره خاص وه.ځكه چه د نبى ﷺ نه د تسويه بين الله والرسول امكان نه وو.په خلاف د

---

(١) سورة ا لأحزاب (٥٦)_
(٢) سنن أبى داود كتاب الصلاة أبواب الجمعة باب الرجل يخطب على قوس رقم ١٠٩٧. (١٠٩٨)_
(٣) فتح البارى(١\٦١)_
(٤) شرح نووى على صحيح مسلم (١\٢٨٦) كتاب الجمعة فصل فى إيجاز الخطبة وإطالة الصلاة)_
(٥) المصدرالسابق)_

نوروكسانوخكه چه دهغوى په حق كښې دا خطره شته.چه ددوى په زړونوكښې دواړه په ضميركښې دجمع كولو د وجې دتسويه خيال تيرنشي.([1])

دريم جواب بعضې عالمانو ﷭ دې ته نږدې ورکړې دې.چه اصل کښې کيدې شي نبیﷺ په هغه وخت کښې انکارکړې وو.چه په هغه ځائې کښې څوك داسې کس موجود وو.چه دهغه متعلق دا خيال وو.چه دجمع فى الضمير په وجه به هغه ته د تسويه خيال پيدا شي.([2])

څلورم جواب دا ورکړې شوې دې.چه متکلم دخپل کلام دعموم نه خارج وی. نوممانعت دعامو خلقو دپاره دې.نبیﷺ په دې کښې داخل نه دې.نوکه د نبیﷺ نه جمع فى الضمير منقول وی.نودغه روايات به د ممانعت د رواياتو سره معارض نشي ګڼړلې.([3])

پنځم جواب امام طحاوی ﷫ کړې دې.هغوی فرمائی.چه په اصل کښې نبی کريم ﷺ ددې وجې انکار اوکړلو.چه خطيب بې موقع وقف اوکړلو.ځکه چه هغه ،،من يطع الله ورسوله فقد رشد ومن يعصهما،، اووئيل.ددې دا معنی جوړه شوه.چه اطاعت او نافرمانی کونکی دواړه راشد دی.([4])

خودامام طحاوی ﷫ دا جواب محل نظر دې.ځکه چه د ابن ابی دنيا په روايت کښې دی. ((قال ومن يعص الله ورسوله فقد غوى))([5])دغه شان د مسلم په روايت کښې دی ((قل ومن يعص الله ورسوله)) ددې روايت نه متبادردا ده.چه دانکار وجه دواړه په يوضمير د تثنيه کښې جمع کول وو.اګرچه دامام طحاوی ﷫ د جواب هم احتمال شته.خو نبیﷺ چه ،،قل ومن يعص الله ورسوله فقد غوى،، اوفرمائيل. کوم چه جدا جدا ذکر دی.ددې نه دا په پوهه کښې راځی.چه د نبیﷺ انکارددې وجې وو.چه خطيب دواړه په ضمير کښې جمع کړی وو.

شپږم جواب بعضې عالمانو ﷭ دا ورکړې دې.چه په اصل کښې نبیﷺ چه ،،ما سواهما،، کښې د جمع ضمير راوړې دې.هغه يوه جمله ده.اوپه يوه جمله کښې د ضميرپه ځائې ظاهرراوړل مناسب نه دی.خود خطيب په قصه کښې دوه جملې دی.چه په هغې کښې د ضمير په ځائې ظاهر راوړل مکروه او ناخوښه نه دی.([6])

خو په دې جواب باندې اعتراض شوې دې.چه دضمير په ځائې اسم ظاهر راوړلو نه خودا نه

---

[1] المصدر السابق وفتح انبارى(١\٦١)_

[2] زهرالربى على المجتبى للسيوطى (٢\٧٩)_

[3] فتح البارى(١\٦٢)_

[4] فتح الملهم (١ /٦٣٦) كتاب الإيمان باب بيان خصال من اتصف بهن وجد حلاوة الإيمان)_

[5] )پورته حواله)_

[6] فتح البارى (١/ ٦١)

لازميږي.چه دضمير راوړل مكروه دى.بيا خاص كرچه دنبى ﷺ نه جمع ثابته وى.([1])البته دا وئيلى شى.چه دخطيب واقعه يوه خاص واقعه ده. دكومې نه چه عمومى حكم نشى راويستې نو ممكن ده.چه په دغه مجلس كښې داسې خلق وو.چه د هغوى په باره كښې د تسويه ويره وه.ددې وجې په هغه باندې انكاراوكړې شو.([2])

اووم جواب دا وركړې شوې دې.چه نبى ﷺ دلته جمع فى الضمير اوكړله.اودې خبرې ته ئې اشاره اوكړله.چه كاميابى او فلاح دپاره هغه محبت ضرورى او معتبر دې.كوم چه د دواړو محبتونو نه مركب وى.دالله تعالى محبت هم ضرورى دې.اود رسول ﷺ محبت هم ضرورى دې.هريومستقل نه دې.بلكه يوچه دبل سره مربوط وى نو دا معتبردې.

بلكه چه په خطيب باندې ئې اعتراض اوكړلو.نو نبى ﷺ دې خبرې ته اشاره اوكړله.چه «احدالعصيانين» دانسان دپاره مهلك او مضردې.كه د الله تعالى نافرمانى وكړى.اوكه د رسول الله ﷺ نافرمانى. اوكړى.([3])

بعضې حضراتوفرمائيلى دى.چه.په اصل كښې دالله تعالى او د رسول ﷺ د نومونو نه عدول مناسب نه دې.اګرچه د اختصارپيش نظرمقام د ضميرمقتضى وى.نبى ﷺ خطيب ته د الله او رسول مكرر راوړلو دپاره تنبيه اوكړله.([4])

حضرت علامه شبيراحمدعثمانى رحمه الله د امام غزالى رحمه الله نه نقل كړې دې. چه په كومه طريقه به رسول الله ﷺ تهذيب نفوس كولو.كه په انسان كښې تكبريا نفاق وى.نودهغې د ويستلو او لرې كولو دپاره به ئې علاج خودلو.يا په مانځه كښې به كوتاهى وه.نودهغې د صحيح كولودوائى به ئې خودله.اودغه شان به نبى ﷺ د تهذيب الفاظ طرف ته هم توجه كوله.چه متاسب الفاظ استعمالول پكاردى.

نبى ﷺ په يوځائې كښې فرمائيلى دى.،،لايغلبنكم الأعراب على اسم صلاتكم العشاء وإنما يسمونها العتمة لأنهم يعتمون عن الإبل أو قال بالإبل،، ([5])باندېچيانو به ،،عتمة،، وئيل.نو نبى ﷺ اوفرمائيل.چه تاسو ،،عتمة،،مه وائې.بلكه ،،عشاء،، وائې.

دغه شان دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه منقول دى.چه يوكس رسول الله ﷺ ته خطاب كولو او وئې وئيل.،،ماشاء الله وشئت،،نبى ﷺ ورته اوفرمائيل. ،،جعلتنى لله ندا بل ما شاء الله

---

[1]) فتح البارى(١١\٦١و ٦٢)_

[2]) فتح البارى(١١\٦١ و ٦٢)_

[3]) فتح البارى(١١\٦١)_

[4]) فتح البارى(١١\٦٤)_

[5]) مسند الحميدى(٢\٢٨٥) أحاديث عبالله بكن عمربن الخطاب رضي الله عنه رقم ٦٣٨ ومسند أحمد (١٢\١٠و١٩) ومجمع الزوائد (١\٣١٤) كتاب الصلاة باب فى اسم العشاء)_

وحده،، (١)يعنى تاخو زه دالله تعالى سره شريك جوړ کړم بلکه ،،ماشاء الله وحده،،وايه.دغه شان نبي فرمائيلى دى.،،لاتقولوا ماشاء الله وشاء فلان،ولكن قولوا: ما شاء الله ثم شاء فلان،، (٢)

په دې طريقه په قرآن پاك كښې هم فرمائيلى شوى دى. ﴿لَا تَقُولُوا رَاعِنَا وَقُولُوا انْظُرْنَا﴾ (٣)،،راعنا،، مه وائى بلکه ،،انظرنا،، وائي.دصحابه كرامو ﷺ په ذهن كښې هغه غلطه معنى كومه چه يهودو اخستله. (٤)هغه هرګز مراد نه وه.خود داسې لفظ استعمال كوم چه د غلطې معنى موهم وى.خلاف ادب وو.ددغه غلطې معنى د وهم نه بچ كولودپاره الله تعالى صحابه كرامو ﷺ ته خبردارې وركړلو.اووې فرمائيل.چه داسې لفظ مه استعمالوئ.

دغه شان نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى.،،ولايقولن أحدكم للعنب الكرم،فإن الكرم الرجل المسلم،، (٥)يوكس دې انګورته ،،كرم،، نه وائى.ځکه چه ،،كرم،، خوپه اصل كښې مسلمان سړى ته وئيلى شى.

دا تهذيب الفاظ دې.اودا ياد ساتئ.چه دتهذيب الفاظ په سلسله كښې چه كومه نهى راغلې.نودهغې نه نهى شرعى مراد نه وى.چه په هغې سره حرمت او مكروه تحريمى ثابت كړې شى.بلکه دا د آدابوتعليم وى.اوددې معنى دا وى.چه د تهذيب الفاظ په سلسله كښې چه د كوم څيز نه منع كولې شى.نودهغې استعمال خلاف اولى وى.

دلته هم چه نبى ﷺ خطيب ته ،،بئس الخطيب أنت،، فرمائيلى وو.ددې مطلب دا وو.چه تادواړه په يو ضمير كښې جمع كړل.اګرچه ددې استعمال جائز دې.ليكن خلاف اولى دې.ددې په مقابله كښې غوره دا دى.چه ته دواړه جدا جدا ذكر كړې. (٦)

**قوله**: وَأَنْ يُحِبَّ الْمَرْءَ لَا يُحِبُّهُ إِلَّا لِلَّهِ: دويم خصلت اودويم څيزدا دې.چه كه سړې دچا سره محبت كوى.چه صرف دالله تعالى د رضا دپاره كوى.يعنى دمال ومنال.حسن اوجمال وغيره دوجې محبت نه كوى. بلکه چه د څه دينى سبب په وجه وى.مثلاً چه د چا اطاعت او تابعدارى دهغه دتقوى اود چا د علم او دين دوجې محبت وى.دا حب لله دې.

---

(١) درمنثور (٣٥١١)_

(٢) سنن ابى داود.كتاب الأدب باب لايقال:خبثت نفسى.رقم ٤٩٨٠)_

(٣) سورة البقرة:١٠٤)_

(٤) بعضې يهوديانويوشرارت پيدا كړې وو.چه د نبى ﷺ مجلس ته به راغلل.نويه لفظ د،،راعنا،، به نې نبى ﷺ ته خطاب كولو.ددې معنى دهغوى په عبرانى ژبه كښې خيرې وې.اوهغوى به دا هم په دې نيت باندې وئيل...په عربى كښې ددې ښه معنى وه.نوځکه به مسلمانانو نبى ﷺ ته د دغه ښه معنى په نيت باندې خطاب كولو.نو الله تعالى ددې نه منع كړل.(معارف القران (٢٨٠١١)_

(٥) صحيح مسلم (٢٣٨.٢٣٧١٢) كتاب الألفاظ باب كراهة تسمية العنب كرماً)_

(٦) فتح الملهم (٦٣٧١١)_

يحي بن معاذ رازى رحمه الله فرماني. ,,حقيقة الحب في الله أن لايزيد بالبر ولاينقص بالجفاء،،([1]) يعنى حب فى الله دا دي.چه نه دحسن سلوك دوجې په هغې كښې اضافه كيږى.اونه د بې وفائې په وجه په هغې كښې كمې اونقصان نه راځى.

امام مالك رحمه الله فرمانى.چه ,,المحبة فى الله من واجبات الإسلام وهو دأب أولياء الله تعالى،، د الله تعالى دپاره محبت كول دالله تعالى د احكام واجبو ځنى دي.اوداولياء كرامو رحمهم الله عمل دى. وړاندې ئې دلته دالله اود رسول محبت ذكر كړې دې.اوكله چه دالله تعالى اود رسول ﷺ محبت په ټولو محبتونوباندې غالب وى.نوښكاره خبره ده.چه د اهل الله سره كوم محبت وى.هغه به هم په اخلاص باندې مبنى وى.,,أن يحب المرء لايحبه إلالله،، په اصل كښې ,,أن يكون الله ورسوله أحب إليه مما سواهما،، اثردې.بيا ښكاره ده چه كله دالله تعالى اود رسول محبت غالب شي. اود اهل الله سره محبت په اخلاص باندې مبنى وى.نوبيا ښكاره ده.چه ددې نتيجه به هم دا وى.چه دسړى به دكفر نه نفرت وى.ددې وجې ئې فرمانيلى دى.چه ﴿وَأَنْ يَكْرَهَ أَنْ يَعُودَ فِي الْكُفْرِ كَمَا يَكْرَهُ أَنْ يُقْذَفَ فِي النَّارِ﴾ يعنى كفرته واپس كيدل ورته داسې ناخوښه ښكارى.لكه چه څنګه دا نه خوښوى.چه په اوركښې اوغورځولې شى.

دا په هغه وخت كښې كيږى.چه كله د انسان په زړه كښې دالله تعالى اودهغه د رسول ﷺ محبت دومره زيات شى.چه دالله تعالى اودهغه د رسول ﷺ نه سوا هر يو څيزدهغې په مقابله كښې بې حقيقته اوهيڅ نه وى.

په حديث الباب كښې د ,,عودفى الكفر،، ذكر دې.نودا دهغه زمانې په لحاظ سره وئيلې شوې دې.چه خلقو به كفرپريخودل او په اسلام كښې به داخل شول. نو ځكه دهغوى په حق كښې داسې اوئيلى شو.چه ,,عودفى الكفر،، دهغوى دپاره دومره مكروه اوناخوښه كيدل پكار دى.چه لكه څنګه چه په اور كښې غورځيدل ناخوښه وى.

خوپه مونږ باندې د عود لفظ صادق نه راځى.ځكه چه مونږ خو وړاندې په كفر كښې نه يو پاتې شوى.بلكه د اول نه مسلمانان راروان يو.نوپه دې صورت كښې به عود د صيرورت په معنى كښې اخستې شى.اومعنى به دا وى چه ,,يكره أن يصيرفى الكفر كما يكره أن يقذف فى النار،، يعنى كافرجوړيدل سړى ته داسې ناخوښه شى لكه څنګه چه په اور كښې غورځيدل ناخوښه ګنړى.او عود د صيرورت په معنى په قرآن كښې هم استعمال شوې دې.ارشاد دې.﴿أَوْ لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَا﴾([2]) يعنى كافرانو دا خبره حضرت شعيب عليه السلام اودپه هغه باندې ايمان راوړونكو كسانوته كړې وه.حالانكه حضرت شعيب عليه السلام كله هم دهغوى په دين باندې نه وو

---

[1]) شرح كرمانى (١/١٠١)

[2]) پورته حواله)_

[3]) سورة أعراف:٨٨ قال القرطبى رحمه الله..أى لتصيرن إلى ملتنا.. الجامع لأحكام القرآن (٧/٢٥٠)_

پاتې شوې.نودلته عود په معنى د صيرورت دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دحديث په يو سند كښې د،،بعد أن انقذه الله،، تصريح هم راغلې ده ([1]) دوى فرمائي.چه د انقاذ يو صورت دا دې.چه د اول نه الله تعالى د كفر نه بچ ساتلې وى.چه دمسلمان په كور كښې پيدا شوى وى.اوبيا په اسلام باندې قائم وى.دويم صورت دا دې.چه دكفر دتيرو نه په حقيقت كښې الله تعالى راويستې وى.په اولنى صورت كښې ،،عود،،د ،،صيرورت،،په معنى كښې اخستې شى.اوپه دويم صورت كښې ،،عود،، په خپله اصلى معنى باندې برقرار وى.([2])

**د نبى كريم ﷺ محبوبيت** حضرت مولانا شبير احمد عثمانى رحمه الله يوه خبره ليكلې ده.چه په قرآن كريم كښې په كوم كوم ځائې كښې دحضرت موسى عليه السلام ذكر راځى.نوهلته محسوسيږى چه د محبت سره دحضرت موسى عليه السلام ذكر كيږى.په يوځائې كښې خو ښكاره موجود دى ﴿وَأَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّي﴾ ([3])خود نبى كريم ﷺ په باره كښې داسې قسم مضمون ماته نه دې ملاؤ شوې.ددې وجې مې په زړه كښې يوخاص قسم تشويش او طلب وو.څكه چه دنبى كريم ﷺ مقام يقيناً چه د حضرت موسى عليه السلام دمقام نه اوچت دى.

فرمائي چه كله راته د قرآن كريم آيت ﴿قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ﴾ ([4]) مخې ته راغلو.اوما په دې كښې غور اوكړلو.نوزما زړه يخ شو. څكه چه په دې كښې وئيلى شوى دى.كه تاسو دالله تعالى سره دمحبت كولو دعوه كوئ.نوزما تابعدارى اوكړئ.كه زما تابعدارى مو اوكړله.نو يواځې دا نه چه دالله تعالى سره به ستاسود محبت دعوى مقبول او معتبره وى.بلكه زما د تابعدارئ نتيجه اوثمره به تاسو ته دا ملاؤ شى.چه تاسو به دالله تعالى محبوبوبين جوړشئ.اولږ غوراوكړئ.چه د چا په اقتداء كولو سره نور خلق دالله تعالى محبوب جوړيږى.نو بيا به د هغه د محبوبيت څه شان وى؟ ([5]) والله سبحانه وتعالى اعلم.

## ۹- بَاب عَلَامَةُ الْإِيمَانِ حُبُّ الْأَنْصَارِ

**دماقبل سره ربط** ددې باب چه دماقبل سره كوم ربط دې.هغه وړاندې بيان شوې دې.چه د رسول الله ﷺ سره محبت من باب الايثار دې.اودمساوات نه پس د ايثار درجه ده. اوبيا په دې كښې دترقئ صورت دا دې.چه د نبى ﷺ سره نه بلكه د دوى سره چه د چا تعلقات وى.نودهغوى سره هم محبت ساتل پكار دى.اوهم ددې دپاره امام بخارى رحمه الله د ،،علامة الإيمان حب الأنصار،،باب قائم كړلو.

---

[1]) صحيح البخارى كتاب الأدب باب الحب فى الله رقم (۶۰۴۱)_

[2]) فتح البارى (۱\۶۲)-

[3]) سورة طه (۳۹)_

[4]) سورة آل عمران (۳۱)_

[5]) فضل البارى(۱\۳۴۶.۳۴۷)_

**په ترجمة الباب باندې يواعتراض اودهغې جواب اود ترجمة مقصود** دلته په ترجمه باندې اشکال دا دې چه علامت د دی علامت نه خارج وی نودا ترجمه د کتاب الایمان سره مناسب نه ده ځکه چه امام بخاری رحمه الله خو دهغه څيزونوبيان کوی چه هغه د ايمان خصال.اعمال او شُعَب وی

علامه ابن المنير رحمه الله [1] ددې جواب ورکړې دې چه امام بخاری رحمه الله ددې ترجمې نه دا خودل غواړی چه صرف تصديق کافی نه دې ترڅو پورې چه په اعمالو کښې دهغې نښه نه وی.دانصاروسره محبت چونکه دتصديق نښه ده.ځکه ئې دا ذکر کړله.بيا په دې باندې اشکال دا کيږی چه دلته خو د تصديق وغيره ذکر هم نشته.نودا مقصد بعيد معلوميږی.

مولانا محمديونس صاحب فرمائی.چه زما په خيال کښې داصل اشکال جواب دا دې چه په اصل کښې علامت د ذوالعلامة تابع وی.ګوری نه چه ګرمی د اور نښه ده.نوچه څومره اور وی.هغه هومره به ګرمی وی.نودګرمئ کمې زياتې د اور د کمی زياتی نښه ده.دغه شان اوګنړئ چه دانصارو سره محبت دايمان نښه ده.نوچه په حب انصار کښې څومره کمې زياتې وی.هغه هومره به په ايمان کښې هم کمې زياتې وی.نومصنف رحمه الله ډير په لطيفه طريقه د ترجمة الباب نه دايمان کمی زياتی ته اشاره اوکړله.والله سبحانه اعلم

[۱۷] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَبْرٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا [2] عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ آيَةُ الْإِيمَانِ حُبُّ الْأَنْصَارِ وَآيَةُ النِّفَاقِ بُغْضُ الْأَنْصَارِ [۳۵۷۳]

## رجال الحديث

① **ابوالوليد:** دوی ابوالوليد هشام بن عبدالملک طيالسی باهلی بصری رحمه الله دې.دامام مالک. شعبه. حمادبن سفيان بن عيينه رحمهم الله وغيره نه ئې سماع کړې ده.د دوی نه ابوزرعه. ابوحاتم.اسحاق بن راهويه.محمد بن يحی او محمد بن مسلم رحمهم الله روايت کړې دې.

علماء د جرح اوتعديل دوی لره ثقه ګرخولی دی.په کال ۱۳۶هـ کښې پيدا شوې وو.اوپه کال ۲۲۷هـ کښې وفات شوې وو

**فائده طياليسی** طيالسه طرف ته منسوب دې ګوځه چه د طيلسان جمع ده.دوی به د طيلسان (ټوپۍ) خرڅولوکارکولو. [3]

---

[1]) ارشاد السارى(۱/۸۹)_

[2]) الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه فى كتاب مناقب الأنصار باب حب الأنصار من الإيمان رقم ۳۷۸۴ ومسلم فى صحيحه فى كتاب الإيمان باب الدليل على أن حب الأنصار وعلى رضي الله عنهم من الإيمان وعلاماته وبغضهم من علامات النفاق والنسائى فى كتاب الإيمان وشرائعه باب علامة الإيمان)_

[3]) عمدة القارى (۱۱/۱۵۰) وتقريب (۵۷۳) ترجمه رقم ۷۳۰۱)_

④ **شعبه** دوی شعبه بن الحجاج دی.د دوی حالات وړاندې په ،،باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده،، کښې تيرشوې دی.

⑤ **عبدالله بن عبدالله بن جبر** جبرد جيم په فتحه او د باء په سکون سره ونيلی شی.ددوی نوم اوددوی دپلار نوم يو دې.د نيکه نوم ئې دمدينې خلق جابر ښائی او اهلِ عراق ورته جبر وائی.دوی د مدينې وو.دحضرت عمراوحضرت انس رضی الله عنهما نه ئې احاديث اوريدلی دی.ددوی نه امام مالك.مسعر او شعبه رحمهم الله وغيره روايت کړې دې. دوی ثقه دی.او ددوی احاديث په صحيح بخاری.مسلم.ترمذی.ابوداود اونسائی کښې دی.(۱) رحمهم الله

⑥ **حضرت انس** دحضرت انس رضی الله عنه حالات مونږ وړاندې ذکر کړی دی.

**قوله** : آية الإيمان حب الأنصار: دايمان نښه دانصاروسره محبت دې د..آيت،،معنی په لغت کښې ،،نښه،،ده.(۲)

ابوالبقاء عکبری رحمه الله ،،إنه الإيمان حب الأنصار،، ليکلی دی.يعنی ،،ان،، حرف مشبه بالفعل دې.اوددې نه پس ضمير،ضميرشان دې.،،الإيمان،، مبتدء او،،حب الأنصار،،خبر دې.(۳)

خوشارحين رحمهم الله فرمائی.چه په ټولونسخوکښې دغه شان په ټولومسانيدو او مستخرجاتوکښې ،،آية الإيمان،،دې.نود عکبری رحمه الله بيان تصحيف دې.(۴)

بيا په دې باندې اشکال هم کيږی.چه ددې صورت نه دا لازميږی.چه ايمان په حب الانصار کښې منحصر دې.حالانکه ايمان صرف د حب الانصارپه دائره کښې منحصر او محدود نه دې.خودا اشکال په مشهور روايت ،،آية الإيمان حب الأنصار،،باندې هم راځی.ځکه چه مسند او مسند اليه معرفه دی.اوددې نه هم د حصر فائده حاصليږی. اوبيا په بعضې رواياتوکښې دحصر سره،،الأنصار لايحبهم إلا مؤمن(۵)باندې هم وارديږی.

ددې اشکال جواب دا دې.چه دا حصرادعائی دې.لکه چه اووائې ،،زيد الطالب،،چه طالب علم خوبس زيد دې.ځکه چه دطلب علم وصف په ده کښې د نورو په نسبت ممتاز دې.ته به وائې.چه نور هډو طالبان نه دی.که دې خو زيد دې.يا وائی ،،مافی الدار إلا زيد،،په کور کښې خوبس زيد دې.بل څوك نشته.حالانکه دهغه ښځه اوبچی په کښې هم وی.خولکه چه د

---

۱) عمدة(۱۱/۱۵۰) وتقريب (۳۰۹) ترجمه (۳۴۱۳)_

۲) فتح الباری(۶۳/۱۱)_

۳) فتح الباری(۶۳/۱۱)_

۴) پورته حواله)_

۵) صحيح بخاری کتاب مناقب الأنصار باب حب الأنصار من الإيمان رقم ۳۷۸۳)_

هغوی وجود د زید تابع دې.مستقل وجود ئې نشته.(۱)
دویم جواب دا دې.چه دا حصر اضافي دې.ددې کسانوپه اعتبارسره په حب انصار کښې ایمان منحصر دې.کوم کسان چه دانصارو سره صرف درسول الله ﷺ سره دمدد کولوپه وجه بغض ساتی.نودداسې کسانوایمان په حب انصارکښې منحصردې.ترڅو پورې چه دهغوی په زړونوکښې دانصارومحبت نه وی پیدا شوې .دوی مومنان نشی جوړیدې.ځکه په حقیقت کښې ددوی دا بغض ساتل د انصارو سره بغض ساتل نه دی. بلکه نبی کریم ﷺ سره بغض ساتل دی.(۲)
دریم جواب دا دی.چه دا دعلامات خاصه په شان دی.چه په کښې اطراد خو کیدې شی. خوانعکاس نشی کیدې.یعنی چه په کوم ځائې کښې نښه موجود وی. نو ذوالعلامه به خامخا موجود وی.خودا ضروری نه ده.چه په کوم ځائې کښې علامات مرتفع وی.اوموجود نه وی.نود ذوالعلامه به هم وجود نه وی.(۳)
کله چه نبی ﷺ مدینې منورې ته هجرت اوکړلو.نو انصارو د دوی ﷺ سره په خپل مال اوجان سره دغمخوارئ اومواسات معامله اوکړله.هرڅیزئې نبی ﷺ او کومو صحابو ﷺ چه د نبی ﷺ سره هجرت کړې وو.پیش کړلو.ددې نتیجه دا شوه.چه دعربو دعلاقو خلق د انصارو دشمنان شول.دا دشمنی چونکه د نبی ﷺ سره د مدد په وجه پیدا شوې وه.نوځکه د نفاق یوه نښه اوګرځولې شوه.ځکه چه په حقیقت کښې دا دالله تعالی د رسول سره دشمنی ده.اوددې سبب په وجه د دوی سره محبت کول چونکه د رسول الله ﷺ سره محبت دې.نودا دایمان نښه اوګرځولې شوه.
**انصار** انصار،،یا خود ،،ناصر،، جمع ده.لکه څنګه چه ،اصحاب، د ،صاحب، جمع ده. اویا د ،،نصیر،،جمع ده.لکه څنګه چه ،اشراف، د ،،شریف،، جمع ده.(۴)
انصارد اوس او خزرج د قبیلو لقب دې.اوبیا ددې اطلاق د دوی په اولاد ، خلفاؤاوموالیو باندې هم بالتبع کیږی.نبی کریم ﷺ چه کله هجرت اوکړلو.او مدینې منورې ته راغلو.نو دې دواړو قبیلو په خپل مال او جان سره د نبی ﷺ مدد اوکړلو.نوځکه نبی ﷺ دوی ته دا لقب ورکړلو.اود نبی ﷺ د راتلو نه وړاندې دا خلق د ،بنو قیله، په نوم باندې مشهوراوپه دې لقب سره متعارف وو.ځکه چه قیله یوه ښځه وه.چه د هغې نه اوس او خزرج خواره شوی وو.خوکله چه نبی ﷺ ورته د انصارو لقب ورکړلو.نودهغوی اولنې نوم او لقب ورک شو. نو اوس چه د انصارو اطلاق په کوم ځائې کښې هم کیږی.هم دا قبیلې به ترې مراد وی.(۵)

---

۱) فتح الباری (۶۳/۱)_
۲) فتح الباری (۶۳/۱)_
۳) پور ته حواله)_
۴) فتح الباری(۶۳/۱)_
۵) عمدة القاری (۱۵۱/۱)_

**ايا دمهاجرينو رضى الله عنهم محبت د ايمان نښه نه ده؟** دلته يوسوال پيدا كيږي.چه د انصاروسره محبت ته ئې د ايمان نښه اوونيله. او د مهاجرينو رضی الله عنهم سره محبت ته ئې د ايمان نښه نه ده ونيلې.ولې د مهاجرينو رضی الله عنهم سره محبت د ايمان نښه نه ده؟

نوددې جواب دا دې.چه په اصل كښې دمهاجرينو رضی الله عنهم معامله بالكل ښكاره او واضحه وه.چه هغوى د نبى ﷺ دخاندان سره تعلق ساتلو.اوهغوى دا سلام د ترقئ دپاره هجرت كړې وو.اوتكليفونه ئې زغملى وو.خپل بال بچ ئې پريخودې وو. او د اسلام په وجه دربه در شوى وو.نودهغوى سره دمحبت معامله خوبيخى ښكاره وه. البته دانصارو په باره كښې دا وه.چه دهغوى چونكه دنبى ﷺ د خاندان سره تعلق نه وو.اوهغوى دهجرت وغيره تكليفونه هم نه وو زغملى.نودا شبه كيدې شوه.چه كيدې شى.د ايمان نښه دمهاجرينو سره محبت وى.او د انصارو سره محبت نه وى. نو په دې وجه نبى ﷺ په خصوصيت سره د انصارو ذكر اوكړلو.

دويم جواب دا دې.چه هركله د انصاروسره محبت دايمان نښه اوګرځولې شوه.نود مهاجرينو رضی الله عنهم سره محبت خو به په طريق اولى دايمان نښه وى.دانصارو سره محبت د دليل په طور پيش كړې شو.چه هركله دوى د نبى ﷺ د خاندان سره تعلق هم نه ساتى.اود هجرت سختئ ئې هم نه دى برداشت كړې.نوچه دوى سره محبت د ايمان نښه ده.نود مهاجرينو رضی الله عنهم سره محبت خويه په طريق اولى د ايمان نښه ګرځولې شى.نو ددې وجې صرف دانصارو ذكر راغلې دې.دمهاجرينو نه دې راغلې.

**دانصارو سره محبت دايمان اوبغض دنفاق نښه ده.په دې باره كښې يوضرورى وضاحت** دلته يوه خبره د پوهيدو قابله ده.چه دلته دانصارو سره محبت دايمان نښه اود دوى سره بغض دنفاق نښه اوګرځولې شوه.چه دانصارو سره محبت ،،من حيث أنهم أنصار الله وأنصار رسوله،، دايمان نښه ده.اوهم په دې حيثيت سره ددوى سره دشمنى كول د نفاق نښه ده.

ددې نه معلومه شوه.كه په څه بله وجه دانصارو سره اختلاف پيښ شى.نوهغه به دنفاق نښه نه وى.

ګورئ هركله چه په جنګ جمل كښې د حضرت على رضی الله عنه د حضرت طلحه، حضرت زبير او حضرت عائشې رضی الله عنهم سره مقابله راغلې وه.يا په جنګ صفين كښې د حضرت معاويه رضی الله عنه سره مقابله اوشوه.نوپه هغه وخت كښې دانصارو رضی الله عنهم اكثريت د حضرت على رضی الله عنه سره وو.دلته هرګز دا نشى ونيلې.چه په حضرت طلحه،حضرت زبير ،حضرت عائشه اوپه حضرت معاويه رضی الله عنهم كښې دنفاق نښه بيا موندې شوه.څكه چه ددې حضراتو په زړونو كښې بغض نه وو. بلكه درائې اختلاف وو.په رونړوكښې بلكه د پلار او څوئې په مينځ كښې د رائې اختلاف وى.خوبغض نه وى.

**دحضرت على رضی الله عنه اوحضرت معاويه رضی الله عنه په مينځ كښې د اختلاف په نوعيت باندې دلالت كونكې يوه واقعه** دروم بادشاه چه كله اوكتل.چه حضرت معاويه رضی الله عنه د حضرت على رضی الله عنه سره په جنګ لګيا دې.نوهغه په بعضې علاقو باندې د قبضه كولو اراده اوكړله. نو حضرت معاويه رضی الله عنه هغه ته اوليكل.،،والله لإن لم تنته وترجع إلى بلادك لأصطلحن أنا وابن عمي عليك ولأخرجنك

من جميع بلادك ولأضيقن عليك الأرض بما رحبت،، [1] يعني كه تاسو منع نشوئى اوخپل ملك ته واپس لاړنشئ نوزه به دخپل ترة خونى سره صلح اوكړم اوبيا به تاسو دخپل ملك نه هم اوباسم اويه هغه وخت كښي به تاسو باندي زمكه تنګه كړم سره ددي نه چه دا فراخه ده.
دحضرت معاويه رضي الله عنه دا ليكل په دي خبره دلالت كوى چه دحضرت على رضي الله عنه سره د هغوى په زړه كښي بغض نه وو. والله سبحانه وتعالى اعلم.

## باب (بلاترجمة)

دا بغيرترجمة باب دي اودا اولنئ موقعه ده چه بغيرترجمة باب په كښي راغلي دي.ددي متعلق تفصيل په مقدمه كښي تيرشوي دي.دلته چونكه په اول ځل باندي دا راغلي دي.نوځكه لږ په وضاحت سره ددي بيان كوم.

① بعضي عالمان رحمهم الله فرمائى.چه مصنف رحمه الله سهوه شوي دي.

② بعضي حضرات فرمائى. چه دمصنف رحمه الله سهو نه ده بلكه دكاتب سهو ده. مصنف رحمه الله چه كومه ترجمه قائمه كړي وه.دكاتب نه هغه پاتي شوي ده.

③ بعضي حضرات فرمائى.چه دا د راوى تصرف دي.[2]

④ حافظ بن حجر رحمه الله په بعضي مقاماتو كښي دا وئيلى دى.چه مصنف رحمه الله قصداً بياض پريخودي دي.اود ترجمة قائمولو اراده ئي وه.خوروسته ورته موقع نه ده ملاؤ شوي.[3]

⑤ عام شارحين رحمهم الله په داسي موقعه باندي فرمائى.چه دا باب ،،كالفصل من الباب السابق،، يعنى د سابقه باب نه دا يوفصل دي.اودهغي سره دا مربوط دي.علامه كرمانى رحمه الله [4] حافظ ابن حجر رحمه الله [5] علامه عينى رحمه الله [6] شيخ الاسلام زكريا انصارى رحمه الله ،علامه قسطلانى رحمه الله [7] شيخ نورالحق رحمه الله [8] اوشاه ولى الله رحمه الله [9] ددي قاعدي تصريح كړي ده.حافظ ابن حجر رحمه الله تقريباً

---

[1]) البداية والنهاية (۸\۱۱۹) ترجمة معاوية رضي الله عنه وذكرشئ من أيامه وما ورد فى مناقبه وفضائله)_

[2]) فتح البارى(۶\۵۶۱) باب بلاترجمة بعد باب كنية النبى ﷺ)_

[3]) فتح البارى(۱\۵۵۸) كتاب الصلاة باب (بلا ترجمة بعد باب إدخال البعير فى المسجد للعلة.. دغه شان (۸\۲۰) كتاب المغازى باب بلا ترجمة بعد باب منزل النبى ﷺ يوم الفتح (۸\۲۲) باب بلا ترجمة بعد باب مقام النبى ﷺ بمكة زمن الفتح)_

[4]) شرح كرمانى رحمه الله (۱\۶۴)

[5]) فتح البارى( ۱\۶۴)-

[6]) عمدة القارى( ۱\۱۵۲)-

[7]) ارشاد السارى(۱\۹۹)-

[8]) تيسيرالقارى(۱\۲۰،۲۱)-

[9]) مقدمة لامع الدرارى (۱\۳۲۱) الأصل العشرون)_

په ځلوبنځتو ځايونوکښې ددې صراحت کړې دې خودا قاعده په هرځائې کښې نه چليږی په بعضې مواقعو کښې دا قاعده ګرانه ده.

⑥ حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائي چه بعضې ځايونوکښې امام بخاری رحمه الله د تشحيذ اذهان دپاره ترجمه حذف کوی.(۱) دناظرينو د طبعيت تيزولو دپاره. د هغوی په ذهن کښې د جلاء پيدا کولو دپاره.دهغوی د متوجه کولو دپاره.چه تاسوسوچ اوکړئ اود مقام مناسب څه ترجمه اولګوئ خوشرط دا دې چه ترجمه مکررنه وی.اودمقام مناسب وی لکه په کتاب الطهارة کښې ئې يوه ترجمه منعقد کړې ده.،،باب من الکبائرأن لايستترمن بوله،، په دې کښې ئې د ابن عباس رضي الله عنهما حديث نقل کړې دې چه په هغې کښې د دوو کسانويه عذاب قبرکښې داخته کيدو ذکر دې.په دې پسې امام بخاری رحمه الله يوه بله ترجمه منعقد کړې ده.،،باب ماجاء فی غسل البول،، ددې لاندې ئې هم دا حديث تعليقاً ذکرکړې دې.ددې نه پس ئې يو باب بغيرترجمه منعقد کړې دې.اوپه هغې کښې ئې هم هغه دابن عباس رضي الله عنهما حديث مطولاً بالسند نقل کړې دې. اوس دلته ،،کالفصل من الباب السابق ،،قاعده نه جاری کيږی دلته کښې خو به ((تشحيذالاذهان)) هم ګنړلې شی.اوڅه مناسب ترجمه به مقرر کول وی.مثلاً دا به وئيلی شی.چه ،،باب کون البول موجباً لعذاب القبر،،

په دې باندې اشکال کيږی.چه دا ترجمه خو مکرر شوه.ځکه چه امام بخاری رحمه الله په ابواب الجنائز کښې په دې باندې د عذاب قبرترجمه منعقد کړې ده.

د دې جواب دا دې.چه دلته بحيثيت مسائل غسل، اودس. او طهارت. ذکر دې.اوهلته په ابواب الجنائزکښې دجنازې د مسائلوپه حيثيت ذکر دې.اودا تکرار مضرنه دې.هم د يو عنوان لاندې راوړل به مضر وو.

⑤ شيخ الهند رحمه الله فرمائي.چه امام بخاری رحمه الله کله دتکثيرفوائد په غرض ترجمه حذف کوی.(۲) په باب کښې چه کوم روايت ذکر وی.دهغې د تيرې شوې ترجمې سره ربط هم وی.اود هغې د لاندې نور تراجم هم منعقد کيدې شی.مثلاً هم دا باب راواخله.چه امام بخاری رحمه الله اول يوه ترجمه منعقده کړې ده.،،باب علامة الإيمان حب الأنصار،، ددې نه پس باب بلاترجمه راوړی.اوددې نه پس د حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه حديث نقل کوی.،،بايعونی علی أن لا تشرکوا بالله شيأ ولا تسرقوا ولا تزنوا ولا تقتلوا أولادکم ولاتأتوا ببهتان تفترونه بين أيديکم وأرجلکم ولا تعصوا فی معروف...،، ددې د ماقبل سره ربط هم دې.ځکه چه دا وئيلی شی.چه هرکله د انصارو سره محبت د ايمان نښه ده.نود معاصی اوګناهونو نه پرهيزبه په طريق اولی سره دايمان

---

(۱) مقدمة لامع الدراری (۱\۳۲۸) الأصل الخامس والعشرون)_

(۲) مقدمة لامع الدراری (۱\۳۲۹) الأصل السادس والعشرون)_

نښه وي. او دباب نه پس مستقله ترجمه هم قائمولې شي. مثلاً ،،الإجتناب من الكبائر من الإيمان،، يا ،،البيعة على ترك الكبائر من الإيمان،، وغيره نو امام بخاري رحمه الله د تكثير فوائد په غرض د لته ترجمه حذف كړې ده.

⑧ يو وجه دا بيان شوې ده. چه بعضې وخت په سابقه بابونو كښې يا په باب سابق كښې يو اشكال پيدا كيږي. نو امام بخاري رحمه الله بلا ترجمه باب راوړي. او داسې يو روايت نقل كړي چه په هغې سره د هغه اشكال خاتمه كيږي.(١) لكه هم دې ځائې كښې اوګورئ. چه امام بخاري رحمه الله تر اوسه پورې كوم تراجم قائم كړل. د هغې نه دا معلوميږي. چه اعمال په ايمان كښې داخل دي. په دې باندې د مرجئو ترديد خو اوشو. خو كيدې شي. چه معتزله او خوارج ددې نه خپل مسلك ثابت كول شروع كړي. نو امام بخاري رحمه الله د هغوي د خيال د ترديد د پاره باب بلا ترجمه راوړل. او په دې كښې ئې د حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه حديث پيش كړلو په كوم كښې چه دا دي. ،،ومن أصاب من ذلك شيأ فعوقب في الدنيا فهو كفارة له ومن أصاب من ذلك شيأ ثم ستره الله فهو إلى الله: إن شاء عفا عنه وإن شاء عاقبه،، كه الله تعالى د چا معاصي او جرائم پټ كړل. نو د الله تعالى اختيار دې. كه غواړي نو معاف به ئې كړي. او كه غواړي نو عذاب به وركړي. نو د معتزلو او خوارجو دا وينا چه مرتكب د كبيرة د ايمان د دائرة نه خارج دې غلطه ده. نو د هغوي د مسلك ترديد ئې اوكړلو.

⑨ شاه ولي الله رحمه الله فرمائي چه امام بخاري رحمه الله په بعضې ځايونو كښې د ،،باب،، د محدثينو د قول ،،ح،، په ځائې استعمالوي.(٢) ددې په كتاب بدء الوحي كښې صرف يو مثال دې. او صرف د يو باب د پاره مستقله قاعده مقرر كول بعيده معلوميږي. او هلته ددې قاعدې د استعمال نه بغير د باب صحيح توجيه كيدې شي. نو ددې څه ضرورت نه معلوميږي.

⑩ بعضې عالمان رحمهم الله فرمائي چه امام بخاري رحمه الله د رجوع الى الاصل د پاره باب بلا ترجمه راوړي. دا د مشائخو رحمهم الله په نيز مشهوره ده. او ددې وضاحت دا دې چه امام بخاري رحمه الله يو ترجمه قائمه كړي او ددې نه پس څه ابواب يا يو يا د يو نه زيات بابونه ضمني طور تبعاً ذكر كړي. او بيا اصل ته د عود د پاره امام بخاري رحمه الله باب بلا ترجمه راوړي.(٣) لكه ،،باب فضل اللهم ربنا لك الحمد،، نه پس چه كوم باب راځي كيدې شي چه په دې كښې هم دا توجيه اوكړې شي.

⑪ يو قول دا هم دې چه امام بخاري رحمه الله بعضې وخت كښې باب بلا ترجمه د تكثير طرق د پاره هم ذكر كوي لكه چه اوس په ،،باب ما جاء في غسل البول،، كښې چه ذكر شو. ددې نه پس

---

(١) تقرير بخاري (١٢٦/١)_

(٢) مقدمة لامع (٣٠٨/١) الأصل السابع)_

(٣) مقدمة لامع (٣٦٧/١) الأصل السادس والخمسون)_

چه كوم باب بلا ترجمه راخي.علامه عيني رحمه الله ليکلي دي چه اصل باب خو وړاندينۍ دي.اودهغې په ذيل کښې چه کوم روايت دې هم هغه روايت په بل سند سره ذکر کوی.(١)
په دې توجيهاتوکښې چه دسهو مصنف سهوكاتب.اوسهوراوی کوم توجيهات دی.هغه ډيرې کمزورې دي.البته د بياض قول گذاره کوی.ځکه چه دهغې دليل موجود دې.چه قاضي ابوالوليد باجي مالك رحمه الله د حافظ ابوذرعبدالرحيم بن احمد هروی رحمه الله نه اوهغه د ابواسحاق ابراهيم بن احمد مستملی نه نقل کوی.چه هغوی به فرمائيل.،،**انتسخت كتاب البخاري من أصله الذي كان عند صاحبه محمد بن يوسف الفربري رحمه الله فرأيت فيه أشياء لم تتم،وأشياء مبيضة منها تراجم لم يثبت بعدها شيأ ومنها أحاديث لم يترجم لها فأضفنا بعض ذلك إلى بعض**«(٢)» په باقی توجيهاتوکښې د ټولو نه زياته رائجه او جاری د،،**الباب كالفصل من الباب السابق**،، توجيه ده.ددې نه پس د تشخيذ اذهان توجيه ده.والله سبحانه وتعالى اعلم.
**په دې مقام کښې د بلا ترجمه باب ذکر کولو مقصد:** دلته کښې چه امام بخاری بلا ترجمه باب منعقد کړې دې.نوددې مقصد څه دې؟
دحضرت شيخ الهند رحمه الله رائې اوس د،،باب بلا ترجمه،،د اسبابو لاندې ذکرشوه
شراح کرام رحمهم الله عام طور دې ته ،،**كالفصل من الباب السابق**،، وائی.اودماقبل ترجمة سره دا مربوط گرځوی.
دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې دا ده.چه امام بخاری رحمه الله په ماقبل کښې دا خودلی وو.چه دانصارو سره محبت دايمان نښه ده.او اوس په دې باب کښې د حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه په حديث کښې دې طرف ته اشاره کوی.چه حضراتو انصارو ته د انصارو لقب ورکولو ابتدائی وجه څه وه؟د حضرت عباده رضي الله عنه د حديث نه معلوميږی.چه ددې سبب د نبی صلی الله علیه وسلم په دست راست باندې د نصرت بيعت کول وو.(٣)
شيخ الحديث حضرت زکريا رحمه الله نورالله مرقده فرمائی.چه امام بخاری رحمه الله وړاندې دا خودلی وو.چه حب انصار دايمان نښه ده.اوس په دې باب کښې په دې خبره تنبيه ورکول غواړی.چه د انصارو سره محبت د ايمان نښه ولې ده؟ نود باب د روايت نه معلومه شوه.چه ددې سبب د حضرات انصارو د نبی صلی الله علیه وسلم په لاس باندې د نصرت او اعانت په غرض سره بيعت کول وو.چونکه هغوی د نبی صلی الله علیه وسلم سره د نصرت او اعانت دپاره بيعت کړې وو.نودهغوی سره محبت کول په حقيقت کښې دالله تعالی سره محبت کول دی.(٤)
دحضرت شيخ الحديث رحمه الله دا ارشاد د حضرت علامه کرمانی رحمه الله په کلام کښې هم موجود

---

(١) مقدمة لامع (٣١٨/١، ٣١٩)_ الأصل السابع عشر)_
(٢) هدى السارى مقدمة فتح البارى (ص،٨) الفصل الثانى فى بيان موضوعه والكشف عن مغزاه فيه)_
(٣) فتح البارى (٦٤/١) تقرير بخارى شريف (١٢٥/١)
(٤) تقرير بخاري شريف(١٢٥/١)_

دي.هغوى چه كوم كلام كړې دې اودهغې په آخر كښې ئې كومه خبره كړې ده.هغه د حضرت شيخ رحمه الله مويده ده.(١)

[١٨] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو إِدْرِيسَ عَائِذُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ عُبَادَةَ بْنَ الصَّامِتِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وَكَانَ شَهِدَ بَدْرًا وَهُوَ أَحَدُ النُّقَبَاءِ لَيْلَةَ الْعَقَبَةِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَحَوْلَهُ عِصَابَةٌ مِنْ أَصْحَابِهِ بَايِعُونِي عَلَى أَنْ لَا تُشْرِكُوا بِاللَّهِ شَيْئًا وَلَا تَسْرِقُوا وَلَا تَزْنُوا وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ وَلَا تَأْتُوا بِبُهْتَانٍ تَفْتَرُونَهُ بَيْنَ أَيْدِيكُمْ وَأَرْجُلِكُمْ وَلَا تَعْصُوا فِي مَعْرُوفٍ فَمَنْ وَفَى مِنْكُمْ فَأَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ وَمَنْ أَصَابَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا فَعُوقِبَ فِي الدُّنْيَا فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ وَمَنْ أَصَابَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا ثُمَّ سَتَرَهُ اللَّهُ فَهُوَ إِلَى اللَّهِ إِنْ شَاءَ عَفَا عَنْهُ وَإِنْ شَاءَ عَاقَبَهُ فَبَايَعْنَاهُ عَلَى ذَلِكَ

[٣٨٩٢، ٣٨٩٣، ٤٨٩٤، ٦٧٨٤، ٦٨٠١، و٦٨٧٣، ٧٠٥٥، ٧١٩٩، ٧٢١٣، ٧٤٦٨](٢)

## رجال الحديث

دابواليمان او شعيب رحمهما الله حالات د باب بدء الوحي د شپږم نمبر حديث لاندې تيرشوى دى.

دامام زهرى رحمه الله مختصر ذكرد باب بدء الوحي د دريم حديث لاندې تير شوې دې.

**قوله** : ابوادريس عائذالله بن عبدالله: دوى ابوادريس خولانى دمشقى دى.دنبى ﷺ په ژوند كښې د حنين د واقعه په ورځ باندې پيدا شوې وو.

دحضرت عبدالله بن مسعود.حضرت معاذ.حضرت ابودرداء.اوحضرت عباده بن صامت رضي الله عنهم غوندې جليل القدرصحابه كرامو رضي الله عنهم نه ئې احاديث اوريدلى دى. دحضرت ابودرداء رضي الله عنه نه پس دشام عالم هم دوى وو.عبدالملك دوى د دمشق قاضى هم مقرر كړې وو.په كال ٨٠هـ

---

١) شرح كرمانى رحمه الله () ١٠٢)_

٢) الحديث أخرجه البخارى فى كتاب مناقب الأنصار باب وفود الأنصار إلى النبى ﷺ بمكة وبيعة العقبة رقم (٣٨٩٢) و (٣٨٩٣) وفى كتاب التفسير سورة الممتحنة باب إذا جاءك المؤمنات يبايعنك .. رقم (٤٨٩٤) وفى كتاب الحدود كفارة رقم (٦٧٨٤) وباب توبة السارق رقم (٦٨٠١) وفى كتاب الديات باب قول الله تعالى ..ومن أحياها .. رقم ٦٨٧٣) وفى كتاب الفتن باب قول النبى ﷺ سترون بعدى أموراً تنكرونها .. رقم ٧٠٥٥) وفى كتاب الأحكام باب كيف يباع الإمام الناس رقم ٧١٩٩ وباب بيعة النساء رقم ٧٢١٣ وفى كتاب التوحيد باب فى المشيئة والإرادة رقم ٧٤٦٨ ومسلم فى كتاب الحدود باب الحدود كفارات لأهلها والنسائى فى كتاب البيعة باب البيعة على الجهاد وباب البيعة على فراق المشرك وباب ثواب من وفى بما بايع عليه .. والترمذى فى جامعه فى كتاب الحدود باب ما جاء أن الحدود كفاره لأهلها رقم ١٤٣٩ وابن ماجه فى كتاب الحدود باب الحد كفارة رقم ٢٦٠٣)_

کښي وفات شوی وو اصحاب صحاح سته د دوی نه روايات نقل کړی دی.[1]

**قوله عبادة بن صامت رضی الله عنه:** دا مشهور انصاری صحابی ابوالولید عباده بن صامت بن قیس بن اصرم انصاری خزرجی دې.

په بیعت عقبه اولی او ثانیه کښي شریك شوي وو بیا په بدر ،احد ،خندق او نورو ټولو غزاګانو کښي د نبی ﷺ سره شریك وو.دوی د انصارو په دولسو نقیبانو کښي یو وو.رسول الله ﷺ دوی او حضرت ابو مرثد غنوی رضی الله عنه ورونړه جوړ کړی وو. نبی ﷺ دوی د صدقاتو ذمه وار هم جوړ کړي وو.اهل صفه ته به دوی قرآن کریم هم خودلو.

کله چه د شام علاقه فتح شوه.نو حضرت عمر رضی الله عنه دوی او حضرت معاذ او حضرت ابوالدرداء رضی الله عنهم هلته کښي اولیږل.چه خلقوته د دین تعلیم ورکړی.نو حضرت عباده په حمص کښي حضرت معالذ په فلسطین کښي اوحضرت ابودرداء رضی الله عنه په دمشق کښي دیره شول.

دحضرت عباده نه یو سل یو اتیا احادیث نقل دي.په دې کښي شپږ احادیث متفق علیه دي.اودوه احادیثو کښي امام بخاری متفرد دې.او په دو کښي امام مسلم.

د دوه اویا کالو په عمرکښي په کال ۳۴ھ کښي په بیت المقدس یا رمله کښي دوی وفات شوی وو.[2]

**قوله وَكَانَ شَهِدَ بَدْرًا وَهُوَ أَحَدُ النُّقَبَاءِ لَيْلَةَ الْعَقَبَةِ:** حضرت عباده رضی الله عنه په جنګ بدر کښي شریك شوي وو.اودوی په لیلة العقبه کښي د انصارو د سردارانو نه یو وو.

**دانصارو پخوانی تاریخ:** انصار په اصل کښي د یمن اوسیدونکی او د قحطان د خاندان نه وو.په یمن کښي چه کله مشهور سیلاب راغلو.چه سیل عرم ورته وائی.نودا خلق د یمن نه بهر شو.او مدینه کښي آباد شول.دا دوه ورونړه وو.اوس او خزرج،ټول انصار هم د دې دوو خاندانو څنې دی.دا خاندان چه کله یثرب ته راغلل.نودلته د یهودیانو زبردست اقتدار او اثر وو.خواږ شا مقامات ددوی په قبضه کښي وو.او دولت او مال ورسره وو. د آل او اولاد د کثرت د وجې شل یوویشت قبیلې جوړې شوې وې . ددې وجې نې ترلرې لرې پورې کلی آباد کړی وو.انصارځه مودې پورې د یهودو نه جدا وو.خوچه د یهودو اثر او رسوخ نې اولیدل نوآخر دا چه ددوی حلیف جوړ شول .ترڅه وخته پورې دا حالت وو.خوبیا انصار هم زیات شو.ددوی خاندان خور شو.او اقتدار ورته حاصل شو.نویهودود آئنده حالاتو په تناظرکښي دا معاهده ماته کړه.

په یهودیانوکښي یوسردار فطیون په نوم پیدا شو.هغه دیرعیاش اوبدکاره وو.هغه دا حکم جاری کړې وو.چه کله پیغله جینۍ چاته واده کیږی.نو اول به دده سره شپه تیروی.یهودو دا خبره برداشت کړې وه.خوکله چه د انصارو نوبت راغلو . نو هغوی انکار اوکړلو.

---

[1] عمدة القارى (۱\۱۵۳) وتقريب (ص.۲۸۹) رقم ۳۱۱۵)_

[2] تهذيب الأسماء واللغات (۱\۲۵۶، ۲۵۷) وعمدة القارى (۱\۱۵۳) وتقريب (ص.۲۹۲) رقم ۳۱۷)_

په دغه زمانه کښې د انصارو سرداريوکس مالك بن عجلان وو.کله چه دهغه خور واده شوه نو هغه هم د وادهٔ په ورځ د کور نه بهرته اووتله.اودخپل ورو مالك بن عجلان مخکښې بربنډه تيره شوه.مالك ته غيرت ورغلو راپاسيدلو.اوخورئې ډيره ملامته کړه.هغې ورته اوونيل. تيك ده خو چه صبا ته به څه کيږي.هغه خوددې نه هم زياته د شرم خبره ده.په دويمه ورځ د رواج مطابق د مالك خورناوې کړې شوه.اود فطيون خلوت ګاه ته لاړله.نومالك هم د زنانو جامې واغوستې.اوپه ملګروکښې ورسره شو.اوفطيون ئې قتل کړل.اوشام طرف ته اوتختيدلو. دلته د غسانيانوحکومت وو.او ابوجبله حکمران وو.هغه چه دا حالات واوريدل. نولوئې لښکرئې راوستل.اود اوس او خزرج سرداران ئې راؤغوښتل.او هغوی ته ئې انعامونه ورکړل.اوبيا ئې د يهوديانو سردارانو ته دعوت اوکړلو .او يو يو ئې په دهوکه باندې قتل کړل.د يهوديانو زور اوس ختم شو.اوانصارو قوت حاصل کړلو.

انصاروپه مدينه کښې اوددې نه ګيرچاپيره ډيرې قلعه ګانې جوړې کړې وې. اوس او خزرج ترڅه وخته پورې په خپل مينځ کښې متفق وو.خوبيا دعربود فطرت مطابق په خپلوکښې جنګونه شروع شول.اوسخت خونړی جنګونه اوشول.دټولو نه په آخری جنګ کښې چه جنګ بعاث ورته وئيلې شی.داسې سخته جګړه اوشوه. چه د دواړو قبيلو نامتو کسان مړه شول. اوس انصار دومره کمزوری شو.چه دوی قريشو ته قاصد اوليږل.چه مونږ خپل حليف جوړ کړئ.خوابوجهل خبره ختمه کړه.

انصاراګرچه بت پرست وو.خود يهوديانوسره يوځائې پاتې شوی وو.نوځکه د نبوت او آسمانی کتابونو نه څه ناڅه خبر وو.يهودو سره اګرچه انصارو يوقسم تربوررولی ساتله. خود هغوی دعلمی فضل اوکمال قائلين وو.کله چه به په انصارو او يهوديانو کښې جګړه وه.نو يهوديانو به وئيل.نزدې چه آخری پيغمبر به راشی. مونږ به دهغه تابعداری اوکړو.اودهغه سره به ملګری شو.او تاسو به دعاديانو او ثموديانو په شان هلاك کړو.دغه شان دمدينهٔ انصار دنبوت اونبی د بعثت نه څه ناڅه واقف وو.(۱)

**دانصارو داسلام راوړلو ابتداء** دنبی کريم ﷺ دا معمول وو.چه د حج په ورځوکښې به د قبيلو سردارانو ته ورتلل.اود اسلام دعوت به ئې ورکولو.په يوولسم کال د نبوت چه کله د حج موسم راغلو.نود انصارو څه خلق مکې مکرمې ته راغلل.نبی ﷺ هغوی ته تشريف يوړلو. اوداسلام دعوت ئې ورته ورکړلو.اودقرآن پاك تلاوت ئې ورته اوکړلو.هغوی په خپل مينځ کښې اووئيل.په الله قسم چه دا هغه پيغمبر ﷺ دې.دکوم چه به يهوديانو ذکرکولو.ګورئ چه داسې اونشی.چه يهود تاسو نه په دې سعادت کښې وړاندې شی. نودې ټولو هم په دغه مجلس کښې ايمان راوړلو.دا شپږ حضرات وو.(۲)

کله چه دويم کال راغلو کوم چه د نبوت دولسم کال وو نونبی ﷺ سره دملاقات دپاره دولس کسان حاضرشول.دا دولس کسان د نبی په خدمت کښې حاضرشول.اود شپې په منی

---

۱) دتفصيل دپاره اوګورئ سيرة النبی ﷺ (۱۵۵/۱، ۱۵۶)_

۲) سيرت ابن هشام (۲۶۶/۱، ۲۶۷) بدء اسلام الأنصار)_

كښې د عقبۀ سره نې د نبي ﷺ په لاس باندې بيعت اوكړلو دا دانصارو اولنې بيعت وو.او دې ته ،،بيعة عقبه اولى،، وائى.(۱)

كله چه دا حضرات مدينې منورې ته واپس لاړل نونبي ﷺ دوى سره حضرت مصعب بن عمير رضي الله عنه اوليږلو چه دوى ته د قرآن تعليم وركړى.(۲)

كله چه دريم كال راغلو كوم چه د نبوت دياړلسم كال وو.نودانصارو كم او زيات اويا كسان مكې مكرمې ته راغلل.اود نبي ﷺ په لاس نې بيعت اوكړلو په دغه موقع حضرت عباس رضي الله عنه هم وو هغوى په دې موقع باندې يوه خطبه اوونيله.او وې ونيل چه محمدتاسوته درتلل غواړى.اوپه دې باندې كلك دې.كه تاسو خلق د دې ذمه وارى اخلئ:چه تاسو به دده پوره حفاظت كوئ.نو دربه شى.گنى دې هم دلته په مكه كښې پريږدئ.دده خپل خپلوان به دده حمايت او حفاظت كوى. انصارو وعده اوكړه.اوددې نه پس دوى بيعت اوكړو.دې ته ،،بيعت عقبه ثانيه.. وائى.(۳)

كله چه ټولو بيعت اوكړلو.نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل.چه حضرت موسى عليه السلام په بنى اسرائيلو كښې دولس نقيبان مقرر كړى وو.دغه شان زه هم د جبرئيل عليه السلام په اشاره باندې په تاسو كښې دولس نقيبان مقرر كوم.اوهغه دولسو ته مخاطب شو.او وې فرمائيل تاسودخپل قوم كفيل او ذمه وار ئې.(۴)

بهرحال دلته ،،**وكان شهد بدراً وهو أحد النقباء ليلة العقبة**،، كښې دحضرت عباده بن صامت رضي الله عنه منقبت بيان شوې دې.چه دوى په بدركښې هم شريك شوى وو. اوددې نه علاوه په دولسو نقيبانو كښې يونقيب دې هم وو.(۵)

---

۱) سيرت ابن هشام (۱\۲۷۹)_

۲) سيرت ابن هشام (۱\۲۶۹)_

۳) سيرت ابن هشام (۱\۲۷۳)_

۴) طبقات ابن سعد(۱\۲۲۲، ۲۲۳) ذكرالعقبة الآخرة وهم السبعون الذين بايعوا رسول الله ﷺ)_

۵) يوه ضرورى تنبيه:دمدينې منورې دا كسان چه اول اول ئې اسلام راوړې وو.د سيرت بعضې مصنفينو رحمهم الله د دوى د قبول اسلام دا واقعه د بيعت عقبه اولى په عنوان سره كړې ده دا عنوان د سيرت كتونكوديارٰه په هغه وخت كښې د پريشانۍ سبب جوړيږى كله چه دوى په نورو كتابونو كښې اوگورى چه په بيعت عقبه اولى كښې دولس كسان وو ددې اختلاف روايت په سبب بعضې مصنفين په بيعت عقبه ثانيه كښې دولس كسان او بعضې درې اويا كسان ښائى.حالانكه اصلى صورت دا دې چه كومو شپږو يا اته كسانوچه په شروع شروع كښې اسلام راوړې وو.د هغوى د اسلام قبلولو واقعه ته بيعت عقبه اولى عنوان نه بلكه ..په اول كښې دانصارو اسلام قبلول.عنوان وركول بكار دى اوپه دويم كال چه يوولس يا دولس كسان په خدمت كښې حاضر شوى وو دا بيعت عقبه اولى ده كومو كسانوچه د انصارو په اول كښې دايمان راوړلو ته د بيعت عقبه نوم وركړې دې ددې خل بيعت ته د بيعت عقبه عنوان وركوى يعنى يو بيعت عقبه اولى.دويم هغه بيعت عقبه چه په هغې كښې دولس كسانو ايمان راوړې وو.او دريم هغه بيعت عقبه چه په هغې كښې درې اويا كسان په اسلام مشرف شوى وو او دا درې واړه واقعات د يوكال (بقيه حاشيه په راروانه صفحه....

**قوله** أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَحَوْلَهُ عِصَابَةٌ مِنْ أَصْحَابِهِ:

دلته د ،،أن رسول الله....،،نه وړاندې ،قال، مقدردې اودا ،،قال،، په،،أن عبادة بن الصامت رضي الله عنه،، كښې د،،أن،،دپاره خبر دې او،،وكان شهد بدرا وهو أحد النقباء ليلة العقبة،،جمله.جمله معترضه ده.لكه چه عبارت به داسې وى.،،أن عبادة بن صامت رضي الله عنه (وكان شهد بدرا وهو أحد النقباء ليلة العقبة) قال أن رسول الله ﷺ قال...،،اودا د محدثينو رحمهم الله عادت وى.چه په كوم ځائې كښې ،،قال،، مكرر راشي.نوهلته يو حذف كوى.البته د هغې تلفظ خامخا كوى.

**قوله** ،،عصابة،،: ددې اطلاق دلسو نه ترڅلويښتو پورې كيږى.اوكله مجازاً د څلويښتو نه په زياتو باندې هم ددې اطلاق كيږى.دبدر په موقع نبى ﷺ دعا كړې وه.اودا ئې فرمائيلى وو.،،اللهم إنك إن تهلك هذه العصابة من أهل الإسلام لاتعبد فى الأرض،،(١) اې الله كه دمسلمانانودا جماعت هلاك شى.نوبيا زمكه به ستا عبادت كونكې څوك پاتې نشى.دلته نبى ﷺ د درې سوه اوديارلس كسانو په جماعت باندې د،،عصابة،،اطلاق كړې دې.

دنسائى شريف په يو روايت كښې دى.چه دلته د ،،عصابة،،په ځائې د ،، رهط،، لفظ هم راغلې دې.اوددې اطلاق د دريو نه واخله ترلسو پورې كيږى.

**قوله** بَايِعُونِي : د نبى ﷺ په لاس باندې په مختلفو طريقو بيعت شوې دې.بيعت په اصل كښې وعده او معاهده وى.چه دالله رسول يا هغه كس چه د الله د رسول تابعدار وى.دهغه پوره تابعدارى اوكړې شى.

رسول الله ﷺ په مرګ باندې هم بيعت اخستې وو.(٢) ددې مطلب هم هغه بيعت على الجهاد دې.چه مونږ به د الله تعالى د دين اوچتولو دپاره د كافرانو سره جنګ كوو.تردې چه مونږ ته مرګ راشي.يا دالله تعالى دين غالب شى.

دغه شان د صلاة او زكاة د پابندئ دپاره هم نبى ﷺ بيعت اخستې دې.(٣) د فواحشو او منكراتوپه ترك باندې ئې هم بيعت اخستې وو.(٤) دغه شان د هرمسلمان په خيګړه باندې(٥)

---

.....بقيه حاشيه د تيرمخ) د فاصلې په حساب سره په موسم حج كښې پيښې شوى دى. او كومو كسانو چه په اول كښې د انصارو داسلام قبلولو واقعه د،،ابتداء اسلام انصار،، په عنوان سره ذكركړې ده.هغوى د يوولسوكسانو بيعت ته بيعت عقبه اولى او د درې اوياكسانو بيعت ته بيعت عقبه ثانيه عنوان وركړې دې حاشيه سيرت النبى ﷺ ازعلامه سيدسليمان ندوى رحمه الله (١٥٧١١)_

١) سنن نسائى (١٨٢١٢) كتاب البيعة باب البيعة على فراق المشرك)_

٢) سنن نسائى (١١٨٠) كتاب البيعة باب البيعة على النصح لكل مسلم)_

٣) سنن نسائى (١٨٢١٢) كتاب البيعة باب البيعة على فراق المشرك)_

٤) كما فى حديث الباب)_

٥) سنن نسائى (١٨٠١٢) كتاب البيعة باب البيعة على النصح لكل مسلم)_

اوپه دې خبره چه كله موقع راشي.نوكلمه دحق به ادا كوو او كتمان د حق به نه كوو.[1]
خلاصه دا چه څومره بيعتونه دي.نوپه ټولوكښې دالله تعالى دحكم په پوره كولو باندې دعمل كولو وعده كولې شي.اودا معاهده وي.چه مونږ به دالله تعالى دحكمونو پابندي كوو.ددې وجې قرآن كريم فرمائيلي دى.﴿إِنَّ الَّذِينَ يُبَايِعُونَكَ إِنَّمَا يُبَايِعُونَ اللَّهَ﴾ [2] دا كوم بيعت چه د پيغمبر ﷺ سره كيږى.نوچونكه دالله تعالى داحكاماتو پوره كولودپاره كيږى.نولكه چه دا بيعت دالله تعالى سره كيږى. بيعت على الجهاد ، بيعت على الاسلام.بيعت دپاره د پابندئ د شريعت كوم چه د صوفياء كرامو ﷭ په نيزرائج دې په دې كښې د شريعت د پابندئ اود توبې الفاظ څو عام طور استعماليږى.خود موقعه اومحل په مناسبت سره بعضې وخت د خاصو خبرو ذكر په كښې هم راځي.لكه د ښځونه دبيعت اخستلو په وخت كښې دا لوظ اخستې شوې وو.چه دوى به په مړى باندې وير(ژړا) نه كوى.ځكه چه په ښځوكښې عام طور د وير عادت وى. او د حضرت جرير ؓ نه د مسلمانانود خيرخواهئ وعده اخستې شوې وه.ځكه چه په هغه كښې ئې ددې خاص صلاحيت محسوس كړې وو.دې بيعت ته بيعت سلوك يا بيعت احساني وائى.د دې مقصد د شريعت په تابعدارئ كښې دكمال په ذريعه ولايت خاصه او وصول الى الله مقام ته رسيدل دى.هم دا ذريعه ده دالله تعالى د نسبت حاصلولو،كوم خلق چه ددې نه انكاركوى.يا جاهلان دى.اويا ئې ځان په زور جاهلان كړى دى.

دحضرت عباده ؓ په حديث كښې دى.چه نبى ﷺ صحابو ؓ ته اوفرمائيل چه ،،بايعونى،، نو هغوى عرض اوكړلو.،،بايعناك يارسول الله،،چونكه بيعت على الاسلام شوې وو.خونبى ﷺ بيا ،،بايعونى،، اوفرمائيل.اوبيعت ئې واخستل.حالانكه بيعت على الاسلام اخستې شوې وو. اوهلته د جهاد موقع نه وه.نوځكه دې ته بيعت احسان ونيلى شى.
يوبيعت د تبرك دپاره وى.لكه د وړوكي ماشوم ،اويا ديو لوئې بزرګ نه د تبرك په قصد بيعت واخستې شي.دغه شان دالله تعالى د ولى په لاس د توبې په غرض هم په بيعت كولو كښې څه قباحت نشته.والله اعلم
كوم كسان چه د مال اوزر يا دځپل شهرت دپاره دبيعت سلسله جارى كوى اود سنت تابعدارئ سره دهغوى څه تعلق نه وى.ددوى نه بيعت كول د ګمراهئ او ضلالت نه سوا بل څه نه دى.ددې وجې هغه حضرات چه اهل الله وى.چه د بيعت كومه سلسله قائموى.هغوى د بيعت اجازت وركولو ډير زيات اهتمام كوى.هغوى هريوكس ته اجازت نه وركوى.ځكه چه په دې سره ګمراهى او فساد خوريږى.
**په حديث الباب كښې د ذكرشوى بيعت واقعه كله پيښه شوې وه؟** رسول الله ﷺ چه د كوم

---

[1] سنن نسائى (۱۸۰۱۲) كتاب البيعة باب البيعة على النصح لكل مسلم)۔
[2] سورة الفتح ⑩۔

بيعت په باره كښې فرمائيلى وو چه ،،بايعوني على أن لا تشركوا بالله شيأ،،..دا په كوم وخت كښې واقع شوې وو په دې كښې اختلاف دې

د قاضى عياض رحمه الله اوددوى د متبعينو رائې دا ده چه دا بيعت العقبة د هجرت نه وړاندې په ليلة العقبه كښې واقع شوې وو .[1]

دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې دا ده.چه دا بيعت د ليلة العقبه په شكل يوبل بيعت دې.كوم چه د هجرت بلكه د فتح مكه نه پس واقع شوې دې.[2] حافظ رحمه الله دا خبره په مختلفو طريقو سره مبرهن او مدلل كړې ده.

ددوى اولنې دليل دا دې.چه د بيعت العقبه الفاظ جدا دى.او ددې بيعت الفاظ جدا دى.د بيعة العقبه الفاظ ابن اسحاق رحمه الله نقل كړى دى.،،أبايعكم على أن تمنعوني مما تمنعون منه نسائكم و أبنائكم،،[3]

دغه شان د بخارى شريف په روايت كښې دى.،،دعانا النبي ﷺ فبايعناه فقال فيما أخذ علينا أن بايعنا على السمع والطاعة في منشطنا ومكرهنا وعسرنا ويسرنا..،،[4]

دغه شان په مسند احمد اوطبرانى كښې دى.دحضرت عباده او ابوهريره رضي الله عنهما په مينځ كښې خبرې اوشوې.نوحضرت عباده رضي الله عنه اوفرمائيل.،،يا أباهريرة إنك لم تكن معنا إذ بايعنا رسول الله ﷺ على السمع والطاعة في النشاط والكسل،وعلى النفقة في العسر واليسر،وعلى الأمر بالمعروف والنهى عن المنكر،وعلى أن نقول في الله تبارك وتعالى ،ولا نخاف لومة لائم فيه،وعلى أن ننصر رسول الله ﷺ إذا قدم علينا يثرب،فنمنعه مما نمنع منه أنفسنا وأزواجنا وأبناءنا،ولنا الجنة فهذه بيعة رسول الله ﷺ التي بايعنا عليها..،،[5]

دويم دليل دا دې.چه ددې روايت په بعضى طرقو كښې واقع دى.،،لاننتهب،،[6] ددې نه نهبة العساكر مراد ده.په جهاد كښې چه كله مال غنيمت جمع شى.نوپه دغه وخت كښې بعضې مجاهدين ټونګې لګول شروع كړى اولوټ ماركوى.ددې نه منع كړې شوې ده.اوجهاد مشروعيت دهجرت نه پس شوې دې.نومعلومه شوه.چه دا په ليلة العقبه كښې نه وه.بلكه دهجرت نه پس بيعت كښې شوې وو.

---

[1]) فتح البارى(١\٦٦)_

[2]) پورته حواله)_

[3]) سيرت ابن هشام (١\٢٧٥) البيعة الثانية الكبرى بالعقبة)_

[4]) صحيح بخارى كتاب الفتن باب قول النبي ﷺ ..سترون بعدى أمورا تنكرونها.. )_

[5]) مسند أحمد (٥\٣٢٥) ومجمع الزوائد(٥\٢٢٦) كتاب الخلافة باب لا طاعة فى معصية)_

[6]) صحيح بخارى كتاب مناقب الأنصار.باب وفود الأنصار إلى النبي ﷺ بمكة: وبيعة العقبة.رقم ٣٨٩٣)_

دريم دليل دا دي چه د نبى ﷺ سره چه دلته د كوم بيعت تذكره ده.نوپه دې بيعت كښې د سورة ممتحنه د آيت ذكرپه بعضې طرقو كښې راغلې دې په بخارى كتاب الجهاد كښې دى ،،قرء هذه الآية كلها،،(١)اوپه كتاب التفسير كښې دى ،،وقرأ آية النساء(٢)اود صحيح مسلم په روايت كښې دى،،فتلى علينا آية النساء أن لايشركن بالله شيأالخ،(٣)اودسنن نسائى په روايت كښې دى ،،ألاتبايعونى على ما بايع عليه النساء أن لا تشركوا بالله شيأ،،(٤)اود طبرانى په روايت كښې دى ،،بايعنا رسول الله ﷺ على ما بايع عليه النساء يوم فتح مكة،،(٥)اودغه شان د مسلم په روايت كښې دى ،،أخذ علينا رسول الله ﷺ كما أخذ على النساء(٦)اوښځو د حديبيه نه پس د فتح مكه په ورځ باندې بيعت كړې وو.اودا بيعت د ښځو دبيعت موافق واقع شوې وو.نوهركله چه دښځو بيعت د فتح مكې نه پس واقع شوې دې.نوښكاره ده.چه دا بيعت روسته شوې دې.

څلورم دليل دا دې چه ابن ابى خيثمه په خپل تاريخ كښې د..عمروبن شعيب عن ابيه عن جده.. په سند سره نقل كړى دى.چه ،،قال رسول الله ﷺ أبايعكم على أن لا تشركوا بالله شيأ،، (٧)ددې نه ښكاره معلومه شوه.چه حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه په دې بيعت كښې شريك وو.اودوى د حضرت ابوهريره رضی الله عنه داسلام قبولوسره نزدې مسلمان شوې وو.اوحضرت ابوهريره رضی الله عنه په اوومه هجرئ كښې مسلمان شوې وو.

دغه شان د طبرانى په يو روايت كښې دحضرت جرير رضی الله عنه نه نقل دى.چه ،،بايعنا رسول الله ﷺ على مثل ما بايع عليه النساء،، (٨) اوحضرت جرير رضی الله عنه اسلام ډير روسته راوړې ې. واقدى رحمه الله ليكلى دى.چه دې په ١٠ هـ كښې مسلمان شوې وو.(٩)

بهرحال ددې ټولو دلائلو يوځائې كولو نه دا معلوميږى.چه په دې حديث كښې چه د كوم بيعت ذكردې.نوهغه دهجرت نه پس يا دفتح مكه نه پس شوې دې.اوپه اصل كښې حضرت عباده رضی الله عنه په بيعة عقبه كښې شريك وو.اودا يواهم بيعت وو.چونكه په دې سره د اسلام د ترقئ بنياد كيخودې شو.ځكه ئې ددې تذكره كوله.(١٠)

---

(١) صحيح بخارى كتاب الحدود باب الحدود كفارة رقم ٦٧٨٤)_

(٢) صحيح بخارى كتاب التفسير،سورة الممتحنة باب إذا جاءك المومنات يبايعنك رقم ٤٨٩٤)_

(٣) صحيح مسلم (٢\٧٣) كتاب الحدود باب الحدود كفارات لأهلها)_

(٤) سنن نسائى (٢\١٨١) كتاب البيعة باب البيعة على الجهاد )_

(٥) فتح البارى (١\٦٦)_

(٦) صحيح مسلم (٢\٧٣) كتاب الحدودباب الحدود كفارات لأهلها)_

(٧) فتح البارى (١\٦٧)_

(٨) پورته حواله)_

(٩) ابن سعد رحمه الله فرمائى...أسلم فى السنة التى قبض فيها النبى ﷺ. طبقات (٦\٢٢) ترجمة جريربن عبدالله)

(١٠) فتح البارى (١\٦٧)_

علامه عينى رحمه الله د حافظ ابن حجر د دلائلو ترديد كړې دې اوپه دې باندې ئې دليل پيش كړې دې چه دا بيعت ،بيعت دليلة العقبه وو چه په دې حديث كښې د ،،وحوله عصابة،، الفاظ دى اود ،،عصابة،، تفسيرپه دوولسو نقيبانوسره شوې دې اودنسائى په روايت كښې د ،،رهط،، لفظ دې د كوم اطلاق چه په لسو يا ددې نه كمو باندې كيږى كه دا بيعة العقبه نه وو بلكه بل بيعت وو نو په دې كښې به په زرګونو خلقو شركت كړې وو صرف د عصابه يا رهط د شركت څه سوال دې؟ (۱)

دغه شان علامه عينى رحمه الله يودليل دا پيش كړې دې چه دنسائى په روايت كښې دى ،،بايعت رسول الله ﷺ ليلة العقبة فى رهط،، الفاظ راغلى دى.((بايعت رسول الله ﷺ ليلة العقبة فى رهط)) په دې كښې د ((ليلة العقبة)) تصريح شته.(۲) نومعلومه شوه چه دا د اولنى بيعت ذكر دې اوتركومې پورې چه د طبرانى په روايت كښې د ،،يوم فتح مكة،، تصريح ده.نوددې نه دا نه لازميږى چه دا بيعت اوهغه بيعت يو وي وى.بلكه كيدې شى چه دواړه جدا جدا وى.اوحضرت عباده رضى الله عنه دويم بيعت كښې هم شريك وو.كوم چه د فتح مكه په موقع باندې شوې وو.(۳)

دريم دليل علامه عينى رحمه الله دا پيش كړې دې چه د صنابحى رضى الله عنه په روايت كښې ددې بيعت ذكر داسې راغلې دې.،،إنى من النقباء الذين بايعوا رسول الله ﷺ وقال: بايعناه على أن لانشرك بالله شيأ..(۴)

په دې روايت كښې حضرت عباده رضى الله عنه تصريح كوى چه زه په بيعت كونكو نقيبانو كښې ووم.او بيا فرمائى.،،بايعناه على أن لا نشرك بالله..،، ددې نه معلومه شوه. چه دا بيعت په ليلة العقبه كښې شوى وو.(۵)

تركومې پورې چه د حافظ رحمه الله په ،،لاننتهب،، باندې داستدلال تعلق دې.نودا حافظ رحمه الله د مال غنيمت سره خاص كړې دې اوفرمائيلى ئې دى.چه دجهاد مشروعيت روسته شوې وې.نو ددې تعلق د ليلة العقبه سره نه دې.بلكه د روستنى بيعت سره دې.

علامه عينى رحمهما الله فرمائى.چه دا د مال غنيمت سره خاص كول تحكم دې. اودلغت

---

۱) عمدة القارى (۱\۱۵۸)_

۲)علامه عينى اوحافظ قسطلانى رحمهما الله هم دا الفاظ نقل كړى دى.خود سنن نسائى په مطبوعه نسخوكښې د ..ليلة العقبة.. تصريح چرته نشى موندې.عمدة (۱\۱۵۸) وارشاد السارى (۱\۱۰۱)_

۳) عمدة القارى(۱\۱۵۹)_

۴) صحيح بخارى كتاب مناقب الأنصارباب وفود الأنصار رقم ۳۸۹۳ وصحيح مسلم (۲\۷۳) كتاب الحدود باب الحدود كفارات لأهلها)_

۵) عمدة (۱\۱۵۹)_

مخالف دي بلكه په دې ((الانتهاب في المغانم وغيرها)) دواړه داخل دي.(١)
ترکومې پورې چه دآیت د تلاوت تعلق دې.اوپه هغې باندې چه حافظ رحمه الله استدلال کړې دې.نوچه بیعت نساء په فتح مکه کښې شوې وو.نوعلامه عینی رحمه الله فرمائي چه د عقبه اولی د بیعت په موقع باندې د آیت تلاوت نه وو شوې.اوپه روایاتوکښې چه د آیت د تلاوت کوم ذکردې.نوپه دې کښې احتمال شته.چه حضرت عباده رضي الله عنه په روستنو بیعتونوکښې شریک شوې وو.اوپه هغې کښې د آیاتونو تلاوت شوې وو.دکوم ذکرچه حضرت عباده رضي الله عنه دخپل بیعت په واقعه کښې بیان کړې ده.(٢)والله سبحانه اعلم

**قوله: عَلَىٰ أَنْ لَا تُشْرِكُوا بِاللَّهِ شَيْئًا:** یعنی زما په لاس باندې بیعت اوکړئ.په دې خبره چه دالله تعالی سره به څوك نه شریکوئ.

د شرك اطلاق ، شرك فی الذات شرك فی الافعال.شرك فی العبادات ټولوته شامل دې.اوکله ریاء ته هم شاملیږی.په حدیث کښې دې ته شرك اصغروئیلې شوې دې.په ظاهره ددې نه دلته هم شرك اکبر مراد دې.ځکه چه په کتاب اوسنت کښې کله د شرك لفظ واخستې شی.نوددې نه هم دا مراد وی.علامه طیبی رحمه الله دا په شرك اصغرباندې محمول کړې دې.(٣)

**قوله: وَلَا تَسْرِقُوا :** اوپه دې خبره باندې چه غلا به نه کوئ.د گناه کبیره ده.ددې سزا په قرآن کښې لاس کټ کول بیان شوی دی.(٤)

**قوله: وَلَا تَزْنُوا :** زنا هم گناه کبیره ده.که زانی غیرمحصن وی.نودده سزا په قرآن کښې سل کوړې راغلی دی.(٥)اوکه محصن وی.نوپه حدیث کښې ددې سزا رجم راغلې دې.پخپله نبی کریم صلی الله علیه وسلم رجم کړې دې.(٦)

---

(١) پورته حواله)_
(٢) پورته حواله)_
(٣) فتح الباری (١\٦٥)_
(٤) قال الله تعالی: ﴿وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا جَزَاءً بِمَا كَسَبَا نَكَالًا مِنَ اللَّهِ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾(سورة المائدة \٣٨)_
(٥) قال الله تعالی:﴿الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ﴾ (سورة نور\٢)_
(٦) قال عمربن الخطاب رضي الله عنه وهو جالس علی منبر رسول الله صلی الله علیه وسلم إن الله قد بعث محمداً صلی الله علیه وسلم بالحق.وأنزل علیه الکتاب.فکان مما أنزل علیه آیة الرجم قرأناها ووعیناها وعقلناها فرجم رسول الله صلی الله علیه وسلم ورجمنا بعده.فأخشی إن طال بالناس زمان أن یقول قائل ما نجد الرجم فی کتاب الله فیضلوا بترک فریضة أنزلها الله وإن الرجم فی کتاب الله حق علی من زنی إذا أحصن من الرجال والنساء إذا قامت البینة أو کان الحبل أو الإعتراف صحیح مسلم (٢\٦٥) کتاب الحدود باب حد الزناء) درجم سره متعلقه د ټولوضروری اوتفصیلی مباحثودپاره اوگورئ (تکمله فتح الملهم (٢\٤١٨-٤٣٣)_

**قوله** وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ: خپل بچی مه قتلوئ

په عربوکښې دبچو قتلولويو رواج وو.هغوی به خپل بچی ژوندي ښخول. نو نبی کریم ﷺ ددې نه منع اوکړله.څکه چه اول خوقتل جرم دې اوبيا خود ماشومانو قتل په څو وجوهو سره ډير قبيح دې اول خودډې وجې چه ماشومان بې ګناه دی.دويم دا چه دا ډيرشنيع فعل دې چه ژوندې په قبرکښې دفن کولې شی.دريمه دا چه په دې کښې دقتل سره دصله رحمئ کټ کول دی.څلورمه وجه دا ده.چه ماشومان غريبانان کمزوری وی.هغوی داسې نه وی.چه مزاحمت او مقابله اوکړی. اوخپل ځان بچ کړی.هسې هم د بې ګناه قتل په هرصورت کښې ناجائزدې که اولاد وی اوکه غيراولادوی.زما مطلب دا دې.چه د اولاد تخصيص د پورتنو وجوهو دوجې اوشو.ګنی هسې هم عام قتل ناجائز دې.که ورکوټې وی اوکه لوئې.ماشوم وی اوکه بالغ وی.(١)

**داولاد دقتل وجه اودقران عجيبه طرزبيان** ددې نه پس په دې پوهه شئ.چه عربو به د درې وجو ماشومان قتل کول. جينکئ خو به ئې د شرم د وجې قتل کولې.په قرآن پاک کښې دی. ﴿وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِالْأُنثَىٰ ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا وَهُوَ كَظِيمٌ ۝ يَتَوَارَىٰ مِنَ الْقَوْمِ مِن سُوءِ مَا بُشِّرَ بِهِ ۚ أَيُمْسِكُهُ عَلَىٰ هُونٍ أَمْ يَدُسُّهُ فِي التُّرَابِ ۗ﴾(٢)

اوبعضې وخت به هغوی ددې ويرې په وجې بچی قتل کول.چه د لوږې د وجې به ورسره دخپل ځان د هلاکت ويره وی.الله تعالی ددې نه منع اوکړله.ارشاد فرمائی. ﴿وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُم مِّنْ إِمْلَاقٍ ۖ﴾(٣)

اوبعضې وخت به ئې ددې وجې قتل کول.چه مونږ خو به په څه طريقه باندې ګذاره اوکړو. خو زمونږ بچی به څه کوی.د بچو د لوږې ويره اواحساس به ددوی د قتل سبب ګرځيدلو په دې دواړو صورتونوکښې د قتل فعل د جينکو پورې خاص نه وو.بلکه هلکان اوجينکئ ټول به ئې قتل کول.الله تعالی ددې نه منع اوفرمائيله. ارشاد دې. ﴿وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُم مِّنْ إِمْلَاقٍ ۖ نَّحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ ۖ﴾(٤)

بيا دلته سوچ اوکړئ چه الله تعالی په اول ځائې کښې ،،نرزقکم واياهم،، اوپه دويم ځائې کښې ،،نرزقهم واياکم،، ددې وجې فرمائيلی دی.چه په اولنی صورت کښې خو ورسره خپل فکر وو. نو الله تعالی هغه فکرلرې کړلو.اووې فرمائيل چه تاسو د کومې خبرې فکر کوئ. مونږ تاسو ته هم روزی درکوو.اوڅوك چه تاسو زيړولی دی.هغوی ته هم روزی ورکوو.اوپه دويم

---

١) فتح الباری(١\٦٤، ٦٥) عمدة القاری(١\١٥٩)_

٢) سورة النحل (٥٨، ٥٩)_

٣) سورة الانعام\١٥١)

٤) سورة اسراء:(٣١)_

صورت کښې خپل فکرخو نه وی بلکه دبچو فکروی چه ددوی په وجه به زمونږ روزی کمه شی اوهغوی به هم د لوږې اوفاقه ښکارشی نوځکه ئې اول د بچو د روزئ وعده اوکړله او ارشادئې اوکړلو ،،نحن نرزقهم وإياكم،،چه مونږ دوی ته هم روزی ورکوو اوتاسو ته هم.[1] ددې نه د قرآن کریم په سیاق کښې د تبدیلئ عجیبه اندازه کیږی والله اعلم

**قوله وَلَاتَأْتُوابِبُهْتَانٍ تَفْتَرُونَهُ بَيْنَ أَيْدِيكُمْ وَأَرْجُلِكُمْ:** اوتاسوداسې بهتان مه لګوئ کوم چه تاسودخپلو لاسونو اوپښوپه مینځ کښې جوړ کړې وی بهتان هغه دروغو ته وائی کوم چه اوریدونکې چپ کړی.[2]

بیا دلته سوال کیږی چه صرف ،،لاتأتوا ببهتان،،وئیل کافی وو د ،،تفترونه،،اود ،،بين أيديكم وأرجلكم،،راوړلو څه ضرورت وو؟

ددې جواب دا دې چه ددې فعل شنیع د مزید قباحت اوشناعت ښکاره کولو دپاره داطناب دا طریقه اختیار کړې شوه.[3] بیا د ،،بين أيديكم وأرجلكم،،مختلف معانی بیان شوی دی.

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه ددې مطلب دادې ،،لاتأتوا ببهتان من قبل أنفسكم،،او ،،أيدى،، او،،ارجلكم،،د ذات نه کنایه ده.ځکه چه اکثرافعال هم ددې نه صادریږی کله داسې کیږی چه سړی ته دقولی جنایت دوجې سزا ملاویږی. خونیلی شی،،هذابماكسبت يداك،،[4]

یومطلب دا بیان شوې دې چه د ،،ما بين الأيدى والأرجل،، جوړ شوې بهتان نه زړه مراد دې اومطلب دا دې چه په خپل زړه کښې په چا باندې بهتان مه لګوئ.[5]

امام خطابی رحمه الله فرمائی چه ،،بين أيديكم وأرجلكم،،نه مراد دا دې چه ،،لاتبهتوا الناس بالمعايب كفاحا مواجهة،، یعنی په خلقو باندې مخامخ په مخامخ بهتان مه لګوئ اودا داسې دی لکه چه وئیلی شی،،فعلت هذا بين يديك،،[6]

علامه تیمی رحمه الله په دې باندې اعتراض کړې دې اوفرمائیلی ئې دی چه دا صحیح نه ده. ځکه چه عربیان دا خووائی چه ،،فعلته بين أيدى القوم،، خو دا نه وائی چه ،،فعلته بين أرجلهم،،ددوی نه دا چرته منقول نه دی.[7]

---

[1] تفسیرابن کثیر(۲\۱۸۸) سورة انعام)_
[2] شرح کرمانی(۱\۱۰۶)_
[3] شرح کرمانی (۱\۱۰۶)_
[4] شرح کرمانی(۱\۱۰۶)_
[5] شرح کرمانی(۱\۱۰۶)_
[6] شرح کرمانی(۱\۱۰۶)_
[7] شرح کرمانی(۱\۱۰۶)_

علامه كرماني رحمه الله فرمائي چه دعلامه خطابى رحمه الله قول ته غلط ونيل ټيك نه دى.څكه چه دا خو صحيح دى چه ،،فعلته بين أرجلهم،، نه وائي خو په ،،فعلته بين أيدى القوم وأرجلهم،، ونيلو كښې څه قباحت نشته.لكه چه مراد او مقصود خو د ،،أيدى،، ذكر دې.او ،،ارجل،، د تاكيد دپاره راوړلې شوې دې.(١)

عارف ابن ابى جمره رحمه الله فرمائي.چه كيدې شى.د ،،بين أيديكم،، نه مراد حال وى.اود ،،بين أرجلكم،، نه مراد مستقبل وى.دوى اشاره كړې ده په ،،بين أيديكم،، سره دې خبرې ته چه فى الحال هم تاسو بهتان مه لګوئ.او په ،،أرجلكم،، كښې اشاره ده روانيدو ته.اومطلب دا دې چه ددې ځائې نه بل خواه ته لاړ شئ.نوهم په مستقبل كښې په بل وخت كښې بهتان مه لګوئ.(٢)

بعضې حضراتو فرمائيلى دى.چه په اصل كښې دا د بيعة النساء په باره كښې بيان شوې وو.كيدل به دا چه ښځې به زنا اوكړله.بچې به ئې اوزيږلو.اوبچې به ئې بل چاته منسوب كړلو.نو ددې نه منع كړې شول.اودا زنا به ددوى د لاسونو او پښو په مينځ كښې كيدله.څوكله چه دا د سړو دپاره استعمال كړې شوه.نو ددې د تاويل ضرورت پيښ شو.(٣)

**قوله: وَلَاتَعْصُوافِي مَعْرُوفٍ:** اوپه ښه كاركښې نافرمانى مه كوئ.

بعضوفرمائيلى دى.چه معروف دې ته وائي.،،ماعرف حسنه من الشارع أمراً اونهياً،،(٤)يعني د كوم څيزحسن چه د شارع نه معلوم وى.برابره ده كه د امرد قبليې څنى وى اوكه دنهى څنى.

اوبعضو فرمائيلى دى.چه دمعروف معنى مشهور ده.يعنى د شارع نه ددغه كار كول ثابت او مشهور وى.(٥)بعضې فرمائي.چه ددې نه مراد طاعات دى.(٦)

بعضوفرمائيلى دى.چه ددې نه مراد .بر. او تقوى ده.(٧)

بعضو فرمائيلى دى.چه ،،هومالم ينه الشارع فيه،، يعنى هغه څيزچه په هغې كښې د شارع د طرفه نهى نه وى راغلې.(٨)

---

(١) شرح كرماني (١\١٠٦)_

(٢) فتح البارى (١\٦٥)_ وعمدة القارى (١\١٦٠)

(٣) فتح البارى(١\٦٥)-

(٤) فتح البارى (١\٦٥)_

(٥) عمدة القارى (١\١٥٥)_

(٦) عمدة القارى(١\١٥٥)_

(٧) عمدة القارى(١\١٥٥)_

(٨) عمدة القارى (١\١٥٥)_

صاحب د ،،النهایه،، ابن الاثیر رحمه الله فرمائی چه ،،وهواسم جامع لکل ما عرف من طاعة الله والتقرب إلیه والإحسان إلی الناس ،وکل ما ندب إلیه الشرع ونهی عنه من المحسنات والمقبحات،،[1] یعنی معروف یوه جامع کلمه ده. کومه چه ټولو امورو شرعیه ته شامل ده. برابره ده که هغه فرائض وی اوکه مندوبات وی که اخلاق او آداب وی اوکه هغه امور وی. دکومو نه چه شریعت مطهره منع کړې ده

بیا پوهه شئ: چه په دې کښې دې په دې خبره تنبیه ورکړې شوې ده چه په مخلوق کښې دچا په داسې ځیزکښې تابعداری کول چه په هغې کښې دالله تعالی نافرمانی وی. جائز نه دی. ځکه چه نبی ﷺ فرمائیلی دی. ،،لاتعصوا فی معروف،، دچا په ښه کار کښې مخالفت مه کوئ. نومعلومه شوه. چه په غیرمعروف کښې به نافرمانی کولې شی. ځکه چه په حدیث کښې راغلی دی. ،،لاطاعة فی معصیة الله إنما الطاعة فی المعروف،،[2]

په بعضې روایاتوکښې راغلی دی. چه ،،لا طاعة لمخلوق فی معصیة الخالق،،[3]

ددې حدیث په بعضې طرقو کښې د ،،لاتعصونی فی معروف،، الفاظ دی.[4]

**اشکال او جواب:** دلته یواشکال کیږی. هغه دا چه رسول الله ﷺ صرف د معروف حکم کوی. نوبیا ئې دا څنګه اوفرمائیل. چه په نیکئ کښې زما نافرمانی مه کوی.

ددې جواب دا دې. چه په اصل کښې نبی کریم ﷺ دا دې پورتنئ قاعدې ته د اشاره کولو دپاره فرمائیلې دی. چه ،،لاطاعة لمخلوق فی معصیة الخالق،،[5]

امام نووی رحمه الله د ،،لاتعصوا فی معروف،، معنی بیانوی. اوفرمائی. چه ددې معنی دا ده. ،،لاتعصونی ولاأحد أولی الأمر علیکم فی المعروف،،[6] یعنی زما نافرمانی مکوئ. دغه شان چه ستاسو حاکمان چه دنیکئ کوم حکم کوی. نود هغوی نافرمانی مکوئ. لکه چه د معروف قید د نبی ﷺ دپاره

---

[1] النهاية لابن الأثير رحمه الله (٣\٢١٦) مادة (عرف)_

[2] صحيح مسلم (٢\١٢٥) كتاب الإمارة باب وجوب طاعة الأمراء في غير معصية وتحريمها في المعصية وسنن نسائی (٢\١٨٦) كتاب البيعة باب جزاء من أمر بمعصية فأطاع وسنن أبي داود كتاب الجهاد باب في الطاعة رقم ٢٦٢٥) وصحيح بخاری كتاب أخبارالأحاد باب ما جآء في إجازة خبرالواحد الصدوق رقم ٧٢٥٧)

[3] درمنثور (١\١٧٧) آیت (يايهاالذين أطعنوا الله وأطيعوا الرسول واولى الامرمنكم) ومجمع الزوائد (٥\٢٢٦) كتاب الخلافة باب لا طاعة في معصية)_

[4] صحيح بخاری كتاب مناقب الأنصار باب وفود الأنصار إلى النبي ﷺ بمكة وبيعة العقبة رقم ٣٨٩٢)_

[5] فتح الباری(١\٦٥)_

[6] فتح الباری(١\٦٥)-

نه دي بلکه د روستو راتلونکو امرانو او خليفه ګانو دپاره دي.چه په نيکئ کښې د هغوی تابعداری لازم ده.

په دې باندې داسې پوهه شي.چه نبی ﷺ ،،لاتعصونی فی معروف،،ددې دپاره نه وو وئيلی.چه د نبی ﷺ نه ددې خبرې د صادريدو احتمال وو.چه د غيرمعروف حکم اوکړی.بلکه ددې دپاره ئې داسې وئيلی وو.چه د دوی نه پس به خلفاء راځی. او د هغوی نه پس به نور خلفاء راځی.اوهغوی به هم بيعت کوی.د نبی ﷺ نه خو ددې خبرې احتمال نشته.چه دخلاف معروف حکم به ورکړی.خو نور خلق چه روسته به بيعت اخلی.په هغوی کښې خو ددې امکان موجود دې.نو دهغوی خيال ساتلو سره نبی ﷺ وفرمائيل. ،،لاتعصونی فی معروف،،لکه څنګه چه په قرآن کريم کښې دی. ﴿لَئِنْ أَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾[1]د پيغمبر ﷺ نه د شرك د صدور څه امکان نه وی.خونورو ته تنبيه ورکول مقصود دی که دوی د شرك ارتکاب اوکړلو.نوددوی اعمال به ضائع او برباد شی.نودغه شان دلته هم يوجواب دا ورکړې شوې دې.چه ،،لاتعصونی فی معروف،، نبی ﷺ ددې وجې څکه اونه فرمائيل.چه د نبی ﷺ نه د معصيت د امر څه امکان نه وو.بلکه د سامعينو د تطييب قلوب دپاره نبی ﷺ داسې اوفرمائيل.لکه چه ددې خبرې تنبيه ئې ورکړله.چه ددوی زړونه خوشحاله کړل.چه زه تاسو ته هم د نيکئ حکم کوم.دکوم چه د شريعت نه حسن معلوم شوې وی.اود شريعت نه د کوم ثبوت وی.[2]

**په حديث کښې د منهياتو په ذکرباندې اکتفاء ولې اوکړې شوه** دلته دويم اشکال دا دې.چه نبی ﷺ ،،لاتشرکوا بالله شيأ،ولاتسرقوا،ولاتزنوا،ولا تقتلوا أولادکم ولاتأتوا ببهتان تفترونه بين أيديکم وأرجلکم ولاتعصوا فی معروف،،ذکراوکړلو.دا ټول منهيات دی.د اوامرو.فرائضو واجباتو نبی ﷺ ذکراونکړل.دا خو نامکمله بيعت دې.

ددې جواب دا دې.چه دغور کولوضرورت دې.څکه چه نبی ﷺ ،،ولاتعصوا فی معروف،، فرمائيلی دی.ددې معنی دا ده.چه دکوم څيز زه حکم ورکوم.هغه به معروف وی.اودهغې کول به ضروری وی.نوپه دې کښې مونځ روژه حج زکاة اوټول فرائض او واجبات راغلل.[3]

**قوله** فَمَنْ وَفَى مِنْكُمْ فَأَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ: کوم کس چه په تاسوکښې د دې بيعت تقاضې پوره کړی اوپه خپلوعدو اومعاهدو باندې وفا اوکړی نودهغه اجرپه الله تعالى باندې دې.

ياد ساتئ چه دا وجوب استحساني دې.وجوب حتمی نه دې.په الله تعالى باندې څه څيز

---

[1] الزمر:٦٥)_
[2] عمدة القاری(١٦٠\١)_
[3] فتح الباری(٦٥\١) وعمدة القاری(١٦٠\١)_

واجب نه دي (١)هغه مختار كل دي. ﴿ لَا يُسْـَٔلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْـَٔلُونَ ﴾ (٢)
دا بيله خبره ده.چه هغه كومه خبره اوكړي.نودهغې پوره كول يقيني خبره ده. په دې تيقن باندې دلالت دپاره د ،،على،،صيغه استعمال شوې ده.لكه چه دا خودلى شى كه تاسو وعده پوره كړئ اود بيعت په مقتضى باندې عمل اوكړئ نودالله تعالى د طرفه اجر اوثواب يقيني دې الله تعالى استحساناً په خپل خان باندې دا واجب كړې دې.

**قوله** : وَمَنْ أَصَابَ مِنْ ذَٰلِكَ شَيْئًا فَعُوقِبَ فِي الدُّنْيَا فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ: كوم كس چه په دې گناهونوكښې د يوې ارتكاب اوكړي.اوبيا هغه ته په دنيا كښې سزا وركړې شى.نوهغه به دده دپاره كفاره شى.

**ايا كه د شرك په وجه چاته د قتل سزا وركړې شى نودا دده دپاره كفاره كيدې شى؟** په دې باندې اشكال دا دې.چه د حديث په شروع كښې دى.،،بايعوني على أن لا تشركوا بالله شيئاً،، اود ،،فهو كفارة له،،نه معلوميږى.چه كه يوكس د شرك په وجه قتل كړې شى.نودا قتل به د مشرك دپاره معافى كونكې اودنجات ذريعه ثابته شى.حالانكه په قرآن پاك كښې دالله تعالى ارشاد دې. ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ﴾(٣)

امام نووى رحمه الله فرمائى.چه دا حديث عام مخصوص البعض دې.او ،،ومن أصاب من ذلك شيأ فعوقب فى الدنيا فهو كفارة له،، كښې ،ذلك، نه مراد ،،ما سوى الشرك،، دې.دشرك خو نه معافى شته.اونه ددې څه كفاره شته.ددې تخصيص هم په دې آيت ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ﴾ (٤)

بعضې حضراتوفرمائيلى دى.چه د ،ذلك، اشاره د شرك نه علاوه نورو څيزونو ته ده.ځكه چه خطاب مسلمانانو ته دې.ددې تائيد دمسلم د روايت نه كيږى.په هغې كښې راځى.،،ومن أتى منكم حداً،،(٥)ښكاره ده كه د شرك په وجه چيرته قتل كړې شى.نودې ته حدنشى وئيلې.(٦)

خوپه دې جواب باندې اعتراض دې.چه په حديث كښې ،،فمن وفى،، كښې ،فاء، دپاره دترتب د ما بعد على ما قبل باندې ده.په دې كښې تخصيص نه وى. نوددې نتيجه به دا وى.چه كوم كس دا تقاضې پوره كړى.نوالله تعالى به هغه ته اجر وركړى.اوڅوك چه په دې كښې د

---

(١) فتح البارى(١\٦٥)_
(٢) سورة الأنبياء ٢٣_
(٣) سورة النساء(٤٨. ١١٦)-
(٤) شرح نووى على صحيح مسلم (٢\٧٣) كتاب الحدود باب الحدود كفارات لأهلها)_
(٥) صحيح مسلم (٢\٧٢) كتاب الحدود باب الحدود كفارات لأهلها)_
(٦) فتح البارى(١\٦٥)_

كوم يو څيز ارتكاب هم اوكړي كه هغه شرك ولې نه وي.اوپه هغه باندې په دنيا كښې سزا جاري شوه نودا به د هغه دپاره كفاره وي.

بيا چه مسلمانانوته خطاب شوې دې.نوددې نه دا نه لازميږي.چه دوى دې د شرك نه اونه ويرولى شي.لكه چه مسلمانانوته وئيلى شي.چه تاسو شرك مكوئ.د مسلم په روايت كښې د ..حد..لفظ راغلې دې.

نوددې جواب دا دې.چه دلته د حد نه اصطلاحى حد مراد نه دې.ځكه چه دا خو يوعرفى حادث څيز دې.بلكه ددې نه مراد قابل سزا څيز دې.[1]

دعلامه طيبى رحمه الله قول مونږ وړاندې ذكركړې دې.چه دلته هغوى د شرك نه شرك اصغريعنى ريا مراد اخلى.ځكه چه د شرك اكبر دپاره څه كفاره نشته. او هغوى فرمائى چه دلته ،،شيأ،،نكره راغلې ده.نوپه دې كښې دې خبرې طرف ته اشاره موندې شى.چه ځكه چه د ،،لاتشركوابالله شيأ،،د دې معنى ده،،اى شركاً اياماكان،،[2]

خوپه دې باندې اعتراض دې.چه دشارع په عرف كښې چه چيرته هم د مطلق شرك اطلاق كيږي.نوددې نه مراد مقابل د توحيد يعنى شرك اكبر اخلى.په قرآن او احاديثو كښې په ډيرو ځايونوكښې دا لفظ راغلې دې.په دې باندې د شرك اكبر نه علاوه بله معنى نه منطبق كيږي.[3]

ددې جواب دا وركولې شى.اګرچه عام طور ددې نه شرك اكبرمراد اخستې شى. خو د جمع او تطبيق دپاره كه مونږ د مجاز ارتكاب اوكړو.اوددې نه مجازاً شرك اصغرمراد واخلو. نوددې ګنجائش هم شته.اوپه دې كښې څه حرج نشته.[4]

دا جواب صحيح كيدې شو.خوپه حديث الباب كښې دى.،،ومن أصاب من ذلك شيأ فعوقب فى الدنيا،،چه كوم كس په دې څيزونوكښې دكوم څيزارتكاب اوكړي. او بيا ده ته په دې باندې په دنيا كښې سزا ملاؤ شى.نولكه چه په دې څيزونوباندې دنياوى سزا مقرر ده.حالانكه په ريا باندې دنياوى سزا مقرر نه ده.[5]

ددې نه معلومه شوه.چه دلته د شرك نه هم شرك اكبر مراد دې.اودا مخصوص دې يا خوپه آيت قرآنى ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ﴾ سره اويا په اجماع سره.[6]

---

[1] فتح البارى(۱۱\۶۵)_

[2] الكاشف عن حقائق السنن (۱۱\۱٤۱) رقم ۱۸)_

[3] فتح البارى(۱۱\۶۵)-

[4] فتح البارى(۱۱\۶۵)_

[5] فتح البارى (۱۱\۶۵)_

[6] قاله العينى رحمه الله فى العمدة(۱ج\۱۵۷)_

**حدودکفارات دی اوکه صرف زواجر** ددې نه پس پوهه شی چه ددې حدیث پاك نه معلومیږی. چه په شریعت کښې دکومو گناهونو حدود واقع شوی دی که دهغې حدود په دغه مرتکب باندې قائم کړې شی نودا کفاره جوړیږی امام بخاری رحمه الله په کتاب الحدود کښې په دې حدیث د ،،باب الحدود کفارة،،ترجمه منعقد کړې ده (۱)

امام شافعی رحمه الله په «کتاب الأم» کښې په دې حدیث باندې د «باب أن الحدود کفارة» ترجمه منعقد کړې ده.(۲)

چه دا مسئله مختلف فیها ده چه حدودکفارات دی اوکه نه.د مجاهد .زیدبن اسلم .سفیان ثوری.امام شافعی امام احمد .امام بخاری اومحدثینو رحمهم الله رائې ده.چه حدود کفارات دی. دسعیدبن مسیب.صفوان بن سلیم.ابومحمد البغوی او ابوعبدالله بن تیمیه . رائې د اده چه کفارات نه دی.(۳)

حافظ ابن حجر رحمه الله اوصاحب د عقیدة السفارینی رحمه الله هم دا د علامه ابن حزم رحمه الله نه هم نقل کړه دی.(۴)خودا وهم دې.علامه موصوف په خپل کتاب ،،المحلی،، کښې تصریح کړې ده.چه حدود کفارات دی.صرف حدمحاربه کفاره نه ده.(۵)

د احنافو رحمهم الله څه مسلك دې.په دې کښې لږ غوندې اختلاف معلومیږی. اګرچه په متاخرینو کښې داختلاف تذکره نشته.علامه ابن الهمام.په فتح القدیر کښې(۶)وهم د دوی په اتباع کښې علامه زین بن نجیم رحمه الله په البحرالرائق کښې (۷)اوعلامه علاؤ الدین سبکی رحمه الله په درمختارکښې(۸)لیکلی دی.چه زمونږ په نیزحدود کفارات اوسواترنه دی.بلکه زواجردی. دصاحب هدایه رحمه الله دکلام نه معلومیږی.چه په حدودو کښې دوه فائدې دی. یودا چه حدود زواجر دی.اوبل داچه سواتردی.اولنی مقصد اصلی دې.اودویم مقصد ضمنی اوتبعی دې دوی فرمائی.،،والمقصد الأصلی من شرعه الإنزجار عما یتضرر به العباد، والطهارة لیست أصلیة فیه،بدلیل شرعه فی حق الکافر،،(۹)

---

۱) بخاری شریف (۲\۱۰۰۳)_

۲)کتاب الأم (۶\۱۳۸) کتاب الحدود وصفة النفی)_

۳) عقیدة السفارینی.(۱\۳۲۰) وفتح الباری(۱\۶۸)_

۴) عقیدة السفارینی (۱\۳۲۰) وفتح الباری(۱\۶۸)

۵)المحلی لابن حزم رحمه الله(۱۱\۱۲۴) کتاب الحدود .مسألة :هل الحدود کفارة لمن أقیمت علیه أم لا مسألة (۲۱۶۶)

۶) ۵\۲) کتاب الحدود)_

۷) ۵\۲)-

۸) ۳\۱۵۴) فاتحة کتاب الحدود)_

۹) هدایه(۵\۳) مع شرح فتح القدیر کتاب الحدود)_

صاحب دعنايه رحمه الله فرمائی چه ددې نه معلوميږی چه د حدودو دوه مقاصد دی يواصلی اوهغه ،،الإنزجارعما يتضرر به العباد،، خکه چه ددې مشروعيت عام دې.اودويم مقصد غيراصلی دې.يعنی،طهارة عن الذنوب،، (١)

علامه ابن الهمام رحمه الله په دې دويم مقصد باندې اعتراض کړې دې.اوليکلی ئې دی،،وهو خلاف المذهب فإن المذهب أن الحد لايعمل فی سقوط إثم قبل سببه أصلاً،،(٢)يعنی داحنافو رحمهم الله مذهب دا دې چه دحددګناه په ساقطولوکښې څه کارکردګی نشته.دا صرف د زجردپاره دې.دستر دپاره نه دې.

خوحضرت کشميری رحمه الله فرمائی.چه په بدائع باب التعزير(٣) کښې ئې حدودوته کفارات وئيلی دی.دغه شان په ردالمختارکښې ئې د ملتقط الفتاوی نه نقل کړی دی.که په حج کښې يوکس جنايت اوکړی.اوجزاء ورکړی.نوګناه ترې ساقطه شوه.خوپه دې شرط چه عادت ئې جوړ نکړی.(٤)ګنی ګناه نه ساقطيږی.

دغه شان نجم الدين نسفی رحمه الله په التيسير، کښې تصريح کړې ده.که حدقائم کړې شواو ددې نه پس هغه کس ددې ګناه د ارتکاب نه منع شو.نودا به دده دپاره کفاره شی(٥)
دغه شان يوحنفی عالم رحمه الله .قاضی ابوالحسن طالقانی رحمه الله دې د امام قدوری رحمه الله شاګرد او زبردست عالم دې.اود قاضی ابوالطيب طبری شافعی رحمه الله سره ئې يوځل مناظره اوشوه.په دغه مناظره کښې علامه ابوالحسن طالقانی رحمه الله دا تصريح کړې ده.چه دحدودو مشروعيت د ګناه د پټولواوستردپاره شوې دې.(٦)

---

(١) العناية بهامش الهداية مع شرح فتح القدير(٥\٣) كتاب الحدود)_
(٢) فتح القدير(٥\٣.٢)_
(٣) بدائع الصنائع (٧\٦٤) كتاب الحدود فصل: وأما صفته أى صفة التعذير)_
(٤) كذا فى فيض البارى(١\٨٢) بحث نفيس فى أن الحدود كفارات أم لا والذى فى ردالمحتارهو: قال صاحب الملتقط فى كتاب الأيمان إن الكفارة ترفع الإثم وإن لم توجد منه التوبة من تلك الجناية اه (انظر(٢\٢١٧) كتاب الحج باب الجنايات)_
(٥) فيض البارى(١\٨٦) بحث نفيس فى أن الحدود كفارات أم لا وفى ردالمحتار(٢\٢١٧) ويؤيده (أى يويد ماقاله صاحب الملتقط ما ذكره الشيخ نجم الدين النسفى فى تفسيره ..التيسير.. عند قوله تعالى..فمن اعتدى بعد ذلك فله عذاب اليم.. أى اصطاد بعد هذا الإبتداء (لعل الصواب الإبتلاء كما فى الحاشية )قيل: هو العذاب فى الآخرة مع الكفارة فى الدنيا إذا لم يتب منه فإنها لا ترفع الذنب عن المصر.اه وهذا تفصيل حسن وتقييد مستحسن بجمع به بين الأدلة والروايات والله أعلم اهه أى فيحعل ما فى الملتقط على غيرالمصروما فى غيره على المصر..)_
(٦) طبقات الشافعية الكبرى لابن السكبى(٣\١٨٣. ١٨٤) دامناظره دص.١٨٣ نه تر١٨٩ پورې خوره ده.

حضرت كشميرى رحمه الله فرمائى چه ،،ولم يتحقق عندى ما مذهب الحنفية بعد،،(۱)زما په نيزتراوسه پورې دا خبره تحقيق ته نه ده رسيدلې چه داحنافو رحمهم الله په دې باره كښې څه مذهب دې.وجه دا ده.چه روسته متاخرين حضرات خودا ليكى.چه حدودو سواترنه دى زواجردى خودامام ابوحنيفه رحمه الله اوصاحبينو رحمهما الله نه په دې باره كښې څه صراحت منقول نه دې.امام طحاوى رحمه الله په مشكل الآثاركښې ددې حديث متعلق بحث كړې دې.خوديوعلمى انداز بحث ئې كړې دې.اواختلاف وغيره ته ئې څه تعرض نه دې كړې.(نوددې نه هم معلوميږى. چه زمونږ د اسلافو نه په دې كښې اختلاف منقول نه دې)

**دهغه چا دلائل چه حدود كفارات او سواتر كنړى** ددې حضراتويودليل دقرآن كريم آيت دې.چه ﴿فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ تَوْبَةً مِّنَ اللهِ﴾(۲)ددې نه معلوميږى چه صيام شهرين توبه ده.اودا د توبې په حيثيت مقرر شوى دى.اوددې روژو نيول هم توبه ده.

دويم دليل دحضرت عباده بن صامت رضي الله عنه دباب حديث دې.

دريم دليل دحضرت على رضي الله عنه حديث دې.چه ،،من أصاب حداً فعجل عقوبته فى الدنيا فالله أعدل من أن يثنى على عبده العقوبة فى الآخرة،، (۳)

څلورم دليل د حضرت ابوتميمه هجيمى رضي الله عنه روايت دې.چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى.«ان الله عزوجل إذا أراد بعبد خيراً عجل له عقوبة ذنبه فى الدنيا وربنا تبارك وتعالى أكرم من أن يعاقب على ذنب مرتين»(۴)پنځم دليل دحضرت خزيمه بن ثابت رضي الله عنه حديث دې.«من أصاب ذنباً أقيم عليه حد ذلك الذنب فهو كفارته»(۵) شپږم دليل دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما روايت دې.چه رسول الله فرمائيلى دى.«ماعوقب رجل على ذنب إلا جعله الله كفارة لما أصاب من ذلك الذنب»(۶)

---

۱) فيض البارى(۱\۸۶)_

۲) سورة النساء(۹۲)_

۳) سنن ترمذى كتاب الإيمان باب ما جآء لا يزنى الزانى وهو مؤمن رقم ۲۶۲۶ وأخرجه الحاكم أيضا فى مستدركه (۱\۷) كتاب الإيمان فائدة تعجيل العقوبة فى الحدود (۲\۴۴۵) كتاب التفسير .تفسير حم عسق (۴\۲۶۲) خاتمة كتاب التوبة والإنابة وصححه وأقره الذهبى رحمه الله)_

۴) مجمع الزوائد (۶\۲۶۵) كتاب الحدود والديات باب هل تكفر الحدود الذنوب أم لا قال الهيثمى وفيه هشام بن لاحق ترک أحمد حديثه وضعفه ابن حبان وقال الذهبى قواه النسائى ولهذا الحديث طرق فى مواضعها مجمع الزوائد (۶\۲۶۶)_

۵) مسند أحمد (۵\۲۱۴.۲۱۵) وسنن دارمى (۲\۲۲۷) كتاب الحدود باب الحد كفارة لمن أقيم عليه)_

۶) مجمع الزوائد (۶\۲۶۵) قال الهيثمى رواه الطبرانى فى الأوسط وفيه ياسين الزيات وهو متروک) دا خبره دې ښكاره وى.چه حافظ دې حديث ته د عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما روايت ونيلې دى.حالانكه په مجمع الزوائد كښې ابن عمر دې.دغه شان دفتح البارى مصحح د فتح البارى په حاشيه كښې ليكلى دى چه دریاض په مخطوطه نسخه كښې ..ابن عمر.. دې.والله اعلم (فتح البارى (۱\۶۸)_

اووم دلیل دحضرت خزیمه بن معمرانصاری رضی الله عنه حدیث دی.دوی فرمائی. ((رجمت إمرأة في عهد رسول الله صلی الله علیه وسلم فقال الناس حبط عملها،فبلغ ذلك النبي صلی الله علیه وسلم فقال هو كفارة ذنوبها وتحشر على ما سوى ذلك))(۱)

څوک چه حدودو ته زواجروائی دهغوی دلائل ددې حضراتو اولنې دلیل آیت محاربه دې.﴿ إِنَّمَا جَزَٰٓؤُا۟ ٱلَّذِينَ يُحَارِبُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَيَسْعَوْنَ فِى ٱلْأَرْضِ فَسَادًا أَن يُقَتَّلُوٓا۟ أَوْ يُصَلَّبُوٓا۟ أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم مِّنْ خِلَٰفٍ أَوْ يُنفَوْا۟ مِنَ ٱلْأَرْضِ ۚ ذَٰلِكَ لَهُمْ خِزْىٌ فِى ٱلدُّنْيَا ۖ وَلَهُمْ فِى ٱلْءَاخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ۞ إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُوا۟ مِن قَبْلِ...... ﴾(۲)

په دې آیت کښې د دقطع طریق اوډاکې د مختلفوحالاتو په اعتبار سره سزا متعین شوې ده فقهاؤ ددې تریب دا خودلې دې.که دا خلق صرف د قتل مرتکب شوی وی.نو ددوی سزا دا ده.﴿أَن يُقَتَّلُوٓا۟﴾ اوکه دوی د قتل سره د مالونو د لوټ کولو هم مرتکب شوی وی.نو د دوی سزا ﴿يُصَلَّبُوٓا۟﴾ ده.چه دوی په سولئ کړې شي.اوکه دوی صرف د مالونو لوټ کړې وی.اود قتل نوبت نه وی راغلې.نو ددوی سزا ﴿تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم مِّنْ خِلَٰفٍ﴾ ده.یعنی ددوی لاسونه اوپښې دې د مختلف طرفونو نه کټ کړې شی.اوکه دوی نه قتل کړې وی.اونه د مالونو لوټ کول.خوددې تیاری ئې کړې وی.اوپه دې باندې ئې اقدام کړې وی.نوبت نه د قتل راغلی وی.اونه د مالونو لوټ کولو.نود داسې خلقو سزا ده.﴿أَوْ يُنفَوْا۟ مِنَ ٱلْأَرْضِ﴾ چه دوی وطن نه اوشړلی شی.(۳)

وړاندې فرمائی.﴿ذَٰلِكَ لَهُمْ خِزْىٌ فِى ٱلدُّنْيَا ۖ وَلَهُمْ فِى ٱلْءَاخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾یعنی دا سزا دوی دپاره د دنیا په اعتبار سره رسوائی ده.اوپه آخرت کښې د دوی دپاره عذاب عظیم دې.

ګورئ دلته دوه ډلې خو هغه دی.څوک چه قتلولې او په سولئ کولی شی. او دوه ډلې هغه دی.کوم چه قتلولې نشی.البته پښې لاسونه ئې کټ کولې شی. او پریخودې شی.اوبله ډله هغه ده.چه د پښو لاسونو کټ کولو نه بغیرد وطن نه اوشړلی شی.په دې طریقه په دوی باندې حد جاری کولې شی.که چیرته حدود کفارات وې.نو بیا د ﴿وَلَهُمْ فِى ٱلْءَاخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾وعید ولې بیان شوې دې.دا وعید په دې خبره دلالت کوی.چه د حد جاری کیدو نه پس ددوی ګناه نه ده معاف شوې.ددې وجې خو ئې فرمائیلی دی.﴿إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُوا۟ مِن قَبْلِ....﴾ یعنی که دوی توبه اوباسی نود آخرت ګناه به ورته معاف شی

خوپه دې باندې اشکال دا دې.چه د آیت محاربه د نزول په باره کښې اختلاف دې.چه دا د کفارو مرتدینو په باره کښې نازل شوې دې که د مطلق ډاکوانو په باره کښې. برابره ده که

---

(۱)مجمع الزوائد (۶\۲۶۵) وفیه یحیی بن عبدالحمید الحمانی وهو ضعیف قاله الهیثمی)_

(۲) سورة مائدة: ۳۳،۳٤)_

(۳) معارف القرآن (۳\۱۲۱)_

هغه مومن وى اوكه كافر وى (١)

دامام بخارى رحمه الله رائې دا ده چه د مرتدينو كفارو په باره كښې دا آيت نازل شوې دې «باب المحاربين من أهل الكفر والإرادة» كښې امام بخارى ددې دپاهر حديث درج كړې دې (٢)

اوكه دا عام اومنلې شى لكه څنګه چه د جمهورو عالمانو رائې ده نو بيا هم دا ونيلې شى چه بيا دآيت عموم دحضرت عبادة رضي الله عنه وغيره په احاديثو سره مخصوص دې يا دا چه دا حديث بيان او تفسير دآيت دې.

بيا په دې آيت باندې استدلال كولو باندې اشكال دې هغه داسې چه ﴿إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِن قَبْلِ.....﴾ نه چه دكومې استثناء ذكر شوې دې دهغې تعلق د مرګ دنيوى سزا سره دې خكه چه وړاندې راځى ﴿مِن قَبْلِ أَن تَقْدِرُوا عَلَيْهِمْ﴾ يعنى چه كوم كسان ستاسو په قيد كښې د راتلو نه وړاندې توبه اوباسى نودهغوى په باره كښې دا ارشاد دې ﴿فَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ (٣)

د دوى توبه به قبوله شى اود جرم سزا به په دوى باندې نشى قائمولې (٤)

بعضې حضراتو د آيت سرقه نه استدلال كړې دې ﴿وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا جَزَاءً بِمَا كَسَبَا نَكَالًا مِّنَ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ۝ فَمَن تَابَ مِن بَعْدِ ظُلْمِهِ وَأَصْلَحَ فَإِنَّ اللَّهَ يَتُوبُ عَلَيْهِ﴾ (٥)

په دې آيت كښې د جزاء او نكال دپاره د «قطع أيدى» حكم دې اونكال ونيلې شى داسې سزا ته كومه چه د عبرت دپاره وركولې شى او د كومې نه چه زجر مقصود وى (٦)

معلومه شوه چه په حدودو كښې اصل زجر دې اوددې نه پس د توبة ذكر دې د فاء تعقيبية سره د تائبين ذكرشوې دې ددې نه معلوميږى چه د سزا نه پس دبيا د توبې ضرورت باقى پاتې دې.

دغه شان د حد قذف په سلسله كښې د الله تعالى ارشاد دې ﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ فَاجْلِدُوهُمْ ثَمَانِينَ جَلْدَةً وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا ۚ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ۝ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا﴾ (٧)

---

(١) الجامع لأحكام القرآن للقرطبى (١٤٨.١٥٠/٦) المسألة الأولى (فتح البارى (١٢/١٠٩، ١١٠) كتاب الحدود باب المحاربين من أهل الكفر والردة)_

(٢) صحيح بخارى كتاب الحدود باب المحاربين من أهل الكفر والردة رقم (٦٨٠٢)_

(٣) سورة مائده: ٣٤)

(٤) معارف القرآن (١٢٢/٣)_

(٥) سوره مائده: ٣٨، ٣٩)_

(٦) النهاية (١١٧/٥)

(٧) النور: ٤)_

چه په حد قذف كښې چه كله اتيا كوړې لګولې شوې وى اوحدود كفارات دى.نو بيا د ﴿إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا﴾ استثناء د څه دپاهر ده.

دغه شان په سورة نساء كښې دى. ﴿وَالَّذٰنِ يَأْتِيٰنِهَا مِنْكُمْ فَاٰذُوْهُمَا ۚ فَاِنْ تَابَا وَاَصْلَحَا فَاَعْرِضُوْا عَنْهُمَا ۗ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا﴾ (۱) دلته ايذاء كومه چه د حد قائم مقام ده.هغه موجود شوې دې اود ګناه كفاره شوې ده.نو بيا د ﴿فَاِنْ تَابَا﴾ څه مقصد دې؟

ددې حضرات دريم دليل د حضرت ابواميه المخزومى ﷜ روايت دې.دوى فرمائى چه رسول الله ﷺ ته مخامخ يوكس راوستې شو.هغه د غلا اقرار كولو خو هغه سره د غلا څه سامان نه وو ملاؤ شوې.نبى ﷺ ورته اوفرمائيل.كيدې شى تا غلا نه وى كړې.هغه كس بيا اقرار اوكړلو.دغه شان درې ځله د اقرار كولو نه پس نبى ﷺ د لاس كټ كولوحكم اوكړلو ددې نه پس هغه كس نبى ﷺ ته راوستې شو.نو نبى ﷺ ورته اوفرمائيل.((قل أستغفر الله وأتوب إليه)) هغه كس اووئيل.((أستغفر الله وأتوب إليه)) ددې نه پس نبى ﷺ دعا اوكړله.او وې فرمائيل.((اللهم تب عليه))(۲)

ددې نه معلوميږى.چه د سزا نه پس هم د توبې ضرورت باقى پاتې كيږى.

ددې حضراتو څلورم دليل د بنو مخزوم د ښځې واقعه ده.د كومې سفارش چه حضرت اسامه بن زيد ﷜ كړې وو.نو نبى ﷺ د خفګان اظهاركړې وو.او فرمائيلې ئې وو.په دې حديث كښې حضرت عائشه ﷞ فرمائى.((فحسنت توبتها))(۳) معلومه شوه.چه د حد د جارى كولو نه پس د توبې ضرورت وى.

دغه شان د حضرت ماعز ﷜ په باره كښې نبى ﷺ فرمائيلى وو ((لقد تاب توبة لو قسمت بين

---

(۱) النساء۱۶)_

(۲) سنن نسائى (۲۵٤\۱۲) كتاب قطع السارق باب تلقين السارق وسنن أبى داود كتاب الحدود باب فى التلقين فى الحد رقم (٤۳۹۸۰) وسنن ابن ماجه كتاب الحدود باب تلقين السارق رقم (۲۵۹۷) ومسند أحمد (۲۹۳\۵)_

(۳) صحيح بخارى كتاب الشهادات باب شهادة القاذف والسارق والزانى رقم (۲٦٤۸) وكتاب أحاديث الأنبياء باب (بلا ترجمة) رقم (۳٤۷۵) وكتاب فضائل أصحاب النبى ﷺ باب ذكر أسامة بن زيد ﷜ رقم (۳۷۳۲) وكتاب المغازى باب (بلا ترجمة) رقم (٤۳۰٤) وكتاب الحدود باب إقامة الحدود على الشريف والوضيع رقم (٦۷۸۷) باب كراهية الشفاعة فى الحد إذا رفع إلى السلطان رقم (٦۷۸۸) وكتاب الحدود باب توبة السارق رقم (٦۸۰۰) وصحيح مسلم كتاب الحدود باب قطع السارق الشريف ونحوه وسنن نسائى (۲۵۵\۱۲، ۲۵٦) كتاب قطع السارق باب ما يكون حرزاً وما لا يكون وسنن أبى داؤد كتاب الحدود باب فى الحد يشفع فيه رقم (٤۳۷۳) وسنن ترمذى كتاب الحدود باب ما جآء فى كراهية أن يشفع فى الحدود رقم (۱٤۳۰)_

أمة لوسعتهم» (¹) دې كس داسې توبه اوويستله كه چرته په ټول امت تقسيم كړې شي نو د ټولو دپاره به كافي شي. دلته كښې نبي ﷺ ددوى د توبې باقاعده ذكر كړې دې. حالانكه په هغه باندې حد جاري شوې وو. كه په حد سره ګناه معاف شوې وه. نو بيا د «لقد تاب توبة» ويلو څه ضرورت وو؟

**دحضرت عباده رضي الله عنه وغيره د احاديثونه جوابونه** اوس يوسوال دا دې چه د حضرت عباده رضي الله عنه وغيره د احاديثو نه دا معلوميږي. چه حدود كفارات دى. نوآخر د هغې نه به جواب څه وى؟

علامه ابن همام رحمه الله جواب وركړې دې چه د حضرت عباده وغيره حديث به په دې حمل كولې شي. چه دغه كس د عقوبت او سزا سره سره توبه هم كړې وه خكه چه ظاهري حالت هم دا دې چه سړى ته كله سزا وركولې شي. نو په هغه وخت كښې توبه اوباسي. اودا توبه كفاره ګرځي. دا د مسلمان د شان نه لرې خبره ده. چه هغه دې وهلى شي. اودهغه روح دې ووخي. اوهغه دې د خپلې ګناه نه توبه نه اوباسي. (²)

دويم جواب دامام طحاوى رحمه الله د كلام نه ماخوذ دې. چه د بعضې جرمونو دوه سزا ګانې وى. دنيوى او اخروى نو كيدې شي. چه په دنيا كښې د حدودو په قائميدو سره دنياوى سزا خو ختم شي. خو اخروى سزا باقي وى. او د توبې په وجه د هغې ازاله كيږى. (³)

او دريم جواب بعضې عالمانو دا وركړې دې. چه په اصل كښې دا سزاګانې د «من باب المصائب» دى. اودا خبره په احاديثو كښې ښكاره راغلې ده. چه مصائب كفاره ده. نوددې جرمونو سزاګانوته چه كفاره ويلې شوې ده. هغه په دې لحاظ سره ده. چه په مسلمان باندې يو مصيبت راخي. او مصيبت د ګناهونو رژونكې وى. نودا كوږې ددې ګناهونو دپاره كفاره ده. خودا ضرورى نه ده. چه د كومې ګناه ده ارتكاب كړې وى. دهغې كفاره شي. (⁴) بلكه ممكن ده. چه ددغه ګناه تكفير اوشي. اوداهم ممكن ده چه دڅه نورو ګناهونو تكفير اوشي.

خو حافظ رحمه الله فرمائى. چه په حديث كښې «ومن أصاب من ذلك شيأ ثم ستره الله» الفاظ دى. د مصائبوخو دګناهونو د سترسره څه تعلق نشته. نو «ثم ستره الله» به څه معنى وى؟ (⁵)

حضرت كشميرى رحمه الله فرمائى. چه بعضې مصائب داسې وى. چه دهغې ستر مطلوب وى. لكه قبائحوته شهرت وركول. نوپه داسې صورت كښې به د «ثم ستره الله» معنى صحيح شي. (⁶)

---

(¹) صحيح مسلم كتاب الحدود باب من إعترف على نفسه بالزناء)_

(²) فتح القدير(۵\۳) كتاب الحدود)_

(³) شرح مشكل الآثار للطحاوى (۵\۴۲۶) باب بيان مشكل ما روى عن رسول الله ﷺ فيمن أصاب ذنباً فى الدنيا فعوقب به وفيمن أصاب ذنباً فى الدنيا فستره الله عزوجل عليه فى الدنيا وعفا عنه )_

(⁴) فيض البارى(۱\۸۸)_

(⁵) فتح البارى (۱\۶۸)_

(⁶) فيض البارى(۱\۸۸)_

خو وړاندې مونږ دحضرت خزيمه بن ثابت رضي الله عنه حديث ذكر كړې وو په هغې كښې دى.«من أصاب ذنباً أقيم عليه حد ذلك الذنب فهو كفارته»[1]
په دې كښې دحد تصريح موجود ده.نو مصائب مراد اخستل معلومه شوه. چه صحيح نه دى.«كما صرح بذلك العلامة الكشميرى رحمه الله»[2]

**دحضرت عباده رضي الله عنه او حضرت ابوهريره رضي الله عنه په روايت كښې تعارض اودهغې ازاله** يو سوال دا دې چه د حضرت عباده رضي الله عنه وغيره د رواياتو نه معلوميږى چه حدود كفارات دى.اود حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه يو روايت منقول دې چه نبى ﷺ فرمائيلى دى.«ما أدرى الحدود كفارات أم لا»دا روايت د حضرت عباده رضي الله عنه د روايت سره معارض دې.

دحضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت امام بزار رحمه الله [3]امام حاكم [4]اوامام ابن حزم ظاهرى موصولاً نقل كړې دې[5]«عبدالرزاق عن معمرعن ابن أبى ذئب عن سعيد المقبرى عن أبى هريرة رضي الله عنه عن النبى ﷺ»
امام بخارى رحمه الله په تاريخ كبير كښې تعليقاً ذكر كړى دى.او فرمائى.«وقال عبدالرزاق عن معمرعن ابن أبى ذئب عن سعيد عن أبى هريرة رضي الله عنه عن النبى ﷺ»[6]
قصه دا ده.چه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه په روايت كښې اختلاف دې.چه دا حديث موصول دې اوكه مرسل. .عبدالرزاق دا موصولاً نقل كړې دې.امام دارقطنى رحمه الله فرمائى.چه ددې سند دى.«هشام عن معمرعن ابن أبى ذئب عن الزهرى أن رسول الله ﷺ قال :ما أدرى عزيركان نبياً أم لا وتبع لعيناًكان أم لا،والحدود كفارات لأهلها أم لا كما أخرجه البخارى فى تاريخه»[7]
امام بخارى رحمه الله فرمائى.چه د هشام دا روايت اصح دې.او بيا فرمائى.چه دا حديث د نبي ﷺ نه ثابت نه دې.ځكه چه بى ﷺ فرمائيلى دى.«الحدود كفارة»[8]
دارقطنى رحمه الله چه دامام عبدالرزاق د تفرد كومه دعوه كړې ده.په هغې باندې اشكال دا دې.

---

[1]) مسند أحمد (٥\٢١٤، ٢١٥) وسنن دارمى (٢\٢٣٧) كتاب الحدود الحد كفارة لمن أقيم عليه)_
[2]) فيض لابارى (١\٨٨)_
[3]) كشف الأستار عن زوائد البزار للهيثمى (٢\٢١٢، ٢١٣) كتاب الحدود باب (بلا ترجمة قبل باب قتل الصبر كفارة لما قبله رقم ١٥٤٢ و١٥٤٣)
[4]) والحاكم فى المستدرك (١\٣٦) كتاب الإيمان تبع و ذوالقرنين أكانا نبيين أم لا و(٢\١٤) كتاب البيوع (٢\٤٥٠) كتاب التفسير سورة الدخان)_
[5]) والمحلى (١١\١٢٥) كتاب الحدود هل الحدود كفارة لمن أقيمت عليه أم لا؟)_
[6]) التاريخ الكبير(١\١٥٣) ترجمة محمد بن عبدالرحمن بن أبى ذئب القرشى رقم ٤٥٥)_
[7]) تاريخ كبير (١\١٥٣)_
[8]) المصدرالسابق)_

چه آدم بن ابی ایاس رحمه الله ددوی متابعت کړې دې.امام حاکم رحمه الله د «آدم بن أبي إياس حدثنا ابن أبي ذئب عن المقبري عن أبي هريرة رضي الله عنه» په سند سره هم دا روایت ذکرکړې دې.اودا ئې «صحيح على شرط الشيخين» ګرخولې دې. حافظ ذهبي رحمه الله هم دوی سره موافقت کړې دې.(۱)

دغه شان حافظ ابن حزم ظاهري رحمه الله هم ددې حدیث تصحیح کړې ده.(۲)

بهرحال که دا روایت صحیح نه وی.بلکه معلول وی.لکه څنګه چه د امام بخاری رحمه الله او دارقطني رحمه الله رائې ده.نو بیا ددې جواب آسان دې.چه د عبدالرزاق روایت د حضرت عباده رضي الله عنه د روایت سره معارضه نشی کولې.

اوکه دا روایت صحیح اومنلې شی.لکه څنګه چه د امام حاکم رحمه الله او ابن حزم رحمه الله وغیره رائې ده.نوبیا په دې صورت کښې به د حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت د ابوعباده رضي الله عنه د روایت سره معارض وی.

ددې جواب ابن حزم او قاضي عیاض رحمهما الله دا ورکړې دې.چه د حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت مقدم دې.نبی ﷺ ته اول دا معلومه نه وه.چه حدود کفارات دی اوکه نه دی؟ خو ورسته ورته دا اوخودلې شوه.چه حود کفارات دی.(۳)

په دې باندې اشکال واردیږی.چه دا خلق وائی.چه د حضرت عباده رضي الله عنه په روایت کښې چه د کوم بیعت ذکردې.هغه بیعة العقبه ده.نو دا حدیث د هجرت نه وړاندې شو.او حضرت ابوهریره رضي الله عنه په اووم کال د هجرت مسلمان شوې وو.نودا حدیث روستنې دې.

ابن حزم رحمه الله دا جواب ورکړې دې.چه کیدې شی.د حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت د مراسیل صحابو زمرې نه وی.دوی په خپله د نبی ﷺ نه نه وی اوریدلې.بلکه د داسې صحابی نه ئې اوریدلې وی.چا چه د نبی ﷺ نه د هجرت نه وړاندې اوریدلې وی.(۴)

په دې باندې اشکال کیږی.چه د حدودو مشروعیت د هجرت نه پس شوې دې.نو بیا د مشروعیت نه وړاندې دنبی ﷺ دارشاد چه «ما أدري الحدود كفارات أم لا» څه مطلب کیدې شی.

ابن حزم رحمه الله ددې دا جواب ورکړې دې.چه نبی ﷺ ته د هجرت نه وړاندې دا خودلې شوې وه.چه د بعضې معاصی او جرائمو دپاره به حدود مقررکولی شی. لکه چه په دې حدیث کښې نبی ﷺ ته د وخت نه وړاندې د مشروعیت نه وړاندې د دې د وجود خبر ورکړې شوې وو.چه حدود به مقرر کیږی.خو ماته معلومه نه ده.چه دا به کفارات وی اوکه نه! (۵)

---

(۱) مستدرک حاکم (۴۵۰\۲) کتاب التفسیر .تفسیر سورة الدخان)_

(۲) المحلی (۱۲۵\۱۱)_

(۳) فتح الباری (۶۶\۱)_

(۴) المحلی(۱۲۵\۱۱)_

(۵) المصدالسابق)_

خو ابن حزم رحمه الله په دې جواب کښې ښکاره تکلف دې زړه ته په دې باندې اطمينان نه ملاويږي

حافظ ابن حجر رحمه الله د سره دا احتمال رد کړې دې چه دا روايت به د حضرت ابوهريره رضي الله عنه په مراسيلو کښې وي هغوي فرمائي چه دوي د سماع تصريح کړې ده نو لکه چه د دوي په نيز حضرت ابوهريره رضي الله عنه دا روايت په خپله د نبي ﷺ نه اوريدلې دې او د ۷ هجرئ نه پس يعنى داسلام راوړلو نه پس ئې اوريدلې دې خو دوي فرمائي چه ددې باوجود د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت مقدم دې او د حضرت عباده رضي الله عنه حديث ددې نه پس دې.(۱) **کما سبق تفصيله**

خو علامه عيني رحمه الله فرمائي چه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه د سماع تصريح خو اول په دې باندې محمول کيدې شي چه اول دوي دا حديث د يو صحابي نه اوريدلى وي او بيا ئې روسته د نبي ﷺ نه هم اوريدلې وي ددې نه علاوه دا هم ممکن ده چه د نبي ﷺ نه ئې بيخى هډو اوريدلې نه وي خو د سماع تصريح ئې په دې وجې کړې وي چه د صحابي نه اوريدلې شوې خبره قطعى او يقينى وي ((لأن الصحابة كلهم عدول))(۲)

دلته کښې دا خبره قابله د توجه ده چه حافظ رحمه الله دا فرمائيلى دى چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه د نبي ﷺ نه د اوريدو صراحت کړې دې حالانکه مونږ سره چه کوم مراجع دى په هغې کښې په هيڅ يو کښې مونږ ته ددې تصريح نه ده ملاؤ شوې امام حاکم دا حديث په درې اسانيدو سره نقل کړې دې امام بزار په دوو سندونو سره نقل کړې دې ابن حزم دا د عبدبن حميد په واسطه سره ذکر کړې دې.(۳)

دغه شان حافظ ابن کثير رحمه الله دا حديث د ابن عساکر په حواله سره نقل کړې دې. (۴) په دې کښې په يو مقام کښې هم د سماع صراحت موجود نه دې.

بيا حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه ((وقد أخرجه أحمد عن عبد الرزاق عن معمر))(۵) حالانکه په مسند احمد کښې هم دا روايت نشته.

بيا علامه نورالدين هيثمى رحمه الله په مجمع الزوائد کښې (په کوم کښې چه ئې د مسند احمد احاديث زوائد هم راوړې دى) ددې روايت ذکر کړې کړې دى او صرف د بزار حواله ئې ورکړې ده د مسند احمد حواله ئې نه ده ورکړې (۶) والله سبحانه أعلم وعلمه أتم وأحكم.

---

(۱) فتح البارى (۱\ج ۶۶)_

(۲) عمدة القارى (۱\۱۵۸)_

(۳) دا ټولې حوالې مونږ وړاندې په تفصيل سره ذکر کړى دى_

(۴) تفسير ابن کثير (۴\۱۴۴) تفسير سورة الدخان)_

(۵) فتح البارى (۱\۶۶)_

(۶) مجمع الزوائد (۶\۲۶۵) کتاب الحدود باب هل تکفر الحدود الذنوب أم لا)_

د علامه عينى رحمه الله رجحان دې طرف ته دې چه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث د صحت په هغه معيار باندې نه دې. كوم چه د حضرت عباده رضي الله عنه د حديث دې. نو په دې دواړو كښې هډو تعارض نشته. چه جمعې او تطبيق ته ضرورت پيښ شي.(١)

حضرت مولانا بدر عالم صاحب ميرتهى رحمه الله فرمائى چه په دواړو كښې په دې طريقه تطبيق ممكن دې چه د حضرت عباده رضي الله عنه په حديث كښې چه كوم «فهو كفارة له» دې. دا قطعي حكم نه دې بلكه يو امر مرجو دې. او مطلب دا دې. كه چرته په ده باندې حد جاري شو. نو د الله تعالى نه اميد دې. چه هغه به ددې كفاره شي. د دې تائيد د حضرت على رضي الله عنه د حديث نه كيږى. «من أصاب حدا فعجل عقوبته في الدنيا فالله أعدل من أن يثنى على عبده العقوبة في الآخرة ومن أصاب حداً فستره الله عليه وعفا عنه فالله أكرم من أن يعود إلى شئ قد عفا عنه» (٢) ددې حديث نه معلوميږى. چه حدود كفاره كيدل څه يقينى خبره نه ده. بلكه چه د الله تعالى عدل ته كتلې شي. نو دا اميد كيدې شي. چه دوباره به پرې سزا نه وى. لكه څنګه چه په دنيا كښې پرې پرده اچوى. دغه شان به پرې په آخرت كښې هم پرده واچوى. او سزا به ورته ورنكړى. بنكاره خبره ده چه په حالت ستر كښې هيڅ څوك هم ددې قائل نه دې. چه دده كفاره به شي. بلكه اختلاف خود حد جاري كيدو نه پس دې.(٣)

دغه شان دوى فرمائى. چه په دې روايت كښې جزاء «فالله أعدل... الخ» ده. دغه شان په دې حديث كښې دويمه جزاء «فالله أكرم من أن يعود... الخ» ده. حالانكه د بخارى په روايت او په دې روايت كښې شرط متحد دې. لكه چه د «فهو كفارة له» كومه چه په بخارى كښې د اولنى شرط جزاء ده) معنى هغه ده. كومه چه د «فالله أعدل من أن يثنى على عبده العقوبة في الآخرة» ده. دغه شان په دويمه جمله كښې چه كومه مختلفه جزاء ده. دهغې مفهوم هم يو مآل طرف ته راجع دې.(٤)

**دحدود دكفاره كيدو او نه كيدو په باره كښې دحضرت كشميرى رحمه الله قول فيصل** حضرت كشميرى رحمه الله فرمائى. چه د حد جاري كولو نه پس درې حالات كيدې شي.

دحد جاري كيد نه پس به يا خو محدود توبه كوى اويا به نه كوى. كه توبه اونكړى. نو دوباره به يا ددې ګناه نه بچ كيږى او يا نه، كه دې توبه اوباسى. نوبيا خو په اتفاق سره دا حد دده دپاره كفاره ده. اوكه توبه اونه باسى. خو ده ته عبرت حاصل شوې وى. او دوباره د داسې ګناه اعاده نه كوى. نوبيا هم دا حد كفاره ګرځى. اوكه ده توبه هم نه وى كړې. اود جرائمو د

---

(١) عمده (١/١٥٨)_

(٢) سنن ترمذى كتاب الإيمان باب ما جاء لا يزنى الزانى وهو مؤمن رقم (٢٦٢٦)_

(٣) البدر السارى حاشية فيض البارى (١/٨٩ و ٩٠)_

(٤) المصدر السابق)_

ارتكاب نه هم نه منع كيږي.نو د داسې كس دپاره حدود كفاره نه جوړيږي.(١) والله أعلم

**قوله** وَمَنْ أَصَابَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا ثُمَّ سَتَرَهُ اللهُ فَهُوَ إِلَى اللهِ إِنْ شَاءَ عَفَا عَنْهُ وَإِنْ شَاءَ عَاقَبَهُ فَبَايَعْنَاهُ عَلَى ذَلِكَ: اوكه څوك د جرائمو ارتكاب كوى.اوبيا الله تعالى په ده باندې پرده واچوى نو دې الله تعالى ته سپارلې شوې دې كه خوښه ئې شي معاف به ئې كړي.اوكه خوښه ئې شي.نوسزا به وركړي.

امام مازنى رحمه الله فرمائى.چه په دې سره د معتزلو او خوارجو دواړو ډلو ترديد كيږي.ځكه چه دا دواړه فريقه وائى.چه مرتكب د كبيره د ايمان نه خارج دې.حالانكه دلته د مرتكب كبيره متعلق نبى ﷺ د معافئ اميد ساتى.اودې ((تحت المشية)) كښې داخلوى.

دغه شان په دې كښې مرجئه ترديد هم دې.دوى وائى.چه ايمان وى نو ګناهونه څه ضرر نه رسوى.حالانكه نبى ﷺ دلته فرمائى.((وإن شاء عاقبه)) الله ته اختيار دې.كه غواړى نو سزا به وركړى.(٢) والله سبحانه وتعالى أعلم وعلمه أتم وأحكم

## ١٠ = بَابٌ مِنَ الدِّينِ الْفِرَارُ مِنَ الْفِتَنِ

امام بخارى رحمه الله باب منعقد كړې دې.چه د فتنو نه تيخته دايمان يوه شعبه ده.

**د ترجمة الباب مقصد اود ماقبل سره ربط** امام بخارى رحمه الله چه تراوسه پورې د كومو امورو ذكر اوكړلو.اوهغه ايجابى او ثبوتى وو.اوس دلته دوى د يو سلبى امر ذكر كوى.چه د دين په شعبو او شاخونو كښې ((فرار من الفتن)) هم داخل دې.يعنى دخپل استوګنې ځائې پريخودل او د دين د حفاظت دپاره دشت او غر ته تلل،دا هم د دين يوه شعبه ده.(٣)

دغه شان په ماقبل كښې دا بيان شوې وو.چه انصارو د نبى ﷺ په لاس باندې بيعت اوكړلو.او هغوى ته ئې د څو څيزونو د پريخودو حكم كړې وو.اوس دا وائى.چه صرف په دغه امورو باندې اكتفا نه ده.بلكه په وخت د ضرورت دوطن پريخودل هم په دين كښې داخل دى.اودا عبادت دې.(٤)

وړاندې مونږ څو ځله بيان كړې دې.چه د بابونو مقصد د مرجئه ترديد دې. دوى وائى. ((لاتضرمع الإيمان معصية)) چه ايمان وى.نوهيڅ ګناه نقصان نه رسوى.نو امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې دا فرمائى.چه د مرجئو دا عقيده څنګه صحيح كيدې شى.ځكه كه د معصيت څه اثر نه وو.نو بيا د فتنو نه دتختيدو څه ضرورت پيښيدلو.حالانكه په حديث

---

(١) فيض البارى (٩٣/١)_
(٢) فتح البارى(٦٨/١)-
(٣) تقرير بخارى شريف(١٣٠/١)_

کښې په صراحت سره ذکر دی چه د فتنو نه تختیدل اوداسې ځائې ته تلل هم په دین کښې مطلوب دی په کوم ځائې باندې چه فتنې اثر انداز نه وی.

دلته امام بخاری «من الإیمان» یا «من الإسلام» نه دی فرمائیلی بلکه «من الدین» نې فرمائیلی دی ددې وجه دا ده چه د امام رحمه الله په نیز دین، ایمان او اسلام کښې ترادف دې قال الله تعالى: ﴿إِنَّ الدِّينَ عِنْدَ اللهِ الْإِسْلَامُ﴾ (۱) نو کوم څیز چه په دین کښې داخل وی هغه به په ایمان او اسلام کښې داخل وی. (۲) په ترجمه کښې ئې د «من الإیمان» یا «من الإسلام» په ځائې «من الدین» لفظ دحدیث پاك په اتباع کښې فرمائیلې دې. (۳)

[۱۹] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي صَعْصَعَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (۴) أَنَّهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوشِكُ أَنْ يَكُونَ خَيْرَ مَالِ الْمُسْلِمِ غَنَمٌ يَتْبَعُ بِهَا شَعَفَ الْجِبَالِ وَمَوَاقِعَ الْقَطْرِ يَفِرُّ بِدِينِهِ مِنَ الْفِتَنِ [(۳۳۰۰، ۳۶۰۰، ۶۴۹۵)، ۷۰۸۸ وانظر: ۵۸۳]

## رجال الحدیث

① **عبدالله بن مسلمه:** دا عبدالله بن مسلم بن قعنب قعنبی حارثی بصری رحمه الله دې. ددوی کنیت أبوعبدالرحمن دې. دامام مالك، لیث بن سعد، مخرمه بن بکیر، ابن ابی ذئب رحمه الله نه روایت کوی.

ددوی په توثیق او جلالت شان باندې اتفاق دې. د موطاء په راویانو کښې یو راوی دې ابن المدینی او یحی بن معین رحمه الله د موطاد روایت په سلسله کښې په دوی باندې څوك مقدم کړی نه دی. مستجاب الدعوات وو. امام مالك رحمه الله ته اوخودلی شو چه عبدالله بن مسلمه راغلو، نو امام مالك رحمه الله اوفرمائیل: «قوموا بنا إلى خير أهل الأرض»

امام بخاری او امام مسلم رحمهما الله د دوی نه ډیر احادیث نقل کړی دی. په ۲۲۱ هـ کښې په

---

(۱) آل عمران: ۹۱)_

(۲) فتح الباری (۱\۶۹)_

(۳) المصدر السابق)_

(۴) الحدیث أخرجه البخاری فی مواضع اخری وانظر کتاب بدء الخلق باب خیرمال المسلم غنم یتبع بها شعف الجبال رقم ۳۳۰۰ وکتاب المناقب باب علامات النبوة فی الإسلام رقم ۳۶۰۰ وکتاب الرقاق باب العزلة راحة من خلاط السوء رقم ۶۴۹۵) وکتاب الفتن باب التعرب فی الفتنة رقم ۷۰۸۸ وأخرجه النسائی فی کتاب الإیمان وشرائعه باب الفراربالدین من الفتن (۱۱\۲۷۲) وأبوداود فی کتاب الفتن والملاحم باب ما یرخص فیه من البداوة فی الفتنه (۴۲۶۷) وابن ماجه فی کتاب الفتن باب العزلة رقم ۳۹۸۰)_

مكه مكرمه كښې وفات شوې وو.(١) رحمه الله رحمة واسعة

② **مالك:** دوی امام دارالهجرة عالم المدينه امام مالك بن انس بن مالك بن ابى عامر بن عمروالاصبحى المدنى دې.كنيت ئې ابوعبدالله دى.
اهل السنة والجماعة په څلورو امامانومتبوعينوكښې يوامام دې.اودامام شافعی اوامام محمد رحمهما الله استاذ دې.
ددوی ولادت په مدينه كښې په ٩٣ھ كښې شوې و.او هم هلته په ١٧٩ھ كښې د دوی وفات شوې وو په دين كښې د لويو متصبينو او حاكمانو نه لرې اوسيدل. هارون الرشيد دوی نه دحديث اوريدو دپاره دوی راوبللو.نو دوی ورته اوفرمائيل .«العلم يؤتى» چه علم ته خلق راځي. علم خلقو ته نه ورځي.هارون الرشيد دوی ته ورغلل.او ديوال سره ئې ډډه اولګوله.
امام مالك رحمه الله اوفرمائيل.«يا اميرالمومنين من إجلال رسول الله إجلال العلم» يعنى اې اميرالمومنين ! د رسول الله احترام دا دې.چه دحديث احترام اوكړې شى.نو هارون الرشيد دوی ته په ادب باندې كيناستلو.بيا ورته دوی حديث واورولو.
ددوی مناقب بيشماره دى.مختلفو حضراتو دوی باندې مستقل كتابونه ليكلى دى.علامه سيوطى رحمه الله پرې «تزيين الممالك بمناقب الإمام مالك» ليكلې دې.حافظ ابن عبدالبر په «الانتقاء»كښې ددوی تفصيل ذكر ليكلې دې.(٢)

③ **عبدالرحمن بن عبدالله:** دوی عبدالرحمن بن عبدالله بن عبدالرحمن بن الحارث بن ابى صعصعه دې.(٣)
دوی به د خپل والد عبدالله بن عبدالرحمن بن ابى صعصعه .عطابن يسار .عمروبن عبدالعزيز.او امام زهرى رحمهم الله نه روايت كولو.
او دوی نه سفيان بن عيينه. عبدالعزيز بن عبدالله بن ابى سلمه الماجشون ، امام مالك. يحى بن سعيد انصارى رحمهم الله وغيره د حديث روايت كړې دې.(٤)
امام ابوحاتم او امام نسائى رحمهما الله دوی ته ثقه وئيلى دى.ابن ابن حبان رحمه الله هم دې په كتاب الثقات كښې ذكركړې دې.(٥)
**تنبيه** سفيان بن عيينه رحمه الله ددوی نوم د عبدالرحمن په ځائې عبدالله بن عبدالرحمن بن ابى

---

١) عمدة القارى (١١\١٦١) وتقريب التهذيب (ص.٣٢٣) رقم الترجمة (٣٦٢٠)_
٢) تقريب التهذيب (٥١٦ رقم ٦٤٢٥) والأعلام للزرقانى (٥\٢٥٨)_
٣) فتح البارى (١\٦٩)_
٤) تهذايب الكمال (١٧\٢١٦)_
٥) تهذيب الكمال (١٧\٢١٧)_

صعصعه خودلې دې.(۱)ابن المدینی رحمه الله فرمائی چه دا د دوی وهم دې.(۲)امام دارقطنی رحمه الله فرمائی ددوی د نوم په باره کښې دامام مالک رحمه الله نه څه اختلاف منقول نه دې.(۳)
خوابن حبان رحمه الله په کتاب الثقات کښې فرمائی چه ((وخالفهم مالك فقال: عبدالله بن عبدالرحمن بن أبي صعصعة))(۴)والله أعلم.
په ۱۳۹ھ کښې دخلیفه ابوجعفر المنصور په دور خلافت کښې دوی وفات شوی دی.(۵)
رحمه الله رحمة واسعة.
④ **د ذکرشوی راوی والد** دوی عبدالله بن عبدالرحمن بن الحارث بن آبی صعصعه دی.
امام نسائی اوابن حبان ددوی توثیق کړې دې.ددوی قر نیکه' په جاهلیت کښې قتل شوې وو.اوددوی نیکه حارث په غزوه احد کښې شریك شوې وو.اوپه جنګ یمامه کښې دحضرت خالد رضی الله عنه په سرکردګۍ کښې جنګیدلو تردې چه شهیدشو.(۶)
ابوسعیدالخدری رضی الله عنه مشهور صحابی دې.ددوی نوم او نسب دا دې.سعدبن مالك بن سنان بن عبید بن ثعلبه بن عبید بن الابجر انصاری خزرجی .ددوی په نیکونوکښې چه ابجردې.نو دهغوی نوم خدرة وو.دوی هغه طرف ته منسوب دی.
دحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه پلار حضرت مالك بن سنان رضی الله عنه په غزوه احد کښې شهید شوې و. پخپله دوی هم په دې غزا کښې د شرکت دپاره تلې و.خود کم عمرئ په وجه واپس شوې وو.ددې نه پس دوی تقریباً په دولس غزاګانوکښې د نبی صلی الله علیه وسلم سره شرکت کړې وو.
حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه د څلورخلفاؤ او دخپل پلار نه حدیث اوریدلی وو .اوددوی نه چه چا روایت کړې دې.په هغوی کښې د حضرت ابن عمراو حضرت ابن عباس رضی الله عنهم نه علاوه دتابعینو رحمهم الله یو لوئې شمارهم شامل دې.
دحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه نه ټول یوولس سوه اویا احادیث نقل دی.په دې کښې شپږ څلویښت احادیث متفق علیه دی.اوامام بخاری رحمه الله په شپاړس احادیثوکښې متفرد دې.
اوامام مسلم په دوه پنځوس احادیثوکښې متنفرد دې.
دحضرت ابوسعیدخدری رضی الله عنه شمارپه فقهاؤ او فضلاؤ صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې کیږی.حنظله بن ابی سفیان جمحی دخپلو استاذانو نه نقل کوی.چه په کم عمر صحابو کښې دحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه نه زیات افقه او اعلم بل څوك نه وو.

---

۱) عمدة القاری(۱۱\۱۶۱)_
۲) المصدرالسابق)_
۳) عمدة القاری(۱۱\۱۶۱)_
۴) کتاب الثقات(۷\۶٤)_
۵) تهذیب الکمال (۱۷\۲۱۷) وعمدة القاری(۱۱\۱۶۱)_
۶) عمدة (۱\۱۶۱)_

ددوی مناقب او فضائل بې شمیره دی په ۶۴ھ یا ۷۴ھ کښې د جمعې په ورځ په مدینه منوره کښې دوی وفات شوی وو او په بقیع کښې ښخ شوی وو.()

**قوله قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوشِكُ أَنْ يَكُونَ خَيْرَ مَالِ الْمُسْلِمِ غَنَمٌ يَتْبَعُ بِهَا شَعَفَ الْجِبَالِ وَمَوَاقِعَ الْقَطْرِ يَفِرُّ بِدِينِهِ مِنَ الْفِتَنِ:** رسول الله ﷺ فرمائیلی دی هغه زمانه نزدې ده چه د مسلمان غوره مال به چیلئ وی هغه به ورسره وی اود غرونو په درو اود باران په ځایونو کښې به دې خپل دین د فتنو نه بچ کوی اوتختی به.

دلته «خیرمال المسلم» منصوب دې کوم چه د «یکون» خبر واقع شوې دې. او «غنم...» اسم دې ددې وجې مرفوع دې د اصیلی په نسخه کښې ددې عکس دې. یعنی «خیر» د اسم په وجه مرفوع دې.او«غنماً» منصوب دې خکه چه د «یکون» دپاره خبر واقع شوې دې.

ابن مالک فرمائی چه دلته «خیر» او «غنم» دواړه مبتدا او خبر دی.او مرفوع هم وئیلی شی په دې صورت کښې به د «یکون» ضمیر .ضمیرشان وی.

حافظ رحمه الله فرمائی چه دا نحوی توجیه خو کیدې شی.خوداسې روایت منقول نه دی.()

**شعف:** دا د شعفة جمع ده.ددې معنی د غر سوکه ده.()

**قوله: مواقع القطر:** یعنی هغه مقامات په کومو چه باران زیات کیږی.لکه خوړونه .میدانونه.او ځنګلونه وغیره.

دلته د «غنم» ذکر ددې وجې نه دې شوې چه په دې باندې انحصار مقصود دې.چه مختصر غوندې سامان واخلی.اولاړ شی.()

**دغنم دتخصیص وجه:** دچیلئ تخصیص ددې وجې شوې دې.چه چیلئ یو داسې ځناور دې. چه «سهل الإنقیاد» وی.په دې کښې عاجزی وی.چه دې سره تعلق ساتی. په ده کښې به عاجزی پیدا کیږی. اوچیلئ په بوتلو کښې هم سپکه ده.اوانسان که دا اوچته کړی. نو غرته لاړ شی.اوخلوت نشینی اختیارولې شی.بیا په چیلئ کښې خصوصی خبره دا ده.چه دا «کثیرالمنفعة» ده.او «قلیل المؤنة» ده.که دې دپاره ته د دانې او ګیاه انتظام اونکړې شی.نو هم دا اخواه دیخواه ګرځی او ګذاره کوی.بیا ددې پئ د غذا او د مشروب دواړه کار

---

) تهذیب الأسماء واللغات (۲۳۷\۲) وعمدة القاری(۱۶۱\۱)_

) المصدرالسابق)_

) المصدرالسابق)_

) درس بخاری (۱۸۱\۱)_

ورکوی اوددې ويخته په جامو کښې په کار راخی ددې نه علاوه د چيلۍ نسل هم زيات وی.دغذا دپاره ديوې چيلۍ ذبح کول هم آسان دی.په خلاف د اوښ .خکه چه په دې کښې آسانی نشته.(۱)

**قوله يَفِرُّ بِدِينِهِ مِنْ الْفِتَنِ:** ((بدينه)) کښې ((باء)) سببيه ده او ((من الفتن)) کښې ((من)) ابتدائيه دي.(۲)او مطلب دا دې چه کوم کس د دين د حفاظت دپاره اوتختى

امام نووى رحمه الله فرمائى.چه په دې حديث باندې دترجمة الباب دپاره استدلال محل د نظردې.خکه چه د حديث نه دا نه لازميږى.چه فرار په دين کښې شامل دې.بلکه دا ثابتيږى.

چه فرار د صيانة للدين دپاره دې.(۳)

بعضې عالمانو جواب ورکړې دې.چه دلته دا اشکال په هغه وخت کښې کيدې شي چه په ترجمه کښې ((من الدين الفرار من الفتن)) کښې ((من)) تبعيضيه يا جنسيه اومنلې شي.اوکه ((من)) ابتدائيه اومنلې شي.نو بيا په روايت او ترجمه کښې مطابقت شته.خکه چه ددې معنى به دا وى.((الفرار من الفتن منشؤه الدين))(۴)اوپه حديث کښې هم دا ذکر دى.((يفر بدينه من الفتن أى بسبب دينه))

حضرت مولانا سيد فخرالدين رحمه الله فرمائى.چه د امام بخارى رحمه الله د ذوق مطابق چه دا د تبعيض دپاره اوګڼلې شي.نودا مناسب دى.اوداسې به ونيلې شي. چه دين د دوو څيزونو نه عبارت دې.يو حقيقت ايمانيه يعنى تصديق قلبى او بل اعمال .د فتنو اثر براه راست په تصديق باندې نه پريوځى.بلکه دا اثر د اعمالو د پريخود په صورت کښې ښکاره کيږى.د دې وجې په ((يفر بدينه)) کښې د دين نه مراد اعمال دى. نومعلومه شوه.چه د اعمالو حفاظت د دين اهمه شعبه ده.اوس حاصل د ترجمة دا شو. چه ((من شعب الدين: الفرار لأجل الدين من الفتن)) يعنى ((لا يكون ذلك الفرار لغرض من أغراض الدنيا بل يكون متمحضاً لأجل حفظ الدين وهو عبارة عن مجموع الأعمال الوجودية والسلبية والأفعال والتروك والفرار من التروك)) والله أعلم.

**د فتنه نه څه مراد دى؟** دا خبره ياد ساتل پکار دى.چه د ((فتن)) نه مراد په عرف د شريعت کښې دادې.چه د دينى امورو مخالفت عام شي.او د دين حفاظت ګران شي. اوددې اسباب او ذرائع مفقود شي.نو کمزورو ته اجازت دې.چه هغوى د دين د

---

(۱) امداد البارى (۴۵۲\۴)_

(۲) فتح البارى (۱\۶۹)_

(۳) المصدر السابق)_

(۴) فتح البارى (۱\۶۹، ۷۰)_

حفاظت دپاره اوتختي.(۱)

**د فتنو د زمانې سره متعلق ارشادات نبوی** د فتنو په باره کښې د رسول الله ﷺ ډیر ارشادات دی نبی ﷺ فرمائیلی دی.

**«بادروا بالأعمال فتناً کقطع اللیل المظلم یصبح الرجل مؤمناً ویمسی کافراً أو یمسی مؤمناً ویصبح کافراً یبیع دینه بعرض من الدنیا»**(۲) یعنی داسې فتنې راتلونکې دی.چه هغه به د تورې شپې د حصو پشان وی.هم په یوه ورځ کښې به داسې انقلاب راشی.چه د صبا په وخت کښې به یو سړې مومن وی او د ماښام به هغه کافر وی.یا دماښام به مومن وی.اود صبا به کافر شی.د دنیا د معمولی څیز دپاره به خپل دین خرڅوی.د داسې فتنو د راتلو نه وړاندې نیك اعمال کوئ.

په یو روایت کښې دی.**«إن بین یدی الساعة فتناً کقطع اللیل المظلم ،یصبح الرجل فیها مؤمناً ویمسی کافراً ویمسی مؤمناً ویصبح کافراً القاعد فیها خیر من القائم ،الماشی فیها خیر من الساعی فکسروا قسیکم، وقطعوا أوتارکم،واضربوا سیوفکم بالحجارة فإن دخل یعنی-علی أحد منکم فلیکن کخیرابنی آدم»**(۳)
یعنی د قیامت نه وړاندې به د تورې شپې د حصو پشان فتنې راشی.سړې به د صبا په وخت کښې مومن وی.اودماښام به کافر وی.اود ماښام به مومن وی اود صبا په وخت کښې به کافر وی.په داسې موقع کښې به ناست د ولاړ په مقابله کښې ښه وی.او روان به منډه وهونکی په مقابله کښې غوره وی.نوتاسو په داسې موقع باندې خپلې لیندې ماتې کړئ.اوخپلې تورې په ګټو اووهئ.(یعنی خپلې تورې ګټوته راپریږدئ چه د استعمال قابلې پاتې نشی) اوکه په تاسوکښې په یوکس باندې فتنه راشی.نو د حضرت آدم ﷺ په دوو ځامنوکښې د هابیل کردار ادا کړئ.

دغه شان کله چه د نبی ﷺ نه تپوس اوشوچه په داسې موقع به مونږ څه کوو؟ نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل.**«کونوا أحلاس بیوتکم»**(۴) په خپلو کورنو کښې د ټاټ پشان پراته اوسئ.
په یوروایت کښې دی.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی.چه داسې زمانه راتلونکې ده. چه په هغې کښې خپل دین باندې په استقامت سره صبر کونکې به داسې وی.لکه چه ده سکروټکه نیولې وی.(۵) په یو روایت کښې نبی ﷺ فرمائیلی دی.یوه زمانه به داسې راشی.چه کوم کس په دین باندې عمل کوی.نو هغه ته به د پنځوس کسانو برابر اجر ملاویږی.(۶)

---

(۱) درس بخاری از شیخ الاسالم علامه عثمانی ﷫ (۱۸۱\۱)_
(۲) صحیح مسلم (۷۵\۱) کتاب الإیمان باب الحث علی المبادرة بالأعمال قبل تظاهر الفتن)_
(۳) سنن أبی داود کتاب الفتن باب فی النهی عن السعی فی الفتنة رقم ٤۲۵۹)_
(۴) سنن أبی داود کتاب الفتن باب فی النهی عن السعی فی الفتنة رقم ٤۲۶۲ .۱۲۹)
(۵) سنن ترمذی کتاب الفتن باب (۷۳ رقم ۲۲۶۰. ۱۳۰)
(۶) وسنن أبی داود کتاب الملاحم باب الأمر والنهی رقم ٤۳٤۱ وجامع الترمذی کتاب التفسیر باب ومن سورة المائدة رقم ۳۰۵۸ وسنن ابن ماجه کتاب الفتن باب قول تعالی ((یاایها الذین آمنوا علیکم أنفسکم)) رقم ٤۰٤۱)

دلته په حديث باب كښې هم د داسې فتنو د مواقع ذكر دې چه په داسې مواقعو كښې سړى ته پكار دى چه دخپل دين د حفاظت دپاره د غر سوكو ته لاړ شى اود باران د وريدو ځايونو ته لاړ شى او هلته په سادګئ سره ګذاره كوى . او د خپل دين حفاظت كوى.

**تنبيه** دا خبره ضرور په ذهن كښې كينوئ چه دلته د رهبانيت تعليم نشى وركولې . ځكه چه دا رهبانيت خو يو بدعت وو . كوم چه نصاراؤ پخپله ايجاد كړې وو خو بيا ئې د هغې صحيح حق ادا نكړلو . او هغه ئې پوره نكړې شو.

رهبانيت په حقيقت كښې د حضرات انبياء عليهم السلام د اسوه حسنه نه خلاف دې. پيغمبرانو عليهم السلام به په آبادوكښې ژوند تيرول اوپه آبادوكښې به اوسيدل اودخلقو د اصلاح كوشش به ئې كول هغوى نه دځنګل لار اختيار كړې وه . اونه ئې د غر سوكه خپل د استوګنې ځائې جوړ كړې وو.

بيا دا رهبانيت د تخليق عالم د حكمت سره هم منافى دې الله تعالى چه انسان پيدا كړې دې نودې ئې د تجرد ژوند تيرولو اود مخلوق خدا نه د جدا اوسيدو دپاره نه دې پيدا كړې. ځكه چه په دې كښې د نسل انقطاع ده اونظام عالم درهم برهم كول دى نو رهبانيت كوم چه نصارى د بدعت په صورت كښې ايجاد كړې وو د اسلام په نيز خوښ نه دې دلته چه څه ذكر كولې شى نو دا وختى او د هنګامى صورت په مناسبت سره دى كه حالات داسې راشى چه سړې په آبادئ كښې دخپل دين حفاظت نشى كولې نو بيا ده ته دعذر او مجبورئ په وجه اجازت وركړې شوې دې چه هغه د دين د حفاظت دپاره «شعف الجبال» يا «مواقع القطر» طرف ته لاړ شى.

**عزلت اوخلوت غوره دې؟ اوكه اختلاط او جلوت؟** ددې نه پس پوهه شئ چه په حديث باب كښې په دې خبره استدلال شوې دې . چه عزلت او خلوت نشنى د جلوت او اختلاط نه غوره اوبهتره ده.

كه فتنې واقع كيږى اويوسړې د فتنو په لرې كولو قادر نه وى نو دده په ذمه د حالاتو په مناسبت سره د فتنو مغلوبه كول او لرې كول فرض عين يا فرض كفايه ده اوكه سړې د هغې په مغلوبه كولوباندې قادر نه وى نودهغه دپاره تنهائى او ځانلوائې اختيارول غوره او افضل دى.(۱)

اوكه د فتنو زمانه نه وى نو بيا غوره څه دى؟ په دې كښې اختلاف دې.

امام شافعى اود نورو عالمانو ﷺ دا رائې ده چه اختلاط غوره دى ددې وجه دا ده چه په دې طريقه به د مسلمانانو جمع ډيره وى او د ډيرو فوائدو د حاصلولوموقع به ورته ملاؤ شى او ډيرداسې د نيكئ كارونه دى كوم چه په تنهائې او ځانلوالى كښې ګران وى.(۲)

---

(۱) عمدة القارى (۱۶۳/۱)_

(۲) المصدر السابق)_

دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه مرفوعاً نقل دی «المؤمن الذی یخالط الناس ویصبر علی أذاهم أعظم أجراً من المؤمن الذی لا یخالط الناس ولایصبر علی آذاهم» (۱) یعنی چه په خلقو کښې اوسيدل اودهغوی تکليف زغمل اودهغوی اصلاح کول دا غوره دی ددې خبرې نه چه انسان تنهائی اختيار کړی. دويمه ډله په دې ده چه عزلت او ځانلوالې غوره دې ځکه چه انسان ځانله والې اختيار کړی نوددې په وجه دې د ډيرو ګناهونو نه نجات بيا مومی د غلط نظرنه بچ شی د غيبت الزام. اوغلطوخبرو کولونه ورته حفاظت ملاؤ شی دغه شان د ګناه په مجلسونو کښې شرکت او ددې د زياتولود ګناه نه بچ کيږی يعنی د ګناهګارانو د ډلې د زيادت سبب نه ګرځی.(۲)

علامه نووی رحمه الله فرمائی «والمختار تفضيل الخلطة لمن لايغلب علی ظنه الوقوع فی المعاصی» (۳) يعنی چه په خپل دين کښې ورته دنقصان ويره نه وی نو اختلاط غوره او افضل دې.

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی «والمختار فی عهدنا تفضيل الإنعزال لندور خلو المحافل عن المعاصی» (۴) يعنی زمونږ په زمانه کښې عزلت اوځانلوالې غوره اوافضل دې. ځکه چه عام مجالس ډير شاذ او نادر د ګناهونو او معاصی نه خالی وی.

علامه عينی رحمه الله فرمائی «أنا موافق له فيما قال فإن الإختلاط مع الناس فی هذا الزمان لا يجلب إلا الشرور» (۵) والله أعلم وعلمه أتم وأحكم.

## ۱۱ = بَاب قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا أَعْلَمُكُمْ بِاللَّهِ وَأَنَّ الْمَعْرِفَةَ فِعْلُ الْقَلْبِ لِقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى: وَلَكِنْ يُؤَاخِذُكُمْ بِمَا كَسَبَتْ قُلُوبُكُمْ (۶)

دعامو شارحينو رائې دا ده چه دلته دوه ترجمې دی يوه «أنا أعلمكم بالله» او دويمه «أن المعرفة فعل القلب» او آيت مبارکه د دويمې ترجمې دليل دې د اولنۍ ترجمې مطلب دا دې چه زه په تاسو کښې د ټولو نه زيات عالم يم په الله تعالی باندې. اوپه دويمه ترمه کښې خودلې شوی دی چه معرفت د زړه فعل دې.

---

(۱) سنن ابن ماجه كتاب الفتن باب الصبر على البلاء رقم ۴۰۴۳ وجامع الترمذی کتاب صفة القيامة باب ۵۵ رقم ۲۵۰۷)_

(۲) عمدة القاری(۱\۱۶۳)_

(۳) فتح الباری(۱۳\۴۳) کتاب الفتن باب التعرب فی الفتنة)_

(۴) شرح کرمانی (۱\۱۱۱)_

(۵) عمدة القاری (۱\۱۶۳)_

(۶) البقرة:۲۲۵)_

دلته دا اشکال دې چه دا ترجمه په کتاب الایمان کښې ولې راغله؟دلته خو د علم او معرفت ذکر دې اودا په کتاب العلم کښې ذکرکول پکار وو

ددې جواب ورکړې شوې د.چه په اصل کښې امام بخاري رحمه الله دا دلته ددې دپاره ذکر کړې دې چه دوی په اوله ترجمه کښې د مرجئو رد کوی اوپه دویمه ترجمه کښې د کرامیة.هغه په دې طریقه چه «أعلم»صیغه د اسم تفضیل ده.ددې نه ثابته شوه چه د علم مختلف درجې دی.او علم بالله ته ایمان وائی.اوهرکله چه د علم مختلفې درجې دی نو معلومه شوه.چه د ایمان به هم مختلفې درجې وی.اود ایمان مختلفې درجې به ددې وجې وی چه د اعمالو په وجه به فرق رځی.چه د چا اعمال زیات وی نودهغه ایمان به هم زیات وی اوچه د چا اعمال کم وی.د هغه ایمان به هم کم وی.نو د مرجیه رد اوشو ځکه چه دوی وائی چه د اعمالو د ایمان سره څه تعلق نشته.ددې ځائې نه معلومیږی.چه د اعمالو په کمی زیاتی سره په ایمان کښې هم کمې زیاتې راځی.نو اوس دا ترجمه د کتاب الایمان سره مناسب شوه.

بیا «وأن المعرفة فعل القلب»په دې سره د کرامیة رد کوی.ځکه چه د هغوی وینا ده.چه په ژبه باندې «لااله الا الله»وئیل کافی دی.امام بخاری رحمه الله فرمائی چه «لااله الا الله»په ژبې سره وئیل کافی نه دی.ځکه چه ایمان د معرفت نوم دې.او معرفت د زړه فعل دې.نو د زړه تصدیق ضروری شو.دا د عامو شارحینو خبره وه.کومه چه بیان شوه.(۱)

ددې نه پس په دې پوهه شئ:چه په اصل کښې دلته یو بیان د علم دې.اوبل بیان د معرفت دې.علم او معرفت متقارب دی.اګرچه په دواړو کښې لفظاً او معنی فرق شته.خو یو دبل په ځائې استعمالیدې شی.

په دواړو کښې لفظی فرق دا دې.چه د «علم»دوه معفوله وی.«علمت زیداً فاضلاً»اود معرفت یو مفعول وی.«عرفت زیداً»

په دې دواړو کښې معنوی فرق دا دې.چه معرفت دې ته وائی.چه په قوت حافظه کښې څه صفت یا څه صورت محفوظ وی.کله چه ذی صفت یا ذی صورت مخامخ راشی.نوهغه صورت په ذی صورت باندې منطبق شی.دې انطباق ته معرفت وائی.اهل کتابوته د نبی ﷺ د صفاتود سابقه کتابونو په ذریعه علم وو.کله چه نبی ﷺ تشریف راوړلو.نو هغوی دغه صفات په نبی ﷺ باندې منطبق بیا موندل.نو هغوی ته د نبی ﷺ معرفت حاصل وو.«کما قال تعالی: ﴿يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمْ﴾ (۲)دغه شان د یهودو تقبیح او تشنیع کوی.اوقرآن پاك فرمائی ﴿فَلَمَّا جَاءَهُمْ مَا عَرَفُوا كَفَرُوا بِهِ﴾ (۳)

---

۱) فضل الباری(۱\۳۶۸)_

۲) سورة البقرة:۱٤٦)_

۳) سورة البقرة:۸۹)_

دوی ته د رسول الله ﷺ د صفاتو علم وو.اوکله چه محمد ﷺ تشریف راوړلو .نو دوی دغه صفات په نبی ﷺ باندې منطبق اولیدل.خودې بدبختو ددې باوجود کفر اوکړلو.

بهرحال د علم تعلق د ((ثبوت الصفة للذات)) سره وی.نوا په منزله د تصدیق شو.((علمت زیداً فاضلاً))زید خو د وړاندې نه معلوم وو.اود زید دپاره د فاضل د صفت ثبوت معلوم شو.دلته په علم کښې د صفت ثبوت د ذات دپاره اوشو.اوهم دا په تصدیق کښې کیږی.چه هلته د محمول دموضوع دپاره ثبوت معلوم وی.اود موضوع او محمول په مینځ کښې د نسبت علم حاصل وی.حالانکه په معرفت کښې صرف د ذات علم وی.نو هغه په منزله د تصور دې.څکه چه په دې کښې ((عرفت زیداً))کله اووئیلی شی.نو زید چه یوکس دې.دهغه معرفت حاصل وی. اوبنکاره خبره ده.چه د یوکس صرف معرفت تصور دې.(١)

دلته امام بخاری رحمه الله خو اول دا نقل کړی وو.چه ((أنا أعلمکم بالله)) مطلب دا وو.چه ((أعلم)) صیغه د اسم تفضیل ده.او ((علم))ایمان دې.اوهرکله چه په علم کښې درجات مختلف دی.نو په ایمان کښې به هم درجات مختلف وی.اودایمان په درجاتو کښې اختلاف په اعمالوکښې د تفاوت په وجه دې.نوپه ایمان کښې به زیادت اونقصان راځی.اودا هم ثابته شوه.چه اعمال د ایمان جزء دې.او قابل دپاره د زیادت او نقصان هم دې.

خوپه دې باندې اعتراض کیږی.چه چا وئیلی دی.چه علم ایمان دې.ددې اعتراض د لرې کولودپاره امام بخاری رحمه الله اوفرمائیل.((وأن المعرفة فعل القلب)) علم اختیاری هم وی او غیر اختیاری هم.اود ایمان دپاره معرفت بالقلب ضروری دې.یعنی هغه معرفت بالقلب کوم چه اختیاری وی.او دلته د علم نه هم دغه مراد دې.نو هرکله چه د علم نه هم معرفت بالقلب اختیاری مراد دې.نوبیا دې ته ایمان وئیلوکښې څه قباحت نشته.نو مونږ دا وئیلی شو.چه علم یعنی معرفت بالقلب اختیاری کښې چونکه درجات متفاوت وی.اوهغه ایمان دې.نود ایمان درجات به هم متفاوت وی.او هرکله چه د ایمان درجات متفاوت وی.نوددې وجه به هم دا وی.چه په اعمالو کښې تفاوت وی.نو معلومه شوه.چه اعمال په ایمان کښې داخل شو.بلکه د امام بخاری رحمه الله د قول مطابق اعمال د ایمان جزء دې.یا د احنافو د موقف مطابق به داسې وئیلی شی.چه اعمال دایمان اثر او ددې فرع ده.د ایمان سره ددې ژور تعلق دې.او داعمالو دکمی زیاتی په وجه‌په ایمان کښې د کمی زیاتی حکم لګولې شی.

**قوله: لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى ﴿وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا كَسَبَتْ قُلُوْبُكُمْ﴾:** دلته دعوی ده.((أن المعرفة فعل القلب)) او دلیل دا دې. ﴿وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا كَسَبَتْ قُلُوْبُكُمْ﴾ دا آیت د ایمان (قسم) سره متعلق دې. ﴿لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا كَسَبَتْ قُلُوْبُكُمْ﴾(٢) او پورته د ایمان

---

(١) فضل البارى(۱/۳۶۷)_

(٢) سورة البقرة:۲۲۵)_

خبره روانه وه. په دواړو کښې مطابقت نشته

حضرت شاه رحمه الله فرمائی چه په اصل کښې په دې آیت سره امام بخاری رحمه الله «أن المعرفة فعل القلب» دا دعوی نه ثابتوی. بلکه ددې آیت نه صرف دا ثابتول غواړی چه د «کسبت» اضافت «قلوبکم» ته شوې دې. اوهرکله چ د «کسبت» نسبت «قلوب» ته شوې دې. نو معلومه شوه. چه کسب د قلب کاردې. او کسب یو فعل دې. نوګویا چه د قلب دپاره فعل ثابت شو او هرکله چه د قلب دپاره فعل ثابت شو. نو بیا که معرفت د قلب فعل ثابت کړې شی. دا څه عجیبه خبره نه ده. (۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی. چه امام بخاری رحمه الله غالباً د مشهور تابعی زید بن اسلم رحمه الله تفسیر طرف ته اشاره کوی. هغوی فرمائی. چه ﴿لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ﴾ مطلب دا دې. چه که یو کس دا اوانی رضي الله عنه «إن فعلت كذا فأنا كافر» نوکه ده دا جمله هم دغه شان اووئیله. څه نیت ئې نه وو کړې. او بیا ئې هغه کار اوکړلو. نو په دې باندې په هغه مواخذه نشته. او که په زړه کښې ئې د کافر کیدو اراده او نیت هم وو. او دده عقیده وه. چه په داسې کولوسره انسان کافر کیږی. نو په دې صورت کښې ددغه کار په کولوسره دې کافر کیږی.

لکه چه حضرت زید بن اسلم رحمه الله د «کسبت قلوبکم» تفسیر په عقیدې سره کړې دې. او عقیده او معرفت بالقلب یوځیزدې. نو «کسبت قلوبکم» نه معرفت بالقلب ثابت کیدې شی. (۲) دا توجیه د اولنۍ توجیه نه وزنی ده.

حضرت شیخ الاسلام علامه شبیر احمد عثمانی رحمه الله فرمائی. چه ددې آیت په تفسیر کښې ددې نه هم زیات ښکاره د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما او امام مجاهد رحمه الله وغیره اثر دې. «هو أن يحلف على الشئ وهو يعلم أنه كاذب» (۳) مطلب دا دې. که یوسړی د یوې خبرې په کیدو باندې قسم اوخوړلو. حالانکه ده ته ددې خبرې علم اویقین وی. چه دې دروغژن دې. نو مواخذه به ئې کیږی. ګنی نه به کیږی. ګورئ دلته د کسب تفسیر په علم سره شوې دې. نوځکه د مواخذې دپاره «وهو يعلم أنه كاذب» ئې شرط اوګرځولو. نو معلومه شوه. چه علم او معرفت د زړه فعل دې. ځکه چه د کسب نسبت ئې قلب ته کړې دې. اود کسب نه مراد علم دې. او علم او معرفت دواړه یو ځیز دې. (۴)

**فائده** دلته یوه ضمنی مسئله بیانوم په دې کښې اختلاف دې. چه د ټولو نه وړاندې په

---

(۱) فیض الباری (۹۵/۱)-

(۲) فتح الباری (۷/۱)_

(۳) تفسیر ابن کثیر (۲۶۷/۱)_

(۴) فضل الباری (۳۷۰/۱)_

انسان باندې څه واجب شوى دى؟
آيا د ټولو نه وړاندې معرفت ضرورى او واجب دى اوكه نظر او استدلال؟ يوه ډله ددې خبرې قائله ده چه معرفت ضرورى دې.او بله ډله ددې قائله ده.چه نظر او استدلال اول واجب ىوې دې.(۱)
امام الحرمين رحمه الله فرمائى چه په دې دواړو كښې په حقيقت كښې څه اختلاف نشته.ځكه چه د مقصود په لحاظ سره په اول فرصت كښې معرفت د ټولونه اول واجب دې. او د اشتغال او ادا په اعتبارسره قصد الى النظر اول واجب دې.سړې اول په نظر او استدلال كښې مشغول وى.بيا ددې نه پس معرفت ته اورسى.(۲)
امام الحرمين دا هم ليكلى دى.چه په دې خبره اجماع ده.چه معرفت د دليل او برهان په ذريعه حاصلول واجب دى.(۳)
خو حافظ ابن حجر رحمه الله په دې باندې اعتراض كړې دې.او فرمانيلى ئې دى.چه په اوله زمانه كښې چه به كوم كسان اسلام كښې داخليدل.نوبغير د څه نظراواستدلال نه به په اسلام كښې داخليدل.ددې نه سوا كه آيت قرآنى ﴿ فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا ۚ فِطْرَتَ اللَّهِ الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا ۚ ﴾(۴)
اوكه حديث شريف چه ((كل مولود يولد على الفطرة))كه د نظر وړاندې كړې شى.نو نظر اواستدلال دا بحث هډو پاتې كيږى نه.لا پاتې د دې د اول واجب او آخر واجب بحث شو.(۵)
بيا عارف ابن ابى جمره رحمه الله د ابوالوليد باجى مالكى رحمه الله په واسطه سره د ابوجعفر سمنانى (كوم چه د اشاعروُ په اكابرينوكښې دى.او مسلكاً حنفى دې) نه نقل كړى دى.(۶) دوى فرمائى.چه دا مسئله د معتزلوُ د مسائلو څنى ده.په غلطئ سره د اهل سنت په مسلك كښې نقل كولې شى.(۷)

---

(۱) فتح البارى(۷۰/۱)_
(۲) المصدرالسابق)_
(۳) المصدرالسابق)_
(۴) الروم:۳۰)_
(۵) المصدرالسابق)_
(۶) الفوائد البهية(ص.۱۵۹)_
(۷) فتح البارى(۷۱/۱)_

[۲۰] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ [1] قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَمَرَهُمْ أَمَرَهُمْ مِنَ الْأَعْمَالِ بِمَا يُطِيقُونَ قَالُوا إِنَّا لَسْنَا كَهَيْئَتِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ قَدْ غَفَرَ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ فَيَغْضَبُ حَتَّى يُعْرَفَ الْغَضَبُ فِي وَجْهِهِ ثُمَّ يَقُولُ إِنَّ أَتْقَاكُمْ وَأَعْلَمَكُمْ بِاللَّهِ أَنَا

## رجال الحدیث

① **محمد بن سلام:** دوی ابوعبدالله محمد بن سلام بن الفرج السلمی البیکندی دی.د ابن عیینه او ابن المبارک رحمهماالله نه ئې احادیث اوریدلی دی.اود دوی نه لویو محدثینو دامام بخاری وغیره رحمهم الله غوندې د احادیثو سماع کړې ده.[2]

د علم په طلب کښې ئې تقریباً څلویښت زره روپۍ خرچ کړې وی.اودومره ئې بیا ددې په خورولو کښې خرچ کړی دی.[3]

فرمائی چه ددوی مجالسو ته به پیریان هم حاضریدل.[4] په خپله ددوی نه نقل دی.دوی فرمائی چه ماته د پنځه زرو نه زیات واړه احادیث یاد دی.[5] په علم پسې ئې ډیر سفرونه کړی دی.او په مختلفو بابونو کښې ئې تصانیف هم پریخودی دی.[6]

د وخت به ئې څومره قدر کولو.ددې اندازه ددې نه اولګوئ چه یوځل ئې د یو استاذ نه حدیث اوریدل.د املاء په مجلس کښې د دوی قلم مات شو.چونکه د هغې په جوړولو او صحیح کولو باندې وخت لګیدلو،او حدیثونه پاتې کیدل.نو آواز ئې اولګولو.چه یو قلم به په یودینار(اشرفۍ) باندې څوك راکړی؟وئیلی شی.چه ډیر قلمونه دوی ته راغلل.[7]

په کال **۲۲۵ھ** کښې وفا شوې وو.[8]

---

[1] لم يخرجه أصحاب الأصول الستة سوى البخاري رحمه الله _

[2] عمدة القاری(۱\۱۶۵)_

[3] تهذیب الکمال (۲۵\۳٤۳)_

[4] سیر أعلام النبلاء (۱۰\۶۲۹)_

[5] عمدة (۱\۱۶۵)_

[6] المصدر السابق)_

[7] عمدة (۱\۱۶۵) وسیر أعلام النبلاء (۱۰\۶۲۹)_

[8] تاریخ کبیر بخاری (۱۱۰\۱) وتهذیب الکمال (۲۵\۳٤٤) وسیر أعلام النبلاء (۱۰\۶۳۰) وعمدة القاری(۱\۱۶۵) وتذکرة الحفاظ (۲\٤۲۲) وخلاصة الخزرجی (ص.۳٤۰) والأعلام للزرکشی (۶\۱٤۶) یاد دی وی.چه په تهذیب التهذیب (۹\۳۱۳) او تقریب التهذیب (ص.٤۸۲) کښې د وفات کال **۲۲۷** ذکردې کوم چه په ظاهره صحیح نه دی.

ددوى د پلار نوم ((سلام)) د لام په تخفيف سره وو.صاحب د مطالع ليكلى دى.چه د زياتو عالمانو په نيزد لام په تشديد سره دې.خوامام نووى رحمه الله ددې تعقب كړې دې.اوفرمائيلى ئې دى چه د زياتو عالمانو په نيزيه تخفيف د لام سره دې.بيا په خپله د محمد بن سلام نه ددوى د والد صاحب د نوم په باره كښې د تخفيف اللام تصريح موجودده.اوامام منذرى رحمه الله خو قاعده يو رساله ليكلې ده.او په هغې كښې دوى تشديد لام ته ترجيح وركړې ده.

ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه ((ولكن المعتمد خلافه)) يعنى ددې مخالف قول معتمد دې.(١)

② **عبدة:** دوى عبده بن سليمان بن حاجب بن زراره كلابى كوفى دې.بعضې خلقو وئيلى دى.چه ددوى نوم عبدالرحمن دې.او عبده ئې لقب دې.

دهشام بن عروه او اعمش وغيره تابعينونه ئې سماع كړې ده.او ددوى نه امام احمد وغيره احاديث اوريدلى دى.

امام احمد رحمه الله ددوى په باره كښې فرمائى((ثقة ثقة وزيادة مع صلاح))

په كوفه كښې په كال ۱۸۷ه يا ۱۸۸ه كښې وفات شوې وو.(٢) رحمة الله عليه

د هشام ، عروه او حضرت عائشې رضي الله عنها مختصرحالات وړاندې په بدء الوحى كښې د دويم حديث لاندې تير شوى دى.

**قوله كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَمَرَهُمْ أَمَرَهُمْ مِنَ الْأَعْمَالِ بِمَا يُطِيقُونَ قَالُوا إِنَّا لَسْنَا كَهَيْئَتِكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ:** رسول الله ﷺ چه به كله صحابه كرامو رضي الله عنهم ته د يو څيز حكم كولو.نو د داسې اعمالوحكم به ئې كولو.چه د كومو به هغوى طاقت لرل.صحابو به عرض كولو.يا رسول الله زمونږ حالت ستاسو پشان نه دې.

په اكثرو رواياتوكښې دلته ((أمر))دوه خله واقع شوې دې.او مطلب ددې هم هغه دې.كوم چه اوس وړاندې بيان شو.په دې صورت كښې به دويم ((أمرهم))جواب وى.

خو په بعضې رواياتو كښې په د احاديثو په نورو كتابونوكښې ((أمرهم))يو ځل راغلى دى.په دې صورت كښې به مطلب دا وى.چه چه كله به رسول الله ﷺ صحابو ته د داسې اعمالو حكم كولو.چه د كوم د كولوبه په هغوى كښې طاقت وو .نو هغوى به فرمائيل. يارسول الله مونږ ستاسو پشان نه يو.يعنى تاسو خو زمونږ د آسانتيا دپاره حكم كوئ.اود ګرانو اعمالو حكم نه راكوئ.مونږ ته خو ګرانو اعمالو ضرورت دې ستاسو په ((مغفورله))خو نه يو.

بهرحال په اولنى صورت كښې ((إذا أمرهم))شرط دې او ((أمرهم من الأعمال بما يطيقون))جواب

(١) فتح البارى(١\٧١)_

(٢) عمدة القارى(١\١٦٥) وتقريب (٢\٣٦٩) رقم الترجمة (٤٢٦٩)_

اول دې او «قالوا: إنا لسنا...» جواب ثاني دې.

او په دويم صورت کښې «إذا أمرهم من الأعمال بما يطيقون» شرط دې او «قالوا: إنا لسنا كهيئتك» جواب دې.

دلته د «بما يطيقون» نه داسې اعمال مراد دی کوم چه تول عمر کولی شی. خکه په حديث کښې راځی «أحب الأعمال إلى الله أدومها وإن قل»[۱] د الله تعالى په نيز د ټولو نه زيات خوښ عمل هغه دې کوم ته چه دوام حاصل وی اګرچه هغه کم وی نو «بما يطيقون» معنی به وی چه کوم تول عمر کولې شی. د نوافلو دومره اهتمام کول پکار دی چه هغه تول عمر کولی شی دا فرائض کوم چه شريعت مقرر کړی دی دا ټول هغه دی کوم چه سړې ټول عمر کولی شی.

دا په «بما يطيقون» کښې داخل دی که ددې په باره کښې څوک اووائی چه دا خو زمونږ په طاقت کښې نشته او مونږ دومره نشو کولې نو دا دده سرکشی ده او د نفس او شيطان ګمراه کول او د غفلت په وجه دې داسې خبره کوی. ګنی الله تعالى چه کوم فرائض په ذمه باندې لګولی دی او د کوم چه ئې مکلف جوړ کړی دی هغه د انسان په طاقت کښې داخل دی او دې ئې ټول عمر کولی شی.

**قوله: إِنَّا لَسْنَا كَهَيْئَتِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ قَدْ غَفَرَ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ:** حضرات صحابه کرامو ﷺ د زيات عمل خواهش ښکاره کړلو او وې فرمائيل حضرت مونږ ستاسو پشان نه يو الله تعالى خو تاسو ته ټول وړاندينی او روستنی ګناهونه معاف کړی دی.

په يو اوږد حديث کښې دی چه څه خلق د نبی ﷺ بيبيانو ته راغلل او د نبی ﷺ د عبادت په باره کښې ئې تپوس اوکړلو کله چه هغوی ته د نبی ﷺ د عبادت کيفيت اوخودلې شو نو «كأنهم تقالوها» هغوی دغه عبادت کم اوګڼړل او وې وئيل «فأين نحن من النبي ﷺ قد غفر الله له ما تقدم من ذنبه وما تأخر» بيا په هغوی کښې يوکس اووئيل «أما أنا فأنا أصلي الليل أبدا» او دويم اووئيل «أنا أصوم الدهر أبدا» او دريم او وئيل «أنا أعتزل النساء فلا أتزوج أبدا» کله چه نبی ﷺ تشريف راوړلو نو دوی ته ټولې خبرې بيان کړې شوې نو نبی ﷺ اوفرمائيل «أنتم الذين قلتم كذا وكذا؟ أما والله إني لأخشاكم لله، وأتقاكم له، لكني أصوم وأفطر، وأصلي وأرقد، وأتزوج النساء، فمن رغب عن سنتي فليس مني»[۲]

---

[۱] صحيح مسلم (۱\۲۶۶) كتاب صلاة المسافرين وقصرها باب فضيلة العمل الدائم من قيام الليل وغيره)۔

[۲] صحيح البخاري (۲\۷۵۷) كتاب النكاح باب الترغيب في النكاح رقم ۵۰۶۳ وصحيح مسلم (۱\۴۴۹) كتاب النكاح باب إستحباب النكاح وسنن النسائي (۲\۶۹) كتاب النكاح باب النهي عن التبتل)۔

بهرحال دې حضراتو چه څه وئيلى وو.نو په دې جذبه ئې وئيلى وو.چه د نبى ﷺ دپاره د مغفورالذنب او معصوميت ضمانت موجود دې.اود مغفرت د اعلان په وجه نبى ﷺ ته د زيات عبادت څه ضرورت نشته.او زمونږ سره څه ضمانت نشته. د دې وجې زمونږ دپاره په اعمالوكښې زيات كوشش كول پكاردې.هغوى ته احساس اوشو.چه زمونږ حصه په دين كښې ډيره كمه ده.كومه چه كيدې شى زمونږ د نجات دپاره كافى نه وى.والله اعلم

**دعصمت انبياء مسئله:** ددې حديث شريف نه دا معلوميږى.چه د نبيانوعليهم السلام نه د ګناهونواو عصيان صدور كيږى.

په دې خبره اجماع ده.چه پيغمبران عليهم السلام د نبوت نه وړاندې اود نبوت نه پس د كفر نه معصوم دى.د دوى نه كفر نشى كيدې.په دې خبره هم اجماع ده. چه پس د نبوت نه د دوى نه په قصد سره ګناه نشى كيدې.البته په سهو سره ترې واړه ګناهونه صادر كيدې شى كه نه ،نوپه دې كښې اختلاف دې.

د اشاعرۀ په نيز د پيغمبرانو نه واړه ګناهونه په سهو سره څه چه په قصد سره هم صادريدې شى.د نبوت نه وړاندې هم او پس هم،حلانكه ماتريديه ددې نه مطلقاً انكار كړې دې.حافظ عراقى ،تقى الدين سبكى وابواسحاق اسفرائينى، او قاضى عياض ﷺ دا قول اختيار كړې دې.بيا چه څوك دا وائى.چه صغائرترې كيدې شى. هغوى دا هم وائى.چه د پيغمبرانو نه هغه صغائرنشى صادريدې.كوم چه په خست دلالت كوى.[1]والله أعلم

**قوله:** إِنَّ اللَّهَ قَدْ غَفَرَ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ:دلته سوال دا دې.چه ددې جملې څه مطلب دې؟ ځكه چه په دې كښې كښې د ذنب نسبت نبى ﷺ ته شوې دې.هم دا سوال د قران كريم په آيت باندې هم واردیږى.كوم كښې چه راغلى دى. ﴿لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ﴾ [2]په دې آيت كښې چه نبى ﷺ ته د ذنب كوم نسبت شوې دې.نو ددې نه يو جواب دا وركړې شوې دې.چه دلته د امت ګناهونه مراد دى.[3]

خودا جواب ډير زيات كمزورې دې.ځكه چه اګرچه بعضې مفسرينو يواحتمال داضرورذكر كړې دې.خو د احاديثو په رڼا كښې چه كوم تفسير جمهورو مفسرينو اختياركړې دې.هغه صحيح دې.جمهورو مفسرينودلته د ذنب نسبت نبى ﷺ ته كړې دې.ددې وجه دا ده.چه د بخارى په حديث كښې دى.چه كله د صلح حديبيه په موقع دا آيت ﴿إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُبِينًا ۝ لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ﴾ [4] نازل شو.نوصحابو ﷺ عرض اوكړلو.«هنيئاً مريئاً فمالنا» يارسول الله تاسوته دې مبارك شى.دا خو ستاسود د مغفرت خبره ده.زمونږ دپاره څه دى. نو

---

[1]) فيض البارى مع حاشيه البدرالسارى(۱\۹۵، ۹۶) والنبراس شرح شرح العقائد(ص.۲۸۳، ۲۸۴)_
[2]) سورة الفتح ۲)_
[3]) التفسير القرطبى (۱۶\۲۶۳)_
[4]) الفتح:۱ ۲)

الله تعالى آيت نازل كړلو. ﴿ لِيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ ﴾ (۱) نو معلومه شوه چه صحابه كرام رضي الله عنهم كوم چه د قرآن پاك اولنى مخاطبين وو.هغوى د «ليغفرلك» معنى «ليغفرلأمتك» نه ده ګنړلې. دغه شان كه هغوى غلط پوهه شوى وو.نو دهغوى د تپوس نه پس به نبى ﷺ ورته تنبيه وركړې وه.چه تاسو غلط پوهه شوي ئي.ددې معنى خو ده. «ليغفرلأمتك» خونبى ﷺ ورته څه تنبيه ورنكړله .بلكه د امت دپاره مستقل آيت نازل شو.(۲)

دويم جواب دقاضى عياض رحمه الله دې.اوشاه صاحب رحمه الله هم دا اختيار كړې دې.دوى فرمائى. چه يو دې معصيت او يو دې خطاء او يو دې ذنب.معصيت شديد وى.نافرمانى ته وائى. ددې نه كمه درجه د خطاء ده.ددې معنى غلطى ده. اوددې نه كمه درجه د ذنب دهٔ ددې معنى عيب دې.د معصيت او خطاء نه پيغمبران عليهم السلام معصوم وى.او ذنب چه كوم څيز ته وائى.هغه يو معمولى څيز دې.كوم چه د معصيت يا د خطا برابرنه دې.البته دا د دوى دشان په اعتبارسره ددوى دپاره معيوب تصور كولې شى.دا دعصمت منافى نه دې.(۳)

په دې جواب باندې دا اعتراض كيږى.چه په قرآن مجيد كښې ﴿إِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا﴾ (۴) راغلى دى.اوپه دې كښې ټول معاصى داخل دى؟

ددې جواب دا وركولې شى.چه د ذنب كومه معنى پورته بيان كړې شوه.هغه په هغه وخت كښې ده.كله چه دا د معصيت په مقابله كښې استعمال كړې شى. اګرچه د معصيت سره تقابل نه وى.نوپه دې كښې عموم هم پيدا كيږى.

دريم جواب دا وركړې شوې دې.چه يو اصول دى.«حسنات الأبرار سيئات المقربين»

ددې مثال باندې داسې پوهه شئ.چه د خلقو دوه طبقې دى.عوام او خواص.د عوامو دپاره قانون وى.اود هغه قانون د لاندې دفعات وى.په هغوى باندې دا ذمه وارى وى.چه هغوى به ددغه قانونى ددفعاتو مخالفت نه كوى.خو چه كوم خواص دى.نو دهغوى دپاره صرف د قانون نه بلكه د مزاج هم خيال ساتل پكاروى.كوم چه د حكومت او سلطنت خواص وى.د هغوى ذمه وارى صرف دا نه وى.چه د قانون خلاف ورزى نه كوى.بلكه د هغوى دپاره ددې پابندى هم ضرورى ده.چه هغوى د بادشاه د مزاج خلاف څه حركت هم نه كوى.اګرچه هغه په قانونى مواخذه كښې نه راځى.

اوګورئ حضرت يعقوب عليه السلام ﴿إِنِّي لَيَحْزُنُنِي أَنْ تَذْهَبُوا بِهِ وَأَخَافُ أَنْ يَأْكُلَهُ الذِّئْبُ﴾ (۵) ونيلى وو.كوم چه په ظاهره د توكل خلاف وو.نوځومره كلونو پورې ورته د حضرت يوسف عليه السلام د جدائى غم

---

(۱) سورة الفتح ۲_

(۲) سورة الفتح ۵\ صحيح البخارى كتاب المغازى باب غزوة الحديبية رقم ۴۱۷۲)_

(۳) فيض البارى(۹۶\۱)_

(۴) الزمرا ۵۳_

(۵) سورة يوسف:۱۳)_

زغم ورپه غاړه شو.

دحضرت موسى عليه السلام نه سوال شوې وو. «أى الناس أعلم؟» دهغې په جواب کښې هغوى فرمائيلى وو. «أنا»[1] نو په هغوى باندې کوم خائې سفرونه اوکړې شول. اودحضرت خضر عليه السلام په خدمت کښې حاضر کړې شو.

د يونس عليه السلام په باره کښې په قرآن پاك کښې راځى. ﴿وَذَا النُّونِ إِذ ذَّهَبَ مُغَاضِبًا فَظَنَّ أَن لَّن نَّقْدِرَ عَلَيْهِ﴾[2] دحضرت يونس عليه السلام دا عقيده هرګز نه وه. چه دالله تعالى په هغه باندې قدرت نشته. کلا وحاشا. داسې خبره هيڅ کله نه وه. البته د هغه د عمل نه داسې مترشح کيده. نو په هغوى باندې عتاب نازل شو.

دغه شان د حضرت عبدالله بن ام مکتوم واقعه ده. هغوى به د نبى خدمت کښې حاضريدلو د نبى صلى الله عليه وسلم خاص سړې وو. او نبى په هغه وخت کښې د قريشو د سردارانو سره د ايمان او اسلام په باره کښې خبرې کولې. نوپه دغه موقع باندې حضرت عبدالله بن ام مکتوم راغلو نو نبى صلى الله عليه وسلم ته نامناسبه معلومه شوه. نو نبى صلى الله عليه وسلم ورته د خفګان اظهاراوکړلو. خو د الله شرك په مقابله کښې د يو مومن سره داسې سلوك کول دالله تعالى په نيز د مواخذه سبب اوګرځيدلو. اود سورة عبس اولنى آياتونه «عبس وتولى...» نازل شو.[3] دلته په «ما تقدم من ذنبك وما تأخر» کښې مقصد هم دا دې چه ستاسو نه چه ستاسود مقام او ستاسو د شان او ستاسو د مرتبې نه د کمې درجې کوم کارونه صادرشوى دى. اګرچه په هغې کښې څه قباحت يا غلطى او عيب نه وو. خوبيا هم الله تعالى اوفرمائيل. چه مونږ هغه تاسو ته معاف کړى دى. دهغې نه مراد ګناه نه ده. ددې وجې نه صحابه کرامو رضى الله عنهم ددې آيت نه استدلال اوکړلو. چه ﴿لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِن ذَنبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ﴾[4]

څلورم جواب دا ورکړې شوې دې چه کومو خلقو ته د مشاهده حق کيفيت حاصل وى. د هغوى دپاره د ښنوخورول هم ګران وى. د قضائې حاحت دپاره کيناستل ورته ګران وى. د بيبيانو سره اختلاط ورته هم مشکل وى. ځکه چه هغوى ته هروخت دا خيال وى. چه الله تعالى ماته ګورى. دا کيفيات په عامو اولياء کرامو رحمهم الله باندې هم راځى. ددې نه اندازه اولګوئ. چه د نبى صلى الله عليه وسلم کيفيت به څنګه وو؟

په دې آيت کښې چه داسې کوم کيفيات به په نبى صلى الله عليه وسلم باندې د مشاهده حق په وجه راتلل. او په هغې کښې د امور طبعيه پوره کولو کښې به کومه تنګى راتله. د هغې دپاره ورته اوفرمائيلى شو. چه ﴿لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِن ذَنبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ﴾ ددې نه حقيقى ذنوب مراد نه دى.[5]

---

[1]) الصحيح البخارى كتاب التفسير سورة الكهف باب ((وإذا قال موسى لفتاه .. رقم ٤٧٢٥)_

[2]) الأنبياء (٨٧)_

[3]) سنن ترمذى كتاب التفسيرباب ومن سورة عبس رقم ٣٣٣١)_

[4]) روح المعانى (٢٦\٩٦)_

[5]) امداد البارى(٤\٤٦٣)_

پنځم جواب دا دې چه دا خطاب د تشريف اوتكريم دې چه د قيامت په ورځ كله په ميدان حشركښې د حساب كتاب په انتظارخلق په تكليف كښې مبتلا وى. نو خلق به ددغه پريشانئ په حالت كښې حضرت آدم ﷺ ته ورشى.آدم ﷺ به ورته د خپل قصور ذكر اوكړى. بيا به خلق حضرت نوح ﷺ ته ورشى هغه به هم د خپل قصر ذكر وكړى. دغه شان به نورو پيغمبرانو عليهم السلام ته ورشى او په آخر كښې به د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شى.(١)

چونكه د مقام دا شفاعت د نبى ﷺ دپاره متعين دې چه چرته دوى هم داسې قسم عذر پيش نكړى.نو ځكه نبى ﷺ ته د «ماتقدم وما تأخر» د مغفرت سند د وړاندې نه وركړې شو.لكه چه نبى ﷺ ته د وړاندې نه دا اطمينان وركړې شو.چه تاسو د هغه وخت د شفاعت دپاره تيار شئ.اوخلقوته څه عذر مكوئ.لكه څنګه چه به نور پيغمبران عليهم السلام كوى.

شپږم جواب دا دې چه دلته د «ذنب» نه مراد اجتهادى غلطى ده.اومطلب دا دې چه ستاسو تولې هغه خطاګانې كومې چه د اجتهاد په طور ستاسو نه شوى دى.معاف دى.

اووم جواب استاذ محترم حضرت شيخ الاسلام ﷺ دا وركړې دې.دوى فرمائى چه د ستارمعنى د ستر ده.او د غفار معنى هم د ستر ده.نو د «ليغفرلك الله» معنى به دا وى چه الله تعالى ساتر يعنى مانع به وى «بين الذنب وبين النبى ﷺ» يعنى ذنب به نبى ﷺ ته نه پريږدى. څنګه چه د حضرت يوسف ﷺ په باره كښې په قرآن كښې دى. ﴿كَذٰلِكَ لِنَصْرِفَ عَنْهُ السُّوْٓءَ وَالْفَحْشَآءَ ۚ اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُخْلَصِيْنَ۝﴾ (٢)

د پيغمبرانو عليهم السلام دپاره الله تعالى دګناهونو او ددوى په مينځ كښې ساتر وى اود غيرنبى دپاره «بين الذنب والجزاء» دلته مراد دې چه ګناهونه به ستاسو دررسيدوته نه پريږدى.

**د «ما تقدم وما تاخر» نه څه مراد دې؟** ما د عموم دپاره ده.او«متقدم اومتأخر» د كل د احاطه نه كنايه ده.

د «ماتقدم» نه مراد قبل ازنبوت اود «ماتأخر» نه مراد بعد ازنبوت مراد دې.

يا قبل ازهجرت او بعد ازهجرت مراد دې.

يا قبل ازفتح مكه او بعد ازفتح مكه مراد دې

ددې نه علاوه نور هم ډيراقوال دى.(٣)

---

١) صحيح مسلم (١١٠٨١١، ١٠٩)_ كتاب الإيمان باب إثبات الشفاعة وإخراج الموحدين من النار)_

٢) يوسف: ٢٤)_

٣) ددې تولواقوالودپاره اوګورئ تفسيرقرطبى(٢٦٢١٦، ٢٦٣)_

**يوسوال اودهغې جواب** د ((ماتقدم)) مغفرت خو په پوهه كښې راځي خود ((ماتأخر)) مغفرت به څنګه وي؟

ددې جواب دا دې چه د مغفرت دپاره د ګناه وجود ضروري نه دې څكه چه د ((مغفرة)) معنى ده پټول او پرده اچول. د ((ما تقدم)) مغفرت خوښكاره دې اود ((ماتاخر)) دمغفرت به دا مطلب وي چه ستاسو او ګناهونو او ذنوب په مينځ كښې به پرده واچولې شى دې دپاره چه ستاسو نه ګناه صادرنشى.[1]

يوجواب دا وركړې شوې دې چه د مخلوق په لحاظ سره اګرچه بعضې څيزونه ((ما تقدم)) دى او بعضې څيزونه ((ما تاخر)) دى خو دالله تعالى د علم په لحاظ سره ټول څيزونه په يووخت كښې موجود دى ((ماتقدم)) او ((ماتاخر)) نه دى نوپه دې لحاظ سره د مغفرت وعده كړې شوې ده.[2]

خودا جواب صحيح نه دې څكه چه د مواخذه او محاسبه تعلق او د مغفرت تعلق د الله تعالى د علم سره نه وى بلكه د فعل د ظهور سره وى والله اعلم

**چه ټول پيغمبران عليهم السلام هركله معصوم دى نو صرف د نبى ﷺ تخصيص ولې اوكړې شو؟** ددې نه پس به دې باندې پوهه شى چه لكه څنګه د نبى ﷺ مغفرت شوې دې دغه شان د نورو پيغمبرانو عليهم السلام مغفرت هم شوې دې نوپه قرآن پاك كښې الله تعالى د نبى ﷺ دمغفرت اعلان ولې كړې دې؟

ددې جواب دا دې چه چونكه د قيامت په ورځ به د محشرد سختئ نه د نجات دپاره نبى ﷺ سفارشى جوړيږى نوځكه په دنيا كښې دا اعلان اوشو چه ستاسو نه به څه تپوس نه كيږى.[3]

**قوله** فَيَغْضَبُ حَتَّى يُعْرَفَ الْغَضَبُ فِي وَجْهِهِ: نبى ﷺ به غصه شو تردې چه د غضب او غصې اثاربه د نبى ﷺ په مخ مبارك كښې ښكاره شول.

**دغضب وجه** نبى به عام طور غصه نه كوله البته كه د فطرت نه خلاف به چه څه خبره وه نوبى ﷺ به په هغې باندې غصه كيدلو هم دا صورت دلته پيش شوې دې دلته د اعمالو كثرت اهتمام د فطرت نه خلاف وو څكه چه بنيادم هغه نشى پوره كولې كه يو كس لوظ اوكړى چه زه به ټول عمر روژې نيسم نوهغه به په دې باندې ترڅو پورې قائم وى يوكس دا لوظ اوكړى چه زه به ټوله شپه نفلونه كوم اوادۀ كيږم به نه نوهغه به په دې باندې ترڅو پورې پابند وى چه يوكس دا لوظ اوكړى چه زه به د لوندتوب ژوند تيروم اوهيڅ كله به وادۀ

---

[1] ارشاد السارى (۱\۱۰۳)_

[2] امداد البارى (٤\٤٦٤)_

[3] فيض البارى (۱\۹۶)_

نه كوم.نوهغه به تركومې پورې د پاكدامنۍ ژوند تيروى.چونكه صحابه كرامو داسې قسم خبرې كړې وې.اودا د فطرت انسانى خلاف وې.ځكه نبى ﷺ خفه شو.(١)
بعضې حضراتودا فرمائيلى دى.چه خفګان ددې وجې راغلې وو.چه هغوى د نبى ﷺ عمل كم ګنړلې وو.(٢)
بعضې حضراتودا فرمائيلى دى.چه نبى ﷺ ددې وجې خفه شوې وو.چه هغوى د نبى ﷺ د ګناهونو مغفرت زيرې سبب ګنړلې وو.ځكه نبى ﷺ ته د زيات عبادت او عمل ضرورت نشته.اوزمونږ دپاره خو د زيات عبادت او نوافلواهتمام پكار دې. حالانكه دزيرى اوزيدل ديو سليم الفهم او شريف الطبع دپاره د زيادت فى العبادة سبب جوړيږى.هم دا وجه ده.كله چه حضرت عائشې ﷺ نبى ته عرض اوكړلو.اې د الله رسوله! ستاسومغفرت خو شوې دې.تاسو ولې دومره محنت كوئ. اوځان په مشقت كنبې اچوئ.نونبى ﷺ ورته په جواب كنبې اوفرمائيل.((أفلا أكون عبداً شكوراً))(٣)

**قوله: ثُمَّ يَقُولُ إِنَّ أَتْقَاكُمْ وَأَعْلَمَكُمْ بِاللَّهِ أَنَا:** بيا نبى ﷺ اوفرمائيل.په تاسوكنبې دټولونه زيات ويردونكې اوزيات عالم په الله تعالى باندې زه يم.

نبى ﷺ په ((أعلمكم)) باندې قوت علميه اوپه ((أتقاكم)) سره قوت عمليه ته طرف اشاره اوكړله.اومطلب داوو.چه په اعمالوكنبې دمجاهدې كولوسبب دوه قوتونه دى.يوقوت علميه او بل قوت عمليه،په دې دواړوكنبې زه ستاسو نه زيات يم.نوددې باوجود هركله چه زه په مجاهده كنبې مبالغه نه كوم.نوتاسو څوك ئې. چه دا لار اختياروئ.(٤)والله سبحانه وتعالى أعلم

**دحديث باب نه مستفاد مسائل:** ① ددې حديث نه يوه فائده دا حاصله شوه.چه په اعمال صالحه سره په درجاتو كنبې ترقى كيږى.اوګناهونه معاف كيږى.چونكه صحابه كرامو چه دخپل ځان دپاره د درجود ترقۍ كومه لاره اختيار كړې وه.هغه زيادت فى العبادة وو.نو نبى په هغې باندې انكار اونكړلو.بلكه په غلو فى العبادة باندې ئې انكاراوكړلو.
② دويمه فائده ترې دا حاصله شوه.چه بنده الله تعالى څومره موفق جوړ كړى.اوده ته د څومره عبادت او اورادو كولوتوفيق وركړى.نودهغې د برقرارساتلودپاره هغه دپاره مواظبت او پابندى پكار ده.
③ دريمه فائده دا معلومه شوه.چه شارع د عزيمت او رخصت كوم حدود مقرر كړى.اودا اعتقاد ساتل پكاردى.چه كوم جهت آسان او دشريعت موافق وى.هغه اختيارول د نورو

---

(١) فيض البارى(١\٩٧)_
(٢) امدادالبارى(٤٦١\٤، ٤٦٢)_
(٣) فتح البارى(١\٧١)_
(٤) فتح البارى(١\٧١)_

جهتونو په مقابله کښې اولی دي.کوم چه په مشقت کښې غورځول کوی.اودشریعت د منشاء نه خلاف وی

④ څلورمه خبره دا معلومه شوه چه په عبادت وغیره کښې میانه روی اختیارول پکاردی اوبیا په هغې باندې مداومت کول پکار دی.داسې مبالغه نه چه وړاندې لاړ شی.نود سره هغه عمل پريخودلوته مجبوره شي

⑤ پنځمه خبره دا معلومه شوه چه حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم به په عبادت کښې زيات رغبت کول.اود زياتو نيکو طالبان وو

يوه فائده ددې حديث نه دا معلومه شوه.چه دشريعت خلاف ورزئ په صورت کښې خفګان کول مشروع دي.بلکه دا که پوهه سړې غلطی اوکړی نودهغه د خبردارکولو او هوښيارولو دپاره په هغه باندې انکار کول صحيح دی.

بله فائده ترې دا حاصله شوه.چه سړې د ضرورت په اندازه خپل فضيلت بيانولې شی.خوپه دې شرط چه فخراومباهات اود تکبر ګډون په کښې نه وی

ددې حديث نه دا هم معلومه شوه چه نبی ﷺ ته د کمال انسانيت مرتبه حاصله وه.ځکه چه دا کمال په قوت علميه اوقوت عمليه پورې منحصردې.اودې دواړو قوتونو ته نبی ﷺ په «أعلمكم»او«أتقاكم»سره اشاره اوکړله.(١)والله أعلم

# ١٢ = بَابٌ مَنْ كَرِهَ أَنْ يَعُودَ فِي الْكُفْرِ كَمَا يَكْرَهُ أَنْ يُلْقَى فِي النَّارِ مِنَ الْإِيمَانِ

دلته د«من كره» نه وړاندې «كراهة» مصدرمحذوف دې.او«من الإيمان» خبر دې.تقديرد عبارت به دا وی«باب كراهة من كره العود في الكفر ككراهة الإلقاء في النار من شعب الإيمان»(٢)

**د ماقبل سره ربط:** علامه عينی رحمه الله فرمائيلی دی.چه ددې باب د ماقبل سره مناسبت دا دې چه په ماقبل کښې صحابه کرامو رضی الله عنهم د نبی ﷺ نه د زيادت في العبادة اجازت غوښتې وو. اوددې وجه ښکاره ده.چه حلاوت ايمان وو.اوس په دې حديث کښې هم دحلاوت اود حلاوت داسبابو بيان دې.(٣)

دا هم وئيلی شی.چه دا باب د ماقبل باب فائده او ثمره ده.ځکه چه په ما قبل کښې د الله تعالی د معرفت اوعلم بيان وو اوښکاره خبره ده.چه دچا په زړه کښې څومره دالله تعالی معرفت وی نو هم هغه هومره به دهغه ايمان قوی وی.اوهم هغه هومره به دهغه د کفرنه

---

(١) فتح البارى(٧١\١)_

(٢) عمدة القارى(١٦٧\١)_

(٣) المصدرالسابق)_

نفرت اوكراهت وى.په دې باب كښې ددغه كراهت بيان دې (۱)

دا هم ونيلى شى چه امام بخارى رحمه الله ((فرار من الفتن)) ته دين ونيلى وو دلته ((فرار من الكفر)) ته هم دين وائى.نولكه څنګه چه يوكس ته ((فرار من الفتن)) پكاردى.نودغه شان هغه دپاره ((فرار من الكفر)) هم ضرورى دې.(۲)

**د ترجمې مقصد** دا ترجمه هم د سابقه تراجمو پشان ددې مقصد دپاره منعقد شوې ده.چه د مرجئو ترديد اوشى.په دې طريقه چه ايمان دپاره د قوت اوحلاوت ضرورت دې اوقوت اوحلاوت په ايمان كښې په اعمالو سره راځى.چه اعمال نه وى.نوايمان به بې خونده اوبې لذته وى.اوچه اعمال وى.نوپه ايمان كښې به حلاوت او طاقت وى نومعلومه شوه چه اعمال دايمان جزء دې.(۳)

حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى چه دامام بخارى رحمه الله عادت دې .چه دوى اضداد ذكركوى.ددغه عادت مطابق ئې دلته دا باب ذكركړې دې.چه څومره چه چا كښې ايمان قوى وى.نوهم هغه هومره به په هغه كښې د ايمان د ضد نه نفرت وى لكه چه دامام بخارى رحمه الله مقصددا دې.چه طاعات په ايمان كښې زيادت كوى.نود كفرنه نفرت هم دايمان د زيادت سبب دې.اودا هم دايمان يوه شعبه ده.(۴)والله أعلم

[۲۱] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ(۵) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثَلَاثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ وَجَدَ حَلَاوَةَ الْإِيمَانِ مَنْ كَانَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا وَمَنْ أَحَبَّ عَبْدًا لَا يُحِبُّهُ إِلَّا لِلَّهِ عَزَّ وَجَلَّ وَمَنْ يَكْرَهُ أَنْ يَعُودَ فِي الْكُفْرِ بَعْدَ إِذْ أَنْقَذَهُ اللَّهُ مِنْهُ كَمَا يَكْرَهُ أَنْ يُلْقَى فِي النَّارِ [رقم ۲۱]

## رجال الحديث

① سليمان بن حرب: دا ابوايوب سليمان بن حرب بن بجيل ازدى واشحى بصرى دى. د شعبه ،حمادين وغيره نه ئې د حديث سماع كړې ده.اوددوى نه امام احمد ،امام ذهلى، امام حميدى او امام بخارى احاديث اوريدلى دى.

ابوحاتم رحمه الله فرمائى چه دوى په امامانوكښې دې.تدليس نه كوى.په رجالو باندې هم ددوى كلام شته.اود فقه سره هم مناسبت لرى.د دوى تقريباً لس زره احاديث دى.ما ددوى په لاس

---

۱) امدادالبارى (۱۴/۴۶۸)_

۲) تقريربخارى (ص.۱۳۱)_

۳) ايضاح البخارى (۳/۲۸۱)_

۴) تقريربخارى شريف (۱/۱۳۱)_

۵) ددې حديث تخريج مخكښې د ((باب حلاوة الايمان)) لاندې تيرشوې دې

كښې چرته كتاب نه دې ليدلې.زه بغداد كښې د دوى درس حديث ته حاضر شوې ووم.چه دحاضرينود شمار اندازه مې اولګوله.نو تقريباً څلويښت زره وو.
دمكې قاضى هم پاتې شوې دې.په كال ۱۴۰ه كښې پيدا شوې وو.اوپه ۲۲۴ ه كښې په بصره كښې وفات شوې وو.(۱) رحمة الله عليه.

② **شعبه:** ددې حالات د «باب من سلم المسلمون من لسانه ويده» په ضمن كښې لاندې تيرشوى دى.

③ **قتادة:** ددوى حالات په «باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه» دلاندې تير شوى دى.

④ **حضرت انس رضى الله عنه:** ددوى حالات هم د پورتنى باب دلاندې تيرشوى دى.

**په حديث مكرركيدو باندې اعتراض اوددې جواب:** دا حديث په وړاندې «باب حلاوة الإيمان» كښې تيرشوې دې.اودلته ئې دا دوباره راوړلو. ددې په مكرر راوړلو باندې اعتراض شوې دې.
ددې جواب دا دې.اګرچه بنيادى طور دا حديث هم هغه دې.خو ددې په سند او متن كښې فرق شته.په سند كښې دحضرت انس رضي الله عنه نه سوا باقى ټول راويان مختلف دى.ځكه چه دحديث باب راويان دې. سليمان بن حرب، شعبه، قتاده، او د سابقه حديث راويان دى محمد بن مثنى ،عبدالوهاب ثقفى ،ايوب سختيانى، او ابوقلابه جرمى رحمهم الله.
بيا په متن كښې هم فرق دې.ځكه چه په حديث الباب كښې چه كوم درې څيزونه بيان شوى دى.د دې په شروع كښې «من كان الله و رسوله ..» او«من أحب عبداً..» او«من يكره أن يعود ..» اود سابقه باب په حديث كښې په دې درې واړه ځايونو كښې د «أن» لفظ دې.دغه شان په سابقه حديث كښې د «بعد أن أنقذه الله» جمله نشته.اوپه دې حديث كښې شته.ددې نه علاوه په حديث باب كښې د «يلقى» لفظ شته.اوپه سابقه حديث كښې د «يقذف» لفظ دې.والله أعلم
دحديث تفصيلى تشريح د «باب حلاوة الإيمان» لاندې تيره شوې ده.

# ۱۳ - بَاب تَفَاضُلِ أَهْلِ الْإِيمَانِ فِي الْأَعْمَالِ

په دې ترجمه كښې څو مباحث دى.
**اولنې بحث د ترجمې غرض** دامام بخارى رحمه الله ددې ترجمې د انعقاد نه مرجئو باندې رد دې.اودا بنائى چه مرجئه دا وائى.چه دايمان دپاره داعمالو څه ضرورت نشته.كه اعمال نه وى. نوهم ايمان ته څه نقصان نه رسى.نودا ثابتوى.چه دا دعوى غلطه ده.بلكه اعمال فائده رسوى.ځكه چه داعمالو په وجه داهل ايمان په درجاتو كښې تفاضل راځى. هم دا وجه ده.چه د چا اعمال زيات وى.هغه به وړاندې جنت ته داخليږى.اوكوم مسلمانان چه جهنم ته

---

(۱) عمدة القارى(۱۱۶۸/۱)_

ورواچولی شی.نوپه هغوی کښې به هم هغه کسان وړاندې راویستې شی.دچا اعمال چه زیات وی.(۱)

دغه شان مرجئه وائی.چه داعمالو هډو څه اثرنشته.نه په طاعت باندې څه فائده رسی.اونه په گناه باندې څه نقصان،نوکه چرته داسې وه.نو بیا داخلق د اعمالو په وجه ولې جهنم ته اچولی شی؟ لکه څنگه چه د باب په روایت کښې ذکردی.

دمرجئو پشان په حدیث الباب سره په خوارجو او معتزلو باندې هم رد کیږی.هغه داسې چه د کبائرو د ارتکاب باوجود دوی د دوزخ نه راویستې شی.

حالانکه د خوارجو او معتزلو په نیزمرتکب د کبیرة به مخلد فی النار وی.(۲)

یا داونیلی شی.چه امام بخاری رحمه الله دا بیانول غواړی.چه داعمالوپه وجه د اهل ایمان په ایمان کښې تفاوت او تفاضل پیدا کیږی.په دې صورت کښې به «فی» سببیه وی.اومقصد به دا وی.چه په اعمالوکښې په زیادت اونقصان سره په ایمان کښې تفاضل زیادت او نقصان راځی.(۳)

**دویم بحث:** دویم بحث دا دې.چه امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې د حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه کوم حدیث بیان کړې دې.په دې کښې د «تفاضل فی الایمان» بیان دې.ددې نه نې په «مثقال حبة من خردل من ایمان» سره تعبیرکړې دې.په دې کښې د «تفاضل فی الأعمال» ذکرنشته.نو روایت د ترجمة الباب سره مطابق نشو.

ددې جواب دا دې.چه امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب سره دا خودلی دی.چه په حدیث کښې د«من خردل من ایمان» کښې دایمان نه مراد اعمال دی.په دې باندې دایمان اطلاق ددې وجې کړې دې.چه په دې باندې دایمان تکمیل کیږی.اودایمان نه چه اعمال مراد اخستې شی.نوپه دې باندې هم ددې روایت دویم لفظ قرینه ده.په هغې کښې «من خردل من ایمان» په ځائې «من خردل من خیر» راغلی دی.او«خیر» وائی.عمل ته.(۴)

**دریم بحث:** دریم بحث دا دې.چه امام بخاری رحمه الله دکتاب الایمان په اول کښې دټولونه وړاندې چه کومه ترجمه منعقد کړې ده.په هغې کښې وو.«باب قول النبی صلی الله علیه وسلم بنی الإسلام علی خمس وهو قول وفعل ویزید وینقص» نوهرکله چه امام بخاری رحمه الله دایمان د زیادت اونقصان مسئله بیان کړې ده.نودوباره ددې مسئلې بیانول څو تکراردې؟

(۱) تقریربخاری (۱۳۲\۱)_

(۲) تقریربخاری(ص.۱۳۲)_

(۳) عمدة القاری(۱۶۸\۱)_

(۴) فتح الباری (۷۳\۱)_

نوددې جواب دا دې چه اولنۍ ترجمه خو ترجمه جامعه ده.اوراروان تراجم د هغې تفصيل اوتوضيح دی.نوپه دې باندې دتکراراشکال نه واردیږی.

دويم جواب دا دې چه امام بخاری رحمه الله هلته «يزيدوينقص» تبعاً ذکر کړې وو.اودلته ئې مستقلاً ذکر کوی.هلته «بنى الإسلام على خمس» حدیث مقصود دې او ترجمة الباب ئې هم د هغې دپاره راوړې وو.اودلته زيادت او نقصان بيانول مقصود دی.

بعضې دا هم وئيلی دی.چه هلته د زيادت اونقصان تعلق داسلام سره وو. اودلته د زيادت او نقصان تعلق د ايمان سره دې.نوتکرار نشته.

**څلورم بحث** څلورم بحث دا دې چه امام بخاری رحمه الله وړاندې په صفحه ⑤ باندې يوه ترجمه منعقد کړې وه.«باب زيادة الإيمان ونقصانه» اعتراض دا دې چه دهغه باب مقصد هم په ايمان کښې د زيادت او نقصان بيان وو.اوکومه ترجمه چه ئې دلته منعقد کړې ده.نوددې مقصد هم دا دې.نودا خو تکرارشو.

ددې يوجواب دا دې.چه دلته په اعمالوکښې داهل ايمانو تفاوت بيانول مقصود دی.اوهلته امام بخاری رحمه الله خو په ايمان کښې يعنی نفس تصديق کښې د کمی زياتی بيان کوی.(۱)

دويم جواب دا دې.چه هلته امام بخاری رحمه الله په نفس ايمان کښې د کمی اوزيادت بيان کړې دې.اوپه راروانه ترجمه کښې د مومن به په اعتبارسره د کمی اوزياتی ثبوت ورکوی.(۲)

خودا جواب صحيح نه معلوميږی.ځکه امام بخاری رحمه الله ترجمه منعقد کړې ده.د «زيادة فى الإيمان ونقصانه» چه په ايمان کښې زيادت اونقصان راځی.اودمومن به په اعتبارسره خو زيادت راځی.خونقصان نه راځی.بلکه په کمی سره خو ايمان مفقود کيږی.

چونکه د مومن به نه مراد هغه امور دی.په کوموباندې ايمان راوړلو باندې چه سړې مکلف وی.نود ايمان بالله نه پس مطالبه ده.دايمان بالملائکه.اوبيا ايمان بالرسل اوبيا ايمان بالکتب اوبيا ايمان باليوم الآخراو بيا ايمان بالقدر.نوکه يوکس داسې وی.چه هغه ته اول د ايمان بالله علم وی.او بيا ورته د ايمان بالملائکه علم حاصل شی.نودده په مومن به کښې زيادت راغلو.اوچه بيا ورته د ايمان بالرسل علم اوشو نوبيا ئې په ايمان نوره اضافه اوشوه اوچا بيا ورته د ايمان الکتب علم اوشو نوپه ايمان کښې ئې نوره اضافه اوشوه.خوکه يوکس په ذکرشوو څيزونوکښې په يوڅيز باندې ايمان پريږدی.نوپه ايمان کښې کمی نه راځی.بلکه ايمان ختميږی.ځکه چه په کومو څيزونو باندې ايمان راوړل ضروری دی.په هغې کښې که په يوڅيز باندې ايمان پريخودې شی نوټول ايمان ختم شو ځکه چه د ايمان د تحقق دپاره التزام د طاعت ضروری دې يعنی دهغه ټولوڅيزونو تسليم کول اومنل په کومو چه ايمان راوړل ضروری وی داسې نه ده چه په بعضو ايمان راوړی اوپه بعضې رانوړی.دا

---

(۱) فتح الباری(۱۰۳/۱) کتاب الإيمان باب زيادة الإيمان ونقصانه)_

(۲) لامع الدراری (۵۹۱/۱)_

خوعين كفر دې ﴿أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ الْكِتٰبِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ﴾ (۱) نوخکه «باب زيادة الإيمان ونقصانه» کښې د مومن به په اعتبارسره په زيادت باندې حمل کول هم صحيح نه دى.اگرچه بعضې اكابرينو امامانو دا توجيه کړې ده. (۲)

دريم جواب دا دې چه چونکه دايمان د زيادت او نقصان مسئله مختلف فيها ده.اودامام بخارى رحمه الله دا عادت دې چه په کومه مسئله کښې اختلاف وى اوسخت اومشهور وى. اودامام بخارى رحمه الله رجحان يو طرف ته وى.اوبل طرف خلق زور لگوى اودلائل پيش کوى. نوبيا امام بخارى رحمه الله دخپلې مدعى ثابتولو دپاره مختلفې طريقې اختياروى.اوپه مختلفو ارخونوباندې خپله مدعى ثابتوى. دغه شان ئې دلته په کتاب الايمان کښې مصنف رحمه الله هم دا طريقه اختيارکړې ده.اودا ئې په مختلف انداز سره ثابته کړې ده.چه اعمال په ايمان کښې داخل دى. لکه څنگه چه په کتاب التوحيد کښې دالله تعالى د صفاتو په اثبات کښې کړې دى.اوصفت كلام دپاره ئې ډيرتراجم منعقد کړى دى.په ابواب الخمس کښې امام بخارى رحمه الله د يوې مدعى د ثابتولو دپاره چه په خمس کښې دامام اختيار شته. څلور بابونه قائم کړى دى.نودا دامام بخارى رحمه الله عادت دې چه کومه مسئله مختلف فيها وى.او اختلاف په کښې شديد وى.اود بل دطرف نه هم خپل زور خودلى شى.نوامام بخارى رحمه الله هم خپل زور ښائى.اوچه کوم طرف د دوى په نيز راجح وى.هغه په مختلفوطريقو سره ثابتوى. نوپه ايمان کښې د زيادت اونقصان په مختلف فيها مسئله کښې دامام بخارى رحمه الله رائې د زيادت اونقصان دثبوت په حق ده.نوځکه ددې دثبوت دپاره مختلف ابواب ذکرکوى.والله أعلم.

**پنځم بحث** پنځم بحث دا دې چه امام بخارى رحمه الله ددې باب لاندې دحضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه حديث ذکرکړې دې.اوکوم باب چه په (ص.۱۱) باندې راخى.يعنى «باب زيادة الإيمان ونقصانه» نوهلته ئې د حضرت انس رضي الله عنه روايت نقل کړې دې.دواړه روايتونه په مضمون کښې مشترك دى.

اولنې سوال دا دې چه امام بخارى رحمه الله په دواړو باندې جدا جدا ترجمه ولې منعقده کړه.

دويم سوال دا دې چه امام بخارى رحمه الله دحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه حديث په دې باب کښې ذکرکړې دې.اوددې الفاظ دا دى.«أخرجوا من كان في قلبه مثقال حبة من خردل من إيمان» اود حضرت انس رضي الله عنه کوم حديث چه په «باب زيادة الإيمان ونقصانه» کښې راخى نوپه هغې کښې د «وزن شعيرة من خير» او «وزن برة من خير» او «وزن ذرة من خير» الفاظ راغلى دى.او «خير» عمل ته وائى نودحضرت انس رضي الله عنه حديث ددې ترجمې يعنى «باب تفاضل أهل الإيمان في الأعمال» سره

---

(۱) سورة البقرة:۸۵_

(۲) كما جزم بذلك السندى رحمه الله فى حاشيته على صحيح البخارى انظر(۱/۱۰۳) واختاره شيخ الهند فى تراجمه أنظر تقرير بخارى شريف (۱/۱۴۶)_

مناسب وو.څکه چه په دې کښې دخيريعنى دعمل ذکردې اوحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه حديث د هغه ترجمې سره مناسب وو.کومه چه وړاندې راغى.نوچونکه دحضرت ابو سعيد خدرى رضي الله عنه په روايت کښې د ايمان ذکروو.اوپه دې ترجمه کښې هم د ايمان د زيادت او نقصان ذکرشوې دې.نوحضرت امام بخارى رحمه الله دحضرت انس رضي الله عنه حديث په «باب تفاضل الأعمال» کښې اوحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه روايت په راروان «باب زيادة الإيمان ونقصانه» کښې ولې ذکرنکړل.

دريم سوال دا دې.چه مصنف رحمه الله په دواړو ځايونوکښې يولفظ اصالةً اوبل تعليقاً ذکرکړې دې.دحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه په حديث کښې ئې د «خردل من خير» لفظ تعليقاً راوړې دې.او«من إيمان»ئې په اصل روايت کښې ذکرکړې دې. اودحضرت انس رضي الله عنه په روايت کښې ئې د «من إيمان»لفظ تعليقاً راوړې دې.او«من خير»ئې اصالةً ذکرکړې دې.

اوس سوال دا دې.چه امام بخارى رحمه الله لره پکار وو.چه دوى دحضرت ابو سعيدخدرى رضي الله عنه حديث کښې د «من خير»لفظ اصالةً ذکرکړې وو.څکه چه دخير نه مراد عمل دې.اوپه ترجمه کښې د اعمالو په اعتبار سره تفاضل بيانولې شى.او «من إيمان»ئې تعليقاً راوړې وې.دغه شان دحضرت انس رضي الله عنه په روايت کښې ئې «من إيمان» اصالةً راوړې وې.څکه چه په نفس ايمان کښې زيادت اونقصان بيانول مقصود دى.او«من خير»ئې تعليقاً ذکرکړې وو.

حافظ ابن حجر رحمه الله د اولنو دواړوسوالونو دا جواب ورکړې دې.چه په اصل کښې دحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه اوحضرت انس رضي الله عنه په روايتونوکښې د دواړو خبرو احتمال شته.کيدې شى.چه تفاضل ايمان فى الأعمال مراد وى.اوکيدې شى.چه تصديق کښې زيادت اونقصان مراد وې.چونکه دواړه احتمالات وو.نومصنف رحمه الله په دواړو احتمالاتوباندې ترجمه قائمه کړه.چونکه دحضرت انس رضي الله عنه په روايت کښې د موزوناتو تفاوت په «شعيرة، برة، ذرة»سره بيان شوې دې.ددې وجې امام بخارى رحمه الله په ايمان قائم بالقلب کښې د کمى اوزيادت د اظهار دپاره «زيادة الإيمان ونقصانه» ترجمه منعقده کړه.اودا ئې اوخودل.چه په تصديق کښې کمې اوزيادت کيږى. اودحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه په حديث کښې تفاوت فى الموزونات نشته.نوځکه ئې په دې باندې د «تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال»ترجمه قائمه کړه.(١)

امام العصرعلامه انورشاه کشميرى رحمه الله فرمائى.چه ددې جواب نه خودا معلومه شوه.چه دحضرت انس رضي الله عنه په روايت باندې ئې د ايمان د زيادت اونقصان ترجمه ولې قائمه کړه.خو ددې خبرې جواب اونه شو.چه دحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه په روايت باندې ئې د «تفاضل

(١) فتح البارى(١\١٠٣) کتاب الإيمان باب زيادة الإيمان ونقصانه)-

أهل الإيمان فى الأعمال» ترجمه ولې قائمه كړې شوه. (١)

حضرت شاه صاحب رحمه الله دويم جواب كړې دې.چه په اصل كښې دامام بخارى رحمه الله وراندې دحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه تفصيلى روايت دې.كوم چه امام بخارى رحمه الله په كتاب التوحيدكښې (٢) كړې دې.اوامام مسلم په كتاب الايمان كښې تخريج كړې دې.(٣)په دغه تفصيلى روايت كښې داعمالوتذكره ده.چه خلق به په موقف كښې جمع وى.بيا به الله تعالى تجلى اوكړى.خلق به په سجده پريوځى .پل صراط به اولګولې شى.خلق به د هغې نه تيريږى.بيا به جنتيان جنت او دوزخيان دوزخ ته داخل شى.بيا به جنتيان دخپلو جهنميانو ورونړو په حق كښې الله تعالى ته عرض اوكړى.«ربنا كانوا يصومون معنا ويصلون ويحجون فيقال لهم أخرجوا من عرفتم فتحرم صورهم على النار فيخرجون خلقا كثيرا قد أخذت النار إلى نصف ساقيه وإلى ركبتيه ثم يقولون ربنا ما بقى فيها أحد ممن أمرتنا به فيقول ارجعوا فمن وجدتم فى قلبه مثقال دينار من خير فأخرجوه فيخرجون خلقا كثيرا ثم يقولون ربنا لم نذر فيها أحدا ممن أمرتنا ثم يقول ارجعوا فمن وجدتم فى قلبه مثقال نصف دينار من خير فأخرجوه فيخرجون خلقا كثيرا ثم يقولون ربنا لم نذر فيها ممن أمرتنا أحدا ثم يقول ارجعوا فمن وجدتم فى قلبه مثقال ذرة من خير فأخرجوه فيخرجون خلقا كثيرا ثم يقولون ربنا لم نذر فيها خيرا فيقول الله عزوجل شفعت الملائكة وشفع النبيون وشفع المؤمنون ولم يبق إلا أرحم الراحمين فيقبض قبضة من النار فيخرج منها قوما لم يعملوا خيرا قط قد عادوا حمما فيلقيهم فى نهرفى أفواه الجنة يقال له نهر الحياة فيخرجون كما تخرج الحبة فى حميل السيل»(٤)چونكه په دې روايت كښې په اعمالوكښې دتفاوت بيان دې.نوځكه امام بخارى رحمه الله دحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه په روايت مختصره باندې دتفاوت وتفاضل فى الاعمال باب منعقد كړو. حقيقت دا دې.چه دشاه صاحب رحمه الله دا جواب د حافظ ابن حجر رحمه الله دجواب نه اقوى اوارجح دې.(٥)

بهرحال چه د دواړو حضراتو جوابونه ملاؤ كړې شى.نودا معلوميږى.چه دحضرت انس رضي الله عنه په روايت باندې ئې ددې وجې د زيادت ونقصان فى الايمان ترجمه قائمه كړه.چه په دې كښې دتفاوت فى الايمان ذكردې.اودحضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه په روايت باندې ئې د تفاضل فى الاعمال ترجمه ځكه قائمه كړه.چه د هغوى په روايت مفصله كښې د اعمالو ذكردې.

---

(١) فيض البارى(١\١٠٠)_

(٢) صحيح بخارى(٢\١١٠٧، ١١٠٨) كتاب الرد على الجهمية وغيرهم باب قول الله تعالى( وجوه يومئذ ناضرة إلى ربها ناظرة ) رقم ٧٤٣٩)_

(٣) صحيح مسلم (١\١٠٢، ١٠٣) كتاب الإيمان باب رؤية المؤمنين فى الآخرة ربهم سبحانه وتعالى)_

(٤)مسلم كتاب الايمان باب معرفة الرؤية )_

(٥) فيض البارى (١\١٠٠)

اوس سوال دا پاتې كيږي.چه امام بخارى رحمه الله داسې ولې اوكړلو.چه د حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه په روايت كښې ئې ((من خردل من ايمان)) اصل اوګرځولو .او((من خردل من خير)) ئې په متابعت سره ذكركړلو.اودحضرت انس رضي الله عنه په روايت كښې ئې ددې په عكس باندې ذكركړل.

ددې جواب دا دې.چه په اصل كښې دحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه د تفصيلى روايت نه معلومه شوه.چه په دې كښې دكوم تفاوت ذكردې.دهغې نه تفاوت فى الاعمال مراد دې. نو امام بخارى رحمه الله د ((من ايمان)) روايت اصل اوګرځولو.اوپه ((خردل من خير)) سره ئې د هغې شرح اوكړله.اودا ئې اوخودل.چه د ((من ايمان))نه مراد ((من خير)) دې.

يا داسې اووايه.چه داعمالوپه سلسله كښې ئې د((من خير)) په ځائې ((من ايمان)) روايت اصل اوګرځولو.نوپه دې سره امام بخارى رحمه الله د ايمان اوعمل په مينځ كښې مضبوط تعلق ښكاره كول غواړى. اوپه دې كښې د مرجئو زبردست رد دې.ځكه چه دوى د اعمالو د ايمان سره هډوتعلق منى نه.اود نبى صلى الله عليه وسلم په نيزتعلق دومره قوى دې.چه نبى صلى الله عليه وسلم په اعمالوباندې د ايمان اطلاق كوى.(¹)

اودحضرت انس رضي الله عنه په روايت كښې چونكه تفاوت فى الموزونات نه تفاوت فى نفس الايمان والتصديق مراد دې.نوامام بخارى رحمه الله وړاندې ((من خير)) روايت ذكركړلو.اوبيا ئې تعليقاً د ((من ايمان))لفظ راوړلو.اوددې شرح ئې اوكړه.(²)والله سبحانه وتعالى أعلم.

[۲۲] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى الْمَازِنِيِّ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ(³) عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَدْخُلُ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ وَأَهْلُ النَّارِ النَّارَ ثُمَّ يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى أَخْرِجُوا مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ فَيُخْرَجُونَ مِنْهَا قَدْ اسْوَدُّوا فَيُلْقَوْنَ فِي نَهَرِ الْحَيَا أَوْ الْحَيَاةِ شَكَّ مَالِكٌ فَيَنْبُتُونَ كَمَا تَنْبُتُ الْحِبَّةُ فِي جَانِبِ السَّيْلِ أَلَمْ تَرَ أَنَّهَا تَخْرُجُ صَفْرَاءَ مُلْتَوِيَةً قَالَ وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا عَمْرٌو الْحَيَاةِ وَقَالَ خَرْدَلٍ مِنْ خَيْرٍ [۶۱۹۲]

---

¹) ايضاح البخارى(۱۳\۲۸٤، ۲۸۵)_

²) فيض البارى(۱\۱۰۰، ۱۰۱)_

³) هذا الحديث أخرجه البخارى فى كتاب التفسير ،سورة النساء باب «إن الله لا يظلم مثقال ذرة رقم ٤۵۸۱ وسورة القلم باب يوم يكشف عن ساق رقم ٤۹۱۹ وفى كتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار رقم ۶۵۶۰ و باب الصراط جسر جهنم رقم ۶۵۷٤ وفى كتاب التوحيد باب قول الله «وجوه يومئذ ناضرة إلى ربها ناظرة» ، ق ۷٤۳۸، ۷٤۳۹ومسلم فى صحيحه فى كتاب الإيمان باب رؤية المؤمنين فى الآخرة ربهم سبحانه وتعالى)

# رجال الحديث

①**اسماعيل:** دوى عبدالله بن اسماعيل بن ابى اويس عبدالله بن عبدالله بن اويس بن مالك بن ابى عامر اصبحى مدنى دى.

دا د امام مالك رحمه الله خورئي دي.دوى دخپل ماما يعنى امام مالك رحمه الله نه او د خپل پلار.او ورور عبدالمجيد ،اوابراهيم بن سعد ،سليمان بن بلال.اوددوى نه علاوه د نورو حضراتو نه احاديث اوريدلى دى.

او دوى نه په روايت كونكوكښې امام بخارى ،امام مسلم.امام دارمى رحمهم الله نه علاوه نور حافظان دى.د دوى احاديث امام بخارى.امام مسلم اوابن ماجه په خپلوخپلو كتابونوكښې نقل كړې دى.اوامام نسائى د دوى تضعيف كړې دې . نو ځكه هغوى ددوى نه حديث نه دى اخستې.امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى.((محله الصدق وكان مغفلاً))

دامام يحيى بن معين رحمه الله نه منقول دى.دوى فرمائى.چه اسماعيل او ددوى پلار دواړه ضعيفان دى.ددوى نه دا هم نقل دى.چه ((اسماعيل صدوق ضعيف العقل ليس بذلك)) مطلب دا دې.چه دوى په حديث كښې صحيح تصرف نشى كولې.اونه دخپل كتاب نه علاوه دبل كتاب قراءت اوادا صحيح كولې شى.

ابوالقاسم لالكائى رحمه الله فرمائى.امام نسائى.چه په دې باندې كلام كړې دې. نومبالغه ئې كړې ده.دهغه مبالغې دوجې دوى متروك ګرځول لازميږى.كيدې شى .امام نسائى ته د دوى داسې حالات ښكاره شوى وى.چه هغه نورو ته نه وى ښكاره شوى.ځكه چه د نورو حضراتو د كلام نه صرف دومره معلوميږى.چه دوى ضعيف دى.

بيا دابن معين رحمه الله نه د دوى تعريف هم منقول دې.دغه شان به امام احمد اوامام بخارى رحمهما الله هم د دوى تعريف كولو.(1)

حافظ ابن حجر رحمه الله چه ددوى په باره كښې په تقريب كښې كوم فيصله كن قول ذكركړې دې. هغه دا دې.((صدوق أخطأ في أحاديث من حفظه))(2)

حافظ ابن حجر رحمه الله ليكلى دى.چه اسماعيل بن ابى اويس امام بخارى رحمه الله ته خپل روايات وركړل.اودوى ته ئې اووئيل.چه په دې احاديثوكښې چه كوم قابل احتجاج وى.په هغې باندې نښه اولګوه.چه هغه صرف دهغه احاديثو روايت كوى.او د نورو روايت پريږدى.

د دې واقعه نه معلوميږى.چه امام بخارى رحمه الله د دوى كوم احاديث په خپل صحيح كښې نقل كړى دى.هغه منتخب اوصحيح احاديث دى.دغه شان ددې واقعه نه دا خبره هم معلوميږى. چه د صحيح بخارى نه سوا په نورو كومو كتابونو كښې چه ددوى احاديث ذكر

---

(1) عمدة القارى(۱۶۹/۱)_

(2) تقريب التهذيب(۱۰۸) رقم الترجمة ۴۶۰)_

دی.هغه قابل احتجاج نه دی.ځکه چه امام نسائی او نورو امامانو رحمهم الله دې ضعیف ګرځولې دې.البته که ددوی متابعت موجود وی. نوقابل احتجاج کیدې شی.(۱)

④ مـالك: ددوی حالات وراندې د «باب من الدین الفرار من الفتن» په ضمن کښې تیرشوی دی.

③ عمروبن یحیی المـازنی: ددوی عمروبن یحیی بن عماره بن ابی حسن المازنی المدنی رحمه الله دی.دخپل پلار نه علاوه د نورو محدثینو نه روایت کوی.اوددوی نه چه چا سماع کړې ده.په هغوی کښې دیحیی بن سعید انصاری نه علاوه نور تابعین دی.

امام ابوحاتم رازی اوامام نسائی رحمهما الله ددوی توثیق کړې دې.په کال ۱۴۰ هـ کښې ئې وفات شوی دی.(۲)

④ یحیی: دوی یحیی بن عماره بن ابی حسن المازنی المدنی دی.دحضرت ابوسعید خدری اوحضرت عبدالله بن زید انصاری رضی الله عنهما نه ئې احادیث اوریدلی دی. او د دوی نه ددوی خوی او امام زهری رحمه الله احادیث اوریدلی دی.

بعضې حضراتو ددوی پلارحضرت عماره صحابی ګرځولې دې.خو دا صحیح نه ده.بلکه ددوی نیکه حضرت ابوالحسن صحابی رضی الله عنه وو.(۳)

حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه: ددوی حالات وراندې د «باب من الدین الفرار من الفتن» په ضمن کښې تیرشوی دی.

**قوله: يَدْخُلُ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ وَأَهْلُ النَّارِ النَّارَ ثُمَّ يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى أَخْرِجُوا مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ:** جنتیان به جنت ته داخل شی.اوجهنمیان به جهنم ته داخل شی.بیا به الله تعالی ارشاد اوفرمائی.د چا په زړه کښې چه د اوری د دانې هومره ایمان هم وی. هغه د اور نه راوباسئ. ددې نه معلومیږی.چه اعمال به تللی شی.

**داعمالو وزن:** دلته داعمالو دوزن مسئله نشته.خوضمناً بیانولې شی.

په دې کښې اختلاف دې.چه اعمال به تللی شی اوکه صحائف؟

دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما (٤) وامام بخاری رحمه الله (٥) رائې دا ده.چه اعمال به تللی شی.حافظ ابن حجر رحمه الله دا د اهل سنت نه نقل کړی دی.(٦)

---

۱) هدی الساری(۳۹۱)_

۲) عمدة القاری(۱\۱٦۹) وتقریب (٤۲۸) رقم ۵۱۳۹)_

۳) عمدة القاری(۱\۱٦۹) وتقریب (۵۹٤) رقم ۷٦۱۲ ) وتقریب (٤۰۸) رقم ٤۸٤۲)_

٤) تفسیر کبیر(۱٤\۲۵) وتفسیرقرطبی (۷\۱٦٦)_

۵) صحیح بخاری آخری باب)_

٦) فتح الباری(۱۳\۵۳۸)_

دحضرت عمر رضي الله عنه نه نقل دى چه اعمال به تللى شى.[1] علامه قرطبى رحمه الله دا قول اختيار كړى دى.[2] اوامام فخرالدين رازى رحمه الله دا قول د عامو مفسرينو رحمهم الله نه نقل كړى دى.[3]

بلكه دوى يو روايت نقل كړى دى په كوم كښې چه د اعمالو د تللو صراحت موجود دى.[4]

دغه شان په سنن ترمذى او مسند احمد كښې يو روايت دى.حضرت عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنهما فرمائى چه يوكس به د قيامت په ورځ راوستې شى. اودده وړاندې به يوكم سل رجسټرې پرانستې شى.هر رجسټر به د سترګو دنظر په اندازه لوئې وى.بيا به ده ته اووئيلې شى چه زما فرشتوخو په تا باندې څه ظلم نه دې كړې.آيا په دې كښې داسې څه څيز شته چه ته ترې انكار كوې.هغه به اووائى .نه. بيا به يوكاغذ راوويستې شى.په هغې به كلمه شهادت وى.هغه سړې به اووائى.ددې رجسټرو په مقابله كښې به ددې څه وزن وى.خوچه كله هغه كاغذ كيخودې شى.نو په ټولو رجسټرو به درنه شى.[5]

اشكال كيدې شى.چه د اعمالوصحيفې چه تللى شى.دا خو په ذهن كښې راځى.خواعمال دا خود قبيلې د اعراضو نه دى.ددې د تللو به څه صورت وى؟

په يوه زمانه كښې دا اشكال وو.خونوو تحقيقاتو دا اشكال د جرړې نه اوويستلو.آواز په ټيپ كښې محفوظ كولې شى.شمسى شعاګانې په آلاتوكښې محفوظ كولې شى.ددې پيمائش كولې شى.د حرارت او برودت تول كولې شى.دې ټولوتحقيقات دا اشكال دسرنه ختم كړلو.خوچه په كومه زمانه كښې دا تحقيقات نه وو.په هغه زمانه كښې خلقو دا جواب وركړې وو.چه دا اعراض به داجسامو په صورت كښې كړې شى.اوددې نه به جسم جوړ كړې شى.اوبيا به تللى شى.[6]

دريم قول دا دې.چه د اعمالو خاوندان به تللى شى.[7]

اوددې دليل په صحيحينو كښې دحضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت دې.«إنه ليأتي الرجل العظيم السمين يوم القيامة لايزن عند الله جناح بعوضة»[8]

---

[1]) تفسيرقرطبى(۱۶۵\۷)_

[2]) المصدرالسابق)_

[3]) تفسير كبير(۱۶۵\۱٤)_

[4]) سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم عما يوزن يوم القيامة فقال الصحف . تفسيركبير(۱\۲۵)_

[5]) جمع ترمذى كتاب الإيمان باب ما جآء فيمن يموت وهو يشهد أن لا إله إلا الله رقم ۲۳۹) ومسند أحمد (۲۱۳\۲)_

[6]) فتح البارى( ۱۳\۵۳۹) كتاب التوحيد باب قول الله تعالى: ونضع موازين القسط ليوم القيامة)_

[7]) تفسير ابن كثير(۲\۲۰۲) سورة الأعراف آيت (والوزن يومئذالحق)_

[8]) الصحيح البخارى كتاب التفسير سورة الكهف باب ﴿ أولئك الذين كفروا بآيات ربهم ولقائه فحبطت أعمالهم) رقم ٤۷۲۹) وصحيح مسلم (۲\۳۷۰) كتاب صفات المنافقين باب صفة القيامة والجنة والنار)_

دغه شان د نبى ﷺ نه نقل دى «لرجل أثقل فى الميزان يوم القيامة من أحد»(١)

دغه شان فرمائى «والذى نفسى بيده لهما (يعنى الساقين) أثقل فى الميزان من أحد»(٢)

خودا دواړه روايتونه په خپل ظاهر باندې نه دى محمول د صحيحينو د روايت نه بې قدرى مرادده اود دويم روايت نه دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په نيز قدراو منزلت بيان شوې دې حافظ ابن كثير رحمه الله فرمائيلى دى كيدې شى چه د بعضو اعمال تللى شى اود بعضو عمل نامې اوبعضې په خپله تللى شى (٣)والله أعلم.

**قوله** فَيُخْرَجُونَ مِنْهَا قَدِ اسْوَدُّوا فَيُلْقَوْنَ فِي نَهَرِ الْحَيَا أَوِ الْحَيَاةِ شَكَّ مَالِكٌ فَيَنْبُتُونَ كَمَا تَنْبُتُ الْحِبَّةُ فِي جَانِبِ السَّيْلِ أَلَمْ تَرَ أَنَّهَا تَخْرُجُ صَفْرَاءَ مُلْتَوِيَةً: بيا به د خلق د جهنم نه راويستې شى.دوى به سوزيدلى او تور شوى وى.بيا به د باران يعنى ژوند په نهر كښې واچولې شى.(امام مالك ته شك دې) نو دوى به يا داسې راټوكيږى. لكه څنګه چه تخم د خوږ په غاړه باندې راټوكيږى.ولې تاسو نه ګورئ.چه څنګه زيړ زيړ راټوكيږى.

«حيا» بالقصر،ددې معنى باران دې.اود حياة معنى ژوند دې.باران هم د ژوند سبب وى.چه باران اوشى.نو په زمكه كښې ژوند پيدا شى.انسانانو ته روزى اوغله اوخوراك ملاوُ شى نو د زمكې د ژوند سبب هم دې.اود وونو باغونود ژوند سبب هم دې.نودغه شان به د انسانانو د ژوند سبب هم وى.ددې وجې كه دلته د «حياة»لفظ راغلى وى.نوځه پاك نشته خكه چه دغه نهربه د دې جنهميانود ژوند سبب اوګرځى.ددوى بدنونه كوم چه په جهنم كښې د كوئلې پشان سوزيدلى او تور شوى وى.په دې نهر كښې د غوړخولو نه پس به په هغې باندې دغوښې اوڅرمنې پيدا كيدل شروع شى.اودهغوى د بدنونو حالت به ښه شى (٤)

راوى وائى.چه دا يا «نهرالحياة» دې.او يا «نهرالحيا» دې.امام مالك خوك چه دا روايت د عمروبن يحيى مازنى رحمه الله نه نقل كوى.دوى ته شك شوې دې چه «نهرالحيا» دې.اوكه «نهر الحياة» دې.خو وړاندې امام بخارى رحمه الله د وهيب د روايت حواله وركړې ده.هغوى په دغه روايت كښې د عمروبن يحيى مازنى نه د شك نه بغير «نهرالحياة» نقل كړې دې.

بيا په دې باندې پوهه شئ.چه يو «حبة» بفتح الحاء دې.ددې معنى د غامې دانې ده.ددې جمع «حبّ» او«حبوب» راځى اويو دې «حبة» بكسر الحاء (٥) ددې «حبة» خصوصيت دا دې.چه دې ته

---

١) مسند أحمد(١١٤/١) مسند على بن أبى طالب رضي الله عنه _
٢) مسند احمد(١١٤/١) مسند عبدالله بن مسعود رضي الله عنه _
٣) تفسير ابن كثير(٢٠٢/٢) سورة الأعراف آيت (والوزن يومئذ الحق) _
٤) فتح البارى(٧٢/١) _
٥) عمدة القارى(١٧٠/١) _

لره غوندې موقع ملاؤ شي.اودا چرته اونخلي. اونمي ورته ملاؤ شي.نو سمدستي راتوګيږي. نو ددې جملې معنى دا شوه چه په روانو اوبوکښې په غاړه باندې چه څنګه دا ځنګلي بوټې راخيژي چه سمدستي راخيژي.نودغه شان به دا خلق هم تروتازه شي. او سمدستي به راوټوکيږي.[۵۷۶۷]

**قوله** قَالَ وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا عَمْرٌو الْحَيَاةِ وَقَالَ خَرْدَلٍ مِنْ خَيْرٍ: وهيب:دوى وهيب بن خالد بن عجلان باهلي بصرى رحمه الله دى.د ايوبختيانى. ابوحازم. سلمه بن دينار. جعفر صادق. منصوربن معتمر.موسى بن عقبه. يحيى بن سعيد انصارى رحمهم الله غوندې حضراتو نه روايت كوى.

او دوى نه چه چا احاديث اوريدلى دى.په هغوى كښې اسماعيل بن عليه. ابوداود طياليسى. يحيى بن سيعدالقطان غوندې د علم ستنې دى.

امام يحيى بن معين دوى لره په دوى بصرى مشائخوكښې اهم ترين شمارى.

ابوداود طياليسى رحمه الله فرمائى.((حدثنا وهيب وكان ثقة))

امام عجلى رحمه الله دوى لره ((ثقة ثبت)) ګرځوى.

ابوحاتم رحمه الله فرمائى.((ما أنقى حديثه لا تكاد تجده يحدث عن الضعفاء))وئيلى شى چه دامام شعبى رحمه الله نه پس په رجالوباندې دوى نه زيات بل خوك عالم نه وو.

په كال ۱۶۵ﻫ يا ۱۶۹ﻫ كښې وفات شوې دې. رحمه الله رحمة واسعة.(۱)

**دوهيب دتعليقى روايت فائده.** مؤلف رحمه الله د وهيب تعليقى روايت ذكركړو.اوپه دې كښې ئې په دوو خبرو باندې تبيه وركړه.يوه دا چه وهيب هم دا حديث د عمروبن يحيى نه نقل كړې دې.لكه څنګه چه ئې امام مالك نه نقل كوى.خو مالك ئې په شك سره نقل كوى. اووهيب ئې بغيرد شك نه په ((الحياة))سره نقل كوى.اودا قاعده ده.چه د روايت مشكوكه په مقابله كښې روايت مجزومه راجح وى.

دويمه په دې خبره باندې تنبيه ده.چه د وهيب په روايت كښې ((من خير)) دې.اود مالك په روايت كښې ((من ايمان))دې.اومؤلف رحمه الله د ايمان شرح په خير سره اوكړه.لكه وړاندې چه دې طرف ته اشاره تيره شوې ده.

علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى.چه د وهيب دا روايت امام بخارى په كتاب الرقاق كښې موصولاً ذكركړې دې.(۲)دا خبره خو صحيح ده.چه د وهيب روايت په كتاب الرقاق كښې موصولاً راغى.خوهلته د وهيب په روايت كښې د ((من خردل من ايمان)) الفاظ دى.د ((من خردل من خير)) الفاظ نه دى.

---

(۱) تهذيب الكمال(۳۱\۱۶۸) رقم الترجمة (۶۷۶۹)_

(۲) ارشاد السارى(۱\۱۰۶)

حافظ رحمه الله فرمائی.چه مولف باندې اعتراض شوې دې.چه د وهیب روایت کو چه دلته تعلیقاً ذکرکړې دې.نودا ئې د «من خیر» په الفاظو سره ذکرکړې دې.اوموصولاً چه ئې پخپله کوم روایت نقل کړې دې.په هغې کښې د «من ایمان» الفاظ دی.(۱)
حافظ رحمه الله فرمائی.چه داعتراض څه خبره نشته.خکه چه ابن ابی شیبه په خپل منصف کښې د وهیب روایت نقل کړې دې.په هغې کښې د «من خردل من خیر» الفاظ دی.اودلته مصنف رحمه الله تعلیقاً هم دغه روایت ته اشاره کړې ده.دکتاب الرقاق روایت ته ئې اشاره نه ده کړې.(۲)

[۲۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُ النَّاسَ يُعْرَضُونَ عَلَيَّ وَعَلَيْهِمْ قُمُصٌ مِنْهَا مَا يَبْلُغُ الثُّدِيَّ وَمِنْهَا مَا دُونَ ذَلِكَ وَعُرِضَ عَلَيَّ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَعَلَيْهِ قَمِيصٌ يَجُرُّهُ قَالُوا فَمَا أَوَّلْتَ ذَلِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ الدِّينَ (۳) [۳۴۸۸، ۶۶۰۶، ۶۶۰۷]

## رجال الحدیث

① **محمدبن عبیدالله**:دوی ابوثابت محمدبن عبیدالله بن محمد بن زیدمدنی دی.دوی د آل عثمان مولی وو.د لویو محدثینو نه ئې داحادیثو سماع کړې ده.اود دوی دامام بخاری رحمه الله لویو محدثینو روایات اخستی دی.(۴)
حافظ رحمه الله دوی ثقه ګرځولی دی.(۵)

② **ابراهیم بن سعد**:دوی ابواسحاق ابراهیم بن سعدبن ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف زهری مدنی نزیل بالغداد دی.په ۱۱۰ھ کښې پیدا شوی وو.دخپل پلار ،امام زهری،هشام بن عروه وغیره رحمهم الله نه ئې احادیث اوریدلی دی.اود دوی نه امام شعبه،عبدالرحمن بن

(۱) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار رقم (۶۵۶۰)_
(۲) فتح الباری(۱\۷۳)_
(۳) هذا الحدیث أخرجه البخاری ههن وفی کتاب فضائل الصحابة باب مناقب عمربن الخطاب رضی الله عنه رقم ۳۶۹۱ وفی کتاب التعبیر باب القمیص فی المنام رقم ۷۰۰۸ وباب جر القمیص رقم ۷۰۰۹ ومسلم فی صحیحه (۲\۲۷٤) کتاب الفضائل باب من فضائل عمر رضی الله عنه والنسائی فی سننه (۲\۲۶۹) کتاب الإیمان وشرائعه باب زیادة الإیمان ونقصانه والترمذی فی جامعه فی کتاب الرؤیا باب فی رؤیا النبی صلی الله علیه وسلم اللبن والقمیص رقم ۲۲۸۵ ، ۲۲۸۶)_
(۴) عمدة القاری(۱\۱۷۳.) وتقریب (٤۹٤) رقم الترجمة (۶۱۱۰)_
(۵) تقریب التهذیب (٤۹٤) رقم الترجمة (۶۱۱۰)_

مهدی وغیره رحمهم الله ډیرومحدثینو رحمهم الله روایت کړې دې

امام احمد رحمه الله فرمائي «ثقة حجة تكلم فيه بلا قادح»

بغداد ته ئې تشريف اوړې وو هلته د هارون الرشيد دطرفه د بيت المال نگران پاتې شوې وو په کال ۱۸۴ھ يا ۱۸۵ھ کښې وفات شوې وو

د دوی پلار سعدبن ابراهیم د تابعینوځنی وو اوپه مدینه کښې قاضی پاتې شوې وو رحمهما الله رحمة واسعة.(١)

③ **صالح**: ندوی ابومحمد یا ابوالحارث صالح بن کیسان مدنی دی.(٢)

په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې ورته د حضرت عبدالله بن زبير، حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهم د ليدلوسعادت حاصل دې.بلکه يحيى بن معين رحمه الله فرمائي چه ددې دواړو نه ورته سماع هم حاصله ده.(٣)

ددوی په ثقاهت او جلالت شان باندې اتفاق دې.(٤)

علامه عینی رحمه الله فرمائي.چه دوی د طلب علم شروع د لس کم سل کالو په عمر کښې کړې وه.او د يو سل شپېتو کالو په عمر کښې وفات شوی وی.(٥)

امام حاکم رحمه الله فرمائي.چه د اويا کالو په عمر کښې دوی د علم طلب شروع کړې وو د امام زهری رحمه الله نه ئې د نوی کالو په عمر کښې احاديث اوريدلی دی. او د يو سل شپېتو کالو نه په زيات عمر کښې د دوی وفات شوې دې.(٦)

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائي.که رته د امام حاکم خبره اومنلې شی.نو بيا دوی په ځوانانو صحابو رضی الله عنهم کښې گڼړل پکار دی.ځکه چه دوی مدنی وو.اوددا هم منل پکار دی.چه د نبی صلی الله علیه وسلم د وفات په وخت کښې به د دوی عمر د ديرشو کالو نه زيات وو اود حاکم د قول مطابق که دوی د اويا الو په عمر کښې د علم طلب شروع کړې وی.نودا منل به پکار وی.چه ددې نه پس دوی تقريباً د نوی کالو نه زيات ژوندې پاتې شوې دې.په دې صورت کښې خو به دوی د حضرت سعد بن ابی وقاص او حضرت عائشې رضی الله عنها نه احاديثو اوريدونکو کښې وو.ځکه چه د حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه وفات په ۵۵ھ کښې او د حضرت عائشې رضی الله عنها وفات په ۵۹ھ کښې شوې دې اود دوی وفات د ۱۴۰ھ نه پس د ۱۶۰ کالو نه په زيات عمر کښې شوې وو.که وفات په ۱۴۰ھ کښې او عمر ۱۶۰ کاله هم اومنلې

---

(١) عمدة القاری(١\١٧٣) وتقريب (٨٩) رقم ١٧٧)_

(٢) عمدة القاری(١\١٧٣) وتقريب (٢٧٣) رقم ٢٨٨٤)_

(٣) تهذيب الكمال (١٣\٧٩) رقم ٢٨٣٤)_

(٤) عمدة القاری (١\١٧٣) وتهذيب الكمال (١٣\٨١، ٨٢)_

(٥) عمدة (١\١٧٣)_

(٦) تهذيب الكمال (١٣\٨٣) وسير أعلام النبلاء (٥\٤٥٦)_

شي نو سن هجري او عمر كنبي د ۲۰ كالو فرق دې.سن هجرى كمه ده.او عمر ددې نه ۲۰
كاله زيات دې.ن كه دوى د ۷۰ كالو په عمر كنبې د علم طلب شروع كړې وى.نو د شلو
كالو د فرق په جه به دوى پكارده چه په ۵۰ھ كنبې وو.او وفات ئې چونكه د ۱۶۰ كالو په
عمر كنبې ۱۴۰ھ كنبې شوې دې.نو دا هم لازميږى.چه چه دوى به د ۱۵۰ هنه پس ۹۰ كاله
ژوندى وو ددې ذكرشوى حساب مطابق به په ۱۰ھ كنبې چه دهغې نه څومياشتې وړاندې
نبى ﷺ وفات شوې وو.به د دوى عمر ۳۰ كاله وو.نو د حاكم خبره صحيح نه ده.(۱)
په ۱۴۰ھ كنبې وفات شوى وو.(۲)

④ ابن شهاب: دوى محمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهرى (متوفى ۱۲۳ھ)
دى. ددوى
حالات په ((بدء الوحى)) كنبې د دريم حديث په ضمن كنبې تيرشوى دى.

⑤ ابوامامه بن سهل: دوى ابوامامه اسعدبن سهل بن حنيف دى.دوى د ليدلو په
اعتبارسره صحابي وو.البته د نبى ﷺ نه د دوى براه راست روايت نه دې شوې.بلكه دوى د
حضرات صحابه كرام ﷺ په واسطه سره روايت كوى.په كال ۱۰۰ھ كنبې د دوه پنځوس
كالو په عمر كنبې وفات شوې وو ﷺ (۳)

⑥ حضرت ابوسعيد خدرى رحمه الله: ددوى الات په ((باب من الدين الفرار من الفتن)) لاندې
تيرشوى دى.

**قوله:** قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُ النَّاسَ يُعْرَضُونَ عَلَيَّ وَعَلَيْهِمْ قُمُصٌ مِنْهَا مَا يَبْلُغُ الثُّدِيَّ وَمِنْهَا مَا دُونَ ذَلِكَ وَعُرِضَ عَلَيَّ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَعَلَيْهِ قَمِيصٌ يَجُرُّهُ قَالُوا فَمَا أَوَّلْتَ ذَلِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ الدِّينَ:

رسول الله ﷺ فرمائى چه يوځل زه اوده وو.ما په خوب كنبې خلقاوليدل.چه هغى ماته
مخامخ راوستې شى.او دوى قميصونه اچولى دى په دې كنبې بعضې قميصونه تر سينو
پورې دى او بعضې د دې نه كم دى او عمربن الخطاب ﷺ ماته راوستې شو.دده داسې
قميص وو چه هغه ده په خان پسې رابنكل (يعنې ديربنكته وو)صحابو ﷺ تپوس اوكړو.
يارسول الله تاسو د دې څه تعبير كوئ نو نبى ﷺ اوفرمائيل دين.

---

(۱) سير أعلام النبلاء (۵/۴۵۶)_
(۲) المصدر السابق)_
(۳) المصدر السابق)_

نبی کریم ﷺ دلته په خوب کښې د قمیص لیدو تعبیر په دین سره بیان کړې دې.کیدې شي چه دا نبی ﷺ د قرآن کریم نه استنباط کړې وی.په قران پاك کښې دی.﴿ وَلِبَاسُ التَّقْوٰى ﴾[1] لکه څنګه چه د ظاهری لباس په ذریعه انسان د بې شرمۍ او عریانۍ نه بچ کیږی.د یخنۍ او ګرمۍ نه محفوظ وی.دغه شان د دین لباس هم هر قسم حفاظت کوی. اولکه څنګه چه ظاهری لباس پټونکې دې.دغه شان تقوی او دین د ټولو بې حیاګانو. فحشاء او کمزوریانو دپاره پرده ده.خلاصه دا چه لکه څنګه انسان د قمیص په ذرعه بدن د ګرمۍ او یخنۍ نه محفوظ ساتی.دغه شان ددین په ذریعه ددنیا اود آخرت د مکروهاتو نه محفوظ اوسیږی.[2]
دلته د دین نه مراد اعمال دی.ددې معنی په اعتبار سره دا روایت د ترجمة الباب سره مطابق دې.چه د قمیص تعبیر دین دې.ناو د دین نه مراد اعمال دی.نو په قمیصونوکښې خلق مختلف المراتب لیدل ددوی په اعمالوکښې په مختلف المراتب کیدو باندې دلیل دې.[3] په اعمالو کښې د تفاوت په سبب د اهل ایمان په درجاتوکښې تفاوت بنائی.چه د اعمالو د ایمان سره ژور تعلق دې.نو د مرجئو خیال غلط شو.چه نه طاعت فائده رسوی اونه معصیت نقصانی دې.والله سبحانه أعلم.

بینا: دا لفظ په اصل کښې ((بين)) دې.په آخر کښې الف او کله ((ما)) زیاته شی.او((بينهما)) وئیلې شی.اودا د ظروف زمان څنی دې.

په اصل کښې ((بين)) اوختونو طرف ته مضاف کیږی.دا مضاف حذف کړی او ددې په عوض کښې ((الف)) یا ((ما)) راوړی.نوددې اعراب د ظرف زمان وی.[4]
قمص: دا د قمیص جمع ده.

((ثدی)) د ثاء په ضمه دال په کسره او یائې مشدده سره د ((ثدی)) جمع ده. ((ثدی)) (بکسر الثاء المثلثة) هم مع راځی.د ((ثدی)) لفظ مذکر هم استعمالیږی.او موئنث هم.[5]

بیا د ((ثدی)) لفظ صرف ښځو پورې خاص دې.او که په سړو باندې هم ددې اطلاق کیږی.

په دې کښې اختلاف دې.د بعضې حضراتو دا وینا ده.چه د ((ثدی)) د ښځو پورې خاص دې.اود سړو دپاره د ((ثندوة)) لفظ استعمالیږی.او د نورو حضراتو وینا ده.چه د ((ثدی)) لفظ مشتر دې په سړی او ښځه دواړو باندې د دې اطلاق کیږی.د حدیث باب نه په ظاهره هم

---

[1] الأعراف (۲٦)_
[2] درس بخاری (۱۹٦\۱)_
[3] فتح الباری(۷٤\۱)_
[4] معجم النحو (۹۱، ۹۲)_
[5] مختار الصحاح)_

ددوی تائید کیږی اګرچه ونیلې شی چه دلته د سرو دپاره مجازاً د «ثدی» د لفظ استعمال شوې دې.()

**یوه شبه او د هغې جواب** دلته چونکه په حدیث کښې د حضرت عمر رضی الله عنه فضیلت بیان شوې دې او د دوی دین کامل بلکه اکمل خودلې شوې دې په دې سره دې چاته دا شبه نه کیږی چه د دوی مقام او مرتبه د حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه نه هم اوچته شوه.

ددې نه جواب دا دې چه دلته نبی ﷺ صرف د درې قسمه خلقو ذکرکړې دې یعنی «**منها ما یبلغ الثدی ومنها ما دون ذلك**» او د حضرت عمر رضی الله عنه کیفیت ئې په «**وعلیه قمیص یجره**» سره ذکرکړې دې. دلته د نبی ﷺ مقصود حصر نه دې. ځکه چه ښکاره ده. مسلمانان صرف په درې قسمه نه وی. بلکه د اختصار په وجه نبی ﷺ د مثال په طور یا د څه بل مصلحت په وجه صرف د دریو ذکر اوکړو.()

بیا اعتراض خو به په هغه وخت کښې صحیح وو. چه حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه هم خودلې شوې وو او د هغوی قمیص د حضرت عمر رضی الله عنه د قمیص نه کم وو.

یو جواب دا هم ورکړې شوې دې. چه حضرت عمر رضی الله عنه په کوم مقام او کومه مرتبه کښې خودلې شوې دې. دغه مقام صرف د هغوی دپاره خاص شوې نه ده. چه ګنی هغه سره به په دغه مرتبه کښې څوك شریك نه وی.()

یوجواب دا هم دې چه د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه په افضلیت باندې د اهل سنن والجماعت اجماع ده. اودا دلیل قطعی دې.() نوپه خبر واحد باندې به اجماع ته ترجیح وی.

دا هم وئیلې شوی دی چه حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه ته فضیلت کلی حاصل وو که د دې سره په جزئی فضائلوکښې چاته څه امتیاز حاصل وی. نودا د حضرت ابوبکرد افضلیت سره څه منافی نه ده.

دلته هم د حضرت عمر رضی الله عنه یو جزئی فضیلت بیان شوې دې بیشکه د حضرت عمربن الخطاب رضی الله عنه دا فضیلت د پسخیدو لائق دې اوکه په دې کښې ورته حضرت ابوبکرصدیق هم اوپسخیږی نو څه قباحت په کښې نشته.

ګوری په حدیث کښې راغلی دی چه د قیامت په ورځ به درې قسمه خلق د مشکو په ډیرو باندې وی د دوی به دا حالت وی. چه اولین او آخرین به هغوی ته پسخیږی یوبه په هغوی کښې موذن وی څوك چه په شپه او ورځ کښې پنځه وخته خلق مانځه طرف ته رابللی. دویم هغه امام چه خلق ترې خوشحاله وی او دریم هغه کس چه غلام وی. دخپل رب حق هم ادا

) مجمع بحار الأنوار (۱/۲۸۵) وفتح الباری (۱/۷٤)_
) مجمع بحار الأنوار (۱/۲۸۵)_
) المصدرالسابق)_
) عمدة القاری (۱/۱۷۵)_

كوى اود خپل مالك حق هم پوره كوى.(۱)

په دې حديث كښې اوګورئ چه څرنګه د موذن مرتبه او څرنګه د اولين او آخرين .چه ددې په عموم كښې انبياء،صديقين.او شهداء هم داخل دى ټول به ورته پسخيږى آيا ددې معنى به دا وى چه موذنين د انبياؤ اوصديقينو نه هم افضل دى.نه بلكه دا د موذنينو يو جزئى فضيلت دې او حضرات انبياؤ عليهم السلام ته كلي فضيلت حاصل دې دغه شان حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه ته كلي فضيلت حاصل دې.

چونكه حضرت عمر رضي الله عنه ته د خلافت د فرائضو پوره كولو يوه اوږده زمانه په لاس روغلې وه.ددې په وجه د حضرت عمر رضي الله عنه په اعمالو كښې زيادت راغلو او د هغوى د كوششونو په نتيجه كښې اسالم ته ډير عزت ملاؤ شو.اود كافرانو ملا ماته شوه.د هغوى حوصلې اوبيللې.نوځكه د حضرت عمر رضي الله عنه دا فضيلت جزئى فضيلت دې په دې سره د حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه مرتبه نه كميږى.يوخو ددې وجې چه حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه ته كوم فضيلت حاصل دې.هغه په تواتر سره ثابت دې.اود حضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه دا فضيلت خبر واحد دې.د متواترمقابله خبر واحد څرنګه كولې شى!(۲)

دويمه خبره دا هم ده.چه كله نبى صلى الله عليه وسلم وفات شو.په هغه وخت كښې د حضرت اسامه د لښكر روانولوپه باره كښې اختلاف پيدا شو.ټولو دا وئيل.چه نبى صلى الله عليه وسلم اوس اوس وفات شوې دې.حالات ډير نازك دى.په داسې موقع دومره لوئې لښكر ليږل خپل ځان دپاره خطروته دعوت وركول دى.دا لښكر دې روان نكړې شى.په دغه موقعه حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه وو.چه دوى افرمائيل.دا نشى كيدې.چه رسول الله صلى الله عليه وسلم په خپله يو لښكر روان كړې وى.او هغې ته ئې په خپله ترتيب وركړې وى.اود هغې طرف نبى صلى الله عليه وسلم پخپله مقرر كړې وى.هغه دغه طرف ته زوان نكړې شى.ددې مطلب خو به دا وى.چه زمونږ دشمنان به دا اوګنړى.چه د محمد صلى الله عليه وسلم نه پس د هغه ملګرى كم همته شول.په دوى كښې بزدلى پيدا شوه.اوس دوى د خپل پيغمبر صلى الله عليه وسلم په فيصله باندې عمل كولوكښې شك كوى.دا خبره مونږ نشو برداشت كولې.چه دشمن ته د داسې سوچ موقع وركړو.ددې وجې دا لښكر په هر صورت كښې روانول پكار دى.اوحضرت ابوبكر رضي الله عنه هغه لښكر روان كړل.يقينى خبره وه.چه په دشمنانو ددې ډير لوئې اثر اوشو.اوهغوى په دې پوهه شو.چه د مسلمانانود پيغمبر صلى الله عليه وسلم دوفات نه پس په دوى كښې څه كم همتى نه ده پيدا شوې.(۳)

دغه شان كله چه نبى صلى الله عليه وسلم وفات شو.نو استقامت چا خودلې وو؟د حضرت عمر رضي الله عنه غوندې بهادر شخصيت دا حال وو.چه هغوى توره په لاس ولاړ وو.او دا ئې وئيل.چه چا كه اووئيل.چه محمد صلى الله عليه وسلم وفات شو.نو د هغه څټ به قلم كولې شى.خو حقيقت دادې.چه د كومو ثابت

---

(۱) امع ترمذى كتاب صفة الجنة باب (بدون ترجمة) بعد باب ما جآء فى كلام الحور العين رقم ۲۵۶۶)_

(۲) عمدة القارى(۱\۱۷۵)_

(۳) البداية والنهاية (۶\۳۰۴،۳۰۵) فى تنفيذ جيش أسامة بن زيد رضي الله عنه)_

قدمي ثبوت حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه وركړو هغه بل چاته نه وو كړي. راغلو د نبى ﷺ د وفات اعلان ئې اوكړو او وې فرمائيل «من كان منكم يعبد محمداً فإن محمداً قد مات ومن كان منكم يعبد الله فإن الله حى لا يموت»[1] په ټولو صحابو رضي الله عنهم كښې سكون پيدا شو. او ددې مسئلې په باره كښې چه په هغوى كښې كومه پريشانى وه. هغه پوره شوه.[2]

په كوم وخت كښې چه د منكرينو زكاة مسئله پيدا شو. نو حضرت عمربن خطاب رضي الله عنه حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه ته عرض اوكړو. «يا خليفة رسول الله ﷺ تألف الناس وارفق بهم» په دې باندې حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه چه كوم جواب وركړې دې «أجبار فى الجاهلية وخوار فى الإسلام إنه قد انقطع الوحى وتم الدين أينقص وأنا حى؟» د حضرت ابوبكر رضي الله عنه دا عزم اودا حوصله د دوى د كلى فضيلت دليل دې. ددې وجې به حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت ابوبكرصديق «ليلة الغار» او «يوم الردة» يادوله. او دا آرزو به ئې كوله. كاش چه زما د ټول عمر اعمال د حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه د يوې ورځې او يوې شپې عمل ته اورسى.[3]

دصلح حديبيه په موقع حضرت عمر رضي الله عنه ته د صلحې په وجه ځومره پريشانى وى. اونبى ﷺ ځمره په څړه سينه هغه صلح كړې وه. او نبى ځورمه په وضاحت سره دا پيژندل. چه چه دا صلحه كومه چه په ظاهره ټيټيدل دى. هم دا به په حقيقت كښې د دين دترقئ او عروج سبب جوړيږى. حضرت عمر رضي الله عنه نبى كريم ﷺ ته ورغلو. اود خپلې پريشانئ اظهارئې ورته اوكړو. او بيا حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه ته ورغلو. او د خپلې پريشانئ اظهار ئې ورته اوكړو. نو حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه ورته هم هغه جوابونه وركړل. كوم چه ورته نبى ﷺ وركړى وو.[4]

خلاصه دا چه دحضرت عمر رضي الله عنه د فضيلت كوم ذكر چه دلته راغلې دې. په دې سره د حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه فضيلت نه متاثره كيږى. دا فضيلت جزئى دې. اود حضرت ابوبكر رضي الله عنه فضيلت كلى دې. والله أعلم وعلمه أتم وأحكم.

## ۱۴- بَاب الْحَيَاءُ مِنَ الْإِيمَانِ

**دما قبل سره ربط** ددې نه وړاندې باب كښې د «تفاضل إيمان فى الأعمال» بيان وو. په دې باب كښې هم ددې څيز بيان كولې شى. په كوم سره چه په ايمان كښې زيادت پيدا كيږى. او هغه حيا ده.[5]

---

[1]) صحيح بخارى (۲\۶۴۰) كتاب المغازى باب مرض النبى ﷺ ووفاته)_

[2]) المصدر السابق)_

[3]) مشكاة المصابيح (۲\۵۵۶) كتاب المناقب باب مناقب أبى بكر رضي الله عنه الفصل الثالث)

[4]) صحيح بخارى (۱\۳۸۰) كتاب الشروط باب الشروط فى الجهاد والمصالحة مع أهل الحرب)_

[5]) صحيح بخارى (۱\۳۸۰) كتاب الشروط باب الشروط فى الجهاد والمصالحة مع أهل الحرب)_

**د ترجمة مقصد** امام بخارى رحمه الله دا ښانى چه اعمال د جوارحو خو د ايمان جزء دي.چه ديو خو حيا هم كوم چه د زړه فعل دي.دا هم د ايمان جزء دي.او هركله چه دا د ايمان جزء دي.نو ثابته شوه چه ايمان مركب دي.او چه دا مركب شو.نو قابل د پاره د زيادت او نقصان هم شو امام بخارى رحمه الله ((من)) تبعيضيه گرځولې دي.

مونږ چه دلته ايمان مركب نه منو.وايو چه ((من)) دلته ابتدائيه دي.چه حياء دايمان نه پيدا كيږى.دا د ايمان ثمره او فرع ده.دي ته جزء ونيل صحيح نه دى.يا داسې ونيلې شو.چه حياء د كامل ايمان جزء دي.اود ايمان كامل په تركيب كښې زمونږ هم څه اختلاف نشته.دغه شان په دواړو صورتونو كښې د مرجئو ترديد ښكاره دي.والله أعلم

[۲۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلَى رَجُلٍ مِنْ الْأَنْصَارِ وَهُوَ يَعِظُ أَخَاهُ فِي الْحَيَاءِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعْهُ فَإِنَّ الْحَيَاءَ مِنْ الْإِيمَانِ(1)[۵۷۶۷]

## رجال الحديث

① **عبدالله بن يوسف:** دوى عبدالله بن يوسف تنيسى دى.د دوى حالات د ((بدء الوحى)) د دويم حديث په ضمن كښې تيرشوى دى.

② **مالك بن انس:** د امام مالك رحمه الله حالات د ((باب من الدين الفرار من الفتن)) د لاندې تيرشوى دى.

③ **ابن شهاب:** دوى محمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهرى رحمه الله دى. د دوى حالات د ((بدء الوحى)) د دريم حديث لاندې تيرشوى دى.

④ **سالم بن عبدالله:** دوى ابوعمريا ابوعبدالله سالم بن عبدالله بن عمربن الخطاب قرشى عدوى مدنى دى.جليل القدر تابعى او د مدينې منورې په اووه مشهورو فقهاو كښې يو دي.

دخپل پلار حضرت ابوايوب انصارى،حضرت رافع بن خديج،حضرت ابوهريره، حضرت عائشې رضي الله عنهم نه ئې احاديث اوريدلى دى.ددوى نه علاوه د تابعينو رحمهم الله نه ئې هم احاديث

1) ألحديث أخرجه البخارى فى كتاب الدب أنضا باب الحياء رقم ۶۱۸۱ ومسلم فى صحيحه فى كتاب الإيمان باب بيان عدد شعب الإيمان والنسائى فى سننه فى كتاب الإيمان و شرائعه باب الحياء وأبوداود فى سننه فى كتاب الأدب باب فى الحياء رقم ۴۷۹۵ والترمذى فى جامعه فى كتاب الإيمان باب ما جآء أن الحياء من الإيمان رقم ۲۶۱۵ وابن ماجه فى المقدمة باب فى الإيمان رقم ۵۸)_

اخستى دى او د دوى نه په روايات كونكو كښې هم ډير تابعين دى. لكه عمروبن دينار، نافع مولى ابن عمر، زهرى، موسى بن عقبه، حميدالطويل، عبيدالله العمرى، او صالح بن كيسان رحمهم الله وغيره

د دوى په جلالات شان، امامت، زهد او علومرتبه باندې اتفاق دې حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله فرمائى چه د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما سره د ټولو نه زيات مشابه د دوى خوئې حضرت سالم وو او د حضرت عمر رضي الله عنه سره مشابه د دوى خوئې حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما وو.

د امام اسحاق بن راهويه رحمه الله په نيز «الزهرى عن سالم عن أبيه» اصح الاسانيد دې.

حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به د خپل خوئې سره ډير محبت كولو تردې چه خلقو به دوى په دې باندې ملامته كولو. چه په لاره كښې به ئې ورسره كله ملاقات اوشو. نوحضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما به خپل خوئې ښكلولو. اوفرمائيل به ئې «ألا تعجبون من شيخ يقبل شيخاً»

د ۱۰۶ هـ په آخر كښې په مدينه منوره كښې وفات شو. رحمه الله رحمة واسعة()

**قوله** أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ وَهُوَ يَعِظُ أَخَاهُ فِي الْحَيَاءِ: نبى كريم صلى الله عليه وسلم د انصارو نه د يوكس په خوا كښې تير شو. هغه خپل ورور ته د حيا په وجه نصيحت كولو.

دا انصارى كس او د دوى ورور څوك وو. ددوى نوم معلوم نه دې. حافظ رحمه الله فرمائى «ولم أعرف أسم هذين الرجلين الواعظ وأخيه»()

انصارى صحابى رضي الله عنه خپل ورور ته نصيحت كولو. چه دومره زياته حيا مكوه. ځكه چه ته داسې حيا كوې. نوپه دې كښې به تاته تاوان وى.

هم دا روايات وړاندې په كتاب الادب كښې په باب الحياء كښې د احمد بن يونس په سند سره راځى. هلته د «وهو يعظ أخاه» په ځاې «وهو يعاتب أخاه» الفاظ راغلى دى. كيدې شى چه عتاب ئې هم كړې وى. او نصحيت ئې ورته هم كړې وى. بعضې راويانو وعظ او نصيحت ذكركړې دې. او بعضو عتاب ذكركړې دې. خو چونكه د حديث مخرج يو دې. ددې وجې اقرب هم دا معلوميږى. چه د روايانو د تعبير اختلاف دې. څوك چه پرې څنګه پوهه شوې دى. نو هغه هم هغه شان تعبير كړې دې. بعضو دا ګنړلى دى. چه وعظ او نصيحت مقصود وو. نوځكه هغه د «يعظ» لفظ ذكر كړې دې. او بعضو دا ګنړلى دى. چه ملامته كوى ئې. نو هغه «يعاتب» نقل كړى دى.()

---

) تهذيب الأسماء واللغات (۱/۲۰۷، ۲۰۸) وعمدة القارى (۱/۱۷۵) وتقريب التهذيب (۲۲۶) رقم (۲۱۷۶)_

) فتح البارى (۱/۷۴)_

) المصدر السابق)_

**قوله فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعْهُ فَإِنَّ الْحَيَاءَ مِنَ الْإِيْمَانِ:**

نبي كريم ﷺ اوفرمائيل دې پريږده. ځکه چه حيا خو د ايمان يوه شعبه ده.

داسې معلوميږي چا چه نصيحت کول او ملامتيا کوله هغه په حياء باندې عالم نه وو. هغه ته په ديني اعتبارسره د حياء علم نه وو. چ په حياء کولوکښې صورةً انسان خپل حق پريږدي خوپه حقيقت کښې دده په دې کښې ډيره فائده وي. ځکه چه په دې سره د ايمان په شعبه کښې ترقي کيږي. دا يومسلمه قاعده ده. چه کوم انساني جوهر زيات استعماليږي. په هغې کښې طاقت پيدا کيږي. ګورئ که يوکس په خپل لاس سره د ټولو نه زيات کار کوي. نوپه دې جوهر کښې به قوت پيدا شي.

د حياء په باره کښې تفصيلي کلام وړاندې د «باب أمور الإيمان» لاندې تير شوې دې. دلته دومره خبره نوره هم زده کړه. چه په حديث کښې دي. «إن مما أدرك الناس من كلام النبوة إذا لم تستحي فافعل ماشئت» اوپه يو روايت کښې دي. «فاصنع ماشئت» [١]

عالمان فرمائي چه ددې مطلب دا دې. چه د حياء په استحسان باندې د ټولو انبياء عليهم السلام اجماع پاتې شوې ده. حيا يو داسې څيز دې. چه عقل هم ددې د حسن اقرار کړې دې. اوددې اهميت دومره دې. چه کله هم ددې حکم نه دې منسوخ شوې.

زمونږ استاذ محترم شيخ الادب والفقه حضرت مولانا اعزاز علی ﷫ د چا چه زه ډير ممنون او احسان مند يم اوډيرخپلې کم پوهئ او غفلت باوجود چه د هغوی نه ما کوم خير کثر حاصل کړې دې. د هغې اعتراف لازمي دی. هغوی به په دې حديث کښې د نکتة په طور باندې فرمائيل. مولی صاب! دا امر د وجوب دپاره دې. کله چه په تاسو کښې بې حيائي راشي. نو بيا به تباهيانې شروع کيدل ضروري شي. دا خود حضرت مولانا د نکتې يوه خبره وه. او يقيني ن ده. چه حالات او واقعات ددې تائيد کوي.

خو عالمانو ليکلي دی. چه دلته انشاء په معنی د خبر کښې ده. او معنی دا ده. که تاسو حيا نه کوئ. نو بيا به خپله خوښه کوئ. [٢]

يو شاعر دې معنی طرف ته اشاره کړې ده.

| ولم تستحي فاصنع ما تشاء | إذا لم تخش عاقبة الليالي |
|---|---|
| ولا الدنيا إذا ذهب الحياء | فلا والله ما في العيش خير |
| ويبقى العود ما بقي اللحاء | يعيش المرء ما استحيا بخير |

يعنی که ته د شپو د انجام نه نه ويريږې. اوتاته شرم نه درځي. يعنی که د شپې په تيرو کښې

---

[١] صحيح بخاری كتاب الأنبياء باب (بلا ترمة بعد باب حديث الغار) رقم (٣٤٨٣) و (٣٤٨٤) وكتاب الأدب باب إذا لم تستحي فاصنع ما شئت رقم (٦١٢٠)_

[٢] التمهيد لما في الموطا من المعاني والأسانيد (٧٠١٢٠)_

ته د غلطو كارونو د انجام نه نه ويريږي.او و ستا نه حيا لاړه شي.نو بيا چه دې څه خوښه وی.هغه كوه.په الله قسم په هغه ژوند كښې څه خير نشته.په كوم كښې چه حيا نه وی.او په هغه دنيا كښې څه خير نشته.چه حيا تلى وى.ترڅو چه سړې شرم كو.نو هغه به د خيريت ژوند تيروى.اودا يو حقيقت دې.چه د خاښ ژوند تر هغه وخته پورې وى.ترڅو چه په دې باندې پوستكې وى.

## ١٥ - بَاب فَإِنْ تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ فَخَلُّوا سَبِيلَهُمْ

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه لفظ د «باب» رواية منون دې.په دې صورت كښې به تقدير دا وی.«باب فى تفسير قوله تعالى...»او اضافت هم صحيح دې.يعنى «باب تفسير قوله تعالى...»[1]
علامه عينى رحمه الله فرمائى.چه په باب باندې څه اعراب نه وى.بلكه دا به مبنى برسكون وی.«كتعديد الأسماء من غير تركيب» هغوى خو اول ددې نه انكاركړې دې.چه دا رواية منون دې.دويم هغوى فرمائى كه د روايت او درايت نه خلاف وى .نوداسې روايت مقبول نه وی.خو دومره ده.كه په كلام نبوت كښې داسې څه څيز واقع شى.نود درايت مطابق به په كښې تاويل كولې شى.[2]
علامه عينى رحمه الله په دې خبره هم اعتراض كوى.چه حافظ رحمه الله تقدير «باب فى تفسير قوله تعالى»يا «باب تفسير قوله تعالى» راويستې دې.علامه عينى رحمه الله فرمائى.چه دا حديث ددې آيت تفسير نشى كيدې.ځكه چه اول خو دا كتاب التفسير نه دې.چه امام بخارى رحمه الله د آيت تفسير بيانول غواړى.بلكه دلته خو امام بخارى رحمه الله په مرجؤ باندې رد كول غواړى.ځوك چه اعمالو ته هيڅ اهميت نه وركوى.دويمه دا چه ددې آيت په باره كښې د حضرت انس رضى الله عنه روايت دې رضى الله عنه چه دا آيت «آخر ما نزل من القرآن» دې.اوپه دې كښې څه شك نشته.چه حديث مذكورفى الباب «امرت أن أقاتل الناس...»متقدم دې.او متقدم د متاخر تفسير نشى كيدې.[3]
خو حقيقت دا دې.چه د علامه عينى رحمه الله دا خبره كمزورې ده.ځك كه چرته د تفسير په ضمن كښې په مرجئو باندې رد كول وو.نو نو په كتاب الايمان كښې ددې تفسير په بيانولوباندې څه اعتراض نشى كيدې.امام بخارى رحمه الله د مرجئو رد كوى.او ځائې په ځائې ئې كوى.دغه شان د معتزلو. خوارجو. جهميو.كراميو رد كوى كه د يو آيت تفسير داسې وى.چه په هغې كښې په مرجئو باندې رد وى. نو په دې باندې ولې اعتراض كولې شى.چه هغه په كتاب اليمان كښې بيان كړې شى

---

١) فتح البارى (١٧٥)_
٢) عمدة القارى (١/ ١٧٧، ١٧٨)_
٣) ...

دغه شان عينى رحمه الله چه كومه دويمه خبره كړې ده.هغه هم صحيح نه ده.ولې دا څه ضروري ده.چه د آيت د نزول نه پس چه نبى ﷺ د هغې په تفسير كښې څه حديث بيان كړى.نو هغې ته به تفسير ونيلې شى.بلكه دا هم كيدې شى چه نبى ﷺ اول يوه خبره كړې وى.او روسته د هغې مطابق آيت نازل شوې وى.نو د نبى ﷺ دغه متقدم ارشاد ددې آيت دپاره په منزله د تفسير كيدې شى.

**د ترجمة الباب د حديث سره مناسبت** امام بخارى رحمه الله د ترجمة لاندې د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما حديث «قَالَ أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَشْهَدُوا أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ وَيُقِيمُوا الصَّلَاةَ وَيُؤْتُوا الزَّكَاةَ فَإِذَا فَعَلُوا ذَلِكَ عَصَمُوا مِنِّي دِمَاءَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ إِلَّا بِحَقِّ الْإِسْلَامِ وَحِسَابُهُمْ عَلَى اللهِ» تخريج كړې دې.په آيت مترجم بها او روايت مذكوره كښې مناسبت دا دې.چه په آيت كښې د توبې ذكر دې.او د توبې نه مراد «توبة عن الشرك والكفر» ده.دكوم نه چه په روايت كښې په شهادت توحيد و رسالت سره تعبير شوې دې.دغه شان په آيت كښې ئې ﴿فخلوا سبيلهم﴾ فرمانيلى دى.اود تخلية السبيل نه هم هغه مراد دې.كوم نه چه په حديث كښې په «عصموا منى دمائهم وأموالهم» سره تعبير كړې دې.يعنى د شرك او كفر نه توبه ويستلو او د توحيد رسالت شهادت وركولو او مونځ كولواو زكاة وركولو سره د انسان جان او مال محفوظ كيږى.او ددې لاره پرانستې شى.يعنى ن ده ته به څوك تعرف نه كوى.

**د ترجمې مقصد:** امام بخارى رحمه الله په دې ترجمې سره په مرجئ باندې رد كړې دې.څوك چه د اعمالو د اهميت نه انكار كوى.امام بخارى رحمه الله فرمائى چه د اعمالو دومره زيات اهميت دې.چه د توبه عن الشرك والكفر سره سره ئې اقامت صلاة او ايتاء الزكاة هم د تخليه سبيل .عصمت مال و دم دپاره موقوف عليه اوګرځوله.(١)

دغه شان دا هم ونيلى شى.چه امام بخارى رحمه الله بالاشاره د صلاة او زكاة په ايمان كښې د داخليدو استدلال كړې دې.څكه چه تخليه سبيل يعنى عدم تعرض او عصمت د مال او دم ئې د توبه عن الكفر والشرك يعنى د توحيد او رسالت د اقرار سره سره په اقامت صلاة او ايتاء الزكاة باندې مرتب كړې دى.اود انسان جان او مال محفوظ كيږى.په ايمان سره.نو معلومه شوه چه دا څيزونه په ايمان كښې داخل دې.(٢)

....

(١) فتح البارى(١ ٧۵) وعمدة القارى( ١١٧٨)_

(٢) ارشاد السارى(١٠٨)_

[٢٥] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمُسْنَدِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو رَوْحٍ الْحَرَمِيُّ بْنُ عُمَارَةَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ وَاقِدِ بْنِ مُحَمَّدٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي يُحَدِّثُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَشْهَدُوا أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ وَيُقِيمُوا الصَّلَاةَ وَيُؤْتُوا الزَّكَاةَ فَإِذَا فَعَلُوا ذَلِكَ عَصَمُوا مِنِّي دِمَاءَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ إِلَّا بِحَقِّ الْإِسْلَامِ وَحِسَابُهُمْ عَلَى اللّٰهِ [٢٧٨٦]

## رجال الحديث

① عبدالله بن محمد المسندي: د دوی حالات د «باب أمور الدين» په ضمن کښې تیرشوی دی.

② ابوروح الحرمي بن عمارة: د دوی کنیت ابو روح دې او «حرمی» د نسبت په وزن اسم علم دې. د پلار نوم ئې عماره او د نیکه نوم ئې «نابت» وو. د یو قول مطابق «ثابت» وو د دوی کنیت ابوحفصه وو. نابوروح الحرمی بن عماره بن ابی حفصه نابت یا ثابت العتکی البصری امام شعبه، شداد بن سعید او قرة بن خالد سدوسی وغیر نه ئې احادیث روایت کړی دی او د دوی په شاګردانو کښې علی بن ابن المدینی، ابراهیم بن محمد بن عرعره ،عبدالله بن محمد مسندی، عبیدالله بن عمر قواریری، محمدبن بشار بندار، عمروبن علی الفلاس او محمدؒ بن ابی بکر مقدمی وغیره رحمهم الله دی.(١)

امام یحیی بن معین رحمه الله دوی «صدوق» ګرځولی دی.(٢)
امام ابوحاتم رحمه الله دوی د عبدالصمد بن عبدالوارث او وهیب بن جریر په درجه کښې ګرځولی دی.(٣) ابوحاتم عبدالصمد بن عبدالوارث او وهب بن جریر دواړه «صدوق» او «صالح الحديث» ګرځولی دی.(٤) ابن حبان رحمه الله دوی په ثقاتو کښې ذکر کړی دی.(٥) دغه شان امام دارقطنی رحمه الله دوی ثقه ګرځولی دی.(٦)

د دوی احادیث د جامع ترمذی نه سوا په باقی تولو امهات الکتب کښې موجود دی.(٧)

---

(١) تهذیب لکمال (٥\٥٥٦، ٥٥٧) ترجمه (١١٦٩)_
(٢) المصدر السابق)_
(٣) المصدر السابق)_
(٤) تهذیب الکمال (١٨\١٠٢) (٣١\١٢٣)_
(٥) کتاب الثقات لابن حبان (٨\٢١٦)_
(٦) سنن دارقطنی (١\١٨١) باب التیمم رقم ٢٢)_
(٧) عمدة القاری(١\١٧٩) وتقریب (٢،١٥٦) رقم الترجمة (١١٧٨)_

په کال ۲۰۱ھ کښې دوی وفات شوی وو (۱)
تنبیه علامه کرمانی رحمه الله ته ددوی په ترجمه کښې يو عجيب و غريب وهم لاحق شوې دې دوی فرمائی چه «أبو روح.. كنيته وأسمه ثابت و،، الحرمى... نسبته وهوابن عمارة..»(۲) لکه چه دوی فرمائی چه «الحرمى» د دوی حرم طرف ته نسبت دې او د دوی نوم ثابت «بالثاء المثلثة» دې او کنيت ئې ابو روح دې حالانکه مونږ وړاندې بيان کړې دې چه ابو روح د دوی کنيت دې او «الحرمى» د نسبت په وزن باندې د دوی نوم دې.او د دوی د نيکه نوم «نابت» وو «بالنون بعدها ألف وبعدها باء موحدة ثم تاء مثناة» يا «ثابت» بالثاء المثلثة» دې.د د نيکه کنيت ئې ابوحفصه دې.
ددې وهم سبب دا معلوميږی چه په اصل کښې علامه کرمانی رحمه الله چرته دا ليکلې شوې کتلی دی.«الحرمى بن عمارة بن أبي حفصة واسمه نابت» نو علامه دا گنړلی دی چه د «اسمه» ضمير حرمی ته راجع ديې.او دوی د نابت په ځائې ثابت لوستې دې.او دا ئې د دوی نوم گرځولې دې.او حرمی ئې د نسبت په صورت کښې ليدلې دې.او نسبت ئې گرځولې دې.حالانکه ددوی حرم طرف ته نسبت کول ممکن نه دی.ځکه چه د دوی ولادت پرورش او بيا استوگنه او ددې نه پس وفات په بصره کښې شوی دی.
ترځو پورې چه د نابت او ثابت اختلاف دې.نو نابت» بانون صحيح قول دې اگرچه د ثابت قول هم موجد دې (۳)والله أعلم.

(۱) **شعبه:** د دوی حالات د «باب من سلم المسلمون من لسانه ويده» د لاندې تير شوی دی
(۲) **واقد بن محمد:** دوی واقد بن محمد بن زيد بن عبدالله بن عمر بن خطاب العدوی المدنی دی.دوی د صفوان بن سيم،عبدالله بن ابی مليکه.محمد بن المنکدر .نافعمولی ابن عمر رضي الله عنه او د خپل پلار محمد بن زيد بن عبدالله بن عمر بن خطاب رضي الله عنه نه روايت کوی.
د دوی په شاگردانو کښې امام شعبه.د دوی ورور عاصم بن محمد بن زيد او ددوی خوئې عثمان بن واقد عمری دی.
امام احمد .امام يحيى بن معين او امام ابوحاتم رحمهم الله دوی لره ثقه گرځولی دی.
(۳) **محمد بن زيد:** دوی محمد بن زيد بن عبدالله بن عمر بن خطاب عدوی مدنی دی. دوی د خپل نيکه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت کوی.
دوی د خپل نيکه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه علاوه د حضرت سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل،

---

(۱) المصدر اسابق)_
(۲) شرح کرمانی(۱۲۱\۱)_
(۳) فتح البارى( ۷۵\۱) وعمدة القارى (۱۷۹\۱)_

عبدالله بن زبير ،عبدالله بن عباس او عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنهم نه احاديث اوريدلي دى بيا د دوى په شاگردانوكښې امام اعمش.بشاربن كدام او ددوى خوني دي.
امام ابوزرعه رحمه الله فرمائى.دوى ثقه وو.دغه شان ابوحاتم او ابن حبان رحمهما الله هم دوى لره ثقه گرځولى دى.
ددوى احاديث د صحاح سته تولو مصنفينو رحمهم الله نقل كړى دى.(١)

④**حضرت عبدالله بن عمررضي الله عنهما**:ددوى حالات د كتاب الايمان په شروع كښې د «دعاوكم ايمانكم» لاندې تير شوى دى.

**قوله: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَشْهَدُوا أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ وَيُقِيمُوا الصَّلَاةَ وَيُؤْتُوا الزَّكَاةَ فَإِذَا فَعَلُوا ذَلِكَ عَصَمُوا مِنِّي دِمَاءَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ إِلَّا بِحَقِّ الْإِسْلَامِ وَحِسَابُهُمْ عَلَى اللَّهِ:**

«أمرت» مجهول صيغه ده.چونكه فاعل مشهور او معروف ې.ځكه نه دې ذكر شوې.وجه دا ده.چه نبى ﷺ ته حكم كونكې د الله تعالى نه سوا بل څوك نشى كيدې.نو تقديريه دا وى.
«أمرنى الله بأن أقاتل...»دغه شان كه صحابى رضي الله عنه اووائى .«أمرنا»نوددې مطلب به دا وى.چه نبى ﷺ مونږ ته حكم كړې دې.ځكه چه هم نبى ﷺ د هغوى دپاره مشرح او بيانونكې وو.البته كه په تابعينوكښې څوك «أمرنا بكذا»اووائى.نوپه دې كښې د امر كونكى نه يقينى طور صحابى مراد نشى كيدې .بلكه يو احتمال دې.(٢)
بهر حال دلته نبى ﷺ فرمائى.چه ماته حكم شوې دې.چه زه خلقو سهر قتال كوم.تردې چه د دې خبرې گواهى وركړى.چه د الله تعالى نه سوا بل څوك معبود نشته.او محمد ﷺ د الله تعالى رسول دې.مونځ قائموى.او زكاة وركوى.كله چه دا درې واړه كارونه اوكړى.نو زما نه نې خپله وينه او خپل مال محفوظ كړل.مگر د اسلام په كښې .او ددوى حساب په الله تعالى دې.

**يو اشكال او د هغې جواب** په دې باندې اشكال كيدې شى.چه دا حديث څنگه صحيح كيدې شى حالانكه د حضرات شيخينو رضي الله عنهما د منكرينو زكة په باره كښې كله مناظره شوې وه.نو حضرت عمر رضي الله عنه فرمانيلى وو.«كيف تقاتل الناس وقد قال رسول الله ﷺ «وقد قال رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَشْهَدُوا أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ وَيُقِيمُوا الصَّلَاةَ وَيُؤْتُوا الزَّكَاةَ فَإِذَا فَعَلُوا ذَلِكَ عَصَمُوا مِنِّي دِمَاءَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ إِلَّا بِحَقِّ الْإِسْلَامِ وَحِسَابُهُمْ عَلَى اللَّهِ» په دې باندې

---
(١) تهذيب الكمال (۲۲۶/۲۵. ۲۲۸)
(٢) تهذيب الكمال (۲۲۶/۲۵. ۲۲۸)

حضرت ابوبكر رضي الله عنه فرمائيلي وو. «والله لأقاتلن من فرق بين الصلاة والزكاة، فإن الزكاة حق المال»(۱)

سوال دا دې چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما سره چه دا حديث موجود وو.نو هغوى خپل پلار حضرت ابوبكر رضي الله عنه سره مناظرې ته ولې پريخودو.اودا روايت ئې ورته ولې نه بيانولو.او دا ئې ورته ولې نه بيانول.چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم چه لكه څنګه د ترمقاتلة دپاره شهادت توحيد او رسالت ضرورى ګرځولې دې.نودغه شان ئې اقامت صلاة او ايتاء الزكاة هم ضرورى ګرځولې دې. اوبيا هركله چه حضرت ابوبكر رضي الله عنه چه په قياس باندې استدلال كولو.اودا ئې اوفرمائيل.

«والله لأقاتلن من فرق بين الصلاة والزكاة فإن الزكاة حق المال» فرمائيل.نوحضرت ابن عمر رضي الله عنهما ددوى تائيد ولې اونكړلو.اودا ئې ولې بيان نكړل.چه په حديث پاك كښې په صراحت سره دا موجود دى.چه عصمت د مال او دم د توحيد او رسالت اقرار سره سره په اقامت صلاة او ايتاء الزكاة باندې هم موقوف دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله ددې دا جواب وركړې دې.كيدې شى.چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما د مناظرې په وخت كښې موجود نه وو.اوكه موجود وو.كيدې شى. چه دا روايت ورته په دغه وخت كښې ياد نه وو.اودا هم ممكن ده.چه روسته ئې دا روايت د شيخينو رضي الله عنهما نه نقل كړې وى.(۲)

**د نبى كريم صلى الله عليه وسلم د وفات نه پس د اهل عرب اود دوى د ارتداد صورتونه** په دې كښې د لږ غوندې زيات وضاحت دپاره د مرتدينو متعلق څه تفصيل بيانوم.چه معلومه شى.چه د نبى صلى الله عليه وسلم دوفات نه پس د ارتداد څنګه صورت وو.اود شيخينو رضي الله عنهما د خبرو تعلق د كوم سره وو؟ د بخارى شريف په كتاب الزكاة كښې راځى.چه كله نبى صلى الله عليه وسلم وفات شو.نو په عربو كښې ارتداد خور شو.په هغه وخت كښې صديق اكبر رضي الله عنه د مرتدينو خلاف لښكرليږلو.نو حضرت عمر رضي الله عنه منع كړو.او دا ئې اووئيل.ته دهغه كسانو سره قتال كوې.چه «لا إله إلا الله» وائى.او ددې په وج د حديث په نص سره دوى محفوظ المال والدم دى.نو بيا دوى ته د تعرض څه ګنجائش نشته.حضرت ابوبكر رضي الله عنه اوفرمائيل.«والله لأقاتلن من فرق بين الصلاة والزكاة فإن الزكاة حق المال» تردې چه د حضرت عمر رضي الله عنه سينه پرانستې شوژاو هغوى د حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه سره موافقت اوكړو.(۳)

د علامه خطابى.ابن حزم او قاضى عياض رحمهم الله وغيره د كلام كتلو نه معلوميږى.چه د نبى كريم صلى الله عليه وسلم د وفات نه پس خلق په پنځو قسمونو كښې تقسيم شوى وو.

د ټولې نه لنې جماعت خو په دين باندې قائم وو.دويم نمبر باندې هغه ډله وه.چه ټول شريعت ئې منل.خو صرف د زكاة نه ئې انكار كولو.ددې نه پس دريمه ډله هغه وه.كمه چه مرتده شوې وه.او د دين اسلام نه اوړيدلې وه.بيا ددوى لاندې دوه ډلې وې.يو خو هغه خلق

---

(۱) صحيح بخارى كتاب الزكاة باب وجوب الزكاة رقم ۱۳۹۹ و ۱۴۰۰)_

(۲) فتح البارى(۷۶/۱)_

(۳) صحيح بخارى كتاب الزكاة باب وجوب الزكاة رقم ۱۳۹۹ و ۱۴۰۰)_

ووچا چه د نبوت كاذبه تابعداري كړې وه لكه مسيلمه كذاب، اسعود عنسي، سجاح او طليحه وغير. او دويمه ډله هغه وه كومه چه د خپل پلار نيكه دين ته واپس شوه او پنځم برخه مختصره ډله وه. كومه چه نه يو خوا وه او نه بل خوا. بلكه د غالبې ډلې په انتظار كښې وه چه څوك غالب شي د هغوي سره به شي.()

علامه ابن حزم رحمه الله هغه خلق په يوه ډله كښې شمار كړي دي چه مرتد شوي وو نو په دې طريقه د هغوي په نيز څلور قسمونه جوړيږي. كه د مرتدينو دواړه قسمونه دا جدا شمار كړې شي. و دا ټول پنځه قسمونه شول.()

حضرت صديق اكبر رضي الله عنه چه د مرتدينو خلاف لښك تيا كړلو نو حضرت عمر رضي الله عنه پرې اعتراض اوكړلو. او دا ئې اووئيل «كيف تقاتل الناس وقد قال رسول الله ﷺ أمرت أن أقاتل الناس حتى يقولوا لا إله إلا الله فمن قالها فقد عصم مني ماله ونفسه إلا بحقه وحسابه على الله» او دا خلق «لا إله إلا الله» وائي.

په دې باندې خو اتفاق دې چه دحضرات شيخينو رضي الله عنهما مناظره د هغه كافرانو په باره كښې نه وه. څوك چه د خپل پلار نيكه دين ته واپس شوي وو. او نه د هغه كافرانو په باره كښې وه. څوك چه د نبوت كاذبه د مدعينانو تابعدار شوي وو. بلكه دا مناظره د منكرين زكاة په باره كښې وه.

اوس دلته اشكال دا دې چه زكات د اسلام په فرائضو كښې دې. كه څوك ددې نه انكار اوكړي نو مرتد كيږي. ځكه چه د دين په ضرورياتو كښې د يو امر ضروري نه انكار كول ارتداد دې نو هركله چه دا خلق مرتد شول. نو بيا حضرت عمر رضي الله عنه ته دا اشكال ولې راغلو چه هغوي حضرت صديق اكبر رضي الله عنه سره مناظره شروع كړه.

حضرت مولانا ګنګوهي رحمه الله ددې دا جواب كړې دې. او هم دا حضرت شيخ الحديث غوره كړې دې چه په اصل كښې د منكرين زكاة دوه ډلې وې. يوه ډله خو د فرضيت نه منكره وه. چه د زكاة د فرضيت نه منكره شوې وه. او دويمه ډله د فرضيت قائله وه. خو د زكاة د ادا كوول نه ئې انكار كولو. او دا ئې وئيل چه د زكاة وركول د نبي ﷺ په زمنه پورې خاص وه. ځكه چه الله تعالى فرمائيلي دي ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا وَصَلِّ عَلَيْهِمْ ۖ إِنَّ صَلَوٰتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ ۗ﴾ () نبي ﷺ ته په خصوصيت سره په دې آيت كښې د صدقې اخستلو. او بيا د تطهير او د تزكيه حكم شوې دې د هغوي خيال وو چه مونږ به په خپله زكاة وركوو.

---

() فتح الملهم (١١٩٠١، ١٩١) كتاب الإيمان باب الأمر بقتال الناس حتى يقولوا لا إله إلا الله إلخ وشرح نووي على صحيح مسلم (٣٨١١)_

() فتح المهلهم (١١٩٠١)_

() سورة التوبة :١٠٣)_

ددې دواړو قسمونو ذکر علامه ابي په شرح د مسلم کښې کړې دے.[1]
حضرت ګنګوهي رحمه الله فرمائي چه د حضرات شيخينو رضي الله عنهما مناظره په اول قسم کښې نه وه ځکه چه مطلقا د فرضيت زکاة نه انکار کړې وو بلکه په دويم قسم کښې وه حضرت صديق اکبر رضي الله عنه د هغوى د بغاوت په وجه په هغوى باندې د حملې کولو جواز قائل و.ځاو حضرت عمر د کلمې وئيلو په وجه او د تاويل کولو په وجه هغوى معصوم المال والدم ګرځول.[2]
خو عام شراح کرام خطّابى، قاضى عياض، امام نووى او علامه عينى رحمهم الله وغيره دا وائى چه د مطلقاً منکرين زکاة په باره کښې مناظره شوې وه.[3]
په دې باندې اعتراض کيدې شى.چه مطلقاً د منکرين زکاة په باره کښې څنګه مناظره کيدې شوه.که نن هم څوك د زکاة د فرضيت نه انکار اوکړى.نوهغه کافر.مرتد او مباح الدم ګرځى. **ددې جواب** امام خطابى او د دوى په اتباع کښې نورو حضراتو دا ورکړې دې چه زمونږ او د هغوى په زمانه کښې فرق و.چونکه د هغوى زمانه د نزول وحى او شريعت سره نزدې وه.او په هغې کښې د نسخې اوتبديلئ احکام جارى و..اوبله دا چه هغوى چونکه قريب العهد بالاسلام وو.اود دين د امورو نه پوره خبر نه و..نو ددې وجې د هغوى عذر قبول کړې شو.اودهغوى تکفير اونکړې شو.خو د هغې په عکس نن صبا معامله مختلف ده.اوس دين خور شوې دې.په مسلمانانو کښې د زکاة د فرضيت علم هر خاص اوعام ته شوې دې.ددې فرضيت د مسلمانانو عالم هم پيژنى.او جاهل هم.نو که نن څوك ددې د فرضيت نه انکار اوکړى دهغه عذر به قبول نه وى.والله أعلم[4]

**ايا د ذمى او معاهد سره قتال کولې شى؟** ددې حديث نه معلومه شوه چه څوك د «لا إله إلا الله محمد رسول الله» قائل وى.مونځ کوى.او زکاة ورکوى.ند هغه سره به قتال نشى کولې .او د باقى ټولو سره به قتال کولې شى.
په دې باهدې دا اشکال کيږى.که څوك جزيه ورکوى.نودهغه سره قتال نشى کولې دغه شان ځا سره چه معاهده شوې وى.د هغه سره هم قتال نشى کوليې.او د دې حديث تقاضا دا ده.چه د هرکس دې قتال کولې شى.مګر دا چه د توحيد او رسالت قائل وى. موځ کوى.او زکاة ورکوى.

---

[1] شرح أبي (١\١٠٤) كتاب الإيمان أحاديث أمرت أن أقاتل الناس حتى يقولوا لا إله إله الله)_
[2] لامع الراري (١١\١٥. ١٢) كتاب الزكاة)_
[3] شرح نوى على صحيح مسلم (١\٣٨. ٣٩) كتاب الإيمان باب الأمر بقتال الناس .. وأعلام الحديث للخطابى (١\٧٤) وعمدة القارى (٨\٢٤٤) كتاب الزكاة باب وجوب الزكاة)_
[4] أعالم الحديث للخطابى (١\٧٤٢) كتاب الزكاة باب وجوب الزكة وعمدة القارى (٨\٢٤٧) وشرح نوى على صحيح مسلم (١\٣٩)_

ددې اشکال عالمانو شپږ جوابونه ورکړی دی ① يو جواب علامه طيبى دا ورکړې دې چه کيدې شى چه دا حديث په ابتدا کښې وی اود جزيه اومعاهدې حکم روسته راغلى وی.()

② دويم جواب دوی دا ورکړې دې چه ممکن ده چه دا حديث عام مخصوص منه البعض وی او «أمرت أن أقاتل الناس..» کښې د «ناس» نه ټول خلق مراد نه وی لکه څنګه چه په ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ﴾ کښې دی چه ټول جنات او ټول انسانان عبادت نه کوی دغه شان دلته د «الناس» نه مودى الجزيه اومعاهد مخصوص مراد وی.()

③ دريم جواب علامه طيبى رحمه الله دا ورکړې دې چه د جموعه شهادتين اقامت صلاة او ايتاء الزکاة نه اعلاء کلمة الله اود دين غلبه او د مخالفينو اظهارعجز مراد دې دا مقصود په بعضې خلقوکښې په قول اوفعل سره حاصليږى اوپه بعضوکښې د جزيه په ورکولوباندې حاصليږی اوپه بعضوکښې په معاهدې سره حاصليږى.()

④ يوجواب دا ورکړې شوې دې چه دا م دې خوددې نه خاص خلق مراد دی په دې صورت کښې به د «الناس» نه مشرکان مراد وی.()

په دې جواب کښې اودعلامه طيبى رحمه الله په دويم جواب کښې فرق دا دې چه هلته «الناس» عام مخصوص منه البعض دی يعنى لفظ عام دې اوددې نه بعضې يعنى مودى الجزيه او معاهد مخصوص مراد دې اوپه دې جواب باندې به مطلب دا وی چه لفظ د «ناس» خو عام دې خو ددې نه مخصوص خلق مراد دی اوهغه مشرکن دی نو اوس مطلب دا راووتل چه مشرکانو سره د قتل او قتال حکم شته البته دا چه ايمان راوړی مونځ کوی او زکاة ورکوی اود مودى الجزيه سره ددې تعلق نشته ځکه چه جزيه د مشرك نه نشى اخستې خو دا خبره دې معلومه وی چه دا مسئله مختلف فيها ده.

امام شافعى اوامام احمد رحمهما الله خو ددې خبرې قائل دی چه جزيه د اهل کتابو نه اخستې شى برابره خبره ده که عربى وی اوکه عجمى.()

امام مالك رحمه الله فرمائى چه په عجموکښې به د هر کافر نه جزيه اخستې شى که عربى وی اوکه عجمى که تغلبى وی اوکه کتابى يا غير کتابى وی البه ددوی په نيز د مرتد نه جزيه نشى اخستې.()

---

) الكشاف عن حقائق السنن(۱\۱۲۹) كتاب الإيمان الفصل الأول)_

) الكشاف (۱\۱۲۸)_

) الكشاف عن حقائق السنن (۱\۱۲۸)_

) شرح كرمانى (۱\۱۲۲)_

) الجامع لأحكام القرآن للقرطبى (۸\۱۱۰)_

) تفسير قرطبى (۸\۱۱۰)_

امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه دهرکافر نه به جزیه اخستې شي برابره ده که مشرک وی او که اهل کتاب وی اوپه عربو کښې به صرف د اهل کتابو نه جزیه اخستې شی د مشرک نه به نشی اخستې.(۱)لکه چه امام ابوحنیفه رحمه الله د عجمیانو په مسئله کښې د امام مالک رحمه الله سره دي او د عربو په مسئله کښې د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله سره دي

دا جواب په کوم کښې چه د «ناس» نه مشرکان مراد اخستې شوی دی صرف دامام شافعي او امام احمد رحمهما الله په مسلک باندې منطبق کیږی ددې نورو امامانود مسلک مطابق ددې جواب دا ورکولې شی چه جزیه ادا کونکې عارضی او وختی طور د جزیه په سبب محفوظ کیږی اوکه جزیه ورکول پریږدی نو ددې لاندې هغه هم راځی نوهغه همیشه دپاره محفوظ نه شو بلکه د یو عارض په وجه محفوظ شو

یواعتراض دا کیږی چه معاهده خو هر کس سره کیږی لکه څنګه چه کتابی سره کیږی دغه شان مشرک سره هم کیږی اودا شرعی قاعده ده چه معاهد ته تعرض نشی کولې نو اوس که حدیث د مشرکانو سره خاص کړې شی نو مطلب به دا راوځی چه د هر مشرک سره دې قتال او قتال کولې شی البته دا چه هغه ایمان راوړی حالانکه که مشرک معاهد وی نو ده سره مطلقاً قتال نشی کولې

ددې جواب دا دې چه معاهده د تاخیر القتال دپاره وی د ترک القتال دپاره نه وی او د حدیث پاک نه دا معلومیږی چه قتال به ترک کولې نشی دا ترې نشی راوتلې چه قتال به موخر کولې نشی.(۲)

⑤ پنځم جواب نې دا ورکړې دې چه «أمرت أن أقاتل الناس» کښې د قتال مراد عام دې که واقعة قتال وی اوکه ددې قائم مقام وی یعنی جزیه وغیره.(۳)

⑥ شپږم جواب دا دې چه اصل مقصود دا دې چه په ټوله دنیا کښې اسلام خور شی ددې یو صورت خو دا دې چه ټول مسلمانان شی او دویم صورت دا دې چه جزیه ادا کوی څکه چه د جزیې په ادا کولو کښې د ورکونکی ذلت وی او هیڅ یو کس د ذلت اختیارولو ته تیار نه وی نو جزیه ورکونکی ته به دا خیال راځی چه دا ټول مصیبت د کفر په وجه برداشت کوم نو هم دا کفر پریږده او ایمان راوړه لکه چه جزیه ادا کول د اسلام راوړلو سبب دې.(۴)

اوترڅو پورې چه د معاهد تعلق دې نو د هغه سره د تاخیر قتال معامله ده د ترک قتال نه ده.(۵) کمامرسابقاً، حافظ ابن حجر رحمه الله دا آخری جواب د ټولو نه غوره ګرځولې دې

---

۱) احکام القرآن للجصاص (۹۱\۳) باب أخذ الجزية من أهل الكتاب_
۲) فتح الباری(۷۷\۱)_
۳) شرح کرمانی(۱۲۲\۱)_
۴) الکاشف عن حقائق السنن(۱۲۸\۱، ۱۲۹)_
۵) فتح الباری(۷۷\۱)_

**زنديق او دده حكم** ددې حديث نه په دې باندې استدلال کړې شوې دې.چه د زنديق توبه مقبوله ده.

دزنديق تعريف بعضوخلقو کړې دې.چه «المبطن للكفر المظهر للإسلام كالمنافق»[1] بعضو وئيلى دى.«من لا دين له»[2]

صاغانى رحمه الله نقل کړى دى.چه دا د،،زن دين،،نه معرب دې.[3] يعنى د ښځو پشان مذهب او دين لرونکې. دا د ښځو عادت وى.چه په زړه کښې ئې يو څه وى.او په ژبه ئې بل څه وى.

د زنديق توبه قبليږى او که نه؟ په دې کښې د عالمانو پنځه اقواله دى.

① يو قول دا دې.چه دده توبه مطلقاً قبول ده.هم دا د امام شافعى رحمه الله صحيح او منصوص قول دې.

② دويم قول دا دې.چه دده توبه او دده رجوع الى الاسلام معتبر نه ده.البته که دده رجوع ريښتيا وى.نو عندالله به دده دپاره نفع بخش وى.دا د.مالکيانو قول او د امام شافعى رحمه الله يوه (وجه) ده.د امام ابوحنيفه رحمه الله نه ددې دواړو اقوالو مطابق يو يو قول منقول دې.

③ که د داعيانو څخې وى.نو دده توبه مقبوله نه ده.البته د عوامو توبه به قبوله وى.دا هم د شوافعو يوه .. وجه.. ده.

④ څلورم قول دا دې.که زنديق د قتل دپاره گرفتار شو.او اوس توبه کوى.نو دده توبه قبوله نه ده.او که د مخکښې نه ئې توبه اوکړله.او بيا په ده باندې د صدق فى التوبه علامات هم ښکاره شو.نو دده توبه به معتبر وى.دا د امام مالک رحمه الله يو قول او د امام شافعى رحمه الله يوه .. وجه.. ده.

⑤ يو قول دا دې.چه يو ځل دده توبه قبول ده.که بار بار توبه کوى.نو مقبول نه ده. دا هم د شوافعو يوه ..وجه.. ده.

ياد ساتئ:چه د اقوالو دا اختلاف د هغه زنديق په باره کښې دې.کوم چه ښکاره مسلمان وى او په باطن کښې ئې کفر پټ کړې وى.او ددې علم په دې طريقه کيدې شى.چه دده په کفر باندې څه شواهد معلوم شى.يا پخپله دې اقرار اوکړى.[4]والله اعلم.

**د تارک صلات حکم** اوس ددې نه پس په مسئله پوهه شئ:که يو سړې مونځ په دې وجه پريږدى.چه هغه ددې د فرضيت قائل نه دې.نو هغه په اتفاق د مسلمانانو کافر او مباح الدم دې.[5]

---

[1] مجمع بحار الأنوار (٢\٤٣٨)_

[2] المصدر السابق)_

[3] تاج العروس (٦\٣٧٣)_

[4] عمدة القارى( ١\١٨٢)_

[5] المغنى لابن قدامة (٢\١٥٦) باب الحكم فيمن ترک الصلاة)_

خو كه د تكاسل او تهاون په وجه ئې پريږدى.د سستئ او كاهلئ په وجه ئې نه كوى.نو دده په باره كښې اختلاف دې.په دې كښې دعالمانو څلور اقوال دى:

امام احمد بن حنبل رحمهما الله ، په شوافعو كښې د منصور فقيه نه علاوه نور ډير حضرات، عبدالله بن المبارك او اسحاق بن راهويه وغيره فرمائى.چه دا سړې مرتد شو.او د ردت په وجه به دې قتلولې شى.[1]

امام مالك او امام شافعى رحمهما الله فرمائى.چه دا سړې مرتد نشو.خو د كوم جرم ارتكاب ئې چه كړې دې.د هغې سزا دا ده.چه دې قتل كړې شى.[2]

ابن شهاب زهرى، امام ابوحنيفه، امام مزنى او داؤد ظاهرى رحمهم الله فرمائى.چه دې به نشى قتلولې.بلكه په زبردست قيد كښې به اچولې شى.او سزا به وركولې شى.[3] ((يسجن فيضرب حتى يتوب أو يموت))

علامه ابومحمد ابن حزم ظاهرى رحمه الله فرمائى.چه مونځ نه كول يو منكر امر دې.او د منكر ازاله د((من رأى منكم منكراً فليغيره بيده، فإن لم يستطع فبلسانه، فإن لم يستطع فبقلبه))[4] په وجه واجب ده.او ددې صورت دادې.چه د منكر مرتكب ته به تاديبى سزا وركولې شى.او تاديبى كوړې په حديث كښې لس وارد شوى دى.نو كله چه مونځ نه كوى.نو هغه ته به لس كوړې لګولې شى.كه مونځ اوكړى.نو فبها . اوكه نه كوى.نو دا يو نوې منكر اوموندې شو.نو بيا به لس كوړې لګولې شى.دغه شان به مسلسل وهلې شى.او د مونځ تلقين به ورته كولې شى.يا به دې مونځ كوى.يا دې مړشى.خو د مړ كولو قصد به نشى كولې.بيا دا تاديبى سزا به تر هغه وخته پورې جارى وى.تركومه پورې چه د مونځ وخت باقى وى.خو كله چه د مونځ وخت اوځى.نو چونكه ددوى په نيز چه كوم مونځ د وخت تيريدلو په وجه فوت شى.د هغې قضاء ممكن نه ده.[5] په دې وجه اوس ددې مونځ دپاره تاديب نشته.البته دويم مونځ د كوم وخت چه اوس داخل شوې دې.د هغې دپاره به تاديبى سزا شروع كولې شى.او دا سزا به چونكه د مونځ په وختونو كښې وى.نو د نمر د زوال نه پس به د تارك صلاة وهل تكول شروع كولې شى.او تر نيمې شپې پورې به شروع

---

[1]) المجموع شرح المهذب (١٦\٣)_

[2]) المصدر السابق)_

[3])المغنى لابن قدامة (١٥٦\٢) والمجموع (١٦\٣) والمحلى(٣٧٦\١١)_

[4]) صحيح مسلم (٥١\١) كتاب الإيمان باب بيان كون النهى عن المنكر من الإيمان .. وسنن نسائى (٢٦٩\٢) كتاب الإيمان وشرائعه باب تفاضل أهل ا لإيمان .. وسنن أبى داود كتاب الصلاة باب الخطبة يوم العيد رقم ١١٤٠) وسنن ترمذى كتاب الفتن باب ما جاء فى تغيير المنكرباليد أوباللسان أو بالقلب رقم ٢١٧٢) وسنن ابن ماجه كتاب الفتن باب الأمر بالمعروف والنهى عن المنكر.رقم (٤٠١٣)

[5]) المحلى(٢٣٥\٢) وأما من تعمد ترک الصلاة حتى خرج وقتها )_

وى.ددې نه پس چونكه ددوى په نيز د مونځ وخت نشته.[1] نو تر صبا پورې به وهل موقوف كولې شى.او د صبا راختلو نه پس به بيا د سحر مونځ دپاره وهلې شى.كه مونځ اوكړى.نو ډيره ښه ده.كنې وهلې به شى.تردې چه نمر راوخيژى.د نمر راختلو نه پس به وهل موقوف كولې شى.خكه چه زواله پورې د هيڅ فرض وخت نه دې.[2]

**د ارتداد د قائلينو دليلونه** امام احمد رحمه الله چه قصداً مونځ پريخودونكې كافر گرځوى.او ارتداداً د قتل حكم لگوى.ددوى او ددوى د متبعينو استدلال د نبى كريم ﷺ د هغه ارشاداتو نه دې.په كومو كښې چه ترك صلاة باندې د ذمې د براءت او د كفر اطلاق شوې دې.لكه ارشاد دې.((إن بين الرجل و بين الشرك والكفر ترك الصلاة))[3]

اود حضرت بريده رضي الله عنه مرفوع حديث دې.((إن العهد الذى بيننا و بينهم الصلاة، فمن تركها فقد كفر))[4]

حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه فرمائى.((أوصانى خليلى ﷺ أن لا تشرك بالله شيئاً وإن قطعت و حرقت، ولا تترك صلاة مكتوبة متعمداً، فمن تركها متعمداً فقد برءت منه الذمة، ولا تشرب الخمر فإنها مفتاح كل شر))[5]

كوم حضرات چه د تارك صلاة دنه كافر كيدو قائل دى.هغوى دا وائى.چه ترك صلاة معصيت دې.كفر نه دې.او په كومو احاديثو كښې چه د كفر اطلاق شوې دې.هغه خو يا په مستحل باندې محمول دې.يا دهغې نه مراد دا دې.چه دده فعل د كافرانو د فعل سره مشابه دې.يا دا مطلب دې.چه د مؤمن علامت خاصه مونځ دې.كه يو مؤمن مونځ پريږدى.نو په ده كښې او كفر كښې به هيڅ څيز فارق نه وى.هم ددې ترك صلاة په وجه سړې د كافر مشابه كيږى.دده فعل د كافرانو پشان كيږى.[6]

**د امام مالك او امام شافعى رحمهما الله استدلال:** بيا امام مالك او امام شافعى رحمهما الله چه ددې خبرې قائل دى.چه تارك صلاة نه كافر كيږى.البته د ترك صلاة په وجه به دې حداً قتل كولې شى.ددوى رومبې استدلال خو د آيت قرآنى نه دې. ﴿فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ

---

[1] المحلى (١٦٤\٣) أوقات الصلاة)_

[2] المحلى (٣٧٩\١١ . ٣٨٠) مسئله تارک الصلاة عمداً)_

[3] صحيح مسلم (٦١\١) كتاب الإيمان باب بيان إطلاق الكفر على من ترک الصلاة .. وسنن نسائى (٨١\١) كتاب الصلاة باب الحكم فى تارک الصلاة.. وسنن أبى داود كتاب السنة باب رد الإرجاء رقم ٤٦٧٨ وسنن ترمذى كتاب الإيمان باب ما جآء فى ترک الصلاة رقم ٢٦١٨ . ٢٦٢٠) وسنن ابن ماجه كتاب إقامة الصلاة والسنة فيها باب ما جاء فيمن ترک الصلاة رقم ١٠٧٨)_

[4] سنن نسائى (٨١\١) كتاب الصلاة باب الحكم فى تارک الصلوات وجامع ترمذى كتاب الإيمان باب ما جآء فى ترک الصلاة رقم ٢٦٢١) وسنن ابن ماجه كتاب إقامة الصلاة والسنة فيها باب ما جآء فيمن ترک الصلاة رقم ١٠٧٩)_

[5] سنن ابن ماجه كتاب الفتن باب الصبر على البلاء رقم ٤٠٣٤)_

[6] شرح نووى على صحيح مسلم (٦١\١) كتاب الإيمان باب بيان إطلاق إسم الكفرعلى من ترک الصلاة)_

وَخُذُوهُمْ وَاحْصُرُوهُمْ وَاقْعُدُوا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ ۚ فَإِنْ تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَوٰةَ وَآتَوُا الزَّكَوٰةَ فَخَلُّوا سَبِيلَهُمْ ﴾[1] په دې آيت کښې د سبيل د تخليۀ دپاره د شرك او کفر نه توبه. او اقامت د صلاة او ايتاء زكاة لازم ګرځولې شوې ده.نوکه څوك مونځ قائم نکړى. نو د قتل نه به نه بچ کيږى.

دغه شان ددې حديث باب نه هم ددوى استدلال دې چه په دې کښې دى چه «قَالَ أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَشْهَدُوا أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ وَيُقِيمُوا الصَّلَاةَ وَيُؤْتُوا الزَّكَاةَ فَإِذَا فَعَلُوا ذَلِكَ عَصَمُوا مِنِّي دِمَاءَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ»

په دې حديث کښې د عصمت دماء او اموال دپاره شهادت د توحيد او رسالت. اقامت صلاة او ايتاء زكاة ضرورى ګرځولى شوى دى.نوکه يوکس مونځ قائم نکړى.نو هغه به محفوظ الدم او محفوظ المال نه وى. يعنى دې به بې دريغه قتلولې شى.

ترکومه پورې چه دده د نه کافر کيدو تعلق دې.نو دا حضرات د حضرت عباده بن الصامت ﷺ د روايت نه استدلال کوى.هغوى فرمائى.چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل .«خمس صلوات كتبهن الله عزوجل على العباد، فمن جاء بهن لم يضيع منهن شيئاً استخفافاً بحقهن، كان له عندالله عهد أن يدخله الجنة، و من لم يأت بهن فليس له عندالله عهد، إن شاء عذبه و إن شاء أدخله الجنة»[2] په دې حديث کښې تارك صلاة تحت المشيئت داخل کړې شوې دې.که چرې الله تعالى اوغوارى. نو دوى ته به سزا ورکوى.اوکه اوغوارى.نو په جنت کښې به داخل کړى.که دې کافر شو.نو جنت ته د داخليدو به څه مطلب وى؟

**د مذكوره دلائلو جواب:** امام نووى رحمه الله طرف ته د تارك صلاة د قتل په سلسله کښې دا استدلال منسوب دې.[3] چه په حديث باب کښې دا وئيلى شوى دى.چه خلقو سره د قتال حکم دې. خو داچه د توحيد او رسالت شهادت ورکړى.مونځ اوکړى.او زكاة ورکړى .ددې نه معلومه شوه.چه کوم کس مونځ نه کوى.هغه سره به قتال کولې شى.

خو دا استدلال ضعيف دې.چه دا علامه ابن دقيق العيد ,,چه دا يو ډير لوئې شافعى عالم دې.. ضعيف ګرځولې دې.هغه فرمائى.چه د داسې حديثونو نه په قتل باندې استدلال غلط دې.ځکه چه قتال او قتل دوه جدا جدا څيزونه دى.د قتال معنى د جنګ کولو ده.د وژلو نه ده.او د قتل معنى د وژلو ده.او په حديث کښې قتال راغلې دې.دا به د قتل په معنى کښې نشى اخستلې.[4]

---

[1] ) التوبة:۵)_

[2] ) موطا امام مالک کتاب الصلاة الليل باب الأمربالوتر رقم ۱۴. وسنن نسائى (۱/۸۰) کتاب الصلاة باب المحافظة على الصلوات الخمس وسنن إبن داود فى کتاب الوترباب فيمن لم يوتر رقم ۱۴۲۰ وسنن ابن ماجه کتاب إقامة الصلاة والسنة فيها باب ما جآء فى فرض الصلوات الخمس والمحافظة عليها رقم (۱۴۰۱)

[3] ) عمدة القارى(۱/۱۸۱)_

[4] ) درس بخارى از شيخ الاسلام علامه شبيراحمد عثمانى (۱/۲۰۲)_

ددې بهترين شاهد د حديث هغه الفاظ دى كوم نې چه د سترې په باب كښې فرمائيلى دى.«إذا كان أحدكم يصلى فلا يدع أحداً يمر بين يديه وليدرأه ما استطاع فإن أبى فليقاتله فإنما هو شيطان» [1] يعنى كله چه په تاسو كښې څوك مونځ كوى.نو څوك دې دخپلې مخې نه تيريدو ته نه پريږدى اوچه څومره كيدې شى.هغه دې دفع كوى اومنع كوى.كه بيا هم هغه نه منع كيږى بلكه د تيريدو قصد ئې كړې وى.نو هغه سره دې قتال اوكړى.څكه چه هغه شيطان دې

صفا ظاهره ده.چه دلته د قتال نه قتل مراد نه دې.دغه شان په «أمرت أن أقاتل» كښې د قتال نه هم قتال مراد دې.قتل مراد نه دې.لکه چه د تارك الصلاة قتل د حديث نه ثابت نه دې.ددې وجې د تارك صلاة د قتل دپاره په دې حديث باندې استدلال كول صحيح نه دى.

دويم دليل د قرآن كريم آيت دې.﴿وَإِنْ طَآئِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْتَتَلُوْا فَأَصْلِحُوْا بَيْنَهُمَا ۚ فَإِنْ بَغَتْ إِحْدٰهُمَا عَلَى الْأُخْرٰى فَقَاتِلُوا الَّتِيْ تَبْغِيْ حَتّٰى تَفِيْٓءَ إِلٰٓى أَمْرِ اللّٰهِ ۚ﴾ [2] په دې آيت كښې د مقاتله نه هر ګز قتل مراد نه دې.دغه شان به تارك صلاة سره قتال كولې شى.خو قتلولې به نشى.هم دا وجه ده.ه امام بيهقى رحمه الله د امام شافعى رحمه الله قول نقل كړې دې.«ليس القتال من القتل بسبيل قد يجوز أن يحل قتال المسلم ولا يحل قتله» [3] يعنى قتال او قتل دواړه يو څيز نه دې.د قتال د جواز نه د قتل جواز نه لازميږى.څكه چه داسې كيدې شى.چه قتال جائز وى.او قتل نا جائز وى.

اوس حاصل دا شو.چه د تارك صلاة سره جنګيږئ.قتال ورسره كوئ.كه د يو كلى خلقو په اتفاق سره مونځ پريخودلو.نوامام به د هغوى سره قتال كوى.ددې په باره كښې د امام ابوحنيفه رحمه الله نه څه صراحت نشته.البته د امام محمد رحمه الله نه نقل دى.كه د كلى خلق آذان پريږدى.نو د وخت امام به د هغوى سره قتال كوى.دغه شان تارك ختنه سره به هم امام د وخت قتال كوى. [4] نوهركله چه داذان او ختنه غوندې څيزونو په پريخودو سره دا حكم دې.حالانكه دا د مونځ نه په كمه درجه كښې دى.نود مونځ په پريخود خو به په طريق اولى سره ورسره قتال كولې شى.خلاصه دا چه د تارك صلاة قتل ددې حديث نه نه ثابتيږى.

د علامه ابن دقيق العيد رحمه الله پشان علامه ابن حزم ظاهرى رحمه الله هم دا استدلال رد كړې دې. [5]

دا خبره دې معلومه وى.چه امام نووى رحمه الله غوندې محقق كس ته ددې استدلال نسبت كول

---

[1] صحيح مسلم (١٩٦/١) كتاب الصلاة باب سترة المصلى والندب إلى السترة والنهى عن المرور بين يدى المصلى ..)_

[2] الحجرات:٩)_

[3] سنن كبرى للبيهقى (١٨٨/٨) كتاب قتال أهل البغى باب الخلاف فى قتال أهل البغى)_

[4] فتح الملهم (١٩٢/١) كتاب الإيمان باب الأمر بقتال الناس حتى يقولوا:لا إله إلا الله)_

[5] المحلى لابن حزم (٣٧٨/١١) مسألة تارك الصلاة عمداً حتى يخرج وقتها )_

صحيح نه معلوميږي چه هغوی به د تارك صلاة د قتل دپاره په حديث باب كښې په لفظ د «أقاتل» سره استدلال كړې وي.ځكه چه هغوى خو به دومره فرق پيژنی.چه قتال يو څيز دې اوقتل بل څيزدې.بيا د امام شافعى رحمه الله قول به هم د هغوى نه پټ نه وي.نو هغوى طرف ته ددې استدلال نسبت كول صحيح نه معلوميږي.البته ددې حديث نه هغوى د تارك الصلاة سره په قتال كولو باندې استدلال ضرور كړې وي.خو هغه استدلال په «أقاتل» سره نه دې.بلكه په «فإذا فعلوا ذلك عصموا منى دمائهم وأموالهم» سره دې.() لكه چه د دوى په نيز د عصمت مال و جان دواړو ترتب به په هغه وخت كښې وي.كله چه دا درې واړه امور متحقق شي يعنى عصمت دجان او مال به هله وي.چه اقرارد شهادتينو.اقامت صلاة اوايتاء الزكاة درې واړه وي.نو چه يوجزء فوت شي.نو عصمت به هم فوت كيږي.

وړاندې تفصيل دې.كه اولنې جزء فوت شي.نو مجموعه د عصمت به فوت وي.نه به دده جان محفوظ وي.اونه به ئې مال محفوظ وي.اوكه دويم جزء يعنى صلاة فوت شي.نوپه دغه وخت كښې به د مال عصمت منتفى نه وي.بلكه د دم عصمت به ختم شي.اوكه دريم جزء يعنى ايتاء الزكاة فوت شي.نوعصمت دمال به ختم شي.د دم عصمت نه پورته كيږي.كله چه درې واړه وي.نوهرڅه به وي.اوكه درې واړه نه وي.نو څه به هم نه وي.نه به عصمت د دم وي.اونه به عصمت د مال وي.اوكه يو جزء صلاة فوت شي.نوعصمت د دم به پورته شي.اوكه ايتاء الزكاة فوت شي.نو عصمت د مال به ختم شي.()

ددې تقرير په صورت كښې اگرچه د ابن دقيق العيد اوابن حزم رحمهما الله تقرير څه فائده نه وركوی.البته احناف څنگه چه د تارك الصلاة دقتل منكر دی.هغوی دا وئيلی شي.چه دلته په حديث كښې د تارك الصلاة د معصوم او محفوظ الدم مطلب دادې.چه ده سره به مقاتله كولې شي.

دغه شان دا هم وئيلی شي.چه احناف هم دده دغيرمعصوم الدم قائل دی.ځكه چه داحنافو په نيز دده حكم دا دې.چه دې به په سخت قيد كښې واچولې شي.او سزا به وركولې شي.

«حتى يتوب أو يموت»() مراد دا دې.چه تارك الصلاة زمونږ په نيز هم معصوم الدم نه دې.فرق صرف دومره دې.چه نور امامان مهلت نه وركوی.بلكه سمدستى د قتل حكم وركوی.او امام ابوحنيفه رحمه الله مهلت وركوی .او فرمائى چه سخت سخت ئې اووهئ.د مرگ پرواه ئې مكوئ.پريږدئ چه مړ شي.خو تادى مكوئ.په قيد كښې ئې واچوئ.وږې ئې ساتئ.دومره ئې

---

) شرح نووى على صحيح مسلم (٦١\١) كتاب الإيمان باب بيان إطلاق إسم الكفرعلى من ترك الصلاة والمجموع شرح المهذب (١٧\٣) كتاب الصلاة فرع فى مذاهب العلماء فيمن ترك الصلاة تكاسلاً مع إعتقاده وجوبها)_

) درس بخارى(٢٠٤\١)_

) ردالمحتار(٢٥٩\١) كتاب الصلاة)_

اووهئ چه وینه ترې روانه شي اوبیا نې هم جان محفوظ نه دې «حتى يتوب أو يموت»
ترخوېږې چه دآيت قرآني ﴿فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ وَخُذُوهُمْ وَاحْصُرُوهُمْ وَاقْعُدُوا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ فَإِنْ تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ فَخَلُّوا سَبِيلَهُمْ﴾(١) تعلق دې نو يقيناً چه ددې نه په ظاهره هم دا معلومیږي چه تارك الصلاة قتل كړئ.خكه چه په دې ښکاره د «أقتلوا» لفظ دې.هم دا وجه ده چه علامه ابن قیم رحمه الله هم په دې آیت باندې د تارك الصلاة په قتل باندې استدلال كړې دې (٢)

ددې جواب دا دې چه په آیت کښې د «أقتلوا» نه مراد قتل نه دې بلکه قتال دې.ددې اولنئ قرینه دا ده.چه حدیث باب مقتبس دې د سورة براءت ددې آیت نه اوپه آیت کښې دقتل ذکردې.اوپه حدیث کښې دقتال ذکردې.نواوس دوه صورتونه دی یا خو په آیت کښې د قتل نه قتال مراد واخستې شی.او حدیث ددې تفسیر اوګرخولې شی.اویا چه په حدیث کښې د قتال کوم لفظ راغلې دې.د هغې نه د آیت په وجه قتل مراد واخستې شی.عقلی قرائن دا بنائی.چه په ایت کښې قتال مراد دې.خکه چه حدیث د آیت مفسر او شرح وی.نولکه چه نبی ﷺ تنبیه وکړه.چه په آیت کښې د قتل صبراً مراد نه دې.بلکه قتال مراد دې.اوداسې تجوزات په لغت کښې شائع دی.
دویمه قرینه دا ده.چه د تارك الزکاة د قتل هیڅوك قائل نه دی.البته که تارك الزکاة یوه ډله وی.نوبیا امام ته د هغوی سره د قتال او محاربې حکم دې.اودا مسئله اجماعې ده.اوهرکله چه په تارك الزکاة باندې دعدم قتل اجماع ثابته شوه.نواوس به ګورو.چه په قرآن پاك کښې د تخلیه سبیل کوم درې شرطونه مذکور دی.په هغې کښې زکاة هم شته.نوکه په آیت کښې لفظ دقتل هم په خپله معنی باندې واخستې شی.نوتارك الزکاة قتل ترې هم لازمیږي.حالانکه ټول په دې متفق دی.چه دده د قتل حکم نشته.نوخامخا به دا منل وی.چه په آیت کښې هم قتال مراد دې.او حدیث به د آیت تفسیر اوګرخولې شی.ددې نه دامام بخاری رحمه الله دقت نظر معلومیږي.چه په ترجمة الباب کښې نې آیت راوړلو.او ددې لاندې نې «أمرت أن أقاتل الناس» حدیث راوړلو ددوی مطلب دا دې چه خپل اشکال لرې کړئ او پوهه شی.چه په آیت کښې لکه چه لفظ د «قتل» دې خو مراد ترې «قتال» دې.لکه څنګه چه حدیث باب ددې وضاحت اوکړلو.(٣)
**داحنافو رحمهم الله استدلال** احناف دتارك الصلاة په عدم قتل باندې د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حدیث باندې استدلال کوی «قال رسول الله ﷺ لا یحل دم امرئ مسلم یشهد أن لا إله إلا

---

(١) التوبة:٥
(٢) فتح الملهم (١/١٩٥) كتاب الإيمان باب الأمر بقتال الناس حتى يقولوا لا إله إلا الله
(٣) درس بخارى (١/٢٠٣، ٢٠٤)

الله وأنى رسول الله إلا بإحدى ثلاث النفس بالنفس، والثيب الزانى والمفارق لدينه التارك للجماعة))[1] په دې حديث شريف كښې دا خودلې شوى دى چه صرف په درې صورتونوكښې د يو مسلمان وژل جائزدى يا خوچه بل څوك قتل كړى نوبه قصاص كښې به دې قتل كولې شى يا محصن زنا اوكړى نو رجم كولې به شى.ياد دين نه مرتدشى نو د ارتداد په وجه به قتلولې شى.

**دامام احمد او امام شافعى رحمهما الله خوندوره مناظره** د تارك صلاة دتكفير اوعدم تكفير په باره كښې دامام احمد او امام شافعى رحمهما الله په مينځ كښې د يوې مناظرې ذكريه دلته د خوند نه خالى نه وى.

وائى چه امام احمد رحمه الله يوځل دامام شافعى رحمه الله سره د تارك صلاة په باره كښې مناظره اوكړه.امام شافعى رحمه الله د هغوى نه تپوس اوكړو آيا د تارك صلاة تكفير به كولې شى؟نو امام احمد رحمه الله اوفرمائيل.آو.د ده تكفير به كولې شى. امام شافعى رحمه الله ترې تپوس اوكړو نو بيا به دې څنگه مسلمانيږى؟ هغوى ورته جواب وركړو.چه كلمه اووائى.نو مسلمان به شى.امام شافعى رحمه الله ورته اوفرمائيل.هغه كس خو كلمه وائى.د كلمې نه خو منكر نه دې.نو امام احمد رحمه الله اوفرمائيل.چه مونځ اوكړى.نو مسلمان به شى.امام شافعى رحمه الله ورته اوفرمائيل .د كافر مونځ خو نه صحيح كيږى.او نه د مونځ په ذريعه هغه په اسلام كښې داخليدې شى.په دې باندې امام احمد رحمه الله چپ شو.[2]

**قوله: إلا بحق الإسلام:** خوپه حق داسلام... يعنى دا خبره نه ده.چه چونكه ته كلمه وائې.مونځ كوې.او زكاة وركوې.نو اوس ته بيخى معصوم شوې.داسې نه ده.بلكه ددې تولو كارونو باوجود كه تا غلا اوكړه.نو ستا لاس به كټ ككولې شى.كه قتل عمد دې اوكړو.نو په قصاص كښې به قتل ته كولې شې.كه په چا دې په دروغه د زنا تهمت ا ولگولو.نو اتيا كوړې به درته لگولې شى.دغه شان په بل څه جرم باندې په تا باندې تعزيرى سزا جارى كولې شى.لكه چه د ((إلا بحق الإسلام))مطلب دا شو.چه شهادت د توحيد او رسالت ،اقامت د صلاة او ايتاء الزكاة سره سړې معصوم الدم گرځى.خودا ده.چه هم اسلام ددې د قتل حكم وركړى.لكه قاتل د نفس ،يا محصن زناكار.نو د اسلام باوجود به دې قتل كولې شى.[3]

---

[1]) صحيح بخارى كتاب الديات باب قول الله تعالى (أن النفس بالنفس والعين بالعين ) رقم ٦٨٧٨ وصحيح مسلم (٥٩\٢) كتاب القسامة باب ما يباح به دم المسلم وسنن نسائى (٢\١٦٤، ١٦٥) كتاب المحاربة باب ذكر ما يحل به دم المسلم وسنن أبى داود كتاب الحدود باب الحكم فيمن إرتد رقم ٤٣٥٢ وسنن ترمذى كتاب الديات باب ما جاء لا يحل دم إمرئ مسلم إلا بإحدى ثلاث رقم ١٤٠٢ وسنن ابن ماجه كتاب الحدود باب لا يحل دم إمرئ مسلم إلا فى ثلاث رقم ٢٥٣٤)_

[2]) طبقات الشافعية الكبرى(١١\٢٢٠) مناظرة بين الإمام الشافعى وأحمد رحمهما الله)_

[3]) ارشاد السارى(١\١٠٨)_

**قوله وحسابهم علی الله:** اود دوی حساب الله تعالی ته حواله دي.
یعنی مونږ خو د ظاهر مکلف یو.نو که څوك په ظاهره مسلمان وی.نو هغه سره به د مسلمانانو پشان سلوك او معامله کوو.اوکه مسلمان نه وی.نو د مسلمانانو پشان معامله به ورسره نه کوو.اګرچه هغه په باطن کښې هرڅنګه وی. ځکه چه مونږ د باطن مکلف نه یو.باطن الله تعالی ته حواله دي.(۱)

**فائده** ((علی)) عموماً دوجوب دپاره راځی.دلته د((علی))استعمال شوې دې. حالانکه په الله تعالی باندې خو د چا حساب واجب نه دې.نه جزاء او سزا واجب ده.اونه ثواب واجب دې په الله تعالی باندې هیڅ څیز واجب نه دې.نو ددې وجې مونږ وایو ((وحسابهم موکول إلی الله)) یعنی ددوی حساب کتاب الله تعالی ته حواله دې البته د ((علی))د استعمال حکمت به دا وی.لکه چه اشاره شوې ده.چه د دوی حساب کتاب متحقق الوقوع دې.ددې د واقع کیدو یقینیت په وجه ددې نه په لفظ د((علی)) سره تعبیر اوکړې شو.کوم چه د وجوب دپاره راځی.

## ۱۲=بَابٌ مَنْ قَالَ إِنَّ الْإِيمَانَ هُوَالْعَمَلُ

لِقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى ﴿وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ﴾(۲) وَقَالَ عِدَّةٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى ﴿فَوَرَبِّكَ لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾(۳) عَنْ قَوْلِ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَقَالَ ﴿لِمِثْلِ هَذَا فَلْيَعْمَلِ الْعَامِلُونَ﴾(۴)

دا باب د هغه کس د مسلك په بیان کښې دې.څوك چه دا وائی.چه ایمان خو بس عمل دې دعمل نه څه مراد دې؟ په دې کښې د عالمانو درې اقوال دی.

① حضرت ګنګوهی او حضرت انورشاه کشمیری رحمهما الله فرمائی.چه ددې نه عمل قلب مراد دې.(۵) ② علامه سندهی رحمه الله فرمائی.چه ددې نه اعمال جوارح مراد دی.(۶)
③ اود شراح کرامو دا رایه ده.چه ددې نه ټول اعمال د قلب او د جوارح مراد دی.(۷)

---

(۱) ارشاد الساری(۱/۱۰۸)_
(۲) الزخرف:۷۲_
(۳) الحجر:۹۲_
(۴) الصافات:۶۱_
(۵) لامع الدراری (۱/ ۵۶۱، ۵۵۲) وفیض الباری(۱/۱۰۹)_
(۶) حاشیة السندی علی صحیح البخاری(۱/۲۲)
(۷) عمدة القاری(۱/ ۱۸۳، ۱۸۴)

**د ترجمې مقصد** حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب سره د سلفو نه بو اشکال لرې کړې دې او هغه دا دې چه د سلفو نه منقول دی «الإیمان قول وعمل» اشکال دا کیږی چه دا بیخی د بداهت نه خلاف خبره ده ځکه چه ایمان خو د تصدیق قلبی نوم دې امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب سره د هغې جواب طرف ته اشاره کړې ده او دا ئې خودلی دی چه سلف خو دا وائی چه ایمان د عمل نوم دې خو ددې نه عمل قلبی یعنی تصدیق باطنی مراد دې نو د هغوی قول د بداهت نه خلاف نشو (١)
خو د ترجمې نه دا غرض دمولف رحمه الله د مخکنو او روستنو بابونود تصریح نه خلاف دې امام بخاری رحمه الله په مختلفو بابونوکښې دا ثابته کړې ده چه اعمال صلاة، زکاة او جهاد وغیره په ایمان کښې داخل دی نو بیا دا ونیل چه مؤلف د عمل نه تصدیق قلبی او عمل قلب مراد اخلی او دا ښائی چه سلفو د عمل نه مراد عمل قلب یعنی تصدیق اخستې دې دا په خپله د خپلو تصریحاتو نه خلاف دې.
حضرت کشمیری رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی چه ایمان صرف د علم او معرفت نوم نه دې ځکه چه دا معرفت خو د جحود سره هم جمع کیدې شی بلکه ایمان د عمل قلب نوم دې یعنی په زړه سره تسلیمول او په زړه سره منل ایمان دی (٢)
علامه سندهی رحمه الله فرمائی چه په اصل کښې گنړو خایونوکښې په ایمان باندې د عمل عطف شوې دې او عطف په مغایرت باندې دلالت کوی نو ددې نه دا شبه کیدې شوه چه اعمال د ایمان نه خارج دی نوامام بخاری رحمه الله دا شبه لرې کړه او دا ئې اوخودل چه اعمال په ایمان کښې داخل دی او داعمالو چه په ایمان باندې کوم عطف شوې دې نو دا د قبیلې د عطف الخاص علی العام څنې دې چه مقصود ئې استیفاء او استقصاء دې د مغایرت په غرض باندې عطف نه دې شوې او ددې دلیل مؤلف دا پیش کړې دې چه الله تعالی د جنت حاصلول په عمل باندې مرتب کړې دې او دا بیخی ښکاره خبره ده چه جنت صرف په ظاهری عمل نه مرتب کیږی بلکه په ایمان باندې مرتب کیږی نواوس معنی دا راووته چه د جنت حصول لکه څنگه چه په ایمان قلبی باندې وی دغه شان په ظاهری اعمالو باندې هم وی نو لکه چه امام بخاری رحمه الله دا اوخودل چه په عطف سره په ایمان او عمل کښې مغایرت مقصود نه دې بلکه دا تخصیص بعدالتعمیم دې (٣)
دعامو شارحینو رحمهم الله رائې دا ده چه دلته عمل عام دې که عمل جوارح وی او که عمل قلب وی لکه چه د امام بخاری رحمه الله مقصد په دې ترجمې سره دا خودل دی چه عمل په ایمان کښې داخل دې هرڅنگه عمل چه وی دا خبره مؤلف د آیت مذکوره او روایت د مجموعې نه

---

(١) لامع الدراری (١/ ١٠، ٥٦٢)_
(٢) فیض الباری (١/ ١٠٩، ١١٠)_
(٣) حاشیة السندی (١/ ٢٢، ٢٣)_

ثابته كړه او د دوى مقصد په هغه خلقو باندې رد دې.څوك چه وائى «الإيمان قول بلا عمل» هغوى د ايمان تعريف كوى چه دا دقول لسان نوم دې د قول قلب نوم نه دې عمل د ايمان نه خارجوى ()

دا هم ونيلى شى چه امام بخارى رحمه الله په جهميو باندې رد هم كوى.څوك چه صرف معرفت ته كه اختيارى وى او كه غير اختيارى وى ايمان وائى نو هركله چه امام بخارى رحمه الله دا اوخودله چه ايمان خو د عمل نوم دې.نوددې نه معلومه شوه چه په ايمان كښې د كوم معرفت اعتبار شوې دې.هغه اختيارى دې.د معرفت اختيارى نه بغير په دې باندې د عمل اطلاق نه صحيح كيږى.نو د جهميو خيال هم غلط شو ()

امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې درې آياتونه پيش كړى دى.

**اولنۍ ايت** ﴿وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِيٓ أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ () په دې آيت كښې دا ونيلې شوى دى چه دا جنت كوم چه تاسو ته ملاويږى.دا د عمل په وجه دې.او تولو ته علم دې چه جنت د ايمان په وجه ملاويږى.او هركله چه جنت د ايمان په وجه ملاويږى.اودلته ئې د عمل په وجه وئيلى دى.نو معلومه شوه چه د عمل نه مراد ايمان دې.او ﴿بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ اود ﴿بما كنتم تؤمنون﴾ په معنى دى.نوكه ايمان نه وى.اواعمال ډير وى.هم جنت نه ملاويږى.خو كه دلته ايمان وى.اويوعمل هم نه وى.نو جنت ملاويږى.كه د اول نه وى.اوكه په آخر كښې وى بهرحال د جنت د تلو دارومدار په اصل ايمان باندې دې.او په ايمان باندې د عمل اطلاق ددې وجې شوې دې.چه د ايمان تعلق ظاهر وى.برابره ده.كه داسې وى چه «إطلاق الجزء على الكل» وى.اوكه «إطلاق الفرع على الأصل» وى.په دې سره به د مرجئو ترديد اوشى.

**جنت ته ميراث ولې وئيلې شوې دې؟** دلته يو اشكال خو دا دې.چه په دې آيت كښې جنت ته ميراث وئيلې شوې دې چه جنت به تاسو ته په ميراث كښې دركولې شى.سوال دا دې چه ميراث خو هغې ته وائى چه كله د چا خپل نزدې رشته دار وفات شى او تركه پريږدى.نو هغه تركه د هغه خپلو خپلوانو ته په ميراث كښې ملاويږى.په جنت كښې خو دا خبره نشته.هلته څوك وفات شوى دى؟ او د چا په ملك كښې وو؟ چه د هغه په وفات سره اوس اهل ايمان ته په ميراث كښې ملاويږى؟

عالمانو ددې مختلف جوابونه وركړى دى

① يو جواب دا وركړې شوې دې چه دلته اصل كښې د عطاء جنت تشبيه د ميراث سره وركړې شوې ده.() اوپه دوو خبرو كښې تشبيه وركړې شوې ده

) الأبواب والتراجم لصحيح البخارى(۳۳. ۳۴)_
) عمدة القارى()۱\۱۸۳. ۱۸۴)_
) الزخرف: ۷۲)_
) الكشاف للزمخشرى (۴\۲۶۳)_

بوه دا چه ميراث هغه وى چه په هغې كښې دوام وى يوكس ته چه كوم څيز په وراثت كښې ملاؤ شي نو هغه هميشه دپاره د هغه شي په هغې كښې فسخ. اقاله .ابطال او انكار نه وى.دغه شان چه كله جنت ملاؤ شي نو هميشه دپاره به وى.ددې په عطاء كښې فسخ. اقاله ابطال او انكار څه هم نه وى
دويمه خبره دا ده چه ميراث كله وارث ته ملاويږى په دې كښې تصرف كولو كښې به جنتيان آزاد وى.چه څنګه تصرف غواړى په دوى به هيڅ قسم پابندى نه وى ﴿وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَشْتَهِيٓ أَنفُسُكُمْ وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَدَّعُونَ﴾ (١)
⑵علامه عينى رحمه الله فرمائى چه په حديث كښې راغلى دى چه په جنت او جهنم دواړو ځايونو كښې د هرمومن او كافر دپاره ځائې وى.كوم خلق چه جنت ته لاړ شي نو هغوى ته به په جهنم كښې هغه ځايونه اوخودلى شي.كوموكښې چه به كافران وى اودا به ورته اووئيلى شي كه ايمان نه وې.نو تاسو به دلته وئى.نو هغوى به دالله تعالى شكر ادا كړى چه هغه مونږ ته هدايت كړې وو.او د جهنم د عذاب نه ئې بچ كړو.دغه شان به كافرانو ته د هغوى د جنت ځايونه اوخودلى شي. كوم چه مومنانو ته ملاؤ شوى وى.اوكله چه هغوى د جنت محلات اوګورى.نو افسوس به كوى.هغوى به پريشانه شي چه كاش مونږ ايمان راوړې وې.او مونږ ته د جنت دا ځائې ملاؤ شوې وې.اګرچه دلته مورث (بفتح الراء) كافر دې چه دده حصه په جنت كښې وه.خو د كفر په وجه هغه ده ته ملاؤ نشوه نو هغه مومن طرف ته منتقل شوه.(٢)
⑶ دويمه خبره علامه عينى رحمه الله دا كړې ده.چه دلته مورث (بفتح الراء) الله تعالى دې.دا جنت د الله تعالى ملك وو.هغه تاسو ته دركړلو.لكه چه تشبيها ئې د اعطاء خداوندى نه به ميراث سره تعبيراوكړو.اووئيلى شوى دى.چه لكه څنګه ميراث مورث ته نه واپس كيږى.دغه شان كله چه الله تعالى دا جنت وركړى نوبيا به ئې واپس نه اخلى.(٣)
⑷ قاضى بيضاوى رحمه الله فرمائى.چه دلته ئې د ميراث اطلاق په وجه كړې دې چه لكه څنګه مورث مرشي.خودهغه تركه باقى وى.دغه شان د اهل جنت عمل خو ختم شو خود هغې جزاء او ثواب دجنت په صورت كښې باقى دې.نوځكه مجازا ئې ترې په ميراث سره تعبير اوكړو.لكه چه ميراث د مورث د وفات نه پس باقى وى.نودغه شان جنت كوم چه به د ثواب په صورت كښې وى.هغه به د عمل ختميدو نه پس هم باقى وى.(٤)
⑸ حضرت دغه عبدالقادر رحمه الله فرمائى چه ﴿وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِيٓ أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ د

---

(١) سورة حم سجدة:٣١_
(٢)درمنثور (٣/٨٥) آيت د ونودوا أن تلكم الجنة أورثتموها بما كنتم تعملون ، وعمدة القارى (١/١٨٤)_
(٣) عمدة القارى(١/١٨٤)_
(٤) تفسير بيضاوى مع حاشية شيخ زاده (٤/٣٠٤)_

حضرت آدم عليه السلام به اعتبار سره ونيلې شوى دى يعنى ((المورث هو أبونا آدم عليه السلام)) ځکه چه په اول کښې جنت هغوى ته ملاؤ شوې وو.بيا هغوى د جنت نه اوويستې شو.او دنيا ته ئې تشريف راوړلو اواوس به په آخره کښې د هغوى اولاد ته دا جنت ورکولې شى.(١) دا بيله خبره ده چه حضرت آدم عليه السلام به هم په جنت کښې وى.خو بهرصورت دهغوى اولاد ته ورکولې شى لکه څنګه چه ميراث د پلار اولاد ته ملاويږى.نوځکه پرې د ميراث اطلاق اوشو

**په ايت مذكوره او حديث كښې تعارض او ددې دفعيه** دلته دويم اشكال دا كيږى.چه په حديث کښې راغلى دى.چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى((لن يدخل أحدا عمله الجنة قالوا ولا أنت يا رسول الله؟قال:لا،ولا أنا إلا أن يتغمدني الله بفضل ورحمة))(٢)

نو په حديث کښې خو دا ونيلې شوى دى.چه دعمل په بنياد څوک جنت ته نشى تلې او په آيت کښې دا دې.چه د عمل په وجه باندې جنت ملاويږى.

ددې اشكال هم عالمانو رحمهم الله ډير جوابونه ورکړى دى.

① يو جواب دا ورکړې شوې دې.چه دلته ((باء)) د سبب دپاره نه ده.بلکه د مصاحبت او ملابست دپاره ده.په سببيت کښې خو دا وى.چه سبب د مسبب دپاره دليل جوړيږى.او مسبب په سبب باندې موقوف وى.دلته کښې دا صورت مراد نه دې.چه ستاسو عمل د جنت تلو دپاره دليل او موقوف عليه دې.اودعمل په وجه به جنت ته داخليږئ.بلکه دا د مصاحبت او ملابست دپاره ده.اومطلب دا دې.چه ستاسود عمل سره به تاسو ته جنت ملاويږى.دا جنت به ستاسو عمل سره مصاحب او ملابس وى.تاسو ته دا جنت د عمل سره ورکولې شى.ولې ورکولې شى.نو دا د الله تعالى کار دې.دهغه رحمت او احسان دې په عمل باندې ددې ملاويدل موقوف نه دى.اونه عمل ددې د ملاويدو دليل دې.اوس اشكال ختم شو.ځکه چه په حديث کښې چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى ((لن يدخل أحدا عمله الجنة)) هلته د سببيت نفى ده.او دلته په آيت ﴿وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ کښې چه څه ونيلې شى.دلته سببيت نه دې.بلکه مصاحبت او ملابست دې.(٣)

② بعضې حضرات فرمائى.چه په آيت کښې ((باء)) د مقابلې دپاره ده.چه جنت د عمل په مقابله کښې خو دې.خو په عمل باندې موقوف نه دې.عمل ددې دپاره دليل نه دې.مطلب دا شو.چه ستاسو په عمل کښې دومره صلاحيت نشته چه دا د جنت دپاره حقيقى سبب جوړ شى.ستاسو اعمال ددې قابل نه دى.چه په دې باندې د جنت استحقاق پيدا شى.دا خو د الله

---

(١) موضح القرآن (تفسير آيت «ونودوا أن تلكم الجنة أورثتموها بما كنتم تعملون»)_

(٢) صحيح بخارى كتاب المرضى باب تمنى المريض الموت رقم ٥٦٧٣ وكتاب الرقاق باب القصد والمداومة على العمل رقم ٦٤٦٣) و(٦٤٦٤) وصحيح مسلم (٢\٣٧٦، ٣٧٧) كتاب صفة المنافقين باب لن يدخل أحد الجنة بعمله بل برحمة الله تعالى)_

(٣) عمدة القارى(١\١٨٤)_

تعالى رحمت او فضل دې چه هغه ستاسو عمل قبول کړو او تاسو ته ئې په انعام کښې جنت درکړو.[1]

۲ يوجواب دا هم کيدې شي چه ته «بما» هم د سببيت دپاره واخلې اود ﴿بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ معنى لکه څنګه چه په اول کښې خودلې شوې ده. ﴿بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ شي او عمل په معنى د ايمان شي. نوبيا څه اشکال نه راځي. ځکه چه دا خو ښکاره ده. چه د نفس ايمان نه بغير جنت نشي ملاويدې. اودا هم ښکاره ده چه نفس ايمان وي. نو ضرور به ملاويږي. دا نشي کيدې چه نفس ايمان موجود وي. او جنت دې ملاؤ نشي. که په اول کښې ملاؤ شي. نوهم اوکه په اول کښې نه وي. نو په آخر کښې به ملاويږي. بهر حال د ايمان مقتضى جنت دې. اودا د نفس ايمان په بنياد ملاويږي. نوکه دلته نفس ايمان مراد واخستې شي. او با چه د سببيت دپاره اوګرځولې شي. په دې کښې څه قباحت هم نشته. والله أعلم.

**قوله: وَقَالَ عِدَّةٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى ﴿فَوَرَبِّكَ لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ عَنْ قَوْلِ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ:** څه عالمانو ﷺ دالله تعالى د دې ارشاد ﴿عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ تفسير په «عن قول لا إله إلا الله» سره کړې دې.

ددې نه وړاندې دى. ﴿لَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلَى مَا مَتَّعْنَا بِهِ أَزْوَاجًا مِنْهُمْ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِلْمُؤْمِنِينَ ۝ وَقُلْ إِنِّي أَنَا النَّذِيرُ الْمُبِينُ ۝ كَمَا أَنْزَلْنَا عَلَى الْمُقْتَسِمِينَ ۝ الَّذِينَ جَعَلُوا الْقُرْآنَ عِضِينَ ۝ فَوَرَبِّكَ لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ۝ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾[2]

يعنى مونږ چه دې کافرانو ته مختلف نعمتونه ورکړى دى. دې طرف ته مه ګوره. اومه په دوى باندې غم کوه. البته مومنانو دپاره خپل اړخ نرم ساته. او ورته اووايه. چه زه ښکاره ويرېونکې يم. اوتاسو ته ښايم. چه عذاب به خامخا نازليږي. لکه څنګه چه مونږ په هغه خلقو باندې نازل کړې وو. چاچه د الله تعالى احکام ئې حصې حصې کړل. يعنى قرآن پاک ئې ټکړې ټکړې کړو. نوستا په پروردګار قسم چه مونږ به ضرور ددوى نه ددوى داعمالو تپوس کوو.

چونکه دلته د وړاندې نه د کافرانو ذکر راروان وو. نوځکه ډيرو سلفو ﷺ د ﴿عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ تفسير په «لا إله إلا الله» سره کړې دې.

بيا په دې قول «لا إله إلا الله» کښې عموم دې. برابره ده که قول بالقلب مراد واخستې شي. اوکه قول باللسان. که قول بالقلب مراد واخستې شي. نو بيا د کراميؤ ترديد هم کيږي. او که قول باللسان واخستې شي. نوبيا به دا ونيلې شي. چه د قول باللسان نه مراد هغه قول دې. کوم چه مع التصديق وي. د تصديق قلب نه بغير صرف د ژبې ګواهئ لره څه اعتبار نشته.

---

[1] عمدة القارى (۱/۱۸٤)_

[2] الحجر: ۸۸-۹۳_

﴿لِمِثْلِ هٰذَا فَلْيَعْمَلِ الْعٰمِلُوْنَ﴾ (۱)

دلته د «مثل هذا» نه مراد «الفوز العظيم» دې كوم چه ماقبل ذكر شوې دې او «فوز عظيم» نه مراد جنت دې نو مطلب دا شو چه د جنت دپاره عمل كوئ دا خپل هدف جوړ كړئ او مقصد اوګرځوئ ښكاره ده چه د جنت دپاره نې كوم عمل اصل ګرځولې دې نو هغه دايمان عمل دې نو د ﴿فليعمل العاملون﴾ معنى دا شوه «فليؤمن المؤمنون» اودلته د عمل اطلاق په ايمان باندې شوې دې. امام بخارى رحمه الله هم دا خودل غواړى.

[۲۶] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ وَمُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ قَالَا حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ أَيُّ الْعَمَلِ أَفْضَلُ فَقَالَ إِيمَانٌ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ قِيلَ ثُمَّ مَاذَا قَالَ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ قِيلَ ثُمَّ مَاذَا قَالَ حَجٌّ مَبْرُورٌ [۳۳۴]

## رجال الحديث

① **احمد بن يونس**: دوى احمد بن عبدالله بن يونس بن عبدالله بن قيس تميمى يربوعى كوفى دى ابوعبدالله ئې كنيت دې د دوى د پلار نوم عبدالله دې خود نيكه په نسبت يعنى احمد بن يونس سره مشهور شوې دې وئيلې شى چه داد فضيل بن عياض رحمه الله مولى وو دوى دامام مالك ابن ابى ذئب ليث بن سعد او فضيل بن عياض رحمهم الله نه علاوه د نورو حضراتو نه احاديث اوريدلى دى.
او د دوى په شاګردانوكښې ابوزرعه ابوحاتم ابراهيم حربى، بخارى مسلم او ابوداود رحمهم الله دى ابوحاتم رحمه الله فرمائى «كان ثقة متقنا»
امام احمد رحمه الله دوى ته د شيخ الاسلام لقب وركړې دې د څلورنوى كالو په عمر كښې په ربيع الثانى كښې په كال ۲۲۷ھ كښې وفات شوې وو. رحمه الله رحمة واسعة (۲)

② **موسى بن اسماعيل**: دوى ابوسلمه موسى بن اسماعيل منقرى تبوذكى بصرى دى. د دوى حالات په «بدء الوحى» كښې د څلورم حديث لاندې تيرشوى دى.

③ **ابراهيم بن سعد**: دوى د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضى الله عنه كروسې دې د دوى حالات د «باب تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال» حديث لاندې تيرشوى دى.

④ **ابن شهاب**: دوى امام زهرى رحمه الله دى د دوى حالات وړاندې د «بدء الوحى» د دريم

---

(۱) الصافات: ۶۱)_

(۲) عمدة القارى (۱۱/۱۸۶) وتقريب (ص. ۸۱) رقم ۶۳)_

حديث لاندې تير شوى دى.

⑤ سعيد بن المسيب: دوى امام التابعين، فقيه الفقهاء، احد فقهاء السبعة حضرت سعيد بن المسيب بن حزن بن ابى وهب بن عمروبن عائذ بن عمران بن مخزوم بن يقظه بن مره قرشي مخزومي رحمه الله دى. دده پلار او نيکه دواړه صحابيان رضي الله عنهما وو. د مکې د فتحې په موقع ئې اسلام قبول کړې وو.

په مسيب کښې يا مفتوح هم وئيلې شى. او مکسور هم. فتحه مشهور ده. اګرچه په خپله د حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله نه نقل دى. چه دوى به د فتحة په وئيلو باندې خفه کيدلو.

سعيد بن المسيب رحمه الله د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت نه دوه کاله پس پيدا شوې وو. يو قول دا دې چه څلور کاله پس پيدا شوې وو.

دوى د حضرت عمر، حضرت عثمان، حضرت علي، حضرت سعدبن ابى وقاص، حضرت ابن عباس، حضرت ابن عمر، حضرت جبيربن مطعم، حضرت عبدالله بن زيد بن عاصم، حضرت حکيم بن حزام، حضرت معاويه، حضرت عبدالله بن عمروبن العاص، حضرت ابوموسى اشعرى، حضرت صفوان بن اميه، حضرت مسور بن مخرمه، حضرت جابربن عبدالله، حضرت ابوسعيد خدرى، حضرت زيد بن ثابت، حضرت عثمان بن ابى العاص، حضرت ابوهريره، حضرت عائشې او حضرت ام سلمې رضي الله عنهم نه علاوه د نورو ډيرو صحابو رضي الله عنهم نه احاديث اوريدلى دى.

ددوى نه په روايت کونکو کښې ډير لوئې لوئې عالمان تابعين دى. لکه عطاء بن ابى رباح، محمد الباقر، عمروبن دينار، يحيى الانصارى، امام زهرى رحمهم الله وغيره.

ددوى په امامت، جلالت شان او علم او فضيلت او وجوه خير کښې په تقدم باندې د ټولو عالمانو رحمهم الله اتفاق دې.

محمدبن يحيى بن حبان فرمائى. «كان رأس أهل المدينة فى دهره، المقدم عليهم فى الفتوى سعيدبن المسيب، ويقال له فقيه الفقهاء»

امام قتاده رحمه الله فرمائى. «ما رأيت أحداً أعلم بحلال الله وحرامه من سعيد بن المسيب رحمه الله»

امام مکحول رحمه الله فرمائى. چه زه د علم په طلب کښې ټوله دنيا کښې ګرځيدلې يم. خود حضرت سعيدبن المسيب رحمه الله نه لوې عالم ما نه دې ليدلې.

على بن المدينى رحمه الله فرمائى «لا أعلم أحداً فى التابعين أوسع علماً من سعيد بن المسيب» دغه شان فرمائى «وهو عندى أجل التابعين»

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى. «أفضل التابعين سعيد بن المسيب رحمه الله»

حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله چه به کله هم څه فتوى ورکوله. نو فرمائيل به ئې. «اللهم سلمنى وسلم منى»

ابوحاتم رحمه الله فرمائى. «ليس فى التابعين أنبل من سعيد بن المسيب رحمه الله وهو أثبتهم فى أبى هريرة رضي الله عنه»

حافظ فرمائي.چه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه داحاديثو د ټولو نه لوئي عالم حضرت سعيد بن المسيب و. اودوي د حضرت ابوهريره رضي الله عنه خوم وو.

حضرت سعيدبن المسيب رحمه الله په سركاري تنخواه نه اخستله بلكه د تيلو كاروبار به ئي كولو.دوي څلويښت حجونه كړي وو.

خلاصه دا چه د حضرت سعيدبن المسيب رحمه الله د دين ،افضل اوشرف، امامت فى العلم او جلالت شان په باره كښې دسلفو اوخلفو ټولواتفاق دې.(١)

**تنبيه** امام نووي رحمه الله فرمائي.(٢) چه امام احمد بن حنبل وغيره دوى لره فضل التابعين ګرځولې دى.نودا د علوم شريعت په اعتبار سره دى.ګني مطلق افضليت حضرت اويس قرني رحمه الله ته حاصل دې.د چا په باره كښې چه په مسلم شريف كښې مرفوع حديث دې چه حضرت عمر رضي الله عنه فرمائيل.((سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: إن خير التابعين رجل يقال له أويس،وله والدة وكان به بياض، فمروه فليستغفر لكم))(٣)

دحضرت سعيدبن المسيب رحمه الله وفات په كال ۹۳ھ يا ۹۴ھ كښې شوې دې.دغه كال ته ((سنة الفقهاء)) وئيلې شي.ځكه چه په دې كښې ډير فقهاء وفات شوى وو. والله أعلم(٤)

حضرت ابوهريره رضي الله عنه :د دوى تفصيلي حالات وړاندې په كتاب الايمان كښې د ((باب أمورالايمان)) لاندې تيرشوى دى.

**قوله:** أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ أَيُّ الْعَمَلِ أَفْضَلُ فَقَالَ إِيمَانٌ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ قِيلَ ثُمَّ مَاذَا قَالَ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ قِيلَ ثُمَّ مَاذَا قَالَ حَجٌّ مَبْرُورٌ: د نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه دا تپوس څو ځله ګڼو حضراتو كړې دې.او نبى صلى الله عليه وسلم هريو ته مختلف جواب وركړې دې.ددې تفصيل وړاندې په ((باب إطعام الطعام من الإسلام)) لاندې تيرشوې دې.

په دې حديث كښې تاسو ګورئ.چه په دويمه درجه كښې جهاد ذكر شوې دې. او ددې نه پس حج،حالانكه ترتيب ددې په عكس پكار وو.ځكه چه جهاد فرض كفايه دې.اوحج د اسلام ركن دې.او فرض عين دې.

ددې يو جواب قاضي عياض رحمه الله وركړې دې.دوى فرمائي.چه دا د ابتدائي وخت قصه وه.دجهاد فرضيت وړاندې شوې وو.او دحج فرضيت ورسته شوې دې. نوځكه ئې جهاد

---

(١)دا ټول تفصيل د تهذيب الأسماء واللغات (١/١٩١، ٢٢١.) نه ماخوذ دى.

(٢)المصدر السابق).

(٣) صحيح مسلم (٣١١/٢) كتاب الفضائل باب من فضائل أويس القرني رحمه الله).

(٤) تهذيب الأسماء واللغات (٢٢٠/١).

مقدم كړې دي.(١)

دا هم كيدې شي چه دا د هغه وخت مسئله ده كله چه جهاد مستقل ركن وى.يعنى الله دې نكړى كه كافران حمله اوكړى.نود هركس په حق كښې جهاد فرض عين گرځى.اوپه حج باندې مقدم كيږى.(٢)

يا ددې وجې جهاد مقدم كړې شوې دې.چه د حج نفع لازمى ده.اوډجهاد نفع متعدى ده.(٣)

**حج مبرور** بعضې حضرات فرمائى چه حج مبرور حج مقبول ته وائى.او بعضې عالمان رحمهم الله فرمائى. چه ((المبرور الذى لايخالطه إثم))

بعضې حضرات وائى((المبرور الذى لا رياء فيه))(٤)والله أعلم.

**د حديث شريف د ترجمة الباب سره مطابقت** امام بخارى رحمه الله په دې روايت سره صرف دا خودل غوارى.چه په حديث پاك كښې د نبى ﷺ نه تپوس اوشو.چه((أى العمل أفضل))نو نبى په جواب كښې فرمائى .((إيمان بالله))معلومه شوه.چه ايمان عمل دې.د عمل نه سوا بل څيز نه دې.او هم دا ترجمه ده.(٥)والله سبحانه وتعالى أعلم.

## ١٧=بَابِ إِذَا لَمْ يَكُنْ الْإِسْلَامُ عَلَى الْحَقِيقَةِ وَكَانَ عَلَى الِاسْتِسْلَامِ أَوْ الْخَوْفِ مِنْ الْقَتْلِ

**لِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا قُلْ لَمْ تُؤْمِنُوا وَلَكِنْ قُولُوا أَسْلَمْنَا﴾(٦)فَإِذَا كَانَ عَلَى الْحَقِيقَةِ فَهُوَ عَلَى قَوْلِهِ جَلَّ ذِكْرُهُ ﴿إِنَّ الدِّينَ عِنْدَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ﴾(٧)**

دلته امام بخارى رحمه الله ((إذا لم يكن الإسلام على الحقيقة ) اوفرمائيل.دا جمله شرطيه ده.ددې جزاء ذكر نه ده.بيا په آخر كښې ((فإذا كان على الحقيقة فهو على قوله جل ذكره)) كښې جزاء موجود ده.سوال دا دې.چه د اولنئ جملې جزا ولې نشته؟

اكثر شارحين رحمهم الله دلته يوتقرير كوى.خوپه هغه تقريرد پوهيدو دپاره د هغې نه وړاندې دوه خبرې د تمهيد په طور باندې زده كړئ.

---

(١) شرح نووى (١\٦٣) كتاب الإيمان باب بيان كون الإيمان بالله تعالى أفضل الأعمال)_

(٢) عمدة القارى(١\١٨٩)_

(٣) المصدرالسابق)_

(٤) فتح البارى(١\٧٨. ٧٩)_

(٥) عمدة القارى(١\١٨٦)_

(٦) الحجرات:١٤)_

(٧) آل عمران:١٩)_

يو خودا چه دلته ((اذا لم يكن الإسلام على الحقيقة)) كښې لفظ د ((حقيقت)) اكثرشارحين ﷫ د مجاز په مقابله كښې اخلي.اودا فرمائي چه دلته د حقيقت نه مراد حقيقت شرعيه دې، مجاز شرعي مراد نه دي.

دويمه خبره دا ده.چه امام بخارى ﷫ دلته كومه ترجمه قائمه كړې ده.په دې سره د دوى مقصد ديو اعتراض دفع كول دى.هغه دا چه ته دا وائې.چه ايمان او اسلام متحد دى.او د قرآن مجيد په دې آيت كښې دى. ﴿ قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا ۖ قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا وَلَٰكِن قُولُوا أَسْلَمْنَا ﴾ دې نه معلوميږى.چه ايمان او اسلام متحد نه دى

ددې آيت شان نزول دا دې.چه د بنو اسدځه خلق د قحط سالئ په زمانه كښې خپلوځارو اوبال بچ سره مدينې منورې ته راغلل.او د نبى ﷺ مخامخ ئې دا احسان كولو.چه مونږ بغير د قتال نه ايمان راوړې دې.اوس مونږ پريشان يو.مونږ سره امداد اوكړئ.ددوى په باره كښې دا آيت نازل شو.(۱) ښكاره ده.چه ددې اعرابو نه د ايمان نفي شوې ده.خو ددې اسلام ثابت كړې شوې دې.چه ايمان خو په تاسو كښې نشته.البته تاسو داوئيلې شئ.چه مونږ اسلام قبول كړې دې.ددې نه معلوميږى .چه ايمان او اسلام يو څيز نه دې.

د اكثروشارحينو ﷫ رائې دا ده.چه دامام بخارى د دې ترجمة الباب نه مقصود ددې اعتراض لرې كول دى.نو شارحينو ﷫ دا تقرير كړې دې.چه اسلام په دوه قسمه وى.يو هغه اسلام كوم چه په حقيقت شرعيه باندې مبنى وى.او هم دا اسلام عندالشرع اوعندالله معتبردې.يعنى چه په رښتينې زړه ئې اسلام قبول كړې وى.ناوانقياد باطنى ئې اختيار كړې وى.او يو اسلام هغه دې.چه په هغې كښې صرف استسلام ظاهرى او انقياد صورى وى.د مال په طمع كښې يا د قتل د ويرې په وجه سړې په ظاهره كلمه اووائى.او مسلمان شى.اود ايمان او اسلام حقيقت شرعيه په ده كښې موجود نه وى.

دې حضراتو دامام بخارى ﷫ د دې ترجمې تقدير د عبارت دا بيان كړې دې. ((اذا لم يكن الإسلام على الحقيقة الشرعية بل كان على الإستسلام الظاهرى والإنقياد الصورى لأجل الخوف من القتل وطمع المال :فهوليس بمتحد مع الإيمان بل هو مغاير له لقوله تعالى ﴿ قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا ۖ قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا وَلَٰكِن قُولُوا أَسْلَمْنَا ﴾

وإذا كان على الحقيقة الشرعية المعتبرة عند الشرع فهو على قوله جل ذكره ﴿ إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ ﴾ أى فهومتحد مع الإيمان)) دين او اسلام ﴿ إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ ﴾ سره متحد دى.اودامام بخارى ﷫ په نيز لكه څنګه چه وړاندې تير شو.دين اوايمان متحد دى .او قاعده ده.چه ((متحد المتحد متحد)) نتيجه دا راووته.چه اسلام او ايمان متحد دى.هم دا دامام بخارى ﷫

---

۱) درمنثور(۶/۱۰۰) الحجرات)_

په دې ځائې كښې مقصود دې (١)

**دامام العصر حضرت علامه انور شاه كشميرى رحمه الله رائې** حضرت علامه انورشاه كشميرى رحمه الله دلته يو بل تقرير كړې دې.هغوى دلته حقيقت د مجاز په مقابله كښې نه دې اخستې بلكه حقيقت ئې په معنى د نفس الامر او واقع اخستې دې.دغه شان هغوى دا ترجمه د څه اعتراض يا سوال جواب نه دې گرځولې بلكه هغوى فرمائيلى دى.چه دامام بخارى رحمه الله ددې ترجمې نه دلته د يوې مستقلې مسئلې بيانول مقصود دى.چه كوم اسلام معتبر نافع او منجى عندالله دې.اوكوم غير معتبر اوغيرنافع دې.نوهغوى فرمائيلى دى. چه كوم اسلام واقعى او نفس الامرى نه وى.يعنى په صدق دل او استسلام او دباطن په انقياد سره نه وى.بلكه د طمعې يا ويرې نه صرف رسمى او اسمى استسلام او صرف ظاهرى او صورى انقياد وى.نوهغه عندالله غيرمعتبر او غيرنافع دې. ﴿قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا﴾ كښې هم دا اسلام مراد دې.او كله چه اسلام واقعى اونفس الامرى وى. يعنى په صميم قلب او صدق نيت سره استسلام او د باطن انقياد وى.نوهغه اسلام معتبر. مرضى عندالله او منجى اونافع دې.او ﴿إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ﴾ كښې هم دا اسلام مراد دې.په دې تقرير سره تقديرد عبارت داسې شو.((اذا لم يكن الإسلام على الحقيقة أى فى الواقع ونفس الأمربل كان على الإستسلام الظاهرى بسبب الخوف من القتل فلا ينفع لقوله تعالى ﴿قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا﴾ واذا كان الإسلام على الحقيقة أى فى الواقع ونفس الأمرفهوعلى قوله جل ذكره ﴿إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ﴾ أى فهو المعتبر والمرضى عندالله والمنجى والنافع فى الآخرة))(٢)

كه غور اوكړې شى.نود حضرت شاه صاحب او نوروعامو شارحينو په تقرير كښې لفظى فرق دې.اصلى اومعنوى څه فرق نشته.نتيجه د دواړو يوه ده.

د دواړو په تقريرونو كښې يو فرق دا دې.چه حضرت شاه صاحب حقيقت په معنى د واقع او نفس الامر اخستې دې.اوعامو شارحينوحقيقت په مقابله د مجاز كښې اخستې دې.دويم فرق دا دې.چه عامو شارحينودا باب د سوال مقدر جواب گرځولې دې.اوحضرت شاه صاحب رحمه الله دا يوه مستقله مسئله گرځولې ده.

مآل او نتيجه د دواړو يوه ده.ځكه چه واقعى او نفس الامرى اسلام هم په هغه وخت كښې وى كله چه د اسلام حقيقت شرعيه متحقق وى.گنى نه به وى.

سوال دا دې.چه حضرت شاه صاحب د عامو شارحينو دتقرير نه عدول ولې اوكړو.حالانكه مآل اونتيجه د دواړو يوه ده.

ددې وجې داخودلې شوې ده.چه دعامو شارحينو په تقريرباندې اشكال واردېږى.چه هركله داسلام حقيقت شرعيه متحقق نه دې.نو بيا شارع ﷺ دوى دپاره اسلام څنگه ثابت كړې

---

(١) فضل البارى (١\٣٩٦، ٣٩٧)_

(٢) فيض البارى (١\١١٠او ١١١)_

دي اودا ئې ښتګه فرمائيلي دی ﴿وَلٰكِنْ قُولُوٓا اَسْلَمْنَا﴾
خوهم دا اشکال دحضرت شاه صاحب په تقريرباندې هم واردېږی چه هرکله ددغه اعرابو اسلام واقعي، معتبر،مرضی عندالله او منجي اونافع نه وو.نودهغوی دپاره ښتګه الله تعالی ﴿وَلٰكِنْ قُولُوٓا اَسْلَمْنَا﴾ اوفرمائيل.(١)
**دريمه رائې:** دريمه رائې بعضې حضراتو پيش کړې ده.چه دلته امام بخاری رحمه الله داعتراض جواب نه ورکوی.بلکه داسلام دوه حيثيتونه بيانوی.
يوداسلام حيثيت صرف د دنياوی احکامو په اعتبار سره دې.اوبل حيثيت ئې د دنيوی احکامو سره سره د اخرت داحکامو په اعتبار سره هم دې.
نو وائي.چه کله اسلام په حقيقت باندې نه وی.نوهغه اسلام به صرف په دنيوی احکامو کښې معتبراومعتدبه وی.اوکله چه اسلام په حقيقت باندې وی. نو هغه به عندالله اوپه آخرت کښې هم معتبر،مرضی اومعتد به وی.
په دې تقرير به تقديری عبارت داسې وی.

«إذا لم يكن الإسلام على الحقيقة بل كان على الإستسلام الظاهري أو الخوف من القتل فيعتد به في الأحكام الدنيوية لقوله تعالى ﴿قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا﴾ فإذا كان على الحقيقة فهو على قوله جل ذكره ﴿إِنَّ الدِّينَ عِنْدَ اللهِ الْإِسْلَامُ﴾ أي فهو مرضي ومعتد به عند الله تعالى»
ددې حضراتو په تقرير برابره ده که د حقيقت نه حقيقت شرعيه مراد واخستې شی.لکه ښتګه چه اکثرو شارحينو اخستې دې.اويا د حقيقت نه مراد نفس الامر واخستې شی.لکه ښتګه چه حضرت شاه صاحب رحمه الله اخستې ده.نوپه سره څه فرق نه پريوځی.(٢)
**دعلامه سندهی رائې:** دعلامه سندهی رحمه الله رائې دا ده.چه امام بخاری رحمه الله د نافع اوغيرنافع بحث نه دې چيړلې.بلکه دوی خو دا ښائي.چه د اسلام دوه اطلاقات دی.يو اطلاق حقيقي يعنی چه اسلام اووائي.او ددې نه حقيقت شرعيه مراد وی.دا خو دايمان مرادف دې.او ﴿إِنَّ الدِّينَ عِنْدَ اللهِ الْإِسْلَامُ﴾ کښې هم دا ذکر دې.اودويم اطلاق ددې په استسلام او انقياد باندې کيږی. برابره ده که دغه استسلام او انقياد د طمع فی الغنيمة په وجه وی.يا د قتل د ويرې د وجې وی.اوهم دا اسلام په آيت کريمه ﴿قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا﴾ کښې وارد دې.
علامه سندهی رحمه الله فرمائي.چه دامام بخاری رحمه الله مطلب دا دې.که د اسلام نه ددې حقيقت شرعيه مرادفه للايمان مراد نه شی.بلکه اسلام د استسلام او انقياد په معنی کښې واخستې شی.اوهغه استسلام اوانقياد د طمع فی الغنيمة يا خوف من القتل نه ناشی وی.نو په باندې د اسلام اطلاق جائز دې.دليل په دې آيت کريمه ﴿قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا﴾ دې.اعرابو د اسلام دعوه کړې وه.اوپه هغوی کښې د ايمان حقيقت نه وو.او دا اووئيلی شو.چه تاسو

---

(١) فضل الباری(١\٣٩٨)_
(٢) فضل الباری(١\٣٩٩)_

«أسلمنا» وائي يعنى په تاسو كښې ايمان نشته.
علامه موصوف فرمائى چه داسلام ددې دوارو اطلاقاتو معلوميدونه پس په نصوصو كښې چه په ظاهره كوم تعارض په نظر راځي.هغه ختم شو.په دې طريقه چه چرته اسلام عين دين ګرځولې شوې دې.نو هلته اسلام حقيقى او ددې حقيقت شرعيه مراد دې.او چرته چه په اسلام او ايمان كښې فرق كړې شوې دې.هلته اسلام لغوى مراد دې يعنى ظاهرى استسلام اوانقياد ،كوم چه مجاز شرعى دې.

ددې نه پس په دې پوهه شئ چه علامه سندهى رحمه الله فرمائى.«أوالخوف من القتل» دا په «استسلام» باندې معطوف نه دې.ځكه چه دا دهغې مقابل نه دې. بلكه ددې معطوف عليه محذوف دې.اوهغه د استسلام علت دې.تقدير د عبارت به دا وى.«وكان على الإستسلام لطمع في الغنيمة أوالخوف من القتل»[1] والله اعلم.
دشيخ الاسلام شبيراحمد عثمانى رحمه الله رائې په تيرو شوو ټولو تقريرونو كښې يوه خبره مشتركه ده.چه دغه اعرابيان كوم چه دنبى ﷺ په خدمت كښې حاضر شوى وو.منافقان شماركړې شوى دى.
علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله فرمائى چه دامام بخارى رحمه الله ددې ترجمې نه مقصود هم هغه د ايمان او اسلام مراتب بيانول دى.او هغوى دا ښائى چه دايمان او اسلام ډير مراتب دى.اوبه هغې كښې په خپل مينځ كښې تفاوت دې.
ددې خبرې زده كولو دپاره اول دوه خبرې زده كړئ.
① اولنۍ خبره خو دا ده.چه په آيت كريمه ﴿قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا ۖ قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا وَلَٰكِن قُولُوا أَسْلَمْنَا﴾ كښې د سلف مفسرينو اختلاف دې.چه په دې آيت كښې د اعرابو دپاره اسلام ثابت كړې شوې دې.او د دوى نه د ا يمان نفى شوې ده.اودوى بې ايمانه ګرځولى شوى دى.اوكه د دوى نه د مطلق ايمان نفى نه ده شوې.بلكه دايمان د يوخاص مقام نفى ترې شوې ده.كه اول مراد وى.نودا اسلام دهغوى دپاره غيرنافع دې.په دې به ورته اجر او ثواب نه ملاويږى.او كه دويم مراد وى.نو نافع به وى.اوبه دې به ورته اجراوثواب ملاويږى.
دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما حسن بصرى، ابن سيرين،ابراهيم نخعى، محمد الباقر، حمادبن زيد ،امام احمد بن حنبل، سهل بن عبدالله تسترى، اوابوطالب مكى رحمهم الله وغيره ډيرو مفسرينو هم دا رائې ده.چه اسلام دهغوى په حق كښې مفيد دې.اوبه هغې باندې به اجراو ثواب ملاويږى.هغوى ته منافقان نه دى وئيلى شوى.
② اودويم قول چه په دې آيت كښې د اسلام نه مراد ظاهرى اطاعت او انقياد دې .كوم چه په څه طمع باندې مبنى وى.ياد ځان د ويرې د وجې هغه ښكاره كولې شى.علامه ابن تيميه رحمه الله ليكلى دى.چه هم دا دامام بخارى، محمدبن نصر مروزى رحمهما الله رائې ده.حافظ ابن

---
[1] حاشية السندى على صحيح بخارى (۲۳/۱ و ۲٤)_

كثير رحمه الله هم په خپل تفسير كښې ليكلى دى.چه دامام بخارى په نيزدا اعراب منافقان وو.(١)
علامه ابن تيميه اول قول اختيار كړى دې.اوپه دې باندې ئې تفصيلى كلام كړې دې.او
هغوى د اسلام د معتبر كيدو درې دليلونه پيش كړى دى.

① اولنې دليل خو دا دې.چه الله تعالى ددې عرابيانو سره كوم انداز خطاب اختيار كړې
دې.هغه د منافقانو د انداز خطاب نه بيخى جدا دې.دوى سره ډير د نرمۍ انداز اختياركړې
شوې دې.ارشاد شوې دې. اعرابيان وائى.«آمنا» ته ورته اووايه. «لم تؤمنوا» بلكه دا وائې
﴿أَسْلَمْنَا وَلَمَّا يَدْخُلِ الْإِيمَانُ فِي قُلُوبِكُمْ﴾ ددې په خلاف دمنافقانوپه باره كښې سخت انداز اختيار
كړې شوې دې.ارشاد دې.
﴿وَمِنَ النَّاسِ مَن يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَمَا هُم بِمُؤْمِنِينَ ۝ يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَمَا يَخْدَعُونَ إِلَّا أَنفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ۝ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ فَزَادَهُمُ اللَّهُ مَرَضًا ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُوا يَكْذِبُونَ ۝﴾ (٢) دغه
شان په بل ځائې كښې دى. ﴿إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ قَالُوا نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُولُ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُ وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَكَاذِبُونَ ۝﴾ (٣)

② دويم دليل دا دې.چه الله تعالى، داسې ارشاد كړې دې.﴿وَلَمَّا يَدْخُلِ الْإِيمَانُ فِي قُلُوبِكُمْ﴾
تراوسه پورې ايمان ستاسو په زړونوكښې نه خلط شوې.دلته د «لما» استعمال شوې دې.او
ددې استعمال د داسې امردپاره كيږى.كوم چه لا تراوسه پورې واقع شوې نه وى.خو ددې د
واقع كيدو اميد وى.اوددې انتظار وى.لكه «قام الأمير ولما يركب» كښې وائى.چه امير
اودريدلې دې.خو تراوسه پورې په سورلۍ نه دې سورشوې.خودده د سوريدو انتظار كولې
شى.او زر به سور شى.
ددې نه معلومه شوه.چه ايمان دهغوى په زړونو كښې نه وو داخل شوې.خودهغې د داخليدو
توقع او اميد وو.الله تعالى چه اعرابو ته دا اوفرمائيل.چه تاسو﴿آمَنَّا﴾ مه وائې. بلكه
﴿أَسْلَمْنَا﴾ وائې.دا صرف ددې وجې چه اعرابو د خپل خان دپاره داسې مرتبه ثابته كړې وه.
كومه چه تر اوسه پورې هغوى ته نه وه حاصله .يعنى رسوخ فى الايمان.نو الله تعالى د هغې
نفى اوكړه.چه تاسو ته دا مقام نه دې حاصل.البته تاسو پاس شوې ئې.او د اسلام په احاطه
كښې راغلې ئې.

③ دريم دليل دا دې.چه الله تعالى وړاندې فرمائى﴿وَإِن تُطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ لَا يَلِتْكُم مِّنْ أَعْمَالِكُمْ شَيْئًا﴾ كه تاسو د الله او د هغه د رسول اطاعت اوكړئ.نو ستاسو په اعمالو كښې به څه

---

(١)تفسيرابن كثير(٢١٩/٤) سورة الحجرات)_
(٢)سورة بقرة:٨-١٠)_
(٣)سورة منافقون:١)_

كمې اونکړي .يعنې د ټولو اجراو ثواب به تاسو ته ملاؤ شي.دا ټپخپله ددې خبرې دليل دې. چه د هغوی اطاعت مقبول دې.حالانکه د منافق څه اطاعت مقبول نه وی.

دویمه خبره دا ده.چه امام بخاری رحمه الله دا کوم ارشاد فرمائيلې دې.چه ((إذا لم يكن الإسلام على الحقيقة)) دلته د حقيقت نه مراد د حقيقت هغه معنى مراد نه ده..کومه چه د مجاز په مقابل کښې وئيلې شي.بلکه ددې نه حقيقت په معنى د کمال مراد ده.لکه څنګه چه د ابن حبان په حديث کښې دی.((لايبلغ عبد حقيقة الإيمان حتى يحب للناس مايحب لنفسه من الخير))([1])

دغه شان د يو صحابى رضي الله عنه حارثه نه نبى صلى الله عليه وسلم تپوس اوکړو.((كيف أصبحت يا حارثة؟))نو هغوی جواب ورکړ((أصبحت مؤمنا حقا)) نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائل.((أنظر ما تقول فإن لكل قول حقيقة فما حقيقة إيمانك)) نو هغوی جواب ورکړو.((عرفت نفسى من الدنيا فأسهرت ليلى وأظمأت نهارى وكأنى أنظر عرش ربى بارزا وكأنى أنظر إلى أهل الجنة يتزاورون فيها وكأنى أنظر إلى أهل النار يتضاغون فيها))([2])يعنې زما نفس د دنيا نه اوړيدلې دې.زما شپه په شوګيره کښې او زما ورځ په لوږه کښې تيريږی.صورت دا دې.چه لکه زه د خپل رب عرش ښکاره وينم.او زه اهل جنت وينم.چه د يو بل زيارت کوی.او اهل جهنم په چغو سورو کښې وينم.نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.((يا حارثة عرفت فالزم)) اې حارثه ! يقينى تا د ايمان حقيقت پيژندلې دې.هم په دې باندې قائم اوسه.

په دې حديث باندې علامه نور الدين هيثمى رحمه الله د ((باب فى حقيقة الإيمان وكماله))ترجمه قائمه کړې ده.([3])

دغه شان مخکښې د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما قول تيرشوې وو.((لايبلغ العبد حقيقة التقوى حتى يدع ماحاك فى الصدر))([4])په دې درې واړه احاديثو کښې (په کومو کښې چه اولنى دوه مرفوع دی. او آخرې يو حديث موقوف دې) د حقيقت معنى کمال دې.

---

[1])الإحسان بترتيب صحيح ابن حبان (۱\۴۰۰) كتاب الإيمان باب ما جاء فى صفات المؤمنين .ذكر البيان بأن نفى الإيمان عمن لا يحب لأخيه ما يحب لنفسه إنما هو نفى حقيقة الإيمان لا الإيمان نفسه رقم ۲۳۵)_

[2])المعجم الكبير للطبرانى (۳\۲۶۶و ۲۶۷) رقم ۳۳۶۷) وكشف الأستار عن زوائد البزار (۱\۲۶) رقم ۳۲ كتاب الإيمان باب حقيقة الإيمان وكماله )) ښکاره دې وی.چه په معجم طبرانى کښې دا حديث د حارث بن مالك نه مروى دې.او هم په حديث کښې ((كيف أصبحت يا حارث)) دی ((حارثة)) نه دی علامه هيثمى رحمه الله په مجمع الزوائد(۱\۵۷)كتاب الإيمان باب فى حقيقة الإيمان وكماله)) کښې ((عن الحارث بن مالك الأنصارى أنه مر بالنبى صلى الله عليه وسلم فقال له كيف أصبحت يا حارثة )) نقل کړی دی.او د مسند بزار په روايت کښې دا حديث د حضرت انس رضي الله عنه نه مروى دې.((وقد نقله الهيثمى فى المجمع أيضاً (۱\۵۷) او په دې کښې ((أن النبى صلى الله عليه وسلم لقى رجلاً يقال له حارثة...)) فتنبه..)_~

[3])مجمع الزوائد (۱\۵۷) كتاب الإيمان)_

[4])ابتداء د كتاب الايمان باب قول النبى صلى الله عليه وسلم بنى الإسلام على خمس..)_

اوس ددې نه پس په دې پوهه شې چه حافظ ابن کثیر او علامه ابن تیمیه رحمهما الله د امام بخاری رحمه الله طرف ته دا نسبت کړې دې چه د هغوی په نیز دا آیت د منافقانو په باره کښې دې. ددې تصریح چرته هم مونږ ته ملاو نشوه. خکه چه د بخاری په کتاب التفسیر کښې د سورة حجرات لاندې ددې آیت تفسیرنشته. که دې حضراتو صرف د امام بخاری رحمه الله دا ترجمه کتلې وې. او دا حکم ئې لګولې وې. نو دا یقینی نه ده. چه آیت د ضعفاء المسلمین په حق کښې اومنلې شی. لکه څنګه چه د محققینو او اکثرو مفسرینو رائې ده. ددې ترجمې مطلب بیخی ښکاره دې.

خلاصه دا چه د امام بخاری رحمه الله مسلك هم د جمهورو مفسرینو او محققینو عالمانو رحمهم الله مطابق دې. او هغوی ددې ترجمې نه دا خودل غواړی. چه ایمان کښې د زیات او نقصان په اعتبار سره مراتب متفاضله دی. او بعضې مرتبې دومره کمزورې وی. چه هغه وی نو هم د دې کس نه د ایمان نفی جائز ده. یعنی دده ایمان دومره کمزورې وی. چه هغه په تعبیر کښې کالعدم ګرځولې شی. اګرچه فی نفسه په ده کښې ایمان موجود وی. لکه څنګه چه یو کس د سختې بیمارئ په وجه ډیر کمزورې شوې او تپ شوې وی. نو خلق وائی. چه په ژوندونی مړې دې. حالانکه په هغه کښې اوس هم ساه موجود وی. د هغه په مال کښې میراث نشی جاری کیدې. او نه د هغه د ښځې سره نکاح جائز وی. غرض په ډیرو احکامو کښې هغه ژوندې شمارلې شی. او په واقع کښې هم فی نفسه تراوسه پورې په هغه کښې روح موجود وی. خو د ډیر ضعف او کمزورئ په وجه خلقو هغه کالعدم شمارلې وی. او مړ ورته وائی. تردې چه شریعت هم هغه ته په دې نظر کتل شروع کړی. هم دا وجه ده. چه په مرض الموت کښې د وصیت او اقرار وغیره مسائل فی الجمله کښې هم دا نظر معتبر دې. د حدیث الفاظ «وقد کان لفلان» په دې شاهد دی.

دغه شان امام بخاری رحمه الله دلته هم دا ثابتول غواړی. چه د ایمان بعضې مراتب دومره ناقص کمزورې او ضعیف وی. چه هغه موجود وی. بیا هم ترې د ایمان مطلق نفی کولې شی. لکه څنګه چه په دې آیت ﴿قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا﴾ کښې ئې نفی شوې ده. دا خلق فی نفسه مومنان وو. خو ضعفاء المومنین وو. د هغوی ایمان کمزورې او ضعیف وو. لکه چه هډو کښې ایمان نه وی. د هغوی نه ئې د مطلق ایمان نفی کړې ده. چه ﴿قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا﴾ دی. هم په دې آیت کښې ئې د ایمان د نفی علت ته هم اشاره کړې ده. چه ﴿وَلَمَّا يَدْخُلِ الْإِيمَانُ فِي قُلُوبِكُمْ﴾ یعنی تراوسه پورې ستاسو په زړونو کښې ایمان مضبوط شوې نه دې. خکه دا کالعدم دې.

ددې تقریر په بناء به د دې ترجمې مطلب دا وی. «إذا لم يكن الإسلام على الحقيقة أي على وجه الكمال وكان على الإستسلام أو الخوف من القاتل أي بل كان الإسلام على وجه الإستسلام الظاهري بسبب طمع أو على وجه الخوف من القتل يعني قبل الإسلام بسبب من الأسباب على وجه الخلوص ليس فيه رائحة النفاق لكن الإسلام بعد الآن على الظاهر و الجلود فقط ولما يدخل الإيمان في القلوب ولم تخالط قلبه بشاشة الإيمان فهو في أدنى مراتب الإيمان كأنه على شرف الموت وبه رمق حتى إنه يصح أن ينفى عنه إسم الإيمان لأنه لم

يبلغ حد المطلوب والمرضى عندالله لقوله تعالى ﴿قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا..﴾ الآية فإن هذه الأعراب كانوا مؤمنين مخلصين لم تكن فيهم النفاق لكن إيمانهم الآن على الظاهر والجلود ولما يدخل الإيمان فى قلوبهم ولم تخالط بشاشة القلوب فكان إيمانهم فى أدنى مرتبة الإيمان حتى إن الله تعالى نفى منهم إسم الإيمان وإن كانوا شاملين فى مطلق الإيمان وإذا كان الإسلام على الحقيقة أى على وجه الكمال ورسوخه يعنى وجاوز إسلامه الحاجز ورسخ فى جذر القلوب وخالطت قلبه بشاشة الإيمان وفيه مراتب ومدارج لا تعد ولا تحصى فهو على قوله جل ذكره ﴿إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ﴾ أى فهو على مرتبة الإيمان وهو لحرى أن يطلق عليه إسم الإيمان والجدير بأن يسمى بالدين المرضى لأنه بلغ مبلغ المطلوب وامرضى عندالله فإن المراد بالإسلام فى هذه الآية الاسلام الحقيقى الراسخ فى جذر القلوب،،

حاصل د كلام دا دا شو چه مونږ دا خبره نه منو چه دا آيت د منافقانو په باره کښې نازل شوې دې اونه مونږ دا خبره منو چه دلته امام بخارى د څه سوال جواب ورکوى چه د اسلام هغه درجه عندالله معتبر ده.کوم چه حقيقت شرعيه او نفسى الامرى او واقعى ده.اود اسلام هغه درجه عندالله معتبر نه ده.کومه چه لفظى ،اسمى صورى او ظاهرى وى.بلکه مولف رحمه الله ددې ترجمة الباب نه دا ثابتول غواړى.چه د اسلام مختلف مراتب دى.يو ددې ابتدائى درجه ده.په دې درجه کښې دې دومره کمزورې وى.چه دا موجود وى.هم ترې د ايمان نفى کولې شى. لکه چه هغو ايمان نشته.حالانکه ايمان موجودوى.خو د نشتوالى په درجه کښې وى.دا تنزيل الناقص بمنزلة المعدوم ده.اودويم کمال ايمان دې.او ددې لاندې ډيرې مختلف درجات دى.حضرت امام بخارى رحمه الله د اسلام مختلف درجات ثابت کړل.دايمان مختلف ئې اوخودل.ځکه چه د هغوى په نيز ايمان او اسلام مترادف دى.[1] والله سبحانه وتعالى أعلم وأحكم.

[٢٧] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عَامِرُ بْنُ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ عَنْ سَعْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ [2] أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْطَى رَهْطًا وَسَعْدٌ جَالِسٌ فَتَرَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا هُوَ أَعْجَبُهُمْ إِلَيَّ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا لَكَ عَنْ فُلَانٍ فَوَاللَّهِ إِنِّي لَأَرَاهُ مُؤْمِنًا فَقَالَ أَوْ مُسْلِمًا فَسَكَتُّ قَلِيلًا ثُمَّ غَلَبَنِي مَا أَعْلَمُ مِنْهُ فَعُدْتُ

---

[1] د تفصيل دپاره اوګورئ فضل البارى (٣٩٩/١ و ٤٠٣)_

[2] الحديث أخرجه البخارى فى كتاب الزكاة أيضاً باب قول الله تعالى ﴿لا يسألون الناس إلحافاً﴾ رقم ١٤٧٨ ومسلم فى صحيحه (٨٥/١) فى كتاب الإيمان باب تألف قلب من يخاف على إيمانه لضعفه .. و (٣٣٧/١ و ٣٣٨) كتاب الزكاة باب إعطاء المؤلفة ومن يخاف على إيمانه إن لم يعط .. والنسائى فى سننه (٢٦٦/٢) كتاب الإيمان وشرائعه باب تاويل قول الله عزو جل ﴿قالت الأعراب آمنا..﴾ وأبوداود فى سننه فى كتاب السنة باب الدليل على زيادة الإيمان ونقصانه رقم ٤٦٨٣ و ٤٦٨٥)_

لِمَقَالَتِي فَقُلْتُ مَا لَكَ عَنْ فُلَانٍ فَوَاللّٰهِ إِنِّي لَأَرَاهُ مُؤْمِنًا فَقَالَ أَوْمُسْلِمًا ثُمَّ غَلَبَنِي مَا أَعْلَمُ مِنْهُ فَعُدْتُ لِمَقَالَتِي وَعَادَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ يَا سَعْدُ إِنِّي لَأُعْطِي الرَّجُلَ وَغَيْرُهُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْهُ خَشْيَةَ أَنْ يَكُبَّهُ اللّٰهُ فِي النَّارِ وَرَوَاهُ يُونُسُ وَصَالِحٌ وَمَعْمَرٌ وَابْنُ أَخِي الزُّهْرِيِّ عَنِ الزُّهْرِيِّ [ر:٣٠٨]

## رجال الحديث

① ابواليمان: دا ابواليمان حكم بن نافع بهرانى حمصى دي.ددوى حالات په ((بدء الوحى)) كښې د شپږم نمبر حديث لاندې تيرشوى دى.

② شعيب: دا شعيب بن ابى حمزه دې.دوى حالات هم په ((بدء الوحى)) كښې د شپږم نمبر حديث لاندې تيرشوى دى.

③ زهري: د امام محمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهرى مدنى رحمه الله مختصر تذكره د ((بدء الوحى)) د دريم نمبر حديث لاندې تيره شوې ده.

④ عامربن سعد بن ابى وقاص: دوى د مشهور صحابى حضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه ځوئې دې.په صحابو كښې ئې د خپل پلار نه علاوه د حضرت عثمان ،حضرت جابربن سمره او نورو صحابو رضي الله عنهم نه روايت كړې دې.او د دوى نه حضرت سعيد بن المسيب،سعدبن ابراهيم او امام زهرى وغيره د حديث روايت كړې دې.

ثقه او كثير الحديث وو.په ١٠٣ھ يا ١٠٤ھ كښې په مدينه كښې وفات شوې وو. په اصول سته كښې د دوى د رواياتو تخريج شوې دې.(۱) رحمه الله تعالى.

⑤ سعد: دوى د نبى ﷺ مشهور صحابى رضي الله عنه احد العشرة المبشرين بالجنة د ايران فاتح ،د عراق ګورنرحضرت سعدبن ابى وقاص بن مالك بن وهيب بن عبد مناف بن زهره بن كلاب الزهرى دى.ابواسحاق ددوى كنيت دې.،حضرت عمر رضي الله عنه چه په خپل مرض الوفات كښې دخليفه منتخب كولودپاره دكومو شپږو صحابو رضي الله عنهم انتخاب كړې وو.په هغوى كښې يودې هم دې.قديم الاسلام وو.د څلورو يا شپږو كسانو نه پس ئې د اوولس كالو په عمر كښې اسلام راوړې و. دالله تعالى په لار كښې دټولو نه وړاندې تير ويشتې او وينه بيونكې دوى وو.د فارس الاسلام په لقب سره مشهوروو.د نبى ﷺ سره ئې دجنګ بدر،احداوخندق نه علاوه په نورو ټولو غزاګانو كښې هم شركت كړې دې.

نبى ﷺ د احد په ورځ دوى ته فرمائيلى وو.((ارم فداك أبي وأمي)) امام زهرى رحمه الله په فرمائيل: حضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه د احد په ورځ يوزر غشى ويشتى وو.دحضرت عثمان رضي الله عنه

---

(۱) عمدة القارى (۱۹۲/۱)، رقم ۳۰۸۹)_

د شهادت نه پس حضرت سعد ﷺ دمسلمانانو په خيل مينځ كښې چه څومره جنګونه شوى وو دهغې نه ئې ډډه كړې وه په يو كښې ئې هم شركت نه وو كړې.
مستجاب الدعوات وو. ددوى د استجاب دعا واقعه په بخارى كښې موجود ده.(۱)
دحضرت سعد بن ابى وقاص ﷺ نه دوه سوه اويا احاديث نقل دى.په دې كښې پنځلس متفق عليه دى په پنځو احاديثو كښې امام بخارىؒ او په اتلسو كښې امام مسلم متفرد دې.
ددوى نه په روايت كونكو كښې حضرت ابن عمر.حضرت ابن عباس حضرت جابر بن سمره حضرت سائب بن يزيد او حضرت عائشه ﷺ دى.
په تابعينوكښې د دوى خوئې محمد .ابراهيم.عامر.مصعب ددوى لور عائشه او ډيرو حضراتو ددوى نه د حديثو روايت كړې دې.
د مشهور قول مطابق په كال ۵۵ھ كښې د مدينه منوره نه اووه يا لس ميله لرې په مقام عقيق كښې وفات شوى وو.اود مينې منورې په مقبره بقيع كښې دفن شوى وو.
د وفات په وخت كښې دوى يوه زړه د وړئ چغه راوويسته.اووې فرمائيل ما په دې كښې كفن كړئ.ځكه چه د بدر دجنګ په موقع ما دا چغه اغوستې وه.اود نن ورځې دپاره ما دا پټه كړې وه.(۲) رضى الله عنه وأرضاه وجعلنا ممن يحبه

**تنبيه**: په صحيح بخارى كښې دى.چه يو خل د نبى ﷺ په خدمت كښې يوې ميرمنې (ښځې) يو نقش دار څادر په خپله جوړ كړې وو پيش كړو.او عرض ئې اوكړو .چه دا ما خاص ستاسو دپاره جوړ كړې دې.نبى ﷺ ته ضرورت هم وو.نبى ﷺ كورته دننه تشريف يوړو.او هغه څادر ئې د لنګ په طور سره واچولو.يوصحابى ﷺ هغې ته ګوتې وراوړې.هغه ئې خوښ شو.او عرض ئې اوكړو.يا رسول الله دا څادر څومره ښكلې دې.دا ماته راكړئ.نبى ﷺ هغه څادر هغه ته وركړو.نورو صحابو ﷺ په هغه باندې انكاراوكړو.چه تاته معلومه ده.چه نبى ﷺ سوال كونكې خالى لاس نه واپس كوى.نبى ﷺ ته ددې ضرورت هم وو.ځكه ئې واچولو.خو تا ترې بيا هم هغه څادر اوغوستلو؟هغوى اووئيل.په اصل كښې زه دا څادر په خپل كفن كښې استعمالول غواړم.ددې وجې ما د دوى نه اوغوستو.(۳)
دا څادر غوستونكې څوك وو؟ د دوى په باره كښې شارحينو ﷺ درې اقوال ليكلى دى.يوقول دا دې.چه دا حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷺ وو.دويم قول دا دې.چه دا حضرت

---

(۱) يوكس دحضرت سعدبن ابى وقاص ﷺ په باره كښې شكايت كړې وو.چه دوى دجهاددپاره نه ځى مال غنيمت په انصاف سره نه تقسيموى.اونه فيصله صحيح كوى.حضرت سعدبن ابى وقاص ﷺ چه دا واوريدو.نو وې فرمائيل.((اللهم إن كان عبدک هذا كاذبا قام رياء وسمعة فأطل عمره وأطل فقره وعرضه بالفتن)) نودا درې واړه خيرې هغه كس ته اولګيدلې.اوګورئ.صحيح بخارى (۱۰۴\۱) كتاب الأذان باب وجوب القراءة للإمام والمأموم فى الصلوات كلها فى الحضر والسفروما يجهرفيها وما يخافت)
(۲) تهذيب الأسماء واللغات (۲۱۳\۱، ۲۱۴) وتقريب (۲۳۲) رقم ۲۲۵۹)_
(۳) صحيح بخارى شريف (۱۷۰\۱) كتاب الجنائز باب من إستعد الكفن فى زمن النبى ﷺ فلم ينكر عليه)_

سعد بن ابی وقاص ﷺ وو.او دريم قول دا دې چه دا اعرابی صحابی وو.خو دريم قول د سند په لحاظ سره ضعيف د.(۱)

اوس صرف دوه قوله باقي پاتې شو.كه هغه كس حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷺ وی.نوبيا خو څه اشکال نشته.اوكه هغه كس حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ وو .نودا اشكال كيدې شی.چه هغوی د کفن دپاره صرف د څڅې ذكر كړې و.د ازار ذكر ئې نه دې كړې. خو ونيلی شی چه دلته صرف د ورځ د څڅې ذكردې.څكه چه ددې معامله پته وه.او د څادر معامله ممكن ده چه پته نه وه.نوځكه ئې د هغې د ذكر باقاعده ضرورت اونه ګنړلو.والله أعلم.

**قوله: أن رسول الله ﷺ أعطى رهطاً وسعد جالس**: چه رسول الله ﷺ يوې ډلې ته تحفې وركړې.اوحضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ ناست وو.

د«رهط»اطلاق د دريو نه واخله تر لسو كسانو باندې كيږی.قزاز ﷺ فرمائی.چه كله ددې نه په زياتو باندې هم ددې اطلاق كيږی.(۲)

**قوله: فترك رسول الله ﷺ رجلاً هو أعجبهم إلى**: نورسول الله ﷺ يو سړې پريخودو.هغه ماته د ايمان او اسلام او نيكئ په اعتبارسره د ټولونه زيات خوښ وو.

دا كس كوم چه نبی ﷺ پريخودو.اوهغه ته ئې څه ورنكړو.ددوی نوم حضرت جعيل بن سراقه ضمری وو.(۳)

**قوله: فقلت يارسول الله مالك عن فلان؟**: ما عرض اوكړو يا رسول الله تاسو باندې څه اوشو.چه د فلانی نه تاسو اعراض كوئ.په كتاب الزكاة كښې هم دا روايت راروان دې.په هغې كښې دی. «فقمت إليه فساررته فقلت مالك عن فلان»چه زه اودريدم.او ما رسول الله ﷺ ته په پټه اووئيل.يارسول الله چه تاسو د فلانی نه ولې اعراض كوئ.ددې نه معلومه شوه.چه د مشر په خبره څه اعتراض وی.نو په پټه دې ورته ونيلې شی.څكه چه په مشرانو باندې په مجلس كښې اعتراض كولو سره انتظام خرابيږی.نظم او نسق بربادېږی.ددې نه دا هم معلوه شوه.چه چاته څه نصيحت كول وی.نوخانله دې ورته كولې شی.څكه چه دا خو هم دخيرخواهئ خبره وه.چه حضرت تاسو داسې كس پريږدئ.كوم چه ماته د ټولونه زيات مستحق ښكاری.(۴)

**قوله: فوالله إني لأراه مؤمناً**: په الله قسم چهماته خو دې مومن ښكاری.يا زه ئې مومن ګنړم.

---

(۱) فتح الباری(۱۴۳/۱۳، ۱۴۴) وعمدة القاری(۶۲/۸)_

(۲) فتح الباری(۷۹/۱)_

(۳) سماه الواقدی فی المغازی فتح الباری(۸۰/۱)_

(۴) فتح الباری(۸۰/۱)_

«أراه» كښې په همزه باندې ضمه يا فتحه ده.؟ علامه قرطبى رحمه الله فرمائى.چه همزه د ضمې سره ضبط شوې ده.نوپه دې صورت كښې به دا د «أظن» په معنى كښې وى.(۱)

امام نووى رحمه الله فرمائى.چه دا لفظ «أراه» بفتح الهمزة دې.او «أراه» د «أعلم» په معنى باندې دې اوپه همزه باندې ضمه جائز نه ده.ځكه چه په دې صورت كښې به دا د «أظن» په معنى كښې وى.حالانكه په حديث كښې وراندې راځى.«ثم غلبنى ما أعلم منه» بيا صرف يو ځل نه بلكه دوه درې ځله دوى مسلسل ددې خبرې اعاده كړې ده.كه هغوى ته په خپله خبره باندې يقين نه وو.نو اصرار به ئې ولې كولو.معلومه شوه.چه حضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه دخپل علم او يقين په وجه دا وئيل.چه زه دې مومن پيژنم.(۲)

خويه دې باندې اشكال كيدې شى.چه دلته د«ما أعلم» معنى د«ما أظن» وى .ځكه چه دعلم اطلاق په ظن غالب باندې هم كيږى.لكه چه په آيت كريمه كښې دى. ﴿ فَإِنْ عَلِمْتُمُوهُنَّ مُؤْمِنٰتٍ﴾(۳)

بيا كه دا اومنلې شى.چه دلته د علم او يقين كيفيت دې.خوممكن ده.چه ددې مقدمات ظنى وى.ځكه چه انسان په يقين سره دچا متعلق دانشى پيژندې .چه دې مومن دې.د ظن او گمان درجه ورته حاصليږى.نوپه دې صورت كښې به مسئله هم نظرى پاتې كيږى.يقينى نه(۴)

اگرچه په حديث كښې لفظ د «إن» او لام تاكيد په دې خبره دلالت كوى.چه دوى يقينى خبره كوى.لكه چه هغه ديقين درجې ته رسيدلې وى.

«أراه» بضم الهمزة د «أظن» په معنى اخستلونه بعضې عالمانودا استنباط كړې دې.چه په امرمظنون باندې قسم كيدې شى.

خودا استنباط صحيح نه دې.ځكه چه دلته په مظنون باندې قسم نه دې.بلكه د ظن په وجدان باندې قسم دې.مظنون يقينى نه دې.خود ظن وجود يقينى دې.په كوم چه هغوى قسم خوړلې وو.

**قوله: فقال أومسلماً:** تولو شارحينو رحمهم الله دا لفظ«أو» بسكون الواوضبط كړې دې.اوبعضې حضراتو دا «أو» بفتح الهمزه والواو ضبط كړې دې.او همزه ئې استفهاميه او واو ئې عاطفه گرځولې دې.لكه چه په دې صورت كښې ددې معطوف عليه محذوف دې. اوتقدير د عبارت دا دې.«أتقول هذا وكونه مسلماً أظهر يا أتقوله مومنا ولا تقوله مسلماً»

---

(۱) فتح البارى(۱/۸۰)_

(۲) شرح نووى (۱/۸۵) كتاب الإيمان باب تألف قلب من يخاف على إيمانه)_

(۳) سورة الممتحنة: ۱۰)_

(۴) فتح البارى(۱/۸۰)_

خو قاضى عياض رحمه الله دا قول غلط گرځولې دې.[1]

بيا «أو» بسكون الواو يا خو د تنويع دپاره دې لكه چه دوى دا خودل غوښتل چه ايمان يو باطنى څيز دې او ددې محل زړه دې. د كوم چه انسان ته خبر نه وى. نوپه داسې څيز باندې قسم خوړل او جزم او يقين سره ځنگه حكم لگوى؟ كيدې شى چه صرف مسلم وى مومن نه وى كه په جزم او يقين سره حكم لگول وى. نود مسلمان كيدو حكم اولگوه دمومن كيدو حكم مه لگوه. اوداسې وايه. «إنى لأراه مسلماً» يا «أو» د تشريك دپاره دې يعنى په يقين سره د مومن كيدو حكم مه لگوه. ځكه چه تاسو ته ددې څه خبر دې؟ بلكه په تردد سره د «مومناً» سره د «أومسلماً» لفظ زياتى كړه. اوداسې وايه. «إنى لأراه مومناً أو مسلماً».[2]

«أو» عاطفه دپاره د تنويع او «أو» عاطفه دپاره د تشريك په دې كښې فرق ښكاره دې د تنويع په صورت كښې به صرف يولفظ وى. يعنى د «مومناً» په ځائې به «مسلماً» وى. او د تشريك په صورت كښې به دواړه الفاظ د تردد په طور وى. د «مؤمناً» د لفظ سره به د «أومسلماً» اضافه وى.[3]

خوددې دواړو احتمالاتو په يو حديث سره ترديد كيږى. كوم چه ابن الاعرابى په خپل معجم كښې روايت كړې دې. په هغې كښې د «أو» په ځائې د «بل» لفظ راغلې دې. په هغې كښې دى «لاتقل مؤمن بل مسلم».[4] معلومه شوه. چه په حديث باب كښې «أو» د بل په معنى د پاره د اضراب دې.[5]

**تنبيه:** په فيض البارى كښې د «أومسلماً» تشريح كوى. اوليكى «وقرأه الشيخ العينى رحمه الله بهمزة الإستفهام وواو العطف».[6]

دغه شان په فضل البارى كښې دى. چه علامه حافظ بدرالدين عينى رحمه الله دا بفتح الواوضبط كړې دې. او «أومسلماً» همزه د استفهام دپاره دې. او واود عطف دپاره ...[7] خود ډير لټون باوجود په عمدة القارى كښې راته دا خبره ملاو نشوه. بلكه د حديث الباب د تشريح د

---

[1] فتح البارى(١/٩٤)_
[2] فتح البارى(١/٨٠)_
[3] فضل البارى(١/٤٠٤، ٤٠٥)_
[4] فتح البارى(١/٨٠)_
[5] المصدر السابق)_
[6] فيض البارى(١/١١٢)_
[7] عمدة القارى(١/١٩٤)_

لاندې د هغوی عبارت دا دی.«قال القاضي هو بسكون الواو على أنها، أو،، التي للتقسيم والتنويع أو للشك والتشريك ومن فتحها أعطأ وأحال المعنى»(١)بيا هم دا حديث په كتاب الزكاة كښې د «باب قول الله تعالى: لايسألون الناس إلحافاً»لاندې هم راغلې دې.خوپه دې كښې هغوی داسې قسم څه تشريح نه ده كړې.فتنبه

**ايا په دې حديث سره د حضرت جعيل نه د ايمان نفى كيږى؟** بيا صاحب تحرير د«أو مسلماً» نه دا استنباط كړې دې.چه نبى ﷺ ددې كس نه دايمان نفى كړې ده.(٢)
امام نووى رحمه الله فرمائى.په دې كښې داسې څه خبره نشته.چه نبى ﷺ د ده دايمان نفى كړې ده.بلكه دايمان قطعى حكم لګولو نه نهى ده.اودا تاكيد دې.چه داسلام لفظ وئيل غوره دى.ځكه چه داسلام تعلق دظاهرسره وى.اودايمان تعلق دباطن سره وى.بيا هم په دې حديث كښې د نبى ﷺ دا مبارك الفاظ چه «وغيره أحب إلي منه» د دوى په ايمان باندې دلالت كوى.(٣)
علامه كرمانى رحمه الله په دې جواب باندې اوپه «أو مسلماً» ددې په تشريح باندې اعتراض كړې دې.كه د«أو مسلماً» هم دا تشريح وى.كومه چه امام نووى رحمه الله كړې ده.يعنى چه ايمان او اسلام جدا جدا څيزونه دى.دايمان تعلق باطن سره دې.اود اسلام تعلق ظاهرسره دې.نوبيا خو حديث دمؤلف دترجمې مطابق نه دې.ځكه چه په ترجمه كښې خو دا مقصود دې.چه اعمال ايمان دې.دغه شان بيا نبى ﷺ چه د حضرت سعد رضي الله عنه خبره رد كړه.نوددې څه فائده هم نه پاتې كيږى.(٤)
داولنى اشكال نه جواب دا دې.چه امام بخارى خپله ترجمه د «أومسلماً» نه ثابته كړه.هغه داسې چه نبى ﷺ په ظاهره دايمان نفى كړې ده.خو د اسلام اثبات ئې كړې دې.اواسلام هم دعمل نوم دې.
اود دويم اشكال جواب دا دې.چه د نبى ﷺ د رد كولوفائده ښكاره ده.اوهغه فائده دا ده.چه كله دچا په باره كښې په يقين سره يوه خبره معلومه نه وى.نوقطعى حكم لګول نه دى پكار، بلكه داسې خبره كول پكار دى.چه دهغې علم ورته وى.تا ته دچا د باطنى ايمان په باره كښې څه علم دې؟ددې حكم لګول نه دى پكار.ظاهر داطاعت نوم دې.نوهم ددې حكم لګوه.

**قوله:** فَسَكَتُّ قَلِيلًا ثُمَّ غَلَبَنِي مَا أَعْلَمُ مِنْهُ فَعُدْتُ لِمَقَالَتِي فَقُلْتُ مَا لَكَ عَنْ فُلَانٍ فَوَاللَّهِ إِنِّي لَأَرَاهُ مُؤْمِنًا فَقَالَ أَوْ مُسْلِمًا ثُمَّ غَلَبَنِي مَا أَعْلَمُ مِنْهُ فَعُدْتُ

---

(١) عمدة القارى(١\١٩٤)_
(٢) شرح نووى)_
(٣) شرح نووى (١\٨٥)_
(٤) شرح كرمانى (١\١٣٠)_

**لِمَقَالَتِي وَعَادَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:** زه د لږ ساعت دپاره چپ پاتې شوم.بيا په ما باندې دغه خيال غالب شو د كوم چه وړاندې نه ماته علم وو.نو ما دوباره خپله خبره اوكړه او عرض مې اوكړو .يارسول الله په تاسو باندې څه شوى دى.چه تاسو د فلانى كس نه ډډه كوئ.؟ په الله قسم چه زه خو دې مومن وينم.نبى ﷺ اوفرمائيل.«او مسلماً»بيا لږ وخت پس هغه خيال ماته بيا راغلو.او هغې په ما باندې غلبه اوكړه.ما هغه خبره دوباره اوكړه.نبى ﷺ دا خل هم هغه خبره دوباره اوكړه.

په صحيح بخارى كښې د كتاب ا لزكاة په روايت كښې په بل سند سره ددې نه پس دا الفاظ دى.«أقبل أى سعد»دا د «أقبل»صيغه هم كيدې شى.چه د باب افعال نه د امر صيغه وى.«أقبل»په دې صورت كښې به مطلب دا وى.چه اې سعد ما طرف ته متوجه شه.څه چه زه وايم.هغه واوره.اودا هم كيدې شى.چه د «قبول»نه وى.د امر صيغه «اقبل»او مطلب دا وى.چه اې سعد څه چه زه وايم.هغه قبول كړه.(١)

د مسلم شريف په بعضې سندونوكښې د «أقتالاً أى سعد»الفاظ راغلى دى. (٢)اې سعد ولې د جنګ اراده دې ده.چه ته باربار دا خبره كوې.اوپه خپله خبره ټينګ ولاړ ئې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه په مسلم شريف كښې «اقبالاً أى سعد»الفاظ هم مروى دى.(٣) دا الفاظ زمونږ سره په مطبوعه د مسلم شريف په نسخوكښې نه دى.خو دا لفظ يا خو د باب افعال مصدر دې.اومفعول مطلق دې.تقديرد عبارت دا دې. «أقبل على اقبالاً» يعنى اې سعد زما طرف ته بنه متوجه شه.اويا دا د «اقبالاً» نه دې.يعنى همزه داستفهام دې.او «قبالاً»د باب مفاعله نه مصدر دې.او مطلب دا دې.«أتقابلنى قبالاً بهذه المعارضة»(٤) آيا په دې معارضه سره زما مقابله كول غواړې.والله أعلم.

**قوله ثُمَّ قَالَ يَا سَعْدُ إِنِّي لَأُعْطِي الرَّجُلَ وَغَيْرُهُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْهُ خَشْيَةَ أَنْ يَكُبَّهُ اللّٰهُ فِي النَّارِ:** بيا نبى ﷺ اوفرمائيل.اې سعد بعضې وخت كښې زه يوكس ته څه وركړم. حالانكه دده نه بغير بل كس دده په مقابله كښې زما زيات خوښ وى.مطلب دا چه دا مه ګنړه.چاته چه زه وركوم.نوهغه به زما زيات خوښ او محبوب وى.اوچه څوك پريږدم.نوهغه به مې خوښ نه وى.بلكه كله ددې په عكس وى.چاته په وركولو كښې مصلحت وى.اوهغه

---

(١) فتح البارى(٣\٣٤٣) كتاب الزكاة باب قول الله تعالى «لا يسألون الناس إلحافا»_

(٢) صحيح مسلم (١\٨٥) كتاب الإيمان باب تألف قلب من يخاف على إيمانه_

(٣) فتح البارى(٣\٣٤٣)_

(٤) فتح البارى(٣\٣٤٣)_

دا كه ده ته ورنكړې شي.نو دې اسلام ته نزدې نه راځي. بلكه جهنم ته به غورځولې شي.اوزه دجهنم نه د بچ كولودپاره داسې كوم.اوپه هغه باندې خرچ كوم.چه د اسلام سره ئې تعلق پيدا شي.او په مزه مزه كلك مسلمان شي.

**دحضرت سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه د اصرار وجه** دلته اشكال دا كيږي.چه كله په اول ځل نبى ﷺ دې منع كړ.نو حضرت سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه په دويم ځل او په دريم ځل اصرار ولې كولو؟

ددې اشكال جواب دا دې.چه په اصل كښې په حضرت سعد رضي الله عنه باندې د هغوى د خيګړې جذبه غالبه وه.اود هغه دپاره دومره شفقت وو.چه د هغې د غلبې په وجه د خيګړې او شفقت په وجه ئې د نبى ﷺ خبرو طرف ته داسې توجه اونكړه. لكه څنګه چه پكار وه.په دې وجه هغوى خپله خبره بار بار اعاده كړه.

**د نبى كريم ﷺ د «اومسلماً» وئيلوسره د ترديد وجه** دويم اشكال دا دې.چه حضرت جعيل رضي الله عنه يو ممتاز صحابى وو.د هغوى د ايمان په خپله نبى ﷺ تعريف اوكړو.محمد بن هارون رويانى رحمه الله په خپل مسند كښې په صحيح سند سره د ابوسالم جيشانى رحمه الله په واسطه د حضرت ابوذر رضي الله عنه نه نقل كړى دى.چه رسول الله ﷺ د حضرت جعيل رضي الله عنه په باره كښې زما نه تپوس اوكړو.«كيف ترى جعيلاً؟»ته جعيل رضي الله عنه باندې څنګه ګمان كوې.ما ورته عرض اوكړو.«كشكله من الناس يعنى المهاجرين»زه دې د نوور مهاجرينو په شان يو عام مهاجرګنړم.بيا نبى ﷺ د يو بل كس په باره كښې تپوس اوكړو.«فكيف ترى فلاناً؟»فلانې كس څنګه ګنړې؟ نو ما عرض اوكړو.«سيد من سادات الناس»هغه خو په لويو او سردارانو خلقو كښې دې.نو نبى ﷺ اوفرمائيل.«فجعيل رضي الله عنه خيرمن ملأ الأرض من فلان»[۱]كه د داسې كسانو نه ټوله دنيا ډكه شي.نوهم حضرت جعيل رضي الله عنه ددې ټولو نه غوره دې.نوهركله چه حضرت جعيل رضي الله عنه ته د نبى ﷺ په نيز دا مقام حاصل وو .نو دهغوى دپاره پكارده .چه په دې باندې څه اعتراض نه وو.چه حضرت سعد رضي الله عنه په ده باندې د مومن اطلاق اوكړو.

ددې نه جواب دا دې.چه د نبى ﷺ دا انكار د حضرت جعيل رضي الله عنه دپاره نه وو .بلكه څنګه چه وړاندې بيان اوشو.چه دا انكار د حضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه په طرز كلام باندې وو. ښكاره ده.چه ايمان يو پټ څيز دې.زړه د هغې محل دې. هريوكس ته ددې علم نه وى.بيا د نبى ﷺ په موجودګئ كښې دا زړه ورتيا كول چه په پوره يقين سره دا وئيل چه «فوالله إنى لأراه مومناً» مناسب نه وو.لكه چه نبى ﷺ حضرت سعد رضي الله عنه ته د خبرو كولوطريقه ښائى.چه په دې پټو څيزونوباندې داسې په يقين سره قسم كول او فيصله كول صحيح نه ده.

يوځل ديو انصارى ماشوم وفات شو.نوحضرت عائشې رضي الله عنها د نبى ﷺ وړاندې دا اووئيل.

---

[۱]) عمدة القارى(۱\۱۹۵) وفتح البارى (۱\۸۰)_

«طوبى لهذا عصفور من عصافيرالجنة لم يعمل السوٓ ولم يدركه» نو نبى ﷺ په دې باندې زورنه ورکړه.او وې فرمائيل.«اوغيرذلك ياعائشة»(۱)دلته ګورئ د انصارى صحابى ﷺ ماشوم وفات شوې دې.اود مسلمانانوماشوم كه وفات شى.نودده په جنتى كيدو باندې اجماع ده.(۲) خو ددې باوجود نبى ﷺ په حضرت عائشه ﷺ باندې انكار اوكړو.دلته كښې هم هغه اصلاح مقصود ده.چه خبره په سوچ اوفكرسره كول پكار دى.په داسې پټو خبرو كښې داسې حتمى او يقينى دعوه كول د ادب نه خلاف اونامناسب دى.والله أعلم.

**دوه اصلاحات** دلته نبى ﷺ د حضرت سعد ﷺ د دوو غلطو اصلاح كړې ده.يوه خو هم دا لفظى غلطى كومه چه اوس ذكر شوه.دويمه غلطى دا وه.چه حضرت سعد ﷺدا ګنړل چه نبى ﷺ مال وغيره هغه چاته زيات وركوى .څوك چه ددوى خوښ وى.او چاته چه نه وركوى نو هغوى د نبى ﷺ نه وى خوښ او محبوب نه وى.د حضرت سعد ﷺ ددې خيال اصلاح نبى ﷺاوكړه.او وې فرمائيل.چه ګوره كه زه چاته نه وركوم.نو ددې وجه دا نه وى.چه هغه زما خوښ نه دې.او چاته چه وركوم.نو هغه زما خوښ دې. بلكه چه چاته وركوم .نوپه دې كښې د هغه خيګړه پټه وى.او چاته چه نه وركوم.نو د هغه په ايمان باندې زه اعتماد كوم.(۳)

«يكب»د باب نصر نه دې.ددې معنى ده.پړ مخې غورځول.دا متعدى دې. او كله چه د باب افعال نه راشى.نو لازمى وى.اودا د الفاظ غريبه څنې دې.چه د زيادت نه پس په معنى كښې كمې پيدا شى.اوچه ترڅوپورې لفظ كم وو.نو معنى ئې زياته وه.چه د باب مجرد نه وو.نو متعدى وو.اوچه كله د مزيد نه شو.نولازم شو.(۴)

**قوله**: وَرَوَاهُ يُونُسُ وَصَالِحٌ وَمَعْمَرٌ وَابْنُ أَخِي الزُّهْرِيِّ عَنْ الزُّهْرِيِّ: دا روايت د يونس بن يزيد ايلى. صالح بن كيسان.معمربن راشد او ابن اخى الزهرى ﷺ نه مروى دې. او دا څلور واړه حضرات په خپل خپل سند سره دا حديث د امام زهرى ﷺ نه روايت كوى.

د يونس بن يزيد ايلى روايت عبدالرحمن بن عمر الزهرى الملقب به «رسته» په كتاب الايمان كښې موصولاً تخريج شوې دې.(۵)د يونس بن يزيد حالات په بدء الوحى كښې د پنځم حديث لاندې تير شوى دى.

---

(۱) صحيح مسلم (۲۳۷\۲) كتاب القدر باب معنى : كل مولود يولد على الفطرة وحكم موتى أطفال الكفار وأطفال المسلمين وسنن نسائى (۲۷۶\۱) كتاب الجنائز باب الصلاة على الصبيان)_

(۲) شرح نووى على صحيح مسلم (۳۳۷\۲)_

(۳) عمدة القارى(۱۹۵\۱) وفتح البارى (۸۰\۱)_

(۴) عمدة (۱۹۳\۱) وفتح البارى(۸۱\۱)_

(۵) فتح البارى (۸۱\۱) تغليق التعليق (۳۲\۲، ۳۳)_

د صالح بن كيسان رحمه الله روايت وړاندې په بخاری کښې په کتاب الزکاة کښې موصولاً تخریج شوې دې[1] د صالح بن کیسان حالات په کتاب الایمان کښې د «**باب تفاضل أهل الإيمان في الأعمال**» لاندې تیرشوی دی.

د معمربن راشد رحمه الله حدیث امام احمد[2] او امام حمیدی رحمه الله[3] کښې تخریج کړې دې اودامام معمربن راشد رحمه الله حالات په بدء الوحی کښې دپنخم حدیث لاندې تیر شوی دی.

دابن اخی الزهری روایت په مسلم شریف کښې موصولاً مروی دې.[4]

ابن اخی الزهری دوی دامام زهری وراره محمد بن عبدالله بن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب زهری مدنی رحمه الله دی.[5] دوی دخپل محترم تره امام زهری رحمه الله نه احادیث اوریدلی دی. اود دوی نه په روایت کونکو کښې یعقوب بن ابراهیم، دراوردی او قعنبی رحمهم الله دی.[6] ابن ابی حاتم رحمه الله ددوی په باره کښې فرمائی. «**ليس بالقوي يكتب حديثه**»[7]

ابن معین رحمه الله فرمائی چه دوی ضعیف دی.[8]

ابن معین رحمه الله دا هم فرمائی «**ليس بذلك القوي**»[9]

ددې اقوالو په وجه بعضې حضراتو په امام بخاری او امام مسلم رحمهما الله باندې دا اعتراض کړې دې. چه دوی د داسې ضعیف راوی روایات په خپلو کتابونو کښې ولې نقل کړی دی؟ خو حقیقت دا ددې. چه دی معمولی غوندې کمزورې ضرور دې. خو د دوی په باره کښې د توثیق اقوال هم منقول دی. امام ابوداود رحمه الله فرمائی «**ثقة سمعت أحمد يثني عليه**»[10]

امام یحی بن میعن رحمه الله نه دا هم مروی دی. «**هو أمثل من أبي اويس**»[11]

امام ذهلی رحمه الله دامام زهری په شاګردانوکښې دوی په دویمه طبقه یعنی محمد بن اسحاق او فلیح په درجه کښې شمار کړی دی. اودا ئې ذکرکړی دی. چه د دوی درې احادیث داسې

---

[1]) صحيح بخاری كتاب الزكاة باب قول الله تعالى:﴿ لايسألون الناس إلحافا﴾ رقم ۱۴۷۸)_
[2]) مسند أحمد(۱\۱۷۶) مسند سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه )_
[3]) مسندالحميدى (۱\۳۷) أحاديث سعدبن ابی وقاص رضي الله عنه رقم ۶۸و ۶۹)_
[4]) مسلم شريف (۱\۳۷) كتاب الإيمان باب تألف قلب من يخاف على إيمانه)_
[5]) تقريب (۴۹۰) رقم ۶۰۴۹)_
[6])عمدة القاری (۱\۱۹۶)_
[7]) هدى السارى (٤٤٠) الفصل التاسع فى سياق أسما من طعن فيه من رجال البخارى)_
[8]) المصدرالسابق)_
[9]) المصدرالسابق)_
[10]) المصدرالسابق)_
[11]) عمدة (۱\۱۹۶) وهدى السارى(٤٤٠)_

دى. چه د هغې اصل نه ملاويږى.(١)

دلته د غور خبره دا ده.چه امام زهلى رحمه الله دامام زهرى رحمه الله د احاديثو د ټولو نه لوئې پيژندونكې وو.هغوى د دوى د ټولو احاديثو خودنه كړې ده.په كومو باندې چه دمحدثينو رحمهم الله د طرفه انكار ثابت دې.(٢)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه په ظاهره چه كومو حضراتو د دوى تضعيف كړې دې.نو هغوى هم ددې احاديثو په بنياد باندې كړې دې.د كوم ذكر چه امام ذهلى رحمه الله كړې دې.(٣)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه د دوى يو څو احاديث په صحيح بخارى كښې دى.او ددې متابعت موجود دې.(٤)

علامه عينى رحمه الله فرمائى.د دوى د خوى په لمسون باندې ددوى غلامانو دې قتل كړې وو.(٥) امام نووى رحمه الله ددوى د وفات كال ١٥٢ه خودلې دې.(٦) رحمه الله رحمة واسعة

## ١٨ = بَابٌ إِفْشَاءُ السَّلَامِ مِنَ الْإِسْلَامِ

وَقَالَ عَمَّارٌ ثَلَاثٌ مَنْ جَمَعَهُنَّ فَقَدْ جَمَعَ الْإِيمَانَ الْإِنْصَافُ مِنْ نَفْسِكَ وَبَذْلُ السَّلَامِ لِلْعَالَمِ وَالْإِنْفَاقُ مِنَ الْإِقْتَارِ))

**د ترجمې مقصود** امام بخارى رحمه الله لكه څنګه چه وړاندې ډير اعمال كوم د فرائضو د قبيلې څنې وو.يا د واجباتو دقبيلې.د ايمان جزء خودلې دې.اودايمان تركيب ئې ثابت كړې دې.اوددې قابل للزيادة والنقصان زاروان دى.دغه شان دلته هم دا ښائى.چه افشاء السلام يو داسې عمل دې.كوم چه مسنون دې.فرض يا واجب نه دې.دا هم په اسلام كښې داخل دې.اودايمان يوجزء دې.اود مرجئو دا خبره چه داعمالو دايمان سره څه تعلق نشته.غلطه ده.بيا چونكه دامام بخارى رحمه الله په نيز اسلام دايمان سره يو يا متلازم دى.نوهركله چه دا داسلام جزء ثابت شو.نوښكاره ده.چه د ايمان دپاره به هم جزء وى.

د افشاء السلام مطلب دې.چه مطلقاً د سلام خورول چه په دې كښې د څه وخت يا د سړى قيد نه وى.يعنى يوسړې برابره ده كه خپل وى اوكه پردې او اجنبى وى.كه د بل وطن وى.اوكه دخپل وطن.هريوته دې سلام كولې شى.دغه شان دوخت هم څه قيد نشته.هروخت په هرځائې كښې سلام كولې شى.(د مستثنيانو وجوهات نور دى)

---

(١) هدى السارى(ص.٤٤٠)_

(٢) هدى السارى(٤٤٠)_

(٣) المصدر السابق)_

(٤) المصدر السابق)_

(٥) عمدة (١\١٩٦)_

(٦) المصدر السابق )_

**حضرت عماربن یاسر** رضي الله عنه دوی مشهور صحابی ابوالیقظان عماربن یاسربن عامربن مالك بن کنانه عنسی رضي الله عنه دی.

ددوی پلاریاسر دخپلو دوو ورونړو حارث او مالك سره د یمن نه مکې ته د خپل ورور په لټون کښې راغلی وو. دواړه ورونړه حارث اومالك خو یمن ته واپس شول. خو یاسرهم په مکه کښې پاتې شو اود ابوحذیفه بن المغیره حلیف شو. ابو حذیفه دخپلې وینځې سمیه بنت خیاط نکاح هم دده سره اوکړه. دکومې نه چه حضرت عمار رضي الله عنه په ۵۷ ق ه کښې پیدا شو. اوابوحذیفه دې آزاد کړو. دا حضرات د ابوحذیفه د مرګه پورې یوځائې وو. ددې نه پس چه کله نبی ﷺ مبعوث شو. نو حضرت یاسر، حضرت سمیه او حضرت عمار رضي الله عنهم په اسلام مشرف شول.

چونکه په اول کښې ئې اسلام راوړې وو. ددې وجې ورته د کافرانود طرفه ډیر تکلیفونه رسولی شول. اودوی په صبر اوشکرسره هرڅه زغمل. دې حضراتو ته چه به کله تکلیفونه ورکولی شول. اونبی ﷺ به ددوی په خواه کښې تیرشو. نو نبی ﷺ به ورته فرمائیل. «صبرا یا آل یاسر فإن موعدکم الجنة»[1]

حضرت سمیه رضي الله عنها ته د حق په لاره کښې د ټولو نه اول د شهادت شرافت ملاؤ شوې دې. دالله تعالی دشمن ابوجهل دوی په شرمګاه کښې په نیزه باندې اووهله. د هغې د وجې دا شهیده شوه.

حضرت عمار رضي الله عنه حبشې طرف ته هم هجرت کړې وو. اود مدینې دهجرت سعادت ورته هم حاصل وو. د بدراواحد نه واخله په ټولو غزاګانو کښې شریك پاتې شوې دې.

په اسلام کښې د ټولو نه اول جمات جوړونکې هم دوی دی.

**فضائل اومناقب** د دوی په باره کښې نبی ﷺ فرمائیلی دی. «إن الجنة تشتاق إلى ثلاثة علی وعمار وسلمان رضي الله عنهم»[2]

یوځل دوی د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضرشو. اود داخلیدو اجازت ئې اوغوښتلو. نبی ﷺ ئې آواز اوپیژندلو. نو وې فرمائیل. «مرحبا بالطیب المطیب»[3]

دغه شان نبی ﷺ فرمائیلی دی. «ملئ عمار إیمانا إلى مشاشه»[4] مشاش په اصل کښې د نرم هډوکی سرته وائی. اومطلب دا دې چه حضرت عمار رضي الله عنه د سرنه واخله تر پښو پورې ټول ایمان دې. ایمان ددوی د بدن هریواندام ته رسیدلې دې.

---

[1] مستدرك للحاكم (۳۸۳\۳) کتاب معرفة الصحابة باب ذکر مناقب عماربن یاسر رضي الله عنه_

[2] جامع ترمذی کتاب المناقب باب مناقب سلمان الفارسی رضي الله عنه رقم (۳۷۹۷)_

[3] جامع ترمذی کتاب المناقب باب مناقب عماربن یاسر رضي الله عنه رقم (۳۷۹۸)_

[4] سنن ابن ماجه المقدمة باب فضل عماربن یاسر رضي الله عنه رقم (۱۴۷)_

نبی ﷺ فرمائیلی دی.((من أبغض عمارا أبغضه الله ومن عادی عمارا عاداه الله))(۱)
دحضرت عمارمناقب بې شميره دی.د نبی ﷺ د پيشنگوئ مطابق (۲)
د جنگ صفين په موقع په ۳۷هـ كښې دوی شهيدشوی وو.درې نوی كاله ددوی عمر
وو.ددوی نه تقريباً دوه شپيته احاديث مروی دی.(۳)((رضی الله عنه وأرضاه))

**قوله** ثَلَاثٌ مَنْ جَمَعَهُنَّ فَقَدْ جَمَعَ الْإِيمَانَ: حضرت عمار ﷺ فرمائی درې خيزونه
داسې دی چه کوم کس دا جمع کړی. نودې دايمان جمع کونکې دې.يعنی دا درې صفات چه
په کوم مومن کښې موجود وی.نوهغه به كامل الايمان وی.

**قوله** الْإِنْصَافُ مِنْ نَفْسِكَ: په دې کښې دا هم کيدې شی.چه ((من))په معنی د((فی))
وی.لکه څنگه چه په قرآن پاك كښې دی.﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَوٰةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ ﴾(۴)
اوپه دې کښې ((من))ابتدائيه هم گرځولې شی.په دې صورت کښې به دلته ((نفسك))د فاعل
په معنی وی.يعنی انصاف داسې پكاردې.چه هغه ستا دنفس نه پيدا شوې وی.ستا زړه تا
په هغې باندې اماده کونکې وی.بعضې وخت کښې داسې وی.چه سړې ددې وجې انصاف
کوی. که انصاف اونکړی.نوافسر به مې ملامته کړی.او اوبه نيوې شم.بدنامی به مې اوشی.
او شهرت به مې خراب شی. دلته دا فرمائی چه د افسر ويره يا د بدنامئ ويره دې د انصاف
کولو باعث نشی. بلکه پكارده چه ستا نفس تا په انصاف کولوباندې اماده کړی.

اوکه د ((فی))په معنی باندې وی.نو((نفسك))به د مفعول به په درجه کښې وی.او ددې مطلب
به دا وی.چه د خپل ذات په باره کښې تا دپاره دانصاف نه كار اخستل پكار دی.بعضې
وخت کښې داسې وی.چه سړې د نورو په حق کښې خو انصاف کوی.خوچه کله ئې خپله
خبره راشی.نوبيا انصاف نه کوی.بلكه خپل نفس سره دمحبت په وجه د ده خيال ساتی. نو
دلته ونيلې شی.چه تالره پكار دی.چه دخپل ذات په باره کښې هم دانصاف نه كار واخلې.
خپل نفس آزاد پريخودل نه دی پكار.بلكه پكارده چه دې ماموراتو باندې عمل کونکې او د
منهياتو نه ځان ساتونکې وی.

**قوله** وَبَذْلُ السَّلَامِ لِلْعَالَمِ: سلام تولې دنيا دپاره استعمالول.
مطلب دا دې.چه د کشراومشر.مالداراوغريب تولوته سلام کوه.په دې کښې د دوست ياچه

---

(۱) تاريخ بغداد (۱۵۲۱۱) ومسند أحمد(۹۰۱٤) ومستدرك للحاكم (۳۸۹۱۳)_
(۲)نبی ﷺ د دوی په باره کښې فرمائیلی وو أبشرعمار تقتلك الفئة الباغية.. سنن ترمذی كتاب المناقب
باب مناقب عماربن ياسر ﷺ رقم ۳۸۰۰_
(۳) دا تول تفصيل په تهذيب الكمال (۲۱۵۱۲۱. ۲۲۷) اوالأعلام للزركلی (۳۶۱۵) نه اخستی شوی
دی_
(۴) سوة الجمعة (۹)_

دوست نه وي. كه پيژنګلو وي. اوكه نه وي. څه فرق نه دى كول پكار.
شريعت دسلام اچول د سلام دجواب نه غوره ګرځولي دي.حالاتكه ابتداء بالسلام سنت ده.او رد د سلام واجب دي.اوقاعده دا ده چه فرض د واجبو نه غوره دي.او واجب د سنتو نه افضل دى.خودلته ابتداء بالسلام كوم چه سنت دى د رد السلام نه كوم چه واجب دى.غوره دى.د سلام جواب وركول ځكه واجب دى.چه د سلام جواب نه وركولو باندې د سلام اچونكى زړه ماتيږي.اودسلام جواب نه وركونكى تكبر ښكاره كيږي.اوتكبر او د زړه ماتول دواړه ناجائز دى.

**قوله** وَالْإِنْفَاقُ مِنَ الْإِقْتَارِ: اودغريبئ او فقيرئ باوجود خرچ كول
د«اقتار»معنى د «افتقار»ده.وئيلى شى.«اقترالرجل إذا افتقر»بيا دلته «من»خو د«فى»په معنى كښې دې.اومطلب دا دې چه كله قحط سالى وى. اوخلق په فقركښې اخته وى.په دغه صورت كښې د انفاق نه كار اخله.

دويم صورت دا هم كيدې شى.چه دا د «عند»په معنى وى.اود «انفاق عند الإقتار»مطلب به دا وى.چه كله انسان په غريبئ كښې اخته وى.نوپه هغه وخت كښې هم انفاق كول پكار دى.ځكه چه په دغه حالت كښې الله تعالى په رزق كښې بركت اوچوى.اوزيادت په كښې كوى.په قرآن مجيد كښې ارشاد دې.﴿ وَمَنْ قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ فَلْيُنْفِقْ مِمَّآ اٰتٰهُ اللّٰهُ ﴾(١)كوم كس چه غريب وى.هغه دپاره خرچ كول پكار دى.دهغه مال نه كوم چه لږ دير الله تعالى ده ته وركړې وى.دغه شان ارشاد دې.﴿لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا مَآ اٰتٰهَا﴾(٢)ددې نه معلومه شوه.كه يوكس غريب وى.اوبيا هم دالله تعالى په لاركښې خرچ كوى.نوالله تعالى به دده په رزق كښې بركت واچوى. او فقيرى به ئې په مالدارئ بدله كړى.
علامه عينى رحمه الله فرمائى.چه د حضرت عمار رضى الله عنه دا اثر دايمان ټولونيكو ته شامل دې. ځكه چه دا دايمان خصال يا خو بدنى دى.اويا مالى،په دې اثركښې چه د انفاق كوم لفظ راغلې دې.دا مالى خصلتونوته اشاره ده.كوم چه په الله تعالى باندې بهروسه ده او زهد دى.اوكم اوميدنو لره متضمن دى.
يا د خصال بدنى تعلق به يا دالله تعالى سره وى.اويا به د بندګانوسره وى. نو د حقوق الله طرف ته اشاره كولودپاره اوونيلى شو.«الإنصاف من نفسك»اوحقوق العباد طرف ته د اشارې كولودپاره اوونيلى شو.«وبذل السلام للعالم»(٣)
**دعماربن ياسر رضى الله عنه د اثر تخريج** دحضرت عمار رضى الله عنه دا اثر امام احمد بن حنبل رحمه الله په كتاب

---

(١) سورة الطلاق :٧)_
(٢) المصدرالسابق)_
(٣) عمدة القارى(١١\١٩٨)_

الايمان كښې امام عبدالرزاق په خپل مصنف كښې (١) ابن حبان په ((روضة العقلاء)) كښې او يعقوب بن شيبه په خپل مسند كښې موصولاً نقل كړې دې.(٢)

بيا دا اثر په مسند بزار كتاب العلل لابن ابى حاتم او شرح السنة للبغوى كښې دعبدالرزاق په حواله مرفوعاً نقل دې.(٣)

امام بزاردې واسطې ته غريب ونيلى دى.امام ابوزرعه رحمه الله فرمائى.چه دا اثرمرفوع روايت كول صحيح نه دى.(٤)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.كه د فن حديث په اعتبارسره اوكتې شى. نو مرفوع روايت معلول دې.ځكه چه امام عبدالرزاق په آخر عمركښې متغيرشوې وو.اود مسند بزار اوكتاب العلل راوى حسن بن عبدالله كوفى دغه شان د شرح السنة راوى احمد بن كعب واسطى دامام عبدالرزاق نه هم په آخرى عمر كښې استفاده كړې وه.البته دا خبره ده.چه دحضرت عمار رضى الله عنه دا قول اگرچه په دوى باندې موقوف دې.خو دا د مرفوع په حكم كښې دې.ځكه چه دا خبره داسې ده.كومه چه رائې سره نشى وئيلې.(٥)

[٢٨] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الْإِسْلَامِ خَيْرٌ قَالَ تُطْعِمُ الطَّعَامَ وَتَقْرَأُ السَّلَامَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ [ر:١٢]

## رجال الحديث

**قوله** قتيبه بن سعيد: دوى شيخ الاسلام راوية الاسلام ابورجاء قتيبه بن جميل بن طريف ثقفى دى. ابن عدى فرمائى.چه د دوى نوم يحيى دې.اوقتيبه ئې لقب دې.حافظ ابن منده رحمه الله فرمائى.چه د دوى اصلى نوم على دې.

دوى په ١٤٨ه يا ١٤٩ ه يا ١٥٠ه كښې پيدا شوى وو.دوى دامام مالك. ليث بن سعد شريك .حماد بن زيد .اوبوعوانه .ابن لهيعه .اوعبدالله بن المبارك رحمهم الله وغيره نه استفاده كړې ده.اود دوى نه روايت كونكو كښې امام حميدى. نعيم بن بن حماد .امام احمد بن حنبل.يحيى بن معين .على بن المدينى.ابن نمير .اوبكربن ابى شيبه .امام بخارى. امام مسلم.امام ابوداود .امام نسائى.اوامام ترمذى رحمهم الله غوندې اساطين حديث شامل دى.

---

(١) مصنف عبدالرزاق (١٠\٣٨٦) كتاب الجامع باب إفشاء السلام رقم (١٩٤٣٩)_
(٢) تغليق التعليق(٢\٣٦. ٣٧)_
(٣) فتح البارى(١\٨٣)_
(٤) فتح البارى(١\٨٣)_
(٥) المصدر السابق)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دوی ثقه اوثبت دی

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائي.((قتيبة ثقة))

امام نسائي رحمه الله فرمائي.((ثقة صدوق))

وامام قتيبه دپلار صاحب بيان دې چه ما رسول الله ﷺ په خوب کښې اوليدلو .چه ددوی په لاس مبارك کښې يوه صحيفه ده.ما عرض اوکړو.اې دالله رسوله په دې صحيفه کښې څه دی؟ نو هغوی راته اوفرمائيل.په دې کښې دعالمانو ﷺ نومونه دی.ماورته عرض اوکړو.ما ته ئې راکړئ.چه زه په کښې دخپل خوی نوم
اوګورم.ماچه په هغې کښې اوکتل.نوپه هغې کښې ددوی نوم وو.

دوی په کال ٢٤٠هـ کښې وفات شوی وو.(١)

دليث بن سعد .يزيد بن أبى حبيب.ابوالخيراوحضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه حالات وړاندې د ((باب إطعام الطعام من الإسلام))لاندې تيرشوی دی.

**قوله: أَيُّ الإِسْلَامِ خَيْرٌ قَالَ تُطْعِمُ الطَّعَامَ وَتَقْرَأُ السَّلَامَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ:** داحديث باب بعينه وړاندې په باب ((إطعام الطعام من الإسلام))کښې تيرشوی دې.هلته دامام بخارى رحمه الله استاذ عمروبن خالد تميمى وو.اودلته قتيبه بن سعيد دې.امام بخارى رحمه الله د تکثيرطرق په غرض باندې خپل دواړه استاذان جدا جدا ذکرکړی دی.اودا دامام بخارى رحمه الله عادت دې.چه دوی يوحديث مکرر نه راوړی.چه چرته ضرورت پېښيږی.نوهلته دتکثير طرق په غرض په سند کښې تبديلی راولی.

دلته دا اشکال کيدې شی.چه هرکله صرف تکثيرد طرق مقصودوو.نودا خو داسې هم ممکن وه.چه يوځل ئې ترجمه منعقد کړې وه.اودا ئې فرمائيلی وو.((باب إطعام الطعام والسلام من الإسلام))اوددې لاندې ئې د خپلو دواړو شيوخو احاديث نقل کړی وو.خوداسې ئې نه دی کړی.

علامه کرمانى رحمه الله دا جواب ورکړې دې.چه ممکن ده.چه عمروبن خالد دا حديث د((إطعام الطعام))په ضمن کښې ذکرکړې وی.اوقتيبه د ,,سلام,,لاندې ذکر کړې وی. نو د خپلو استاذانو په تابعدارئ کښې امام بخارى رحمه الله په دې باندې جدا جدا ترجمه قائمه کړه ده.(٢)

خودا جواب صحيح نه معلوميږی.ځکه چه اول خو ددې نه دا لازميږی.چه د اول نه دا ثابته وی.چه ددې دواو استاذانو مدون کتابونه موجود وی.په کوموکښې چه دوی د اطعام الطعام او سلام بابونه قائم کړی وی.اودهغې لاندې ئې دا حديث ذکرکړی وی.حالانکه چه کومو

---

(١) سيرأعلام النبلاء (١١\١٣. ٢٤) وتهذيب الكمال (٢٣\٥٢٣) وتقريب التهذيب (ص.٤٥٤) رقم ٥٥٢٢) وعمدة القارى(١\١٩٩)_

(٢) شرح کرمانى (١\١٣٤)_

كسانو دوى حالات ليكلى دى.نو په هغوى كښې چا هم ددې ذكرنه دى كړې.
بيا د دې نه دا هم لازميږى.چه امام بخارى رحمه الله دتراجمو په وضع كښې د نورو تقليد كوى.حالانكه دا خبره معلومه او مشهوره ده.چه دوى د تراجمو په وضع كښې دچا تقليد نه كوى.بلكه د احاديثو نه پخپله مسائل مستنبط كوى.اوپه هغې تراجم منقعد كوى.
بيا كه د علامه كرمانى رحمه الله خبره اومنلې شى.اودا تسليم كړې شى.چه يقيناً ددې دواړو استاذانو په دې بابونو باندې تصنيفات شته.نوبيا هم دمصنف رحمه الله دپاره دهغې جمع كول ممكن دى.نوسوال بعينه برقرار پاتې كيږى.
بهرحال داونيلې شى.چه په ظاهره دامام بخارى رحمه الله د طريقې نه دا معلوميږى.چه دوى شعب ايمان شمارل غواړى.نوځكه دهرې شعبې دپاره جدا جدا باب قائموى.(١)والله أعلم

# ١٩ = بَابُ كُفْرَانِ الْعَشِيرِ وَكُفْرٍ دُونَ كُفْرٍ

**دكفرلغوى معنى** دكفرلغوى معنى پټول دى.وئيلى شى.((كفر يكفر كفراً: ستراً))
شپې ته كافر وائى.((لأنه يستر بظلمته كل شئ))سمندر ته هم كافر وائى.((لستره ما فيه))زميندار ته هم كافر وائى.((لستره البذر فى الأرض))
((كفر يكفر كفراً وكفوراً وكفراناً)) كفر كول.دا دايمان ضد اونقيض دې.په دې كښې هم د نعمت پټول اود هغې حق نه ادا كول دى.كافردالله تعالى نعمت پټوى. اودهغې نه انكار كوى.دهغه ربوبيت كوم چه د هغه خاص صفت دې.هغه پټوى. او غيرته دهغې نسبت كوى.لكه چه دا وائى.ربوبيت دالله تعالى خاص صفت نه دې. نور هم په دې شريك دى.(٢)
علامه راغب اصفهانى رحمه الله فرمائى.((والكفران فى جحود النعمة أكثر استعمالاً والكفر فى الدين أكثر والكفور فيهما جميعاً))(٣)
**د كفراطلاقات** ددې نه پس په دې پوهه شى:چه په شريعت كښې دكفردوه دوه اطلاقه دى يواطلاق خوپه كفرحقيقى.كفراصلى اوكفربالله باندې كيږى.ددې صورت دا دې .چه انسان د هغه څيزونو قصداً عمداً انكار اوكړى.كوم چه په ايمان كښې ضرورى وى.لكه دالله تعالى د ربوبيت نه انكار اوكړى.ياد فرشتو يا دآخرت د ورځې نه انكار اوكړى.
ددې دويم اطلاق ددې نه په ښكته درجه يعنى په معاصى اوګناهونو باندې كيږى.دا كفر فرعى غير اصلى دې.د اولنى په وجه سړى دايمان د دائرې نه اوځى. اود دويم قسم په ارتكاب سره دايمان نه نه اوځى.اودا هغه كفر دې.دكوم چه په حاديثوكښې په معاصى

---

(١) فتح البارى (٨٢/١)_
(٢) لسان العرب (١٤٤/٥.١٤٧)_
(٣) مفردات القرآن (٤٣٤)_

باندې اطلاق شوې دې رسول الله ﷺ فرمائيلى دى «سباب المسلم فسوق وقتاله كفر»[1] دلته قتال ته كفر وئيلې شوې دې

دغه شان ارشاد دې «بين الرجل وبين الشرك ترك الصلاة»[2] په بعضې رواياتو كښې دى «من ترك الصلاة متعمداً فقد كفر جهاراً»[3]

دغه شان نياحت ته كفر وئيلې شوې دې ارشاد دې «اثنتان فى الناس هما بهم الكفر: الطعن فى النسب والنياحة على الميت»[4]

كه د يوسړى قدرت كيږى اوبيا هم دې حج اونكړى نود داسې كس په باره كښې د نبى ﷺ ارشاد دې «فلا عليه أن يموت يهودياً أو نصرانياً»[5]

په دې ټولو رواياتوكښې هم دا كفر غيراصلى مراد دې كوم ته چه كفر دون كفر هم وئيلى شى دلته په دې ټولو رواياتوكښې دا تاويل شوې دې چه دلته دكفراطلاق په هغه كس باندې شوې دې څوك چه دا څيزونه حلال ګڼړى يا دلته د كفراطلاق په دې معنى شوې دې چه «فعل فعل الكفر» يا «فإنه قد قارب الكفر»

ددې تاويلاتو اوس څه ضرورت پاتې نشو بلكه دا به وئيلى شى چه د كفر ډيرې مرتبې او درجې دى په دې كښې بعضې درجې د ايمان نه ويستونكى دى. اودا دكفردټولونه اوچته درجه ده اونورې هغه مرتبې دى چه دايمان نه ويستونكې نه دى.

دغه شان په شرك كښې هم تفصيل دې يوشرك هغه دې چه هغه مخرج عن الملة دې هم ددې په باره كښې الله تعالى فرمائيلى دى. ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاءُ﴾[6] اود قرآن كريم په يوبل آيت كښې ارشاد دې ﴿فَمَن كَانَ يَرْجُو لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا﴾[7] په دې كښې د شرك نه مراد ..ريا.. ده كومه چه مخرج عن الملة نه ده.دا شرك دون شرك دې.

الملة نه ده.دا شرك دون شرك دې.[8] په دې كښې د شرك نه مراد ..ريا.. ده.كومه چه مخرج عن الملة نه ده.دا شرك دون شرك دې.

---

[1] صحيح بخارى كتاب الإيمان باب خوف المؤمن أن يحبط عمله وهو لا يشعر رقم ٤٨)_
[2] صحيح مسلم (١\٦١) كتاب الإيمان بب بيان إطلاق إسم الكفر على من ترک الصلاة)_
[3] مجمع الزائد(١\٢٩٥) كتاب الصلاة باب فى تارک الصلاة وفيض القدير بشرح الجامع الصغير (٦\١٠٢)_
[4] صحيح مسلم (١\٥٨) كتاب الإيمان باب إطلاق إسم الكفرعلى الطعن فى النسب والنياحة)-
[5] جامع الترمذى كتاب الحج باب ما جاء فى التغليظ فى ترک الحج رقم ٨١٢)_
[6] النساء: ٤٨، ١١٦)_
[7] سورة الكهف: ١١٠)_
[8] سورة الكهف: ١١٠)_

هم دغه حال د ظلم هم دې.په دې کښې يوهغه دې.کوم چه مخرج عن الملة دې. کوم چه د قرآن پاك په آيت ﴿وَالْكٰفِرُوْنَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ﴾ (۱) کښې بيان شوې دې.حالانکه د ظلم يوه درجه هغه ده.کومه چه مخرج عن الملة نه ده.تردې چه د هغې نسبت پيغمبرانوعليهم السلام ته هم شوې دې.لکه څنګه چه د حضرت آدم ﷺ قول دې. ﴿رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا﴾ (۲)

دغه شان د حضرت يونس ﷺ دعا ده. ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ اِنِّيْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ﴾ (۳) په دې دواړو آياتونوکښې دظلم نه مراد ظلم دُون ظلم دې.هغه ظلم مراد نه دې.کوم چه مخرج عن الملة دې.

دغه شان د نفاق په باره کښې هم تفصيل دې. يونفاق هغه دې.کوم چه په ﴿اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ فِي الدَّرْكِ الْاَسْفَلِ مِنَ النَّارِ﴾ (۴) کښې بيان شوې دې.اودا مخرج عن الملة دې.اوپه «أربع من كن فيه كان منافقاً خالصاً» (۵) کښې د نفاق نه مراد ..نفاق دون نفاق مراد دې.مخرج عن الملة نفاق مراد نه دې.

خلاصه دا چه په کفرکښې هم اعلى درجه وی.کوم چه د اسلام د دائرې نه ويستونکې ده او نور درجات ښکته کوی.کوم چه داسلام نه خارجونکې نه وی.دغه شان شرك. ظلم.نفاق کښې هم اعلى درجې وی.کومې چه مخرج عن الملة وی.اوددې نه ښکته نورې ډيرې درجې وی.کومې چه د اسلام نه خارجونکې نه وی.

دايمان او کفرمثال دنور او ظلمت پشان دې.په قرآن مجيد کښې آيت دې. ﴿اَللّٰهُ وَلِيُّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ﴾ (۶) دلته د ظلمات نه مراد کفردې.اود نور نه مراد ايمان دې.لکه څنګه چه په محسوساتوکښې ورځ صرف نور دې.اوشپه صرف تيارۀ ده. نودغه شان ايمان صرف نور دې.اوکفرصرف تيارۀ ده.بيا په دې محسوساتوکښې هم يوه درجه هغه ده.چه نه صرف نور وی.اونه صرف تيارۀ وی.لکه د صبا صادق د راختونه پس نه صرف تيارۀ باقی پاتې کيږی.اونه صرف نور.دصرف نور راتلل خود نمر راختوسره راځی.اود ظلمت محضه خاتمه د صبا په راختو سره کيږی. اوس په مينځ کښې چه دا يوه نيمه ګنټه ده.نودا د نور او ظلمت نه مخلوط ده. شريعت هم د صبا په مانځه کښې دجهری قرات حکم کړې دې.اودا وخت ئې د شپې حصه ګرځولې ده.اود روژه دار دپاره ئې د صبا راختونه پس خوراك حرام کړې دې.حالانکه روژه د ورځې عبادت دې.او ورځ د نمر په راختو سره

---

(۱) البقرة:۲۵۴)_
(۲) الأعراف :۲۳)_
(۳) الأنبياء :۸۷)_
(۴) النساء:۱۴۵)_
(۵) صحيح البخاری (۱۰۱۱) کتاب الإيمان باب علامة المنافق)_
(۶) البقرة:۲۵۷)

شروع کیږی لکه چه من وجه په دې کښې شپه ده.او من وجه په کښې ورځ ده.نودغه شان اوګڼړه چه ایمان نور محض دې اوکفر ظلمت محض دې.خولکه څنګه چه د ورځې او شپې په مثال کښې د نور محضه او ظلمت محضه په مینځ کښې یوه حصه هغه هم ده.کومه چه نه نور محضه ده.اونه ظلمت محضه.بلکه ددې حیثیت بین بین دې.دغه شان د ایمان او کفرپه مینځ کښې هم یوه بین بین درجه ده.

یوسړې د ((لااله إلا الله محمد رسول الله)) اقرار ښه په اخلاص او د زړه په یقین سره کوی.خو ورسره ورسره د ګناه ارتکاب هم کوی.نود تصدیق او اقرار سره سره د ګناهونو په دې ارتکاب کښې ایمان کوم چه نور محضه دې.اوکفر کوم چه ظلمت محضه دې.د دواړه ګډون په وجود کښې راځی.

بیا دا اختلاط لکه څنګه چه په مومن کښې وی.دغه شان په کافر کښې هم وی.ګورئ حضرت اشج عبدالقیس ﷛ د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضرشو.دمسلم په روایت کښې دی.چه نبی ﷺ اوفرمائیل.((إن فيك لخصلتين يحبهما الله الحلم والإناة))[1] په یو روایت کښې دی.چه هغوی تپوس اوکړو.((أقديماً كانا أم حديثاً)) چه دا خویونه په ما کښې دوړاندې نه موجود وو.که نه اوس پیدا شوی دی؟نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل.((بل قديماً)) چه دا خصلتونه د وړاندې نه موجود وو.نوهغه دالله تعالى شکرادا کړو.او وئې وئیل.((الحمدلله الذى جبلنى على خلتين يحبهما))[2] ښکاره ده.چه حلم او اناة دواړه خوبښ خصلتونه دی.دکوموچه اسلام ترغیب ورکړې دې.اودا په کافرکښې موجود دی.د وینا مطلب دا دې.چه دایمان او کفرپه مینځ کښې داسې ډیر درجات دی.چه په هغې کښې د ایمان سره دکفر درجات اوشاخونه هم موجود وی.اودکفرسره دایمان شاخونه هم موجود وی.

**یواشکال اودهغې جواب** دلته یوسوال دا دې.که په مومن کښې د کفرخصلت راشی. نود((فقدكفر))حکم لګوی.اودا وائی.((كفر دون كفر))خوکه په کافرکښې د ایمان خصلت راشی. نو هلته د ((فقدآمن))حکم نه لګوی.؟

ددې یومعقول جواب دې.هغه دا چه ایمان نوم دې د روحانی صحت او تندرستئ.اوکفرنوم دې د روحانی مرض اوبیمارئ.چه په بدنی صحت اوبیمارئ باندې قیاس کړې شی.

ګورئ یوکس من كل الوجوه روغ دې.خوددې باوجود دسردچکرشکایت ورته پیدا شی.هغه دا وائی.چه زه بیمار یم.حالانکه دهغه لاس صحیح وی.زړه ئې صحیح سالم وی.معده ئې صحیح وی.په یواعتبارسره هم ده کښې مرض نه وی.صرف په یو اعتبارسره په ده کښې مرض پیدا شوې دې.اوخلق وائی.چه فلانې بیمار دې.نودغه شان چه په مومن کښې من

---

[1]) صحيح مسلم (۱\۳۵) كتاب الإيمان باب الأمر بالإيمان بالله تعالى ورسوله ﷺ.)_

[2]) مسندأحمد(٤\٢٠٦) ومجمع الزوائد (٩\٣٨٧) كتاب المناقب باب ماجاء فى الأشج ورفقته ﷡ (٥\٤٤) كتاب الأشربة باب جواز الإنتباذ فى كل وعاء)_

جميع الجهات ايمان موجود دي.كه د ترك صلاة په وجه په ده كښې بيمارى پيدا شى نو د ((فقد كفر)) اطلاق به پرې كيدې شى
خوچه كله يوسړې بيمار وى.داسې چه دده په لاس باندې زخم وى په غوږ ئې درد وى.د زړه حركت ئې هم غيرمعتدل وى.اود سردچكرشكايت ورته هم وى.په څواعتباراتو سره دې ناجوړه دې خو متيازې ئې بيخى صحيح دى.اواجابت ئې بيخى صحيح دې.دده په معده كښې څه فرق نشته.نو من جميع الجهات د مرض نه پس كه په ده كښې يوه جهت صحيح هم وى.نوآيا ده ته څوك صحتمند وائى؟نه وائى.نودغه شان چه يوسړې كافروى.اومن جميع الجهات روحانى بيماراو په روحانى مرض كښې اخته وى.نوكه په ده كښې دايمان يوخصلت يا روحانى صحت راشى.نوپه ده باندې د ((فقد آمن))اطلاق نه كيږى.

دلته امام بخارى رحمه الله ((كفران العشير وكفر دون كفر))اووئيل دوى دا ښائى.چه كفران العشيرهم په حقيقت كښې كفر دون كفركښې داخل دې.خكه چه لكه څنګه چه وړاندې بيان شوې دې.چه كفرپه اصل كښې پټولو ته وائى.په الله تعالى باندې كفركونكې دالله تعالى دنعمتونو پټولو مرتكب كيږى.لكه چه ښځه د خاوند نافرمانى كوى.نودا هم د خاوند د نعمتونو او احساناتو د پټولو مرتكبه كيږى.نوپه دې كښې هم ستر موجود دې.خوپه دواړوكښې د استعمال په اعتبارسره فرق كولې شى.چه د كفراطلاق په كفربالله باندې كيږى.اوددې نه لاندې مرتبې دى.په هغې باندې د كفردون كفر اطلاق كيږى.دكفران اطلاق په كفر بالله باندې نه كيږى.بلكه په كفردون كفرباندې كيږى.

**عشير:** دفعيل په وزن د((**معاشر**)) په معنى دې.لكه څنګه چه ((**أكيل**)) د **مؤاكل** په معنى دې. معاشرت ، مخالطت ته اوملازمت ته وائى.دلته مراد خاوندې.چا سره چه ښځه ژوند تيروى.([1])

بيا په ((**كفر دون كفر**)) كښې كوم ((**دون**)) دې.نو ددې دوه معانى راځى.كله دغير په معنى راځى. اوكله ((**أدنى من الشئ**)) په معنى كښې استعماليږى.علامه راغب اصفهانى رحمه الله په مفردات القرآن كښې په دواړو معانيوكښې على سبيل السواء د قرآنى آياتونو لاندې راوړې دې.([2]) حافظ ابن حجر رحمه الله ((**دون**))د اقرب په معنى كښې راجع ګرځولې دې.([3])
اوعلامه كشميرى رحمه الله د ((غير)) په معنى كښې راجع ګرځولې دې([4]) لكه چه دحافظ رحمه الله په نيزدلته د كفر مختلف مراتب بيانول مقصود دى.اوعلامه كشميرى رحمه الله په نيز دكفرد مختلفو قسمونو په ګوته كول مقصود دى.

---

[1]) عمدة القاري(٢٠٠\١)_
[2]) المفردات في غريب القرآن(ت١٧٦)_
[3]) فتح الباري(٨٧\١) كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم)_
[4]) فيض الباري(١١٤\١)_

حضرت شاه صاحب چه ((دون)) د ((غير)) په معنى اخستې دى نو ددې دپاره ئې څو قرائن ذكر كړى دى

اولنى قرينه :هغوى د باب روايت بيان كړې دې څكه چه په روايت كښې دى.((أريت النار فإذا أكثر أهلها النساء يكفرن: قيل أيكفرن بالله ؟ قال يكفرن العشير ويكفرن الإحسان)) نبى ﷺ چه كله زنانو ته د كفرنسبت اوكړو .نوصحابو رضي الله عنهم تپوس اوكړو چه ددې نه كفربالله مراد دې.نو نبى ﷺ دا جواب ورنكړو.چه كفربالله مراد دې اوكه نه دې البته دا ئې اوفرمائيل.چه ((يكفرن العشير)) حضرت شاه رحمه الله فرمائى.چه ددې نه معلومه شوه.چه دا دكفربالله يو بل قسم دې.دكوم په باره كښې چه صحابو رضي الله عنهم تپوس كړې وو.نو نبى ﷺ ((كفران العشير)) اوفرمائيل او د ((يكفرن بالله)) تائيد ئې اونكړو.نومعلومه شوه.چه كفران العشيرد كفر جدا قسم دې.نوكفربالله او كفران العشيرد يوبل نه جدا جدا دى.

بله قرينه حضرت شاه صاحب رحمه الله دا بيان كړې ده.چه په بعضې نسخوكښې د((كفر دون كفر)) په ځائې ((كفر بعد كفر)) راغلى دى.دا د ((بعد)) لفظ په دې دلالت كوى.چه ((دون)) په معنى كښې د ((غير)) په معنى دې.يعنى بعديت په غيريت باندې دلالت كوى.چونكه د ((بعد)) لفظ په يوه نسخه كښې راغلې دې.نوچه دواړه نسخې يوبل سره مطابق شى.نود ((دون)) نسخه به د ((غير)) په معنى كښې اخستې شى.

دريمه قرينه شاه صاحب رحمه الله دا بيان كړې ده.چه په آيت كريمه ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاءُ﴾ (1)كښې په اتفاق سره دون په معنى دغير كښې دې.نوهركله چه په آيت كښې دون په معنى د ،،غير،، دې.نو په ((كفردون كفر)) كښې به هم ((دون)) په معنى د ((غير)) كښې اخستې شى.

څلورمه قرينه ئې دا بيان كړې ده.چه وړاندې ترجمه راځى.((باب المعاصى من أمر الجاهلية ولايكفر صاحبها بارتكابها إلا بالشرك)) يعنى دمعاصى په ارتكاب سره سړى ته كافر نشى وئيلې.البته دا چه دې د شرك ارتكاب اوكړى.نوپه دې صورت كښې به ده ته كافر وئيلې شى.حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائى.كه په كفركښې مختلف مراتب اوګرځولى شى.نودا كيدې شى.چه دكفر يوقسم هغه دې.چه د هغې په ارتكاب سره سړى ته كافر وئيلې شى. اوبل قسم هغه دې.دكوم په ارتكاب سره چه ورته كافر نشى وئيلې.حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائى.كه په كفركښې دغه شان دوه قسمه اونشى ګرځولې بلكه يوقسم په مختلفو مرتبو كښې اوګرځولې شى .نوپه عاصى باندې دكافرپه اطلاق كښې تحجر ولې دې؟حالانكه هم ديوې نوع مبداء داشتقاق په دې كښې موجود ده.اوپه كوم ځائې كښې چه مبتدا د اشتقاق

---

(1) النساء:٤٨، ١١٦)

موجود وی نوهلته پکارده چه د عمل مشق اوکړی.(۱)

خودحضرت شاه صاحب رحمه الله په دې تول تقریر باندې اعتراض شوې دې. علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله فرمائی چه زما په نیزد حافظ رحمه الله مذهب مختار دې. یعنی چه «دون» په معنی د «اقرب» او «ادون» په معنی د ښکته درجې اوپست اوکمتردې.

اولنۍ وجه دا ده. چه ددې ترجمې نه دامام بخاری رحمه الله کوم اصل مقصود دې. اود څه د وجې چه نې دا ترجمه په کتاب الایمان کښې ذکر کړې ده. اوذکرکول نې مناسب وو. هغه دا ده. چه په کفرکښې مراتب بیان کړی. اوددې په ضد یعنی ایمان کښې په مراتبو باندې استدلال اوکړی. اودا مقصود په هغه وخت کښې حاصلیدې شی. اوچه د «غیر» معنی واخستې شی نو دا مقصود نشی حاصلیدې. ځکه چه دغیر په صورت کښې مغایرت ثابتیدې شی. خو مقصود نه حاصلیږی. بیا مصنف رحمه الله د کتاب الایمان په شروع کښې دایمان په بابونوکښې دایمان مختلفې مرتبې ثابتې کړې. نواوس په «باب تفاضل أهل الإیمان فی الأعمال» او «باب إذا لم یکن الإسلام علی الحقیقة..» کښې هم دا ثابت کړل. نواوس مناسب دا معلومیږی. چه دلته په کفرکښې د مراتبو بیانول مقصود وی. مغایرت مقصودنه وی.

بله وجه دا ده. که چرته «دون» په معنی د «غیر» شی. نوبیا به د «کفردون کفر» معنی دا وی. چه یوکفر مغایر وی دبل کفر نه. اومغایرت په دواړو صورتونو کښې متحقق کیږی. برابره ده که اول غټ وی ا ودویم ورکوټې، یا اول ورکوټې اودویم غټ. بهرصورت یودبل مغایر دې. ددې وجې د «کفردون کفر» اطلاق په ورکوټی اوغټ کفرباندې کیدې شی. خوچه «دون» په معنی د «غیر» واخستې شی. نوخلاف مقصودهم په دې کښې داخلیږی. ځکه چه کوموحضراتو د «کفردون کفر» جمله استعمال کړې ده. ځکه چه هغوی مقصود هم دا دې. چه د کفر اکبر لاندې دکفرنورې درجې هم دی. دا مقصود نه دې. چه یوکفرد بل کفربیخی مغایر دې. (کوم چه د ..دون» په معنی د ..غیر.. اخستلو حاصل دې) په خلاف دمعنی اقرب، یعنی ښکته. معمولی. اوادنی درجې والا. نوپه دې صورت کښې به دا معنی وی. چه یوکفر دبل کفر نه ادنی اوکمتردې. نوهم ددې اطلاق په وجه به صرف په ورکوټی کفرباندې کیږی. په لوئې کفرباندې به نه کیږی.

دریمه وجه دا ده. چه «اقرب» او «ادون» د دې اصلی معنی ده. نوخلاف الاصل طرف ته دتګ څه ضرورت نشته.(۲)

ترڅو پورې چه دحضرت شاه صاحب رحمه الله د قرائنو تعلق دې. نود اولنۍ قرینې نه جواب دا دې. چه کفران العشیرد کفرنه سوا یوبل مستقل نوع ګرځول دې ته څه ضرورت نشته. بلکه دا کفربالله طرف ته یوه پوړۍ ده. اود یوې کمې درجې شعبه ده. هم دا وجه ده. چه کله

---

۱) فیض الباری (۱۱۶/۱، ۱۱۷)_

۲) فضل الباری (۴۱۹/۱)_

صحابو ﷺ «أيكفرن بالله» اوونيل اوتپوس ئې اوكړو نو نبى ﷺ دهغې نفى نه ده كړې بلكه دهغې دنفى اواثبات نه ئې سكوت اختيار كړو او «يكفرن العشير» ئې اوفرمائيل يعنى په ظاهر كفربالله نه كوى. خو ددې په مبادى او ددې په يوه شعبه كښې اخته دى.

په دويمه قرينه كښې حضرت شاه صاحب رحمه الله د «كفربعد كفر» نسخه پيش كړې ده. نودا قرينه زمونږ دپاره زياته فائده منده ده. ځكه چه «قبل» او «بعد» عام طور د مراتبو خودلو دپاره راځى.

په دريمه قرينه حضرت شاه صاحب رحمه الله د مفسرينو اجماع اواتفاق نقل كړې دې چه په ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ﴾ كښې «دون» په معنى د «غير» دې.

خوحقيقت دا دې چه ددې قول نسبت هم حضرت شاه رحمه الله ته مشكوك ښكارى. ځكه چه اجماع خو لويه خبره ده. يومفسرهم په دې مقام كښې دون په معنى دغير كښې راجح نه دې ګرځولې. امام راغب ددې آيت په تفسير كښې دون په معنى د «اقل» خودلې ده اوبيا ئې صيغه د «قيل» په تمريض سره د «غير» په معنى بيان كړې ده. فرمائى. «وقوله ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ﴾ أى ماكان أقل من ذلك وقيل ماسوى ذلك..»[1]

څلورمه قرينه حضرت شاه صاحب رحمه الله چه وړاندې كوم باب راځى. «باب المعاصى من أمر الجاهلية ولايكفر صاحبها بارتكابها إلا بالشرك» پيش كړې ده. چه د كفريو هغه قسم دې چه دهغې ارتكاب سره سړې ته كافر وئيلى شى. اويو هغه قسم دې. د كوم په ارتكاب سره چه سړى ته كافرنشى وئيلې. نوددې جواب دا دې. چه لكه څنګه دانواعو په اختلاف سره د اطلاقاتو اختلاف وى. اود احكامو هم مختلف مراتب وى. نودغه شان په يوقسم څيزكښې د مراتبو په اختلاف سره هم د اطلاق اختلاف راتلې شى. اومختلف احكام پرې مرتب كيدې شى.[2]

**«كفردون كفر» دچاقول دې؟** دلته دا بحث دې چه «كفر دون كفر» دچا الفاظ دى؟

حافظ ابن حجر رحمه الله دا دحضرت عطاء بن ابى رباح رحمه الله قول ګرځولې دې. دوى فرمائى. «واما قول المصنف: وكفر دون كفر، فأشار إلى أثر رواه أحمد في كتاب الإيمان من طريق عطاء بن أبى رباح وغيره»[3]

حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائى. چه ابن كثير رحمه الله د ابن عباس رضى الله عنهما نه داقول نقل كړې دې. كيدې شى چه حافظ صاحب رحمه الله ته ددې علم نه وى شوې. ددې وجې هغوى ددې قول نسبت عطاء ته كړې دې.[4]

---

[1] المفردات فى غريب القرآن (ص.١٧٦)_
[2] فضل البارى (١/٤٢٠، ٤٢٢)_
[3] فتح البارى (١/٨٣)_
[4] فيض البارى (١/١١٤)_

خوعلامه شبيراحمدعثماني رحمه الله فرمائي چه دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه د «كفردون كفر» الفاظ بعينه مروي نه دي.بلكه د هغوي نه د ﴿وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ أَنْزَلَ اللهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ﴾ [1] په تفسير كښې «أي كفر لاينقل عن الملة» منقول دى.ددې مطلب دا دې چه كفرورکوټې اوغټ وى.نوغټ كفرد ملت نه ويستونكي دې.اوورکوټې د ملت نه ويستونكې نه دې.معلومه شوه.چه دكفرانواع اواقسام دى.اوهم ددې نه حضرت عطاء استنباط كړې دې.او «كفردون كفر» ئې فرمائيلى دى.دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه هم ددې مفهوم يوه بله جمله هم منقول ده.«هوبهم كفرليس كالكفربالله وملائكته ورسله» يعنى دا عمل دكفريوه شعبه ده.ددې جملې نه هم «كفردون كفر» مستنبط كيږى.

ددې تقريرنه ښكاره ثابته شوه.چه د «كفردون كفر» ماخذخود حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه منقول دې.خوبيخى دا الفاظ د هغوى نه منقول نه دى.دا الفاظ هم دعطاء دى.كوم چه هغوى د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دقول نه مستنبط كړې او اخذ كړې دى.نوځكه حافظ رحمه الله دا الفاظ هم عطاء ته منسوب كړى دى.حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ته ئې نه دى منسوب كړى.
باقى چه كومه دا خبره اوشوه.چه حافظ رحمه الله ته به د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د كلام علم نه وو.زما په نيزصحيح نه ده.صرف توهم دې.ځكه چه پخپله چه وړاندې لاړ شې نو په «باب ظلم دون ظلم» كښې حافظ دابن عباس رضي الله عنهما د قول حواله وركړې ده.چه دا د ابن عباس رضي الله عنهما د قول نه ماخوذ دې.معلومه شوه.چه د ابن عباس رضي الله عنهما قول حضرت حافظ رحمه الله ته وریاد وو.اودحضرت عطاء بن ابى رباح رحمه الله نه صرف دا جمله منقول نه ده.بلكه داسې قسم درې جملې ترې منقول دى.«كفر دون كفر، ظلم دون ظلم، نفاق دون نفاق» [2]

خودواقعې حقيقت هم دا دې.چه د «كفردون كفر» قول هم د ابن عباس رضي الله عنهما نه منقول دې.اوصرف استنباط نه بلكه صراحة دهغوى نه منقول دى.لكه څنګه چه امام حاكم په مستدرك كښې روايت نقل كړې دې.«عن طاوس قال قال ابن عباس رضي الله عنهما إنه ليس بالكفر الذى يذهبون إليه،إنه ليس كفرا ينقل عن الملة ﴿وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ أَنْزَلَ اللهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ﴾ كفردون كفر» [3]

دغه شان علامه سيوطى رحمه الله په درمنثور كښې نقل كړى دى.«وأخرج سعيدبن منصور، والفريابى وابن المنذر وابن ابى حاتم والحاكم وصححه والبيهقى فى سننه عن ابن عباس رضي الله عنهما فى قوله ﴿وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ

---

[1] المائدة: ٤٤)_
[2] فضل البارى(١\٤١٢، ٤١٣)_
[3] مستدرک للحاكم (٢\٣١٣) كتاب التفسير.تفسيرسورة المائدة قال الحاكم هذا حديث صحيح الإسناد ولم يخرجاه قال الذهبى فى تلخيص المستدرک: صحيح)_

أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ﴾ ﴿وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ﴾ ﴿وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ﴾ (۱) ((قال كفر دون كفر، وظلم دون ظلم وفسق دون فسق))

معلومه شوه چه دا قول د حضرت عطاء استنباط نه دې بلکه دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه منقول دې. البته دا خبره ده چه حافظ ابن کثيردا قول ددې اياتونو په تفسيرکښې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه دې نقل کړې. والله أعلم.

**د ترجمې مقصود** امام بخاري رحمه الله په دې ترجمة الباب سره دا بيانوي چه دکفرمختلف درجات دی. يوه په کښې دکفر د ټولو نه لويه درجه ده اوددې نه لاندې نورې ډيرې درجې دی. نوهرکله چه د کفر مختلف درجات دی. نودغه شان به ددې د ضد يعنی ايمان هم مختلف درجات وی. ځکه چه دا قاعده ده. چه کله د يو څيز مختلف درجات وی. نودهغې د ضد به هم مختلف درجات وی. نوکه کفرراشي. نو اصلي ايمان چه ((ايمان بالله والملائكة والكتب والرسل)) به هم ځي. اوکه ايمان اصلي راشي. نوکفر به هم ځي. دغه شان که ((كفر دون كفر)) راشي. نوددې په مقابله کښې چه دايمان کوم خصلت وی. هغه به ختم شي. دخاوند ناشکرې ته په حديث کښې کفران وئيلی شوی دی. اودا کفرګرځولې شوې دې. اودا ((كفر دون كفر)) دې. نوکه ناشکرې راشي. نو دکفريوه شعبه به راشي. اود ايمان يوه شعبه يعنی دخاوند د نعمت شکريه ختم شي. نولکه څنګه چه دکفر مختلف درجات دی. نودغه شان به د ايمان هم مختلف درجات وی.

لکه چه امام بخاري رحمه الله تراوسه پورې د ايمان اواسلام مختلف درجات ثابت کړل. اود مختلفو مراتبو داثبات نه دامام بخاري رحمه الله مقصود دا وو. چه ايمان مرکب دې. اودا قابل للزيادت والنقصان دې. اوس امام بخاري رحمه الله دايمان ضد بيانوی. چه په کفرکښې مختلف درجات دی. اوهرکله چه په کفرکښې مختلف درجات دی. نودغه شان به ددې په ضد يعنی ايمان کښې هم مختلف درجات وی. اوچونکه په ايمان اوکفرکښې يا تقابل تضاد دې. اويا تقابل عدم وملکه. که تقابل تضاد واخستې شي. نو کفراو ايمان ضدين دی. اوکه تقابل دعدم وملکه اومنلې شي. نو ايمان اوکفر به متقابلين وی. اود ضدينو او متقابلينو قانون دا دې. چه ديو ضد او متقابل دپاره چه کوم حکم ثابتيږي. هغه به د بل ضد اومتقابل دپاره هم ثابتيږي. نوهرکله چه په کفرکښې مختلف درجات دی. په ايمان کښې به هم مختلف مراتب او درجات وی. اول په مثبت انداز کښې امام بخاري رحمه الله خپله مدعا پيش کوله. او اوس په منفی انداز کښې خپله مدعا پيش کوی.

**قوله**: فِيهِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [ر: ۲۹۸]

حضرت ابوسعيد خدری رضي الله عنه مشهور صحابی دې. د دوی حالات وړاندې د ((باب من الدين

(۱) الدر المنثور فی التفسير بالمأثور (۲/۲۸۶) سورة المائدة)_

الفرار من الفتن» لاندې تيرشول.
دلته چه امام بخارى رحمه الله دحضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه كوم حديث ته اشاره كړې ده.دا هغه حديث دې كوم چه امام بخارى رحمه الله په كتاب الحيض كښې راوړې دې.«يامعشر النساء تصدقن فإني أريتكن أكثر أهل النار فقلن ولم يارسول الله قال تكثرن اللعن وتكفرن العشير»(١)
قاضى ابن العربى رحمه الله فرمائى.دا احتمال هم شته.چه ددې نه مراد د حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه يوبل حديث «من لم يشكر الناس لم يشكر الله»(٢)مراد وى.(٣)
خوحافظ ابن حجراو علامه عينى رحمهما الله ددې خبرې ترديد كړې دې. اوفرمائيلى ئې دى چه دا خبره لرې ده.اوظاهرهم دا دې.چه ددې نه د كتاب الحيض حديث ته اشاره ده.دغه شان د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په حديث الباب كښې د «يكفرن العشير» د الفاظو نه هم ددې تائيد كيږى.(٤)

[٢٩]: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُرِيتُ النَّارَ فَإِذَا أَكْثَرُ أَهْلِهَا النِّسَاءُ يَكْفُرْنَ قِيلَ أَيَكْفُرْنَ بِاللَّهِ قَالَ يَكْفُرْنَ الْعَشِيرَ وَيَكْفُرْنَ الْإِحْسَانَ لَوْ أَحْسَنْتَ إِلَى إِحْدَاهُنَّ الدَّهْرَ ثُمَّ رَأَتْ مِنْكَ شَيْئًا قَالَتْ مَا رَأَيْتُ مِنْكَ خَيْرًا قَطُّ [٤٣١، ٧١٥، ١٠٠٤، ٣٠٢٥، ٤٩٠١]

## رجال الحديث

**قوله**: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ: دعبدالله بن مسلمه قعنبى رحمه الله حالات وړاندې د «باب من الدين الفرار من الفتن» لاندې تيرشوى دى.

**قوله**: عَنْ مَالِكٍ: دامام مالك بن انس رحمه الله حالات هم په وړاندينى باب كښې تيرشوى دى.

**قوله**: عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ: دوى ابواسامه يا ابوعبدالله زيدبن اسلم قرشى عدوى مدنى دى.دحضرت عمر رضي الله عنه مولى او مشهور فقيه دې.دوى دخپل پلار، حضرت عمر،حضرت انس، حضرت جابر،حضرت سلمه بن الاكوع رضي الله عنهم وغيره نه احاديث نقل كړى دى.اوددوى نه په روايت كونكو كښې د دوى خونې اسامه بن زيد،ايوب سختيانى،اسماعيل بن عياش، امام زهرى،امام مالك،اومعمر وغيره رحمهم الله دى.

---

(١) صحيح بخارى (١\٤٤) كتاب الحيض باب ترك الحائض الصوم رقم ٣٠٤)_
(٢) جامع ترمذى كتاب البر والصلة باب ما جاء فى الشكرلمن أحسن إليك رقم ١٩٥٥)_
(٣)فتح البارى (١\٨٣)_
(٤) فتح البارى(١ج٨٣)_

امام احمد بن حنبل رحمه الله ابوزرعه،ابوحاتم،محمد بن سعد ،امام نسائي،او ابن خراش رحمهم الله دوی لره ثقه ګرځولی دی.

یوځل دوی حدیث اورول،نو یوکس ترې تپوس اوکړو.((یاأبا أسامة ممن هذا؟)) نو دوی ورته جواب ورکړو.((یاابن أخي ماکنا نجالس السفهاء ولانحمل عنهم الأحادیث))

د دوی شخصیت ډیر د رعب وو،چه ترڅو پورې به نې حدیث بیانول،نو په خپله خوښه به نې بیانول،اوچه کله به چپ شو،نو بیا چا کښې به دا همت نه وو،چه به نې ورته د حدیث اورولو درخواست کړې وې.

ددوی په زرین اقوالوکښې دی.((ابن آدم اتق الله یحبك الناس وإن کرهوا))[1]

د دوی به باقاعده په مسجد نبوی کښې حلقه وه،حضرت علی بن الحسین رحمه الله دنورو مجلسونو نه تیریدلو،اود دوی په حلقه کښې به کیناستلو،یوځل نافع بن جبیر رحمه الله دوی ته اوونیل.((تتخطی مجالس قومك إلی عبد عمر بن الخطاب رضي الله عنه)) چه ته دخپل قوم د مجلسونو نه تیریږې،اود حضرت عمربن الخطاب دغلام مجلس کښې کینې،نو دوی ورته جواب ورکړو.

((إنما یجلس الرجل إلی من ینفعه في دینه)) چه سړې دهغه چا سره کیني،چه د چانه ورته په دین کښې فائده رسی.[2] دوی په کال ۱۳۶ هـ کښې وفات شوی وو.[3] رحمه الله تعالی رحمة واسعة.

**قوله: عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ:** دوی ابومحمد عطاء بن یسار هلالی مدنی اودام المومنین حضرت میمونې رضي الله عنها مولی وو.

دوی دحضرت ابی بن کعب،اسامه بن زید،جابر بن عبدالله ،عبدالله بن عمر،عبدالله بن عمروبن العاص،عبدالله بن عباس،عبدالله بن مسعود رضي الله عنهم نه علاوه د نورو ډیرو صحابو رضي الله عنهم اوتابعینو رحمهم الله نه دحدیثو روایت کړې دې.

اود دوی نه چه چا روایت کړې دې،په هغوی کښې حبیب بن ابی ثابت،زید بن اسلم،صفوان بن سلیم،او عمروبن دینار رحمهم الله وغیره دی.

امام یحیی بن معین ،امام ابوزرعه،اوامام نسائی رحمهم الله د دوی په باره کښې فرمائی.((ثقة))

امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائی.((کان ثقة کثیر الحدیث))

حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی.((ثقة فاضل صاحب مواعظ وعبادة))

ددوی د وفات په باره کښې مختلف اقوال دی،راجح قول دا دې،چه ددوی وفات په کال ۹۴ هـ کښې شوې دې.[4]

---

[1] ددوی تولو تفصیلاتو دپاره اود زیات تفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال (۱۰\۱۲،۱۸)_
[2] التاریخ الکبیر للبخاری(۳\۳۸۷) رقم ۱۲۸۷)_
[3] المصدر السابق)_
[4] تهذیب الکمال(۲۰\۱۲۵،۱۲۷) وتقریب التهذیب (ص،۳۹۲) رقم ۴۶۰۵)_

**قوله**: عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما: ترجمان القرآن ،ابن عم رسول الله ﷺ ،حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما ددوى مختصر حالات مونږ وړاندې ((بدء الوحي)) كښې د دريم حديث لاندې ذكر كړى دى.البته دلته په يوه اهمه فائده باندې ځان پوهه كړئ.

**يوه اهمه فائده** دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما شميرېه وړو صحابو رضي الله عنهم كښې كيږى. ځكه چه دوى دهجرت نه درې كاله وړاندې پيدا شوې وو.د نبى ﷺ د وفات په وخت كښې ددوى عمر صرف ديارلس كاله وو.زيات وخته پورې دنبى ﷺ د صحبت نه براه راست فيضياب شوې نه دې.ددې وجې دوى زيات روايات د نورو صحابو رضي الله عنهم نه اوريدلې شوى دى.اودا په مراسيلو كښې شمارلې شى.وړاندې مونږ په ځو ځايونو كښې بيان كړې دې.چه مراسيل صحابه رضي الله عنهم په اتفاق سره مقبول دى.

حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما براه راست د نبى ﷺ نه څومره احاديث اوريدلى دى.په دې كښې اختلاف دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه دغندر د روايت مطابق حضرت ا بن عباس رضي الله عنهما د نبى ﷺ نه براه راست صرف نهه احاديث اوريدلى دى.[1]

امام يحيى القطان رحمه الله فرمائى.چه صرف دلسو احاديثو سماع ثابته ده.[2]

امام غزالى رحمه الله په ((المستصفى)) كښې ليكلى دى.((قيل أنه لم يسمع من رسول الله ﷺ إلا أربعة أحاديث لصغر سنه)).[3]

حافظ رحمه الله فرمائى.چه دا خبره قابل دنظر ده.ځكه چه صرف په صحيحينو كښې داسې احاديث لس دى.په كوموكښې چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د سماع تصريح كړې ده.دغه شان په دې مقدارباندې هغه احاديث دى.په كوموكښې چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د نبى ﷺ د فعل د مشاهدې ذكركړې دې.اوبيا ئې هغه بيان كړى دى.دغه شان په دې شمارباندې هغه احاديث دى.كوم چه دصريح په حكم كښې دى.بيا دا تفصيل صرف د صحيحينود رواياتو متعلق دې. ځكه چه د صحيحينو نه علاوه د حديثو په نورو كتابونو كښې داسې قسم احاديث راغلى دى.[4]

ابن قيم رحمه الله فرمائى.چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما براه راست د نبى ﷺ نه شلو ته نزدې احاديث اوريدلى دى.[5]

---

[1] تهذيب التهذيب (۵\۲۷۹) ترجمة عبدالله بن عباس رقم ۴۷۴)_

[2] المصدر السابق)_

[3] المستصفى (۱\۱۷۰) المرسل مقبول عندمالك وأبى حنيفة رحمهما الله)_

[4] تهذيب ا لتهذيب(۵\۲۷۹)_

[5] الوابل الوصيب و رافع الكلم الطيب (ص.۱۲۶) وتهذيب سنن أبى داود (۳\۲۵۰)كتاب الصيام باب الرخصة فى ذلك (أى فى الإحتجام للصائم)_

صاحب دخلاصه.علامه صفى الدين احمد خزرجى رحمه الله ليكى «سمع من النبى ﷺ خمسة وعشرين حديثا وباقى حديثه عن الصحابة رضي الله عنهم» [1]

**قوله** قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُرِيتُ النَّارَ: [2] نبى كريم ﷺ اوفرمائيل ماته جهنم اوخودلې شو.دا دجهنم دخودلو واقعه ياد معراج ده يا د خوب اويا د كسوف؟ والله اعلم ظاهره داده چه دكسوف واقعه ده. خكه چه امام بخارى رحمه الله دصلاة الكسوف په باب كښې هم دا حديث نقل كړې دې.

**قوله** فَإِذَا أَكْثَرُ أَهْلِهَا النِّسَاءُ: نوهلته زيات شمارد ښځو وو ددې نه معلوميږى چه په جهنم كښې به ښځې زياتې وى.خوامام بخارى رحمه الله په بدء الخلق كښې نقل كړى دى.«لكل واحد منهم زوجتان» [3] چه دهريوبه دوه بيبيانې وى.ددې نه حضرت ابوهريره رضي الله عنه په دې خبره باندې استدلال كړې دې.چه ښځې به په جنت كښې د سړو په نسبت زياتې وى. [4]

ددې تعارض په جواب كښې حضرت شاه انورشاه كشميرى رحمه الله فرمائى.چه د «لكل واحد منهم زوجتان» نه مراد «من الحور العين» دى. [5] لكه څنګه چه هم بخارى شريف كښې دا قيد په بله واسطه كښې دې. [6] نو دحورعين د كثرت نه دا نه لازميږى.چه په جنت كښې به د دنيوى ښځو زيادت وى.

خوپه دې باندې اشكال دې.چه د طبرانى په روايت كښې دى.«إن أدنى أهل الجنة يسعى على

---

[1] خلاصة تذهيب تهذيب الكمال للخزرجي (ص۲۰۳)_

[2] الحديث أخرجه البخاري في كتاب الصلاة باب من صلى وقدامه تنور أو نار أو شئ مما يعبد فأرا به الله رقم ٤٣١ وفي كتاب الأذان باب رفع البصر إلى الإمام في الصلاة رقم ٧٤٨ وفي كتاب الكسوف باب صلاة الكسوف جماعة رقم ١٠٥٢ وفي كتاب بدء الخلق باب صفة الشمس والقمر رقم ٣٢٠٢ وفي كتاب النكاح باب كفران العشير رقم٥١٩٧ ومسلم في صحيحه(٢٩٨\١و٢٩٩ كتاب الكسوف والنسائي في سننه (٢٢١\١) كتاب الكسوف باب قدر القراءة في صلاة الكسوف وأبوداود في سننه في كتاب الصلاة باب من قال أربع ركعات رقم ١١٨١و(١١٨٣)والترمذي في جامعه في كتاب الصلاة باب ما جاء في صلاة الكسوف رقم ٥٦٠)

[3] صحيح بخاري(٤٦٠\١) كتاب بدء الخلق باب ما جآء في صفة الجنة وأنها مخلوقة)_

[4] په صحيح مسلم كښې دمحمد بن سيرين رحمه الله نه روايت دې.((إما تفاخروا وإما تذاكروا الرجال في الجنة أكثرأم النساء فقال أبوهريرة رضي الله عنه أولم يقل أبوالقاسم ﷺ إن أول زمرة تدخل الجنة على صورة القمرليلة البدروالتي تليها على صورة أضوء كوكب دري في السماء لكل إمرئ منهم زوجتان إثنتان يرى مخ سوقهما من وراء اللحم وما في الجنة غرب (٣٧٩\٢) كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها)_

[5] فيض الباري(٩\٤) كتاب بدء الخلق باب ما جاء في صفة الجنة)_

[6] صحيح بخاري(٤٦١\١) بدء الخلق باب ما جآء في صفة الجنة..)_

زوجتين من نساء الدنيا))(١) دغه شان ابن عساكر رحمه الله د حضرت حاطب بن ابى بلتعه رضي الله عنه روايت نقل كړي دي ((سمعت رسول الله ﷺ يقول: يزوج المؤمن فى الجنة ثنتين وسبعين زوجة سبعين من نساء الآخرة وثنتين من نساء الدنيا))(٢) دغه شان حافظ رحمه الله د ابويعلى رحمه الله په حواله سره د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث نقل كړي دي. ((فيدخل الرجل على ثنتين وسبعين زوجة مما ينشئ الله وزوجتين من ولد آدم))(٣)

په دې ټولو احاديثو كښې تصريح ده چه ((زوجتين من نساء الدنيا)) به وى. د حور العين نه به نه وى. نو اشكال دوباره راغلو. چه هركله ديوجنتى دوه ښځې وى. نو بيا خو به دښځو شمارد سړو نه زيات وى. نو دا وينا څنګه ټيك شوه. چه په جهنم كښې به د ښځو شمار زيات وى.

ددې يوجواب دا وركړې شوې دې. چه په حديث كښې چه دا دى. چه ((فاذا أكثرأهلها النساء)) يا ((فرأيت أكثرأهلها النساء)) الفاظ راغلى دى. نو دا دهغه وخت د شاهدې مطابق وو. چه تراوسه پورې د ښځو شمار زيات دې. په دې حديث كښې دټولو ښځو ذكر نه دې. اونه دټولوزمانوپه اعتبارسره ذكر شوې دې. نو ددې حديث د ((لكل واحد منهم زوجتان)) سره څه تعارض نشته.(٤)

دويم جواب دادې. چه((أكثرأهل النار)) دا د ابتداء په اعتبارسره. اود سزا خوړلو نه پس چه جنت ته لاړې شى. نو بيا ((أكثرأهل الجنة)) شى.(٥) دريم جواب دا دې. چه ښځې ((أكثرأهل النار)) به بالقوة وى. خوالله تعالى به ئې معاف كړى. اودوى به ((أكثرأهل الجنة)) شى.(٦)

خلاصه دا چه په جهنم كښې د ښځو اكثريت په وجه په جنت كښې ددوى د كثريت نه نفى نه لازميږى. نو دحضرت ابوهريره رضي الله عنه د ((لكل واحد منهم زوجتان)) نه دا استدلال بيخى صحيح دې. چه په جنت كښې به د ښځو اكثريت وى.

البته دلته دحضرت ابوهريره رضي الله عنه په استدلال باندې ديوبل حديث په وجه اشكال كيږى. دكوم الفاظ چه دا دى. ((أن رسول الله ﷺ قال: إن أقل ساكنى الجنة النساء))(٧) په حديث كښې د ښځود ((أكثرأهل الجنة)) صراحة نفى ده. نو دحضرت ابوهريره رضي الله عنه استدلال څنګه صحيح شو؟

---

(١) مرقاة شرح مشكاة (٣٢٠\١٣) باب صلاة الخسوف_

(٢) درمنثور (٣٩\١١)_

(٣) فتح البارى(٣٢٥\٦) كتاب بدء الخلق باب ما جاء فى صفة الجنة وأنها مخلوقة)_

(٤) فيض البارى(٩\٤)_

(٥) مرقاة المفاتيح(٣٢٠\١٣)_

(٦) مرقاة المفاتيح (٣٢٠\١٣)_

(٧) صحيح مسلم (٣٥٢\٢) كتاب الذكر والدعاء والتوبة والإستغفار باب أكثر أهل الجنة الفقراء وأكثرأهل النارالنساء)_

ددې جواب دا دې چه محققينو عالمانو ﷺ دا حديث روايت بالمعنى ګرځولې دې او فرمائيلى ئې دى چه په اصل كښې يو راوى چه هغه حديث كتلې دې په كوم كښې چه د ښځو «أكثر أهل النار» ذكر راغلې دې نودا استدلال ئې ترې كړې دې چه ښځې به «أقل ساكنى أهل الجنة» وى (١) والله أعلم.

**يواشكال اودهغې جواب** دبخارى په هغه روايت باندې اشكال دلته دا كيږى په كوم كښې چه «ولكل امرئ زوجتان من الحور العين» راغلى دى په دې باندې دا اشكال كيږى چه په جنت كښې به دهرجنتى صرف دوه حورې وى حالانكه په نورو رواياتوكښې دى چه د اويا نه به زياتې حورې ملاويږى بلكه په بعضې رواياتوكښې د پنځو سوو حورو ذكردې اوپه بعضې رواياتوكښې د سلو حورو تذكره ده (٢) نودا تعارض به څنګه لرې كولې شى؟

ددې جواب دا دې چه د پنځو سوو حورو ذكر ابوالشيخ په كتاب العظمة كښې كړې دې حالانكه حافظ عراقى رحمه الله دهغوى نه د سلو حورو تذكره نقل كړې ده اوهم ددې سلو حورو ذكر ابونعيم په حليه كښې هم كړې دې (٣) حقيقت دا دې چه دا احاديث قوى نه دى هم دا وجه ده چه حافظ ابن قيم رحمه الله فرمائى «ليس فى الأحاديث الصحيحة زيادة على زوجتين سوى ما فى حديث أبى موسى الأشعرى رضي الله عنه إن فى الجنة لخيمة من لؤلؤة له فيها أهلون يطوف عليهم» (٤)

اوكه دا احاديث صحيح اومنلى شى نوجواب دا دې چه زوجتين كم مقدار دې چه كم ازكم به ورته دوه حورې ملاويږى (٥) يا د «زوجتين» نه تثنيه مراد نه ده بلكه تكثيراوتعظيم مراد دې لكه څنګه چه په «لبيك وسعديك» كښې تثنيه مراد نه ده (٦)

د دې نه علاوه دا هم وئيلى شوى دى چه دوه حورې به ډير د اوچتې درجې وى لكه څنګه چه شهزادګۍ وى اوباقى به عامې حورې وى اوبيا به په دې حوروكښې دجنتيانو په اعتبارسره كمې زياتې كيږى بعضې جنتيانو ته به اويا اويا دوه اويا حورې ملاويږى او بعضو ته به سل او بعضو ته به پنځه سوه، والله يضاعف لمن يشاء والله أعلم.

**قوله:** يكفرن: يعنى ښځې ناشكرى كوى.

---

(١) فتح البارى (٦/٣٢٥)_

(٢) ددې رواياتو دپاره اوګورئ درمنثور (١/٣٩١، ٤٠) وإتحاف السادة المتقين (١٠/٥٤٥، ٥٤٧) صفة الحور العين والولدان)_

(٣) إتحاف السادة المتقين (١٠/٥٤٦)_

(٤) فتح البارى (٦/٣٢٥) كتاب بدء الخلق باب ما جاء فى صفة الجنة وأنها مخلوقة)_

(٥) فتح البارى (٦/٣٢٥)_

(٦) المصدر السابق)_

**قوله قِيلَ أَيَكْفُرْنَ بِاللَّهِ؟:** اوونیلی شو.یا رسول الله ایا دالله تعالی ناشکری کوی؟

**قوله قَالَ يَكْفُرْنَ الْعَشِيرَ:** نبی ﷺ اوفرمانیل.دخاوندناشکری کوی.ددې نه معلومه شوه چه((کفردون کفر))مراد دې.اودکفرمختلف درجات دی.

قاضی ابن عربی رحمه الله په دې مقام کښې یوه نکته لیکلې ده.دوی فرمائی چه دلته ئې کفران العشیر د یوې دقیقې نکتې دوجې ذکرکړې دې.هغه دا ده.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی ((لوأمرت أحداً أن يسجد لأحد لأمرت المرأة أن تسجد لزوجها))(۱)

لکه چه دخاوند حق ئې دالله تعالی دحق سره ملاؤ کړلو.نوچه دچا حق دومره زیات وی.چه دده حق دالله تعالی دحق سره ذکرکولې شی.اوبیا دده په حق کښې ښځه کوتاهی کوی.نودداسې ښځې نه څه امید کیدې شی.چه هغه به دالله تعالی په حق کښې کوتاهی نه کوی.نوځکه ئې دخاوند په حق کښې دکوتاهئ کولونه په کفرسره تعبیر اوکړو.(۲)

**قوله وَيَكْفُرْنَ الإِحْسَانَ لَوْأَحْسَنْتَ إِلَى إِحْدَاهُنَّ الدَّهْرَثُمَّ رَأَتْ مِنْكَ شَيْئًا قَالَتْ مَا رَأَيْتُ مِنْكَ خَيْرًا قَطُّ:** یعنی ښځې د احسان ناشکری کوی.که ته په دوی کښې دچا سره ټول عمراحسان کوې.اوبیا څه معمولی غوندې دناخوښئ خبره راشی.نووائی چه ما تا سره چرته هم دخیر ورځ نه ده لیدلې.ماته په دې کور کښې څه ملاؤ شو.چه دکوم وخت نه راغلې یم.نومصیبتونه دی.اوزه یم.وغیره وغیره.

**په حدیث کښې داختصارمسئله** حدیث باب د یواوږد حدیث ټوکړه ده.کوم چه امام بخاری رحمه الله په کتاب الکسوف کښې په تفصیل سره ذکر کړې دې.ددې نه معلومیږی.چه مصنف رحمه الله د حدیث داختصار د جواز قائل دې.(۳) دې ته ((خرم)) وائی.

په دې مسئله کښې اختلاف دې.چه په حدیث کښې اختصار جائز دې اوکه نه دې.دعالمانو رحمهم الله په دې مسئله کښې څلور مذاهب دی.

① یومسلك خودا دې.چه دا مطلقاً جائز نه دې.ځکه چه دا د روایت بالمعنی د باب نه دې.کوموحضراتو چه روایت بالمعنی ناجائزګرځولې دې.هغوی اختصارفی الحدیث هم ناجائز ګرځولې دې.

② دویم مسلك دا دې.چه مطلقاً جائز دې.که دې ته روایت بالمعنی وائې.اوکه نه وائې.خو دا جوازپه داسې صورت باندې مقید دې.چه دمحذوف حصه دمذکور حصې سره داسې

---

(۱) سنن ابن ماجه كتاب النكاح باب حق الزوج على المرأة رقم (۱۸۵۲) ورقم ۱۸۵۳ وسنن أبی داود كتاب النكاح باب حق الزوج على المرأة رقم ۲۱۴۰ وسنن دارمی كتاب الصلاة باب النهی أن يسجد لأحد رقم ۱۴۶۳ و ۱۴۶۴ ومستدرك حاكم (۱۷۲/۴) كتاب البر والصلة باب حق الزوج على الزوجة)_

(۲) فتح الباری(۸۳/۱)_

(۳) فتح الباری(۸۴/۱)_

تعلق نه وي.په كوم سره چه د حذف په وجه په معنى كښې خلل راځي لكه چه مستثنى منه ذكر كړې اومستثنى حذف كړې شي.كه داسې قسم خلل وي.نو بيا په اتفاق سره اختصارفي الحديث جائز نه دې.

③ كه هغه روايت يو ځل مكمل روايت كړې شوې وي.برابره ده كه اختصاركونكى راوى مكمل روايت كړې وي يا بل چا.نوبيا په دې روايت كښې اختصار جائز دې.ګنې نه دې.

④ څلورم قول دا دې.كه دحديث په ماقبل اومابعدكښې داسې تعلق وي.چه د اختصار كولو په صورت كښې په معنى كښې خلل راځي.نواختصاركول جائزنه دى.ګنې دعالم كس دپاره چه دكلام د مدارجو نه خبر وي.اختصاركول جائز دى

په دې كښې دا آخرى قول يعنى څلورم قول يعنى جمهورومسلك دې.[1]

امام نووى رحمه الله د قاضى عياض رحمه الله نه نقل كړى دى.چه امام مسلم رحمه الله مطلقاً د جواز قائل دې.[2]

امام مسلم طرف ته ددې قول نسبت كول وهم دې.بلكه دوى دجمهورو دقول پشان د عارف اوعالم دپاره دجواز قائل دې.دې طرف ته هغوى اشاره كړې ده.((أو أن نفصل ذلك المعنى من جملة الحديث على اختصاره إذا أمكن))[3] په دې كښې چه دامكان كوم قيد لګولې شوې دې.په دې كښې هم دې طرف ته اشاره ده.والله أعلم.

# ۲۰-بَابُ الْمَعَاصِي مِنْ أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ وَلَا يُكَفَّرُ صَاحِبُهَا بِارْتِكَابِهَا إِلَّا بِالشِّرْكِ

لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّكَ امْرُؤٌ فِيكَ جَاهِلِيَّةٌ وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ))[4]

**جاهليت**: امام نووى دجاهليت تشريح كوى.او فرمائى.((والمراد من الجاهلية ماكان في الفترة قبل الإسلام))[5]

خويه دې باندې اشكال كيږى.چه امام بخارى رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل كړى دى.

---

[1] مقدمة فتح الملهم (۸۳) فروع لها تعلق بالرواية بالمعنى)_

[2] شرح نووى على صحيح مسلم(۳/۱)_

[3] مقدمة صحيح مسلم (۳/۱)_

[4] النساء:۴۸)_

[5] شرح نووى على صحيح مسلم (۷۰/۱) كتاب الإيمان باب تحريم ضرب الخدود وشق الجيوب والدعاء بدعوى الجاهلية وتهذيب الأسماء واللغات (۵۷/۳) مادة (جبل)_

دوی فرمائی ((سمعت أبي يقول في الجاهلية أسقنا كأسا دهاقا))[1] وحضرت ابن عباس رضی الله عنهما دهجرت نه درې کاله وړاندې د نبوت په لسم کال پیدا شوې وو.

دغه شان امام بخاری رحمه الله دعمروبن میمون رحمه الله نه نقل کړی دی. ((رأیت فی الجاهلیة قردة اجتمع علیها قردة قد زنت فرجموها فرجمتها معهم))[2] اوعمروبن میمون تابعی رحمه الله دې.[3]

دغه شان امام مسلم دصحیح مسلم په مقدمه کښې لیکلی دی.((وهذا أبوعثمان النهدی وأبورافع الصائغ وهما ممن أدرك الجاهلية))[4]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه امام نووی رحمه الله په یقین سره دا خبره کړې ده.چه د جاهلیت نه په هرمقام کښې دبعثت نه وړاندې زمانه مراد وی.حافظ رحمه الله فرمائی چه په دې تعمیم کښې نظردې.ځکه چه وړاندې کوم اقوال مونږ ذکرکړل.په دې کښې یوقول دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما دې.اوهغوی دبعثت نه پس پیدا شوی وو.دغه شان عمروبن میمون .ابوعثمان نهدی اوابورافع تابعین دی.نودا یقین صحیح نه دې.چه دجاهلیت اطلاق صرف په ماقبل البعثت باندې کیږی.

حافظ رحمه الله فرمائی.چه دجاهلیت اطلاق په څو زمانو باندې کیږی.

① یواطلاق په هغه زمانه کیږی.کومه چه ((ما بین مولد النبی صلی الله علیه وسلم الی مبعثه)) نودا ((باب أیام الجاهلیة))نه هم دا مراد دې.

② یواطلاق هغه دې.په کوم باندې چه امام نووی رحمه الله جزم کړې دې.یعنی د ما قبل البعثت زمانې ته جاهلیت وائی.

③ کله ددې اطلاق په ماقبل فتح مکة باندې هم کیږی.

④ کله دجاهلیت نه مراد پخپله د مبتلی به د اسلام نه وړاندې زمانه مراد وی. او کله چه هغه مسلمان شی.نودهغې نه لرې شی.[5] والله أعلم

اوس ددې نه پس په دې باندې پوهه شئ.چه دلته د امر نه مراد جاهلیت یعنی دکفر د زمانې څیزونه دی.دې ته جاهلیت ځکه وائی.چه هغه خلق د جهالت په تیرو کښې وو.هغوی سره د علوم نبوت رڼا نه وه.اصل علم خوهغه دې.کوم چه دالله تعالی اودهغه د رسولانو نه حاصل شی.اوکوم چه ددې خلاف وی هغه سراسر جهل دې.

**دترجمة الباب مقصود** په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله دا ښائی.چه دکوم څیزنه چه مونږ په

---

[1] صحیح بخاری(۱\۵٤۱) کتاب بنیان الکعبة باب أیام الجاهلیة)_

[2] صحیح بخاری(۱\۵٤۳) بنیان الکعبة باب القسامة فی الجاهلیة)_

[3] تهذیب الکمال(۲۲\ ۲٦۱و ۲٦۷)_

[4] مقدمة صحیح مسلم(۱\۲۳)_

[5] فتح الباری(۷\۱٤۹) کتاب مناقب الأنصار باب أیام الجاهلیة)_

سابقه ترجمه کښې په ((كفر دون كفر)) سره تعبير كړې وو كومه چه د كفرحقيقى نه ښكته درجه ده دا ټول معاصى دى اودجاهليت داموروخنى دى خو ((لا يكفر صاحبها بارتكابها إلا بالشرك)) يوسړې ددې په ارتكاب سره نه كافر كيږى خكه چه معاصى په ارتكاب سره دكفرسوال نه پيدا كيږى الله تعالى فرمائى ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ﴾ (١) مادون الشرك الله تعالى د مشيت لاندې ګرځولې دې كه الله تعالى اوغواړى نوهغه به معاف كړى معاصى ټول په مادون الشرك كښې داخل دى اودكفراوشرك دپاره د معاف كيدو ګنجائش نشته والله تعالى أعلم

**دحضرت شيخ الهند رحمه الله رائې** حضرت شيخ الهندفرمائى چه په دې باب كښې دوه ترجمې دى ((المعاصى من أمرالجاهلية)) اوبله ترجمه ((ولا يكفر صاحبها بارتكابها إلا بالشرك)) په دې مقام كښې مقصود اوله دې دويمه ترجمه ئې د تقديرى دخل د دفع كولو دپاره راوړې ده مطلب دا دې چه لكه څنګه د ابواب سابقه نه معلومه شوه چه اعمال خيرد امور ايمانيه څنې دې اوپه ايمان كښې داخل دى نودغه شان معاصى دجاهليت امر دې يعنى په امور شركيه كښې شمارلى شى دابواب سابقه نه د نيكئ داعمالو حاجت او ضرورت ثابتيدلو اوس د دې باب نه د معاصى قباحت اومضرت ثابت شو اوپه دې سره په مرجئو باندې رد اوشو خودا ويره وه چه كيدې شى ددې ترجمې نه معتزله او خوارج فائده واخلى نوځكه مؤلف روسته ((ولا يكفر صاحبها بارتكابها)) اوفرمائيل اوبطور دفع ئې د هغوى دروازه بنده كړه چه دخوارجو پشان به د معصيت په ارتكاب سره دهغه دكفرحكم نشى لګولې يا د معتزلو پشان به دې د ايمان نه خارج نشى ګرځولې

بيا ((لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّكَ امْرُؤٌ فِيكَ جَاهِلِيَّةٌ وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ)) د اولنئ ترجمې سره متعلق دې او((قول الله)) د دويمې ترجمې دليل دې اوددې نه پس ئې دحضرت ابوذر رضي الله عنه حديث ذكركړې دې كوم چه ښكاره ترجمې سره مطابق اومربوط ښكارى بيا چه كله دا خيال اوكړى چه په دې واقعې سره دحضرت ابوذر رضي الله عنه په كمال ايمانى كښې د شك كولو ګنجائش نشته پخپله نبى صلى الله عليه وسلم هغه ته دتجديد ايمان حكم نه وو كړې اونه ئې هغه ضعيف الايمان ګرځولې وو حالانكه د معصيت ارتكاب ترې شوې وو نومعلومه شوه چه خوارج او معتزله چه مرتكب د معصيت دايمان نه خارج ګرځوى په هيڅ صورت كښې صحيح نه دى اودغه شان د ابوذر رضي الله عنه د حديث د ترجمې د دويم جزء سره هم مطابقت راځى خكه چه په دې باب سره دمرجئو ،خوارجواو معتزلو بطلان ثابت شوې دې

---

(١) النساء: ٤٨، ١١٦)_

بيا امام بخارى رحمه الله «بارتكابها» اووئيل اوداعتقاد صورت ئي راوّيستلو .خكه كه څوك دمعاصى اعتقاد كوى.نوهغه به داعتقاد معصيت يعنى دهغې د صحيح ګڼړلو دوجې كافر شى.خودا دهغه معاصى حكم دې.دكوم معصيت كيدل چه په نص صريح اوقطعى سره ثابت شوې وى.اودكوم څيزپه معصيت كيدو كښې چه اختلاف وى.هغه په دې كښې داخل نه دې.

**يواشكال اودهغې ازاله** امام بخارى رحمه الله د «ولايكفر صاحبها بارتكابها الا بالشرك» باندې د دليل په طور. ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاءُ﴾(۱)پيش كړې دې.په دې باندې اعتراض كيږى.چه په آيت كښې خودلى شوى دى.چه دشرك بښنه نه كيږى.اوددې نه سوا د نوروګناهونو بښنه كيږى. كوم چه دشرك نه كم وى. سوال دا دې.چه بخشش لكه څنګه چه دمشرك نه كيږى. دغه شان دكافرهم نه كيږى.حالانكه شرك اوكفريو نه دې.داسې كيدې شى.چه كافر دې وى.او مشرك دې نه وى.مثلاً دا چه څوك الله تعالى نه منى.نوهغه به شريك څه اومنى. نو ښكاره ده.چه دې كافرخو دې.خومشرك نه دې.حالانكه بخښنه ددۀ هم نه كيږى.نوبيا ئې د «لايغفر أن يشرك به» سره «لايغفر أن يكفر به» ولې اونه وئيل؟

ددې يوجواب دا دې.چه په دې مقام كښې خو دشرك غيرمغفوركيدو ذكر دې.اوترڅوچه دكفر دغيرمغفور كيدو تعلق دې.نودهغې دلائل په نورو آياتونو كښې ذكردى.ديوآيت نه دټولومسائل ثابتيدل ضرورى نه دى.(۲)

دويم جواب دا دې.چه دلته د مادون الشرك د مغفرت امكان موجود دې.اوچه ما دون الكفرپه معنى د ادنى اوكم باندې واخستې شى.نومعنى به دا شى.چه د شرك نه لاندې چه څومره ګناهونه دى.هغه معاف كيدې شى.اودكفر بعضې صورتونه خو شرك دې.لكه عبادت دبتانو،سجده غيرالله ته.هغه خوپه آيت كښې داخل دى.اوكوم صورتونه چه شرك نه دې.نوهغه چونكه د شرك نه لوئې ګناهونه دى.نوځكه دهغې غيرمغفوركيدل په دلالة النص سره ثابت شو.چه هركله شرك نه معاف كيږى.نوددې نه لويه ګناه به څنګه معاف شى.(۳)

دريم جواب دا دې.چه دشرك دوه معانى دى.يوه خوددې حقيقى معنى ده. او بل مطلق كفر ته وائى.كوم چه شرك اوكفردواړو ته شامل دې.په روح المعانى كښې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه هم دا دريم احتمال نقل كړې شوې دې.(۴)

څلورم او اصلى جواب دا دې.چه په شرك اوكفركښې اګرچه دعموم خصوص مطلق نسبت دې.خود مصداق په اعتبارسره د نبى ﷺ په زمانه كښې په دې كښې فرق نه وو.څوك چه به

---

(۱) النساء:۴۸، ۱۱۶)_

(۲) بيان القرآن(۱۲۲\۱)_

(۳) بيان القرآن (۱۲۲\۱)_

(۴) المصدرالسابق)_

مشرك وو هغه به كافر وو اوخوك چه به كافروو هغه به مشرك وو په مصداق كښې داتحاد په وجه ئې دلته كفر جدا ذكرنكړو.

ددې تفصيل دا دې چه دنبي ﷺ په زمانه كښې به كافران يا عام مشركان وو يا به مجوس وو اويا به يهود او نصارى وو په دې كښې ديهودواو نصارى په باره كښې اشكال كيدې شي چه دوى ته مشرك څنګه وئيلى شي؟

نوپوهه شئ چه نصارى اګرچه د دوى دعوى د توحيد وه خو قرآن كريم ددوى شرك پيش كړې دې فرمائي. ﴿لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ ثَالِثُ ثَلَاثَةٍ﴾

(١)دوى په حقيقت كښې دتثليث منونكى وو اوپه دروغه او دهوكه باندې د توحيد ثابتولو كوشش كوى.

دغه شان ديهودو په باره كښې قرآن كريم كښې صفا صفا وينا ده چه ﴿وَقَالَتِ الْيَهُودُ عُزَيْرٌ ابْنُ اللَّهِ﴾(٢)يهودهم كافران وو خكه چه هغوى به د نبي ﷺ د نبوت نه انكاركولو اود نبي ﷺ د نبوت نه انكار كونكې بداهةً كافر دې خو ورسره ورسره مشرك هم دې خكه چه حضرت عزير عليه السلام ئې دالله تعالى خوئې ګنړلو.

نن صبا يهوديان وائى چه مونږ خو حضرت عزير عليه السلام دالله تعالى خوئې نه ګنړو خو د دوى د انكار نه دا نه لازميږى چه د قران د نازليدو په وخت كښې چه كوم يهود وو هغوى هم د حضرت عزير عليه السلام دالله تعالى خوئې نه ګنړلو يقيناً هلته داسې يهود موجود وو چا چه حضرت عزير عليه السلام دالله تعالى خوئې ګنړلو، ګنى په كومه بې باكئ سره چه يهودواو نصارئ په اسلام باندې اعتراضات كړې وو چه هغې ته اوكتې شى نودا خبره په عقل كښې نه راځى چه قرآن كريم به څه غلطه دعوه كړې وى اوهغوى به په هغې باندې اعتراض نه وى كړې (نوهركله چه د هغوى اعتراض نشته معلومه شوه چه په هغوى كښې به دا عقيده موجود وه ازمترجم) (٣)

بهرحال ثابته شوه چه دهغه زمانې يهود اونصارى چه څنګه كافر وو دغه شان مشركان هم وو حاصل دا چه د نبي ﷺ په زمانه كښې چه دمصداق په اعتبارسره په كفراوشرك كښې اتحاد وو نوقرآن پاك صرف دشرك ذكراوكړو د كفرد ذكر كولو ئې څه ضرورت نه وو ګنړلې.

......

---

(١) المائدة:٧٣)_

(٢) التوبة:٧٣)_

(٣) د تفصيل دپاره اوګورئ فضل البارى (١١/٤٢٤، ٤٢٨)_

# ۲۱ = باب ﴿وَإِنْ طَآئِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا﴾ فَسَمَّاهُمُ الْمُؤْمِنِينَ

دا آیت زمونږ په نسخوکښې خو «باب المعاصي من أمرالجاهلية» د لاندې ذکر دې دابوذرپه روایتونو کښې داسې دې اوابومحمداصیلي په خپل روایت کښې دا دمستقلې ترجمې سره ذکرکړې دې اودهغې نه پس ئې دحضرت ابوبکره رضي الله عنه حدیث ذکرکړې دې.(۱) که دې ته مستقله ترجمه اووئیلې شي نودا به د سابقه ترجمې تکمله شي.

بهرحال مصنف رحمه الله اول دا بیان کړې وو چه دمعاصي په ارتکاب سره څوك نه کافر کیږي البته دشرك په ارتکاب سره کافر کیږي.اوس هم دا خبره په دلیل سره بیانوي چه ګورئ دالله تعالی ارشاد دې ﴿وَإِنْ طَآئِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا﴾(۲) که دمسلمانانو په دوو ډلوکښې جنګ اوجدال.قتل اوقتال اوشي.نو د دوی په مینځ کښې روغه راولئ دوه ډلې چه په یوبل باندې تورې چلوي.الله تعالی دوی ته مومنان وئیلې دي.حالانکه د مومن سره قتال کفر دې.په حدیث کښې دي.«سباب المسلم فسوق وقتاله کفر»(۳) نومعلومه شوه.چه مومن دمعاصي په وجه نه کافرکیږي.هم دا خبره امام بخاري رحمه الله کوي. اوفرمائي. «فسماهم المؤمنين» الله تعالی دوی ته یعنی طائفتين متاتلتين ته مومنان وئیلې دي.ددې نه معلومه شوه.چه کوم کس د زړه نه تصدیق اوپه ژبه اقرار کوي.نوداسې کس ته علی الاطلاق مومن وئیلې شي.هم دا داحنافواومتکلمین رحمهم الله رائې ده.(۴)خوعام طورسلف وائي. چه داسې کس ته مطلقاً مومن خوونیلې شي.خومومن مطلق نشي وئیلې.داسې کس مومن خو دې.خوپه ده باندې د قید نه بغیر د مومن اطلاق صحیح نه دې.بلکه په قید سره به ده ته مومن ناقص الایمان وئیلې شي.(۵)

ترکومې پورې چه دمصنف رحمه الله علی الاطلاق د «فسماهم المؤمنين»وئیل دي. کیدې شي.چه دا د فریق اول دپاره موید اوګنړلې شي.ځکه چه مصنف رحمه الله صرف ..المومنين.. ذکرکړې دي.خوسلفو دا وئیلې شي.چه دمصنف رحمه الله ټول ابواب کوم چه دوی په ټول کتاب کښې خواره کړي دي.هغه په دې خبره دلالت کوي.چه د معصیت مرتکب مومن خو دې.خوکامل مومن نه دې.بلکه ناقص الایمان دې.ځکه چه په ایمان کښې کمال خود اعمالو په وجه

---

۱) فتح الباري(۱\۸۵)_

۲) الحجرات:۹)_

۳) صحیح بخاري کتاب الإیمان باب خوف المؤمن أن یحبط عمله وهو لایشعر رقم ۴۸)_

۴) شرح الفقه الاکبر(ص.۱۰۲. ۱۰۳) مطبوعه دارالکتب العلمیة بیروت ۱۴۰۴هـ ۱۹۸۴ )_

۵) مجموع فتاوی شیخ الاسلام أحمد بن تیمیة (۳\۱۵۱)

راځي نوحقيقي او مطلق مومن خو هغه دې چا سره چه د تصديق اواقرار سره سره اعمال هم وي.اوچا سره چه اعمال نه وي نوهغه مطلق مومن نه دې.بلکه مومن ناقص الايمان دې.والله اعلم بحقيقة الأمر.

[۳۰] حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْمُبَارَكِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ وَيُونُسُ عَنِ الْحَسَنِ عَنِ الْأَحْنَفِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ ذَهَبْتُ لِأَنْصُرَ هٰذَا الرَّجُلَ فَلَقِيَنِي أَبُو بَكْرَةَ فَقَالَ أَيْنَ تُرِيدُ قُلْتُ أَنْصُرُ هٰذَا الرَّجُلَ قَالَ ارْجِعْ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِذَا الْتَقَى الْمُسْلِمَانِ بِسَيْفَيْهِمَا فَالْقَاتِلُ وَالْمَقْتُولُ فِي النَّارِ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ هٰذَا الْقَاتِلُ فَمَا بَالُ الْمَقْتُولِ قَالَ إِنَّهُ كَانَ حَرِيصًا عَلَى قَتْلِ صَاحِبِهِ [۶۶۷۲،۶۳۸۱]

## رجال الحديث

**قوله: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْمُبَارَكِ:** دوی ابوبکرعبدالرحمن بن المبارک بن عبدالله بن عیشی طفاوی رحمه الله دی. داسماعیل بن علیه،حماد بن زید او یحیی القطان رحمهم الله وغیره نه دحدیث روایت کوی.ددوی نه په روایت کونکو کښې امام بخاری.امام ابوداود او نور لوئې محدثین رحمهم الله دی.

امام ابوحاتم رحمه الله د دوی په باره کښې فرمائی.چه دوی ثقه دی.

امام ابن حبان رحمه الله هم دوی په خپل کتاب الثقات کښې ذکرکړی دی.

په ۲۲۸ه یا ۲۲۹ه کښې وفات شوی وو.(۱) رحمه الله رحمة واسعة.

**قوله: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ:** دوی حماد بن زید بن درهم ازدی بصری دی.ددوی کنیت ابواسماعیل دې.اوددوی نیکه دسجستان نه په قید کښې راغلې وو.

په ۹۸ه کښې پیدا شوې وو.دایوب سختیانی.ثابت بنانی.عمروبن دینار .یحیی القطان .اوابن سیرین رحمهم الله نه علاوه د نورو ډیرو محدثینو رحمهم الله نه ئې علم حدیث حاصل کړې دې.او ددوی نه په روایت کونکوکښې سفیان ثوری .سفیان بن عیینه.عبدالله بن المبارک.یحیی القطان.اوامام وکیع رحمهم الله وغیره دی.

امام عبدالرحمن بن مهدی رحمه الله فرمائی.«الأئمة في الحديث أربعة ،الأوزاعي، ومالك بن أنس وسفيان الثوري وحماد بن زيد»

امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی.«حماد بن زيد أحب إلينا من عبدالوارث حمادبن زيد من أئمة المسلمين من أهل الدين والإسلام وهو أحب إلي من حماد بن سلمة»

---

(۱) تهذيب الكمال(۱۷\۳۸۲. ۳۸۴) وخلاصة تذهيب تهذيب الكمال للخزرجي (ص.۲۳۴) وتقريب التهذيب (ص.۲۴۹) رقم الترجمة (۳۹۹۶) وعمدة القاري(۱\۲۱۰)_

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائى.((حماد بن زيد فى أيوب أكبر من كل من روى عن أيوب))
امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائى.((حماد بن زيد بن درهم ويكنى أبا إسماعيل وكان عثمانياً وكان ثقة ثبتاً حجة كثير الحديث))
امام حماد بن زيدته بعضې كسانو ضريرليكلى دى.چه داول نه دوى نابينا وو.نودوى به ټول احاديث په يادو باندې اوږول.البته بعضې حضراتودا ليكلى دى چه په آخرى عمر كښې نابينا شوې وو.
حماد بن زيد رحمه الله ترشلوكالو پورې دايوب سختيانى رحمه الله سره وو. او دا هغوى نه به ئې فيض حاصلول. خالد بن خداش رحمه الله فرمائى.((كان حماد بن زيد من عقلاء الناس وذوى الألباب))
حضرت حمادبن زيد فرمائى.((لئن قلت،إن علياً أفضل من عثمان لقد قلت إن أصحاب رسول الله ﷺ قد خانوا))
دجمعې په ورځ په لسم رمضان ۱۷۹ه كښې وفات شوى وو.(۱)

**قوله: حَدَّثَنَا أَيُّوبُ:** دوى ايوب بن ابى تميمه كيسان سختيانى بصرى دى.دوى حالات وړاندې په كتاب الايمان كښې د((باب حلاوة الإيمان))لاندې تيرشوى وو.

**قوله: وَيُونُسُ:** دوى ابوعبيديونس بن عبيدالله بن دينار عبدى بصرى دى.دحضرت حسن بصرى، محمد بن سيرين،اوعطاء رحمهم الله وغيره به ئې دحديث روايت كولو.اود دوى نه هشيم، شعبه، يزيدبن زريع وغيره محدثينو رحمهم الله دحديث روايت كړې دې.
هشام بن حسان رحمه الله فرمائى.((ما رأيت أحدا يطلب العلم يريد به وجه الله تعالى إلا يونس بن عبيد))
امام احمد،ابوحاتم،اونورو عالمانو رحمهم الله ددوى توثيق كړې دې.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.((ثقة ثبت فاضل ورع)) په ۱۳۹ه يا ۱۴۰ه كښې وفات شوى وو.(۲) رحمه الله رحمة واسعة.

**قوله: عَنْ الْحَسَنِ:** دوى مشهورتابعى حسن بصرى رحمه الله دى.ددوى شجره نسب دا ده.
ابوسعيد الحسن بن ابى الحسن يساربصرى رحمه الله.
ددوى پلار يسار دحضرت زيدبن ثابت،يا دجابربن عبدالله ياد جميل بن قطبه يا دابواليسر مولى وو.ددوى د مور نوم خيره وو.هغه د ام المومنين حضرت ام سلمه رضي الله عنها ازاده كړې وينځه

---

(۱) تهذيب الكمال (۲۳۹\۷) وعمدة القارى (۲۱۰\۱) وتقريب التهذيب (ص.۱۷۸) رقم ۱۴۹۸) وخلاصة التهذيب للخزرجى(ص.۹۲)_

(۲) ددوى د تفصيلى واقعاتو اوحالاتو دپاره اوګورئ تهذيب الكمال(۵۱۷\۳۲، ۵۳۴) وعمدة القارى(۲۱۰\۱) وخلاصة الخزرجى (ص.۴۴۱) وتقريب التهذيب (ص.۶۱۳) رقم ۷۹۰۹)_

وه.(١) حضرت حسن بصرى رحمه الله چه كله پيدا شو.نو حضرت عمر رضي الله عنه په خلافت كښې دوه كاله باقي وو.د پې رودولو په زمانه كښې به اكثر داسې كيدل.چه ددوى مور به دځه كار دپاره بهرته تلې وه.اودوى به ژړل.نوحضرت ام سلمه رضي الله عنها به د لوبولو دپاره ددوى په خوله كښې خپل تې وركړلو.نوونيلى شي.چه په هغې كښې به پې راوتل.اودوى به څكل.دحضرت حسن بصرى رحمه الله د حكمت او فصاحت هم دا وجه خودلې شي.(٢)

حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمائي.چه مونږ په خراسان كښې جهاد كړې وو. په دې موقع مونږ سره درې سوه صحابه كرام رضي الله عنهم وو.دوى دحضرت عبدالله بن عمر ،حضرت انس،حضرت قيس بن عاصم رضي الله عنهم وغيره صحابه كرامو نه احاديث اوريدلى دى.(٣)

هشام بن حسان رحمه الله فرمائي.چه حضرت حسن بصرى رحمه الله يوسل ديرش صحابه كرام ليدلى وو.(٤)

دحضرت انس رضي الله عنه نه ديوې مسئلې په باره كښې تپوس اوشو.نوهغوى ورته اوفرمائيل.«سلوا مولانا الحسن» خلقو ورته اووئيل.«يا أباحمزة نسألك تقول: سلوا الحسن مولانا؟» مونږ ستاسو نه تپوس كوو.اوتاسو راته دحسن بصرى رحمه الله نه دتپوس كولو وائې.نوحضرت انس رضي الله عنه اوفرمائيل.«سلوا مولانا الحسن فإنه سمع وسمعنا فحفظ ونسينا»(٥)

امام محمدبن سعد رحمه الله فرمائي.«كان الحسن رحمه الله جامعاً عالماً رفيعاً فقيهاً ثقة حجة مأموناً ناسكاً كثير العلم فصيحاً جميلاً وسيماً»(٦)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.«ثقة فقيه فاضل مشهور»(٧)

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائي.«سيد التابعين فى زمانه بالبصرة كان ثقة فى نفسه حجة رأساً فى العلم والعمل عظيم القدر وقد بدت منه هفوة فى القدر لم يقصدها لذاتها فتكلموا فيه فما إلتفت إلى كلامهم لأنه لما حوقق عليه تبرأ منها... نعم كان الحسن كثير التدليس فإذا قال فى حديث عن فلان ضعف احتجاجه(٨) ولا سيما عمن قيل

---

(١) تهذيب الكمال (٦\٩٥-٩٧)_

(٢) المصدر السابق)_

(٣) تهذيب الكمال(٦\١٢٤)_

(٤) عمدة القارى (١\٢١٠)_

(٥) تهذيب الكمال(٦\١٠٤)_

(٦) طبقات ابن سعد(٧\١٥٧)_

(٧) تقريب التهذيب(١٦٠) رقم ١٢٢٧)_

(٨)كذا فى ميزان الإعتدال(١\٥٢٧) قال محققه هذا فى هه وفي س وخ. غير مقروءة ..قلت ولعل الكلمة ضعف أحتجاجه ..كذا فى هامش خلاصة الخزرجى (ص.٧٧) نقلاً عن الميزان )_

إنه لم يسمع منهم كأبي هريرة رضي الله عنه ونحوه، فعدوا ما كان له عن أبي هريرة رضي الله عنه جملة المنقطع» والله أعلم.[١] يعني حضرت حسن بصرى رحمه الله په بصره كښې دخپلې زمانې سيدالتابعين وو.في نفسه ثقه .اودعلم اوعمل په اعتبارسره ډير داوچتې اولونې درجې خاوند وو.دتقديرپه باره كښې ددوى نه بغيرد قصد نه يوه غلطى شوې و.خكه څه حضراتو ددوى په باره كښې كلام كړې دې دكوم چه څه اعتبارنشته.خكه چه دوى ت د دې خبرې تحقيق شوې وو.نوهغوى ښكاره د براءت اظهاركړې وو.البته دا خبره ده.چه حضرت حسن رحمه الله به ډيرزيات تدليس كولو.نوچه په كوم حديث كښې دوى داسې اووائى.«عن فلان»نوپه هغې باندې استدلال كمزورې كيږى.

بيا خاص كرچه كله عنعنه د داسې كس نه وى.دچا په باره كښې چه دحديث امامانو تصريح وى.چه د دوى دهغه سره ملاقات نه دې شوې.لكه حضرت ابوهريره رضي الله عنه وغيره.نوددوى هغه روايات كوم چه «عن أبي هريرة رضي الله عنه»په عنوان سره مروى دى.هغه په منقطعاتوكښې شماردى.

محمدبن سعد رحمه الله فرمائى.«وكان ما أسند من حديثه وروى عمن سمع منه فحسن حجة وما أرسل من الحديث فليس بحجة»[٢]

امام على بن المدينى رحمه الله فرمائى.«ومرسلات الحسن البصرى التى رواها عنه الثقات صحاح ما أقل ما يسقط منها»[٣] يعنى دحضرت حسن رحمه الله مرسلات كوم چه د ثقاتو نه مروى دى.هغه ټول صحيح دى.ډيركم په هغې كښې داسې دى.چه هغه ساقط اوناقابل احتجاج دى.

امام ابوزرعه رحمه الله فرمائى.«كل شئ قال الحسن: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم وجدت له أصلا ثابتا ما علا أربعة أحاديث»[٤]

يوخل دوى حديث اورول.اووې فرمائيل.«قال رسول الله صلى الله عليه وسلم»نوهيثم بن عبيد عرض اوكړو. «فلوكنت تسنده إلى من حدثك» كه تاسو دهغه كس ذكر هم كولو.چا چه تا ته حديث اورولى وى. نو ځومره به ښه وه.نوحضرت حسن بصرى رحمه الله ورته اوفرمائيل.«أيها الرجل ما كذبنا ولا كذبنا ولقد غزونا غزوة إلى خراسان ومعنا فيها ثلاث مائة من أصحاب محمد صلى الله عليه وسلم»[٥]

يونس بن عبيد رحمه الله فرمائى.چه ما دحضرت حسن بصرى رحمه الله نه تپوس اوكړو.«يا أبا سعيد، إنك تقول قال رسول الله صلى الله عليه وسلم وإنك لم تدركه؟» نوحضرت حسن رحمه الله اوفرمائيل «يا ابن أخي، سألتني عن

---

[١]) ميزان الإعتدال (١\٥٢٧)_
[٢]) طبقات ابن سعد(٧\١٥٧، ١٥٨)_
[٣]) تهذيب الكمال(٦\١٢٤) وتهذيب التهذيب(٢\٢٦٦)_
[٤]) تهذيب الكمال(٦\١٢٤)_
[٥]) تهذيب الكمال(٦\١٢٤)_

شئ ما سألنى أحد قبلك ولولا منزلتك منى ما أخبرتك إلى لى زمان كما ترى ، وكان لى عمل الحجاج — كل شئ سمعتنى أقول قال رسول الله ﷺ فهو عن على بن أبى طالب ﷺ غيرأنى لى زمان لا أستطيع أن أذكر عليا»[١]

حافظ ابن حجر رحمه الله نقل كوى.«قال البزاركان يروى عن جماعة لم يسمع منهم فيتجوز ويقول حدثنا وخطبنا يعنى قومه الذين حدثوا وخطبوا بالبصرة»[٢]

په ١١٠ﻫ كښې وفات شوې وو.لس كم سلو كالوته نزدې عمر ئې وو.په صحاح سته كښې ددوى روايات مروى دى.[٣] رحمه الله رحمة واسعة[٤]

**قوله عَنْ الْأَحْنَفِ بْنِ قَيْسٍ:** دوى ابوبحرد احنف بن قيس بن معاويه بن حصين تميمي سعدى دى.احنف د دوى لقب دې.اصلي نوم ئې ضحاك يا صخردې.

دنبى ﷺ زمانه ئې رالاندې كړې وه.خونبى ﷺ سره ئې صحبت نه دې شوې.البته د نبى ﷺ نه ددوى دپاره غائبانه دعا منقول ده.

ددې تفصيل دا دې.چه حضرت احنف بن قيس رحمه الله د حضرت عثمان رضي الله عنه په زمانه كښې طواف كولو،چه د بنوليث يوسړى ددوى لاس اونيولو.او ورته ئې اوونيل.«ألا أبشرك؟»آيا تاته زيرې نه دركوم.په دې باندې دوى اوفرمائيل. «بلى» نوهغه ورته اوونيل.تاته به ياد وى.كله چه نبى ﷺ زه ستاسو قوم بنو سعد ته د دعوت دپاره اوليږم.اوزه لاړم ستاسو قبيلې ته مې دعوت وركړو.نوتا اوونيل. «إنه ليدعوإلى خيروما أسمع إلا حسنا»زه چه نبى ﷺ ته راغلم.نو توله قصه مې ورته بيان كړه.نو نبى ﷺ اوفرمائيل.«اللهم اغفر للأحنف»احنف بن قيس رحمه الله فرمائى.«فما شئ عندى أرجى من ذلك»

حضرت احنف بن قيس رحمه الله په حلم كښې ډيرمشهور وو.كله چه دوى حضرت عمر رضي الله عنه ته راغلو.نوتريوكال پورې هغوى په ده باندې بنه ازميښتونه اوكړل .اوبه آخركښې ئې ورته اوونيل.ما په تاباندې يوكال ازميښتونه اوكړل. ستاسو ظاهرمې اوتلل.ماته په تاسوكښې صرف خيربه نظرراغلو.اميددې چه ستاسوباطن به هم د ظاهرپشان وى.

حاكم رحمه الله فرمائى.چه دوى «مروالروذ» فتح كړې وو.ددوى په لښكر كښې حضرت حسن بصرى اومحمد بن سيرين رحمهما الله هم وو.

ددوى دوفات په موقعه حضرت مصعب بن زبير رحمه الله رامنډې وهلې.اوتوره دهغوى په بدن

---

[١] المصدرالسابق)_

[٢] تقريب التهذيب(ص.١٦٠) رقم ١٢٢٧)_

[٣] المصدرالسابق)_

[٤] دحضرت حسن بصرى رحمه الله د تفصيلى حالاتو دپاره اوګورئ طبقات ابن سعد(١٥٦/٧، ١٧٨) وتهذيب الاسماء واللغات (١٦١/١١، ١٦٢) وسير أعلام النبلاء ( ٥٦٣/٤، ٥٨٨) وتهذيب الكمال(٩٥/٦، ١٢٦)_

پورې لګيدله. د هغوی په بدن باندې څه څادرهم نه وو اوبې اختياره به ئې ونيل.((ذهب اليوم الحزم والرأى))چه نن د احتياط او رائې خاتمه اوشوه
امام محمدبن سعد رحمه الله دوی د بصرې په طبقه اولی کښې شمار کړی دی. اوفرمائيلی ئې دی.((وكان ثقة مأمونا فى الحديث))دغه شان عجلی رحمه الله فرمائی. ((بصرى تابعى، ثقة))
په کال ۶۷هـ کښې وفات شوې وو.(١) رحمه الله رحمة واسعة.

**قوله: قَالَ ذَهَبْتُ لِأَنْصُرَ هٰذَا الرَّجُلَ:** احنف بن قيس رحمه الله فرمائی. زه ددې سړی د مدد دپاره لاړم.
ددې کس نه مراد حضرت علی رضی الله عنه دې. ځکه هم په صحيح بخاری کښې په کتاب الفتن کښې روايت دې.((أريد نصرة ابن عم رسول الله))(٢) اودمسلم په روايت کښې دی.((أريد نصر ابن عم رسول الله صلى الله عليه وسلم يعني عليا))(٣)
دا د جنګ جمل واقعه ده. کومه چه په ۳۶هـ کښې شوې وه.(٤)

**قوله: فَلَقِيَنِي أَبُوبَكْرَةَ:** ماته ابوبکره رضی الله عنه ملاؤ شو.

**قوله: حضرت ابوبکره رضی الله عنه:** دوی مشهور صحابی حضرت نفيع بن الحارث بن کلده رضی الله عنه دی. بعضې حضراتو نفيع بن مسروح رضی الله عنه خودلې دی.(٥)
دطائف دغزوې په موقعه باندې کله چه نبی اکرم صلى الله عليه وسلم اعلان اوکړو. چه دطائف کوم غلام چه مونږ ته راغلو. هغه به آزاد وی. نودوی د يوې چرخې (هغه څيزچه د کوهی نه پرې اوبه راويستې شی) په ذريعه د طائف د قلعې نه راکوزشو. چرخۍ ته په عربئ کښې ((بكرة)) وائی. ددې وجې د ابوبکره په کنيت سره مشهور شو.(٦)
امام احمد بن عبدالله عجلی رحمه الله فرمائی.((كان من خيار أصحاب النبی صلى الله عليه وسلم))(٧)
حافظ ابونعيم فرمائی.((كان رجلا صالحا ورعا))(٨)

---

(١) تهذيب الكمال(٢\٢٨٢. ٢٧٨) وخلاصة الخزرجی (ص.٤٤) وعمدة القاری(١\٢١١) وتقريب (ص.٩٦) رقم ٢٨٨)_
(٢) صحيح بخاری کتاب الفتن باب إذا إلتقى المسلمان بسيفيهما رقم ٧٠٨٣)_
(٣) صحيح مسلم کتاب الفتن وأشراط الساعة باب إذا توجه المسلمان بسيفهما رقم ٢٨٨٨)_
(٤) دتفصيل دپاره اوګورئ البداية والنهاية (٧\٢٣٠. ٢٤٥) إبتداء واقعة جمل)_
(٥) تهذيب الكمال(٣٠\٥) وسير أعلام النبلاء (٣\٥)_
(٦) المصدر السابق)_
(٧) تهذيب الكمال(٣٠\٦)_
(٨) المصدار السابق)_

حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی: ((وكان من فضلاء الصحابة رضي الله عنهم))[1]

حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی: ((لم ينزل البصرة أفضل من أبي بكرة وعمران بن حصين رضي الله عنهما))[2]

حافظ ذهبی رحمه الله لیکی: ((سكن البصرة وكان من فقهاء الصحابة رضي الله عنهم))[3]

حضرت ابوبکره رضي الله عنه به هم د نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم پشان هر وخت د دین دپاره فکر مند وو.

ددوی قول دي: ((إني أخشى أن أدرك زمانا لا أستطيع أن آمر بمعروف ولا أنهى عن منكر وما خير يومئذ))[4]

د ورع او احتیاط ئې دا کیفیت وو. چه زیاد یوځل دیوکس نه دهغه لرګی اوغوستل. هغه کس دخرڅولو نه انکار اوکړو. زیاد په زور باندې واخستل. اود بصرې دجمات په چبوتره کښې ئې اولګول. حضرت ابوبکره رضي الله عنه په هغې کښې ترهغه وخته پورې مونځ اونکړو. ترڅو پورې چه ئې هغه لرګی لرې کړی نه وو.[5]

دوفات په وخت کښې ئې وصیت لیکلې وو: ((هذا ما أوصى به نفيع الحبشي مولى رسول الله ﷺ وهو يشهد أن الله ربه، وأن محمداً نبيه، وأن الإسلام دينه، وأن الكعبة قبلته، وأنه يرجو من الله ما يرجوه المعترفون بتوحيده، المقرون بربوبيته الموقنون بوعده ووعيده، الخائفون لعذابه، المشفقون من عقابه، المؤملون لرحمته إنه أرحم الراحمين))[6]

په ۵۱ھ یا ۵۲ھ کښې وفات شوی وو. او ددوی د وصیت مطابق حضرت ابوبرزه اسلمی رضي الله عنه ددوی جنازه اوکړه.[7][8]

---

[1]) الإصابة (۵۷۲\۳)_

[2]) سیر أعلام النبلاء (۱۰\۳)_

[3]) سیر أعلام النبلاء (۶\۳)_

[4]) سیر أعلام النبلاء (۷\۳)_

[5]) سیر أعلام النبلاء (۷\۳)_

[6]) تهذیب الکمال (۸\۳۰)_

[7]) تهذیب الکمال (۹\۳۰) وتقریب التهذیب (ص.۵۶۵) رقم ۷۱۸۰)_

[8]) یوخبرداری: بعضې دنتیجې نه ناخبره خلقو دحضرت ابوبکره رضي الله عنه په یوحدیث کوم چه په صحیح بخاری وغیره کښې مروی دې. باندې تحقیق کړې دې. ((لن يفلح قوم ولو أمرهم إمرأة)) اودحضرت ابوبکره رضي الله عنه په حق کښې ئې د ډیرې زرورتیا نه کاراخستې دې. دوی ته ئې غیرعادل او فاسق وئیلی دی.

په اصل کښې ددې بنیاد یوه واقعه ده. چه خلاصه ئې دا ده. چه حضرت ابوبکره رضي الله عنه شبل بن معبد. اونافع بن الحارث د حضرت عمر رضي الله عنه مخامخ د مغیره بن شعبه رضي الله عنه خلاف ګواهي ورکړه. چه دوی د یوې ښځې سره زنا کړې ده. دری کسانوصحیح ګواهي ورکړه. البته چه زیادت ګواهي ورکوله نودځه شکونو اظهارئې اوکړو. په دې باندې حضرت عمر رضي الله عنه دحضرت زیاد نه سوا په باقی

دري كسانو باندي حد قذف جاري كړو بيا حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل كه تاسو توبه اوباسئ نوآئنده دپاره به زه ستاسوګواهي قبلوم كنى نه.نونافع او شبل بن معبد د توبې اظهاراوكړو او حضرت ابوبكره په خپل موقف باندې قائم وو اوهلته هغوى د توبې اظهار اونكړو

ددې واقعه په بنياد باندې ((عورت كى حكمرانى اوابوبرده كى روايت)) د بنځې حكمرانۍ او حضرت ابوبكره رضي الله عنه مصنف ليكى

قذف په شريعت كښې په يقين سره حرام دې په دې وجه دا ګناه كبيره ده دقاذف سزا اتيا كوړې دى.دده ګواهي هميشه دپاره مردود شى.اودې فاسق ګرځولې شى دې په دنيا اوآخرت كښې د دردناكې سزا مستحق وى البته دا چه توبه اوباسى.نودده ګواهي قبلولې شى اودې فاسق نشى ګڼرلې.خودامام ابوحنيفه رحمه الله مسلك دا دې چه دتوبې ويستلو نه پس هم دې مردود الشهادت دې.البته دې به فاسق نشى ګڼرلې

بيا دخوآياتونوذكر كولو نه پس ليكى حضرت عمر رضي الله عنه دشريعت اسلامى عين مطابق د ټولوخلقو په وړاندې چه په هغوى كښې دحضرت على رضي الله عنه غوندې دفقه ادراك كونكې صحابه هم موجود وو دمقدمې سماعت كړې وو.كله چه ګواهي پوره نشوه.نود قرآن پاك د نص قطعى مطابق ئې په دروغه تهمت لګونكوته سزا وركړه.اوپه هغوى ئې توبه اوويستله چاچه توبه اوويسته دهغوى ګواهي آئنده دپاره مقبوله شوه.اوچاچه د توبې ويستلو نه انكار اوكړو نودهغوى ګواهي مردوده شوه.دقران احكام ښكاره دى.په كوموكښې چه د تاويل څه ګنجائش نشته.

وړاندې ليكى.دحضرت ابوبكره رضي الله عنه واقعه په تاريخ اسلام كښې منفرد حيثيت لرى.چونكه هغه د توبې ويستلو نه انكاراوكړو.نوپه هغه باندې دقرآن حكيم بيان كړې دري واړه سزاګانې نافذ كيږى.يعنى اتيا كوړې.دشهادت مردود كيدل.اوفاسق ګرځول.دحديث د راوى دپاره عدالت شرط دې اودمحدثينو رحمهم الله په نيز ټول صحابه كرام رضي الله عنهم عدول دى.خوفسوق د عدل ضد دې.دحضرت عمر رضي الله عنه د فيصلې په موجودګۍ كښې.اود قرآن حكيم د نص قطعى مطابق حضرت ابوبكره عدول نه پاتې كيږى

بيا ..دبحث خلاصه.. په عنوان سره ليكى.

ددې حديث اولنې راوى حضرت ابوبكره رضي الله عنه د قرآنى هداياتو عين مطابق حضرت عمر رضي الله عنه مردودالشهادة ګرځولې وو يعنى ددوى ګواهي ئې هميشه دپاره رد كړه اود قرآنى تعليمات مطابق هغه عادل هم پاتې نشو

دلته دغورقابله خبره دا ده چه مصنف مذكور د ذكرشوې واقعه په بنياد د نبى صلى الله عليه وسلم صحابى فاسق ګرځولې دې اوبيا دهغوى دعدالت باقى نه پاتې كيدو چه كومه نظريه ئې پيش كړې ده.هغه تركوم حده پورې صحيح ده؟

حقيقت دا دې چه عصمت خود حضرات انبياء عليهم السلام سره خاص دې حضرات صحابه كرام رضي الله عنهم دپاره عصمت نشته ددوى نه ګناه صادريدې شى اويقينى ده چه د بعضې صحابو رضي الله عنهم نه لونې ګناهونه صادر شوى دى خو تر نن ورځې پورې دهغه ګناهونو د صادريدو په وجه نه خو چا د نبى صلى الله عليه وسلم په صحابى باندې د فاسق حكم لګولې دې.اونه دعلوم حديث په امامانو كښې د كليه نه دچا صحابى استثناء كړې ده

دحضرات صحابه كرامو رضي الله عنهم عدالت اجماعى دې په دوى كښې دچا استثناء نشته.په دې پاكو نفسونوباندې يا په دوى كښې په يوصحابى رضي الله عنه باندې د فاسق حكم لګول يا دفسق تهمت

لګول خپل آخرت بربادول دی.

د دې وجه دا ده چه د حضرات صحابه کرامو ﷺ تعدیل خو د الله تعالی د طرفه دې. حافظ سیوطی ﷫ فرمائی. ((الصحابة كلهم عدول من لابس الفتن وغيرهم بإجماع من يعتدبه قال تعالى ﴿ وكذلک جعلناكم أمة وسطة ﴾ أی عدولاً وقال تعالی ﴿ كنتم خير أمة أخرجت للناس .. ﴾ والخطاب فيها للموجودين حينئذ .. (تدريب الراوی (۲\۲۱٤)).

علامه ابن اثیرجزری ﷫ فرمائی دغه شان په قرآن کریم کښې ارشاد دې ((الصحابة رضى الله عنهم أجمعين جميعهم عدول بتعديل الله تعالى ورسوله ﷺ لا يحتاجون إلى بحث عن عدالتهم وعلى هذا القول معظم المسلمين من الأئمة والعلماء من السلف والخلف (جامع الأصول (۱\۱۳۳))

امام نووی فرمائی.((ولهذا إتفق أهل الحق ومن يعتد به فی الإجماع علی قبول شهاداتهم و رواياتهم وكمال عدالتهم رضی الله عنهم أجمعين (شرح نووی علی صحيح مسلم (۲\۲۷۲)).

دغه شان په قرآن کریم کښې ارشاد دې ﴿ محمد رسول الله والذين معه أشداء على الكفار رحماء بينهم.. وعدالله الذين آمنو وعملوا الصالحات منهم مغفرة وأجراً عظيما ﴾ (الفتح :۲۹)..

دغه شان ارشاد دې.﴿ والسابقون الأولون من المهاجرين والأنصار والذين اتبعوهم بإحسان رضی الله عنهم ورضوا عنه وأعد لهم جنات تجری تحتها الأنهار خالدين فيها أبداً ذلک الفوز العظيم ﴾ التوبة:۱۰۰)..

دغه شان ارشاد دې.﴿ لا يستوی منكم من أنفق قبل الفتح وقاتل أولئک أعظم درجة من الذين أنفقوا من بعد وقاتلوا. وكلاً وعدالله الحسنى ﴾ (الحديد:۱۰)..

په دې آیتونو کښې ټول صحابه کرام ﷺ جنتیان ګرځولی شوی دی.خکه چه په یویل آیت مبارکه کښې دی.

﴿ إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُم مِّنَّا الْحُسْنَى أُولَئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُونَ۞لَا يَسْمَعُونَ حَسِيسَهَا وَهُمْ فِی مَا اشْتَهَتْ أَنفُسُهُمْ خَالِدُونَ۞لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْأَكْبَرُ وَتَتَلَقَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ هَذَا يَوْمُكُمُ الَّذِی كُنتُمْ تُوعَدُونَ ﴾ (الأنبياء:۱۰۱و ۱۰۳).

نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی. ((لاتسبوا أصحابی فوالذی نفسی بيده لو أن أحدكم أنفق مثل أحد ذهباً ما أدرک مد أحدهم ولا نصيفه صحيح بخاری (۱\۵۱۸) كتاب فضائل أصحاب النبی ﷺ.. باب قول النبی ﷺ لوكنت متخذاً خليلاً رقم ۳۶۷۳)..

دنبی ﷺ ارشاد دې.((إذا رأيتم الرجل ينتقص أحدا من أصحابی فقولوا لعنة الله على شركم)) (جامع ترمذی كتاب المناقب باب بلا ترجمة قبل باب فضل فاطمة بنت محمد ﷺ (رقم ۳۸۶۶))..

بیا دامت په دې باندې هم اجماع ده.چه چا ته د دې خبرې اجازت نشته چه د صحابه کرامو تنقیص یا په هغوی کښې نقص اولټوی بلکه د هغوی د محاسنو ذکرکولو او هغوی په خپل مینځ کښې د جنګونو نه نظراړول ضروری دی.

امام ابوزرعه ﷫ فرمائی. ((إذا رأيت الرجل ينتقص أحداً من أصحاب النبی ﷺ فاعلم أنه زنديق وذلک أن الرسول ﷺ حق والقرآن الكريم حق وما جاء به حق وإنما أدى إلينا ذلک كله :الصحابة وهولاء الزنادقة يريدون أن يجرحهم ليبطلوا الكتاب والسنة فالجرح بهم أولى)..

دغه شان امام احمد رحمه الله فرمائي ((ثم أصحاب رسول الله ﷺ بعد هولاء الأربعة خير الناس لا يجوز لأحدأن يذكر شيأ من مساويهم ولا يطعن على أحد منهم بعيب ولا نقص فمن فعل ذلک قد وجب تاديبه وعقوبته ليس له أن يعفو عنه بل يعاقبه ويستتبه فمن تاب قبل منه وإن ثبت أعاد عليه العقوبة وخلده فى الحبس حتى يموت أو يراجع))

شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله ليکلى دى. ((وهذا مما لا نعلم فيه خلافاً بين أهل الفقه والعلم من أصحاب رسول الله ﷺ والتابعين لهم بإحسان وسائرأهل السنة والجماعة فإنهم مجمعون على أن الواجب الثناء عليهم والإستغفار لهم والترحم عليهم والترضي عنهم وإعتقاد محبتهم وموالاتهم وعقوبة من أساء فهيم القول _ الصارم المسلول على شاتم الرسول (ص.۵۸۰) الأدلة من السنة على عدم جواز سب الصحابة رضي الله عنهم ).

امام تيميه رحمه الله دټول اهل سنت والجماعت عقيده بيانوى.اوليکى.

((ويقولون هذه الآثار المروية فى مساويهم منها ما هو كذب ومنها ما زيد فيها ونقص وغير وجهه والصحيح منه هم فيه معذورون إما مجتهدون مصيبون .وإما مجتهدون مخطئون وهم مع ذلک لا يعتقدون أن كل واحد من الصحابة معصوم من كبائر الإثم و صغائره بل يجوز عليهم الذنوب فى الجملة ولهم من الفضائل والسوابق ما يوجب مغفرة ما يصدر منهم حتى إنهم يغفر لهم من السيئات ما لا يغفر لمن بعدهم))

اوترکومې پورې چه د ګواهئ ورکولو واقعه تعلق دې.نوددې په باره کښې وئيلى شى.چه دحضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنه نه دا ګناه نه وه شوې.خوچه چا ليدلې وو.هغه غلط شوى وو.په هغوى کښې نافع اوشبل بن معبد خپله ګواهى دروغ کړه.خوحضرت ابوبکره رضي الله عنه ته په خپل موقف باندې دومره يقين وو.چه هغوى خپل ځان دروغژن نکړلو.هم دا وجه ده.چه حافظ ابن حجر رحمه الله ليکى.((لم يقبل منه أبوبكرة ما أمره به لعلمه بصدقه عند نفسه والله أعلم )) فتح البارى (۵\۲۵۸) كتاب الشهادات باب شهادة القاذف والسارق والزانى)) حدقذف د شهادت د نصاب نه پوره کيدو په وجه باندې جارى شو.هم دا وجه وه.چه حضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنه دحضرت عمر رضي الله عنه په خدمت کښې عرض اوکړو. ((إشفنى من الأعبد)) يعنى ددې غلامانو نه بدله واخله.اوزړه يې يخ کړه.نوحضرت عمر رضي الله عنه ورته اوفرمائيل ((أسكت أسكت الله فاك. والله لو تمت الشهادة لرجمناک بأحجارک (البداية والنهاية (۸۲\۷)_

دکومې واقعه په بيان چه مصنف مذکور دوى لره مردود الشهادة ګرځولې وو ددې واقعه روايت کونکى روايات څه وائى.لږ خودا هم اوګورئ.

دروايت په آخرى الفاظو باندې غوراوکړئ.حضرت سعيد بن مسيب رحمه الله چه دا واقعه ذکرکوى.نود حضرت ابوبکره دانکار ذکرکولونه پس په آخر کښې فرمائى. دا په ظاهره هم په دې خبره باندې تنبيه ورکولوپاره ده.چه څوک ددې واقعه په وجه په هغوى باندې طعن اونکړى

دې طرف ته د اشارې کولوپاره حافظ ابن کثير رحمه الله ددې واقعه نقل کولونه پس ليکى

داخبره دې ښکاره وى.چه حضرت ابوبکره رضي الله عنه دلته دحضرت عمر رضي الله عنه په وړاندې دخپل ځان دروغژن کولونه انکارکړې وو. خوددې نه داچرته لازميږى.چه هغوى به توبه نه وى کړې.مطلب وائى بيا دا چه کله مونږ د معزز ترين کس په باره کښې څه الزام واورو. نوبيا خواول دهغې د انکار کوشش کوو اوکه يقينى طور ثابته شى.نوبيا دبهتر نه بهتر تاويل کوو.آيا د رسول الله ﷺ د دې

صحابى ﷺ دومره حق هم نشته چه مونږ په هغوی باندې حسن ظن اوکړو اودهغوی د څه لغزش څه مناسب تاویل اوکړو حافظ ابن حجرهیثمی مکی ﷺ فرمائی ((والواجب أيضاً على كل من سمع شيأ من ذلك أن يتثبت فيه ولا ينسبه إلى أحد منم بمجرد رؤيته في كتاب أو سمعه من شخص بل لا بد أن يبحث عنه حتى يصح عنده نسبته إلى أحدهم فحينئط الواجب أن يلتمس أحسن التاويلات (الصواعق المحرقة ص.١٢٩))..

ددې نه علاوه محقق مذکور دې خبرې ته هم خیال نه دې کړې چه دا واقعه په ۱۷ھ کښې واقع شوې وه.اودحضرت ابوبکره وفات د صحیح قول مطابق په ۵۲ھ کښې شوې وو آیا په دې دومره موده کښې به هغوی ته د توبې توفیق نه وی ملاؤ شوې.چا څه ښه وئیلی دی

وعين الرضا عن كل عيب كليلة كما أن عين السخط تبدي المساويا **

افسوس چه محقق مذکور هغه وصیت دنظرونه اندې ساتلې وو.کوم چه حضرت ابوبکره ﷺ په آخری وخت کښې لیکلې وو.

((هذا ما أوصى به نفيع الحبشي مولى رسول الله ﷺ وهو يشهد أن الله ربه وأن محمدا نبيه وأن الإسلام دينه وأن الكعبة قبلته وأنه يرجو من الله ما يرجوه المعترفون بتوحيده والمقرون بربوبيته. الموقنون بوعده ووعيده الخائفون لعذابه و المشفقون من عقابه والمؤملون لرحمته إنه أرحم الراحمين (تهذيب الكمال (٨\١٣٠))..

په آخرکښې مونږ دحضرات صحابه کرامو د عدالت په باره کښې د مفتی اعظم پاکستان مولانامفتی محمد شفیع قدس الله روحه یو جامع او قول فیصل ذکرکوو.دوی په معارف القرآن کښې ذکر کوی. (معارف القرآن (٨\٦١٠و ١٠٧) کښې فرمائی.

علامه آلوسی په روح المعانی کښې فرمانیلی دی.په دې باره کښې حق خبره هغه ده کوم طرف ته چه جمهور عالمان ﷺ تلی دی.چه صحابه کرام ﷺ معصوم نه دی ددوی نه گناه کبیره هم صادریدې شی.کوم چه فسق دې. اودهغه گناه په وخت کښې به دهغوی سره هم هغه معامله کولې شی.دکومې چه هغوی مستحق وی.یعنی شرعی سزا به پرې جاری کولې شی.اوکه کذب وی. نوددوی شهادت به رد کولې شی.خود اهل سنت والجماعت عقیده د قرآن اوسنت د نصوصو په وجه دا ده.چه دصحابی نه گناه کیږی.لیکن داسې صحابی ﷺ نشته.چه د گناه نه د توبې ویستو په وجه پاك شوې نه وی.قرآن کریم علی الاطلاق د دوی په باره کښې د رضی الله عنهم فیصله اوروليې ده.فرمائی. ((رضي الله عنهم ورضوا عنه))اودالله تعالی رضا د گناهونودمعافئ نه بغیرنشی راتلې. لکه چه قاضی ابویعلی ﷺ فرمانیلی دی.چه رضا دالله تعالی یو صفت قدیمی دی.هغه ددې اعلان صرف دهغه چا دپاره کوی.دچا په باره کښې چه هغه پیژنی.چه د دوی وفات به په موجبات رضا باندې وی. (كذا في الصارم المسلول لابن تيمية)

خلاصه دا چه د صحابه کرامو ﷺ په عظیم الشانه ډله کښې د یوڅو په شمیرکسانو نه گناه صادره شوې هم ده.خوهغوی ته سمدستی د توبې توفیق هم نصیب شوې دې.الله تعالی دنبی ﷺ د صحبت په وجه هغوی داسې گرخولی وو چه شریعت دهغوی طبیعت جوړ شوې وو.خلاف شرع څه کاریاگناه صادریدل به ډیرشاذ اونادر وو.دهغوی نیك اعمال.په نبی کریم ﷺ او دین اسلام باندې خپل خانونه قربانول اوپه هرکارکښې دالله تعالی اودهغه د رسول اتباع دهغوی د ژوند وظیفه وه

**قوله** فَقَالَ أَيْنَ تُرِيدُ: حضرت ابوبكره رضي الله عنه تپوس اوكړو. دكوم ځائې اراده دې ده؟

**قوله** قُلْتُ أَنْصُرُ هٰذَا الرَّجُلَ: ما ورته اووئيل. د ددې كس د مدد په اراده باندې روانې يم

**قوله** قَالَ ارْجِعْ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِذَا الْتَقَى الْمُسْلِمَانِ بِسَيْفَيْهِمَا إلخ: هغوى راته اوفرمائيل. واپس شه. ځكه چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دى. چه فرمائيل ئې. چه كله دوه مسلمانان په خپل مينځ كښې تورې راوباسي. نوقاتل اومقتول د دواړو ځائې جهنم دې.

دحديث باب نه استدلال په دې طريقه دې چه دوه مسلمانان چه په خپل مينځ كښې اختې دى. د گناه كبيرې ارتكاب كوى. خوددې باوجود نبى كريم ﷺ ورته مسلمانان وائى نو د معتزلو خيال هم غلط شو. چه سړې د گناه كبيرې په ارتكاب سره د ايمان نه خارجيږى او د خوارجو خيال هم غلط ثابت شو. چه سړې كافر كيږى. اودمرجئو ترديدخودې ځكه چه دوى معصيت مضر نه گڼرى. نوپه حديث كښې داور وعيد ذكرشوې دې.

---

اودهغوى داسې عبادات كول چه دهغې نظيره پخوانو امتونوكښې نه ملاويږى. ددې بې شميره نيكواعمالواوفضائلو كمالاتو په مقابله كښې كه په ټول عمركښې دهغوى نه يوه نيمه گناه ځرگنده شى. هغه پخپله ختموى.

بله دالله تعالى او د هغه د رسول ﷺ محبت او عظمت لږ د معمولى گناه په وخت كښې د هغوى خوف او خشيت او سمدستي توبه ويستل بلكه خپل ځان سزا ته وړاندې كول كله خپل ځان د مسجد نبوى په ستن پورې تړل. وغيره د حديثو په رواياتو كښې معروف او مشهور دى. اود حديث په حكم د گناه نه توبه ويستونكې داسې دې. چه ده هډو گناه كړې نه وى. د قرآن پاك د ارشاد مطابق ((نيك اعمال او حسنات پخپله د گناهونو دپاره كفاره گرځى ((إن الحسنات يذهبن السيات)) بيا خصوصا چه د هغوى نيكئ د عامو خلقو پشان نه وى. بلكه د هغې دا حال وى. كوم چه ابوداود او ترمذى د حضرت سعيد بن زيد نه نقل كړى دى ((والله لمشهد رجل منهم مع النبى ﷺ يغبر فيه وجهه خير من عمل أحدكم ولو عمّر عمر نوح)) په الله قسم په دوى كښې د يو كس د نبى ﷺ سره په جهاد كښې شريكيدل. چه په هغې كښې د هغه په مخ باندې گرد غوړزيدلې وى ستاسو د ټول عمر دعبادت او طاعت نه غوره دې. اگرچه ده ته دنوح عليه السلام عمر ملاؤ شى ځكه چه دهغوى نه د گناه د صادريدو په وخت كښې هغوى سره هم د هغه سزا معامله كولې شوه كومه چه د دغه جرم دپاره وه خو ددې باوجود روسته چا دپاره دا جائز نه دى چه په هغوى كښې چاته منافق اووائى. ځكه كه د نبى ﷺ په زمانه كښې د يو صحابى نه يوه گناه موجب فسق هم شوې وى اوپه هغه وخت كښې هغه ته فاسق هم وئيلې شوى وى خو ددې نه دا جواز نه معلوميږى چه هغه فسق دهغه دپاره جارى اوگڼرلې شى او معاذ الله فاسق ورته اووئيلى شى (كذا فى الروح).

اللهم إهدنا الصراط المستقيم ،وارزقنا حب رسولك العظيم.عليه أفضل الصلوات والتسليم.وحب أصحابه خيرة الخلق بعد الأنبياء وأحشرنا معهم برحمتك يا أرحم الراحمين أمين.)_

**كه په مسلمانانو كښې اختلاف پيدا شي نواعتزال اختيارول پكار دى اوكه يوې الى سره كيدل؟**
ددې حديث نه معلومه شوه چه دحضرت ابوبكره رضی الله عنه رائې دا وه چه كله مسلمانان په خپل مينځ كښې مختلف شي نودتولونه جدا كيدل پكار دى په دې مسئله كښې اختلاف دې.
دصحابه كراموؓ يوه لويه ډله حضرت سعدبن ابى وقاص، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت ابوبكره، حضرت محمد بن مسلمه، حضرت ابوسعيد خدرى، او حضرت عمران بن حصين رضی الله عنهم ددوى رائې دا ده چه مطلقاً خانله اوسيدل پكار دى.
بيا په دې كښې اختلاف دې چه مدافعت دې كولې شي كه نه؟ دحضرت ابوبكره رضی الله عنه دا رائې ده چه مدافعت دې هم نشى كولې. اودحضرت عمران بن حصين. اوحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما رائې دا ده چه مدافعانه جواب دې وركړې شي.
دغه شان په دوى كښې د يوې ډلې رائې دا ده چه په كورونوكښې دې كينى. او بعضو راې دا ده چه په كوم ښاركښې فتنه وى، هغه دې پريږدى. اوبل خائې ته دې لاړ شى.(۱)
خود جمهورصحابوؓ اوتابعينو رحمهم الله رائې دا ده چه كه محق اومبطل كښې امتياز نه وى، نوپه هغه وخت كښې هم دا طريقه اختياروول پكار دى. هيڅ چا سره ډله كيدل نه دى پكار. اوكه دحق اوباطل امتياز وى. نواهل حق سره دې ملګرې شى. اواهل باطل سره دې قتال اوكړې شى. ځكه چه الله تعالى فرمائيلى دى. ﴿فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّىٰ تَفِيءَ إِلَىٰ أَمْرِ اللَّهِ﴾(۲)
اوترڅوپورې چه د منعې احاديث دى. په كوموكښې چه دقتال نه منع شوې ده. نوهغه خويا دحق اوباطل په عدم امتياز باندې محمول دى. اويا په دې خبره محمول دى چه په فريقينو كښې يوفريق هم د دينى مقصد دپاره نه جنګيږى.(۳)
**ايا د جمل په واقعه كښې صحابه كرامؓ د دنيوى مقصددپاره جنګيدل** دلته اشكال دا دى چه حضرت ابوبكره رضی الله عنه حضرت احنف بن قيس رحمه الله كوم چه دحضرت على رضی الله عنه د مدد دپاره روان وو. حضرت ابوبكره رضی الله عنه ورته دنبى ﷺ دغه ذكرشوې حديث واوروو. اوهغه ئې منع كړلو. حالانكه هلته يوطرف ته حضرت على رضی الله عنه او بل طرف ته حضرت عائشه حضرت طلحه، اوحضرت زبيرؓ وو. ښكاره ده چه په حديث باب كښې كوم وعيد بيان شوې دې. دهغې نه هغه خلق مراد دى. ځوك چه د نفسانى اغراضو دپاره قتال كوى. اودځه دنياوى مقصد د حاصلولودپاره جنګيږى. ذكرشوى صحابه كرامؓ هرګز ددې حديث مصداق نه دى. ځكه چه حضرت على رضی الله عنه هم د انفع للاسلام او اصلح للدين دپاره جنګيدلو. اوددوى مقابل حضرت عائشه. حضرت طلحه او حضرت زبيرؓ هم مقلد د اسلام اصلاح او خير

---

(۱) عمدة القارى(۱\۲۱۲) وفتح البارى(۱۳\۳۱) كتاب الفتن باب تكون فتنة القاعد فيها خيرمن القائم (۱۳\۳۳، ۳٤) كتاب الفتن باب إذا إلتقى المسلمان بسيفهما وشرح نووى على صحيح مسلم (۲\۳۸۹) كتاب الفتن وأشراط الساعة )_
(۲) الحجرات:۹)_
(۳) عمدة القارى(۱\۲۱۲) وفتح البارى(۱۳\۳۱، ۲۳، ۳٤)_

وو څه ذاتي غرض يا دنياوي فائده نه وه.نوسوال دا دې چه بيا حضرت ابوبكره رضی الله عنه دوی نه ولې د واپس كېدو حكم كوی اوپه استدلال كښې حديث مذكور پيش كوی
ددې جواب دا دې چه وړاندې د حضرت ابوبكره رضی الله عنه مسلك خودلې شوې دې چه هغوی د فتنې په موقعه د پوره اعتزال قائل وو حضرت ابوبكره رضی الله عنه احنف بن قيس رحمه الله ته دا حديث ددې دپاره واورولو.چه ددې د ظاهری الفاظو نه مرعوب شی اوپه دې جنګ كښې د شركت اراده پريږدی
دحضرت ابوبكره رضی الله عنه مقصد هرګز دا نه وو چه دكوموكسانو په مينځ كښې دا جنګ كيږی هغوی ټول ددې حديث مصداق دی.بلكه د هغوی مقصد دا وو چه په دې جنګ كښې څومره كسان شريكيږی.نوهومره به ددې جنګ اور خوريږی اوپه نقصاناتوكښې به زيادت كيږی.نوزيات نه زيات كوشش دې د دې خبرې اوكړی شی چه خلق په دې كښې شريك نشی.چونكه احنف بن قيس رحمه الله نې په دې جنګ كښې د شركت نه منع كول غوښتل.نوځكه نې ورته د نبی صلی الله علیه وسلم داسې الفاظ بيان كړل.چه هغه واوری.اودې سمدستی مرعوب شی اوپه جنګ كښې د شركت كولونه منع شی
اوترڅوپورې چه ددې خبرې تعلق دې چه دجنګ جمل شركاء ددې حديث مصداق وو اوكه نه؟ نودا بيخی بله خبره ده.حضرت ابوبكره رضی الله عنه نبه پيژندل.چه دوی ددې حديث مصداق نه دی.دغه شان هغوی ته ددې خبرې هم پوره علم وو چه حضرت احنف بن قيس رحمه الله به هم دا غلطی نه كوی.چه دا حضرات به ددې حديث مصداق اوګڼړی.اوحقيقت هم دا دې چه هغوی دغه حضرات ددې حديث مصداق نه وو ګڼړلی.ځكه چه په جنګ جمل كښې خوهغوی دهيڅ ولې سره شريك نشو.خوچه كله د جنګ صفين واقعه راغله.نوحضرت احنف بن قيس رحمه الله په هغې كښې شريك شو.اودحضرت علی رضی الله عنه سره ملګرې شو اودحضرت معاويه رضی الله عنه سره نې قتال اوكړو.نومعلومه شوه چه هغوی هم دا حضرات ددې حديث مصداق نه ګڼړل.()

**دصحابو رضی الله عنهم د مشاجراتو په باره كښې د امت موقف** دحضرات صحابه كرامو رضی الله عنهم په مينځ كښې چه كوم واقعات پيښ شوی وو د هغې په باره كښې د اهل السنت والجماعت موقف دا دې چه اول خودې دغه واقعات د طعن او تشنيع په حيثيت سره نشی بيانولې اوبيا دې د دغه حضراتو په باره كښې حسن ظن ساتلې شی اودهغوی نه چه كوم جنګ صادرشوې دې دهغې په باره كښې دې تاويل كولې شی چه هغوی دګناه په قصد يا د څه دنياوی مقصد دپاره جنګ نه وو كړې.بلكه د ټولو وړاندې د دين ترقی وه.ددې وجې په هغوی باندې قتال لازم شوې وو په هغوی كښې يوفريق مصيب وی اوبل فريق مخطی معذور.ځكه چه د اجتهاد نه پس داداسې خطاء شوه چه په هغې باندې ګناه خو لويه خبره

) فتح الباری(۱/۸۶) وارشاد الساری( ۱/۱۱۷)_

ده بلكه اجر ملاويږي.(١)

بيا دامام طبرى رحمه الله رائې خوداده چه په دوى كښې محق څوك وو اومخالف څوك وو.په دې كښې توقف كول پكار دى ديوتعين نه دى كول پكار.

خودجمهور رحمهم الله رائې دا ده چه په تعين كښې څه حرج نشته دواړو ډلو اجتهاد كړې وو.او حضرت على رضي الله عنه په خپل اجتهاد كښې په حق وو اود دوى مخالفين په خطاء وو (٢)والله أعلم.

**قوله فَالْقَاتِلُ وَالْمَقْتُولُ فِي النَّارِ**: قاتل اومقتول دواړه به جهنم ته ځى

قاضى عياض رحمه الله فرمائى چه داهل السنت والجماعت په نيزددې مطلب دا دې. كه الله تعالى سزا وركول غواړى.نو سزا وركولې شى.ددې دواړو اصل بدله هم دا ده دا بيله خبره ده كه الله تعالى دواړه معاف كوى.نومعاف كولې شى.(٣)

بيا «فالقاتل والمقتول فى النار» په هغه صورت محمول دې چه دتاويل شائغ نه بغيرقتال وى.مثلاً څه ګناه په كار يا په داسې بله معامله باندې قتال وى. نودا حكم دې.(٤)

**قوله فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ هَذَا الْقَاتِلُ فَمَا بَالُ الْمَقْتُولِ**: ماعرض اوكړو اې رسول الله دقاتل جهنم ته تلل خو په ذهن كښې راځى.خو مقتول ولې جهنم ته غورځولې شى؟

**قوله قَالَ إِنَّهُ كَانَ حَرِيصًا عَلَى قَتْلِ صَاحِبِهِ))**:(٥) نبى ﷺ اوفرمائيل هغه دخپل ملګرى دقتل كولو كلك قصد كړې وو.

ددې نه معلومه شوه.چه لكه څنګه د معصيت ارتكاب د ګناه موجب دې. دغه شان كلكه اراده هم موجب د مواخذه ده.او آيت كريمه ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ﴾(٦)نه هم دا معلوميږى.

---

(١) په دې كښې هغه حديث ته اشاره ده چه مجتهد اجتهاد اوكړى اودې حق ته اورسيدلو نوده دپاره دوه اجرونه دى.اوكه په خپل اجتهاد كښې خطاء شو.نودده د كوشش اوسعى يو ثواب ورته بيا هم ملاويږى كما فى كتب أصول الفقه فى جوازالإجتهاد.ازمترجم شاه فيصل)_

(٢) عمدة القارى(١١\٢١٢) وشرح نووى على صحيح مسلم (٢\٢٧٢) كتاب فضائل الصحابة رضي الله عنهم (٢\٣٩٦) كتاب الفتن وأشراط الساعة)_

(٣) عمدة القارى(١\٢١٢)_

(٤) عمدة القارى(١\٢١٢) وإرشاد السارى(١\١١٧)_

(٥) الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى كتاب الديات باب قول الله تعالى: «ومن أحياها» رقم ٦٨٧٥) وفى كتاب الفتن باب إذا إلتقى المسلمان بسيفيهما رقم ٧٠٨٣ ومسلم فى صحيحه (٢\٣٨٩) كتاب الفتن وأشراط الساعة والنسائى فى سننه (٢\١٧٥) كتاب المحاربة باب تحريم القتل وأبوداود فى كتاب الفتن باب النهى عن القتال فى الفتنة رقم ٤٢٦٨) وابن ماجه فى سننه فى كتاب الفتن باب إذا إلتقى المسلمان بسيفيهما رقم ٣٩٦٥)_

(٦) النور: ١٩_

امام نووی رحمه الله دامام مازری رحمه الله نه نقل کړی دی.هغوی فرمائی.چه دقاضی ابوبکربن الطیب رحمه الله مذهب هم دا دې.که د ګناه اراده په زړه کښې پخه وی نوبیه دې باندې مواخذه شته.اوترڅوپورې چه په حدیث کښې د «إن الله تجاوز لی عن أمتی ما وسوست به صدورها مالم تعمل أوتکلم»(۱) دغه شان بل حدیث «إذا هم عبدی بسیئة فلا تکتبوها علیه فإن عملها فاکتبوها سیئة وإذا هم بحسنة فلم یعملها فاکتبوها حسنة فإن عملها فاکتبوها عشرا»(۲) اودغه شان دنورو احادیثو تعلق دې نودا ټول احادیث په دې صورت باندې محمول دی.چه قصد کلک نه وی.دقصد نه بغیر ئې خیال په زړه کښې تیرشی.(۳)امام مازری رحمه الله فرمائی چه دا د قاضی ابوبکر رحمه الله مسلك دې حالانکه ډیرفقهاء اومحدثین رحمهم الله د دوی مخالفت کړې دې اوهغوی د ذکرشوو احادیثو په ظاهرباندې استدلال کړې دې اودا مسلك ئې اختیارکړې دې چه ترڅو پورې فعل صادر شوې نه وی.نو صرف خیال او عزم باندې مواخذه نشته.(۴)

قاضی عیاض رحمه الله فرمائی.چه دعامة السلف.فقهاؤ .محدثینواواکثراهل علم مسلك هم هغه دې.کوم چه قاضی ابوبکر رحمه الله بیان کړې دې.البته عالمانو رحمهم الله ددې تصریح کړې ده.چه په کوم عزم باندې مواخذه شته.اوهغه د ګناه په طور لیکلې شی.هغه صرف عزم دې.اوبه دې باندې مواخذه شته.په هغه ګناه باندې مواخذه نشته.چه په هغې باندې عزم نه وی.څکه چه دمعصیت ارتکاب خو نه دې شوې.(۵)

امام نووی رحمه الله فرمائی.چه په عزم د قلب باندې مواخذه په نصوصو د شریعت سره ثابته ده.لکه آیت کریمه ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَن تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾(۶) دغه شان دالله تعالی ارشاد دې﴿اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِّنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ﴾(۷) ددې نه علاوه نور هم ډیر آیاتونه دی. یا حسد. احتقارالمسلمین. وغیره اعمال دکومو تعلق چه د زړه سره دې.د هغې په حرمت باندې د شریعت نصوص ناطق دی.اوبه دې باندې په مواخذه باندې د عالمانو رحمهم الله اجماع هم ده.معلومه شوه.چه په عزم مصمم باندې مواخذه شته.(۸)

---

۱) صحیح بخاری کتاب العتق باب الخطاء والنسیان فی العتاقة والطلاق ونحوه رقم ۲۵۲۸ کتاب الطلاق باب الطلاق فی الإغلاق.. رقم ۵۲۶۹ وکتاب الأیمان والنذور باب إذا حنث ناسیاً فی الأیمان رقم ۶۶۶۴ وصحیح مسلم (۷۸\۱) کتاب الإیمان باب بیان تجاوزالله تعالی عن حدیث النفس والخواطر..)_
۲) صحیح مسلم (۷۸\۱) کتاب الإیمان باب بیان تجاوز الله تعالی عن حدیث النفس والخواطر..)_
۳) شرح نووی علی صحیح مسلم (۷۸\۱)_
۴) شرح نووی علی صحیح مسلم (۷۸\۱)_
۵) شرح نووی علی صحیح مسلم (۷۸\۱، ۷۹)_
۶) سورة النور:۱۹)_
۷) سورة الحجرات:۱۲)_
۸) شرح نووی (۷۹\۱)_

خوعلامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله فرمائی چه زما په نیزپه عزم باندې ترهغه وخته پورې مواخده نشته ترڅوچه په هغې باندې عمل نه وی شوې((حریص)) کوم چه په حدیث کښې ذکردې د دې په باره کښې زما په پوهه کښې راځی چه ددې مرتبه دعزم نه پورته ده اوپه دې باندې عذاب ضرور شته.دحریص مطلب دا دې چه دې کوشش اوکړی اسباب پوره کړی اوپه کوشش کښې لګیا وی.اودا دعزم نه پورته مرتبه ده په عزم کښې حب یا حسد وغیره داخلول صحیح نه دی.ځکه چه هغه داخلاق رذیله دقبیلې څنی دی دهغې تعلق د باطن او قلب سره دې.هغه د عزم معصیت د مشهورې معنی سره شاملولې نشی هم دا مفهوم دې ددې آیت ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ﴾ دا حب داشاعت فحش. د عذاب سبب دې.دعزم نه دې.[1]

**دقصد مراتب** بعضې عالمانو رحمهم الله دقصد پنځه مرتبې بیان کړی دی اودا ئې فرمائیلی دی.چه په دې کښې څلورمرتبې خو معفو عنها دی.البته آخری مرتبه قابل مواخذه ده لکه څنګه چه د جمهورو مذهب دې.دغه پنځه مرتبې یوشاعرداسې بیان کړی دی.

| | |
|---|---|
| مراتب القصد خمس: هاجس ذکروا | فخاطر، فحدیث النفس فاستمعا |
| یلیه هم، فعزم، کلها رفعت | سوی الأخیر ففیه الأخذ قد وقعا |

یعنی دقصداوهاجس ارادی پنځه مراتب دی.① هاجس.② خاطر.③ حدیث النفس④ هم ⑤ عزم.دا ټول معاف دی.په دې کښې مواخذه نشته.سوادآخری مرتبې یعنی عزم نه.ځکه چه په دې کښې مواخذه شته.

① هاجس: دا د قصد اولنۍ درجه ده.چه یوڅیز په زړه کښې راشی.اوسمدستی ختم شی

② خاطر:دا د قصددویمه درجه ده.چه یوڅیز په زړه کښې راشی. او ایسارشی. خو زړه څه فیصله نه وی کړې.

③ حدیث النفس:دا د قصد دریمه درجه ده.چه یوه خبره په زړه کښې راشی. او ایساره شی.اوزړه په فعل اوترک کښې متردد وی.یوطرف ته میلان نه وی.

④ هم:دا څلورمه درجه ده.چه په دې کښې فعل یا ترک ته میلان خو وی.خوپه دې کښې پوخوالې نه وی.

⑤ عزم:دا آخری درجه ده.چه په دې کښې صرف میلان نه وی.بلکه پوخوالې هم وی.اوهم په دې باندې مواخذه ده.[2] والله أعلم.

---

[1]) فتح الملهم (۱\۲۷۸) کتاب الإیمان باب بیان تجاوزالله تعالی عن حدیث النفس والخواطر - درس بخاری (۱\۲۲۲) وفضل الباری( ۱\۴۲۸)_

[2]) په قصد او اراده باندې دمواخذې او عدم مواخذې باندې د تفصیل دپاره اوګوری.(فتح الباری(۱۱\۳۲۳. ۳۲۹) کتاب الرقاق باب من هم بحسنة أو سیئة وفتح الملهم (۱\۲۷۶. ۲۷۹) کتاب الإیمان باب بیان تجاوز الله تعالی عن حدیث النفس والخواطر - والتعلیق الصبیح (۱\۵۹) باب فی الوسوسة)_

[٣١] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ وَاصِلٍ الْأَحْدَبِ عَنِ الْمَعْرُورِ قَالَ لَقِيتُ أَبَا ذَرٍّ بِالرَّبَذَةِ وَعَلَيْهِ حُلَّةٌ وَعَلَى غُلَامِهِ حُلَّةٌ فَسَأَلْتُهُ عَنْ ذَلِكَ فَقَالَ إِنِّي سَابَبْتُ رَجُلًا فَعَيَّرْتُهُ بِأُمِّهِ فَقَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَبَا ذَرٍّ أَعَيَّرْتَهُ بِأُمِّهِ إِنَّكَ امْرُؤٌ فِيكَ جَاهِلِيَّةٌ إِخْوَانُكُمْ خَوَلُكُمْ جَعَلَهُمُ اللَّهُ تَحْتَ أَيْدِيكُمْ فَمَنْ كَانَ أَخُوهُ تَحْتَ يَدِهِ فَلْيُطْعِمْهُ مِمَّا يَأْكُلُ وَلْيُلْبِسْهُ مِمَّا يَلْبَسُ وَلَا تُكَلِّفُوهُمْ مَا يَغْلِبُهُمْ فَإِنْ كَلَّفْتُمُوهُمْ فَأَعِينُوهُمْ [٢٤٠٧، ٥٧٠٣]

## رجال الحديث

**حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ:** دسليمان بن حرب رحمه الله حالات د «باب من كره أن يعود فى الكفر كما يكره أن يلقى فى النار من الإيمان» لاندې تيرشوى دى.

**حَدَّثَنَا شُعْبَةُ:** دوى شعبه بن حجاج رحمه الله دى ددوى حالات وړاندې د «باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده» لاندې تيرشوى دى.

**حَدَّثَنَا وَاصِلٌ الْأَحْدَبُ:** دوى واصل بن حيان احدب اسدى كوفى دى دابراهيم نخعى. زربن حبيش، قاضى شريح. شقيق بن سلمه. امام مجاهد. معروربن سويد. اوابوبرده رحمهم الله وغيره نه ئې د حديث روايت کړې دې.

اود دوى نه په روايت کونکوکښې. سفيان ثورى. شعبه بن الحجاج. مسعربن كدام. زهيربن معاويه. عطاء بن مسلم اومهدى بن ميمون رحمهم الله وغيره دى.

امام يحيى بن معين. ابوداود اونسائى رحمهم الله دوى لره ثقه ګرځولى دى.

ابوحاتم رحمه الله فرمائى. «صدوق صالح الحديث»

ابن حبان رحمه الله دوى لره په كتاب الثقات كښې ذكركړى دى.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى. «ثقة ثبت»

په كال ١٢٠ هـ كښې وفات شوې وو. اصحاب صحاح سته ددوى نه د احاديثو تخريج کړې دې.(١)

**عَنِ الْمَعْرُورِ:** دوى ابواميه معروربن سويداسدى كوفى دى. دوى د كوفې په ثقات تابعينو رحمهم الله كښې دى دحضرت خريم بن فاتك. حضرت عبدالله بن مسعود. حضرت عمربن الخطاب. حضرت ابوذرغفارى. اوام المومنين حضرت ام سلمى رضي الله عنهم نه روايت كوى.

د دوى نه روايت كونكى امام اعمش. عصام بن بهدله. واصل احدب. مغيره بن عبدالله يشكرى رحمهم الله وغيره دى

---

(١) تهذيب الكمال(٣٠\٤٠٠، ٤٠١) وعمدة القارى (١\٢٠٥) وخلاصة الخزرجى. (٤١٤) وتقريب (ص.٥٧٩) رقم ٧٣٨٢ ).

ابوحاتم رحمه الله فرمائی ما دوی په شپږ شلو کالو په عمر کښې لیدلې وو په هغه وخت کښې هم ددوی دسر اوږیرې وخته تور وو

یحیی بن معین او ابوحاتم رحمهما الله دوی لره ثقه گرځولی دی ابن حبان هم دوی په کتاب الثقات کښې ذکر کړی دی.

دشپږ شلو کالو په عمر کښې وفات شوې وو اصحاب اصول ستة ددوی نه روایات اخستی دی.(۱)

قَالَ لَقِيتُ أَبَاذَرٍ: (۲) دوی مشهور صحابی ابوذر غفاری رضی الله عنه دی. ددوی په نوم اوبیا ددوی د پلار په نوم کښې ډیر اختلاف دې. داصح قول مطابق د دوی نوم جندب بن جناده وو.

حضرت ابوذر رضی الله عنه په څلورم نمبر ایمان راوړې وو. دوی پخپله فرمائی.«أنا رابع الإسلام» دیو قول مطابق پنځم سړې وو. چه ایمان ئې راوړې وو په مکه معظمه کښې په اسلام باندې مشرف شوې وو. اوبیا دنبی صلی الله علیه وسلم په اجازت باندې خپلې ته واپس شو. اوهلته ئې د دعوت کار کولو. روسته ئې مدینې منورې ته هجرت اوکړو . قدیم الاسلام وو. خو په هجرت کښې د تاخیرپه وجه په بدر، احد اوخندق کښې نه وو شریک شوې.

ددوی فضائل بې شمیره دی. نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی.«ما أظلت الخضراء ولا أقلت الغبراء أصدق من أبي ذر»(۳)

دحضرت بریده رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی.«أمرت أحب أربعة من أصحابي، وأخبرني الله أنه يحبهم» نوحضرت بریده رضی الله عنه تپوس اوکړو. یا رسول الله دغه څوک دی؟ نبی صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل.«علي، وأبوذر، وسلمان، والمقداد»(۴)

حضرت علی رضی الله عنه فرمائی.«سمعت النبي صلی الله علیه وسلم يقول: أعطي كل نبي سبعة نجباء ورفقاء وأعطيت أنا أربعة عشر نجيباً ورفيقاً» په دوی کښې د حضرت ابوذر رضی الله عنه ذکر هم کړې دې.(۵)

---

(۱) تهذیب الکمال (۲۸\۲۶۲و ۲۶۳) وعمدة القاری (۱\۲۰۵) وخلاصة الخزرجی. (ص.۳۹۷) وتقریب (ص.۵٤۰) رقم ۶۷۹۰)-

(۲) الحدیث أخرجه البخاری فی صحیحه ی کتاب العتق باب قول النبی صلی الله علیه وسلم العبید إخوانکم فأطعموهم مما تأکلون رقم (۲۵٤۵) وفی کتاب الأدب باب ما ینهی عن السباب واللعان رقم ۶۰۵۰) ومسلم (۲\۵۲) کتاب الإیمان باب صبة الممالیک – وأبوداود فی سننه فی کتب الأدب باب فی حق المملوک رقم (۵۱۵۷) (۵۱۵۸) والترمذی فی جامعه فی کتب البروالصلة باب ما جآء فی الإحسان إلی الخدم رقم ۱۹٤۵) وابن ماجه فی سننه فی کتاب الأدب باب الإحسان إلی الممالیک رقم ۳۶۹۰)_

(۳) سنن ترمذی کتاب المناقب باب مناقب أبي ذر رضی الله عنه رقم ۳۸۰۱) و(۳۸۰۲)_

(۴) مسند أحمد(۵\۳۵۱)_

(۵) جامع ترمذی کتاب المناقب باب مناقب الحسن ولاحسین رضی الله عنهما رقم ۳۷۸۵)_

حضرت على رضي الله عنه فرمائى ((أبوذر رضي الله عنه وعاء ملئ علماً))[1]

ابوداود فرمائى ((كان يوازى ابن مسعود فى العلم))[2]

دحضرت ابوذر رضي الله عنه داحاديثو پوره شمار دوه سوه اتيا (۲۸۰) دي په دې كښې دولس احاديث متفق عليه دى اوامام بخارى رحمه الله په دوو حديثو كښې اوامام مسلم په نورلس حديثو كښې متفرد دى[3] والله أعلم.

دوى په زهداو تقوى، صدق اوعفاف، علم اوعمل كښې ډيرلوړ مقام حاصل كړې وو ښكاره به ئې د حق اظهاركولو په امربالمعروف اونهى عن المنكركښې دوى چرته هم د ملامتيا ګرد ملامتيا پوراه نه ده ساتلې.

دالله تعالى په لاركښې به ئې ډيرخرچ كولو اومال جمع كول ئې نه خوښولو

دوى اول په مدينه منوره كښې اوسيدلو او بيا شام ته لاړو اوبيا دحضرت عثمان رضي الله عنه په مشوره ربذة ته لاړلو نبى كريم ﷺ هم دې طرف ته اشاره كړې وه. حضرت اسماء رضي الله عنها فرمائى چه حضرت ابوذر رضي الله عنه په د نبى ﷺ خدمت كولو .اوكله چه به د خدمت نه اوزګار شو جمات ته به لاړلو اوهم جمات ئې خپل كور جوړ كړې وو. يوځل نبى ﷺ جمات ته داخل شو اودې ئې په زمكه باندې ملاست اوليدلو نبى ﷺ دوى په خپله پښه مباركه باندې اوخوزولو دوى راپاسيدل نبى ﷺ ورته اوفرمائيل دلته خوب كوې نودوى ورته عرض اوكړو زما كورخو هم دا ده نور په كوم ځائې كښې اوده شم نبى ﷺ دوى سره كيناستل اووې فرمائيل ((كيف أنت إذا أخرجوك منه؟)) يعنى ستا به څه حال وى كله چه ته د دې ځائې نه ويستلې شې. دوى عرض اوكړو زه به شام ته لاړ شم نبى ﷺ ورته اوفرمائيل چه د شام نه هم اوويستې شې بيا به څه كوې نودوى عرض اوكړو دوباره به مسجد نبوى د خپلې استوګنې ځائې جوړ كړم نونبى ﷺ ورته اوفرمائيل چه ددې ځائې نه يوځل بيا اوويستې شې؟ نو دوى عرض اوكړو چه زه به بيا خپله توره راواخلم اوترمرګه پورې به جنګيږم.

نو نبى ورته اوفرمائيل ((أدلك على خير من ذلك؟)) دوى عرض اوكړو ((بلى بأبى أنت وأمى يارسول الله))

نبى ﷺ ورته اوفرمائيل ((تنقاد لهم حيث قادوك حتى تلقانى وأنت على ذلك)) يعنى خلق چه تا كوم

---

[1] سير أعلام النبلاء (۶۰\۲) وتهذيب الكمال (۲۹۷\۳۳)_

[2] تهذيب الكمال (۲۹۷\۳۳)

[3] امام نووى رحمه الله د مسلم د منفرد احاديثو شمار اوولس خودلې دې اوعلامه عينى رحمه الله هم د دوى اتباع كړې ده.اوګورئ تهذيب الأسماء واللغات (۲۲۹\۲) وعمدة القارى(۲۰۵\۱) اوصاحب د خلاصة الخزرجى په خلاصه كښې (ص.۴۴۹) اوحافظ ذهبى رحمه الله په سير أعلام النبلاء (۷۵\۲) كښې نورلس ذكركړې دى په كوموكښې چه امام مسلم منفرد دې اوپه (ذخائرالمواريث فى الدلالة على مواضع الحديث)) (۱۶۲\۳. ۱۹) كښې دى اود شيخ محمد فواد عبدالباقى دتحقيق كرده مسلم د فهرست نه په تتبع او تلاش سره يوويشت دوويشت احاديث راوخى په كوموكښې چه امام مسلم منفرد دې.

خاڼې په تلو باندې مجبوره کوی. هلته لاړ شه. تردې چه هم په دغه حال کښې ته ماسره ملاؤ شې.(١)

حضرت ابوذر رضي الله عنه په غزوه تبوك کښې دخپلې څه مجبورئ د وجې د نبی ﷺ سره شرکت نشوکولې روسته چه کله ورته سورلی ملاؤ نشوه نوپه خپله شا باندې ئې سامان بار کړل. اوپیدل روان شو. د نبی ﷺ په صحابو رضي الله عنهم کښې چا د لرې نه ددوی صورت اولیدلو نو عرض ئې اوکړو یارسول الله څوك سړې راروان دې نبی ﷺ اوفرمائیل.((کن أباذر)) خلقوچه په غور سره اوکتل. نوواقعی هغه ابوذر رضي الله عنه وو. په دغه موقع باندې نبی ﷺ اوفرمائیل.((رحم الله أباذر یمشي وحده ویموت وحده ویبعث وحده))(٢)

څه موده پس څه وخت چه دوی په ربذه کښې وو. اود وفات وخت ئې راغلو. نو دوی خپلې بی بی اوخادم ته اوفرمائیل. زمادمرګ نه پس چه زما دغسل او تکفین نه فارغ شئ نوما په لاره باندې کیږدئ. کومه اوله قافله چه په دې خاڼې باندې تیریږی. نوهغوی ته آووائې چه دا ابوذر رضي الله عنه دې.

هم داسې اوشوه. چه د هلته نه حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د اهل کوفې د یوې قافلې سره تیریدل. هغوی ته اوخودلی شو. چه دا د حضرت ابوذر رضي الله عنه جنازه ده. حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په ژړا شو. اودائې اوفرمائیل. ((رحم الله أباذر یمشي وحده ویموت وحده ویبعث وحده)) نوهغوی د دوی جنازه اوکړه. اودفن ئې کړو.(٣)

دحضرت ابوذر رضي الله عنه شماریه عالمانوصحابه کرامو رضي الله عنهم کښې کیږی. حضرت عمر رضي الله عنه دوی د قراء په درجه کښې ګرڅولې وو. په علم کښې دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د درجې وو. په ۳۲ھ کښې وفات شوې وو. رضي الله عنه وأرضاه.(٤)

**قوله: بِالرَّبَذَةِ:** د راء اوباء موحده په فتحې سره. اوددې نه پس ذال معجمه مفتوحه. د مدینې منورې نه درې میله لرې داهل عراق دمیقات ذات عرق سره نزدې دیوځائې نوم دې.(٥)

**قوله: وَعَلَيْهِ حُلَّةٌ وَعَلَى غُلَامِهِ حُلَّةٌ:** اویوه حله دشوی اویوه حله ددوی غلام اغوستې وه.

---

(١) مسند أحمد(٦\٤٥٧)_

(٢) السيرة النبوية لابن هشام (٢\٣١٩) عزوة تبوک)_

(٣) المصدرالسابق)_

(٤) د تفصیلی حالاتودپاره اوګورئ ((سیرأعلام النبلاء (٢\٤٦. ٧٨) وطبقات ابن سعد(٤\٢١٩. ٢٣٧) وحلية الأولياء (١\١٥٦. ١٧٠) وتهذيب الكمال (٣٣\٢٩٤. ٢٩٨) وخلاصة الخزرجي (ص.٤٤٩) وعمدة القاري(١\٢٠٥) وتقريب (ص.٦٣٨) رقم ٨٠٨٧)_

(٥) عمدة القاري(١\٢٠٦)_

حُله وائي لنګ او څادر ته.چه دواړه د يوجنس څخه وي (١)

امام بخارى رحمه الله په كتاب الادب كښې هم دا روايت نقل كړې دې.دهغې الفاظ دا دي «رأيت عليه بردا وعلى غلامه بردا فقلت له لو أخذت هذا فلبسته كانت حلة وأعطيته ثوبا آخر» (٢)

داسماعيلي په روايت كښې دى.«أتيت أباذر فإذا حلة عليه منها ثوب وعلى عبده منها ثوب» (٣)

دمسلم په روايت كښې دى.«فقلنا يا أباذر لو جمعت بينهما كانت حلة» (٤)

دابوداود روايت كښې دى.«يا أباذر: لو أخذت الذى على غلامك فجعلته مع الذى عليك لكانت حلة» (٥)

لكه چه په حديث الباب اونورو رواياتوكښې يوقسم تعارض دې.څكه چه د حديث باب مطابق په دوى كښې هريوباندې پوره حله وه.او د نورو رواياتونه معلوميږى چه دهريو حله نه وه.بلكه صورت دا وو.چه دحضرت ابوذر رضي الله عنه په بدن باندې يوه جامه وه.اوهم دهغه جنس نه يوه جامه دده دغلام سره وه.لكه چه پوره حله دچا سره هم نه وه.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.چه په دواړه قسم رواياتوكښې د تطبيق صورت دا كيدې شي چه دحضرت ابوذر رضي الله عنه په بدن باندې يوه جامه وه.كومه چه ښه قيمتي وه.اوبله كپړه هغوى لنګ په طور لاندې اغوستې وه.كومه چه هم دهغې دجنس څخه وه.خوزړه او ورسته وه.هم دا صورتحال دده د غلام هم وو.نواوس به د «لو أخذت هذا فلبسته كانت حلة» يا ددې پشان دنورو الفاظو مطلب به دا وى.چه «لو أخذت البرد الجيد فأضفته إلى البرد الجيد الذى عليك وأعطيت الغلام البرد الخلق بدله، لكانت حلة جيدة» لكه چه دامام بخارى د كتاب الادب په روايت كښې چه كوم «لوكانت حلة» راغلى دى.نويه هغې كښې تنوين دتعظيم دپاره دې.اومطلب دا دې چه «كانت حلة كاملة الجودة» والله أعلم (٦)

**قوله** فَسَأَلْتُهُ عَنْ ذَلِكَ: ما دې سبب معلوم كړو چه تاسو دخپل غلام سره مساوات فى اللباس ولې اختيار كړې دې؟

**قوله** فَقَالَ إِنِّي سَابَبْتُ رَجُلًا: وې فرمائيل.ما يوسړى ته بد رد ونيلى وو.

---

(١) النهاية (١\٤٣٢)_

(٢) صحيح بخارى كتاب الأدب باب ما ينهى عن السباب واللعن رقم ٦٠٥٠)_

(٣) فتح البارى (١\٨٦)_

(٤) صحيح مسلم (٢\٥٢) كتاب الأيمان باب صحبة المماليك)_

(٥) سنن أبى داود كتاب الأدب باب فى حق المملوك رقم ٥١٥٧)_

(٦) فتح البارى (١\٨٦)_

«سابهت» د باب مفاعله نه دې په دې كښې چه د مشاركت خاصيت وى. مطلب دا دې چه هغه ماته څه ونيلى وو اوما هغه ته څه ونيلى وو اويه دغه ونيلو كښې ما هغه ته دهغه د مور ذكر كړې وو.

**قوله فَعَيَّرْتُهُ بِأُمِّهِ:** ماهغه ته دهغه دمور پيغور وركړې وو اوهغه ته مې دهغه دمور په حبشيت باندې پيغور وركړې وو. په يو ورايت كښې دى چه ما هغه ته «يا ابن السوداء» ونيلى وو.()

حافظ ابن حجر رحمه الله نقل كړى دى چه دغه كس چاته چه پيغور شوې وو حضرت بلال رضي الله عنه وو. د وليد بن مسلم په روايت كښې منقطعا هم دا مروې دى.()

**قوله فَقَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَبَا ذَرٍّ أَعَيَّرْتَهُ بِأُمِّهِ إِنَّكَ امْرُؤٌ فِيكَ جَاهِلِيَّةٌ:** ماته نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل اې ابوذر! تا ده ته دده د مور په حبشيت باندې پيغور وركړو. ته خو داسې كس ئې چه په تا كښې جاهليت دې.

علامه كرمانى رحمه الله ليكلى دى چه حضرت ابوذر رضي الله عنه حضرت بلال رضي الله عنه ته د هغه دمور په حبشيت باندې پيغور وركړو. نوحضرت بلال رضي الله عنه نبى صلى الله عليه وسلم ته په ګيله لاړلو. نبى صلى الله عليه وسلم حضرت ابوذر رضي الله عنه راغوښتلو. او ورته ئې اوفرمائيل. «شتمت بلالاً وعيرته بسواد أمه» نوحضرت ابوذر رضي الله عنه جواب وركړو. «نعم» نبى صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل. «ما كنت أحسب أنه بقى فى صدرك من كبر الجاهلية شئ» يعنى زما دا ګمان نه وو چه ستاسو په زړه كښې به د جاهليت د تكبر نه تراوسه پورې څه څيز پاتې شوې وى. حضرت ابوذر رضي الله عنه سمدستى په زمكه پريوتلو او خپل مخ ئې په زمكه كيخودو. اووې ونيل. «والله لا أرفع خدى منها حتى يطأ بلال خدى بقدميه» يعنى په الله قسم چه زه به ترهغه وخته پورې د زمكې نه خپل مخ اوچت نكړم. ترڅوچه حضرت بلال زما په مخ باندې خپل قدمونه نه وى كيخودې. نوحضرت بلال رضي الله عنه د قدم كيخود نه پس دوى خپل مخ اوچت كړو.()

دمسلم شريف په روايت كښې دى.() چه كله نبى صلى الله عليه وسلم دوى ته اوفرمائيل. «إنك إمرؤ فيك جاهلية» نوهغوى عرض اوكړو. «على حال ساعتى من الكبر؟» مطلب دا دې چه ددې باوجود چه زه د دومره عمر شوم. اود اسلام قبلولو نه پس څومره زيانه موده تيره شوه ددې باوجود په

---

() كما فى فتح البارى(۱\۸۶)_

() فتح البارى(۱\۸۶)_

() شرح كرمانى(۱\۱۴۰. ۱۴۱)_

() (مسلم (۲\۵۲) كتاب الايمان باب صحبة المماليک )_

ماكښې د جاهليت خوئي بوني شته؟نو نبي ﷺ ورته اوفرمائيل ((نعم)) تراوسه پورې په تا كښې دجاهليت خوئي بوني شته.اوهم ددې اثردې چه تا ده ته د مور دحبشيت پيغور وركړو معلومه شوه.چه دمخفي مرضونولكه كبر ددې علم سړي ته په خپله نه كيږي. بلكه د كامل شيخ اومربي د ګوته كولوضرورت وي.دشيخ په اصلاح سره ددې مرضونوازاله كيږي.والله أعلم.

بهرحال په حديث كښې ((إنك إمرؤ فيك جاهلية)) نه امام بخاري رحمه الله په دې استدلال كوي چه معاصي دامورجاهليت څنې دي.اوجاهليت ((كفر دون كفر)) دې په حضرت ابوذر رضي الله عنه كښې ددې باوجود چه دا خوئي موجود وو.هم نبي ﷺ هغه د ايمان نه خارج نكړو.نومعلومه شوه چه د كبيرې په ارتكاب سره سړې د ايمان نه خارجيږي نه.(۱)

علامه كرماني رحمه الله فرمائي.چه ددې حديث نه د مصنف رحمه الله استدلال مشكل دې.ځكه چه تعيير ګناه كبيره نه ده.خوارج په صغائرو سره تكفير نه كوي. (۲)

د دې جواب دا دې.چه نورو حضراتو ددې تصريح كړې ده.چه دخوارجو په نيز ټول ګناهونه كبائر دي.د صغائرو اوكبائرو فرق داهل سنت والجماعت دې.

اوكه اومنلې شي.چه خوارج د صغيرې اوكبيرې فرق كوي.نود مصنف رحمه الله د طرفه دا جواب دې.چه د روايت نه دومره ضرور معلوميږي.چه معاصي د امور جاهليت څنې دي.اوهم دا د منصف رحمه الله دعوه ده.البته ددوی دويمه دعوه چه ((ولايكفر صاحبها بارتكابها)) ده.ددې ثبوت د حضرت ابوبكره رضي الله عنه د حديث نه كيږي. والله أعلم.

**قوله إِخْوَانُكُمْ خَوَلُكُمْ:** ستاسو ورونړه ستاسوخادمان دي.

خول ..خادمانوته وائي.دا دواحد په طور هم استعماليږي.اوددې اطلاق په مذكر اومؤنث دواړو باندې كيږي.په دې صورت كښې ددې واحد ((خائل)) راځي.

دا خو يا د تخويل نه ماخوذ دې.چه معنی ئې تمليك ده.لكه چه د خول معنی مملوك شوه.

اويا د ((تخوّل)) نه ماخوذ دې.دكوم معنی چه اصلاح كول دي.لكه چه ((خول)) خادمانو او غلامانو ته ددې وجې وائي.چه دوی په صحيح طريقه باندې كار كوي.(۳)

بيا د ((إخوانكم خولكم)) تركيب كښې دا احتمال هم شته.چه ((إخوانكم)) خبر مقدم دې.او ((خولكم)) مبتدا موخره ده.په دې صورت كښې دخبر تقديم د اخوت داهميت داظهار دپاره دې.اودا هم احتمال دې.چه دا دواړه لفظونه خبر وي. او د هريودپاره مبتدا محذوف وي.لكه چه تقديربه دا وي ((إخوانكم هم خولكم))

---

۱) الأبواب والتراجم لصحيح البخاري(ص.۳۵)_

۲) شرح الكرماني(۱\۱۴۰)_

۳) النهاية :۲۸۸) ومجمع بحار الأنوار(۲\۱۲۴)_

علامه زرکشی رحمه الله دا دواړه لفظونه منصوب ګرځولی دی اوتقدیر ئې راویستې دې «احفظوا إخوانکم خولکم»ابوالبقاء دا د ټولو نه غوره توجیه ګرځولې ده خودبخاری په یو روایت کښې «إخوانکم هم خولکم» راغلی دی دکوم نه چه د رفع تقدیر راجح کیږی.[1]

خلاصه دا چه ستاسودا خادمان ستاسو وروڼه دی اوهرکله چه دوی ستاسو وروڼه دی نو دوی سره د ورورولۍ سلوك كول پكار دي هم ددې ورورولۍ د اهمیت ښکاره کولودپاره «إخوانکم» په «خولکم» مقدم کړې شوې دی.[2]

**قوله جَعَلَهُمُ اللَّهُ تَحْتَ أَيْدِيكُمْ:** الله تعالی دوی ستاسودلاسونو اوتصرف لاندې ګرځولی دی

**قوله فَمَنْ كَانَ أَخُوهُ تَحْتَ يَدِهِ فَلْيُطْعِمْهُ مِمَّا يَأْكُلُ وَلْيُلْبِسْهُ مِمَّا يَلْبَسُ:** دکوم کس لاندې چه دده ورور وی نوهغه ته دهغه څه نه خوراك وركول پكار دی دڅه نه چه هغه په خپله خوراك كوی اودهغه څه نه اغوستل پکار دی کومې جامې چه په خپله اغوندی.

ددې حدیث په بنیاد د ابن حزم رحمه الله دا رائې ده چه خپل غلام دهغه څه نه خوراك وركول واجب دی کوم چه سړې پخپله خوری اګرکه یوه نونمړۍ وی دغه شان دهغه جامو نه غلام ته اغوستول هم واجب دی کومې چه سړې په خپله اغوندی اګرچه داخترپه موقع باندې وی.[3]

خوامام نووی رحمه الله فرمائی «والأمر بإطعامهم مما يأكل وإلباسهم مما يلبس محمول على الإستحباب لا على الإيجاب وهذا بإجماع المسلمين»[4] یعنی غلام ته چه دهغه خوراك نه د خوراك حكم دی كوم چه مولی په خپله خوری دغه شان د هغه پوشاك اغوستولوحكم دی كوم چه مولی په خپله استعمالوی نودا حکم په استحباب باندې محمول دی اوایجاب باندې نه دی اوپه دې باندې د ټولومسلمانانو اجماع ده

اوترڅوپورې چه حضرت ابوذر رضي الله عنه د عمل اوحدیث باب تعلق دی نوپوهه شئ چه دحضرت ابوذر رضي الله عنه نه چه کوم لغزش شوې وو چه هغوی د «ابن السوداء» پیغور ورکړې وو نو هغې متعلق کله چه هغه د نبی ﷺ نه حدیث واوریدو نونه یواځې دا چه دهغه نه ئې خپله غلطی معاف کړه بلکه ددې سره سره هغوی دخپل کمال تقوی اوپرهیزګارۍ د وجه دغلامانوسره د پوره مساوات عمل هم کولو کوم چه انفرادی طوریو افضل عمل دی ګنی دحدیث باب

---

[1] ارشاد الساری (۱۱۶/۱)_

[2] فتح الباری (۱۷٤/۵)-

[3] المحلی لابن حزم رحمه الله (۹۲۵۰) مسألة :وفرض على السيد أن يكسو مملوكه ومملوكته مما يلبس.. (۱۰۹۷. ۹۸) مسألة وينفق الرجل والمرأة على مماليكهما ...)_

[4] شرح نووی علی صحیح مسلم (۵۲/۲) کتاب الإیمان باب صحبة الممالیک )_

مفهوم خو دا دې چه د خپلو ماتحتو سره د مواسات عمل وی. مساوات لازم نه دی.(١)

په یوبل حدیث کښې دی «إذا صنع لأحدکم خادمه طعامه ثم جاء به وقد ولي حره ودخانه فلیقعده معه فلیأکل فإن کان الطعام مشفوها قلیلا فلیضع في یده منه أکلة أو أکلتین»(٢)

دغه شان په یوبل حدیث کښې راغلی دی «للمملوك طعامه وکسوته بالمعروف»(٣)

معلومه شوه چه دعرف مطابق دغلام دپاره طعام اوکسوة واجب ده البته که دعرف نه پورته

یوکس خپل غلام ته خوراك څکاك اواغوستول کوی نودا تطوع ده واجب نه دی.(٤) والله أعلم.

خلاصه دا چه د جمهوروعالمانﷺ په نیزدماتحتو سره دمواسات حکم ضروری دې او مساوات حکم عمومی حکم نه دې خکه چه ددې په وجه به بیا ټول نظام گډ وډ شی به مواسات کښې نظام هم بنه پاتې کیږی اوتطییب قلب هم وی د نورودخیال ساتلوسره نظم هم برقرار پاتې کیږی اوکه دمساوات عمومی طور حکم وکړې شی نوددې په وجه به په نظم کښې فرق راشی البته که یوکس انفرادی طور په مساوات باندې عمل کوی نو دې بنه عمل دې اوپه هغه باندې انکار نشته اونه په دې سره عام فساد پیدا کیږی

والله سبحانه وتعالى أعلم.

## ۲۲ = بَاب ظُلْمٌ دُونَ ظُلْمٍ

**د ترجمة الباب مقصد اودماقبل سره ربط** امام بخاری رحمه الله په وړاندې باب کښې «کفر دون کفر» ذکرکړې وو. اودا ئې خودلی وو چه په کفرکښې درجات اومراتب مختلف دی نودغه شان به د دې په نقیض یعنی ایمان کښې هم مراتب اودرجات مختلف وی اوکله چه په ایمان کښې درجات او مراتب مختلف وی نودې ته به مرکب وئیلی شی اوزاند اوناقص به ورته هم وئیلی شی دغه شان دلته په «ظلم دون ظلم» کښې هم دا ښائی چه دا ظلم هم دایمان نقیض دې اوپه ظلم کښې هم مختلف مراتب دی نوظلم دون ظلم ثابت شو اوایمان چونکه ددې نقیض دې نودغه به په ایمان کښې هم دمراتبو اودرجاتو تفاوت ثابت شی

دا خبره په نوروالفاظو کښې داسې زده کړئ چه دلته «دون» په معنی د ادنی او اسفل دې اوددې مطلب دا دې چه ظلم یوکلی څیزدې اوددې لاندې ډیر افرادی دی بعضې اعلی دی اوبعضې ادنی دی هم دا دامام بخاری رحمه الله د طرز موافق هم دې خکه چه دهغوی رائې دا ده چه ایمان کوم چه اصل دې هغه خو تصدیق اواقرار باللسان دې اویو ددې فرع ده په کوم

---

(١) المصدر السابق)

(٢) صحیح مسلم (۵۲/۲) کتاب الأیمان باب صحبة الممالیک)

(٣) موطا امام مالک کتاب الإستیذان باب الأمر بالرفق بالمملوک رقم ٤٠)

(٤) فتح الباری (١٧٤/٥) کتاب العتق باب قول النبی ﷺ العبید إخوانکم فأطعموهم مما تأکلون)

سره چه دايمان تكميل كيږي هغه فرع اعمال دى دغه شان د امام بخارى رحمه الله رائي دا هم ده چه د كفر، شرك او ظلم يو اصل دي اوهغه دي كفربالله كوم چه د ايمان بالله ضد دي او يو دي فرع ده كوم چه معاصى دى په كوم سره چه په كفركښې قوت اوزيادت راځي دا ټول خو كفردي خو يواصل دي اويوفرع ده داصل په ارتكاب سره سړي به دايمان نه خارجيږي اودفرع په ارتكاب سره دكفر په يود شعبه كښې داخليږي كافرنه ګرځي لكه چه امام بخاري رحمه الله دلته دا ښائى چه دظلم مراتب مختلف دى ددې د ټولو نه اوچته مرتبه خوشرك دي دكوم په وجه چه سړي مومن نه پاتې كيږي او ددې لاندې ډيرې مرتبې دى چه دهغې په ارتكاب سره سړي دايمان نه نه خارجيږي البته په ده كښې دكفرشاخونه اوشعبې راځي (١)

علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى چه دامام بخارى رحمه الله دترجمې د انعقاد نه مقصود دا دي چه دايمان تكميل په اعمالو سره كيږي اوپه ايمان كښې دګناهونو په ارتكاب سره نقصان پيدا كيږي په هغې سره سړي په كفركښې نه داخليږي اود معاصى د صغراوكبر په اعتبارسره په خلقوكښې تفاوت او اختلاف پيدا كيږي (٢)

[٣٢] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ ح قَالَ وحَدَّثَنِي بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ أَبُو مُحَمَّدٍ الْعَسْكَرِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ قَالَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّنَا لَمْ يَظْلِمْ فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ

[٦٥٣٨، ٦٥٢٠، ٤٤٩٨، ٤٣٥٣، ٣٢٤، ٣٢٤٥، ٣١٨١]

## رجال الحديث

**حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ:** دوى ابوالوليد هشام بن عبدالملك طيالسى باهلى بصرى رحمه الله دى دوى مختصرحالات مخكښې د ((باب علامة الإيمان حب الأنصار)) لاندې تيرشوى دى.

**قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ:** د امام شعبه بن الحجاج رحمه الله تذكره وړاندې په ((باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده)) لاندې تيره شوې ده.

**ح قَالَ وحَدَّثَنِي بِشْرٌ:** دا ((حاء)) دلته چه واقع شوې ده كه دا حاء دتصنيف جزء وى نودا حائې تحويل ده دكوم تفصيل چه تيرشوې دې اوكه ورسته چا زياتى كړې وى نوحافظ ابن حجراوعلامه عينى رحمهما الله فرمائى چه دوه احتماله دى كيدې شى حائې د تحويل وى اودا هم كيدې شى چه خاء معجمه وى كوم چه دامام بخارى رحمه الله رمز دې خوپه دې باندې اشكال كيږي چه دحاء تحويل د اصل كتاب په يوراوى كښې د داخلولو څه ضرورت

(١) اوګورئ فتح البارى (٨٧/١) وعمدة القارى (٢١٣/١)

(٢) عمدة القارى (٢١٣/١)

دي.راوي دمؤلف په كتاب كښې دخپل طرف نه د څه څيز داخلول نشي كولې اوچه كړ،
څيزداخلوي.نوهغه ښكاره كوي

**دوه اهمې فائدې** ① بهرحال دلته امام بخاري رحمه الله حديث باب په دوو سندونو سره نقل
كوي.په يوسند كښې ددوي استاذ ابوالوليد دې.كوم چه دامام شعبه شاګردې.اوپه بل سند
كښې ددوي استاذ بشربن خالد عسكري دې.دوي دمحمد بن جعفرغندر.په واسطه سره د
امام شعبه نه روايت كوي.كله چه اولنې سند عالي دې.اودويم سند د هغې په مقابله كښې
نازل دې. چونكه محمد بن جعفرالمعروف بغندر.دامام شعبه نه په روايت كولوكښې اثبت
دې.ددې وجې امام بخاري د سندعالي باوجود سندنازل هم ذكركړلو.

② دويمه اهمه فائده دا ده.چه دامام بخاري تقريباً عادت مطرده دې.چه كله دوي تحويل
كوي.نود دويم سند الفاظ ذكركوي.اود اول سند الفاظ په بل ځائې كښې راوړي.دلته ئې هم
داسې كړي دي.چه دحديث الفاظ دسند ثاني دي.اوداول سند الفاظ په كتاب الانبياء كښې
راخي.البته بعضې وخت كښې داسې هم كيږي.چه تحويل كوي.اود اول سند الفاظ نقل
كوي.اود سند ثاني الفاظ په كتاب كښې په بل ځائې ذكركوي.داسې مثالونه ډير كم دي

بِشْرُبْنُ خَالِدٍأَبُومُحَمَّدٍالْعَسْكَرِيُّ: دوي ابومحمدبشربن خالد عسكري فرائضي دي.دوي
د شبابه بن سوار . محمدبن جعفرغندر.وليدبن عقبه.شيباني.يحي بن آدم.اويزيد بن
هارون رحمهم الله وغيره نه روايت كوي.اوددوي په شاګرانوكښې امام بخاري.امام مسلم .امام
ابوداود .نسائي اوامام محمد بن اسحاق بن خزيمه رحمهم الله وغيره دي.

امام نسائي رحمه الله دوي ثقه ګرځوي.

امام ابن حبان رحمه الله دوي په كتاب الثقات كښې ذكركړې دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.«ثقة يغرب»

حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي.«وكان ثقة مأموناً»

په بخاري مسلم ابوداو اونسائي كښې ددوي روايات دي.

په كال **۲۵۳**هه يا **۲۵۵**ه كښې وفات شوي وو. رحمه الله تعالى(١)

قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ: دوي ابوعبدالله محمد بن جعفر هذلي دي.د غندر په لقب سره
مشهور دي.

د حسين معلم.سعيدبن ابي عروبه.سفيانين.شعبه.ابن جريج.اومعمربن راشد رحمهم الله
وغيره نه ئې دحديث روايت كړې دې.

---

(١) تهذيب الكمال(٤\١١٧. ١١٨) وعمدة القارى(١\٢١٣) وتقريب التهذيب (١٢٣) رقم ٦٨٤) وخلاصة الخزرجي(ص.٤٨)_

ددوی په شاګردانو کښې امام احمدبن حنبل، امام ابن المدینی، امام ابن معین، امام اسحاق بن راهویه، اوامام قتیبه رحمهم الله غوندې جبال حدیث دی

ابوحاتم رحمه الله فرمائی «كان صدوقاً وكان مؤدباً وفي حديث شعبة ثقة» ابن حبان دوی په کتاب الثقات کښې ذکرکړی دی اولیکلی ئې دی «كان من خيار عباد الله على غفلة فيه»

محمد بن جعفرغندرد امام شعبه بن الحجاج ربیب (پرکتې) وو هغوی ددوی نه شلوکالو پورې مسلسل استفاده کوله دهغوی په احادیثوکښې دوی د ټولونه اثبت وو عبدالرحمن بن مهدی رحمه الله فرمائی «غندر في شعبة أثبت مني»

امام عبدالله بن مبارک رحمه الله فرمائی «إذا اختلف الناس في حديث شعبة فكتاب غندر حكم بينهم»

امام ابن معین رحمه الله فرمائی «كان من أصح الناس كتاباً وأراد بعضهم أن يخطئه فلم يقدر عليه»

امام علی بن مدینی رحمه الله فرمائی «هو أحب إلي من عبد الرحمن في شعبة»

عبدالرحمن بن مهدی رحمه الله فرمائی «كنا نستفيد من كتب غندر في حياة شعبة»

محمد بن جعفر رحمه الله به دعبادت خاص ذوق لرلو امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی دوی د پنځوس کالو راسې په صوم داودی باندې عمل کونکې وو یوه ورځ به ئې روژه نیوله اوبله ورځ به ئې کوژه کوله

امام ابن معین رحمه الله فرمائی چه امام محمد بن جعفرغندر به د میناری دپاسه کیناستلو اود فقیرانوکښې به ئې د زکاة پیسې تقسیمولې کله چه به د دوی تپوس اوشو نو فرمائیل به ئې «أرغب الناس في إخراج الزكاة»

دغندرلقب ورته امام ابن جریج رحمه الله ورکړې دې په اصل کښې واقعه دا وه چه حضرت ابن جریج رحمه الله بصری ته تشریف یوړلو اوهلته ئې دحضرت حسن بصری رحمه الله یوحدیث بیان کړو نو خلقو پرې انکاراوکړو چه مونږ خودا حدیث نه دې اوریدلې هغوی ورته اووئیل په دې کښې دانکارڅه وجه ده زه د عطاء بن ابی رباح رحمه الله سره شل کاله پاتې شوې یم ددې باوجود به یوکس دهغوی یوداسې حدیث واورولو چه هغه به ما نه وو اوریدلې په دغه موقع باندې د ابن جریج په مخکښې محمد بن جعفر رحمه الله ډیرشور جوړ کړې وو نوابن جریج رحمه الله دوی ته خطاب اوکړو او ورته ئې اووئیل «أسكت يا غندر» دهغه وخت نه دوی د غندر په لقب سره مشهور شو

غندر د غین په ضمې اونون په سکون او دال په فتحه او ضمې سره دې اوددې نه پس راء مهمله ، اهل حجاز هغه چاته غندروائی چه زیات شور کوی

په کال ۱۹۳ھ یا ۱۹۴ھ کښې وفات شوی وو (۱)

---

(۱) تهذيب الكمال(۲۵\۵-۹) وعمدة القاري(۲۱۳. ۲۱٤) وتقريب (٤۷۲) رقم (۵۷۸۷) وخلاصة الخزرجي (ص۳۳۰. ۳۳۱)_

عَنْ سُلَيْمَانَ: دوى ابومحمد سليمان بن مهران اسدى كوفى دى چه د اعمش په لقب سره مشهور دى.
دوى د حضرت انس رضي الله عنه زيارت كړې وو البته د هغوى نه د دوى سماع ثابته نه ده.
دزيد بن وهب، ابووائل، ابراهيم تيمي، او شعبى رحمهم الله وغيره نه د حديثو روايت كوى.
اود دوى نه روايت كونكو كښې شعبه، سفيان ب، زادئه او وكيع وغيره دى.
امام على بن المدينى رحمه الله فرمائى. امت محمدى ته په محفوظ طريقه د علم رسونكى خلور حضرات دى. په هغوى كښې يوسليمان بن مهران اعمش رحمه الله دې.
قاسم بن عبدالرحمن رحمه الله فرمائى. ((هذا الشيخ أعلم الناس بقول عبدالله بن مسعود رضي الله عنه))
سفيان بن عيينه رحمه الله فرمائى. ((سبق أعمش أصحابه بأربع خصال، كان أقرئهم للقرآن وأحفظهم للحديث وأعلمهم بالفرائض وذكر خصلة أخرى))
زهيربن معاويه رحمه الله فرمائى. ((ما رأيت أحدا أعقل من الأعمش ومغيرة))
امام احمد رحمه الله فرمائى ((أبواسحاق وأعمش رجلا أهل الكوفة))
امام شعبه رحمه الله فرمائى. ((ما شفاني أحد ما شفاني الأعمش)) يعنى په حديثو كښې دامام اعمش رحمه الله په شان بل چا زما تشفى نه ده كړې.
امام شعبه رحمه الله چه به كله د امام اعمش رحمه الله ذكركولو نودهغوى د صدق اوديانت په وجه به ئې ((المصحف، المصحف)) وئيلو.
احمد بن عبدالله عجلى رحمه الله فرمائى. ((كان ثقة ثبتا في الحديث))
دامام يحيى القطان رحمه الله په وړاندې چه به كله دامام اعمش رحمه الله ذكراوشو. نو فرمائيل به ئې. ((كان من النساك وكان محافظا على الصلاة في جماعة، وعلى الصف الأول)) دغسې دوى به فرمائيل ((هوعلامة الإسلام))
امام وكيع رحمه الله فرمائى. چه امام اعمش د اويا كالوعمر ته نزدې شوې وو. خودهغوى نه تكبير اولى چرته فوت شوې نه وو.
عبدالله بن داود خريبى فرمائى. په كومه ورځ چه امام اعمش وفات شو. په هغه ورځ ددوى نه زيات عبادتګذار څوك نه وو.
امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائى. ((الأعمش ثقة))
امام نسائى رحمه الله فرمائى. ((ثقة ثبت))
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى. ((ثقة حافظ، عارف بالقراءات ورع لكنه يدلس))
امام ذهبى رحمه الله فرمائى. ((أحد الأئمة الثقات عداده في صغار التابعين، ما نقموا عليه إلا التدليس))
مغيره رحمه الله فرمائى. ((أهلك أهل الكوفة أبواسحاق وأعيمشكم هذا))

حافظ ذهبی رحمه الله په دوی باندې تبصره کوی اوفرمائی «كأنه عفى الرواية عمن جاء وإلا فالأعمش عدل صادق ثبت صاحب قرآن وسنة يحسن الظن بمن يحدثه ويروى عنه ولا يمكننا أن نقطع عليه بأنه علم ضعف ذلك الذى يدلسه فإن هذا حرام»

دغه شان دوی فرمائی «وهو يدلس وربما دلس عن ضعيف ولا يدرى به فمتى قال حدثنا فلا كلام ومتى قال عن تطرق إليه إحتمال التدليس إلا فى شيوخ له أكثر عنهم كإبراهيم وابن أبى وائل وأبى صالح السمان، فإن روايته عن هذا الصنف محمولة على الإتصال» يعنى دوی به تدليس كولو اوتدليس به ئې هم كله د ضعيف راوی نه کولو .خودوی به خبر نه وو .نوکه دوی په «حدثنا» سره حديث روايت کړی .نو ددې په قبوليت کښې څه کلام نشته.اوکه په عنعنه سره روايت اوکړی.نوپه دې کښې دتدليس احتمال شته.البته دا چه دهغه شيوخو استاذانو چه دې دهغوی نه زيات احاديث بيانوی.نو ددوی نه د عنعنه کولوباوجود به دا په سماع باندې محمول وی. والله أعلم.

امام اعمش رحمه الله د ۶۱هـ په اوائلو کښې پيدا شوې وو .اوپه ۱۴۷هـ يا ۱۴۸هـ کښې وفات شوی وو . رحمه الله تعالى رحمة واسعة[1]

**عَنْ إِبْرَاهِيمَ:** دوی دکوفې مشهور تابعی فقيه .ابوعمران ابراهيم بن يزيد بن قيس بن اسود نخعی رحمه الله دی.ددوی مورمليکه بنت يزيد ده.اودعبدالرحمن بن يزيد خور وه[2]

دخپلو دواړو ماماګانو نه علاوه ئې دحضرت عبيده سلمانی.اوهمام بن الحارث .علقمه بن قيس نخعی.اومسروق بن الاجدع رحمهم الله وغيره نه روايت د حديثو کړې دې.[3]

ددوی نه په روايت کونکوکښې حکم بن عتبه،حماد بن ابی سليمان. بيدالیامی اوامام اعمش رحمهم الله وغيره دی.[4] امام اعمش رحمه الله فرمائی «كان ابراهيم صيرفى الحديث»[5]

امام شعبی رحمه الله فرمائی «أما أنه ما ترك أحداً أعلم منه أو أفقه منه قلت: القائل هو شعيب بن الحجاب ولا الحسن ولا ابن سيرين ؟ قال: ولا الحسن ولا ابن سيرين، ولا من أهل البصرة ولا من أهل الكوفة ولا من أهل الحجاز، وفى رواية ولا بالشام»[6]

---

[1] تهذيب الكمال(۱۲\۷۶، ۹۲) وعمدة القارى(۱\۲۱٤) وميزان الإعتدال(۲\۲۲٤) رقم (۳۵۱۷) و تقريب(ص.۲۵٤) رقم ۲۶۱۵) وخلاصة الخزرجى(ص.۱۵۵)_

[2] تهذيب الكمال(۲\۲۳۳، ۲۳٤)_

[3] تهذيب الكمال(۲\۲۳٤) وخلاصة الخزرجى(۲۳.) وعمدة القارى(۱\۲۱٤)_

[4] المصادر السابقة)_

[5] تهذيب الكمال(۲\۲۳۸) وسير أعلام النبلاء (٤\۵۲۱)_

[6] تهذيب الكمال(۲\۲۳۸) وسير أعلام النبلاء(٤\۵۲۷)_

مغيره بن مقسم رحمه الله فرمائي. «كنا نهاب من إبراهيم كما يهاب من الأمير»[١]
امام اعمش رحمه الله فرمائي چه امام نخعي رحمه الله به همشيه دپاره د شهرت او نام نمود نه ځان بچ
ساتل. تردې چه دستني وغيره سره به نې د درس حلقه نه جوړوله.[٢]
احمدبن عبدالله عجلى رحمه الله فرمائي. «لم يحدث عن أحد من أصحاب النبي ﷺ وقد أدرك جماعة ورأى
عائشة رؤيا وكان مفتي أهل الكوفة هو والشعبي في زمانهما وكان رجلا صالحاً فقيهاً متوقياً قليل التكلف»[٣]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي. «ثقة إلا أنه كان يرسل كثيراً»[٤]
حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي. «إبراهيم بن يزيد النخعي أحد الأعلام يرسل عن جماعة»[٥]
دغه شان فرمائي. «استقر الأمر على أن إبراهيم حجة وأنه إذا أرسل عن ابن مسعود وغيره فليس ذلك بحجة»
[٦] يعني ابراهيم نخعي في نفسه حجت دې. البته چه کله مرسل روايت اوکړي. نو دده مرسل
روايت حجت نه دې. برابره ده که دابن مسعود رضي الله عنه نه ارسال اوکړي. اوکه د بل چانه.
خودحافظ ابن حجر رحمه الله دا قول محل داشکال دې. ځکه چه يحيى بن معين رحمه الله فرمائي
«مراسيل نخعي أحب إلى من مراسيل شعبي»[٧] اودامام شعبي رحمه الله د مراسيلو په باره کښې امام
عجلى رحمه الله فرمائي. «ومرسل الشعبي صحيح لا يكاد يرسل إلا صحيحاً»[٨]
بيا امام ترمذى رحمه الله په کتاب العلل کښې دامام اعمش رحمه الله نه نقل کوي. «قلت لإبراهيم النخعي
أسند لي عن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فقال إبراهيم إذا حدثتك عن رجل عن عبدالله فهو الذي سميت، وإذا قلت
قال عبدالله فهو عن غير واحد عن عبدالله»[٩] مطلب دا دې. که ابراهيم نخعي رحمه الله د عبدالله بن
مسعود رضي الله عنه نه مسنداً روايت کوي. نو د دې مطلب به دا وي. چه صرف په دې يو سند سره
دغه مروي دې. اوکه مرسلاً روايت کوي. نوددې مطلب به دا وي. چه دحضرت عبدالله بن
مسعود رضي الله عنه نه دا حديث څو کسانو روايت کړې دې.
په دې بنياد باندې حافظ ابن رجب رحمه الله فرمائي. «وهذا يقتضي ترجيح المرسل على المسند لكن عن

---

[١] خلاصة الخزرجي (ص.٢٣) وسير أعلام النبلاء (٤/٥٢٢)_
[٢] خلاصة الخزرجي (ص.٢٣)_
[٣] تهذيب الكمال (٢/٢٣٧) وتهذيب التهذيب (١/١٧٧)_
[٤] تقريب التهذيب (ص.٩٥) رقم ٢٧٠)_
[٥] ميزان الإعتدال (١/٧٥)_
[٦] ميزان الإعتدال (١/٧٤)_
[٧] تهذيب الكمال (٢/٢٣٨) وتهذيب التهذيب (١/١٧٧) وسير أعلام النبلاء (٤/٥٢٢)_
[٨] تهذيب الكمال (١٤/٣٥) ترجمة عامر بن شراحيل الشعبي وخلاصة الخزرجي (ص.١٨٤)_
[٩] كتاب العلل للترمذي في آخر كتابه الجامع (٢/٢٣٧)_

النخعي خاصة فيما أرسله عن ابن مسعود خاصة وقد قال أحمد في مراسيل النخعي لا بأس بها وقال ابن معين مرسلات ابراهيم صحيحة إلا حديث تاجر البحرين وحديث الضحك في الصلاة وقال أيضاً إبراهيم أعجب إلى مرسلات من سالم والقاسم وسعيد بن المسيب»(۱)

دغه شان حافظ ابوسعید علائی فرمائی «هو مكثر من الإرسال وجماعة من الأئمة صححوا مراسيله وخص البيهقي بما أرسله عن ابن مسعود رضی الله عنه»(۲)

ددې عبارتونو او نصوصونه معلومه شوه چه دابراهیم نخعي مراسیل مطلقاً رد کول صحیح نه دی بیا خاص کرکله چه هغوی د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه ارسال کوی ځکه چه حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی «وكان بصيراً بعلم ابن مسعود رضی الله عنه واسع الرواية فقيه النفس كبير الشأن كثير المحاسن رحمه الله تعالى»(۳)

په آخری عمر کښې دحجاج بن یوسف دطرفه ددوی لټون جاری وو اودوی پټ شوی وو. هم په دغه حالت کښې اول دحجاج بن یوسف اوبیا وریسې څه وخت پس ددوی وفات اوشو(۴)

په آخری وخت کښې ډیر پریشانه وو خلقو ترې تپوس اوکړو چه ولې څه خطره درته پیښه شوې ده. دوی ورته اوفرمائیل.په دې وخت کښې چه زه کومې لوئې خطرې سره مخامخ یم. ددې نه لویه خطره بله کومه کیدې شی.اوس به زما د رب قاصد راشی. اوزما خاني خوبه یا جنت شی. اویا به جهنم شی.په الله قسم زما خواهش دا دې چه زما روح ترقیامته پورې په حلق کښې وی.(۵)

په کال ۹۶ ه کښې وفات شوی وو. رحمه الله رحمة واسعة(۶)

عَنْ عَلْقَمَةَ: دوی د کوفې مشهور تابعي فقیه .امام ابوشبل علقمه بن قیس بن عبدالله بن مالك نخعي دی.دوی دابراهیم نخعي رحمه الله د مور اود ماما اسود بن یزید او عبدالرحمن بن یزید تره وو.

دنبی اکرم ﷺ په ژوند کښې پیدا شوې وو.خونبی ﷺ ئې نه وو لیدلی.ددې وجې ددوی شمار په مخضرمینو کښې کیږی.

دعلم دپاره ئې سفرونه کړی وو.د حضرات خلفاء راشدینو نه علاوه دحضرت سلمان،حضرت ابوالدرداء حضرت خالد بن ولید .حضرت حذیفه.حضرت خباب. حضرت عائشې،حضرت

---

(۱) انظر تعلیقات محقق کتاب تهذیب الکمال(۲\۲۳۹. ۲۴۰)_
(۲) تهذیب الکمال(۱۱\۱۷۸. ۱۷۹)_
(۳) سیر أعلام النبلاء ( ۴\۵۲۱)_
(۴) تهذیب الکمال(۲\۲۳۷) وحاشیة تهذیب الکمال(۲\۲۴۰)_
(۵) سیر أعلام النبلاء ( ۴\۵۲۸)_
(۶) سیر أعلام النبلاء ( ۴\۵۲۷) وتهذیب الکمال(۲\۲۴۰) وتقریب (ص.۹۵) وخلاصة الخزرجی (ص.۲۳)_

سعد.حضرت عمار.اوحضرت ابومسعود بدري رضي الله عنهم وغيره نه ئې نه د حديث روايت كړې دې.په كوفه كښې مقيم شوي وو.اودحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه سره ئې صحبت اختياركړې وو.تردې چه دعلم او عمل روښانه مناره ترې جوړه شوه.لويو لويو عالمانو رحمهم الله ددوی نه علم فقه حاصل كړه.او ددوی نوم لرې لرې پورې خور شو.

د دوی نه چا چا استفاده كړې ده.په هغوی كښې حضرت امام ابراهيم نخعي. امام شعبي. سلمه بن كهيل.ابووائل شقيق بن سلمه او ابواسحاق سبيعي. رحمهم الله وغيره ډېرحضرات دي.

ددوی اولاد وغيره نه وو.حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ددوی كنيت..ابوشبل،، كيخودې وو حضرت علقمه دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دټولو نه خاص ترين شاګرد وو .تردې چه په اخلاقو اوعاداتوكښې هم دهغوی سره مشابه وو.

هم دا وجه ده چه رباح ليثي رحمه الله فرمائي.«فإذا رأيت علقمة فلا تضرك أن لا ترى عبدالله فإنه أشبه الناس به هدياً وسمتاً»

دنوم نهاداوشهرت نه به لرې لرې اوسيدو.عبدالرحمن بن يزيد رحمه الله فرمائي.چه مونږ حضرت علقمه ته عرض اوكړو.كه تاسو په جمات كښې كينئ. اومونږ ستاسونه هلته استفاده كوو نودا به ښه وي.نودوی اوفرمائيل.زما دا نه ده خوښه.چه خلق ماطرف ته اشاره كوي. اووائي چه دا علقمه دې.خلقو ورته اووئيل. كه تاسو اميرانو اوحاكمانو ته تلئ راتلئ.نوستاسو به ډېر قدر وو.دوی ورته اوفرمائيل . «أخاف أن ينتقصوا مني أكثر ما أنتقص منهم»

قرآن كريم به ئې ډېر په خوږ آواز لوستل.حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دوی نه دقرآن پاك د لوستلو مطالبه كوله.اوهغوی به اوريدلو.اوفرمائيل به ئې.«زدنا فداك أبي وأمي فإني سمعت رسول الله ﷺ يقول: إن حسن الصوت زينة القرآن»

قابوس بن ابوظبيان دخپل پلار نه تپوس اوكړو.چه ته دنبي ﷺ دصحابو رضي الله عنهم مجلسونه پرېږدې.اودحضرت علقمه په مجلس كښې كينې.نوابوظبيان ورته جواب وركړو.چه ما په خپله د نبي ﷺ صحابه كرام رضي الله عنهم ليدلي دي.چه دده نه به ئې تپوس كولو.اواستفاده به ئې ترې كوله امام احمدبن حنبل رحمه الله ددوی په باره كښې فرمائي.«ثقة من أهل الخير»

امام يحيى بن معين رحمه الله دوی لره ثقه ګرځولي دي.

حافظ ابن حجر رحمه الله ليكي.«ثقة ثبت فقيه عابد»

حضرت علقمه رحمه الله وصيت كړې وو چه كله زما د زنكدن وخت شي. نوداسې كس ماسره كينوئ.چه ما ته د «لا إله إلا الله» تلقين كوي.اودوفات نه پس ما زر دفن كړئ.خلقوكښې اعلان مكوئ.هسې نه چه د جاهليت طريقه شي.(۱)

---

۱) سير أعلام النبلاء(۴\۵۳. ۶۱) وتهذيب الكمال(۲۰\۳۰۰. ۳۰۸) وتقريب التهذيب (ص.۳۹۷) رقم ۴۶۸۱) وخلاصة الخزرجي (ص.۲۷۱)-

د دوى وفات د ۶۰ هـ يا ۷۰ هـ نه پس شوې وو. رحمه الله تعالى رضى عنه وأرضاه.

عَنْ عَبْدِاللّٰهِ: (دوى مشهور صحابى حضرت عبدالله بن مسعود بن غافل بن حبيب هذلى رضي الله عنه دى. ابو عبدالرحمن ددوى كنيت دې

په سابقين اولينوكښې ددوى شمار كيږى په بدر وغيره غزاګانوكښې شريك شوې وو. دحبشې او مدينې دواړه هجرتونه ئې كړى دى په عالمانوصحابوﷺ كښې وو ددوى نه په صحابوﷺ اوتابعينو رحمهم الله كښې يوجم غفيرعلم حاصل كړې دې

په حضرات صحابه كراموﷺ كښې حضرت ابوموسى اشعرى.حضرت ابوهريره حضرت ابن عباس.حضرت ابن عمر.حضرت عمران بن حصين.حضرت جابر.حضرت انس.حضرت ابوامامه ﷺ وغيره ددوى نه روايت كړې دې

په حضرات تابعينو رحمهم الله كښې چه كومو حضراتو ددوى نه استفاده كړې ده. هغوى كښې دا حضرات مشهور دى.حضرت علقمه.اسود مسروق. عبيده. ابووائله. قيس بن ابى حازم رحمهم الله وغيره.(٢)

دحضرت عمر رضي الله عنه نه ئې وړاندې اسلام راوړې وو.په خپله فرمائى((لقد رأيتنى سادس ستة وما على ظهرالأرض مسلم غيرنا))(٣)

ددوى موربى بى هم صحابيه رضي الله عنها وه.هغوى ته به ام عبد وئيلى شى.هم په دې نسبت سره دوى ته هم ابن ام عبد رضي الله عنه وئيلى شى.(٤)

دوى دواړو موراوخوى د نبى ﷺ سره خصوصى تعلق ساتل.حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه فرمائى((قدمت أنا وأخى من اليمن فمكثنا حيناً ما نرى ابن مسعود رضي الله عنه وأمه إلا من أهل البيت من كثرة دخولهم ولزومهم له))(٥)

---

(١) الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه فى كتاب الأنبياء أيضاً باب قول الله تعالى:( واتخذالله إبراهيم خليلاً رقم ۴۳۶۰ وباب قول الله تعالى:( ولقد آتينا لقمان الحكمة .. رقم ۳۴۲۸) و(۳۴۲۹) وفى كتاب التفسير تفسير سورة الأنعام باب قوله: ( ولم يلبسوا إيمانهم بظلم) رقم ۴۶۲۹ وسورة لقمان باب قوله: ( لاتشرك بالله إن الشرك لظلم عظيم) رقم ۴۷۷۶ وفى كتاب إستتابة المرتدين والمعاندين وقتالهم باب إثم من أشرك بالله وعقوبته فى الدنيا والآخرة رقم ۶۹۱۸ وباب ما جاء فى المتأولين رقم ۶۹۳۷ ومسلم فى صحيحه (۱\۷۷) كتاب الإيمان باب صدق الإيمان وإخلاصه والترمذى فى جامعه فى كتاب تفسير القرآن ومن سورة الأنعام رقم ۳۰۶۷-

(٢) سيرأعلام النبلاء (۱\۴۱۶. ۴۶۲) وتهذيب الأسماء واللغات (۱\۲۸۹) وتهذيب الكمال(۱۶\۱۲۱. ۱۲۶)_

(٣) المستدرک للحاكم(۳\۳۱۳)_

(٤) سيرأعلام النبلاء(۱\۴۶۲) وتهذيب الأسماء واللغات(ت۱\۲۸۸)-

(٥) صحيح بخارى(۱\۵۳۱) كتاب المناقب باب مناقب عبدالله بن مسعود (۲\۶۲۹) كتاب المغازى باب قدوم الأشعريين وأهل اليمن وصحيح مسلم(۲\۲۹۲) كتاب الفضائل باب من فضائل عبدالله بن مسعود وأمه رضي الله عنهما

په سفرکښې به د نبی ﷺ پنړۍ مبارکې ،مسواک ،بستره.د اودس سامان د دوی سره وو په عامو ورځو کښې به هم دوی نبی ﷺ ته پنړۍ اچولې اوکله چه به نبی ﷺ پنړۍ اوویستلې نو دوی به هغه دخپلو لستونړو په جیب کښې اچولې.(۱)
دبدرپه ورځ چه کله ابوجهل دوو وړو ماشومانو زخمی کړو.نونبی ﷺ هم دوی دهغه د قتل کولودپاره اولیږل.دوی ددې امت فرعون قتل کړلو.نبی ﷺ دوی ته دجنت زیرې ورکړو.
د نبی ﷺ سره د ربط اوتعلق اندازه ددې نه اولګوئ.چه پخپله فرمائی ((علمنی رسول الله ﷺ وکفی بین کفیه،التشهد کمایعلمنی السورة من القرآن(۲)
حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه نبی ﷺ ماته حکم اوکړو چه زه هغوی ته قرآن کریم واوروم.ماورته عرض اوکړو.یارسول الله زه تاسو ته قرآن پاک اولولم.حالانکه په تاسوباندې خو قرآن نازل شوې دې.نو نبی ﷺ راته اوفرمائیل.زه دبل د خولې نه قرآن اوریدل خوښوم.نوما سورة نساء شروع کړه.کله چه دې ځائې ته راورسیدم.﴿ فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِن كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ شَهِيدًا ﴾نو نبی ﷺ زه اودرولم.اوراته ئې اوفرمائیل.پس دومره کافی دې چه هغوی ته مې اوکتل.نودهغوی د سترګو نه اوښکې جاری وې.(۳)
دوی پخپله فرمائی((والذی لااله غیره،ما من کتاب الله سورة إلا أنا أعلم حیث نزلت وما من آیة إلا أنا أعلم فیما نزلت ولوأعلم أحداً هوأعلم بکتاب الله منی تبلغه الإبل لرکبت إلیه))(۴)
یوخل نبی ﷺ دحضرت ابوبکراوحضرت عمر رضی الله عنهما په خواه کښې تیرشو. اوحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه قرآن لوستلو.نبی ﷺ اوفرمائیل.((من أحب أن یقرأ القرآن غضاً کما أنزل فلیقرأ قراءة ابن ام عبد)) بیاحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په دعا کښې مشغول شو.((اللهم إنی أسألک إیماناً لا یرتد ونعیماً لا ینفد ومرافقة نبیک محمد ﷺ فی أعلی جنان الخلد)) نبی ﷺ ددوی په دعا باندې فرمائیل.((سل تعط))(۵)
حضرت حذیفه رضی الله عنه فرمائی.چه حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په اخلاقو، عاداتو ،قضاء او

---

(۱) طبقات ابن سعد(۱۵۳\۳)_
(۲) صحیح بخاری کتاب الإستیذان باب الأخذ بالیدرقم ۶۲۶۵ وصحیح مسلم (۱۷٤\۱) کتاب الصلاة باب التشهد فی الصلاة )_
(۳) صحیح بخاری (۷۵۵\۲) کتاب فضائل القرآن باب من أحب أن یسمع القرآن من غیره وباب قول المقرئ للقارئ حسبک و(۷۵۶\۲) باب البکاء عند قراءة القرآن بوصحیح مسلم (۲۷۰\۱) کتاب فضائل القرآن باب فضل إستماع القرآن ..)__
(۴) صحیح مسلم (۲۹۳\۲) کتاب الفضائل باب من فضائل عبدالله بن مسعود رضی الله عنه وأمه رضی الله عنها)_
(۵) مسند أحمد(٤٤٥\۱، ٤٥٤)_

خطبه وغيره كښې نبى ﷺ مشابه وو دغه شان فرمائى «ولقد علم المتهجدون من أصحاب محمد ﷺ أن عبدالله من أقربهم عندالله وسيلة يوم القيامة (قال النهبي ﷺ كذا قال المتهجدون ولعله المتهجدون)»(١)

حضرت عمربن الخطاب ؓ دوى كوفې ته اوليږلو اودكوفې خلقو ته ليكلى وو «بعثت إليكم عماراً أميراً وعبدالله بن مسعود معلماً و وزيراً وهما من النجباء من أصحاب رسول الله ﷺ ومن أهل بدر فاقتدوا بهما وقد آثرتكم بعبدالله على نفسى»(٢)

حضرت عمر ؓ دحضرت ابن مسعود ؓ په باره كښې فرمائى «كنيف (٣) ملئ علماً»(٤) چه دوى يو لوئ لوښې دې.چه د لبالب (دسرنه ويخه پورې د) علم نه ترمره پورې ډك دې.
يوځل حضرت عبدالله بن مسعود ؓ بيمارشو.نوحضرت عثمان ذوالنورين ؓ ئې بيمارپرسئ ته تشريف يوړلو.

تپوس ئې ترې اوكړو.«ماتشتكى؟»تاسوته څه تكليف دې؟

وې فرمائيل.«ذنوبى»ماته زما دګناهونود احساس تكليف دې

تپوس ئې ترې اوكړو«فماتشتهى؟»تاسوڅه خواهش دې؟

وې فرمائيل.«رحمة ربى»زه دخپل پروردګارد رحمت طلبګاريم.

تپوس ئې تراوكړو.«ألا آمرلك بطبيب؟»آيا زه ستا دپاره د طبيب انتظام اوكړم

وې فرمائيل.«الطبيب أمرضنى» زما دپاره به د طبيب څه انتظام اوكړئ.اصل طبيب خوزه بيمار كړې يم.

تپوس ئې اوكړو.«ألا آمرلك بعطاء؟»آيا ستاسودپاره د څه پيسو بندوبست اوكړم

وې فرمائيل.«لاحاجة لى فيه»ماته د دې څه ضرورت نشته.
حضرت عثمان ؓ اوفرمائيل.كه تاسوته ضرورت نه وى.نوستاسو نه پس به ستاسود لونړو دپاره پكار راشى.
حضرت ابن مسعود ؓ اوفرمائيل.تاسوته زما د لونړو په باره كښې د فقيرئ ويره ده.داسې خبره نه ده.ځكه چه ماهغوى ته روزانه د شپې د سورة واقعه د لوستلو تلقين كړې دې.اوما د رسول الله ﷺ نه اوريدلى دى.چه هغوى فرمائيلى دى.

---

(١) سير أعلام النبلاء(١\٤٧٠)-
(٢) تهذيب الأسماء واللغات (١\٢٩٠)_
(٣) وهو تصغير تعظيم للكنف بمعنى الوعاء انظر النهاية لابن الأثير(٤\٢٠٥)_
(٤) تهذيب الأسماء واللغات (١\٢٩٠) وسير أعلام النبلاء (١\٤٩١)_

((من قرأ سورة الواقعة كل ليلة لم تصبه فاقة أبداً))(١)

دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه ټول اته سوه اته څلويښت احاديث مروى دى په دې کښې څلورشپيته متفق عليه دى.اوامام بخاري رحمه الله په يوويشت احاديثوکښې متفرد دې اوامام مسلم په پنځه ديرش احاديث کښې متفرد دې.

په ٣٢ھ يا ٣٣ھ کښې دوى وفات شوى وو.(٢) رضى الله عنه وأرضاه(٣)

فائده دا خبره دې ياده وى.چه دحديث صحت او ضعف په اصل اسناد باندې وى.کوم سند چه څومره شرائطو لره جامع وى.نوهم هغه هومره به په هغې کښې قوت راځى اوپه کوم سندکښې چه د شروط دصحت نه څومره کمې راځى.نوهم هغه هومره به هغه حديث ضعيف وى.ددې وجې په يوخاص سند باندې د أصح الاسانيد اطلاق کول نه دى پکار. خوبيا هم بعضې اکابرينو رحمهم الله په بعضې اسنادو باندې د اصح الاسانيد اطلاق کړې دې.(٤) په داسې اسانيدوکښې يوسند دا هم دې.په کوم سره چه حديث باب مروى دى.((عن الأعمش عن ابراهيم،عن علقمة،عن عبدالله)) امام يحيى بن معين رحمه الله دې سند لره اصح الاسانيد ګرځولې دې.(٥)

**قوله: قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ ﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ﴾ قَالَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّنَا لَمْ يَظْلِمْ:** حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائى.چه کله دا آيت نازل شو ﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ﴾ نود رسول الله ﷺ صحابو رضي الله عنهم عرض اوکړو.په مونږ کښې به څوک وى.چه هغه به ظلم نه وى کړې؟

مطلب دا چه آيت ظاهرى معنى ئې اوکتله.نوصحابه کرام رضي الله عنهم اوويريدل.چه په دې کښې امن او اهتداء صرف دهغه کسانودپاره ده.چه دخپل ايمان سره ظلم ملاوْ نکړى.اوپه مونږ کښې به څوک داسې وى.چه دهغه نه به څه ناڅه ظلم نه وى شوې.نوددې آيت مطابق مونږ دامن او هدايت نه محروم شو.

---

(١) تهذيب الأسماء واللغات (٢٩٠١١) وحديث من قرأ ... أخرجه أبوعبيد فى فضائله وابن الضريس والحارث بن أبى أسامة وأبويعلى.وابن مردويه.والبيهقى فى شعب الإيمان عن ابن مسعود رضي الله عنه قاله السيوطى فى الدرالمنثور (١٥٣١٦) فاتحة سورة الواقعة )۔

(٢) تهذيب الأسماء واللغات (٢٨٨١١) وخلاصة الخزرجي (٢١٤) وقال الذهبى رحمه الله فى سيرأعلام النبلاء(٤٦٢١١) وله عند بقى بالمكرر ثمانى مائة وأربعون حديثاً والله أعلم)۔

(٣) د تفصيلى حالاتو دپاره اوګورئ.طبقات ابن سعد.(٢٤٢١٢. ٣٤٤) و(٣. ١٥٠. ١٦١) و(٦. ١٣و ١٤) وتهذيب الأسماء واللغات (٢٨٨١١. ٢٩٠) وسير أعلام النبلاء(٣٦١٣)۔

(٤) مقدمة ابن الصلاح (ص.٨) النوع الأول معرفة الصحيح)۔

(٥) تقريب مع (٧٧١١. ٧٨) ومقدمة ابن الصلاح (ص.٨)۔

**دحضرات صحابه كراموﷺ د ويرې سبب** صحابه كرام ﷺ ولې اوويرېدل.ددې وجه مونږ اوس اوخودله البته مختلفو حضراتو ددې مختلف تعبيرات كړى دى

① امام خطابى ﷫ فرمائى «إنما قالت الصحابة هذا القول لأنهم التفوا من الظلم ظاهره الذى هو الإفتيات بحقوق الناس أو الظلم الذى ظلموا به أنفسهم من ركوب معصية أواتيان محرم كقوله عزوجل ﴿وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ﴾ الآية وذلك حق الظاهر فيما كان يصلح له هذا الإسم ويحتمله المعنى عندهم ولم تكن الآية نزلت بتسمية الشرك ظلماً وكان الشرك عندهم أعظم من أن يلقب بهذا الإسم فسألوا رسول الله ﷺ عن ذلك...» [1]

يعنى حضرات صحابه كرامو ﷺ دظلم هغه مطلب واخستلو.كوم چه عام دې. يعنى دخلقو حق اخستل،يا دمعاصى اوحرامو ارتكاب كول اوپه خپل خان ظلم كول.ددې حضراتو په نيز دا لفظ هم ددې معنى دپاره ظاهر وو.اوصرف ددې معنى په دې كښې احتمال وو.په هغه وخت كښې داسې آيت نه وو نازل شوې.چه شرك ته ئې د ظلم نوم وركړې وو.بيا دهغوى په نيز دشرك مقام ددې نه اوچت وو. چه هغې ته د ظلم نوم وركړې شى.ددې وجې هغوى ويريدل.اود نبى ﷺ نه ئې د تفصيل تپوس اوكړو.

② حافظ ابن حجر ﷫ فرمائى.چه ظاهره خبره داده.چه صحابه كرامو ﷺ ..ظلم.. عام ګنړلې وو.ځكه چه دا نكره ده.چه د نفى لاندې واقع شوې ده.اوكومه نكره چه د نفى لاندې راشى.هغه د عموم فائده وركوى.نوهغوى دا اوګنړله.چه د ظلم هرفرد به مراد وى.اودا ناممكن ده.ځكه چه پيغمبران عليهم السلام نه سوا يوكس هم د ظلم دهرفرد نه بچ كيدل ناممكن دى.اوهركله چه هركس نه د ظلم تحقق كيږى.نود آيت دتصريح مطابق بيا به نه هغه ته امن ملاويږى.اونه به ده ته هدايت حاصليږى. ددې وجې حضرات صحابه كرام ﷺ اوويريدل.نو نبى ﷺ هغوى ته اوخودل.چه دلته د ظلم نه دټولونه اعلى فرد مراد دې.او ..ظلم.. كښې تنوين دپاره د تعظيم دې.اوددې قرينه د سورة لقمان آيت دې.په كوم كښې چه الله تعالى فرمائى.

﴿إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ﴾ په دې آيت كښې شرك ته ظلم عظيم وئيلې شوې دې.[2]

**په ايت كښې د ظلم نه د شرک مراد اخستلو قرينه څه ده؟** دعالمانو ﷺ په مينځ كښې په دې باندې بحث شوې دې.چه آيا په دې تفسيرباندې چه د ظلم نه مراد شرك دې.څه قرينه دلالت كوى.اوكه نبى ﷺ دخپل طرف نه تفسير كړې دې؟

بعضې حضرات فرمائى.چه دا سوال كول نامعقول دې.ځكه چه پخپله نبى ﷺ صاحب وحى وو.پخپله دمتكلم دطرفه په هغوى باندې وحى راتله.دوى اولنې مخاطب وو.هغوى ته هرڅه ښكاره وو.هغوى ته دقرينې څه ضرورت وو؟.قرينه خو د ړوند د همسا پشان ده.كومه چه

---

[1] أعلام الحديث للخطابى (١\١٦٢، ١٦٣)_

[2] فتح البارى (١\٨٨)_

دضرورت په وجه اخستې شي بيا نه د همسا څه ضرورت دې؟

خومحققين حضرات رحمهم الله فرمائي چه دا خبره ټيك ده چه نبي ﷺ ته د څه قرينې ضرورت نه وو خوكه څه قرينه هم موجود شي نوپه دې كښې څه قباحت دې؟

حضرت مولانا محمد قاسم نانوتوی اوحضرت مولانا رشيد احمد گنگوهی رحمهما الله فرمائي. چه په دې آيت كښې چه د ظلم نه مراد شرك مراد اخستې شي.په دې باندې لفظ د ,,لبس،، دې كوم چه په دې خبره دال دې.چه دلته د ظلم نه مراد عام معاصی نه دی بلكه شرك مراد دې.ځكه چه د ,,لبس،، معنى ده.دوه څيزونه په خپل مينځ كښې داسې خلط كول چه دهغې په منيځ كښې امتياز باقى پاتې نشى.دې ته وائى.اودا په هغه وخت كښې كيدې شى چه د دواړو محل يو وى. او دمحل اتحاد په ايمان او شرك كښې كيدې شى.ځكه چه قلب لكه څنگه چه د ايمان محل دې.دغه شان د شرك محل هم دې.حالانكه د نورو معاصى محل اكثراندامونه وى.قلب دهغې محل نه وى.ځكه نبي ﷺ دالله تعالى د مراد تعين په شرك سره اوكړو.مثلاً د شربت جوړيدو دپاره ضرورى دى.چه چينى او اوبه دواړه په يومحل كښې وى.كه دواړه په دوو گلاسونوكښې جدا جدا وى.نوهلته خلط نه وى.كوم چه د شربت جوړيدو دپاره ضرورى وى.

دا حضرات فرمائي.هركله چه نې دلته لفظ د ((لبس))اووئيل.نومعلومه شوه. چه ايمان او ظلم دواړه به دواړه په يومحل كښې وى.اودا خبره ثابته شوې ده.چه محل دايمان قلب دې لكه څنگه چه نصوص په دې باندې ناطق دى.ځكه به د ظلم نه مراد هم هغه ظلم وى. دكوم محل چه زړه دې.اودكوم ظلم محل چه زړه دې.هغه شرك دې.دمعاصى تعلق اكثرد جوارحو سره وى.نولكه چه دا لفظ د ((لبس)) په دې باندې قرينه ده.چه دلته د ظلم نه مراد شرك دې. خوچونكه قرينه قطعى الدلالت څيز نه وى.بلكه ددې خلاف څيز ته هم ذهنونه متوجه كيدې شى.نوپه دې مقام كښې لكه چه جوارح او قلب دواړه جدا جدا محلونه دى.خوچه دا دواړه جدا جدا محل شمارل.دا يوه دقيقه مسئله ده.كه يوكس دا دواړه مجازاً او توسعاً په يوكس كښې محل واحد شماركړى.نوپه دې صورت كښې هم خلط متحقق كيږى.صحابه كرام رضي الله عنهم هم دا اوگڼل.اوهغوى په شبه كښې پريوتل.خونبى ﷺ داصل حقيقت خيال اوساتلو.اووې خودل چه شرك مراددې.(١)

**دايت د تفسيرپه سلسله كښې د معتزلو موقف اودهغې ترديد** علامه زمخشرى ددې آيت لاندې ليكلى دى ﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُم بِظُلْمٍ﴾ دى. لم يخلطوا ايمانهم بمعصية تفسقهم وأبى تفسيرالظلم بالكفر لفظ اللبس))(٢)مطلب دا دې چه په آيت كښې كوم ظلم راغلې دې.ددې نه مراد معاصى دى.شرك اوكفر ترې مراد نه دې.ځكه چه دلته لفظ د ,,لبس،، استعمال شوې

(١) لامع الدرارى (١/٥٧٢، ٥٧٣) وفضل البارى (١/٤٣٣)

(٢) الكشاف عن حقائق غوامض التنزيل (٢/٤٣) سورة الأنعام)_

دي.دکوم معنی چه ګډ وډ کول دی. چونکه ایمان اوکفردواړه ضدین دی.په دواړوکښې اجتماع ممکن نه ده.نود اختلاط سوال نه پیدا کیږی.اوهرکله چه اختلاط ممکن نه دې.نود ظلم نه د شرك اوکفر معنی اخستلو په ځائې به معاصی مراد اخستې شی.چونکه په دې آیت کښې داسې خلق چه دخپل ایمان سره ظلم خلط کوی غیرمامون او غیرمهتدی ګرځولی شوی دی نوونیلې به شی.چه مرتکب د کبیرې به خارج عن الایمان اومخلد فی النار وی

بیا چونکه په حدیث کښې د ظلم تفسیر په صراحت سره په شرك سره شوې دې ددې دپاره معتزلو دا ونیلی دی.اوحدیث ئې رد کړې دې.چه دا خبرواحد دې اودعقل نه خلاف دې.د هغوی په خیال کښې لکه څنګه چه دا حدیث د عقل نه خلاف دې دغه شان د قرآن کریم ددې آیت نه هم خلاف دې.ځکه چه دایمان اوکفر خلط اولبس محال دې.ځکه چه لبس اوخلط په هغه وخت کښې متحقق کیږی.چه د دواړو محل یو وی اوایمان اوشرك چونکه ضدین دی.اوضدینو اجتماع په محل واحد کښې په یووخت کښې ناممکن ده.نوهرکله چه فی نفسه دایمان او شرك لبس محال شو.نودظلم تفسیر په شرك سره څنګه کیدې شی؟

اهل سنت والجماعت یو الزامی جواب ورکړې دې.اوونیلې ئې دی.چه تاسو وائې.چه دایمان او شرك اجتماع محال ده.اودا اجتماع د نقیضینو ده.نوموږ ستاسو نه دا تپوس کوو.که ایمان اوشرك نقیضین دی.نوبیا ستاسو په نیز خو معصیت هم د ایمان نقیض دې.دارتکاب معصیت په وجه سړې دایمان نه خارجیږی.نوبیا دایمان اومعصیت اجتماع څنګه ممکن ده؟ اوبیا ددې چه په قرآن کریم کښې د ﴿وَلَمْ يَلْبِسُوٓا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ﴾ نفی شوې ده.ددې فائده څه ده؟کله چه اجتماع ممکن نه ده.نوددې نفی به عبث ګرځولې شی

دغه شان که حدیث ته خبر واحد اوونیلی شی.نودهغه نص قرآنی به څه جواب وی.په کوم کښې چه په صراحت سره ایمان او شرك جمع کړې شوې دې. فرمائی. ﴿وَمَا يُؤْمِنُ اَكْثَرُهُمْ بِاللّٰهِ اِلَّا وَهُمْ مُّشْرِكُوْنَ﴾(۱)

که معتزله دا جواب ورکړی.چه دلته د ایمان نه د دې لغوی معنی یعنی تصدیق بالقلب مراد ده.چه محل ئې قلب دې.اودا د معصیت سره جمع کیدې شی.ځکه چه ددې محل جوارح دی.

نوهم دا جواب موږ هم ورکولې شو.چه ﴿اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوٓا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ﴾ کښې دایمان نه ددې لغوی معنی یعنی صرف تصدیق مراد دې.اوشرك دایمان شرعی ضد دې.ددې سره نشی جمع کیدې.دایمان لغوی سره جمع کیدې شی.نواوس به د آیت مطلب دا شی.چه کوموخلقو یقین کړې دې.چه الله تعالی موجود دې.هغه خالق اومالك دې.هغه د تولونه لوئې دې په دې طریقه چه دهغه د یقین سره د شرك ملاوټ نه وی.مثلاً داسې قسم عقیده نه لری.چه الله تعالی خو د ټولونه لوئې دې.اود هغه سره واړه واړه معبودان هم شته.چاته چه

---

(۱) سورة یوسف:۱۰۶)_

په تکوينياتوکښې په څه درجه د مستقل نفاذ اختيار شته.حالانکه د مشرکين مکه عقيده هم دا وه.يا دالله تعالى متعلق ئې عقيده تړله صحيح وی.خوپه تشريع کښې دچا دپاره مستقل اختيار ثابت کری.لکه يهود او نصاری چه د احبارواو رهبانيانو دپاره ثابتوی.نو کوم کس چه ايمان راوړی.اوهغه په هغه طريقه اومنی. اوبيا دې تسليم سره دداسې قسم شرک بيخی ملاوټ اونکړی.نوصرف هغه خلق مامون او مهتدی کيدې شی.اوکه په الله تعالى باندې د يقين کولوباوجود شرک نه پريږدی.لکه څنګه چه دمشرکانو حالت وو.وځنګه چه يهودواو نصاراو کولو.نوهغه يقين نه ايمان شرعی دې.اونه دهغې په ذريعه امن او هدايت نصيب کيدې شی.

معلومه شوه چه د ظلم معنى شرک واخستې شی.دا خبره نه د عقل نه خلاف ده.اونه دقرآن کريم خلاف لازميږی.بلکه چه دشرک معنى واخستې شی.نو د آيت معنى بيخی بناسته او بې اعتراضه سمون خوری.

ددې نه علاوه که څرته د دې حديث نه قطع نظراوکړې شی.نوبيا هم چه سياق اوسباق ته نظراوکړې شی.نودا متعين کيږی چه دلته د ظلم نه مراد شرک دې.

ددې تفصيل دا دې چه ددې آيت نه د وړاندې رکوع په شروع کښې د شرک د رد بيان دې ﴿قُلْ أَنَدْعُوا مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنفَعُنَا وَلَا يَضُرُّنَا﴾

(۱) بيا هم ددې مضمون په تائيد کښې دحضرت ابراهيم ﷺ واقعه ذکرشوې ده﴿وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ لِأَبِيهِ آزَرَ أَتَتَّخِذُ أَصْنَامًا آلِهَةً﴾ (۲) ددې لاندې دهغوی دخپل پلار سره مکالمه ذکرشوې ده اوبيا دتوحيد په موثرانداز کښې اظهاربيان دې.وړاندې دحضرت ابراهيم ﷺ په خپل قوم باندې انکار ذکرشوې دې.چاچه دوی سره حجت بازی کوله ﴿أَتُحَاجُّونِّي فِي اللَّهِ وَقَدْ هَدَانِ ۚ وَلَا أَخَافُ مَا تُشْرِكُونَ بِهِ﴾ (۳) ددې نه پس حضرت ابراهيم ﷺ د استعجاب په طور فرمائی ﴿وَكَيْفَ أَخَافُ مَا أَشْرَكْتُمْ وَلَا تَخَافُونَ أَنَّكُمْ أَشْرَكْتُم بِاللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ عَلَيْكُمْ سُلْطَانًا ۚ﴾ (۴) ددې نه پس بطور تبکيت فرمائی﴿فَأَيُّ الْفَرِيقَيْنِ أَحَقُّ بِالْأَمْنِ ۖ﴾ (۵)

حضرت ابراهيم ﷺ اووفرمائيل.ما ولې ويروئ.غور اوکړئ.چه چاته ويره پکار ده.هغه چاته چه دالله تعالى سره شرک کوی؟ يا څوک چه هغه د توحيد علمبردار دې.اوس اوښائې.چه امن د چا دپاره پکار دې.هغه ويرې څوک مستحق دې؟دلته د فريقنو مصداق ښکاره دې.چه يو حضرت ابراهيم ﷺ دې.اوبل دهغوی قوم دې.څوک چه په شرک کښې اخته وو.اوحضرت

---

۱) سورة الأنعام: ۷۱)_
۲) سورة الأنعام: ۷۴)_
۳) سورة الأنعام: ۸۰)
۴) سورة الأنعام: ۸۱)_
۵) سورة الأنعام: ۸۱)

ابراهيم علیه السلام ته هم هغه طرف ته رابللو خکه چه خبره دلته هم ددغه خلقو سره کيږي.اود پورتنو تولو آياتونو مخاطبين هم دغه خلق دی.نود فريقينو مصداق دلته يقيني طورمتعين دي چه يوحضرت ابراهيم علیه السلام دي.چه توحيد طرف ته رابلل کولو اودويمه ډله دهغوی قوم وو چه په شرک کښې اخته وو.ددغه فريقينو په باره کښې استفسارکولې شی.چه ﴿ فَأَيُّ الْفَرِيقَيْنِ أَحَقُّ بِالْأَمْنِ ﴾ هم ددې استفسارپه جواب کښې الله تعالی فرمائی ﴿ الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُم بِظُلْمٍ أُولَٰئِكَ لَهُمُ الْأَمْنُ وَهُم مُّهْتَدُونَ ﴾ اوس پخپله په غورسره اوګورئ چه دلته د ظلم نه څه مراد اخستل پکار دی.نوښکاره ده.چه ټوله رکوع د شرک په بيان کښې ده.اوهم په دې باره کښې سوال اوجواب ذکرکولې شی.ددې نه بيخی ښکاره کيږی چه دلته د ظلم نه مراد شرك دې ګڼی دسوال د جواب سره مطابقت نه راځی.

بيا که چيرته مونږ د لږ وخت دپاره دا خبره اومنو.چه دلته دظلم نه مراد معصيت دې شرک نه دې.نوبيا هم د معتزلو دا دعوه نه ثابتيږی چه مرتکب د کبيره مخلدفی النار دی.

ددې وجه دا ده.چه په «وَهُم مُّهْتَدُونَ» کښې دوه احتماله دی.يو «أمن من الدخول في العذاب» يعنی دنفس عذاب نه په امن کيدل.اوبل «أمن من الخلود في العذاب» يعنی د هميشه عذاب نه په امن کيدل.معتزله دخپل مسلك دپاره په دې آيت باندې په هغه وخت کښې استدلال کولې شی.چه په ﴿أُولَٰئِكَ لَهُمُ الْأَمْنُ﴾ کښې په يقين سره دا متعين کړی.چه دلته د ..امن.. نه «أمن من الخلود» مراد دې.اومعتزله دا په يقين سره نشی ثابتولې.خکه چه دلته دويم احتمال «أمن من الدخول» هم دې.کوم چه په دې خبره باندې دلالت کوی.چه مرتکب د کبيرې مونږ د «دخول في النار» مستحق ګڼړو.حالانکه د معتزلو دعوه د خلود في النار ده.دکوم چه په يقين سره اثبات دلته نشی کيدې.(١) والله أعلم بالصواب.

**فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ:** (٢) يعنی کله چه حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم اوويريدل.اوهغوی سره فکرشو.نوتپوس ئې اوکړو.چه په مونږ کښې به څوك داسې وی.چه هغه به ظلم نه وی کړې.نوالله تعالی آيت نازل کړو.﴿ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ﴾

ددې سياق نه معلوميږی.چه د آيت د نزول سبب د صحابه کرامو رضی الله عنهم تپوس اواستفسار وو.حالانکه ددې حديث د نورو طرقو نه معلوميږی.چه د ﴿ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ﴾ آيت ددې نه وړاندې نازل شوې وو.خکه چه په صحيح بخاری کتاب التفسير د روايت الفاظ دا دی.

«إنه ليس بذاك ألا تسمع إلى قول لقمان لابنه ﴿ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ﴾» (٣)

---

(١) دا ټول تفصيل د فضل البارى(١/٤٣٤و ٤٣٦) نه ماخوذ دې.

(٢) سورة لقمان:١٣.

(٣) صحيح بخاری.(٧٠٤/٢)كتاب التفسير تفسير سورة لقمان باب قوله ﴿ لاتشرك بالله إن الشرك لظلم عظيم ﴾

دغه شان د دواړو په سياق كښې تعارض راځي.
په دې دواړوسياقونوكښې د جمع اوتطبيق صورت دا دې چه كله صحابه كرامو رضي الله عنهم اشكال اوكړو.نوهم په هغه وخت كښې سمدستي دسورة لقمان آيت نازل شو.نو نبي ﷺ صحابه كرامو رضي الله عنهم ته جواب وركړواودا تعبير ئې اختيار كړو.«إنه ليس بذاك ألا تسمع إلى قول لقمان..»(١)
والله أعلم.
علامه شبيراحمدعثماني رحمه الله د دې دواړو په مينځ كښې داسې تطبيق كړې دې.چه په حديث مبارك كښې د«فأنزل الله» اطلاق توسعاً شوې دې.لكه څنګه چه مونږ يو زناكارته وايو.چه ستاسو په حق كښې الله تعالى دا آيت نازل كړې دې.﴿ اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ(٣)﴾
يا يوغل ته اووئيلې شي.چه ستا په حق كښې دا حد الله تعالى نازل كړې دې﴿ وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْٓا اَيْدِيَهُمَا ﴾هرسړې په دې پوهيږي.چه ددې نه مراد دا دې.چه ته هم ددې آيت مصداق ئې.اوستاد معاملې فيصله اوحكم ددې آيت نه معلوميږي.حالانكه آيت د زنا او د غلا د نن نه تقريباً څوارلس سوه كاله وړاندې نازل شوى دى.په دې ځائې كښې هم د «فأنزل الله» نه هم دا مراد دې.چه تاسوته كومه شبه يا اشكال راغلو.نو ددې اشكال فيصله ددې آيت نه معلوميږي.(٢) والله أعلم.
**دحديث الباب د ترجمة الباب سره مطابقت:** دحديث دترجمة الباب سره څنګه مطابقت دې؟ نوحضرت علامه عيني رحمه الله فرمائي.چه صحابه كرامو رضي الله عنهم معاصي ظلم اوګڼړل.اونبي ﷺ كفراوشرك ظلم اوګرځولو .نومعلومه شوه.چه بعضې ظلم كفر دې اوبعضې ظلم كفر نه دې.په دې سره د مراتبو فرق په پوهه كښې راځي.او«ظلم دون ظلم»ثابتيږي.(٣)
شيخ الاسلام علامه شبيراحمدعثماني رحمه الله فرمائي.چه د مطابقت د اثبات دپاره دومره لرې تلو ته ضرورت نشته.په ﴿ اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ ﴾ كښې د «عظيم» لفظ په مراتبو باندې صراحة دلالت كوى.ددې نه معلوميږي.چه وړكوټې ظلم هم شته.كوم چه «مادون الشرك» دې.(٤) والله أعلم.

---

(١) فتح البارى(١\٨٨)_
(٢) فضل البارى(١\٤٣٢)_
(٣) عمدة القارى(١\٢١٣)_
(٤) فضل البارى(١\٤٣٣)_

# ٢٣- بَاب عَلَامَةِ الْمُنَافِقِ

منافق د نفاق نه اسم فاعل دې نفاق وائى. دباطن د ظاهر نه مخالفت ته. دشرع په اصطلاح کښې نفاق دا دې چه سړې په ظاهره مسلمان وى اوپه باطن کښې کافر وى.[1]
ددې دوه مأخذ خودلې شوى دى

① ياخودا د ..نفق.. نه ماخوذ دې اونفق سورنګ ته وائى لکه څنګه چه سړې په سورنګ کښې ورننوځى اوبل طرف ته اوځى. دغه شان منافق هم په ظاهره ځان مسلمان ښکاره کوى اوپه باطن کښې کفرپټوى. اوپه دننه لاره کښې د ايمان نه اوځى[2]

② يادا د ..نافقاء.. نه ماخوذ دې اونافقاء دصحرا د مږې سوړې ته وائى په اصل کښې صحرائى مږه چه کومه سوړه جوړوى. نود هغې دوه سرونه وى په يوطرف په سوړه کښې ورننوځى. اوددې بلې سوړې خوله لږه غونډې پټه وى. اوبيخى چه دواړو طرفونو ته سوړې وى. د دې په ځائې داسې وى. چه دپاسه پرې د خاورې لږه غونډې حصه باقى وى نوښکاره خولې ته ئې قاصعاء وائى اوکومه چه پټه وى هغې ته ..نافقاء.. وائى کله چه ښکارى راشى. نو مږه د قاصعاء په ذريعه دننه ورځى. اونافقاء په خپله خوله په زوره سره اووهى په هغې باندې چه کومه لږه غونډې خاوره وى. هغه لرې شى. اوهغه د دننه نه رابهرشى. دغه شان منافق په ظاهرى لاره په ايمان کښې داخليږى. اوپه باطنى لاره د ايمان نه اوځى.[3]

**دترجمې مقصود** امام نووى رحمه الله فرمائى. چه دامام بخارى رحمه الله ددې ترجمې نه مقصود دا خودل دى. چه په معاصى سره په ايمان کښې کمې راځى. لکه څنګه چه په طاعاتو سره په ايمان کښې زيادت راځى.[4]

علامه کرمانى رحمه الله فرمائى. چه امام بخارى رحمه الله دا خودل غواړى. چه د نفاق ډيرې نښې دى. اوس چه په چا کښې څومره نښې وى. هغه هومره به هغه منافق وى. نود نفاق مختلفې مرتبې دى. لکه څنګه چه د کفر اوظلم مختلف مراتب دى. بعضې مرتبې خوداسې دى. چه دهغې په ارتکاب سره سړې دايمان نه بهرته اوځى. لکه چه د زړه نه په الله تعالى باندې ايمان نه ساتى. اګرچه په ظاهره باندې خپل ځان مومن ښکاره کوى. اوبعضې مرتبې داسې دى. چه دهغې په ارتکاب سره سړې دايمان نه نه خارجيږى. البته دا ده. چه په هغې کښې دمنافقانو بعضې صفات راځى. لکه «كذب فى الحديث، أخلاف فى الوعد، خيانت فى الأمانة، غدر فى المعاهدة، فجور فى الخصومة» دا اوصاف په احاديثو کښې ذکرشوى دى.[5]

---

[1] فتح البارى (١\٨٩)_

[2] النهاية فى غريب الحديث (٥\٩٨) ومعجم مقاييس اللغة (٥\٤٥٥)_

[3] المصدر السابق)_

[4] فتح البارى (١\٨٩)_

[5] شرح كرمانى (١\١٥٢)_

دا هم ممکن ده چه د باب نه دامام بخاری رحمه الله د مرجئو تردید وی هغه داسې چه ګوری تاسو وائې چه معصیت مضر نه دې اودلته بعضې ګناهونه د نفاق نښې خودلی شوې دی نبی ﷺ د داسې صفاتوپه حاملینوباندې دمنافق حکم لګولې دې نودا خبره چه معصیت مضرنه دې غلطه ده که چیرته معصیت مضر نه وو نو په دوی به د منافق حکم نشو لګولې.(١)

[٣٣]حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ أَبُو الرَّبِيعِ قَالَ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ مَالِكِ بْنِ أَبِي عَامِرٍ أَبُو سُهَيْلٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ آيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلَاثٌ إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ وَإِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ [٥٧٤٤،٢٥٩٨،٢٥٣٦]

## رجال الحديث

**قوله: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ أَبُو الرَّبِيعِ:** دوی ابوالربیع سلیمان بن داؤد عتکی زهرانی بصری نزیل بغداد دی.د امام مالك.فلیح بن سلیمان.حماد بن زید .ابوعوانه. اواسماعیل بن جندب رحمهم الله وغیره نه ئې روایت کوی.

امام بخاری.امام مسلم.امام ابوداؤد .امام احمد اوامام اسحاق رحمهم الله ددوی نه احادیث نقل کړی دی.

امام یحیی بن معین.ابوزرعه.ابوحاتم. اونسائی رحمهم الله دوی لره ثقه ګرخولې دې

عبدالرحمن بن یوسف بن خراش رحمه الله فرمائی.((تکلم الناس فیه وهوصدوق)) یعنی محدثینو رحمهم الله په ده باندې کلام کړې دې.خودې صدوق دې.

خوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.((ثقة لم یتکلم فیه أحد بحجة)) یعنی دوی ثقه دی.په دوی باندې په دلیل سره چا هم کلام نه دې کړې.

په ۲۳۴ ه کښې وفات شوی وو.(٢)

**قوله: قَالَ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ:** دوی ابواسحاق بن جعفربن ابی کثیرانصاری زرقی مدنی دی.د اهل مدینې قاری وو.

دوی د سهیل بن ابی صالح.علاء بن عبدالرحمن بن یعقوب.عبدالله بن دینا. نافع بن مالك بن ابی عامر رحمهم الله وغیره نه روایت کوی.اوددوی نه روایت کونکوکښې قتیبه بن علی بن حجر.یحیی بن یحیی رحمهم الله وغیره دی.

امام احمد.ابوزرعه.اونسائی رحمهم الله فرمائی،،ثقة،،

---

(١) فضل الباری(١\٤٣٧)-

(٢) تهذیب الکمال(١١\٤٢٣. ٤٢٥) وعمدة القاری(١\٢١٨) وخلاصة الخزرجی (١٥١) وتقریب التهذیب (٢٥١) رقم ٢٥٥٦)_

محمدبن سعد رحمه الله فرمائى.«ثقة وهو من أهل المدينة قدم بغداد فلم يزل بها حتى مات وهو صاحب الخمس مائة حديث التى سمعها منه الناس»

اصحاب اصول ستة ددوى نه احاديث نقل كړى دى.

دوى په بغداد كښې په كال ١٨٠هـ كښې وفات شوې وو (١)

**قوله** قَالَ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ مَالِكِ بْنِ أَبِي عَامِرٍ أَبُو سُهَيْلٍ: دوى ابوسهيل نافع بن مالك بن ابى عامر اصحبى تيمى مدنى رحمه الله دى كوم چه د بنو تيم حليف اودامام مالك رحمه الله تره وو.

دحضرت انس بن مالك، حضرت سهل بن سعد الساعدى، حضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنهم نه دغه شان دحضرت سعيدبن المسيب، حضرت على بن الحسين، حضرت عمربن عبدالعزيز، حضرت قاسم بن محمد بن ابى بكر الصديق اودخپل پلار مالك بن ابى عامر اوابوبرده بن ابى موسى الاشعرى رحمهم الله نه ئې دحديثو روايت كړې دې.

ددوى نه اسماعيل بن جعفر بن ابى كثير سليمان بن بلال، عبدالعزيز دراوردى، امام مالك او امام زهرى رحمهم الله وغيره محدثين روايت كړې دې.

امام احمد، ابوحاتم، اونسائى رحمهم الله دوى لره ثقه گرخولى دى. ابن حبان رحمه الله دوى په خپل كتاب كښې ثقه گرځولى دى. اصحاب اصول سته ددوى نه روايات نقل كړى دى.

د ١٤٠هـ نه پس ددوى وفات شوې دې.(٢) رحمه الله تعالى.

عَنْ أَبِيهِ: دوى ابوانس مالك بن ابى عامر اصبحى مدنى دى. ابومحمد هم ددوى كنيت دې. دوى دامام مالك رحمه الله نيكه وو.

دحضرت عمر، حضرت عثمان، حضرت طلحه بن عبيدالله، حضرت ابوهريره، او حضرت عائشې رضى الله عنهم نه ئې دحديثو روايت كړې دې.

ددوى نه ددوى خوى انس بن مالك بن ابى عامر، ربيع او ابوسهيل. نه علاوه سالم ابو النضر، سليمان بن يسار، اومحمد بن ابراهيم تيمى رحمهم الله روايت كړې دې

محمدبن سعد رحمه الله فرمائى.«كان ثقة وله أحاديث صالحة» عجلى رحمه الله فرمائى.«مدنى تابعى ثقة»

امام نسائى هم ددوى توثيق كړې دې.

د صحيح قول مطابق ددوى وفات په ٧٤هـ كښې شوې دې. اوواقدى رحمه الله فرمائى چه ددوى وفات په ١١٢هـ كښې د اويا يا دوه اويا كالو په عمر كښې شوې دې.

---

(١) تهذيب الكمال(٣\٥٦-٦٠) وعمدة القارى(١\٢١٨) وخلاصة الخزرجى (ص٣٣٠) وتقريب التهذيب (١٠٦) رقم ٤٣١)_

(٢) تهذيب الكمال(٢٩\٢٩٠، ٢٩١) وعمدة القارى (١\٢١٨) وخلاصة الخزرجى(ص٣٩٠) وتقريب (ص٥٥٨) رقم ٧٠٨١)_

خوحافظ منذری رحمه الله فرمائی چه دا خبره بیخی غلطه ده ددې په غلطۍ کښې څه شک نشته.ځکه چه دوی دحضرت عمر رضی الله عنه اودهغوی نه روسته حضراتو نه د حديث روايت کړې دې.که په ۱۱۲ھ کښې د دوه اويا کالو په عمرکښې ددوی وفات اومنلې شی.نوددوی پیدائش به په ۴۰ھ کښې منل پکاروی.حالانکه دحضرت عمر رضی الله عنه شهادت په ۲۳ھ کښې شوې دې اودحضرت عثمان رضی الله عنه شهادت په ۳۵ھ کښې شوې دې.اودحضرت طلحه بن عبيدالله رضی الله عنه شهادت د جنگ جمل ۳۶ھ په موقع شوې دې اوددوی سماع ددې ټولو حضراتو ثابته ده.

علامه عینی رحمه الله د واقدی رحمه الله دقول د صحت دپاره دا تاويل کړې دې. چه واقدی چه څه ونیلی دی.چه «توفي ثنتي عشرة ومائة وهو ابن سبعين أو اثنتين وسبعين سنة» په دې کښې ..سبعين.. په اصل کښې د..تسعين.. تصحیف دې.اویه اصل کښې ..تسعين .. دې که د دوی پیدائش نوی یا دوه نوی کالو په عمر کښې اومنلې شی.نو د دوی د پیدائش کال به ۲۰ھ وی. (۱)خوښکاره ده.چه په دې صورت کښې دحضرت عمر رضی الله عنه مطلق رویت ثابتیږی.د روايت ثبوت مشكل دې.والله أعلم.

**قوله: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ:(۲)** دحضرت ابوهريره رضی الله عنه تفصیلی حالات وړاندې د «باب أمور الإيمان» لاندې تیر شوی دی.

**قوله: عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ آيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلَاثٌ:** حضرت ابوهريره رضی الله عنه د نبی صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی.چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی.د منافق نښې درې دی.

دلته «آية» مفرد دې.اومبتدء ده.او«ثلاث» خبر دې په ده کښې تعدد دې. اودا قاعده ده چه په مفرد او جمع کښې او په مبتدا او خبر کښې مطابقت ضروری وی.دلته په مبتدا او خبریه مینځ کښې د افراد او جمعې په اعتبارسره مطابقت نشته.

ددې یو جواب دا دې.چه دلته د «آية» نه مراد جنس دې.نو د «ثلاث» حمل په «آية» باندې صحیح دې.ابوعوانه رحمه الله په خپل صحیح کښې د «علامات المنافق» په الفاظو سره روایت نقل

---

(۱) تهذيب الكمال(۲۷ \ ۱۴۸، ۱۵۰) وعمدة القاری(۱\ ۲۱۸، ۲۱۹) وخلاصة الخزرجي (ص.۳۶۷) وتقريب(۵۱۷) رقم ۶۴۴۳) دا خبره دې یاده وی.چه په خلاصة الخزرجي کښې ددوی د وفات په باره کښې ليکلی دی.قيل توفى سنة أربع وتسعين..کیدې شی.چه دا د سبعين نه تصحیف وی، والله أعلم)

(۲) الحديث أخرجه البخاری فی كتاب الشهادات باب من أمر بإنجاز الوعد رقم ۲۶۸۲ وفی كتاب الوصايا باب قول الله عزوجل ﴿ من بعد وصية يوصى بها أو دين ﴾ رقم ۲۷۴۹ وفى كتاب الأدب باب قول الله تعالى ﴿ يايها الذين آمنو اتقوا الله وكونوا مع الصادقين ﴾ رقم ۶۰۹۵ ومسلم فى صحيحه (۱\۵۶) كتاب الإيمان باب خصال المنافق والنسائی فى سننه (۸\۱۲-۲۷۰) فى كتاب الإيمان وشرائعه باب علامة المنافق والترمذی فى جامعه فى كتاب الإيمان باب ما جاء فى علامة المنافق رقم ۲۶۳۱)_

كړي دي (١)

بعضي حضراتو دا جواب ورکړي دي چه د ((ثلاث)) مطلب دا دي چه دا درې واړه يو ځائې شي نو يوه نښه ده (٢) خودا جواب لرې دي ظاهره دا ده چه درې واړه جدا جدا مستقل طور د نفاق نښې دي. والله أعلم.

**قوله: إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ:** کله چه خبرې کوي نو دروغ وائي.

**قوله: وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ:** اوکله چه وعده اوکړي نو وعده ماتوي.

که د ((وعد)) لفظ که مفعول ذکرکړې شي نو خيراوشردواړه کښې استعماليږي اوکه مفعول حذف کړې شسي نو ((وعد)) د خير دپاره او ((ايعاد)) او ((وعيد)) د شر دپاره استعماليږي. (٣)

البته ابن الاعرابي رحمه الله وائي چه د ((ايعاد)) استعمال دخيردپاره هم کيږي. خودا کله کله وي. (٤) بيا دلته په يوه بله خبره باندې پوهه شئ چه وعده خلافي په هغه وخت کښې مذموم او د نفاق نښه ده. کله چه د وعدې کولو په وخت کښې د وعدې د مخالفت اراده وي. که د وعدې په وخت کښې ئې د پوره کولو نيت وي. او روسته د څه مجبورئ په وجه ئې پوره نکړې شي نودا نقصان نه دې په سنن ابي داؤد او جامع ترمذي کښې د حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه نه روايت دې. ((إذا وعد الرجل أخاه ومن نيته أن يفي له فلم يف ولم يجئ للميعاد فلا إثم عليه (٥))) اللفظ لأبي داود.

دغه شان د حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه نه مرفوعاً مروى دى. ((وإذا وعد وهو يحدث نفسه أنه يخلف)) (٦)

---

(١) فتح الباري (١\٨٩) وشرح كرماني (١\١٤٧)-

(٢) المصدر السابق)_

(٣) قال الفراء: يقال وعدته خيراً ووعدته شراً فإذا أسقطو ا الخير والشر قالوا في الخير والوعد. والعدة- وفي الشر الإيعاد والوعيد كذا في مختار الصحاح (٧٢٨) وعمدة القاري (١\٢٢٠)_

(٤) عمدة القاري (١\٢٢٠)_

(٥) سنن أبي داود كتاب الأدب باب في العدة رقم ٤٩٩٥ وجامع ترمذي كتاب الإيمان باب ما جاء في علامة المناق رقم ٢٦٣٣) ددې حديث په سند کښې ابوالنعمان او ابو وقاص دى. دې دواړو په باره کښې امام ترمذي فرمائي. ((ولا يعرف أبوالنعمان ولا أبو وقاص وهما مجهولان))-

(٦) معجم طبراني كبير (٦\٢٧٠ رقم ٦١٨٦) ومجمع الزوائد (١\١٠٨) كتاب الإيمان باب في النفاق وعلاماته وذكر المنافقين) ددې حديث په سند کښې هم ابوالنعمان او ابو وقاص دی. کوم چه مجهول دی. تعجب دې چه حافظ ابن حجر رحمه الله دا دواړه په تقريب التهذيب (٦٧٩ و ٦٨٢) کښې مجهول گرځولی دی اوددې باوجود په فتح الباري کښې ليکي (١\٩٠) وإسناده لا بأس به ليس فيهم من أجمع على تركه))_

**قوله** وَإِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ: اوکله چه ده سره امانت کیخودې شي نوخیانت کوي.

بعضي عالمانودا درې واړه علامات د نفاق نښه ګرځولو دپاره يوه نکته بيان کړې ده.چه د دين انحصار په درې څيزونو باندې دې.قول فعل او نيت.نو په فساد قول باندې ..کذب.. سره او په فساد فعل باندې ئې په ..خيانت.. سره او په فساد نيت باندې ئې په ..اخلاف وعده.. تنبيه وركړه (١)

ددې حديث سره متعلقه څه ابحاث د راروان حديث په تشريح کښې راځي

[٣٣] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ بْنُ عُقْبَةَ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ الْأَعْمَشِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُرَّةَ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ كَانَ مُنَافِقًا خَالِصًا وَمَنْ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنْهُنَّ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنْ النِّفَاقِ حَتَّى يَدَعَهَا إِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ وَإِذَا حَدَّثَ كَذَبَ وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ تَابَعَهُ شُعْبَةُ عَنْ الْأَعْمَشِ [٢٣٢٧، ٣٠٠٧]

# رجال الحديث

**قوله** حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ بْنُ عُقْبَةَ: دوى قبيصه بن عقبه بن محمد بن سفيان السوائي كوفي دى.ابوعامر ئې كنيت دې.(٢)

د اسرائيل بن يونس،حماد بن سلمه ،سفيان ثورى.شعبه.فطربن خليفه.مالك بن مغول او د ابو رجاء رحمهم الله وغيره نه روايت كوى.(٣)

دوى نه په روايت كونكو كښې امام بخارى،اما احمد بن حنبل.محمود بن غيلان، او عباس دورى رحمهم الله وغيره محدثين عظام دى.

دوى په زهد او ورع. صلاح او استغناء باندې موصوف وو.حفص بن عمر رحمه الله فرمائى.((ما رأيت مثل قبيصة بن عقبة ما رأيته مبتسماً قط من عباد الله الصالحين))(٣)

دهناد بن السرى رحمه الله وړاندې چه به كله ددوى ذكر اوشو.نو په ژړا به شو.او فرمائيل به ئې.((الرجل الصالح))(٥)

جعفربن حمدويه رحمه الله بيان كوى.چه مونږ د قبيصه د دروازې سره ولاړ وو. زمونږ سره دلف

---

(١)فتح البارى (١\٩٠)_

(٢) تهذيب الكمال(٢٣\٤٨١)و ٤٨٣) وخلاصة الخزرجى(٣١٤)_

(٣) المصدر السابق)_

(٤) تهذيب الكمال(٢٣\٤٨٧)_

(٥) المصدر السابق)_

بن ابی دلف هم وو اودهغه سره ډېر خادمان هم وو هغه دروازه اوتړوله قبيصه په راووتلو کښې وخت اولګولو نو خادمانو دوباره آواز وركړو او وې ونيل «ابن ملك الجبل على الباب وأنت لا تخرج إليه» چه دا ئې واوريدو نو قبيصه راووتلو په داسې حالت کښې چه د هغوى د څادر په پلوسکی پورې د روټۍ ټکړې وې چه راغلو نو وې فرمائيل «رجل قد رضى من الدنيا بهذا ما يصنع بابن ملك الجبل؟» يعنى كوم كس چه قناعت اختيار كړى وى دچا ګذاره چه په دې ټکړو باندې کيږى هغه به د شهزاده نه څه واخلي؟ ددې نه پس ئې اوفرمائيل «والله لا حدثته» په الله قسم زه ده ته احاديث نه اوزوم اوبيا ئې ورته واونه رول. (١)

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى «كثير الغلط وكان ثقة صالحاً لا بأس به» (٢)

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائى «هو ثقة إلا في حديث الثورى» (٣)

دغه شان دوى فرمائى «ليس بذاك القوى وقال ثقة في كل شيء إلا في سفيان» (٤)

ابن القطان رحمه الله فرمائى «يروى عبد الحق في أحكامه لقبيصة ولا يعرض له وهو عندهم كثير الخطأ» (٥)

امام احمد رحمه الله فرمائى «كان صغيراً لا يضبط وكان صالحاً ثقة» (٦)

ددې اقوالو خلاصه دا ده چه عالمانو د رجالو رحمهم الله ده لره «كثير الغلط، كثير الخطأ، ضعيف في حديث الثورى» ګرځولې دې.

ترکومې پورې چه د سفيان ثورى رحمه الله په حديث کښې دضعف خبره ده نو دا ددې وجې قابل تسليم نه ده چه ددوى عمر په هغه وخت کښې شپاړس كاله وو كله چه دوى د سفيان ثورى رحمه الله نه سماع كوله اومسلسل درې كاله ئې د هغوى نه سماع كړې وه (٧) اوښكاره خبره ده چه دشپاړس كالو عمر د تحصيل حديث دپاره كم نه دې.

اوبيا كومو كسانو چه دوى لره د سفيان ثورى رحمه الله په حديث کښې ضعيف ګرځولې دې نو ورسره بعضې نورو محدثينو رحمهم الله ددوى توثيق هم كړې دې او دسفيان ثورى رحمه الله نه ئې روايت كول معتبر ګرځولى دى. ابوحاتم رحمه الله فرمائى «لم أر من المحدثين من يحفظ ويأتي بالحديث

---

(١) تهذيب الكمال (٢٣\٤٨٨)_
(٢) ميزان الإعتدال (٣\٣٨٣)_
(٣) المصدر السابق)_
(٤) المصدر السابق)_
(٥) ميزان الإعتدال (٣\٣٨٤)_
(٦) المصدر السابق)_
(٧) تهذيب الكمال (٢٣\٤٨٨) وميزان الإعتدال (٣\٣٨٤)_

على لفظه لا يغيره سوى قبيصة وأبى نعيم فى حديث سفيان...»[1]

دفريابى رحمه الله نه تپوس اوشو «رأيت قبيصة عند سفيان؟» نو هغوى اوونيل «نعم رأيته صغيرا» مطلب دا دے كله چه هغوى د سفيان ثورى رحمه الله نه سماع كوله نو وړكوټے وو. ددے وجے به ددوى روايت قبول نه وى. ابوزرعه رحمه الله فرمائى. چه ما دا خبره محمدبن عبدالله بن نمير رحمه الله ته ذكركړه نو هغوى اوفرمائيل. «لوحدثنا قبيصة عن النخعى لقبلنا منه» يعنى د سفيان ثورى رحمه الله نه خو ددوى سماع ثابته ده. ددوى نه لوئے عالم چه حضرت ابراهيم نخعى رحمه الله دے كه قبيصه دهغه نه هم روايت اوكړى. مونږ به ئے قبلولو.[2]

امام ابوداود فرمائى. «كان قبيصة لا يحفظ ثم حفظ بعد»[3]

د فضل بن سهل رحمه الله بيان دے. «كان قبيصة يحدث بحديث سفيان على الولاء درساً درساً حفظاً»[4]

امام نسائى رحمه الله فرمائى. «ليس به بأس»[5]

امام اسحاق بن سيار نصيبى رحمه الله فرمائى[6]

تركومے چه دكثير الغلط والخطاء تعلق دے نو حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى «بل هو محتج به عندهم موثق مع وجود غلطه»[7]

بيا كه دسفيان ثورى رحمه الله په احاديثوكښے دوى لږه ضعيف هم ګڼړلے شى. نو دا څه نقصان نه دے. ځكه چه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى. «من كبار شيوخ البخارى أخرج عنه أحاديث عن سفيان الثورى، وافقه عليها غيره»[8] يعنى ددوى دكومو احاديثو تخريج چه امام بخارى رحمه الله كړے دے. نو دهغے احاديثو موافقت او متابعت نورو كړے دے. په دے مقام كښے امام شعبه رحمه الله د دوى متابع دے. «كما سيأتى»

دصحيح قول مطابق په ۲۱۵ھ كښے دوى وفات شوى دى.[9] رحمه الله رحمة واسعة

---

[1] ميزان الإعتدال(۳\۳۸۳) و تهذيب الكمال(۲۳\۴۸۶)_

[2] تهذيب الكمال(۲۳\۴۸۵) وميزان الإعتدال(۳\۳۸۴)_

[3] هدى السارى(ص.۴۳۶) وميزان الإعتدال(۳\۳۸۴) وتهذيب الكمال(۲۳\۴۸۶)_

[4] تهذيب ا لكمال(۲۳\۴۸۷) وهدى السارى(۴۳۶)_

[5] تهذيب الكمال(۲۳\۴۸۷) وميزان الإعتدال(۳\۳۸۴) وهدى السارى(ص.۴۳۶)_

[6] ما رأيت من الشيوخ أحفظ من قبصية بن عقبة)) () ميزان الإعتدال(۳\۳۸۴) وتهذيب الكمال۲۳\۴۸۶)_

[7] ميزان الإعتدال(۳\۳۸۴)_

[8] هدى السارى(ص.۴۳۶)-

[9] عمدة القارى(۱\۲۲۳) وتقريب التهذيب(۴۵۳) رقم ۵۵۱۳)_

**قوله قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ:** دوی مشهور امام حدیث تبع تابعی ابوعبدالله سفیان بن سعید بن مسروق ثوری کوفی رحمه الله دی.

دزیادبن علاقه، حبیب بن ابی ثابت، اسود بن قیس، حمادبن ابی سلیمان او زید بن اسلم رحمهم الله غوندې په سوونو اساطین علم نه ئې حدیث حاصل کړی دی.

بخپله ددوی نه د روایت کونکو شمار زرګونو ته رسی دوی مستقل د یو فقهی مکتب فکرامام وو. د مذاهب اربعه پشان ددوی په مذهب باندې هم عمل کولې شوخو روسته ددوی متبعین ختم شول. اومذاهب اربعه ته الله تعالی دوام نصیب کړو.

ددوی په جلالت قدر، کثرت علوم، صلابت دین، توثق وامانت، زهد وصلاح او حفظ واتقان باندې د تولوعالمانو رحمهم الله اتفاق دې.

امام شعبه، سفیان بن عیینه، اما عاصم النبیل، یحیی بن معین رحمهم الله نه علاوه نورو حضراتو هم دوی لره «أمیرالمؤمنین فی الحدیث» ګرځولی دی

امام عبدالله بن المبارک رحمه الله فرمائی، «کتبت عن ألف ومئة شیخ ماکتبت عن أفضل من سفیان».

حافظه ئې ډیره مضبوطه وه. کومه خبره چه به ئې یوځل واوریده هغه به ورته همیشه دپاره یاده وه. بخپله فرمائی، «مااستودعت قلبی شیأقط فخاننی»

امام شعبه رحمه الله فرمائی، «إن سفیان سادالناس بالورع والعلم»

قبیصه بن عقبه رحمه الله فرمائی، «ما جلست مع سفیان مجلساً إلا ذکرت الموت وما رأیت أحداً کان أکثر ذکراللموت منه»

یوسف بن اسباط رحمه الله فرمائی چه سفیان ثوری رحمه الله دماخستن دمانځه نه پس ماته اوفرمائیل. چه ماته د اودس دپاره لوټه راکړه. ماورته لوټه ورکړه هغوی د خپل ښی لاس باندې لوټه اونیوله. اوخپل ګس لاس ئې په خپله سینه باندې کیخودو زه خولاړم اوده شوم. اود صبا راختو نه پس چه ما اوکتل. نوهغوی هم په دهغه حالت کښې وو ماهغوی ته عرض اوکړو. حضرت صبا راختلې دې. نو وې فرمائیل. ماد هغه وخت نه تراوسه پورې د آخرت په باره کښې سوچ کولو.

سفیان ثوری رحمه الله به د امراء او حاکمانونه همیشه دپاره اجتناب کولو اوعلمی وقارئې همیشه دپاره حفاظت کولو.

یوکس دوی سره څه اشرفئ اولیدې. نو وې ونیل «تمسك هذه الدنانیر» نو دوی اوفرمائیل. «أسکت فلولا هذه الدنانیر لتمندل بنا هولاء الملوك»

ددوی په زرینواقوالو کښې دی. «أحب أن یکون صاحب العلم فی کفایة فإن الآفات إلیه أسرع والألسنة إلیه أسرع» یعنی پکارده چه صاحب علم اسوده حال وی. ځکه چه مصیبتونه ده طرف په تیزئ سره راځی. اوپه ده باندې اعتراضونه هم زر شروع کیږی.

بهرحال ددوی فضائل اومناقب بیشمیره دی خطیب بغدادی رحمه الله بیخی صحیح وئیلی دی.«كان إماماً من أئمة المسلمين وعلماً من أعلام الدين مجمعاً على أمانته بحيث يستغنى عن تزكيته مع الإتقان والحفظ والمعرفة والضبط والورع والزهد»

ابوجعفرمنصورچه کله د حج دپاره مکې ته روان شو.نوهغه خپل نوکرانوته اووئیل چه سفیان ثوری رحمه الله بندیوان کړئ.اوپه سولئ ئې کړئ.نود پهانسئ تخته تیاره کړې شوه او دوی د نیولودپاره اعلان اوشو په هغه وخت کښې د دوی سر د فضیل بن عیاض رحمه الله په غیږ کښې وو اودواړه پښې ئې د سفیان بن عیینه رحمه الله په غیږ کښې وې دغه دواړه حضراتو دوی ته عرض اوکړو.ابوعبدالله دالله دپاره تاسو پټ شئ.الله دې نکړی.چه په تاسو مصیبت راشی. نوپه مونږ تولوپورې به دشمنان خندا کوی.چه دا ئې واوریدل نوحضرت سفیان ثوری رحمه الله پاسیدلو.د بیت الله غلاف ئې اونیولو.اوقسم ئې اوخوړلو.چه ابوجعفربه مکې ته نه داخلیږی. نو بیا څه وو.«رب أشعث مدفوع بالأبواب لو أقسم على الله لأبره»[1] مصداق جوړ شو ابوجعفر منصورمکې ته ورنزدې شوې وو.لاداخل شوې نه وو.چه مړ شو.

ددوی پیدائش په ۹۷ھ کښې شوې وو.او وفات ئې په ۱۶۱ھ کښې شوې وو.

سعیربن خمس، فرمائی.چه د وفات نه پس ما سفیان ثوری رحمه الله په خوب کښې اولیدو چه: یوې وونې نه بلې وونې ته الوزی.اودا آیت وائی.﴿ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ ٱلَّذِي صَدَقَنَا وَعۡدَهُۥ وَأَوۡرَثَنَا ٱلۡأَرۡضَ نَتَبَوَّأُ مِنَ ٱلۡجَنَّةِ حَيۡثُ نَشَآءُۖ فَنِعۡمَ أَجۡرُ ٱلۡعَٰمِلِينَ ﴾ (سورة الزمر:۷۴)_ رحمه الله تعالى رحمة واسعة[2]

**قوله** عَنِ الْأَعْمَشِ :دامام اعمش حالات وړاندې د«باب ظلم دون ظلم»لاندې تیرشوی دی

**قوله** عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ مُرَّةَ: دوی عبدالله بن مره همدانی .خارفی.کوفی دی دوی تابعی دی. د حضرت عبدالله بن عمر،حضرت براء بن عازب رضی الله عنهم نه به ئې روایت کولو او ددوی نه د حدیث اوریدونکوکښې امام اعمش.اومنصوربن المعتمر رحمهما الله وغیره دی امام یحیی بن معین.ابوزرعه.اونسائی رحمهم الله دوی لره ثقه ګرځولی دی

ابن سعد رحمه الله فرمائی.«كان ثقة وله أحاديث صالحة» عجلی رحمه الله فرمائی.«تابعی ثقة» ابن حبان رحمه الله دوی په کتاب الثقات کښې ذکرکړی دی.

په ۱۰۰ھ کښې وفات شوی وو[3] رحمه الله تعالى.

---

[1] صحیح مسلم (۳۲۹/۲) کتاب البر والصلة باب فضل الضعفاء والخاملین)_

[2] د ذکرشووحالاتودغه شان دنورو زیاتی تفصیل دپاره اوګورئ سیرأعلام النبلاء (۲۲۹/۷، ۲۷۹) وتهذیب الکمال(۱۵٤/۱۱و ۱۶۹) وعمدة القاری(۲۲۳/۱) وخلاصة الخزرجی(۱٤۵) وتقریب التهذیب (۲٤٤) رقم ۲٤٤۵) والأعلام للزرکلی(۱۰٤/۳، ۱۰۵)_

[3] طبقات ابن سعد(۲۹۰/۶) وتهذیب الکمال(۱۱٤/۱۶) وخلاصة الخزرجی(۲۱٤) وعمدة القاری(۲۲۳/۱) [illegible] ۳۶)_

عَنْ مَسْرُوقٍ: دوى مشهور مخضرم تابعى رحمه الله .امام ابوعائشه.مسروق بن الاجدع بن مالك بن اميه وداعى همدانى كوفى دى.
دوى دنبى ﷺ په زمانه كښې په اسلام مشرف شوى وو خونبى ﷺ سره د ملاقات سعادت ورته نه وو نصيب شوې عمروبن معديكرب ددوى ماما وو ددوى پلار د يمن په مشهورو شهسوارانوكښې وو.
وئيلې شى چه په وړكوتوالى كښې چا دې غلا كړې وو اوبيا ملاو شو. او بوتلې وو.ددې وجې ددوى نوم مسروق كيخودې شو.
حضرت عمر رضي الله عنه ددوى د پلار نوم د ..اجدع.. په ځائې ..عبدالرحمن.. كيخودې وو نود مسروق نوم په سركارى ديوان كښې ..مسروق بن عبدالرحمن،، وو.
دوى د كبارصحابه كرامو رضي الله عنهم ليدل كړى دى.اودهغوى نه ئې احاديث اوريدلى دى دحضرت ابوبكرصديق.حضرت عمرفاروق.حضرت عثمان.حضرت على. حضرت عبدالله بن عمر. حضرت عبدالله بن عمرو.حضرت عبدالله بن مسعود. حضرت زيد بن ثابت. حضرت ابى بن كعب.حضرت خباب بن ارت.حضرت معاذ بن جبل.حضرت مغيره بن شعبه، حضرت معقل بن سنان اشجعى.حضرت عائشې.حضرت ام رومان او دحضرت ام سلمې رضي الله عنهم نه روايت حاصل كړى دى.
البته على بن المدينى رحمه الله فرمائى دى.چه په حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه پسې دوى مونځ كړې دې.اودحضرت عثمان رضي الله عنه نه د دوى څه روايت نشته.
او د دوى نه چه چا روايت كړې دې.په هغوى كښې ابراهيم نخعى.انس بن سيرين.ابووائل شقيق بن سلمه.عبدالرحمن بن عبدالله بن مسعود.عبيدبن فضله .مكحول شامى. اودهغوى اهليه قميربنت عمرو. رحمهم الله دى.

مره رحمه الله فرمائى.«ماولدت همدانية مثل مسروق»

امام شعبى رحمه الله فرمائى.«ماعلمت أن أحداً كان أطلب للعلم فى أفق من الآفاق من مسروق»
ددوى شميردحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په هغه قابلوشاګردانوكښې دې.چاچه به خلقو ته علم وركولو.اوحديث اورول.
ډيرزيات عبادت ګزاراود شپې تهجدګزار وو.ددوى بى بى فرمائى.چه دومره زيات عبادت به ئې كولو.چه پښې به ئې اوپړسيدې.كله كله به چه ما د دوى حالت ته كتل.نو د رحم په وجه به پرې ژړا راتله.
دوى داسې حج كړې وو.چه د ټول حج په دوران كښې په ملاسته خوب نه وو كړې.بس په سجده كښې ئې چه به ئې څومره خوب كولې شو.هغه هومره به ئې كولو.
حضرت عائشې رضي الله عنها دوى لره خپل ځوئې ګرځولې وو.نودام المومنين رضي الله عنها په نوم باندې دوى د خپلې لور نوم هم عائشه كيخودې وو.دخپلې دې لورهره خبره به ئې منله.اوخواهش به ئې وړله پوره كولو.يوه ورځ په ډيرو سختو ګرمو ورځوكښې دوى روژه وو.ددوى لور راغله.او وې وئيل.باباجانه تاسو اوځكئ:اوروژه ماته كړئ.دوى ترې تپوس اوكړو.لورې ته داسې ولې

کول غواړي نوهغې ورته اووئيل بابا جانه په تاسو باندې ماته رحم راځي غواړم چه تاسو ته
څه آرام ملاؤ شي.نو دوى ورته اووئيل لوري زه ددې ورځې دا تکليف د هغه ورځې د آرام
دپاره برداشت کوم چه په هغې کښې به يوه ورځ د پنځوس زره کالوبرابر وى.

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائى.«ثقة لايسأل عنه مثله»

امام على بن المدينى رحمه الله فرمائى.«ما أقدم على مسروق أحدا من أصحاب عبدالله»

امام عجلى رحمه الله فرمائى.«كوفى تابعى ثقة»

امام محمدبن سعد رحمه الله فرمائى.«كان ثقة وله أحاديث صالحة»

په کال ۶۲ھ يا ۶۳ھ کښې دوى وفات شوى وو.(۱) رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

**قوله**: عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو:(۲) دحضرت عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنهما حالات
وړاندې په کتاب الايمان «باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده» لاندې تيرشوى دى

**قوله**: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ كَانَ..إلخ: نبى
کريم صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى.څلور خصلتونه داسې دى چه په کوم کس کښې موجود شى.هغه به
خالص منافق وى.

**يواشکال اودهغې جواب** دباب اولنې حديث کوم چه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دې په هغې
کښې دنفاق درې نښې ذکرشوى دى.اودحضرت عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنهما په دې
حديث کښې څلورخصلتونه ذکرشوى دى.لکه چه د دريو اوڅلورو په مينځ کښې تعارض دې
علامه قرطبى رحمه الله ددې نه دا جواب کړې دې.چه دا «من باب التجدد فى العلم» د قبيلې څخه
دې يعنى نبى صلى الله عليه وسلم ته اول د دريو علم ورکړې شوې وو.اوبيا د څلورو.(۳)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه په دواړو احاديثوکښې تعارض نشته.ځکه چه په دې کښې
يو زياتى مذموم خصلت کوم چه په کمال نفاق باندې دلالت کوى.ددې نه دا نه لازميږى.چه
دا هم د نفاق نښه ده.ځکه چه ممکن ده.چه اصلى نښې درې وى.اودزياتى خصلت په وجه

---

۱) تهذيب الكمال(۲۷\٤٥١، ٤٥٧) وطبقات ابن سعد(۶\۷۶، ۸٤) وسير أعلام النبلاء(٤\۶۳ و۶۹) وعمدة القارى(۱\۲۲۳) وخلاصة الخزرجى(ت ۳۷٤) وتقريب التهذيب(۵۲۸) رقم ۶۶۰۱)_

۲) الحديث أخرجه البخارى فى كتاب المظالم باب إذا خاصم فجر رقم ۲٤۵۹ وفى كتاب الجزية والموادعة باب إثم من عاهد ثم غدر رقم ۳۱۷۸ ومسلم فى صحيحه (۱\۵۶) كتاب الإيمان باب خصال المنافق والنسائى فى سننه (۲\۲۷۰) كتاب الإيمان وشرائعه باب علامة المنافق وأبوداود فى سننه فى كتاب السنة باب الدليل على زيادة الإيمان ونقصانه رقم ٤۶۸۸ والترمذى فى جامعه فى كتاب الإيمان باب ما جاء فى علامة المنافق رقم ۲۶۳۲)_

۳) فتح البارى(۱\۸۹)_

باندې په دې نفاق کښې خلوص پيدا کيږي مطلب دا دې چه دړې خو دنفس نفاق نښې دی اوچه څلورمه ورسره ملاؤ شي نو دخلوص نفاق نښه ترې جوړه شي (۱)

يوجواب دا هم ورکولې شي چه مفهوم دعدد معتبر نه دې ځکه چه عدد اقل دعدد اکثر نفی نه کوی (۲)

يوجواب داهم ورکولې شي چه په مسلم شريف کښې دحضرت ابوهريره رضي الله عنه په حديث کښې په يوطريق کښې د «من علامات المنافق» الفاظ راغلي دی (۳) ددې نه معلوميږي چه په دړې يا څلوروکښې انحصار مقصود نه دې بلکه دموقع اومحل په مناسبت سره کله نبی ﷺ د دړې نښو بيانولوضرورت محسوس کړې دې اودړې نښې ئې بيان کړی دی اوکله ئې د څلورو خصلتونو ضرورت محسوس کړې دې او څلور ئې بيان کړی دی (۴)

**په دواړوحديثونوکښې د ذکرشوی مجموعی نښو شمار** ددې نه پس پوهه شئ چه امام قرطبی اوامام نووی رحمهما الله فرمائی چه ددې دواړو احاديثو د جمع کولونه مجموعی طور دنفاق پنځه نښې جوړيږي. دوه نښې په دواړو حديثونو کښې مشترک دی يو «**كذب في الحديث**» اودويم «**خيانت في الأمانة**» اودابوهريره رضي الله عنه په حديث کښې «**خلاف في الوعد**» زياتی دې اودحضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه په حديث کښې «**غدر في المعاهدة**» او «**فجور في الخصومة**» زياتی دی. (۵)

بيا دلته په دې باندې هم پوهه شئ چه امام بخاری رحمه الله کله دا حديث په «**كتاب المظالم**» (۶) اوپه «**كتاب الجزية**» (۷) کښې ذکرکړی دی. نوهلته ئې د «**إذا أوتمن خان**» په ځائې «**إذا وعد أخلف**» ذکرکړې دې. دغه شان امام مسلم هم په خپل صحيح کښې د «**أمانت**» په ځائې «**إخلاف وعد**» ذکرکړې دې. (۸)

په دې صورت کښې به مجموعی نښې پنځه وی. ځکه چه دواړه حديثونه «**كذب في الحديث**»

---

(۱) فتح البارى (۸۹/۱ او ۹۰)_
(۲) شرح کرمانی (۱۵۱/۱)_
(۳) صحيح مسلم (۵۶/۱) كتاب الإيمان باب خصال المنافق)_
(۴) فتح البارى (۹۰/۱)_
(۵) فتح البارى (۹۰/۱)_
(۶) باب إذا خاصم فجر.رقم ۲۴۵۹) -
(۷) باب إثم من عاهد ثم غدر رقم ۳۱۷۸) -
(۸) صحيح مسلم (۵۶/۱)_

او ((أخلاف وعد)) كښې دى.اوحضرت ابوهريره رضي الله عنه په حديث كښې ((خيانة فى الأمانة)) زياتى دې.اود حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما روايت كښې دواړه يعنى ((غدر فى المعاهدة)) او ((فجور فى الخصومة)) زياتى دې

امام نووى رحمه الله فرمائى چه ((وإذا عاهد غدر)) په ((وإذا أؤتمن خان)) كښې داخل دى.(۱) په دې طريقه تولې څلورنښې شوې

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى كه چيرته داسې ادخال وى.نوبيا تولې هم درې نښې پكار دى.ځكه چه ((كذب فى الحديث،إخلاف وعد،غدر فى المعاهدة)) دا درې واړه د قول سره تعلق ساتى نواصلى نښې ((كذب فى الحديث،إخلاف وعد،او غدر فى المعاهدة)) دا درې واړه دقول سره تعلق ساتى.نواصلى نښې ((كذب فى الحديث،خيانة فى الأمانة،فجور فى الخصومة)) دى.(۲)

بلكه ((فجور فى الخصومة)) هم په ((كذب فى الحديث)) كښې داخل دې.نوپه دې طريقه دوه نښې پاتې شوې.يو ((كذب فى الحديث)) اوبل ((خيانة فى الأمانة)).

خوچونكه په دې كښې د هريومستقل حيثيت دې.اودهر يو قباحت هم ډير زيات دې.ددې وجې په عرف كښې دا جدا جدا ګڼړلې شى.(۳)نومناسب دا دى.چه دا په يوبل كښې داخل نكړې شى.

البته چه دا په يوبل كښې مدغم كړې شى.نوبيا هم هغه صورت مناسب معلوميږى.كومه چه وړاندې تير شو.چه اعمال ياخود قول سره تعلق ساتى.اويا د فعل سره.اويا نيت سره.په فساد قول كښې ((كذب فى الحديث)) او ((فجور فى الخصومة)) داخل دى.اوپه ((فساد فعل)) كښې ((خيانة فى الأمانة)) او ((غدر فى المعاهدة)) اوپه فساد نيت كښې ((فساد نيت .اخلاف فى ا لوعد)) والله سبحانه أعلم.

**ايا چه ذكرشوې نښې په مومن كښې موجود شى نوهغه به په حقيقت كښې منافق وى؟** دلته يوغټ سوال دا دې.چه ذكرشوى خصلتونه كله په مون كښې هم موجود وى.دخوارجو او معتزلو خو به څه نه وائى.ځكه چه دا خلق خو د معصيت په ارتكاب سره سړې سمدستى د ايمان نه اوباسى.خواشكال په اهل سنت والجماعت باندې دې.ځكه چه ددې دواړو حديثونو ظاهر دا وائى.چه داسې كس منافق دې .ځكه چه په ده كښې دنفاق خويونه اوخصلتونه موجود دى.حالانكه په اتفاق سره دغه كس دايمان نه خارج نه دې.اوده ته منافق نشى ونيلې؟ ددې اشكال مختلف جوابونه وركړې شوى دى

---

(۱) شرح نووى على صحيح مسلم(۵٦/۱) كتاب الإيمان باب خصال المنافق)_

(۲) شرح كرمانى(۱۵۱/۱)_

(۳) المصدر السابق)_

① امام العصرحضرت مولانا انورشاه کشمیری رحمه الله خودا فرمائی چه دعلامت په موجودوالی سره د صاحب علامت وجود نه لازمیږی ګوری حرارت د بدن د تبې علامت وی خودا ضروری نه ده چه کله بدن ګرم وی نوتبه به وی بعضې وخت په نمر کښې زیات وخت کیناستو سره هم بدن ګرمیږی حالانکه هغه تبه نه وی (۱)

② دشیخ الاسلام علامه ابن تیمیه رحمه الله دتحقیق مطابق چه دنفاق خصلتونه په مومن کښې موجود شی ددې نه منافق کیدل نه لازمیږی لکه څنګه چه دکفربعضې افراد کله په مومن کښې موجود شی نوددې نه دهغه کافرکیدل نه لازمیږی نودغه شان د نفاق هم مختلف درجې دی لکه چه دلته د «نفاق دون نفاق» بیان دې دایمان سره ددې اجتماع ممکن ده په دواړو کښې تضاد نشته چه جمع نې ممکن نه ده (۲)

③ امام نووی رحمه الله فرمائی چه داکثرومحققینوعالمانو رحمهم الله په رائې کښې ددې معنی دا ده چه دا خصلتونه دنفاق خصلتونه دی اوکوم کس چه په دې متصف وی هغه د منافقانو سره مشابه دې اودهغوی اخلاق خپلونکې به ګڼړلې شی ددې نه دکفرانوهغه نفاق مراد نه دې کوم چه به په «فی الدرك الأسفل من النار» وی په دې صورت کښې به د نفاق نه حقیقی نفاق مراد وی خوکلام به په تشبیه باندې محمول وی اود نبی ﷺ د ارشاد مطلب چه «کان منافقاً خالصاً» مطلب به دا وی چه «کان شدید التشبیه بالمنافقین» (۳)

④ امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه «معنی هذا عند أهل العلم نفاق العمل وإنما کان نفاق التکذیب علی عهد رسول الله ﷺ» (۴) یعنی دلته د نفاق نه نفاق عملی مراد دې نفاق تکذیب یعنی «نفاق فی العقیده» مراد نه دې.

دا جواب امام قرطبی اوحافظ ابن حجر رحمهما الله خوښ کړې دې (۵)

⑤ امام خطابی رحمه الله فرمائی چه ددې نه مقصود انذاراوتحذیر دې یعنی دمسلمانانو ویرول مقصود دی چه ددې خصلتونه عادیان جوړ نشی دامطلب نه دې که په دې خصلتونو کښې یوخصلت اتفاقی طور ښکاره شی نوددې په وجه پرې دنفاق حکم لګولې شی (۶)

⑥ بعضې عالمان رحمهم الله فرمائی چه ددې نه مراد اعتیاد دې یعنی که یو کس ددې خصلتونه

---

(۱) فیض الباری (۱/ ۱۲٤)_

(۲) فیض الباری (۱/ ۱۲٤)_

(۳) شرح نووی علی صحیح مسلم (۱/ ۵٦) کتاب الإیمان باب خصال المنافق)_

(۴) جامع ترمذی کتاب الإیمان باب ماجاء فی علامة المنافق رقم ۲٦۳۲)_

(۵) فتح الباری (۱/ ۹۰، ۹۱)_

(٦) أعلام الحدیث للخطابی (۱/ ۱٦۵)_

عادي شي نوهغه منافق دې خکه چه همیشه دپاره په دې خصلتونوعمل کول دمنو کاردې دمومن د شان نه دا خبره دلرې ده چه همیشه دپاره دروغ وائی همیشه دپاره وعده ماتوی همیشه دپاره خیانت کوی اوکنخلې کوی (۱)

د اعتیاد اوعموم دا معنی دکوم خائې نه راوخی

علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه دلته نې جمله شرطیه د ((إذا)) سره مقترنه راوړې ده کوم چه ((تحقق وقوع عادة)) باندې دلالت کوی نومطلب دا شو چه ددې خصلتونو وقوع یعنی طور بطور عادت کیږی.(۲)

امام خطابی رحمه الله فرمائی چه د ((إذا)) لفظ دتکرار فعل مقتضی دې اوکله چه دفعل صدور بار بارکیږی.نوهغه دده عادت جوړ شی د عادت جوړیدونه پس په ده باندې د منافق اطلاق کیدې شی.البته داعتیاد نه بغیرد نفاق صفت ممکن نه وی.نوخکه منافق نشی گرخولې (۳)

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی.چه د اعتیاد اوعموم دپاره د ((إذا)) په لفظ اړانه اخستل تطویل دې.مناسب دا دی.چه داسې اووئیلی شی چه دحذف مفعول نه دعموم معنی راوخی.لکه چه د ((إذا حدث كذب)) مطلب دا دې.چه ((إذا حدث في كل شئ كذب فيه)) یا ((إذا وجد ماهية التحديث كذب)) (۴)

④ علامه کرمانی رحمه الله فرمائی.چه ددې نه نفاق شرعی مراد نه دې بلکه نفاق عرفی مراد دې.یوشرعی نفاق دې.یعنی چه دپورته نه اسلام ظاهروی.اودننه نې کفر پټ کړې وی او بل نفاق عرفی دې.چه په ظاهراوباطن کښې نې عمل برابر نه وی.بلکه بعضې وخت د ایمان قلبی عملاً مخالفت کیږی.نودلته هم دغه عرفی نفاق مراد دې.ایمان شرعی مراد نه دې (۵)

⑤ بعضې حضرات فرمائی.دحدیث په الفاظوکښې اگرچه عموم دې.خوددې خاص اومعین شخص مراد وو.(۶)

ترکومې پورې چه دعمومی تعبیرتعلق دې.نوددې وجه دا ده.چه د نبی ﷺ دا عادت مبارکه وو.چه کله به نې څوک په غلطئ باندې اولیدلو.نودخصوصی خطاب په ځائې به نې عمومی

---

(۱) أعلام الحديث (۱\۱۶۵) وفتح الباري (۱\۹۰)_

(۲) الكاشف عن حقائق السنن (۱\۱۹۱) كتاب الإيمان باب الكبائروعلامات النفاق الفصل الأول رقم الحديث ۵۵)_

(۳) أعلام الحديث للخطابي (۱\۱۶۸)_

(۴) شرح كرماني (۱\۱٤۸)_

(۵) شرح كرماني (۱\۱٤۹)_

(۶) أعلام الحديث للخطابي (۱\۱۶۶) وفتح الباري (۱\۹۱) وعمدة القاري (۱\۲۲۲)_

خطاب كولو مثلاً داسې به ئې فرمائيل «ما بال أقوام يفعلون كذا»(١)
ددې عمومي تعبير په اختيارولو كښې حكمت اومصلحت دا وو چه په خصوصي خطاب سره صرف دمخصوص كس اصلاح كيږي اوپه عمومي خطاب سره د نوروخلقو د ويرولو سره سره په خصوصيت سره ددغه كس داصلاح فائده حاصليږي.
⑥ عطاء بن ابى رباح او سعيد بن جبير رحمهما الله نه منقول دى چه د دې نه دعهد نبوت منافقان مراد دى حضرت حسن بصرى رحمه الله هم دې قول ته رجوع كړې ده (٢)
ونيلى شى چه يوكس دحج دپاره د بصرې نه مكې ته لاړلو هلته ئې دحضرت حسن بصرى رحمه الله قول دعطا رحمه الله په وړاندې نقل كړو چه هغوى فرمائى «من كان فيه ثلاث خصال لم أتحرج أن أقول إنه منافق» يعنې چه په چا كښې دا درې خويونه موجود وى دهغه په باره كښې زه دمنافق كيدو حكم لګوم اوپه دې حكم لګولو كښې زه څه حرج يا ويره نه كوم حضرت عطاء رحمه الله چه كله دا خبره واوريده نودهغه كس په ذريعه ئې حضرت حسن بصرى رحمه الله ته دا اوليږلو «إن عطاء يقرئك السلام ويقول لك ما تقول في بني يعقوب عليه السلام إخوة يوسف عليه السلام إذ حدثوا فكذبوا، ووعدوا فأخلفوا، وأوتمنوا فخانوا، أفكانوا منافقين؟» يعنې چه په چا كښې دا خصلتونه وى نوهغه به منافق وى نوبيا دحضرت يعقوب عليه السلام د ځامنو په باره كښې به څه حكم وى هغوى دروغ ونيلى وو وعده خلافى ئې كړې وه اوپه امانت كښې ئې خيانت كړې وو آيا په هغوى به د منافقت حكم لګولې شى؟
كله چه دا خبره حضرت حسن بصرى رحمه الله ته اورسيده نوهغوى دخپلې خبرې نه رجوع اوكړه او وې فرمائيل «جزاك الله خيراً» بيا ئې اوفرمائيل «إذا سمعتم مني حديثاً فاصنعوا مثل ما صنع أخوكم حدثوا به العلماء فما كان منه صواباً فحسن وما كان غير ذلك ردوا على جوابه»(٣)
بيا دا قول چه ددې حديث تعلق دعهد نبوت دمنافقانوسره دې دحضرت عبدالله بن عمر اوحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهم نه هم منقول دې (٤)
مقاتل بن حيان رحمه الله فرمائى چه ما حضرت سعيدبن جبير رحمه الله ته اوونيل دې حديث زما آرام او اطمينان برباد كړې دې ځكه چه دا ټول خصلتونه يا بعضې خصلتونه په ماكښې دى حضرت سعيدبن جبير رحمه الله ورته اوفرمائيل هم دا اشكال ماته هم وو نوزه حضرت عبدالله بن عمر اوحضرت ابن عباس رضي الله عنهم ته ورغلم اوخپله مدعا مې ورته عرض كړه چه دا ئې واوريده نوهغوى په خندا شول او وې فرمائيل هم دا فكرمونږ سره هم شوې وو نومونږ

---

(١) عمدة القارى (١/٢٢٢)_
(٢) شرح نووى على صحيح مسلم (١/٥٦)_
(٣) شرح كرمانى (١/١٤٩)_
(٤) شرح نووى على صحيح مسلم (١/٥٦)_

نبی ﷺ ته خپل اشکال پیش کړلو نبی ﷺ چه زمونږ خبره واوریده نومسکې شو.او وئې فرمائیل په دې حدیث کښې ستاسوځه ذکر نشته ځکه چه ما کوم ((واذا حدث کذب)) وئیلی دی په دې کښې هغه آیت ته اشاره ده په کوم کښې چه وئیلی شوی دی.﴿ وَاللّٰهُ يَشْهَدُ إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَكٰذِبُوْنَ ﴾ (۱) دغه شان د ((واذا وعد أخلف)) مصداق تاسوخلق نه ئې بلکه هغه کس دې دچا په باره کښې چه دا آيت نازل شوې دې ﴿ فَأَعْقَبَهُمْ نِفَاقًا فِيْ قُلُوْبِهِمْ إِلٰى يَوْمِ يَلْقَوْنَهٗ بِمَآ أَخْلَفُوا اللّٰهَ مَا وَعَدُوْهُ ﴾ (۲) په اصل کښې ثعلبه بن حاطب يوكس وو هغه نبی ﷺ ته راغلو.اوعرض ئې اوکړو چه یارسول الله زما دپاره دعا اوکړه چه الله تعالی ماته مال راکړی. نبی ﷺ دهغه د باربار وئیلو نه پس دعا اوکړه نوالله تعالی هغه ته ښه مال ورکړو ځه موده پس نبی ﷺ دوه کسان هغه ته اوليږل چه زكاة ترې واخلی نوهغه ددې نه انكار اوكړو.اودا ئې اووئیل چه ماته خودا جزيه معلوميږی.زه پخپله د رسول الله ﷺ سره خبره کوم.کله چه نبی ﷺ ته دا خبره معلومه شوه.نو وې فرمائیل ((ويح ثعلبة بن حاطب)) په دې باندې دا آيت نازل شو ﴿ وَمِنْهُمْ مَّنْ عٰهَدَ اللّٰهَ لَئِنْ اٰتٰنَا مِنْ فَضْلِهٖ لَنَصَّدَّقَنَّ وَلَنَكُوْنَنَّ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝ فَلَمَّآ اٰتٰهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ بَخِلُوْا بِهٖ وَتَوَلَّوْا وَّهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ۝ فَأَعْقَبَهُمْ نِفَاقًا فِيْ قُلُوْبِهِمْ إِلٰى يَوْمِ يَلْقَوْنَهٗ بِمَآ أَخْلَفُوا اللّٰهَ مَا وَعَدُوْهُ وَبِمَا كَانُوْا يَكْذِبُوْنَ ۝ ﴾ (۳)

کله چه دا آیاتونه نازل شول.نودهغه خپلوانوهغه ملامته کړو.اودا ئې ورته اووئیل.چه ستا په باره کښې دقرآن پاك دا آياتونه نازل شوی دی.هغه اوويريدلو.او په منډه منډه نبی ﷺ ته راغلو.اودزكاة مال ئې پيش كړل.نو نبی ﷺ ورته اوفرمائيل.زه الله تعالى ددې د قبلولو نه منع كړې يم.اوس هغه ښه ژړا اوفریاد شروع کړو.اوپه خپل سر ئې خاورې اچولې.نبی ﷺ اوفرمائيل.په دې كښې دچا ځه قصوردې.تول هرځه ستا خپل عمل دې.تا زما خبره اونه منله.چه سزا ئې دا شوه.

بيا هغه دحضرت ابوبكرصديق ؓ په زمانه كښې زكاة پيش كړلو.خودرسول الله ﷺ خليفه هغه رد کړو.اودهغې د قبلولو نه ئې انکار اوکړو.دحضرت عمر ؓ په زمانه کښې ئې هم د زكاة مال پيش كړو.خوحضرت عمر ؓ هم دهغې د قبلولونه انکار اوکړو.تردې چه دحضرت عثمان ؓ په زمانه کښې هغه مړ شو.(۴)

لکه په ((واذا وعد أخلف)) سره اشاره هغه کس ته ده.بيا نبی ﷺ اوفرمائيل .اوما چه كوم ((واذا أوتمن خان)) وئيلی وو.نودهغې کښې ﴿ إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَالْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَنْ

---

(۱) سورة المنافقون:۱)_
(۲) سورة التوبة:۷۷)_
(۳) سورة التوبة:۷۵و ۷۷)_
(۴) الدر المنثورفی التفسير بالمأثور(۳/۲۶۰و ۲۶۱)-

يحملنها)(۱)ته اشاره ده.تاسو خلق ددې ټولو خصلتونو نه خلاص نې.(۲)

خو حافظ بن حجر رحمه الله فرمائي چه په دې سلسله کښې کوم احاديث پيش کولی شي.هغه ټول ضعيف دی.که په دې کښې يو حديث هم صحيح ثابت شي نو بيا به د حديث محمل متعين شي.(۳)والله سبحانه وتعالى أعلم.

**قوله تَابَعَهُ شُعْبَةُ عَنْ الْأَعْمَشِ** : دامام شعبه رحمه الله روايت کوم چه دامام اعمش رحمه الله نه مروی دې.امام بخاری رحمه الله موصولا په کتاب المظالم کښې ذکر کړې دې.(۴)

ترکومې پورې چه د حديث الباب تعلق دې.نو چونکه دا د «قبيصة بن عقبه عن سفيان» په طريق سره مروی دې.ددې وجې امام يحی بن معين رحمه الله دا سند ضعيف ګرځولې دې.ځکه چه دهغوی وينا دا ده.چه قبيصه د سفيان ثوری رحمه الله نه په ماشوموالی کښې سماع کړې ده.ددې وجې دوی غلطۍ کوی.(۵)

امام نووی رحمه الله فرمائي.چه امام بخاری رحمه الله دلته د قبيصه په وساطت سره کوم روايت نقل کړې دې.دا اصالة نه دې.بلکه د متابعت او استشهاد دپاره ئې نقل کړې دې.(۶)

په دې باندې علامه کرمانی رحمه الله اشکال کړې دې.چه دا د حضرت ابوهريره رضی الله عنه د حديث «آية المنافق ثلاث» دپاره متابع ګرځول صحيح نه دی.ځکه چه په دواړو حديثونو کښې لفظاً اومعناً مخالفت دې.لکه دحضرت ابوهريره رضی الله عنه په روايت کښې د «ثلاث» ذکر دې.او د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما په روايت کښې د «أربع» ذکر دې.دغه شان د «أربع» په حديث کښې د «خالصاً» زيادت دې.نو دا متابع ګرځول صحيح نه دی.بلکه اصالةً امام بخاری رحمه الله دا درج کړې دې.(۷)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.چه علامه کرمانی رحمه الله ته دلته غلط فهمی شوې ده.چه دوی دحضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما روايت دحضرت ابوهريره رضی الله عنه د روايت دپاره متابع ګرځوی.حالانکه داسې نه ده.ځکه که چيرته داسې وه.نو دې ته بيا شاهد وئيل پکار وو.متابع نه.بلکه امام نووی رحمه الله چه دې ته متابع وئيلې دې.دهغې منشا دا ده.چه دا حديث د حضرت قبيصه

---

(۱) سورة الأحزاب :۷۲_

(۲) شرح کرمانی(۱۴۹/۱)_

(۳) فتح الباری(۹۱/۱)_

(۴) کتاب المظالم باب إذا خاصم فجر رقم ۲۴۵۹)_

(۵) فتح الباری(۹۱/۱) مخکښې د قبيصه بن عقبه رحمه الله حالات په تفصيل سره تيرشوی دی.)_

(۶) فتح الباری(۹۱/۱)_

(۷) شرح کرمانی(۱۴۹/۱)

رحمه الله نه علاوه د سفيان ثورى رحمه الله نه نورو حضراتو هم نقل كړې دې په مسلم شريف كښې وكيع رحمه الله د سفيان ثورى رحمه الله نه ددې روايت كړې دې اودقبيصه نې متابعت تامه كړې دې (۱)

دغه شان دامام اعمش نه امام شعبه اوجرير رحمهما الله نقل كړې دې (۲) په دې طريقه د قبيصه متابعت ناقص كيږى خكه چه دا حديث د قبيصه د طريق نه په نورو قوى سندونو سره ثابت دې ددې وجې كه د قبيصه رحمه الله په طريق كښې بالفرض كه ضعف هم وى نوبيا هم دا متابع ګرځولې شى اويه دې كښې څه حرج نشته (۳)

خوداخبره دې ښكاره وى چه د قبيصه رحمه الله دا حديث ضعيف ګرځول صحيح نه دى خكه چه وړاندې مونږ دوى په حالاتوكښې په تفصيل سره ذكر كړل چه دوى ثقه او محتج به راوى دې بله دا چه په بخارى كښې ددوى د ټولو رواياتو موافقت نورو حضراتوكړې دې والله سبحانه وتعالى أعلم وعلمه أتم وأحكم.

## ۲۴ = بَابُ قِيَامُ لَيْلَةِ الْقَدْرِ مِنَ الْإِيمَانِ

**د ابواب سابقه سره ربط اومناسبت:** علامه عينى رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله په كتاب الايمان كښې دامور الايمان بيان كولو چه په كښې «باب إفشاء السلام من الإسلام» نه پس نې د كفرمراتب بيانول شروع كړل خكه چه كفردايمان ضد دې اويوڅيز په خپل ضد سره ښه ښكاره كيږى نويه مينځ كښې نې څو ابواب استطراداً دكفرذكركړل اواوس دوباره امورالايمان ته واپس كيږى.

دغه دوى فرمائى چه «باب إفشاء السلام من الإسلام» او «باب قيام ليلة القدر من الإيمان» كښې په دې اعتبارسره مناسبت شته چه «باب إفشاء السلام من الإسلام» كښې إفشاء دسلام دامور الايمان نه ګرځولې شوې ده اويه ليلة القدركښې هم افشاء السلام وى فرشتې مومنانوته سلام كوى دالله تعالى ارشاد دې ﴿سَلٰمٌ هِيَ حَتّٰى مَطْلَعِ الْفَجْرِ﴾ (۴)

دماقبل سره داسې هم مناسبت ښكاره كولې شى چه ددې نه وړاندې د منافقانو ذكر راغلې وو دهغوى صفت دې ﴿وَاِذَا قَامُوْٓا اِلَى الصَّلٰوةِ قَامُوْا كُسَالٰى يُرَآءُوْنَ النَّاسَ وَلَا يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ اِلَّا قَلِيْلًا﴾ (۵)

---

(۱) صحيح مسلم (۱/۵۶) كتاب الإيمان باب خصال المنافق)_

(۲) شعبة عن أعمش د روايت دپاره اوګورئ ((صحيح بخارى كتاب المظالم باب إذا خاصم فجر رقم ۲۴۵۹) اود (جريرعن الأعمش)) د روايت دپاره اوګورئ- صحيح بخارى كتاب الجزية والموادعة باب إثم من عاهد ثم غدر رقم ۳۱۷۸)_

(۳) فتح البارى(۱/۹۱)_

(۴) سوة القدر:۵ ) وعمدة القارى(۱/۲۲۵)_

(۵) النساء:۱۸۲)_

اوپه دې باب کښې په ليلة القدر کښې هم دقيام ذکر دې کوم چه يو ګران کار دې او دمنافق دوس کارنه دې خکه چه په ليلة القدر کښې دقيام شوق داهل ايمان وی منافقين ددې شوق نه ساتی دا هم ونيلی شی چه په ماقبل کښې دنفاق دعلاماتو ذکر وو اودلته دايمان د علامت يعنی قيام ليلة القدربيان دې

[۳۵] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنْ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَقُمْ لَيْلَةَ الْقَدْرِ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ [۱۹۰۱،۱۸۰۲]

## رجال الحديث

**حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ:** دابواليمان الحکم بن نافع بهرانی حمصی تذکره په ..بدء الوحی.. کښې د شپږم حديث لاندې ذکرشوې ده

**قَالَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ:** دابوبشرشعيب بن ابی جمره قرشی اموی رحمه الله حالات هم د ..بدء الوحی.. شپږم نمبر حديث لاندې تيرشوی دی

**قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ:** دوی عبدالله بن ذکوان مدنی قرشی رحمه الله دی ددوی تذکره مونږ په کتاب الايمان کښې د «باب حب الرسول من الإيمان» لاندې ذکرکړې ده

**عَنْ الْأَعْرَجِ:** دوی عبدالرحمن بن هرمز اعرج مدنی قرشی دی.ددوی ذکرهم د «باب حب الرسول من الإيمان» لاندې تيرشوې دې

**عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه:** (۱) دحضرت ابوهريره رضي الله عنه تفصيلی حالات په «باب أمور الإيمان» کښې د «شعب الإيمان» لاندې تير شوی دی.

---

۱) الحديث أخرجه البخاری فی هذا الکتاب باب تطوع قيام رمضان من الإيمان رقم ۳۷ وباب صوم رمضان إحتساباً من الإيمان رقم ۳۸ وفی کتاب الصوم باب من صام رمضان إيماناً وإحتساباً ونية رقم ۱۹۰۱ وفی کتاب صلاة التراويح باب فضل من قام رمضان رقم ۲۰۰۸ و۲۰۰۹ وفی کتاب فضل ليلة القدرباب فضل ليلة القدر رقم ۲۰۱۴ ومسلم فی صحيحه(۱\۲۵۹) کتاب صلاة المسافرين باب الترغيب فی قيام رمضان وهو التراويح والنسائی فی سننه (۱\۳۰۷) کتاب الصيام باب ثواب من قام رمضان وصامه إيماناً وإحتساباً وأبوداودفی سننه فی کتاب الصلاة باب تفريع أبواب شهر رمضان باب فی قيام شهر رمضان رقم ۱۳۷۱ و ۱۳۷۲ ) والترمذی فی جامعه فی کتاب الصوم باب الترغيب فی قيام رمضان وما جاء فيه من الفضل رقم ۸۰۸) وابن ماجه فی سننه کتاب إقامة الصلاة باب ما جاء فی قيام شهر رمضان رقم ۱۳۲۶) وفی کتاب الصيام باب ما جآء فی فضل شهر رمضان رقم ۱۶۴۱)

**قوله** قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَقُمْ لَيْلَةَ الْقَدْرِ إِيْمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَلَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ: رسول الله ﷺ فرمانیلی دی.کوم کس چه په لیلة القدر کښې په ایمان او احتساب سره قیام اوکړی.نودده مخکنی ګناهونه به معاف شی.

دقیام نه مراد دلته دعبادت دپاره مستعد اوتیاریدل دی.لکه څنګه چه په ﴿قُمْ فَأَنْذِرْ﴾ کښې هم دا معنی ده.

**دلیلة القدروجه تسمیه** قدرکه دتقدیر نه وی.نودډې شپې په ((قدر))سره د نامدارکولو وجه به دا وی.چه په دې شپه کښې فرشتوته ددې کال سره متعلق د تقدیراتو علم ورکولې شی یعنی په دغه کال کښې چه کوم حوادث پیښیږی.یعنی مرګ او ژوند.عروج او زوال. مالداری اوفقیری وغیره وغیره.دا ټولې خبرې په دې شپه کښې فرشتو ته خودلی شی.ددې وجې دې ته ((لیلة القدر)) وئیلی شی.

دقدرمعنی دعزت هم ده.لکه چه د ((لیلة القدر))معنی شوه د عزت شپه.

دا عزت د شپې سره هم متعلق کیدې شی.په دغه وخت کښې به مفهوم دا وی. چه دا شپه دټولو شپو نه ممتاز ده.اود ټولو شپونه زیات وزن لری.اودا عزت دعبادتګذارسره هم متعلق کیدې شی.په دې صورت کښې به مطلب دا وی.چه په دې شپه کښې د عبادت ګذار ډیر عزت کولې شی. دغه شان ددې عزت تعلق دنفس عبادت سره هم کیدې شی.یعنی په دې شپه کښې چه کوم عبادت کیږی.هغه د نورو ټولوشپود عبادت په مقابله کښې دعزت او قدر وړدې.(۱)

بیا دلیلة القدر په باره کښې دعالمانو ﷭ ډیراختلاف دې.کوم چه به انشاء الله مونږ په کتاب الصوم په آخره کښې چرته چه امام بخاری ﷬ د لیلة القدربابونه ذکرکړی دی.هلته په تفصیل سره بیان کړو.

**د ((ایمانًا واحتسابًا)) مطلب** عامو شارحینو ﷭ دایمان او احتساب مطلب دا بیان کړې دې.

چه دایمان نه خو متعارفه معنی مراد ده.یعنی فی نفسه دغه کس مومن وی.په الله او دهغه په رسول ایمان راوړی.اوددوی په وعدو یقین ساتی.اوداحتساب د شرط مطلب دا دې.چه کوم طاعت کوی.په هغې کښې مقصود دالله تعالی رضا اودهغه ثواب وی. دنیوی مال اومتاع یا جاه اوجلال مقصود نه وی.اونه ریا اوسمعت وی.(۲)

خوشیخ الاسلام علامه شبیراحمدعثمانی ﷬ فرمائی.چه زما په نیزپه دې کښې صرف دومره خبره مقصود نه ده.چه دې مومن وی.اودهغه عقائدصحیح وی. اوپه دې کښې ریا وغیره نه وی.بلکه ددې نه وړاندې یوه مرتبه مقصود ده.

---

(۱) فضل الباری(۱\۴۴۵)_
(۲) شرح کرمانی(۱\۱۵۳. ۱۵۴)_

هغه دا چه ايمان او احتساب دعين عمل په وخت كښې محرك اوباعث وى. يعنى هغه كس چه په كوم محنت اومشقت فعل كوى.نوهغه كوم محرك اوداعى دې چه هغه ددې فعل سبب جوړ شو.بالفعل دغه دواړه څيزونه دده په ذهن كښې مستحضروى.اودهغې استحضارد فعل دپاره منشاء او باعث جوړ شوې وى.اوهم دا خيال دعين فعل په وخت كښې دې دغه طرف ته راكاږى.دا نه چه صرف د رسم اورواج او عادت په طور سره صرف د ذمه وارئ پوره كولودپاره فعل كوى.

اوس دا څيز داولنى مطلب نه يوزياتى څيزدې.ځكه چه كيدې شى يوكس فى نفسه مومن وى.دده عقائد صحيح وى.اونيت ئې هم صحيح وى.خود عين فعل په وخت كښې ده ته دغه څيزونه مستحضر نه وى.چه په دې عمل باندې دالله تعالى اودهغه د رسول حكم دې.او دهغه دطرفه د اجراوثواب وعده ده.اودغه څيزونه ددې فعل دپاره باعث اومنشا جوړه نشى. اونه دا څيزونه د دغه فعل كولوطرف ته راښكل كوى.بلكه چه وخت كله راشى نود ډيوټئ ادا كولو په طور باندې كاركوى.اگرچه په دغه كښې ئې هم نيت صحيح وى.فاسد نه وى.

مثلاً يوهلك دې.هغه رنځور وى.اودده پلار ډاكټر وى.اوبه هغه باندې ډيرمهربان اوشفيق وى.اوپلارخپل خوئي بيماراووينى.نود شفقت اومهربانئ نه ورته اووائى بچيه ته په فلانى وخت كښې دا دوائى استعمالوه.نوته به صحتمند شې.اوزه به تاته انعام هم دركړم.نوپه شروع كښې چه كله هغه دوائى استعمالوى نودعين شروع په وخت كښې به هغه ته ددې خبرې استحضار وى.چه د دوائى په خوراك كښې زما دپلاردحكم منل دى.اودهغه خوشحالى ده.اودانعام اميد هم وى. دې وجې وائى. راوړئ چه دوائى اوخورم.خوانسانى فطرت دې.چه كله څو ورځې داسې اوكړى.نواوس يوڅيزعادت جوړ شى.د وخت په راتلو د ډيوټئ په طور هغه عادت پوره كوى.

هم دغه حال زمونږ دمونځ روژې وغيره دې.مونږ دمونځ كولوپه وخت كښې دا سوچ نه كوو.چه دا دالله تعالى حكم پوره كول دى.ددې په كولوبه مونږ ته دالله تعالى رضا اوخوشحالى حاصله شي.اومونږ ته به روحانى صحت ملاؤ شى.مونږ خو بس يوعادت پوره كوو. اومونځ كوو.دغه شان روژه هم زمونږ عادت جوړ شوې دې.چه كله رمضان راشى.نو مونږ دخپل عادت مطابق روژې نيسو.

حضرت شيخ الاسلام رحمه الله فرمائى.چه دلته د «ايماناً واحتساباً»قيد مطلب دا دې.چه «قيام ليلة القدر»د عادت په بناء باندې نه وى.بلكه ددې عمل دپاره ايمان اواحتساب محرك او داعى وى.اودعمل په وخت كښې دا څيزونه مستحضر وى. نوپه دې سره به يقيناً په ثواب كښې زيادت كيږى.(١)والله أعلم.

**په شرط اوجزا كښې د صيغو د اختلاف وجه** بيا دلته د «من يقم ليلة القدر ايماناً واحتساباً غفرله ما تقدم من ذنبه»كښې د شرط په ځائې «يقم»دمضارع صيغه ده.اوجزا «غفرله»دماضى

١) فضل البارى(١\٤٤٥و ٤٤٦)_

صيغه ده اودا مختلف فيه مسئله ده چه شرط د مضارع صيغه وى اوجزاء د ماضى صيغه وى. فراء رحمه الله ددې اجازت ورکړې دې اوابن مالك رحمه الله ددوى متابعت کړې دې او جمهورو نحاتو د ضرورت په وجه ددې اجازت ورکړې دې عام اجازت ئې نه دې ورکړې (١)

کوم حضرات چه دا جائز ګرځوى هغوى په آيت کريمه ﴿إِن نَّشَأْ نُنَزِّلْ عَلَيْهِم مِّنَ السَّمَاءِ آيَةً فَظَلَّتْ أَعْنَاقُهُمْ لَهَا خَاضِعِينَ﴾ (٢)اوحديث باب باندې استدلال کوى

په آيت باندې داسې استدلال دې اګرچه «إن نشأ» شرط دې اوددې جزاء «ننزل» دې کوم چه مضارع ده اوچه دواړه مضارع وى نوپه دې کښې څه کلام نشته خو وړاندې «فظلت» کښې ماضى صيغه ده.د دې عطف په «ننزل» باندې دې لکه چه دا دهغې تابع دې او د جزاء تابع هم جزاء وى.(٣)

اوترکومې پورې چه دحديث باب تعلق دې نوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه په دې باندې استدلال زما په نيز کمزورې دې.ځکه چه زه ګنړم چه په دې کښې د راويانوطرفه تصرف شوې دې.ځکه چه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه کوم روايات په دې باره کښې مشهور دى په هغې ټولوکښې شرط اوجزاء په دواړو مقاماتوکښې دمضارع صيغې دى امام نسائى رحمه الله دخپل استاذ محمد بن على بن ميمون رحمه الله په واسطه .امام بخارى رحمه الله د شيخ ابواليمان رحمه الله په دې سند سره روايت نقل کړې دې په هغې کښې په شرط اوجزاء کښې څه تغايرنشته بلکه په دواړو ځايونوکښې د مضارع صيغې دى.او«من يقم ليلة القدر يغفر له» الفاظ مروى دى.(٤)معلومه شوه.چه دحديث مخرج يودې.د راوى د تصرف په وجه تبديلى راغلې ده.(٥)

که د راوى تصرف اونه منلې شى.نودحديث تخريج د فراء اوابن مالك رحمهما الله په قول باندې منل دى.اوپه دې صورت کښې به مقام شرط کښې مضارع اوپه مقام د جزاء دماضى صيغه راوړلو نکته هغه وى.کومه چه علامه کرمانى رحمه الله ليکلې ده.

علامه کرمانى رحمه الله فرمائى.چه په دې حديث کښې ئې «من يقم» فرمائيلى دى.اوددې نه پس چه کوم احاديث راځى.نوپه هغې کښې د ماضى په صيغو سره «من قام رمضان» او «من صام رمضان ..» ذکردى.په دې کښې نکته دا ده چه قيام رمضان اوصيام رمضان متحقق الوقوع دى.نوددې دپاره هغه صيغې استعمال کړې شوې.کومې چه په تحقق الوقوع باندې

---

(١) همع الهوامع شرح جمع الجوامع للسيوطى(٥٨/٢)_
(٢) الشعراء:٤)_
(٣) فتح البارى(٩١/١)_
(٤) فتح البارى(٩١/١) وتحفة الأشراف (١٧٤/١٠) رقم ١٣٧٣٠)_
(٥) فتح البارى(٩١/١، ٩٢)-

دلالت كوى اود ليلة القدرقيام غير متيقن دې ددې وجې نې ددې نه د مضارع په صيغې سره تعبير اوكړو اوبيا په جزاء كښې دماضى دصيغې استعمال كښې دې طرف ته اشاره ده چه جزاء متحقق الوقوع ده (١)

**د «ما تقدم من ذنبه» نه كوم ګناهونه مراد دى؟** د ماتقدم نه صغائرمراد دى اوكه كبائرهم په دې كښې داخل دى؟ په دې كښې اختلاف دې

امام الحرمين، امام نووى اونور فقهاء رحمهم الله فرمائى چه ددې نه صرف صغائرمراد دى.(٢)

حافظ ابن عبدالبر رحمه الله هم دا قول اختياركړې دې.(٣) قاضى عياض رحمه الله دا قول اهل سنت طرف ته منسوب كړې دې.(٤) وجه دا ده چه د كبائرو دمعاف كيدو دپاره اصل قاعده توبه ده اګرچه ممكن ده چه الله تعالى په خپل فضل او كرم سره بغيرد توبې نه ئې معاف كړى

خوابن المنذر رحمه الله رائې دا ده چه كيدې شى صغائراوكبائرټول معاف شى. (٥)

ابن عبدالبر رحمه الله دخپلو بعضې معاصرينو نه هم دا نقل كړى اوبيا ئې په هغوى باندې رد كړې دې فرمائى «وهذا جهل بين، وموافقة للمرجئة فيما ذهبوا إليه من ذلك وكيف يجوز لذى لب أن يحمل هذه الآثار على عمومها وهو يسمع قول الله تعالى ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا تُوبُوا إِلَى اللهِ تَوْبَةً نَصُوحًا﴾ وقوله تبارك وتعالى ﴿وَتُوبُوا إِلَى اللهِ جَمِيعًا أَيُّهَ الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ فى آى كثيرة من كتابه»(٦)

مطلب دا دې چه داحاديثو عموم په وجه ددې خبرې قائل كيدل چه په دې سره به كبائر معاف شى بنكاره جهالت دې اودا دمرجئو مسلك دې دغه شان دوى فرمائى «ولوكانت الطهارة والصلاة وأعمال البر مكفرة للكبائر، والمتطهر المصلى غير ذاكر لذنبه الموبق، ولا قاصد إليه، ولا حضره فى حينه ذلك أنه نادم عليه، ولا خطرت خطيئة المحيطة به بباله، لما كان لأمر الله عزوجل بالتوبة معنى، ولكان كل من توضأ وصلى يشهد له بالجنة بإثر سلامه من الصلاة وإن إرتكب قبلها ماشاء من الموبقات الكبائر، وهذا لا يقوله حد ممن له فهم صحيح وقد أجمع المسلمون أن التوبة على المذنب فرض والفروض لا يصح أداء شئ منها إلا بقصد ونية واعتقاد أن لا عودة فأما أن يصلى وهو غير ذاكر لما إرتكب من الكبائر ولا نادم

---

(١) شرح كرمانى (١٥٣/١)_
(٢) أوجزالمسالك (٢٩٠/١٢) الترغيب فى الصلاة فى رمضان)_
(٣) التمهيد لما فى المؤطاء من المعانى والأسانيد (٤٤/٤-٤٩) حديث تاسع لزيدبن أسلم (١٠٦/٧) حديث رابع لابن شهاب عن أبى سلمة)_
(٤) شرح نووى على صحيح مسلم (١٢١/١) كتاب الطهارة باب فضل الوضوء والصلاة عقبه)_
(٥) أوجزالمسالك (٢٩٠/١٢)_
(٦) التمهيد (٤٤/٤)_

على ذلك، فمحال وقد قال رسول الله ﷺ الندم توبة وقال ﷺ الصلوات الخمس والجمعة إلى الجمعة كفارة لما بينهن ما اجتنبت الكبائر»(١)

بعضي عالمان ﷺ فرمائي چه په اصل كښې خو صغائرمراد دى.خوكيدې شي.چه دچا صغائر نه وي يا ډيرې كمې وي نوممكن ده.چه په كبائروكښې تخفيف اوشي.(٢)

خوحقيقت دا دې.چه قاعده جدا څيزدې اوعدل اواحسان جدا څيزدې.قاعده خو هم دغه ده چه كله سړې توبه اوباسي.نومعافي كيږي گني نه كيږي.خودخسرود مهربانواو د شاهي احساناتو معامله جدا خبره ده.كه الله تعالى سبحانه وتعالى دچا په قيام ليلة القدرباندې دهغه د كبائرومعافي اوكړي.نوڅوك تپوس كولووالا شته؟ البته دا خبره شته.چه قيام خو هم قيام وي.داسې قيام وي.چه په هغې باندې الله تعالى خوشحاله شي.گناهونه پرې معاف كيږي.خويه دې اعتماد باندې داسې هرگز نه دى كول پكار.چه گناه كوي.يا گناه كوي.اوتوبه نه اوباسي.دا څومره د بې حيائي خبره ده.چه د رب كريم نافرماني كوي.اوهغه ته دپښيمانتيا څخ نه ښكته كوي!!

**د ترجمة الباب اثبات** دحديث نه ترجمة الباب داسې ثابتيږي.چه دڅيز كوم اثروي.هغه د هغې څيز سره ملحق وي.چونكه دلته قيام دايمان اثردې.اويه دې باندې مرتب دې.نوځكه دا دايمان سره ملحق كولې شي.اوددې جزء گنړلې شي.په دې طريقه چه «قيام ليلة القدر» ثابته شي.چه دا د امورالايمان څنې دې.(٣)

علامه كرماني ﷫ فرمائي.چه «إيماناً واحتساباً» يا مفعول له دې.اويا تمييز دې.كه تميز اومنلې شي.نومطلب به دا وي.چه كوم كس «على وجه الايمان والإحتساب» قيام اوكړي.دده مغفرت به كيږي.اوښكاره ده.چه كوم قيام على وجه الايمان وي.نوهغه پخپله ايمان وي.اوكه مفعول له اومنلې شي.نومطلب به دا وي. چه «من قام للحصول على الإيمان» ظاهره ده.چه كوم كاردايمان دحصول دپاره كيږي. هغه ايمان وي.يعنى دايمان شعبه وي.(٤)

علامه عيني ﷫ فرمائي.چه دا تمييز يا مفعول له گرځول صحيح نه دى.البته چه حال اوگرځولې شي.نوبيا ټيك دې.اود ترجمې اثبات داسې كيږي.چه ترجمه يعنى «قيام ليلة القدر» د «غفران الذنوب» سبب دې.اوكوم عمل چه د غفران الذنوب سبب وي.هغه دايمان د شعبوڅنې وي.(٥)

---

(١) التمهيد(١٤\٤٤. ٤٥)_

(٢) أوجزالمسالك(١٢\٢٩٠)_

(٣) الأبواب والتراجم لصحيح البخاري (ص.٣٦)_

(٤) شرح كرماني(١\١٥٤)_

(٥) عمدة القاري(١\٢٢٦. ٢٢٧)_

حضرت شاه ولى الله رحمه الله فرمائى چه دا مفعول مطلق دې او «من يقم ليلة القدر إيماناً» د دې مطلب دا دې چه «من يقم ليلة القدر قياماً إيماناً» ښکاره ده چه قيام په ايمان سره موصوف کولې شي نو قيام د امور الايمان څخه دې (۱) والله اعلم.

# ۲۵ - باب الجهاد من الإيمان

دذکرشوی باب دماقبل اومابعد بابونوسره تعلق د دې باب نه د امام بخارى رحمه الله مقصد ښکاره دې چه دوی د امور الايمان تذکره کوی او جهاد هم د ايمان په شعبوکښې يو شعبه ده د دې وجې د دې باب د ماقبل بابونوسره مناسبت ښکاره دې

خودلته سوال دا دې چه امام بخارى رحمه الله وړاندې «باب قيام ليلة القدر من الإيمان» قائم کړلو او د دې نه پس ئې دا باب قائم کړلو او روستو مسلسل «باب تطوع قيام رمضان من الإيمان» او «باب صوم رمضان إحتساباً من الإيمان» قائم کړى دى په «قيام ليلة القدر» و «قيام رمضان وصيام رمضان» کښې خومناسبت ښکاره دې په مينځ کښې ئې د «الجهاد من الإيمان» ترجمه ولې قائمه کړه؟

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه په دې سره امام بخارى رحمه الله دې طرف ته اشاره کوی چه سړى لره پکار دی چه د ليلة القدر په تحصيل کښې مجاهده اوکړى لکه څنګه چه مجاهد فى سبيل الله مجاهده کوى. دغه شان دې طرف ته هم اشاره ده چه ضرورى نه ده چه په مجاهده سره ليلة القدر حاصل شى لکه څنګه چه مسلمان په جهاد کښې شرکت کوى د ده مطلوب شهادت وى خو بعضې وخت شهادت حاصل شى او بعضې وخت حاصل نشى

بهرحال د «قيام ليلة القدر» او جهاد کښې مناسبت دا دې چه په دواړو کښې مجاهده ده او په دواړو کښې د مقصود لټون دې کله مقصود حاصل شى او کله حاصل نشى بيا دا سې هم مناسبت دې چه په ليلة القدر کښې قيام کونکې په هرحال کښې ماجور دې او که موافقت د ليلة القدر هم اوشى نو په اجر کښې نور زيادت کيږى دغه شان مجاهد هم په هرصورت کښې ماجور دې او که مقصود يعنى شهادت ورته هم حاصل شى نو بيا ورته نور زيات اجر ملاويږى

بهرحال امام بخارى رحمه الله د ذکرشوى مناسبت په وجه ... جهاد .. ضمناً او استطراداً ذکر کړو او بيا قيام رمضان او صيام رمضان طرف ته ئې عود اوکړو د قيام رمضان ذکر لکه چه عموم بعد الخصوص دې او بيا چونکه د صيام تعلق د تروک سره دې او قيام دا فعالو سره تعلق لرى نو ځکه ئې قيام په صيام باندې مقدم کړو او د دې وجې هم چه قيام په شپه کښې وى او صيام په ورځ کښې. او ليل په نهار باندې مقدمه ده (۲)

---

(۱) رسالة شرح تراجم أبواب صحيح بخارى مطبوعة مع صحيح بخارى ۱۴ باب تطوع قيام رمضان من الإيمان)
(۲) فتح البارى (۱۱/۹۲)_

علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله فرمائی چه په اصل کښې امام بخاری رحمه الله چه د «قیام لیلة القدر» د باب نه پس د «جهاد» باب قائم کړې دې نو په دې کښې دې طرف ته اشاره ده چه په قیام لیلة القدر کښې مجاهده مع النفس ده او په جهاد کښې جهاد مع الکفار دې لکه چه د جهاد مع الکفار دارومدار په جهاد مع النفس سره دې که نفس د مرضیات الهیه تابع وی نو د کافرو سره به جهاد هم کولې شی کوم چه حقیقی جهاد دې په قرآن پاک کښې ئې جهاد حقیقی د جهاد مع النفس نه پس ذکر کړې دې ارشاد خداوندی دې ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ قِيلَ لَهُمْ كُفُّوا أَيْدِيَكُمْ وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَآتُوا الزَّكَوٰةَ﴾ (۱)

په مکه معظمه کښې به کافرانو مسلمانانو ته ډیر تکلیفونه ورکول او په دوی به ئې ظلمونه کول. مسلمانان به د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضریدل او اجازت به ئې غوښتل چه مونږ د کافرو سره اوجنګیږو او د هغوی نه د ظلم بدله واخلو نبی ﷺ به مسلمانانو د جنګ نه منع کول چه اوس لا د جهاد حکم نه دې شوې صبر کوئ او د معافی نه کار اخلئ او فرمائیل به ئې چه د مونځ او زکاة کوم حکم تاسو ته شوې دې د دې پابندی کوئ ځکه چه ترڅو پورې سړې د الله تعالی په اطاعت کښې د خپل نفس سره د مجاهدې کولو او بدنی تکلیفونو برداشت کولو چل نه وی ورغلې او د خپل مال د خرچ کولو عادت ئې نه وی جوړ شوې نو د هغه د پاره جهاد کول او د خپل ځان قربانول ډیر ګران وی د تعلیم دا حصه په جهاد مع النفس باندې مشتمل وه د کومې چه د جهاد مع الکفار نه وړاندې تلقین شوې وو.

دلته هم امام بخاری رحمه الله د دغه قرآنی ترتیب طرف ته اشاره کړې ده چه وړاندې د قیام لیلة القدر په ذریعه د خپل نفس سره جهاد اوکړئ او خپل ځان د جهاد مع الکفار د پاره تیار کړئ او بیا به د جهاد مع الکفار نمبر راشی (۲)

دا هم ممکن ده چه امام بخاری رحمه الله د قیام لیلة القدر او صوم رمضان او قیام رمضان بابونو په مینځ کښې د «جهاد» باب قائم کړلو دې طرف ته ئې اشاره اوکړه چه که په رمضان کښې جهاد واقع شی نو دا به د زیات اجر او ثواب موجب وی. والله أعلم.

[۳۶] حَدَّثَنَا حَرَمِيُّ بْنُ حَفْصٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ قَالَ حَدَّثَنَا عُمَارَةُ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو زُرْعَةَ بْنُ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ انْتَدَبَ اللَّهُ عز وجل لِمَنْ خَرَجَ فِي سَبِيلِهِ لَا يُخْرِجُهُ إِلَّا إِيمَانٌ بِي وَتَصْدِيقٌ بِرُسُلِي أَنْ أُرْجِعَهُ بِمَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ أَوْ غَنِيمَةٍ أَوْ أُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ وَلَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي مَا قَعَدْتُ خَلْفَ سَرِيَّةٍ وَلَوَدِدْتُ أَنِّي أُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلُ ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلُ

[۲۶۳۵ و ۲۷۴۱ و ۲۷۹۷ و ۲۹۵۵ و ۷۰۱۹ و ۷۰۲۵ و انظر ۲۳۵ و ۲۶۴۴]

---

(۱) سورة النساء: ۷۷_

(۲) فضل الباری (۱/۴۴۷، ۴۴۸)_

## رجال الحدیث

**حَدَّثَنَا حَرَمِيُّ بْنُ حَفْصٍ:** دوی ابوعلی حرمی بن حفص بن عمر عتکی بصری دی دابان بن یزید عطار. حماد بن سلمه. اوعبدالواحد بن زیاد ﷺ وغیره نه نې احادیث اوریدلی دی
ددوی نه امام بخاری. ابراهیم بن اسحاق حربی. ابوبکراحمد بن محمد اثرم. عباس دوری. اوعمروبن علی فلاس ﷺ وغیره ډیروحضراتو روایت کړې دې
ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکرکړې دی
حافظ ذهبی اوحافظ ابن حجر رحمهما الله دوی لره ثقه ګرځولی دی
په ۲۲۳ه یا ۲۲۶ه کښې وفات شوی وو.[1] رحمه الله رحمة واسعة.

**قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ:** دوی عبدالواحد بن زیاد عبدی بصری دی کنیت ئې ابوبشریا ابوعبیده دې.
د لیث بن ابی سلیم. عاصم بن کلیب. او یونس بن عبید ﷺ وغیره نه ئې روایت کړې دې
اود دوی نه ابوداؤد طیالسی. عبدالرحمن بن مهدی. عفان بن مسلم. قتیبه بن سعید. مسدد بن مسرهد. اویونس مودب ﷺ نه علاوه نورو ډیرو کسانو روایت کړې دې[2]
په دوی باندې بعضې حضراتو کلام کړې دې. امام یحیی بن سعید القطان رحمه الله فرمائی «ما رأیته یطلب حدیثاً بالبصرة ولابالکوفة قط وکنت أجلس علی بابه یوم الجمعة بعدالصلاة أذاکره حدیث الأعمش لایعرف منه حرفاً»[3]
ابوداود رحمه الله فرمائی. «عمد عبدالواحد إلی أحادیث کان یرسلها الأعمش فوصلها بقول حدثنا الأعمش حدثنا مجاهد فی کذا وکذا»[4] عثمان بن سعید رحمه الله دامام یحیی بن معین رحمه الله نه نقل کړی دی چه هغوی فرمائیل. «لیس بشئ»[5]
خوحقیقت دا دې چه دا ثقه راوی دې. محمد بن سعد رحمه الله فرمائی. «وکان ثقة کثیرالحدیث»[6]

---

[1] تهذیب الکمال(۵۵۳\۵و ۵۵۵) والکاشف (۲۱۳\۱) وعمدة القاری(۲۲۹\۱) وتقریب التهذیب(۱۵۶) رقم الترجمة (۱۱۷۷) وخلاصة الخزرجی(ص.۵۵) _

[2] تهذب الکمال(۴۵۰\۱۸. ۴۵۲) _

[3] میزان الإعتدال(۶۷۲\۲) _

[4] المصدرالسابق) _

[5] المصدرالسابق) _

[6] طبقات ابن سعد(۲۸۹\۷)

امام ابوزرعه، اما ابوحاتم، امام نسائى، امام ابوداود، امام عجلى، اوامام دراقطنى رحمهم الله ددوى توثيق كړې دې.(١)

تردې چه امام ابن عبدالبر رحمه الله فرمائى.«لا خلاف بينهم أنه ثقة ثبت»(٢)

حافظ ابن عدى رحمه الله فرمائى «وعبدالواحد من أجلة أهل البصرة وقد حدث عنه الثقات المعروفون بأحاديث مستقيمة عن الأعمش وغيره وهو ممن يصدق فى الروايات»(٣)

ابن القطان فاسى رحمه الله فرمائى.«ثقة لم يعتل عليه بقادح»(٤) يعنى ثقه وو.په دوى كښې څه علت قادحه نه وو.

تركومې پورې چه دامام يحى بن معين رحمه الله فرمان دې.«ليس بشيئ» نود هغوى مقصود دهغوى ضعيف ګرځول نه دى.بلكه دوى د اعمش په نورو شاګردانوكښې كمزورې ګرځولې دى.اګرچه فى نفسه دوى ثقه دى.هم دا وجه ده.چه كله دامام يحيى بن معين رحمه الله نه تپوس اوشو.«من أثبت أصحاب الأعمش؟» نوهغوى جواب وركړو.«بعد سفيان وشعبة أبومعاوية الضرير، وبعده عبدالواحد بن زياد»(٥)

دغه شان عثمان بن سعيددرامى رحمه الله دامام يحى بن معين رحمه الله نه تپوس كړې وو.«أبوعوانة أحب إليك أوعبدالواحد بن زياد؟» نوهغوى ورته جواب وركړې وو.«أبوعوانة أحب إلى وعبدالواحد ثقة»(٦)

بيا دحديث اعمش په باره كښې چه كوم اعتراضات دى.نودهغې په باره كښې دا وئيلى شى.چه دغه اعتراضات قابل قبول نه دى.څكه چه ددې تقاضا دا ده.چه دوى ته دامام اعمش رحمه الله روايات ياد نه وو.خوچونكه دوى صاحب كتاب وو.اوهم دكتاب نه به ئې دامام اعمش رحمه الله داحاديثو روايت كولو.نوځكه دا علت قادحه نه دې.هم دا وجه ده.چه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.«وهذا غيرقادح لأنه كان صاحب كتاب وقد احتج به الجماعة»(٧)

البته ددوى په باره كښې دائمه جرح وتعديل توثيق اوكلام ته چه اوكتلې شى.نود محتاط اوداعتدال خبره هم هغه معلوميږى.كومه چه حافظ رحمه الله په «تقريب التهذيب» كښې كړې

---

(١) تهذيب الكمال(١٨\٤٥٣و ٤٥٤) وهدى السارى(٤٢٢)_

(٢) هدى السارى(٤٢٢)_

(٣) الكامل لابن عدى(٥\١٠٠)_

(٤) تهذيب التهذيب(٦\٤٣٥) وفتح البارى(١\٩٣)_

(٥) تهذيب الكمال(١٨\٤٥٣)_

(٦) المصدرالسابق)_

(٧) هدى السارى(٤٢٢)

ده چه «ثقة لى حديثه عن الأعمش وحده مقال» (١) دوى ثقه دى البته داعمش نه په روايت كولو كښې كه دې متفرد وى نوپه دې كښې كلام كولې شى والله أعلم.

په كال ٤٧١هه كښې يا ددې نه پس ددوى وفات شوې وو (٢) رحمه الله تعالى.

**قَالَ حَدَّثَنَا عُمَارَةُ:** دوى عماره بن القعقاع بن شبرمه ضبى كوفى دى. دعبدالله بن شبرمه وراره وو خودخپل تره نه په عمركښې دغه شان په مرتبه كښې هم اوچت وو

دوى داخنس بن خليفه ضبى. حارث عكلى. عبدالرحمن بن ابى نعيم بجلى. اوابوزرعه بن عمروبن جريرنه روايت كوى.

ددوى نه په روايت كونكوكښې هم ددوى شيخ حارث عكلى دې ددوى نه علاوه سفيانين. اعمش. شريك بن عبدالله. عبدالواحد بن زياد اوجريربن عبدالحميد رحمهم الله وغيره دى

امام على بن المدينى رحمه الله فرمائى چه ددوى تقريباً ديرش احاديث دى

امام يحى بن معين اوامام نسائى دوى لره ثقه گرځولى دى.

ابوحاتم رحمه الله فرمائى. «صالح الحديث»

ابن حبان رحمه الله دوى لره په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دى

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى. «ثقة أرسل عن ابن مسعود» (٣)

**قَالَ حَدَّثَنَا أَبُوزُرْعَةَ بْنُ عَمْرِوبْنِ جَرِيرٍ:** دې دحضرت جريربن عبدالله بجلى رضى الله عنه نمسى دې. ددوى دنوم په باره كښې ډيراقوال دى. هرم. عبدالله. عبدالرحمن. عمرو. جرير. دا ټول نومونه خودلى شوى دى. دوى په خپل كنيت سره مشهور وو.

دحضرت عبدالله بن عمروبن العاص. حضرت معاويه. حضرت ابوهريره. اودخپل نيكه حضر عبدالله بجلى رضى الله عنه نه د حديثو روايت كوى.

اودوى نه روايت كونكوكښې ددوى تره ابراهيم بن جريربن عبدالله بجلى. حارث عكلى. طلق بن معاويه. ابراهيم نخعى. عبدالله بن شبرمه ضبى. عمارة بن القعقاع. اوفضيل بن غزوان ضبى رحمهم الله دى.

واقدى رحمه الله فرمائى چه دوى حضرت على رضى الله عنه ليدلې وو. حضرت ابوهريره رضى الله عنه سره به هروخت وو اودخپل نيكه نه ئې احاديث اوريدلى دى. دوى په تابعينو عالمانوكښې دى.

ابراهيم نخعى رحمه الله يوځل حضرت عمارة بن القعقاع رحمه الله ته اوونيل. «إذا حدثتنى فحدثنى عن أبى زرعة فإنى سألته عن حديث ثم سألته بعد ذلك بسنة وفى رواية بسنتين فما أخرم منه حرفاً»

---

(١) تقريب(٣٦٧) رقم ٤٢٤٠_

(٢) المصدر السابق)_

(٣) دتفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال(٢١/٢٦٤) وعمدة القارى(١/٢٢٩) والكاشف(٢/٣٠٤) وتقريب(٤٠٩) رقم ٤٨٥٩) وخلاصة الخزرجى(٢٨٠و ٢٨١)_

امام يحيى بن معين رحمه الله اوابن خراش رحمهما الله دوى لره ثقه گرخولى دى دغه شان حافظ ذهبى رحمه الله اوحافظ ابن حجر رحمه الله هم ددوى توثيق كړې دې.(١) رحمه الله رحمة واسعة.

**قوله سَمِعْتُ أَبَاهُرَيْرَةَ رضى الله عنه عن النبى ﷺ قال:** (٢) دحضرت ابوهريرة تذكره په «باب أمور الإيمان» كښې د «الإيمان بضع وستون شعبة» لاندې تيره شوې ده.

**قوله انْتَدَبَ اللَّهُ لِمَنْ خَرَجَ فِي سَبِيلِهِ:** الله تعالى د هغه كس ذمه وارى اخستې ده چه چه دهغه په لار كښې اوځى

«انتدب» د باب افتعال نه دې په دې كښې د مطاوعت خاصيت دې.ونيلى شى «ندبت فلاناً لكذا فانتدب» يعنى ما فلانې راوبللو هغه دعوت قبول كړلو (٣) اوس به د «انتدب الله» معنى به وى.«أجاب الله إلى غفرانه»(٤)

ددې معنى تعبيرشارحين ددې د تفسير «سارع بثوابه وحسن جزائه» نه كوى.(٥)

اوكيدې شى چه «انتدب» د «تكفل» په معنى كښې وى.دبخارى په يو روايت كښې د «انتدب» په ځائې «تكفل» راغلى دى.(٦)

اودمسلم شريف په روايت كښې د «تضمن» لفظ هم راغلې دې.(٧)

---

(١) تهذيب الكمال (٣٣\٢٢٣. ٢٢٦) والكاشف (٣\٣٣٧) رقم ٨١٠٣) وعمدة القارى (١\٢٢٩) وتقريب (ص.٦٤١) رقم (٨١٠٣) وخلاصة الخزرجي(٤٥٠)_

(٢) الحديث قد أخرجه البخاري في كتاب الجهاد باب أفضل الناس مؤمن مجاهد بنفسه وماله في سبيل الله رقم ٢٧٨٧ وباب تمنى الشهادة رقم ٢٧٩٧ وباب الجعائل والحملان في السبيل رقم ٢٩٧٢ وفي كتاب فرض الخمس باب قول النبي ﷺ أحلت لكم الغنائم رقم ٣١٢٣ وفي فاتحة كتاب التمنى باب ما جآء في التمنى ومن تمنى الشهادة رقم ٧٢٢٦و٧٢٢٧ وكتاب التوحيد باب قوله تعالى : ولقد سبقت كلمتنا لعبادنا المرسلين رقم ٧٤٥٧ وباب قول الله تعالى((قل لو كان البحر مداداً لكمات ربي لنفد البحر قبل أن تنفد كلمات ربي ولو جئنا بمثله مدداً رقم ٧٤٦٣ وأخرجه مسلم (٢\١٣٣. ١٣٤) في كتاب الإمارة باب فضل الجهاد والخروج في سبيل الله والنسائي في سننه (٢\٥٥) كتاب الجهاد باب ما تكفل الله عزو جل لمن جاهد في سبيله وفي (٢\٢٧١) كتاب الإيمان وشرائعه باب الجهاد وابن ماجه في سننه في كتاب الجهاد باب فضل الجهاد في سبيل الله رقم ٥٧٢٣)_

(٣) مختار الصحاح (٦٥١.)_

(٤) النهاية (٥\٣٤)_

(٥) فتح البارى(١\٩٣)_

(٦) صحيح بخارى (١\٤٤٠) كتاب الجهاد باب قول النبي ﷺ أحلت لكم الغنائم رقم ٣١٢٣)_

(٧) صحيح مسلم (٢\١٣٣) كتاب الإمارة باب فضل الجهاد والخروج في سبيل الله )-

**قوله** لَا يُخْرِجُهُ إِلَّا إِيمَانٌ بِي وَتَصْدِيقٌ بِرُسُلِي : دې په ما باندې ايمان او په رسولانو باندې تصديق راوباسي

مطلب دا دې چه مجاهدکوم چه دالله تعالى په لار کښې اوځي نوهغه باندې بل څه وجه باعث نه وى بلکه په الله تعالى باندې ايمان او د رسولانو د تصديق د وجې راوځي.

دلته ايمان مرفوع دې اود «لايخرجه» فاعل دې ددې حديث په بل سند کښې «ايماناً» په نصب سره دی په دې صورت کښې به «ايماناً» مفعول له گرځولې شى اوتقدير د عبارت به دا وى «لايخرجه مخرج الاالايمان بى» يعنى ده لره د ايمان په وجه څوک راويستونکې راوباسي.[1]

بيا علامه کرمانى رحمه الله فرمائى چه وړاندې په بعضې نسخوکښې د «وتصديق برسلى» په ځائې «أوتصديق برسلى» دی.[2] د «او» په صورت کښې اشکال کيدې شى چه د ايمان بالله دپاره تصديق بالرسل لازمى دې اود دواړو کيدل ضرورى دې نوبيا ئې «أو» ولې اوفرمائيلى شو.

علامه کرمانى رحمه الله جواب ورکړى چه دا «او» دمانعة الخلو دپاره دې کوم چه دجمع نه مانع نه دې.[3]

خوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه په اصل کښې د «أو» روايت ثابت نه دې نوجواب ورکولو تکلف ته ضرورت نشته.[4] بيا خاص کرچه کله «أو» دمانعة الخلو دپاره اوگرځولې شى نود دواړو په مينځ کښې لزوم نه ثابتيږى.

البته دا ممکن ده چه دا «أو» د شك دپاره وى يعنى په دې کښې شك دې چه راوى «الايمان بى» يا «الاتصديق برسلى» وئيلى دى.

بهرحال د ايمان بالله دپاره تصديق بالرسل لازم دې د تصديق بالرسل نه بغيرپه الله تعالى باندې صحيح ايمان نشى حاصليدې اوتصديق بالرسل دپاره ايمان بالله ضرورى دې خکه هغوى په الله تعالى باندې د ايمان راوړلو دعوت ورکوى.

**قوله** أَنْ أُرْجِعَهُ بِمَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ أَوْ غَنِيمَةٍ أَوْ أُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ: يعنى الله تعالى دهغه کس کفالت کړې دې څوک چه دهغه په لارکښې اووتلو چه دې به داجر سره راواپس کوى اويا به ئې د غنيمت سره راواپس کوى يا به دې جنت ته داخلوى.

---

[1] فتح البارى (۱۱\۹۳) وشرح نووى على صحيح مسلم (۲\۱۳۳) كتاب الإمارة باب فضل الجهاد والخروج فى سبيل الله_

[2] شرح الكرمانى (۱\۱۵۵)_

[3] المصدر السابق)_

[4] فتح البارى (۱\۹۳)_

«أرجع» مجرد دې. د باب ضرب نه استعمالیږي.کله چه ددې مصدر يعنى رجوع وی.نودا لازم وی اوکله چه ددې مصدر رجع وی.نودا متعدی وی.(۱)دلته متعدی دې.

ددې جملې حاصل دا دې.چه کوم کس صرف دالله تعالى د رضا دپاره دايمان بالله او تصديق بالرسل سره ميدان جهاد ته لاړشی.نوياخو به شهيد شی.اوجنت ته به لاړ شی.اويا به ژوندې پاتې شی.او واپس به راشی.په دې صورت کښې به ورسره يا اجر وی.اويا به مال غنيمت وی.

**يو اشکال** ددې خو مطلب دا شو.که مجاهد ژوندې راواپس شو.نوده سره به په دوو څيزونو کښې صرف يو څيز وی.يا به ورته اجر ملاويږی.اويا به مال غنيمت ورته ملاويږی. حالانکه داسې کيږی.چه مجاهد صرف اجر سره واپس کيږی.مال غنيمت ورته نه وی حاصل شوی. اوکله داسې کيږی.چه غنيمت سره واپس شی.اواجر ورسره هم وی.ځکه چه کله مجاهد دالله تعالى د رضا دپاره د اعلاء کلمة الله په غرض جنګيږی.نوبهرحال هغه ته به دده په جهاد باندې اجر ملاويږی.

نوددې درې جوابونه ورکړې شوی دی.

**دعلامه کرمانی رحمه الله جواب** علامه کرمانی رحمه الله دا ارشاد فرمائيلې دې.چه دا «أو» د مانعة الخلو دپاره دې.يعنی په دواړو کښې به يو خامخا وی.اودواړه جمع کيدې شی.(۲)

**د ابن عبدالبر،قرطبی اوتورپشتی رحمهم الله رائې** حافظ ابن عبدالبر،اوعلامه قرطبی رحمه الله رائې دا دې.چه دا «أو» په معنی د «واو» دې.هم دې قول ته حافظ فضل الله تورپشتی رحمه الله ترجيح ورکړې ده.(۳)اوددې قرينه دا ده.چه د مسلم شريف په يو سند کښې «يحيى بن يحيى عن مغيرة بن عبدالرحمن عن أبي الزناد عن الأعرج عن أبي هريرة» په واو سره يعنی «أجروغنيمة» نقل دی.(۴) دغه شان په نسائی کښې «الزهری عن سعيد بن المسيب عن أبي هريرة رضی الله عنه» په سند کښې او «عطاء بن ميناء عن أبي هريرة رضی الله عنه» په روايت کښې په «واو» سره راغلی دی.(۵) بيا په ابوداود کښې دحضرت ابوامامه رضی الله عنه د روايت الفاظ دا دی.«.. رجل خرج غازيا في سبيل الله فهو ضامن على الله حتى يتوفاه فيدخله الجنة أو يرده بما نال من أجروغنيمة»(۶)

---

(۱) تاج العروس (۵\۳۴۸)_

(۲) شرح کرمانی(۱\۱۵۶)_

(۳) فتح الباری(۶\۸) کتاب الجهاد باب أفضل الناس مؤمن مجاهد بنفسه وماله فی سبيل الله)_

(۴)صحيح مسلم (۲\۱۳۳) کتاب الإمارة باب فضل الجهاد والخروج فی سبيل الله)_

(۵) سنن نسائی (۲\۵۵) کتاب الجهاد باب ما تکفل الله عزوجل لمن جاهد فی سبيله)_

(۶) سنن سنن أبی داود فی کتاب الجهاد باب فضل الغزو فی البحررقم ۲۴۹۴)_

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی که دا روایات ثابت شی نوبیابه دا متیعن شی چه ((أو)) په معنی د ((واو)) کښې دې (۱)

خوحافظ ابن حجر رحمه الله په دې جواب باندې دا اشکال کړې دی چه کوم مجاهد ژوندې واپس راشی نوهغه به داجر اوغنیمت دواړو سره واپس راشی حالانکه په بعضې وخت کښې سړې بغیرد غنیمت نه واپس راشی.(۲)

ددې دا جواب ورکړې شوې دې چه د اجر اوغنیمت دواړو په یو خائې راوړلو مطلب دا دې چه فی الجمله دواړه په یوخائې راشی.اوس ددې دوه صورتونه دی.یو صورت خو دا دې چه دواړو سره واپس راشی.اودویم صورت دا دې چه په دې دواړو کښې په یوسره واپس راشی. یعنی اجر سره راشی.(۳)

**دحافظ ابن حجر رحمه الله جواب** دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې دا ده چه په اصل کښې د غنیمت سره کوم اجر وی.هغه لږ وی.ددې وجې ددې تذکره نه ده شوې.امام مسلم د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما نه مرفوعاً یو روایت دا نقل کړې دې.((**ما من غازية تغزو في سبيل الله فيصيبون الغنيمة إلا تعجلوا ثلثي أجرهم من الآخرة ويبقى لهم الثلث، وإن لم يصيبوا غنيمة تم لهم أجرهم**))(۴)

یعنی که د مجاهدینویو لښکر د جهاد دپاره لاړ شی.اوغنیمت سره واپس راشی.نودوی ته دوه حصې اجرپه دنیا کښې ملاوېږی.اویوه حصه ئې آخرت ته باقی پاتې شی.اوکه جهاد اوکړی.د غنیمت نه بغیر راواپس شی.نود دوی ټول اجر آخرت دپاره ذخیره شی.(۵)

خو په دې دا اشکال دې.چه ددې مطلب خو دا دې چه غنیمت ملاویدل د ثواب د نقصان سبب دې.حالانکه نبی صلی الله علیه وسلم د غنیمت حلالوالې په خائې د احسان کښې ذکرکړی دی.(چه دا په دې امت باندې دالله تعالی احسان دې.ازمترجم) اوخپل خصوصیت ئې بیان کړې دې. نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی.((**وأحلت لي الغنائم ولم تحل لأحد من قبلي**))(۶)

دویم اشکال دا دې.چه بیا خو ددې حدیث په رڼا کښې د اهل احد درجه د اهل بدر نه اوچته ده.ځکه چه اهل بدرته غنیمت ملاؤ شوې وو.اواهل احد ته نه وو ملاؤ شوې.

---

(۱) فتح الباری(۸/۶) کتاب الجهاد باب أفضل الناس مؤمن مجاهد بنفسه وماله فی سبیل الله)_

(۲) المصدرالسابق)_

(۳) أنظرشرح نووی علی صحیح مسلم (۱۳۳/۲) کتاب الإمارة باب فضل الجهاد والخروج فی سبیل الله)_

(۴) صحیح مسلم (۱۴۰/۲) کتاب الإمارة باب بیان قدر ثواب من غزا فغنم ومن لم یغنم وسنن النسائی (۵۶/۲) کتاب الجهاد باب ثواب السریة التی تحقیق وسنن أبی داود کتاب الجهاد باب فی السریة تحقیق رقم ۲۴۹۷ وسنن ابن ماجه کتاب الجهاد باب النیة فی القتال رقم ۲۷۸۵ وأحمد فی مسنده (۱۶۹/۱)_

(۵) فتح الباری(۱۶۹/۶)_

(۶) صحیح بخاری(۴۷/۱) کتاب التیمم)_

بعضې خلق د اشکالاتو نه ویریدلی دی.اودا ئې ونیلی دی.چه «ما من غازية تغزوا فى سبيل الله فيصيبون الغنيمة إلا تعجلوا ثلثى أجرهم من الآخرة» دا حديث ضعيف دې.ځکه چه په دې کښې يو راوی ابوهانی حمید بن هانی مجهول دې.[1]

خودا خبره صحیح نه ده.هم دا وجه ده.چه امام نووی رحمه الله فرمانیلی دی.دوی مجهول گرځول غټه غلطی ده.بلکه دوی مشهور ثقه راوی دې ددوی نه لیث بن سعد ،حیوه بن شریح او ابن وهب نه علاوه نورو ډیرو خلقو روایت کړې دې.ددوی د توثیق دپاره دا خبره کافی ده.چه امام مسلم په خپل صحیح کښې ددوی په حدیث باندې استدلال کوی.[2]

بیا ابوحاتم رحمه الله دوی په باره کښې فرمائی.«صالح»[3]

امام نسائی رحمه الله فرمائی.«ليس به بأس»[4]

امام دراقطنی رحمه الله فرمائی.«لا بأس به»بیا فرمائی.«ثقة»[5]

حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی.«هوعندهم صالح الحديث لا بأس به»[6]

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی«ثقة»[7]

ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکرکړی دی.[8]

بعضې خلق دا وائی.چه ددې نه هغه غنیمت مراد دې.کوم چه په ناجائزه طریقه باندې اخستې شوې وی.خودا خبره ددې وجې غلطه ده.چه بیا خو به ورته ثلث اجر هم نه ملاویږی.بلکه هیڅ اجر به ورته نه ملاویږی.[9]

بعضې خلق وائی.چه ددې نه دجهاد هغه سفر مراد دې.چه په هغې کښې د ابتداء نه د اعلاء کلمة الله نیت نه وی.اوبیا روسته په کښې اخلاص پیدا شوې وی.

خو دا جواب هم صحیح نه دې.ځکه که نیت صحیح نه وی.نواجر به مطلقاً نه ملاویږی.اوکه نیت ئې صحیح شی.نوبیا به ورته پوره اجر ملاویږی.په اول کښې د نیت د فساد اوبه آخر

---

[1] حكاه قاضى عياض رحمه الله عن بعضهم كما فى شرح النووى على صحيح مسلم (١٤٠/٢) كتاب الإمارة باب بيان قدر ثواب من غزا فغنم ومن لم يغنم)_

[2] شرح النووى على صحيح مسلم (١٤٠/٢)_

[3] تهذيب الكمال (٤٠٢/٧) وتهذيب التهذيب (٥١/٣)_

[4] المصدر السابق)_

[5] المصدر السابق)_

[6] تهذيب التهذيب (٥١/٣)_

[7] الكاشف(٢٥٨/١)_

[8] الثقات لابن حبان (١٤٩/٤)_

[9] فتح البارى (٩/٦) كتاب الجهاد باب أفضل الناس مؤمن مجاهد بنفسه وماله فى سبيل الله)_

کښې د نيت د صحت دوجې نه د ثلثين او ثلث تقسيم صحيح نه دې.بيا خاص کر په غزواتو کښې د اجرداره‌مدار په «لايخرجه إلا إيمان بي وتصديق برسلي» باندې دې ددې نه دا معلوميږي. چه د سفر د شروع نه د نيت اخلاص ضروري دې.[1]

**داولنی اشکال صحيح جواب** داولنی اشکال صحيح جواب دا دې چه «حل الغنائم» يقيناً د نبی ﷺ خصوصيت دې.اونبی ﷺ دا خبره د مدح په مقام کښې ذکرکړې ده خودا امر مباح دې.اودا ضروري نه ده.چه امرمباح دې د ثواب د حاصلولو سبب وی.دا صحيح ده.چه الله تعالی زمونږ عجز اوضعف ته کتلی دی.اوغنيمتونه ئې زمونږ دپاره حلال کړی دی (لکه څنګه چه په حديث کښې راغلی دی[2]) خوددې نه دا چرته معلوميږي چه ددې په وجه به اجر اوثواب هم زيات وی.اوکمې به په کښې نه راځی.د دنيا د حاصليدو نه پس د اجر کميدل يوه معقوله خبره معلوميږي.[3]

**د دويم اشکال جواب** اوترڅو پورې چه د اهل بدراواهل احد اشکال دې.نوددې جواب دا دې.چه د اهل احد او اهل بدر په مينځ کښې د تقابل په ځائې د اهل بدر په خپل مينځ کښې تقابل پکار دې.مطلب دا دې.چه خود د اهل بدر د دوو حالتونو په مينځ کښې موازنه کول پکار دی.اوکتل پکار دی.که هغوی ته غنيمت نه وو ملاؤ شوې.نوبيا به دهغوی اجر څومره وو؟

مثال په طورداسې پوهه شه.چه د غنيمت نه بغيرد بدری اجر شپږ سوه دې.اود احدی اجر بغيرد غنيمت نه سل دې.نوبدری ته چونکه غنيمت ملاؤ شوې دې.ددې وجې دده اجر د شپږو سوو ثلث يعنی دوه سوه به وی.نوښکاره ده.چه دا دوه سوه کومه چه د بدری اجر دې.هغه د احدی دهغه اجر په دوچند دې.کوم چه د غنيمت نه بغيرهغه ته ملاؤ شوې وو.[4]

**وَلَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي مَا قَعَدْتُ خَلْفَ سَرِيَّةٍ:** که ما سره دا ويره نه وه.چه زما امت به په مشقت کښې اخته شی.نوزه به د يولښکرنه هم بغيرګډونه نه ووم پاتې شوې.په هره سريه کښې به مې شرکت کولو.خود مشقت د ويرې د وجې زه په هره سريه کښې شرکت نه کوم.

**د مشقت وجوه** ① يومشقت خو دا دې.که نبی ﷺ د جهاد دپاره تلو.نود مدينې منورې په انتظامی امورو اومعاملاتو کښې به تعطل پيدا شوې وو.ځکه چه نبی ﷺ په خپله موجود نه وو.نو روسته چه کوم واقعات راتلل.اوکوم حالات واقع کيدل.دهغې فيصله اوتصفيه به

---

[1] المصدرالسابق.

[2] قال رسول الله ﷺ فلم تحل الغنائم لأحد من قبلنا ذلک بأن الله رأى ضعفنا وعجزنا فطيبها لنا أخرجه مسلم في صحيحه (٨٥\٢) کتاب الجهاد والسيرباب تحليل الغنائم لهذه الأمة خاصة.

[3] فتح الباري(٩١٦).

[4] المصدرالسابق.

ځنګه کيده؟نود معاملاتوددې تعطل په وجه به خلق په مشکل اوپريشانۍ کښې وو

(۲) دويمه وجه دا کيدې شي که نبي ﷺ په خپله جهاد ته تشريف اوړلو.نوددې مطلب به دا وو چه د امير دپاره په جهاد کښې شرکت ضروري دې.نو روسته چه کوم خلفاء راتلل دهغوی دپاره به ګرانه وه.چه هغوی به په هرجهاد کښې وتل.اوبنکاره خبره ده.چه په دې کښې مشقت دې.

(۳) دريمه وجه دا کيدې شي.چه نبي ﷺ به کله جهاد ته تشريف اوړلو.نوپه اهل ايمان کښې به څوك هم په مدينه منوره کښې ايساريدو باندې راضي نه وو.په هغوی کښې به د هريو دا خواهش وو.چه هغه د نبي ﷺ سره په جهاد کښې شريك شي.اوچه ټولو د تلو خواهش کولو.نو د ټولو دپاره به په سورلۍ انتظام کول ګران وو.اوتکليف اومشقت به پيش کيدلو.قرآن مجيد دې ذکرکړې دې ﴿وَلَا عَلَى الَّذِينَ إِذَا مَا أَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ قُلْتَ لَا أَجِدُ مَا أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ تَوَلَّوا وَّأَعْيُنُهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ حَزَنًا أَلَّا يَجِدُوا مَا يُنفِقُونَ﴾ [1]

دې حضراتو به د نبي ﷺ سره په مدينه منوره کښې شرکت غوستل.خود دوی دپاره به انتظام کول ګران وو.ددې خيال ئې ا وساتلو.اوپه بعضو مواقعوکښې نبي ﷺ لښکر سره تشريف يونړلو.چه دوی ته څه اطمينان اوتسلي اوشي.که مونږ لانړلو.نو نبي ﷺ خو هم نه دې تلې.اوکه نبي ﷺ په هره موقع باندې تشريف اوړلو.نو د دوی د بې چينۍ ،خفګان او پريشانۍ څه اندازه باقي نه وه.نوځکه نبي ﷺ اوفرمائيل.

«لولا أن أشق على أمتي ما قعدت خلف سرية» [2]

سريه هغه لښکرته وائي.چه په هغې کښې زيات نه زيات څلور سوه کسان وي.[3] د سريه وجه تسميه دا ده.چه دا د «سرى» نه ماخوذ ده.ددې معنی ده،، ښه څيز،، چونکه په سريه کښې هم چانړشوی کسان ليږلی شي.نوځکه ورته ،،سريه،، وائي. [4]

بيا په اصطلاح کښې په غزوه او سريه کښې فرق مشهور دې.چه غزوه هغه جنګ ته وائي چه په هغې کښې نبي ﷺ پخپله موجود وي.اوسريه هغه لښکر ته وائي.چه هغوی سره نبي ﷺ پخپله تشريف فرما نه وي.[5] والله أعلم.

**قوله** وَلَوَدِدْتُ أَنِّي أُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلُ ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلُ:

زما ارمان دې.چه زه د الله تعالی په لارکښې قتل کړې شم.اوبيا راژوندې کړې شم.بيا قتل کړې شم.او بيا راژوندې کړې شم.ا .بيا زه دالله تعالی په لارکښې شهيد کړې شم.

---

[1] ) التوبة:۹۲)_

[2] ) د دې ټولوتوجيهاتو دپاره اوګورئ (فضل البارى (۱۱\۴۴۹، ۴۵۰)_

[3] ) النهايه لابن الأثير (۲\۳۶۳)_

[4] )المصدرالسابق)_

[5] ) کشاف إصطلاحات الفنون (۲\۱۰۹۹) مادة الغزو)_

دلته کښې اشکال دې هغه دا چه د نبی ﷺ مرتبه خو د شهیدانو د مرتبې نه زیاته اوچته ده.
نو بیا نبی ﷺ د شهادت ارمان ولې کولو
خودا څه عجیبه خبره نه ده.څکه چه په بعضې وختونوکښې لوئې سړی ته د معمولی معمولی څیزونو خواهش هم وی.گوری یوکس ته مخامخ بریانی (په روژو کښې مالگه مصالحه مرچکئ وغیره واچوی.اوگه وړ ئې کړی) قورمه اومتنجن (یوقسم خوږ پولاؤ) اوبنه بنه څیزونه موجود وی.ددې باوجود هغه وائی.اچار اوچتهئ راوړئ.نوددې بنه قسم خوراکونو په مقابله کښې د اچار اوچتنئ څه حیثیت دې؟ خوهغه بیا هم د اچار اوچتنئ مطالبه کوی
نبی ﷺ ته چه الله تعالی کوم مقام اومرتبه ورکړې ده.هغه په څوڅوچنده د شهادت د مرتبې نه اعلی او اوچت دې.خوشهادت هم اگرچه ددوی دمقام نه کم دې هم د فضیلت یوڅیز ضرور دې.نوځکه نبی ﷺ ددې تمنا کړې ده.(۱)
ددې نه علاوه د نبی ﷺ ددې تمنا کولو مقصود د شهداؤ اجر اوثواب حاصلول نه دی څکه چه اجراوثواب خو نبی ﷺ ته د شهادت نه بغیرهم ددې نه زیات ملاؤ شوې ده.بلکه حقیقت حال دا دې.چه نبی ﷺ د شهادت تمنا ددې دپاره اوکړله.چه په دې کښې یوخاص لذت دې

وه کم ہیں تڑپنے میں جنہیں ملتی ہے لذت
یوں آپ کی شمشیر کے بسمل تو بہت ہیں

که د شهادت مرتبه حاصلول ئې مقصود وو.نویوځل شهید کیدل به کافی وو.خونبی ﷺ چه باربار د شهادت تمنا کوی.نودا په دې خبره دال دې.چه په شهادت کښې یوخاص خوند دې.کوم چه نبی ﷺ یوځل نه بلکه باربارحاصلول غواړی.(۲)
بیا د نبی ﷺ ددې تمنا یوه وجه دا هم کیدې شی.چه بیشکه د نبوت مقام او مرتبه اوددې اجر او ثواب ډیر زیات دې.خود شهادت هم ډیرلوئې مقام او فضیلت دې. د نبی ﷺ ارشاد دې.چه د شهید د وینې نه زمکه وچه شوې هم نه وی.چه حورې دې اوچت کړی.(۳)
د شهیدانو روحونه ټوله ورځ په جنت کښې چرته چه ئې خوښه وی گرځی راگرځی.او د شپې د عرش سره زوړندو قنادیلو سره هغوی ته ځائې ملاویږی.(۴)
دغه شان بې شمیره فضیلتونه الله تعالی د شهادت اوشهید دپاره مختص کړی دی.(۵)

---

(۱) فضل الباری (۱\۴۵۰)_
(۲) المصدرالسابق)_
(۳) عن أبی هريرة ﷺ عن النبی ﷺ قال ذكر الشهداء عندالنبی ﷺ فقال لاتجف الأرض من دم الشهيد حتى تبتدره زوجتاه ..أخرجه ابن ماجه فی سننه فی كتاب الجهاد باب فضل الشهادة فی سبيل الله (۲۷۹۸)_
(۴) انظر الصحيح لمسلم (۲\۱۳۵) كتاب الإمارة باب فی بيان أرواح الشهداء فی الجنة ...)_
(۵) الدرالمنثور(ص۲\۹۴تا ۱۰۰) د (ولاتحسبن الذين قتلوا فی سبيل الله أمواتا) کښې،

نوكه نبى ﷺ ددې فضيلتونو اومناقبوپه وجه د شهادت تمنا كړې وى.نوپه دې كښې څه قباحت يا تعجب نشته.

**ايا د نبى ﷺ د شهادت تمنا كولوسره د كفر غلبه لازميږى** دلته يوسوال دا دې چه په دې حديث كښې نبى ﷺ باربار د شهادت تمنا كوى.اوشهادت ملاويږى كافرانوسره په جنګ كولو.نولكه چه نبى ﷺ دا تمنا كوله.چه كفر دې **هميشه** دپاره باقى وى.؟

دا سوال ډيرسطحى دې.څكه چه د حديث مقصد دجهاد اوشهادت عظمت،مزيت اوفضيلت اظهار دې.دا عنوان د جهاد عظمت بيانول اودشهادت فضيلت ښكاره كولودپاره اختيار كړې شوې دې.ددې نه دا تمنا كول چه نبى ﷺ د كفرد بقاء تمنا هم كوله.ډيرلغو اوباطل اعتراض دې.

بيا تكوينى طور دا معلومه ده.چه كفربه په ترقيامته پورې باقى وى.نوكه ددې په وجه نبى ﷺ د شهادت فى سبيل الله تمنا كړې وى.نوبيا نبى ﷺ ته د كفرد تمنا نسبت څنګه صحيح كيدې شى.څكه چه نبى ﷺ خو ددې وجې تمنا كړې ده.چه كفربه هسې هم ترقيامته پورې باقى وى.

دغه شان دا هم وئيلى شوى دى.چه نبى ﷺ د كفرد بقاء دپاره نه بلكه دامت په خلقو كښې د شهادت شوق پيدا كولو دپاره دا فرمائيلى دى.(١) والله أعلم،

## ٢٦ = بَابُ تَطَوُّعُ قِيَامِ رَمَضَانَ مِنَ الْإِيمَانِ

**د ترجمې مقصد:** امام بخارى رحمه الله فرمائى.چه قيام رمضان خو تطوع ده.دا دايمان يوه شعبه ده.په دې سره امام بخارى رحمه الله دوو خبرو طرف ته اشاره اوكړله.يوه دا چه قيام رمضان سنت دې.واجب نه دې.دويمه دا چه لكه څنګه طاعات مفروضه په ايمان كښې داخل دى.دغه شان عبادات مندوبه هم داخل دى.

عبادات مندوبه په ايمان كښې داخل دى كه نه؟ دا مسئله مختلف فيها ده..اهل سنت والجماعت طاعات مفروضه ومندوبه ټول په ايمان كښې داخل ګڼرى.اود معتزلو يوه ډله دا وائى.چه طاعات مفروضه په ايمان كښې داخل دى.خوطاعات مندوبه نه دى داخل.(٢)

امام بخارى رحمه الله په دې ترجمه كښې د «تطوع» لفظ زياتى كړلو.اودې اختلاف طرف ته ئې اشاره اوكړه.اود اهل سنت تائيد ئې كړې دې

[٣٧] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَامَ رَمَضَانَ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ [٢٠٠٩، ٢٠٠٨]

---

١) فضل البارى (٤٥٢/١)_

٢) الأبواب والتراجم (٣٦) از حضرت شيخ الحديث قدس سره)_

## رجال الحديث

**حدثنا اسماعيل:** دوی اسماعیل بن ابی اویس مدنی دې.ددوی حالات وړاندې په باب «تفاضل أهل الإيمان في الأعمال» کښې تیرشوی دی.

**قال حدثني مالك:** دامام مالك رحمه الله حالات په «باب من الدين الفرار من الفتن» کښې تیرشوی دی.

**عن ابن شهاب:** دوی امام زهری رحمه الله دی.ددوی حالات په بدء الوحی کښې د دریم حدیث لاندې تیرشوی دی.

**عن حميد بن عبدالرحمن:** دوی د مشهورصحابی احدالعشرة المبشرة حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه خوئی دې.د دوی کنیت ابوابراهیم دې.بعضو ابوعبدالرحمن خودلې دې. او بعضوابوعثمان ذکرکړې دې.ددوی مور ام کلثوم بنت عقبه بن ابی معیط ده.دا د حضرت عثمان مورشریکه خور وه.اوبیخی په اول کښې ئې د مکې مکرمې نه مدینې منورې ته هجرت کړې زنانوکښې ده.[1]

دوی د خپل پلارحضرت عبدالرحمن بن عوف. اوخپلې مور حضرت ام کلثوم نه علاوه د حضرت ابن عباس،حضرت عبدالله بن عمر،حضرت عبدالله بن عمرو،حضرت ابوهریره، حضرت ابوسعیدخدری رضی الله عنهم وغیره نه احادیث اوریدلی دی.

اوددوی نه چه چا روایت کړې دې.نوپه هغوی کښې سعدبن ابراهیم،صفوان بن سلیم، اسماعیل بن محمد بن سعدبی ابی وقاص،عبدالرحمن بن هرمزالاعرج اوامام زهری رحمه الله وغیره حضرات دی.[2]

احمدبن عبدالله عجلی،اب، زرعه ، او ابن خراش رحمه الله ددوی په باره کښې فرمائی «ثقة»[3]

محمدبن سعد دامام واقدی رحمه الله نه نقل کړی دی.چه «وكان ثقة عالماً كثير الحديث»[4]

واقدی رحمه الله فرمائی.چه ددوی وفات په مدینه منوره کښې په کال ۹۵ﻫ کښې شوې دې.[5]

ابن سعد رحمه الله فرمائی.چه بعضې عالمانو ددوی د وفات کال ۱۰۵ﻫ نقل کړې دې.خودا غلط دې.[6]

---

[1] تهذيب الكمال(۷\۳۷۸.. ۳۷۹)_

[2] المصدرالسابق)_

[3] تهذيب الكمال(۷\۳۸۰)

[4] طبقات ابن سعد(۵\۱۵٤)_

[5] طبقات ابن سعد (۵\۱۵۵) دغه شان اوګورئ (حاشية تهذيب الكمال (۷\۳۸۱)_~

[6] المصدرالسابق)_

**عن أبي هريرة رضي الله عنه:** (۱) دحضرت ابوهريره تفصيلي حالات په «باب أمور الإيمان» كښې تيرشوي دي.

**قوله أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال من قام رمضان إيمانا واحتسابا غفر له ما تقدم من ذنبه:** يعني نبي ﷺ فرمانيلي دي. كوم كس چه په رمضان كښې په ايمان اودثواب په نيت سره قيام اوكړي. نودده ټول مخكښى ګناهونه به معاف كړې شي

ددې حديث سره د متعلقه مباحثو تشريح وړاندې په «من يقم ليلة القدر إيمانا واحتسابا غفر له ما تقدم من ذنبه» لاندې تيره شوې ده.

## ۲۷=باب صوم رمضان احتسابا من الإيمان

**د قيام رمضان په صوم رمضان باندې د تقديم څو وجوه** امام بخاري رحمه الله فرمائي.چه احتساب يعني دالله تعالى نه د اجر اوثواب طلبولو دپاره د رمضان روژه نيول دايمان شعبه ده.

دلته سوال دا دې.چه امام بخاري رحمه الله د «صوم رمضان» ترجمه د «قيام رمضان» نه پس ذكر كړه.حالانكه صوم فرض دې.اوقيام رمضان سنت دې.دصوم فرضت ددې خبرې متقاضي دې.چه وړاندې ئې د دې ترجمه راوړې وې.او ورسته ئې د قيام رمضان ترجمه منعقد كړې وې.

ددې سوال جواب مونږ وړاندې د باب «الجهاد من الإيمان» په شروع كښې ذكركړې دې.خودلته لږ په تفصيل سره ذكركولې شي.

① د دې يوجواب دا دې.چه قيام رمضان فعلي عبادت دې.اوصوم رمضان تركي عبادت دې اود ترك نمبر د فعل نه پس وى.نوځكه ئې اول فعلي عبادت ذكركړلو.اوبيا ئې تركي عبادت ذكركړو.(۲)

② دويم جواب دا دې.چه قيام رمضان په شپه كښې وى.او صوم رمضان په ورځ كښې وى. اول قيام كيږي.اوبيا صوم،ګورئ نه چه كله د رمضان مياشت اوليدې شي.نواول تراويح كولې شي ځكه چه اول شپه وى.نوځكه ددې عبادت ادا كولې شي.اوبيا روژه نيولې شي ځكه چه د شپې نه پس د رمضان اولنې تاريخ وى.اودهغې عبادت ادا كولې شي. نو څونكه د زمانې په لحاظ سره قيام رمضان په صوم رمضان باندې مقدم دې.نوځكه منصف رحمه الله په ذكركښې هم مقدم كړلو.(۳)

③ دريم جوا دا دې.چه قيام رمضان سنت دې.اوصوم رمضان فرض دې.اوپه فرائضوكښې

---

(۱) قد سبق تخريج هذا الحديث تحت باب قيام ليلة القدر من الإيمان ) فارجع إليه إن شئت)_
(۲) فتح الباري(۱\۹۲)_
(۳) المصدر السابق)_

عام طور داخليدل په سنتو سره كيږى لكه چه قيام رمضان په منزله د سنت قبليه دى ځكه مصنف رحمه الله دا وړاندې ذكركړلو (١)

④ څلورم جواب دا دې چه قيام رمضان د روژې تمهيد دې ځكه چه د روژې بوه حصه تراويح دى اويه دې كښې تهجد، ذكر، نوافل دعا وغيره هم داخل دى بنكاره خبره ده چه كله څوك قيام كوى نود پيشمنې وخت به راځى نويه دې طريقه به دا قيام د روژې تمهيد شى اوتمهيد وړاندې وى ځكه امام بخارى رحمه الله قيام رمضان وړاندې او صوم رمضان روسته ذكركړه (٢) والله أعلم

[٣٨] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ قَالَ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَامَ رَمَضَانَ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ [١٩١٠، ١٨٠٢]

## رجال الحديث

ابن سلام: دوى محمدبن سلام بيكندى رحمه الله دى ددوى حالات وړاندې دكتاب الايمان كښې د «باب قول النبى ﷺ أنا أعلمكم بالله وأن المعرفة فعل القلب» لاندې تيرشوى دى.

محمدبن فضيل: دوى ابوعبدالرحمن محمدبن فضيل بن غزوان بن جريرضبى كوفى دې دوى دمغيره بن مقسم ضبى، مختاربن فلفل، بيان بن بشر احمسى رحمهم الله اوددوى نه علاوه د نورو حضراتونه احاديث اوريدلى دى.

اودوى نه چه چا روايت كړې دې په هغوى كښې امام سفيان ثورى رحمه الله هم دې چه د دوى نه لوئې دې د ده نه علاوه امام احمد، امام اسحاق بن راهويه اوعمروبن على الفلاس رحمهم الله غوندې حضرات دى. (٣)

امام نسائى رحمه الله فرمائى: «ليس به بأس» (٤)

امام ابوزرعه رحمه الله فرمائى: «صدوق من أهل العلم» (٥)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى «شيخ» (٦)

---

(١) امدادالبارى (٥٩٥\٤)_

(٢) المصدرالسابق)_

(٣) تهذيب الكمال (٢٩٣\٢٦، ٢٩٦) وخلاصة الخزرجى (٣٥٦) وعمدة القارى (٢٣٤\١)_

(٤) تهذيب الكمال (٢٩٧\٢٦) وخلاصة الخزرجى (٣٥٦)_

(٥) تهذيب الكمال (٢٩٧\٢٦)_

(٦) المصدرالسابق)_

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائى ((ثقة))[1]

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى ((وكان من علماء هذا الشأن))[2]

امام احمد رحمه الله فرمائى ((كان يتشيع وكان حسن الحديث))[3]

امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائى ((وكان ثقة كثير الحديث متشيعاً وبعضهم لايحتج به))[4]

امام ابوداود فرمائى ((كان شيعياً محترقاً))[5]

حافظ صفى الدين خزرجى رحمه الله فرمائى. ((شيعى غال باطنه لايسب))[6]

علامه سمعانى رحمه الله فرمائى ((وكان يغلوفى التشيع))[7]

د محمدبن فضيل رحمه الله په باره كښې چه كوم اقوال ذكرشول. ددې خلاصه دا ده. چه دوى په حديثو كښې امام اوحافظ وو. د دوى په احاديثوباندې لويو لويو عالمانو رحمهم الله اعتماد كړى دې. البته ددوى په باره كښې چه كومه جرح ده. هغه دا ده. چه دوى شيعه وو. اوبيا بعضې حضراتو دوى لره كټرشيعه ګرځولې دې.

خوحقيقت دا دې. چه دوى غالى شيعه نه وو. بلكه صرف حضرت على رضي الله عنه به ئې غوره ګڼرلو اوحضراتو شيخينو رضي الله عنهما به ئې تعظيم كولو. اوحضرت عثمان رضي الله عنه به ئې په ترحم سره ذكركولو.

هم دا وجه ده. چه د حضرت امام احمد رحمه الله په قول ((وكان يتشيع)) باندې چه امام ذهبى رحمه الله تبصره كوى. نو فرمائى. ((قلت كان متوالياً فقط))[8]

دغه شان دامام ابوداود رحمه الله په قول ((كان شيعياً محترقاً)) باندې حافظ ذهبى رحمه الله تبصره كوى. اوفرمائى ((قلت تحرقه على من حارب أوناز ع الأمر علياً رضي الله عنه وهومعظم للشيخين رضي الله عنهما))[9]

دامام محمد بن سعد رحمه الله په قول ((وبعضهم لايحتج به)) باندې تبصره كوى. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى ((انما توقف فيه من توقف لتشيعه))[10] يعنى په دوى باندې چه چا د عدم اعتماد اظهار

---

[1]) المصدرالسابق)_
[2]) تذكرة الحفاظ (۱\۳۱۵)-
[3]) تهذيب الكمال(۲۶\۲۹۷) وتذكرة الحفاظ (۱\۳۱۵) وسيرأعلام النبلاء (۹\۱۷٤)_
[4]) طبقات ابن سعد(۶\۳۸۹)_
[5]) تهذيب الكمال(۲۶\۲۹۷) وتذكرة الحفاظ (۱\۳۱۵) وسيرأعلام النبلاء (۹\۱۷٤)_
[6]) خلاصة الخزرجى(۳۵۶)_
[7]) الأنساب للسمعانى (٤\۱۱)_
[8])تذكرة الحفاظ(۱\۳۱۵)_
[9])سيرأعلام النبلاء(۹\۱۷٤)_
[10]) هدى السارى(٤٤۱)_

کړې دي.نو هغه ددوی د تشيع د وجې دي.خوددوی تشيع د غلو حد ته نه وو رسيدلې.اونه دوی د تشيع داعی وو.نوځکه دا طعن نشی قبلولې
دا خبره دې ياده وی.چه بعضې حضراتو د يحيی حمانی نه نقل کړې ده.چه محمدبن منکدر پلار وانی.ما خپل خونې محمدبن فضيل رحمه الله ته دشپې نه واخله تر صبا پورې په دې خبره باندې زورنه ورکړه.چه ته په حضرت عثمان رضی الله عنه باندې ترحم اوکړه.خو ده انکار کولو.(١)
خودا واقعه صحيح نه معلوميږی.ځکه چه امام يحيی بن معين رحمه الله نقل کوی.چه زه د محمد بن فضيل رحمه الله سره ناست ووم.چه يوکس راغلو اواوونيل چه مروان فزاری دا وانی چه ستاسو پلار توله شپه دا کوشش اوکړلو.چه تاسو د حضرت عثمان رضی الله عنه په حق کښې د استغفار کلمات اووائې.خوتاسو برابر انکار کولو.په دې باندې حضرت محمد بن فضيل رحمه الله اوفرمائيل.((لا والله ماعلم الله هذا منى قط،وماذكرت عثمان رضی الله عنه قط إلا بخير))(٢)

دغه شان ابوهاشم د محمد بن فضيل رحمه الله نه نقل کوی.چه دوی فرمائيلی دی ((رحم الله عثمان رضی الله عنه ولا رحم الله من لايترحم عليه))(٣)

دغه شان فرمائی.((ورأيت عليه آثار أهل السنة والجماعة رحمه الله تعالى))(٤)

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی((وقد احتج به أرباب الصحاح))(٥)
حافظ ذهبی رحمه الله ددوی د شاګردانو يو فهرس ذکرکړې دې.اوددې نه پس ئې په دوی باندې يوه جامع تبصره کړې ده.فرمائی.((حدث عنه أحمد وأبوعبيد، وعدد كثير وهم عفون على تشيع كان فيه،إلا أنه كان من علماء الحديث والكمال عن))(٦)
خلاصه دا شوه.چه محمدبن فضيل ثقه راوی دې.ددوی د رواياتوپه قبلولو کښې توقف نه دې پکار،اوترڅو پورې چه د دوی د تشيع خبره ده.نو اول خودا چه دوی داعی نه وو.اوبيا شيعيت هم ددوی معمولی وو.په دوی کښې غلو نه وه.بلکه د ابوهاشم د قول مطابق په دوی باندې د اهل سنت والجماعت آثار ښکاره وو.والله أعلم
امام بخاری رحمه الله فرمائی.چه د دوی وفات په کال ۱۹۵ھ کښې شوې وو.(٧)

---

(١) سير أعلام النبلاء (٩\١٧٤)_
(٢) حاشية تهذيب الكمال(٢٦\٢٩٧)_
(٣) هدى السارى(٤٤١)_
(٤) المصدرالسابق)_
(٥) سير أعلام النبلاء(٩\١٧٥)_
(٦) سير أعلاء النبلاء (٩\١٧٣)_
(٧) التاريخ الكبير للبخارى(١\٢٠٨) رقم الترجمة (٦٥٢)_

③ **يحيى بن سعيد:** دوى مشهور تابعى محدث يحيى بن سعيد بن قيس بن عمرو الانصارى المدنى دى. ددوى تذكره اگرچه د وړاندينى حديث په ضمن كښې راغلې ده خو هلته چونكه ډير اختصار وو. نوخكه دلته لږ غونډې په تفصيل سره ددوى بيان كوو يحيى بن سعيدانصارى رحمه الله په خپله زمانه كښې عالم او قاضى او دفقهاء سبعه خاص شاگرد وو. ددوى ولادت د حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه په زمانه كښې شوې وو.()

دوى دحضرت انس بن مالك، سائب يزيد، او ابوامامه بن سهل رضي الله عنهم نه علاوه حضرت سعيد بن المسيب، قاسم بن محمد، عراك بن مالك رحمهم الله نور ډيرو حضراتو نه احاديث اوريدلى دى.()

ددوى نه چه كومو حضراتو احاديث اوريدلى دى. دهغوى فهرس هم ډير اوږد دې. د دوى خپل شيخ حضرت امام زهرى رحمه الله نه علاوه د هشام بن عروه، حميد الطويل، ايوب سختيانى، عبيدالله بن عمر، امام شعبه، امام مالك، امام سفيان ثورى، سفيان بن عيينه، حمادبن زيد، حمادبن سلمه، جريربن حازم، جريربن عبد الحميد، عبدالله بن المبارك او يحيى القطان رحمهم الله دى.()

محمد بن سعد رحمه الله فرمائى. «وكان ثقة كثير الحديث حجة ثبتاً»()

امام احمد رحمه الله فرمائى. «يحيى بن سعيد الانصارى أثبت الناس»()

سعيدبن عبدالرحمن جمحى رحمه الله فرمائى «ما رأيت أحداً أقرب شبها بابن شهاب من يحيى بن سعيد الأنصارى ولولاهما لذهب كثير من السنن»()

على بن مدينى رحمه الله فرمائى «لم يكن بالمدينة بعد كبار التابعين أعلم من ابن شهاب ويحيى بن سعيد الأنصارى وأبي الزناد وبكير بن عبدالله بن الأشج»()

دغه شان دوى فرمائى. «أصحاب صحة الحديث وثقاته ومن ليس فى النفس من حديثهم شئ أيوب بالبصرة ومنصور بالكوفة ويحيى بن سعيد بالمدينة وعمرو بن دينار بمكة»()

---

) سيرأعلام النبلاء(٥\٤٦٨)_
) تهذيب الكمال(٣١\٣٤٧، ٣٤٩) وخلاصة الخزرجى(٤٢٤)_
) تهذيب الكمال (٣١\٣٤٩-٣٥١) وسيرأعلام النبلاء (٥\٤٧٠) وتذكرة الحفاظ (١\١٣٧) وخلاصة الخزرجى(٤٢٤)_
) تهذيب الكمال(٣١\٣٥١)_
) تذكرة الحفاظ (١\١٣٨) وسيرأعلام النبلاء (٥\٤٧١) وتهذيب الكمال (٣١\٣٥٦)_
) تهذيب الكمال(٣١\٣٥٢)_
) تهذيب الكمال(٣١\٣٥٣)_
) تهذيب الكمال(٣١\٣٥٥)

محمدبن عبدالله عمار موصلى رحمه الله فرمائى «موازين أصحاب الحديث من الكوفيين والمدنيين عبدالملك بن أبي سليمان، وعاصم الأحول وعبيدالله بن عمر، ويحيى بن سعيد الأنصارى» [۱]

امام يحيى القطان رحمه الله په اهل حجازكښې يحيى بن سعيدانصارى رحمه الله باندې چاته هم فوقيت نه وركوى كله چه د هغوى نه تپوس اوشو چه امام زهرى رحمه الله ته هم فوقيت نه دې حاصل؟ نو هغوى اوفرمائيل «الزهرى يختلف عنه ويحيى بن سعيد لم يختلف عنه» [۲]

امام احمدابوخيثمه، يحيى بن معين، ابوزرعه، اوابوحاتم رازى رحمهم الله فرمائى «ثقة» [۳]

امام عجلى رحمه الله فرمائى «مدنى تابعى ثقة، وكان له فقه وكان رجلاً صالحاً» [۴]

امام نسائى فرمائى «ثقة ثبت» [۵]

دغه شان فرمائى «ثقة مأمون» [۶]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى «يحيى يوازى الزهرى» [۷]

سفيان ثورى رحمه الله فرمائى «كان يحيى بن سعيد الأنصارى، أجل عند أهل المدينة من الزهرى» [۸]

جرير بن عبدالحميد رحمه الله فرمائى «لم أر من المحدثين إنساناً كان أنبل عندى من يحيى بن سعيد الأنصارى» [۹]

د دوى ژوند په اول كښې ډير په سختئ كښې تيريدو. خو خليفه ابوجعفر منصور دوى عراق ته راوغوښتلو. اوهلته ئې قاضى مقرر كړلو. ددې نه پس سختى ختمه شوه. خو ددوى په حالاتو كښې څه تبديلى رانغله. هم دا وجه ده. چه محمد بن القاسم هاشمى رحمه الله فرمائى «كان يحيى بن سعيد خفيف الحال، فاستقضاه ابوجعفر وارتفع شأنه فلم يتغير حاله فقيل له فى ذلك فقال من كانت نفسه واحدة لم يغيره المال» [۱۰]

---

[۱] المصدر السابق)_
[۲] المصدر السابق)_
[۳] تهذيب الكمال (۳۱\۳۵۶)_
[۴] المصدر السابق)_
[۵] المصدر السابق)_
[۶] المصدر السابق)_
[۷] تهذيب الكمال (۳۱\۳۵۳)_
[۸] المصدر السابق)_
[۹] تهذيب الكمال (۳۱\۳۵۲)_
[۱۰] تهذيب الكمال(۳۱\۳۵۷)_

دغه شان امام مالک رحمه الله فرمائی ((ماخرج منا أحد إلی العراق إلا تغیر غیر یحیی بن سعید، ولم یرجع عن ماکان علیه إلا یحیی بن سعید))(۱)

تولو اصحاب سته ددوی احادیث نقل کړی دی.(۲)

په کال ۱۴۳ھ یا ۱۴۴ھ یا ددې نه پس وفات شوې دې.(۳) رحمه الله تعالی.

ابوسلمه: دوی دحضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه خوئې دې. اود مدینې منورې په اووه فقهاو کښې یو دې. اومشهورتابعی محدث دې.(۴)

امام مالک رحمه الله فرمائی. ددوی دا کنیت هم ددوی نوم دې.(۵) حالانکه بعضې نورو فقهاؤ ددوی نوم عبدالله خودلې دې. اوبعضې نورو حضراتو ددوی نوم اسماعیل بیان کړې دې.(۶)

په ۲۰ھ نه روستو پیدا شوی وو.(۷)

دخپل پلار حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه نه ئې روایت کړې دې. خو کم دی. ځکه چه دوی واړه وو. چه پلار ئې وفات شوې وو.(۸)

---

(۱) المصدر السابق)_

(۲) تهذیب الکمال(۳۱\۵۳۹)_

(۳) تهذیب الکمال(۳۱\۳۵۸) وخلاصة الخزرجی (۴۲۴) وتقریب (۵۹۱) رقم ۷۵۵۹)_

(۴) تهذیب الأسماء واللغات (۲\۲۴۰)_

(۵) تذکرة الحفاظ (۱\۶۳) وتهذیب الکمال(۳۳\۳۷۵)_

(۶) تهذیب الکمال (۳۳\۳۷۱) وسیرأعلام النبلاء (۴\۲۸۷) قال النووی والصحیح المشهور هو الأول انظر تهذیب الأسماء واللغات (۲\۲۴۰)_

(۷) ولد سنة بضع وعشرین قاله الذهبی فی السیر(۴\۲۸۷) وانظر التقریب (۶۴۵) رقم الترجمة (۸۱۴۲)_

(۸) سیرأعلام النبلاء (۴\۲۸۷) وقال سبط ابن العجمی الحلبی ((قال ابن معین والبخاری لم یسمع من أبیه شیأ انظر حاشیته علی الکاشف للذهبی (۲\۴۳۱)..

دغه شان امام علی بن المدینی. امام احمد. یحیی بن معین. ابوحاتم. یعقوب بن شیبه. اوابوداود رحمهم الله فرمائی. چه دوی د خپل پلار نه کوم روایت کوی. نوهغه مرسل وی. ځکه چه دوی دخپل پلار نه سماع نه ده کړې. (تهذیب التهذیب (۱۲\۱۱۷))..

خوپه دې باندې اشکال کیږی. چه امام نسائی د نضربن شیبان په سند سره ددوی نه نقل کړی دی. په کوم کښې چه دوی د خپل پلار نه روایت کوی. اوپه هغې کښې صیغه د تحدیث ده. ((سنن نسائی. (۱\۳۰۸) کتاب الصیام باب ثواب من قام رمضان وصامه إیماناً وإحتساباً ذکر إختلاف یحیی بن ابی کثیر والنضربن شیبان فیه)) د دې نه معلومیږی چه ددوی دخپل پلار نه سماع ثابته ده)..

ددې جواب دا دې. چه دې حدیث ته امام نسائی خطا وئیلې ده. فرمائی. ((قال ابوعبدالرحمن هذا خطأ والصواب أبوسلمة عن أبی هریرة رضی الله عنه .)) هم دا وجه ده. چه حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی ((لم یسمع من أبیه وحدیث النضربن شیبان فی سماع أبی سلمة عن أبیه لایصححونه )) تهذیب التهذیب (۱۲\۱۱۷)_

د دوی نه علاوه د حضرت عبدالله بن سلام، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت عبدالله بن عباس، حضرت عبدالله بن عمروبن العاص، حضرت جابر، حضرت ابوسعید خدری، حضرت ابواسید، حضرت معاویه بن الحکم حضرت ربیعه بن کعب حضرت عائشې اوحضرت ام سلمې رضي الله عنهم نه علاوه نورو صحابو رضي الله عنهم نه ئې سماع کړې دے.(۱)

په تابعینو رحمهم الله کښې حضرت عطاء بن ابی رباح، عروه بن زبیر، بشیربن سعید، اوحضرت عمربن عبدالعزیز رحمهم الله نه روایت کوی.(۲)

د دوی نه چه چا روایت کړې دې په هغوی کښې امام شعبی، عبدالرحمن الاعرج، عراك بن مالك، عمروبن دینار، ابوحازم، زهری، یحی الانصاری اویحیی بن ابی کثیر رحمهم الله نه علاوه نورو ډیرو حضراتو احادیث روایت کړې دی.(۳)

ابن سعد رحمه الله فرمائی: «كان ثقة فقيهاً كثير الحديث».(۴)

ابواسحاق رحمه الله فرمائی: «أبوسلمة في زمانه خير من ابن عمر في زمانه».(۵)

ابوزرعه رحمه الله فرمائی: «ثقة إمام».(۶)

ابراهیم بن عبدالله بن قارظ رحمه الله د امام زهری رحمه الله نه نقل کوی: «لقد تركت رجلين من قومك لا أعلم أكثر حديثاً منهما عروة بن الزبير وأبوسلمة بن عبد الرحمن».(۷)

امام زهری رحمه الله فرمائی: «أربعة من قريش وجدتهم بحوراً: عروة بن الزبير، وابن المسيب، وابوسلمة وعبيدالله بن عبدالله».(۸) حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی: «وكان من كبار أئمة التابعين غزير العلم ثقة عالماً».(۹)

دغه شان دوی فرمائی: «كان طلابة للعلم فقيهاً مجتهداً كبير القدر رحمة».(۱۰)

هیثم بن عدی رحمه الله فرمائی: چه دوی په کال ۹۴ هـ کښې وفات شوی وو.(۱۱)

---

۱) تهذیب الأسماء واللغات (۲۴۱/۲) وتهذیب الکمال (۳۷۱/۳۳، ۳۷۲) وسیر أعلام النبلاء (۲۸۷/۴)_
۲) المصدر السابق)_
۳) المصدر السابق)_
۴) تهذیب الأسماء (۲۴۱/۲) وتهذیب الکمال (۳۷۴/۳۳) وسیر أعلام النبلاء (۲۸۷/۴)_
۵) سیر أعلام النبلاء (ق/ص ۸۸)-
۶) تهذیب الکمال (۳۷۵/۳۳) وسیر أعلام النبلاء (۲۸۹/۴)_
۷) تهذیب الکمال (۳۷۵/۳۳) وسیر أعلام النبلاء (۲۸۹/۴)_
۸) تهذیب الکمال (۳۷۵/۳۳) وسیر أعلام النبلاء (۲۸۹/۴) وتذکرة الحفاظ (۶۳/۱)_
۹) تذکرة الحفاظ (۶۳/۱)_
۱۰) سیر أعلام النبلاء (۲۸۷/۴)_
۱۱) تهذیب الکمال (۳۷۶/۳۳) وسیر أعلام النبلاء (۲۹۰/۴)_

ابن سعد رحمه الله فرمائي چه ددوی وفات د دوه اویا کالو په عمرکښې په مدینه منوره کښې په کال ۹۴ هـ کښې شوې وو.[1]

اوامام واقدی رحمه الله فرمائیلی دی «مات سنة أربع ومائة وهو ابن اثنتين وسبعين سنة»[2]

حافظ ذهبی رحمه الله د واقدی قول ضعیف کړې دې.[3] رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

دحضرت ابوهریره رضي الله عنه تفصیلي حالات د «باب أمور الإيمان» په ضمن کښې تیر شوی دی.

**قوله قال رسول الله ﷺ من صام رمضان إيمانا واحتسابا غفر له ما تقدم من ذنبه:**[4] رسول الله ﷺ فرمائیلی دی. کوم کس چه په رمضان کښې په ایمان او احتساب سره روژه اونیسی. نودده مخکښې ټول ګناهونه به معاف شی.

دلته تاسو د حدیث په الفاظو کښې ګورئ چه د «من صام رمضان» سره «إيمانا واحتسابا» قید لګولې شوې دې. دغه شان د تیرشوی باب په حدیث کښې هم «من قام رمضان..» سره «إيمانا واحتسابا» قید موجود دې. حالانکه په ترجمه کښې امام بخاری رحمه الله صرف د «من صام رمضان» حدیث سره د «احتسابا» قید لګولې دې. اود «من قام رمضان ..» په حدیث کښې دا قید نشته. ددې تفریق څه وجه ده؟

ددې جواب دا دې چه خود د قیام رمضان هغیت مذکردې. کوم چه طلب اواحتساب یادوی. اوپه روژه کښې چونکه پریخودل وی. د خوراك څکاك او جماع، نوځکه دا په هئیت مذکره باندې نه دې. نوچه په کوم ځائې کښې ئې د تراویح او قیام رمضان ذکرکړې وی. نوهلته ئې د احتسابا قید ئې په ترجمه کښې نه دې لګولې. ځکه چه دغه عمل په خپله د احتساب دپاره مذکر دې. او کوم ځائې کښې چه ئې د صوم رمضان ترجمه قائمه کړې ده. نو د احتسابا قید ئې په ترجمه کښې ذکرکړې دې.[5]

....

[1] تهذيب الأسماء (٢٤١\٢) وتهذيب الكمال (٣٧٦\٣٣)_
[2] تهذيب الكمال (٣٧٦\٣٣) وسير أعلام النبلاء (٢٩٠\١٤)_
[3] سير أعلام النبلاء (٢٩٠\١٤)_
[4] قد سبق تخريج هذا الحديث تحت باب قيام ليلة القدر من الإيمان)_
[5] إمداد الباري (٥٩٥\٤)_

# ۲۸ = بَابُ الدِّينُ يُسْرٌ وَقَوْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَبُّ الدِّينِ إِلَى اللَّهِ الْحَنِيفِيَّةُ السَّمْحَةُ

**ما قبل سره ربط** امام بخاری رحمه الله په ((تطوع قيام رمضان من الإيمان)) او ((صوم رمضان إحتساباً من الإيمان)) نه پس د ((الدين يسر)) ترجمه قائمه کړه.په دې کښې ني د قرآن مجيد د اسلوب اتباع کړې ده.دالله تعالى ارشاد دې. ﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيٓ أُنْزِلَ فِيهِ الْقُرْاٰنُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَبَيِّنٰتٍ مِّنَ الْهُدٰى وَالْفُرْقَانِ ۚ فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ ۖ وَمَنْ كَانَ مَرِيضًا أَوْ عَلٰى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ ۗ يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ﴾ (۱) چونکه د رمضان د روزو د ذکر نه پس وړاندې ني ﴿يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ﴾ فرمائيلی دی.ددې وجې امام بخاری رحمه الله ددې خيال ساتلې دې.او دا ترجمه ني د ((صوم رمضان إحتساباً من الإيمان)) نه پس دلته قائمه کړې ده.(۲)

علامه عينی رحمه الله فرمائی چه په ماقبل او دې باب کښې مناسبت په دې طريقه دې چه په صوم رمضان کښې د ((يسر)) معنی موجود ده.ځکه چه مسافر اومريض ته د رمضان روژې روستو کولو اجازت شته.په خلاف د مونځ ،دغه شان د شيخ فانی په حق کښې خو صوم بيخی ساقط شوې ده.اوددې په ځائې په ده باندې فديه لازميږی.په خلاف د مانځه ځکه چه دا نه معاف کيږی. ښکاره ده.چه دا ((يسر)) دې.بيا صوم په دوولسو مياشتو کښې صرف يوه مياشت وی.او مونځونه په شپه او ورځ کښې پنځه وخته کولې شی.دا هم ((يسر)) دې.د صوم دې يسر طرف ته متوجه کولو دپاره امام بخاری رحمه الله دلته د ((الدين يسر)) باب قائم کړو.(۳)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه ماقبل کښې امام بخاری رحمه الله کوم احاديث ذکرکړل.په هغې کښې د ،،قيام،، صيام، او ،،جهاد،، ذکر وو.دا ټول دمشقت کارونه دی.او ښکاره ده چه د مشقت کار کول او دهغې پابندی کول عام طور ګران وی.داسې اعمال پابندئ سره کولونه طبيعت کښې سستی او فتور پيدا کيږی.او سړې عمل پريږدی.بيا نتيجه دا راويستې شی.چه داسې مشکل او ګران اعمال کول خو ډير ګران دی.چونکه دا د دين اعمال دی.ددې وجې وئيلی شی.چه دين ګران دې.نو امام بخاری رحمه الله د ((الدين يسر)) باب قائم کړو.اوددې لاندې ني د حضرت ابوهريره رضی الله عنه حديث چه ((الدين يسر)) دې ذکر کړو.اوددې غلط فهمئ ازاله ني اوکړه.اودا ني اوفرمائيل.چه شريعت ددې اعمالو ترغيب خو ورکړې دې. او ددې

---

(۱) سورة البقرة:۱۸۵)_

(۲) درس بخاری از شبير احمد عثمانی رحمه الله (۲۴۲ وفضل البارى (۱\۴۵۶، ۴۵۹) والأبواب والتراجم از علامه محمد ادريس کاندهلوی رحمه الله (۱۰۷)_

(۳) عمدة القاری(۱\۲۳۴، ۲۳۵)_

حكم خو نې ورکړې دې.خوپه دې باندې په اعتدال او میانه روئ سره عمل کول مقصود دې.مشکل اوګرانوالې په هغه وخت کښې وی.چه کله سړې میانه روی او اعتدال پرېږدی.شریعت خو د اعتدال او میانه روئ اختیارولو حکم ورکړې دې.نو سړی لره د خپل قوت مناسب کوشش کول پکار دی.دومره زیاته مجاهده دې نه کوی.چه کوم لړاو مختصرعمل نې کولو.دهغې نه هم پاتې شی.په دین کښې یسر دې عسر نه دې.([1])

حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائی چه په دې باب کښې د معتزلو او خوارجو تشدداتو طرف ته تعریض دې.ځکه چه دوی دین دومره سخت کړې وو.تردې که د یو وخت مونځ نې پرېخود.نو د ایمان نه خارج شو .یا کافر شو.نو امام بخاری رحمه الله فرمائی چه دین دومره سخت نه دې.لکه څومره چه دوی سخت کړې دې.بلکه دین آسمان دې.([2])

**کتاب الایمان سره ددې باب مناسبت:** امام بخاری رحمه الله ددې نه وړاندې شعب ایمانیه بیان کړې.او اوس دلته فرمائی.چه دین آسان دې.په ظاهره دا د ایمان شعبه نه ده.نو بیا د کتاب الایمان سره ددې څه مناسبت دې؟

ددې جواب دا دې.چه «الدین یسر» اګرچه شعب ایمانیه څنې نه ده.خو ددې د کتاب الایمان سره تعلق خامخا شته.ځکه چه په «الدین» کښې الف لام د **عهد** دپاره دی.اوددې نه مراد دین اسلام دې.لکه چه دلته د دین اسلام نه په یسر سره تعبیر شوې دې.اود دین اسلام یسر یقیناً د اعمالو په یسر باندې مبنی دې.ځکه چه اعمال سهل او آسان دی.ځکه به دین اسلام هم آسان وی.او دا ثابته شوې ده.چه د اعمالو د ایمان سره ژور تعلق دې.ددې په عسر سره په دین کښې عسر راځی.او ددې په یسر سره په دین کښې یسر راځی.

د امام بخاری رحمه الله د نقطه نظر نه دا معلومیږی.چه دا اعمال د دین جزء دې. اوهر کله چه اعمال د دین جزء دې.اوپه اعمالوکښې یسر دې.نو په دین کښې به هم یسر وی.

**قوله:** وَقَوْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَبُّ الدِّينِ إِلَى اللَّهِ الْحَنِيفِيَّةُ: یعنی د نبی کریم ﷺ فرمان دې.چه د الله تعالی په نیز د ټولو نه غوره دین هغه دې.کوم چه نیغ او آسان وی.مطلب دا دې.چه د الله تعالی په نیز د دین ټول اعمال اواحکام خو محبوب دی.البته چه په دې کښې کوم آسان وی.هغه ورته زیات خوښ دې.یا دا مطلب دې.چه الله تعالی ته ټول دینونه محبوب دی.خوپه دې کښې هغه دین زیات خوښ دې.کوم چه د حنیفیت او آسانتیا په صفتونو موصوف وی.([3])

---

[1]) فتح البارى (۹۵\۱)_

[2]) الأبواب والتراجم لصحيح البخارى (۳۶ وإمداد البارى (۵۹۸\٤) وتقرير بخارى شريف (۱٤۱\۱، ۱٤۲)_

[3]) فتح البارى(۹۳\۱، ۹٤)_

**قوله حنيفية:** دا د «حنيف» طرف ته منسوب دې.اوحنيف هغې ته وائي چه د ټولو نه ختم شي.الله تعالى طرف ته متوجه شي.اوصرف الله تعالى طرف ته مائله شي.(۱)

د حنيف لفظ په قرآن پاك كښې د حضرت ابراهيم عليه السلام دپاره استعمال شوې دې.(۲)

حضرت ابراهيم عليه السلام ته د حنيف وئيلو وجه هم دا ده.چه دوى په خپله زمانه كښې د ټولونه اولنې توحيد پرست وو.كورئې پريخودې وو.پلار ئې پريخودې وو. وطن او قوم ئې پريخودې وو.صرف حضرت لوط عليه السلام ئې خان سره كړې وو. اوهجرت ئې كړې وو ددې نه پس ورته د حضرت هاجره بى بى دخپل خوى سره په يوه دشت بيابان ميدان كښې د پريخودو حكم شوې وو.نو سمدستى ئې حكم اومنل.په حديث كښې دى.چه حضرت ابراهيم عليه السلام كله بى بى هاجره پريخوده.نو هغې ورته اووئيل.دا تاسو چه مونږ دلته خانله پريږدئ.نو دا دالله تعالى په حكم سره دى.اوكه په خپلې رائې سره؟ نو ابراهيم عليه السلام ورته اوفرمائيل.د الله تعالى په حكم سره،نو هغې ورته اووئيل.څه اوس تاسو تلې شئ.څه پرواه نشته.(۳)

بيا د ذبحې معامله راپيښه شوه.نوڅنګه ثابت قدم په كښې اوختلو.په څومره سوالونو باندې ئې حضرت اسماعيل عليه السلام غوستې وو.خوچه كله دالله تعالى حكم راغلو.نوبغيرد څه سوچ نه ئې هغه پوره كړو.(۴)

كله چه نمرود په اور كښې واچولو،نوجبرئيل عليه السلام ورته اووئيل. مونږ درسره مدد اوكړو دوى ورته جواب وركړو.«أما إليك فلا وأما إلى الله فبلى»(۵) دغه شان په بخارى كښې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دى. «كان آخر قول إبراهيم عليه السلام حين ألقي في النار حسبي الله ونعم الوكيل»(۶)

---

(۱) الحنيف :هو المائل إلى الإسلام الثابت عليه والحنيف عند العرب من كان على دين إبراهيم عليه السلام وأصل الحنف الميل كذا فى النهاية(۱\۴۵۱)_

(۲) قال الله تعالى:(ما كان إبراهيم يهودياً ولا نصرانياً ولكن كان حنيفاً مسلماً (آل عمران:۶۷) وقال الله تعالى:( إن إبراهيم كان أمة قانتاً لله حنيفاً ولم يكن من المشركين )(النحل\۱۲۰)_

(۳) صحيح بخارى شريف (۱\۴۷۴) كتاب الأنبياء باب بلا ترجمة بعد باب قول الله عزو جل ( واتخذالله إبراهيم خليلاً ) كښې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه يو اوږد حديث كښې دى.((ثم جاء بها إبراهيم وبإبنها إسماعيل وهى ترضعه حتى وضعها عندالبيت عند دوحة فوق زمزم فى أعلى المسجد وليس بمكة يومئذ أحد وليس بها ماء فوضعهما هنالک ووضع عندهما جراباً فيه تمر وسقاء فيه ماء ثم قفى إبراهيم عليه السلام منطلقاً فتبعته أم إسماعيل عليه السلام فقالت يا إبراهيم أين تذهب وتتركنا فى هذا الوادى الذى ليس فيه أنيس ولا شئ؟ فقالت له ذلک مراراً وجعل لا يلتفت إليها فقالت له آلله أمر ک بهذا ؟ قال نعم قالت إذن لا يضيعنا..))_

(۴) د واقعه د تفصيل دپاره اوګورئ قصص القرآن (۱\۲۳۵، ۲۴۰) حضرت اسماعيل عليه السلام )_

(۵) ذكره بعض السلف كما حكاه الحافظ ابن كثير رحمه الله فى تفسيره (۳\۱۸۴)_

(۶) صحيح البخارى (۲\۶۵۵) كتاب التفسير سورة آل عمران باب إن الناس قد جمعوا لكم ..الآية )_

دحضرت ابراهيم عليه السلام هرقسمه امتحان اوشو او دوی په هر امتحان كښې كامياب شو دې ته ئې فرمائيلى دى. ﴿وَإِذِ ابْتَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ بِكَلِمَاتٍ فَأَتَمَّهُنَّ﴾ (١) اوفرمائيلى ئې دى ﴿إِذْ قَالَ لَهُ رَبُّهُ أَسْلِمْ قَالَ أَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ (٢)

شيخ فريدالدين عطار رحمه الله دا واقعه څومره په ښه انداز كښې بيان كړې ده

از يكے و وز همه يكسوئے باش ... يک دل ويک قبله ويک روئے باش (٣)

هم د يو ذات نه سوال كوه. اودباقي ټولونه ډډه اوكړه. صرف يو ذات طرف ته متوجه شه. د توجه قبله هم هغه دې چه زړه دې چرته خطا نشى.

بهرحال حضرت ابراهيم عليه السلام ټولې دنيا ته لته وركړه. او الله تعالى طرف ته متوجه شو ځكه ورته حنيف وئيلې شى. د هغوى د اتباع نبى ﷺ ته حكم شوې دې ﴿ثُمَّ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ أَنِ اتَّبِعْ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا﴾ (٤) دغه شان دالله ئې فرمائيلى دى. ﴿قُلْ صَدَقَ اللَّهُ فَاتَّبِعُوا مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا﴾ (٥) تعالى ارشاد دې. ﴿وَقَالُوا كُونُوا هُودًا أَوْ نَصَارَىٰ تَهْتَدُوا قُلْ بَلْ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا﴾ (٦) دغه شان نبى ﷺ فرمائيلى دى. ((انى لم أبعث باليهودية ولا بالنصرانية ولكنى بعثت بحنفية سمحة)) (٧)

دغه شان ئې فرمائيلى دى. ((انى أرسلت بحنيفة السمحة)) (٨)

**قوله: السمحة:** ددې معنى ((سهلة)) ده. (٩) دې ته ((سهلة)) او ((سمحة)) ځكه وائى چه په دې كښې د بنى اسرائيلو د دين پشان تشديدات نشته. حضرات مفسرينو رحمهم الله ليكلى دى چه په بنى اسرائيلو باندې پنځوس مونځونه فرض شوى وو. په زكاة كښې دهغوى نه د څلورمې حصې مطالبه وه. كه په جامه به ئې پليتى اولګيده. هغه به ئې كټ كوله. په هيره به په دنيا كښې سزا وركولې شوه. دګناه كولو په صورت كښې به وربانديې بعضې حلال خوراكونه حراميدل. هغوى به د خنزير او شادو په شكل كښې مسخ كولى شول. (١٠)

---

(١) البقرة: ١٢٤)_
(٢) البقرة: ١٣١)_
(٣) درس بخارى از شيخ الاسلام علام شبير احمد عثمانى رحمه الله (٢٤٣)_
(٤) النحل: ١٢٣)_
(٥) آل عمران: ٩٥)_
(٦) البقرة: ١٣٥)_
(٧) مسند أحمد (٥/٢٦٦) من حديث أبى أمامة )_
(٨) مسند أحمد (٦/١١٦، ٢٣٣) من حديث عائشة # )_
(٩) فتح البارى (١/٩٤)_
(١٠) التفسير الكبير للرازى (٧/١٥٦و ١٥٧)_

او دهغوی توبه به تر هغه وخته پورې نه قبلیده ترڅوچه به ئې خپل ځان قتل کړې نه وو.(۱)
شریعت محمدیه د افراط او تفریط په مینځ مینځ کښې دې دلته نه بیخې ازادی ده او نه بیخې مواخذه. اومطالبه ده اوبه دې کښې چه کوم احکام تکلیفیه دی هغه داسې دی چه انسان په کښې آسانی برداشت کولې شی په هغه باندې بوج نه غورزیږی.

**په بخاری شریف کښې د معلقاتو نوعیت** دا حدیث د هغه احادیثوځنې دې کوم چه امام بخاری په خپل صحیح کښې تعلیقاً درج کړی دی. داسې قسم احادیث په دوه قسمه دی بعضې خو هغه احادیث دی کوم چه ئې صرف تعلیقاً راوړی دی په خپل صحیح کښې ئې چرته هم موصولاً نه دی ذکر کړی اودویم قسم هغه احادیث دی کوم چه امام بخاری په یوځائې کښې تعلیقاً ذکرکړی دی خوپه بل ځائې کښې ئې موصولاً ذکر کړی دی.
دا دویم قسم احادیث د بخاری د شرط موافق دی اوددې تعلیقاً راوړلو غرض ئې دا وی چه امام بخاری رحمه الله باربار هم په یوصورت کښې د یوحدیث د نقل کولونه احتراز کوی اوبله دا چه بعضې وخت کښې ئې اختصاراوتخفیف مقصود وی نوغواړی چه په مختصره طریقه تولې خبرې اوکړی. نوددې په ځائې چه پوره حدیث سنداًاومتناً ذکرکړی هغه مختصر ذکر کوی اوکوم احادیث چه صرف تعلیقاً ذکرکوی اود خپل کتاب په بل ځائې کښې هغه موصولاً نه ذکر کوی. نوهغه دامام بخاری رحمه الله د شرط مطابق نه وی (۲) داسې احادیث لکه څنګه چه مونږ د کشف الباری په مقدمه کښې ذکر کړی دی. ټول یوسل یوکم شپیته (۱۵۹) دی او هغه تعلیقات کوم چه په بل ځائې کښې ذکر شوی دی. د هغې شمار یوزر درې سوه یوځلویښت دی.(۳)

**دذکرشوی تعلیق تخریج** دا حدیث اګرچه امام بخاری رحمه الله په خپل صحیح کښې چرته موصولاً نه دې ذکر کړې. خوپه خپل بل کتاب «الأدب المفرد» (۴) کښې او دغه شان امام احمد رحمه الله په خپل مسند کښې هم دا حدیث د **محمد بن اسحاق عن داود بن الحصین عن عکرمة عن ابن عباس** رضی الله عنهما کښې موصولاً تخریج کړې دې. «**قیل لرسول الله ﷺ أی الأدیان أحب إلی الله ﷺ قال الحنیفیة السمحة**» (۵)

---

(۱) الدرالمنثور (۱\۳۷۷)_
(۲) هدی الساری مقدمة فتح الباری (۱۵، ۱۶) الفصل الثالث (ص۱۷) الفصل الرابع)_
(۳) فتح الباری (۱\۹٤) وتغلیق التعلیق (۲\٤۱)_
(٤) فتح الباری (۱\۸٤) وتغلیق التعلیق (۲\٤۱)_
(٥) قال الحافظ رحمه الله فی فتح الباری (۱\۹٤) (إسناده حسن)..
وقال أیضاً وهکذا رواه عبدالأعلی وعبدالرحمن بن مغراء وعلی بن مجاهد وغیرهم عن محمد بن اسحاق ولم أره من حدیثه إلا معنعناً وله شاهد من مرسل صحیح الإسناد قال ابن سعد فی الطبقات أنا عارم بن الفضل ثنا حماد بن زید .ثنا معاویة بن عیاش الجرمی .عن أبی قلابة .فذکره فی قصة.(بقیه حاشیه په راروان مخ..

[۳۹] حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ مُطَهَّرٍ قَالَ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ مَعْنِ بْنِ مُحَمَّدٍ الْغِفَارِيِّ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ (۱) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الدِّينَ يُسْرٌ وَلَنْ يُشَادَّ الدِّينَ أَحَدٌ إِلَّا غَلَبَهُ فَسَدِّدُوا وَقَارِبُوا وَأَبْشِرُوا وَاسْتَعِينُوا بِالْغَدْوَةِ وَالرَّوْحَةِ وَشَيْءٍ مِنَ الدُّلْجَةِ

يعنى نبى ﷺ فرمائيلى دى بيشكه دين آسان دې په دين کښې که څوك سخته لار پيدا کړى نو دين به هغه مغلوب کړى نو خکه د افراط او تفريط نه بغير صحيح او د اعتدال لار اختيار کړئ که په پوره افضل باندې نشئ تلې نو د هغې سره نزدې نزدې اوسئ د ثواب په اميد باندې خوشحاله اوسئ او نورو ته هم خوشخبرى اوروئ چه دالله تعالى دپاره په اخلاص سره د عمل کولو مقام ډير اوچت دې اګرچه هغه عمل لږ ولې نه وى د صبا دوخت نه اود مانښام د وخت نه او د شپې د آخرى څه حصې نه مدد واخلئ يعنى په دې وختونو: خوشحالئ کښې دالله تعالى عبادت کوى.

## رجال الحديث

① عبدالسلام بن مطهر: مطهر د تطهير نه د اسم مفعول په وزن دې (۲) دوى ابوظفر بفتح الظاء المعجمة والفاء (۳) عبدالسلام بن مطهر بن حسام بن مصك بكسر الميم وفتح الصاد المهملة وتشديد الكاف الأزدى البصرى دى. (۴)

دوى دامام شعبه، جريربن حازم، مبارك بن فضاله، موسى بن خلف العمى اوسليمان بن المغيره رحمهم الله نه دحديثو روايت کوى. (۵)

---

...د تيرمخ بقيه حاشيه) وله شاهد آخر صحيح مرسل أيضاً .. عن عمربن عبدالعزيزعن أبيه ..عن النبى ﷺ رواه أحمد فى الزهد ورواه عبدالله بن احمد فى زيادات الزهد .. و رواه البزار فى مسنده من حديث عمربن عبدالعزيز عن أبيه جده وفى إسناده عبدالعزيز بن أبان وهو متروك ولم يخرج الحديث عن كونه مرسلاً لأن مروان جد عمربن عبدالعزيز لا يصح له صبحة ولا سماع

وله شاهد آخرمرسل عند عبدالرزاق وفى الباب عن عائشة وابى بن كعب و جابر وابن عمر وأبى أمامة وأبى هريرة وأسعد بن عبدالله الخزاعى رضي الله عنهم وغيرهم انظرتغليق التعليق (۲\٤١، ٤٣)_

(۱) قوله :عن أبى هريرة رضي الله عنه الحديث أخرجه البخارى أيضا فى كتاب المرضى باب تمنى المريض الموت رقم ۵٦٧٣ وفى كتاب الرقاق باب القصد والمداومة على العمل رقم ٦٤٦٣ وأخرجه النسائى فى سننه (۲\۲۷۲) فى كتاب الإيمان وشرائعه باب الدين يسر وانظر الصحيح لمسلم (۲\۳۷٦، ۳۷۷) كتاب صفة المنافقين باب لن يدخل أحد الجنة بعمله بل برحمة الله تعالى)_

(۲) عمدة القارى (۱\۲۳٦)_

(۳) فتح البارى (۱\٩٤)_

(۴) فتح البارى (۱\٩٤) وتهذيب الكمال (۱۸\۹۱) والكاشف (۱\٦۵۳) وسيرأعلام النبلاء (۱۰\٤۳٦)_

(۵) تهذيب الكمال (۱۸\۹۲) وخلاصة الخزرجى (ص ۲۳۸) وسيرأعلام النبلاء (۱۰\٤۳٦)_

د دوی نه امام بخاري، امام ابوداود، ابوحاتم، ابراهيم حربي او ابوخليفه مکی رحمهم الله وغيره د حديث روايت کړي دي (۱)

امام ابوحاتم رحمه الله د دوی په باره کښې فرمائي: ((صدوق)) (۲)
ابن حبان رحمه الله دوی په کتاب الثقات کښې ذکر کړی دی. (۳)

حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي: ((عبدالسلام بن مهطر بن مصك بن ظالم بن شيطان، الإمام الثقة أبوظفر الأزدي البصري...)) (۴)

دغه شان دوی په ((الکاشف)) کښې هم دوی ته ثقه ونيلی دی. (۵)

په رجب ۲۲۴ھ کښې وفات شوی وو، حالانکه د دوی عمرلس کم سلو کالو ته رسيدلې وو. (۶)

④ **عمربن علي :** دوی عمربن علي بن عطاء بن مقدم بروزن محمد (۷) المقدمي بضم الميم وفتح القاف وتشديد الدال المهملة المفتوحة وبعدها ميم (۸) البصري دي. د دوی کنيت ابوحفص وو. (۹)

دوی د هشام بن عروه، ابوحازم، خالد الحزاء، اسماعيل بن ابي خالد، اعمش، سفيان ثوري رحمهم الله وغيره نه روايت د حديث کوي.

د دوی په شاګردانو کښې حضرت امام احمد، عمروبن علي، ابن المديني، خليفه بن خياط او محمد بن بشار بندار رحمهم الله وغيره حضرات دي. (۱۰)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائي: ((لايحتج به)) (۱۱)

---

(۱) تهذيب الکمال (۱۸\۹۲) وسير أعلام النبلاء (۱۰\۴۳۶) وخلاصة الخزرجي (ص.۲۳۸)_
(۲) تهذيب الکمال(۱۸\۹۳) وخلاصة الخزرجي (۲۳۸) وسير أعلام النبلاء (۱۰\۴۳۶)_
(۳) کتاب الثقات لابن حبان (۸\۴۲۸)_
(۴) سير أعلام النبلاء (۱۰\۴۳۶)_
(۵) الکاشف (۱\۶۵۳) رقم ۳۳۷۳)_
(۶) تهذيب الکمال(۱۸\۹۳) وتقريب التهذيب (۳۵۵) رقم ۴۰۷۵) والکاشف (۱\۶۵۳) رقم ۳۳۷۳ وسير أعلام النبلاء (۱۰\۴۳۷)_
(۷) المغنى (ص.۷٤) وشرح الکرماني(۱\۱۶۰)_
(۸) المغنى (ص.۷۷)_
(۹) تهذيب الکمال(۲۱\۴۷۰، ۴۷۱)_
(۱۰) تهذيب الکمال(۲۱\۴۷۱، ۴۷۲) وسير أعلام النبلاء (۸\۵۱۳) وتهذيب التهذيب(۷\۴۸۵، ۴۸۶)_
(۱۱) سير أعلام النبلاء ((۸\۵۱۳)، وميزان الإعتدال (۳\۲۱٤)_

امام ابن معين رحمه الله فرمائى ((لم أكتب عنه شيأ وأصله واسطي نزل البصرة وكان يدلس وما كان به بأس))
امام ابن عدى رحمه الله فرمائى. ((ولعمر بن على أحاديث حسان وأرجو أنه لا بأس به))
امام ابن سعد رحمه الله فرمائى ((وكان ثقة وكان يدلس تدليسا شديدا وكان يقول سمعت وحدثنا ثم يسكت ثم يقول هشام بن عروة والأعمش))
امام عفان بن مسلم رحمه الله فرمائى ((كان عمر بن على رجلا صالحا ولم يكونوا ينقمون عليه شيأ غير أنه كان مدلسا وأما غير ذلك فلا، ولم أكن أقبل منه حتى يقول حدثنا))
امام عبدالله بن احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى. ((سمعت أبي وذكر عمر بن على فأثنى عليه خيرا وقال كان يدلس))
امام دارقطنى رحمه الله دوى لره ((من الرفعاء الثقات)) گرخولى دى.
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى. ((ثقة وكان يدلس شديدا))
حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى. ((رجل صالح موثق يدلس))
دغه شان حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى. ((ثقة شهير لكنه رجل مدلس))
دغه شان دوى فرمائى.. ((الإمام الحافظ الحجة المدلس))
د دې تولو اقوالو خلاصه دا ده.چه دا راوى ثقه اوقابل احتجاج دې.البته صرف امام ابوحاتم دوى ((لايحتج به)) گرخولې دې.
امام ابوحاتم رحمه الله چه دوى رد كړې دې.نو ددې وجه هم دا ده.چه دوى به تدليس كولو او تدليس هم دومره زيات چه د ((سمعت)) او ((حدثنا)) الفاظ به ئې استعمالول.اوبيا به چپ شو او بيا ئې براه راست د مروى عنه شيخ په ځائې پورته څوك ثقه راوى ذكر كولو.() كه د دوى

---

۱) تهذيب الكمال(۲۱\۴۷۳) والكامل لابن عدى (۵\۴۵) والضعفاء الكبير للعقيلى (۳\۱۷۹)_
۲) الكامل (۵\۴۶)_
۳) الطبقات الكبرى لابن سعد (۷\۲۹۱)_
۴) طبقات ابن سعد(۷\۲۹۱) وتهذيب الكمال (۲۱\۴۷۳)_
۵) الضعفاء الكبير للعقيلى (۳\۱۷۹) وتهذيب الكمال (۲۱\۴۷۲) والكامل لابن عدى (۵\۴۵)_
۶) سنن دارقطنى (۱\۱۷۲) كتاب الطهارة باب أحاديث القهقهة فى الصلاة وعللها)_
۷) تقريب التهذيب (۴۱۶) رقم ۴۹۵۲)_
۸) الكاشف (۲\۶۷) رقم ۴۰۸۹)_
۹) ميزان الإعتدلال(۳\۲۱۴)_
۱۰) سير أعلام النبلاء (۸\۵۱۳)_
۱۱) طبقات (۷\۲۹۱)_

تدليس نه وو د دوى په نيز به هم دې ثقه او قابل استدلال وو خپله بيان كوى ((محله الصدق، ولولا تدليسه لحكمنا له إذا جاء بزيادة غير أنا نخاف أن يكون أخذه من غير ثقة))( ) يعنى په حقيقت كښې خود دوى مقام صدق دې كه تدليس نه وو نود دوى ..زيادت.. به قابل قبول وو چونكه تدليس به نې كولو.څكه ددوى په څه زيادت باندې اعتماد نشى كولې بيا چه كله د چا ضعيف نه نقل وى.

ددې نه معلومه شوه.چه دامام ابوحاتم رحمه الله په نيزباندې هم ددوى هغه روايات قابل قبول او د استدلال قابل دى.په كوموكښې چه د نورو متابعت موجود وى.

هم دا وجه ده.چه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى((قد احتمل أهل الصحاح تدليسه ورضوا به))( )

دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.((ولم أرله فى الصحيح إلا ما توبع عليه واحتج به الباقون))( )

په كال ۱۹۰هـ يا ۱۹۲هـ كښې دوى وفات شوى وو ( ) رحمه الله رحمة واسعة.

④ **معن بن محمد الغفارى**:دوى معن بن محمد بن معن بن نضله بن عمرو غفارى دى.( )

دسعيد مقبرى او حنظله بن على اسلمى نه دوى روايت كوى.( )

ددوى نه چه چا روايت كړې دى.په هغوى كښې عبدالله بن عبدالله اموى. عبدالملك بن جريج.عمروبن على مقدمى او ددوى څوئې محمد بن معن غفارى رحمه الله دى.( )

امام بخارى ددوى تذكره په تاريخ كبير كښې كړې ده.( )

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى((مقبول))( )

ابن حبان رحمه الله دوى لره په ثقاتوكښې ذكركړې دى.( )

⑤ **سعيدبن ابى سعيد المقبرى**:دوى ابوسعد سعيد بن ابى سعيد كيسان مقبرى مدنى

---

( ) تهذيب الكمال(۲۱\۴۷۳) وميزان الإعتدال (۳\۲۱٤)_

( ) سير أعلام النبلاء (۸\٥۱٤)_

( ) هدى السارى(٤۳۱)_

( ) تهذيب الكمال(۲۱\٤۷٤)_

( ) تهذيب الكمال (۲۸\۳٤۱) وتقريب التهذيب (٥٤۲) رقم ۲۸۲۲ والكاشف (۲\۲۸٤)_

( ) تهذيب الكمال(۲۸\۳٤۱) وخلاصة الخزرجى (۳۸٤)_

( ) تهذيب الكمال(۲۸\۳٤۱)_

( ) التاريخ الكبير(۷\۳۹۰) رقم ۱٦۹۹)_

( ) تقريب التهذيب (٥٤۲) رقم ۲۸۲۲)_

( ) الثقات لابن حبان (۷\٤۹۰)_

دی ددوی د پلار ابوسعید نوم کیسان وو.اودوی په مدنیه منوره کښې د بنو لیث بن بکر د یوې ښځې مکاتب وو.(۱)

ددوی نسبت مقبری د میم فتحه ،اوقاف سکون ،اوباء ضمه ده.ددې نه پس راء مهمله او په آخر کښې یائې نسبتی ده.بعضې حضراتو په باء باندې فتحه لوستې ده.(۲)کوم چه مقبری طرف ته منسوب دې.دا نسبت په اصل کښې دوی د والد ابوسعید دې.(۳)دوی ته مقبری ولې وئیلی شی.په دې کښې څو اقوال دی.

① بعضې حضرات فرمائی.چه دوی به په مدینه منوره کښې د «مقبرة بنی دینار» نګرانی اوحفاظت کولو.دوی ته دا خبر رسیدلې وو.چه ددې مقبرې نه به شپیته زره جنتیان کسان پاسیږی.(۴)

② بعضې حضرات فرمائی.چه دوی د قبرستان منجور وو.څکه ورته مقبری وائی (۵)

③ بعضې حضرات فرمائی.چه د دوی کور د مقبرې سره نزدې وو.ددې وجې د نسبت په وجه مقبری شو.(۶)

④ بعضې حضراتو فرمائیلی دی.چه حضرت عمر رضی الله عنه دوی ته د قبر کنولو کار حواله کړې وو.ددې وجې روته مقبری وائی.(۷)

علامه عینی رحمه الله فرمائی.چه څه لرې نه ده.چه دا ټولې خبرې جمع شوی وی.چه منجور هم وو.اود دوی کور د مقبرې سره نزدې هم وو.اودوی د قبر کنولو په کار باندې مامور هم وو ددې ټولووجوهو نه ده ته مقبری وائی.(۸)

حضرت سعیدبن ابی سعید مقبری رحمه الله په صحابو رضی الله عنهم کښې دحضرت انس،حضرت جابربن عبدالله حضرت سعدبن ابی وقاص،حضرت عبدالله بن عمر،حضرت معاویه بن ابی سفیان،حضرت ابوسعیدالخدری ،حضرت ابوهریره،حضرت حضرت عائشې اوحضرت ام سلمې رضی الله عنهم نه

---

(۱) تهذیب الکمال (۴۶۷\۱۰) وتهذیب الأسماء واللغات (۲۱۹\۱)_

(۲) الأنساب للسمعانی (۳۶۱\۵و ۳۶۲) وتهذیب الأسماء واللغات (۲۱۹\۱) وعمدة القاری(۳۲۶\۱)_

(۳) عمدة القاری(۲۳۶\۱)_

(۴) الأنساب للسمعانی (۳۶۲\۵)_

(۵) عمدة القاری(۲۳۶\۱)_

(۶) تهذیب الأسماء واللغات (۲۱۹\۱) وعمدة القاری(۲۳۶\۱)_

(۷) المصدرالسابق)_

(۸) عمدة(۲۳۶\۱) البته حافظ ذهبی رحمه الله د سعیدبن ابی سعید المقبری تذکره لیکی. او فرمائی.((کان یسکن بمقبرة البقیع)) لکه چه یوه پنځمه وجه دا وه.چه د بقیع سره ددوی استوګنه وه.څکه ورته مقبری وائی.والله أعلم.سیرأعلام النبلاء (۲۱۶\۵)_

احاديث روايت كړى دى.(١)

البته دحضرت عائشې رضي الله عنها او ام سلمې رضي الله عنها نه د دوى روايات مرسل دى.ځكه چه د دوى سره دده ملاقات ثابت نه دې.(٢)

بيا په تابعينو رحمهم الله كښې دخپل پلارحضرت ابوسعيدمقبرى.عوره بن زبير .ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف رحمهم الله نه علاوه د نورو حضراتو ته دوى روايت كړې دې.(٣)

د دوى نه چه چا روايت كړې دې په هغوى كښې امام مالك.ليث بن سعد. شعبه بن الحجاج.محمد بن اسحاق.يحيى بن سعيدانصارى.اومحمدبن عبد الرحمن بن ابى ذئب رحمهم الله غوندې ډيرحضرات دى.(٤)

امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائى.«ليس به بأس»(٥)

امام على بن مدينى.محمد بن سعد.عجلى.ابوزرعه.نسائى.عبدالرحمن بن يوسف بن خراش رحمهم الله فرمائى..))ثقة»(٦)

ابن خراش زياتى دا فرمائى.«ثقة جليل أثبت الناس فيه الليث بن سعد»(٧)

ابوحاتم رازى رحمه الله فرمائى.«صدوق»(٨)

واقدى رحمه الله فرمائى.«كان قد كبر حتى اختلط قبل موته بأربع سنين»(٩)

يعقوب بن شيبه فرمائى«قد كان تغير وكبر واختلط قبل موته يقال بأربع سنين حتى استثنى بعض المحدثين عنه ما كتب عنه فى كبره مما كتب قبله فكان شعبة يقول حدثنا سعيد المقبرى بعد ما كبر»(١٠)

ددې تولواقوالوخلاصه دا شوه.چه د حديث د دې تولوامامانو رحمهم الله په نيزدوى ثقه اوقابل احتجاج راوى دې.البته په آخرى عمركښې كله چه ددوى وفات ته څلورکاله پاتې شو.ددوى په حافظه كښې فرق راغلو.نود تغيرنه پس چه كوم احاديث دى.هغه به قبول نه وى.

---

١) تهذيب الكمال(١٠\٤٦٧. ٤٦٨)_
٢) تهذيب الكمال(٤٠\١٤) وتقريب التهذيب (٢٣٦) رقم (٢٣٢١)_
٣) تهذيب الكمال(١٠\٤٦٨٩. ٤٦٩)_
٤) المصدرالسابق)_
٥) الكاشف (١\٤٣٧) رقم ١٨٩٦) وتهذيب الكمال(١٠\٤٦٩)_
٦) تهذيب التهذيب (١٤\٣٨٠ وتهذيب الكمال(١٠\٤٧٠) وسيرأعلام النبلاء.(٥\٢١٦)_
٧) تهذيب الكمال(١٠\٤٧٠) وتهذيب الكمال(١٤\٣٨٤)_
٨) تهذيب التهذيب(١٤\٣٨) وتهذيب الكمال(١٠\٤٧٠) وسيرأعلام النبلاء (٥\٢١٦)_
٩) تهذيب الكمال(١٠\٤٧٠)_
١٠) المصدرالسابق)_

خوحقیقت دا دې چه د دوی په جلالت شان او ثقاهت باندې باندې اتفاق دې «کما قاله النووی وابن حجر»[1]
اوترځو پورې چه د دوی د اختلاط تعلق دې نود اختلاط ذکرصرف واقدی کړې دې اوابن سعد. یعقوب بن شیبه اوابن حبان د واقدی اتباع کړې ده. اوباقی چه ځومره دحدیث ناقدین دی هغوی ددوی د مختلط کیدو او متغیرکیدونه انکار کوی.[2]
بیا د دوی د تحدیث بعدالاختلاط والکبر ذکر صرف امام شعبه کړې دې. هغوی فرمائی «أخبرنا سعید بن ابی سعید المقبری وکان قد کبر»[3]
خوحافظ ابن عدی رحمه الله دوی په خپل کتاب «الکامل فی ضعفاء الرجال» کښې د دوی د ذکرکولونه پس فرمائی. «وإنما ذکرت سعید المقبری فی جملة من إسمه سعید، لأن شعبة یقول: ثنا سعید بعد ما کبر وأرجو أن سعید (کذا فی الأصل سعید وهو خطأ والصواب سعیداً) من أهل الصدق وقد قبله الناس وری عنه الأئمة الثقات من الناس وما تکلم فیه أحد إلا بخیر»[4] یعنی ما د دوی ذکر په دې کتاب کښې چه (دضعیفو راویانو سره خاص دې) کړې دې نو ددوی وجه دامام شعبه قول دې چه «حدثنا سعید بعد ما کبر» کښې زما رائې دا ده. چه سعید مقبری داهل صدق څخه دې. خلقو دې قبول کړې دې. ائمه ثقات محدثین د دوی نه روایت کوی. چا هم د خیرنه سوا د دوی ذکر نه دې کړې.
دغه شان حافظ ذهبی رحمه الله ته هم په دې خبره باندې یقین دې. چه دوی د اختلاط نه پس د حدیث څه روایت نه دې کړې. دوی فرمائی. «ما أحسبه روی شیأ فی مدة إختلاطه وکذلك لا یوجد له شئ منکر»[5]
یعنی نه خو دوی په مدهٔ د اختلاط کښې څه روایت کړې دې. اونه د دوی په احادیثو کښې څه منکر روایت موجود دې.
دغه شان دوی فرمائی. «ما أحسب أن أحداً أخذ عنه فی الإختلاط فإن ابن عیینة أتاه فرأی لعابه یسیل، فلم یحمل عنه»[6]

---

[1] قال النووی رحمه الله فی تهذیب الأسماء (۲۱۹/۱) واتفقوا علی توثیقه وقال ابن حجر رحمه الله فی هدی الساری (ص. ٤٠٥) مجمع علی ثقته)_
[2] هدی الساری (٤٠٥)_
[3] الکامل لابن عدی (۳۹۱/۳)_
[4] الکمال (۳۹۱/۳. ۳۹۲)_
[5] سیر أعلام النبلاء (۲۱۷/۵)_
[6] میزان الإعتدال (۱٤٠/۲)_

حافظ ذهبي رحمه الله هم په دې وجه مطلقاً توثيق كوى اوفرمائى «ثقة حجة شاخ ووقع في الهرم ولم يختلط»(١) بيا دامام يحيى بن معين رحمه الله نه مروى دى «أثبت الناس فيه ابن أبي ذئب»(٢) او دابن خراش رحمه الله قول دې «أثبت الناس فيه الليث بن سعد»(٣) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى «أكثر ما أخرج له البخاري من حديث هذين عنه وأخرجه أيضاً من حديث مالك وإسماعيل بن أمية وعبيدالله بن عمر العمري وغيرهم من الكبار وروى له الباقون ولم يخرجوا من حديث شعبة عنه شيأ»(٤) يعنى امام بخارى رحمه الله چه په خپل صحيح كښې د دوى كوم روايات تخريج كړى دى نو په دې كښې اكثرهم د دې دواړو په واسطه سره دى. كوم چه په ددوى په رواياتو كښې «أثبت الناس» دى. ددوى نه علامه امام مالك. اسماعيل بن اميه. عبيدالله بن عمر عمرى. وغيره دحديث د لويو راويانو په واسطو سره هم روايات شته. بيا باقى حضرات يعنى سنن اربعه كښې هم د دوى روايات شته. په دوى كښې په چا كښې هم د شعبه رحمه الله واسطه نشته. چه دهغوى په رواياتو كښې بعد الاختلاط د روايت كونكو صراحت موجود وى.
اوتركومې پورې چه دامام شعبه رحمه الله د رواياتو تعلق دې. نو په هغې كښې دوه احاديث داسې دى. په كومو كښې چه دوى بعد الاختلاط د روايت كونكو تصريح كړې ده. يو «حديث الإزار» دې. «ما أسفل من الكعبين من الإزار فهو في النار» او دويم حديث «لأن يطأ أحدكم على جمر غضى خير له من أن يطأ على قبر» دې.

نو حافظ ابن عدى رحمه الله فرمائى چه «وليس لشعبة عن سعيد المقبرى غير هذين الحديثين، الأول حديث الإزار مشهور والحديث الثاني، يأتي به الجارود عنه»(٥) يعنى شعبه د سعيد المقبرى رحمه الله نه صرف دوه حديثونه روايت كوى. يو حديث الازار دې .كوم چه مشهور دې. نو په دې كښې د اختلاط څه اثر نشته. اوبل حديث «لأن يطأ ...الخ» دې. اودا د شعبه رحمه الله نه صرف جارود بن يزيد روايت كوى. اوجارود بن يزيد ضعيف بلكه كذاب راوى دې.(٦)
نوخلاصه دا شوه. چه سعيد مقبرى كبير السن اوضعيف شوې ضرور وو. خو مختلط شوې نه وو. اوكه اختلاط پرې راغلې هم وى. خود تغير نه پس د هغوى نه څوك روايت كونكې

---

(١) ميزان الإعتدال(١٣٩/٢)_
(٢) هدى السارى(٤٠٥)_
(٣) هدى السارى(٤٠٥) وقد سبق نقله عن تهذيب الكمال وتهذيب التهذيب وسير أعلام النبلاء)_
(٤) هدى السارى(٤٠٥)_
(٥) الكامل لابن عدى(٣٩١/٣)_
(٦) قال الذهبي رحمه الله في الميزان(٣٧٤/١) كذبه أبوأسامة وضعفه على وقال يحيى ليس بشئ .وقال أبوداود غير ثقة .وقال النسائى والدارقطني متروك وقال ابوحاتم كذاب ...)_

شته يې په صحيحينو بلکه په صحاح سته کښې د شعبه د واسطې نه بغير بل چا ددوی نه حديث نه دی نقل کړې والله أعلم.

ددوی وفات په مدينه منوره کښې شوې وو د وفات په کال کښې ئې ډير اقوال منقول دی خو راجح دا دې چه په ۱۲۳ھ يا ۱۲۵ھ کښې وفات شوی دی.[1]

⑤ دحضرت ابوهريره رضي الله عنه حالات په کتاب الايمان کښې د «باب أمور الإيمان» لاندې تېرشوی دی.[2]

**قوله** إِنَّ الدِّينَ يُسْرٌ: په «الدين» کښې الف لام دپاره دعهد دې مراد ترې اسلام دې او «يسر» مصدر دې اودې حمل په «الدين» باندې کيږی نو يا خو دا حمل په مبالغه باندې محمول دې لکه څنګه چه «زيد عدل» کښې مبالغه ده په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه دين توله بس آسان دې اويا «يسر» د «ذويسر» په معنی کښې دې نود «الدين ذو يسر» مطلب به دا وی چه دين اسلام د آسانتيا دين دې.[3]

**دين په کوم حيثيت سره اسان دې؟** په دين کښې چه کوم يسر بيان شوې دې نو دا يسر په خود نورو دينونو په مقابله کښې دې چه په نورو دينونو کښې تشديدات او افراد او تفريط دې او اسلام دهغې په مقابله کښې آسان دې اود افراد او تفريط نه هم دا دين خالی دې «کما سبق تفصيل ذلك قريباً»

دغه شان يسر په خپله د دين اسلام د اعمالو په اعتبارسره هم دې چه د دين په احکامو کښې عزائم هم دی او رخصتونه هم يعنی څه اعمال هغه دی کوم چه د عزيمت په درجه کښې دی اوڅه اعمال هغه دی کوم چه د رخصت په مرتبه کښې دې چه کوم اعمال د رخصت په درجه کښې راځی نو په هغې کښې خو بس آسانی ده خکه چه رخصت په يسر باندې مبنی وی اوکوم اعمال چه د عزيمت په درجه کښې راځی نو په هغې کښې هم چونکه د ميانه روی او اعتدال خيال ساتلې شوې دې نوددې وجې وئيلې شی چه دين اسلام دخپلو احکامو په اعتبارسره د آسانتيا دين دې

داسلام داعمالود آسانتيا څه تفصيل او وضاحت باندې داسې پوهه شئ

چه يوه سلسله د الله تعالی د نعمتونو ده اويوه د عباداتو سلسله ده الله تعالی انعام کوی اوبنده عبادت کوی که دالله تعالی په نعمتونو باندې نظر واچولې شی نو دا بيحده او بې حسابه دی ﴿وَإِن تَعُدُّوا نِعْمَةَ اللَّهِ لَا تُحْصُوهَا﴾[4]

---

[1] تهذيب الكمال (۱۰/۴۷۲) والكاشف (۱/۴۳۷) رقم ۱۸۹۶_

[2] كشف الباري (۱/۶۵۹-۶۶۳)_

[3] فتح الباري (۱/۹۳)_

[4] ابراهيم: ۳٤ والنحل: ۱۸)_

ګوري کله چه ماشوم د مور په خیټه کښې په دريو تيرو کښې وي.(۱)نوالله تعالى هلته هم دده د تربيت اهتمام کوي.اوکله چه بيا دنيا ته راشي نودده د خسماني او تربيت ټول انتظامات پوره کړي په هغه وخت کښې هغه نه خبرې کولې شي.اونه اشاره کولې شي.اونه دخپلو ضروریاتو اظهارکولې شي خوالله تعالى د مور په صورت کښې ده ته يوه داسې هستي ورکړي څوک چه دده دپاره د رحمت مجسمه وي.چه دده معمولي تکليف هم نشي برداشت کولې الله تعالى دهغې په سينوکښې پې پيدا کړي.اوددې په زړه کښې مهرباني پيدا کړي.هغه د ګرمۍ يخنۍ.لوږې تندې.بيمارۍ اوپريشانۍ. د هرڅيزنه د حفاظت دپاره خپل ځان په خطره کښې اچوي.دا ټول دالله تعالى احسانات دی.

بيا دده د ژوند دپاره د هوا ضرورت وي.د اوبو ضرورت وي.دجامو او خوراك ضرورت وي.دعلاج معالجې ضرورت وي.دا ټول څيزونه ورته ملاويږي.

بيا دې د تربيت څومره مرحلو نه تير شي.اوداالله تعالى د بې حسابه اوبې شميره نعمتونو نه په هره ګهړۍ کښې فائده اخلي.ترديې چه خوان.طاقتوراو مضبوط سړې ترې جوړ شي.بيا په دغه وخت کښې هم دالله تعالى نعمتونه مسلسل ده سره وي.دا ټول دالله تعالى هغه انعامات او احسانات دی.چه ددې شمارنشي کيدې.

ددې نعمتونو تقاضا خو دا وه.چه په هروخت کښې بغيرد څه فترت او انقطاع نه دالله تعالى شکر ادا کولې شو.اود عباداتو سلسله قائمه ولې.خوکومه د عباداتو سلسله چه ده هغه څومره معمولي او آسانه ده.دهغې اندازه په آسانتيا سره لګولې شي.

نوکوم ذات چه مونږ ته وجود راکړې دې.رزق ئې راکړې دې.اود تربيت ذمه واري ئې اخستې ده.چه هغه وحده لاشريك اوګنړلې شي.بس هم د هغه د خالقيت اومالکيت منلو حکم دې.اوپه نورو ايمانياتو باندې يقين ساتلو.اوهغه په زړه کښې د کينولوحکم ورکړې شوې دې.

بيا مونږ راواخلی.ددې په ځائې چه په هر وخت کښې ئې عبادت کول فرض کړې وو نوصرف پنځه مونځونه ئې فرض کړی دی.اوپه دې کښې ئې هم د هغه وختونوانتخاب کړې دې.چه دسړی طبيعت په کښې پريشانه نه وي.په څلورويشت ګهنټونه د مونځونو وختونه نفي کړې شی.نوپه مشکله سره يوه ګنټه يوه نيمه ګنټه جوړيږي.لکه چه الله رب العزت د څلورويشت ګنټوعبادت فرض کولو په ځائې صرف يوه نيمه ګنټه په خپل دربار کښې دحاضرۍ دپاره مقررکړې ده.اوپه نور ټول وخت کښې ئې د کاروبار.آرام او راحت کولواجازت ورکړې دې.ښکاره خبره ده.چه دا يسر دې.

بيا که څوك رنځور وي.نودهغه دپاره اودس کول ضروري نه دی.بلکه د تيمم کولواجازت ورته شته.(۲)اوکه رنځو وی په ولاړه مونځ نشی کولې.نوپه ناسته د مونځ کولو اجازت

---

(۱) إشارة إلى قوله تعالى: يخلقكم في بطون أمهاتكم خلقاً بعد خلق في ظلمات ثلاث﴾الزمر:٦)_

(۲) قال الله تعالى:﴿ وإن كنتم مرضى أو على سفر أوجآء أحدمنكم من الغائط اولامستم ا لنساء فلم تجدوا ماءً فتيمموا صعيداً طيباً فامسحوا بوجوهكم وأيديكم﴾ النساء:٤٣)_

وركړې شوې دې.اوكه په ناسته باندې هم د مونځ كولوقدرت نه وى.نو په ملاسته دې كوى.(١)

دجمات د پابندۍ نه هم دې مستثنى دې.او دجماعت پابندى هم په ده باندې لازم نه ده.(٢)

بيا كه يوكس په سفركښې وى.نوهم دده دپاره خاص رعايتونه دى.سنن مؤكده دده دپاره غيرمؤكده شى.(٣)څلور ركعته مونځ دده په حق كښې دوه ركعته شى.(٤)

كه يوكس په سورلۍ سور دې.اوهغه نفل كول غواړى.نودهغه دپاره د استقبال قبلې شرط ختم كړې شوې دې.(٥)

دغه شان د زكاة معامله هم توله په آسانتيا باندې مبنى ده.چه په هريوكس باندې دا فرض نه دې.بلكه ضرورى ده.چه دې د نصاب مالك وى.اودمال يو خاص مقدار دده په ملكيت كښې وى.اوپه هرقسم مال باندې هم نه دې واجب ،بلكه ددې دپاره د نامى كيدو شرط دې.دغه شان د وجوب په كال كښې يو ځل وى.چه په مال پوره يوكال تيرشى.نو زكاة فرض شى.ګنى نه به وى.بيا نوره آسانتيا دا شوې ده.چه ټول اخراجات اوقرضې چه اوويستې شى.نودهغې نه پس كه نصاب باقى پاتې شى.زكاة به فرض وى.ګنى نه به وى.بيا چه كوم زكاة وركولې شى.هغه هم ټول مال نه دې.بلكه ددې صرف څلويښتمه حصه ده.(٦) بيا اجراوثواب ئې په هغه صورت كښې زيات مقرر كړې دې.چه د زكاة په مال باندې سرې د خپلو خپلوانو سره مدد اوكړى.يعنى چه د چا خيال ساتل په ده باندې لازم وو.هم په هغوى باندې د استعمال اجازت ئې وركړې دې.(٧)

د رمضان المبارك روژې دى.نوپه دې كښې هم څومره رعايتونه دى.اوڅومره يسردې.په ټول

---

(١) بدائع الصنائع (١\١٠٥.١٠٦)_ فصل أركان الإصلاة)_

(٢) بدائع الصنائع (١\١٥٥) فصل وأما بيان من تجب عليه الجماعة)_

(٣) قال ابن نجيم رحمه الله واختلفوا فى ترک السنن فى السفر.فقيل الأفضل هوالترک ترخيصاً وقيل الفعل تقرباً وقال الهندوانى الفعل حال النزول والترک حال السير.وقيل يصلى سنة الفجرخاصة وقيل سنة المغرب أيضاً وفى التجنيس والمختار أنه إن كان حال أمن وقرار يأتى بها لأنها شرعت مكملات والمسافر إليه محتاج وإن كان حال خوف لا يأتى بها لأنه ترک بعذر البحر الرائق (٢\١٣٠) باب المسافر)_

(٤) البحرالرائق (٢\١٢٨) وغيره)_

(٥) كنزالدقائق وشرحه البحرالرائق (٢\٦٤) باب الوتروالنوافل)_

(٦) بدائع الصنائع (٢\٤. ٣٢. ٥٠. ٥١)_

(٧) قال فى الدرالمختار:ولا إلى من بينهما ولاد قال الشامى وقيد بالولاد لجوازه لبقية الأقارب كالإخوة والأعمام والأخوال الفقراء بل هم أولى لأنه صلة وصدقة وفى الظهيرية ويبدأ فى الصدقات بالأقارب ثم الموالى ثم الجيران ولودفع زكاته إلى من نفقته واجبة عليه من الأقارب جاز إذا لم يحسبها من النفقة [illegible] الدرالمختار مع ردالمختار(٢\٦٩) كتاب الزكاة باب المصرف)_

کال کښې صرف يوه مياشت روژې فرض دى.(١)او هغه هم صرف په ورځ کښې فرض دې.په شپه کښې دخوراك څکاك پوره آزادى شته.(٢) اوحکم دې.چه پيشمنې اوکړئ.او روژه اونيسئ.(٣)که يوسړې بيمار وى.نود جوړيدونه پس هغه ته د روژې نيولواجازت شته.دغه شان د مسافر دپاره هم دا گنجائش شته.چه درمضان نه پس قضا راوړى.(٤)

حج راواخله.په ټول ژوند کښې صرف يوځل فرض شوې دې.(٥)اودا هم په هغه خلقوچه هغوى سره ډير مال وى.چه دکور خرچه ترې لرې کړى.اوهغه دپاره تګ راتګ ممکن وى.لاره د امن وى.سختئ اومشکلات نه وى.نوپه ده باندې حج فرض.دې.ګنی نه دې.(٦)

معلومه شوه.چه دالله تعالى د طرفه د نعمتونو کومه سلسله ده.هغه بې حسابه ده.اودهغې په مقابله کښې عبادات ډيرکم دى.اوبياپه دې عباداتوکښې خوبس آسانتيا اوآسانتيا ده.(٧)

**قوله** : وَلَنْ يُشَادَّ الدِّينَ أَحَدٌ إِلَّا غَلَبَهُ: څوك چه په دين کښې شدت اختيارکړى.اوپه دې باندې غلبه کول غواړى.نو دين به په ده باندې غلبه کوى.«يشاد»عامل نصب «لن»په وجه منصوب دې.دا د باب مفاعله څنې دې.ددې معنى د مقابلې ده(٨)

«أحد» دا لفظ د «يشاد»فاعل دې.دابن سکن په روايت کښې او د اصيلى په بعضې رواياتو کښې دا لفظ راغلې دې.اسماعيلى او ابونعيم او ابن حبان ﷺ هم ددې حديث په طرقو

---

(١) قال الله تعالى ﴿ فمن شهد منكم الشهر فليصمه﴾البقرة:١٨٥)_

(٢) قال الله تعالى ﴿ وكلوا واشربوا حتى يتبين لكم الخيط الأبيض من الخيط الأسود من الفجر ثم أتموا الصيام إلى الليل﴾ (البقرة:١٨٧)_

(٣) عن أنس بن مالك ﷺ قال قال النبى ﷺ تسحروا فإن فى السحور بركة صحيح البخارى(١\٢٥٧) كتاب الصوم باب بركة السحور من غير إيجاب)_

(٤) قال الله تعالى:(فمن كان منكم مريضاً أو على سفر فعدة من أيام أخر﴾ البقرة: ١٨٤)_

(٥) عن ابن عباس ﷺ أن الأقرع بن حابس سأل النبى فقال يا رسول الله الحج فى كل سنة أو مرة واحدة؟ قال بل مرة واحدة فمن زاد فهو تطوع رواه أبوداود فاتحة كتاب المناسک باب فرض الحج رقم ١٧٢١)_

(٦) عن أنس ﷺ عن النبى ﷺ فى قوله تعال(ولله على الناس حج البيت من استطاع إليه سبيلاً ) قال قيل: يا رسول الله مالسبيل؟ قال الزاد والراحلة وراه الحاكم فى المستدرک (١\٤٤٢) فى كتاب المناسک باب السبيل: الزاد والراحلة وقال هذا حديث صحيح عى شرط الشيخين ولم يخرجاه وقد تابع حمادبن سلمة سعيداً على روايته عن قتادة وأقره الذهبى وقال الكاسانى ﷺ وأما تفسير الزاد والراحلة فهو أن يملک ممن المال مقدار ما يبلغه إلى مكة ذاهباً وجائياً راكبا لا ماشياً بنفقة وسط لاإسراف فيها ولا تقتير فاضلاً عن مسكنه وخادمه وفرسه وسلاحه وثيابه وأثاثه ونفقة عياله وخدمه وكسوتهم وقضاء ديونه .. بدائع (٢\١٢٢)_

(٧) فضل البارى (١\٤٥٩- ٤٦٠)_

(٨) والمشادة بالتشديد- المغالبة ىاقل :شاده إذا قاواه كذا فى فتح البارى(١\٩٤)_

کښې د «أحد» لفظ ذکرکړې دې اوپه بعضې نسخوکښې دلته د «أحد» لفظ موجود نه دې نولکه چه په دې صورت کښې به د «يشاد» فاعل مذکور نه وی.اوداسې به ګڼړلې شي چه چونکه فاعل معلوم دې نوځکه دا حذف کړې شو [1]

بیا دې نه پس په «الدين» کښې اختلاف دې بعضې حضرات خودا مرفوع لولی.او«لن يشاد» فعل مجهول ګرځوی اودا مفعول مالم یسم فاعله ګرځوی او بعضې دا منصوب لولی.او «لن يشاد» فعل معروف ګرځوی او«الدين» مفعول ګرځوی.[2]

صاحب دمطالع رحمه الله ليکلی دی.[3] چه په اکثرو روایاتوکښې «الدين» مرفوع دې.ددې په مقابله کښې امام نووی رحمه الله فرمائی چه په اکثرو روایاتوکښې الدین منصوب دې.[4]
په دواړوا قوالوکښې دجمعې اوتطبیق صورت دا دې چه صاحب د مطالع د خپلې علاقې: خلقو یعنی د مغاربو روایت نقل کړې دې.اوامام نووی رحمه الله د خپلې علاقې دخلقو یعنی مشارقو روایت نقل کړې دې.«فلاتعارض بين النقلين»[5] البته د مسند احمد حدیث «فإنه من يشاده هذا الدين يغلبه»[6] نه د نصب تائید کیږی.والله أعلم.
نبی کریم ﷺ فرمائی.کوم کس چه په دین کښې شدت اختیارکړی.اوپه دین باندې غلبه کول غواړی.نواودا غواړی.چه د دین ټول اعمال من کل الوجوه پوره ادا کړی.اوهمیشه دپاره په عزیمت عمل کوی.نودین به په ده باندې غالب کیږی. یعنی داسې کس به مغلوبه شی.اوپه لږو ورځو کښې به بیا په اعمالوکښې کوتاهی شروع کړی.ځکه چه قاعده دا ده.کله چه په نفس باندې زیات بوج واچولې شی.نوځو ورځو پورې خو اوچلیږی.اوددې نه پس یودم متنفر شی. او سرکشی اختیارکړی.نواعتدال او میانه روی اختیارول ضروری دی.
ګوری که څوك دا سوچ اوکړی.چه زه صائم الدهراوقائم الليل جوړیږم او د تجرد ژوند اختیاروم نوهغه به ترکومې پورې داسې کوی.دمسلسل قیام او صیام په وجه به په ده کښې کمزوری زیاتیږی.اوعمل به نشی پوره کولې.نومیانه روی اختیارول پکار دی.ځکه چه هغه عمل غوره دې.کوم باندې چه مداومت اوکړې شی. اګرچه په مقدار کښې کم ولې نه وی.

---

[1]) فتح الباری(۱\۹٤)_
[2]) فتح الباری(۱۹٤)_
[3]) هوإبراهيم بن يوسف بن أدهم الوهراني الحمزي أبوإسحاق بن فرقول عالم بالحديث من أدباء الأندلس انظر الرسالة المستطرفة (ص.۱۲۹) والأعلام للزركلي(۱\۸۱.۸۲)_
[4]) فتح الباری(۱\۹٤)_
[5]) عمدة القاری(۱\۲۳۸) وفتح الباری(۱\۹٤)_
[6]) [illegible] أحمد (۳۵۰\٤۱۰) من حديث بريدة الأسلمي رضي الله عنه)_

د الله تعالى ارشاد دې ﴿الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الرَّسُولَ النَّبِيَّ الْأُمِّيَّ الَّذِي يَجِدُونَهُ مَكْتُوبًا عِندَهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ يَأْمُرُهُم بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَاهُمْ عَنِ الْمُنكَرِ وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبَاتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ وَالْأَغْلَالَ الَّتِي كَانَتْ عَلَيْهِمْ﴾ ()

په دې آيت مباركه كښې د رسول الله ﷺ صفت بيان شوې دې چه د دوى حال په تورات او انجيل كښې مكتوب دې د دوى شان دا وو چه امر بالمعروف او نهى عن المنكر به كولو. د طيباتو حلالونكې او خبائثو حرامونكې وو او هغه بوج كوم چه زمونږ نه په وړاندينى امتونو باندې بار وو دهغې اوچتونكې او پورته كونكې وو او د غه شان د هغه بيړو خلاصونكې هم وو. كومې چه په دوى باندې وې

د يهوديانو د نافرمانو او شرارت په وجه بعضې هغه طيبات هم په هغوى حرام شول. كوم چه دوى د پاره حلال وو. او دوى د خپل شرارت په وجه د خپل ځان د پاره بعضې خبائث حلال كړى وو الله تعالى فرمائى ﴿فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبَاتٍ أُحِلَّتْ لَهُمْ﴾ () حالانكه نبى ﷺ د طيباتو د حلت اعلان كړې دې.

معلومه شوه چه په شريعت محمدى كښې عسر بيخى نشته. بس يسر او يسر دې. دا خبره الله تعالى بيان كړې ده ﴿وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ﴾ () يعنى ستاسو په دين كښې څه تنگى نشته.

نو لازم ده چه په دين كښې د تشديداتو اختيارول نه دى پكار. چه دې خبره دې نوبت نه اورسى چه سړې د اصلى عمل نه هم پاتې شى. نو د ميانه روئ او اعتدال اختيارول ضرورى دى. گنى چه د دين په معاملاتو او احكاماتو كښې سختى اختيار كړې شى. نو به خپله به مغلوب شى.

خو د دې دا مطلب نه دې چه سړې اعلى او اكمل پرېږدى. او په دې باندې عمل نه كوى. بلكه د دې مطلب دا دې چه د افراط نه دې احتراز كوى. افراط يو ښيز دې. () او د اولى او اكمل اختيارول بل ښيز دې.

د مثال په توگه كه يو كس بيمار وى. او س ده د پاره د تيمم كولو شرعاً اجازت شته. خو كه دې غواړى چه زه د تيمم په ځائې غسل كوم. نو كيدې شى چه د غسل په وجه د ده بيمارى نوره زياته شى. نو كوم لږ غوندې اعمال چه د تيمم په ادا كولو باندې ده هغه ادا كولى شو. د هغې نه به هم عاجز شى. چونكه شريعت ده ته د تيمم اجازت وركړې دې. او غسل د ده د پاره نقصانى دې. نو كه دې تيمم پرېږدى. او غسل اوكړى. نو دې ته افراط ونيلى شى. او دا مذموم دې.

---

) سورة الأعراف:۱۵۷)_
) سورة النساء:۱۶۰)_
) سورة الحج:۷۸)_
) فتح البارى(۱/ ۹۴)_

اوکه یوسړي داسې وي.چه دي په اعلی او اکمل باندې عمل کول غواړي. اوشريعت په ده باندې څه پابندي نه وي لګولې.لکه مسح على الخفين مباح ده.که کول غواړي نو مسح دې اوکړي.اوکه کول نه غواړي.نونه دې کوي. خوغسل الرجلين افضل اوغوره دی.نوکه صحتمند سړې وي.اود اوبو استعمال ده ته تکليف نه رسوي.اواوبه هم په آسانتيا سره ملاويږي.اوهغه ددې خبرې اهتمام کوي.چه د مسح على الخفين په ځائې غسل الرجلين کوي. نوپه دې کښې څه حرج نشته.والله أعلم.

په مسند احمد کښې يو روايت دې.«إن هذا الدين متين فأوغلوا فيه برفق»[1] «إيغال» معنى ده.

«دخول فى الشئ» يعنى دا داين ډير مضبوط دې.په دې کښې په نرمئ او آسانتيا سره ورداخليدل پکار دی.مطلب دا دې.چه سړې لره پکار دی. چه دخپل نفس سورلئ سره ښه سلوك اود نرمئ معامله کوي.اوکه يوکس په دې باندې ډير زيات بوج واچوی.نوبيا به دهغه مسافر پشان شي.چه هغه سورلئ ته د هغې د طاقت نه زياته منډه ورکړي.نو نه منزل مقصود ته اورسی.اونه سورلی پاتې شي.ځکه چه کيدې شي.سورلی عاجزه شي.اوناجوړه يا مړه شي.نوځکه سړي ته پکار دی.چه داعتدال او ميانه روئ لار اختيارکړي.

**قوله: فَسَدِّدُوا وَقَارِبُوا:** يعنى نيغه لاراخيتارکړئ.اونزدې نزدې څئ.

د «سددوا» مطلب دا دې.چه نيغه او صحيح طريقه اختيارکړئ.چه نه په کښې افراط وی اونه په کښې تفريط وی.[2]

«قاربوا»حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه ددې معنى دا ده.که تاسو په اکمل باندې عمل نشی کولې.يا داعتدال په طريقه پوره نه چليږئ.نوکم ازکم دا کوشش کوئ.چه هغې سره نزدې نزدې ئې.[3] علامه تيمی رحمه الله فرمائی.چه د«قاربوا»دوه معانی کيدې شی.

يوه معنى دا ده.چه «قاربوا فى العبادة ولا تباعدوا فيها فإنكم إن باعدتم فى ذلك لم تبلغوه» يعنى په عباداتوکښې ميانه روی اختيارکړئ.په دې کښې مبالغه مکوئ. ځکه که مبالغه مو اوکړه. نومنزل ته به اونه رسئ: اوپه صحيح طريقه به ئې پوره نکړې شئ.

دويمه معنى د «قاربوا» د«ساعدوا» يعنى معاونت او مدد کول.ونيلی شی.«قاربت فلانًا أى ساعدته» يعنى ما دهغه سره مدد اوکړو.اوس مطلب دا شو .چه د دين په معاملاتوکښې د يوبل سره مدد کوئ.په دې کښې اولنئ معنى ددې مقام سره زياته مناسب ده.[4]

---

[1] مسندأحمد(١٩٩/٣) من أحاديث سيدنا أنس بن مالك رضي الله عنه۔

[2] فتح البارى(٩٥/١)_

[3] فتح البارى(٩٥/١) وعمدة القارى(٢٣٧/١)_

[4] شرح الكرمانى(١٦٢/١)_

**قوله**: وَأَبْشِرُوا: زيري قبول کړئ اوخوشحاله شئ.

دا لفظ ياخو دباب افعال نه د امر صيغه ده.اوهمزه قطعي دې.اويا دا د باب نصر نه د امر صيغه ده.په دې صورت کښې به ددې همزه وصلى وى.قطعى به نه وى.معنى په دواړو صورتو کښې يوه ده.(۱) خواولنۍ معنى زياته راجحه ده.ځکه چه كثير الاستعمال هم دا ده.

د حديث ددې جملې مطلب دا دې.چه «أبشروا بالثواب على العمل الدائم وإن قل» يعنى تاسو ته زيرې دې.په دوام سره عبادت کولوکښې ثواب زيات دې. اګرچه عمل کم وى.لکه چه نبى ﷺ هغه کس ته زيرې ورکوى.څوك چه په اکمل باندې د عمل کولونه عاجز وى.اګرچه هغه عاجز کيدل قصداً نه وى.نوبيا به هم ده ته پوره اجر ملاويږى.دده په ثواب کښې به څه کمې نشى کيدې.(۲)

**قوله**: وَاسْتَعِينُوا بِالْغَدْوَةِ وَالرَّوْحَةِ وَشَيْءٍ مِنْ الدُّلْجَةِ: اودصبا اوماښام او د شپې په آخرى حصه کښې په خپل طاعت،عبادت او نوورکارونوکښې مدد حاصل کړئ.

«غدوة» دغين په فتحه د «غدو» نه اسم مره ،دې.ددې معنى د ورځې په اوله حصه کښې تلو ته وائى.او دغين په ضمې سره «ما بين صلاة الغداة إلى طلوع الشمس» وخت ته ونيلې شى.(۳)

«روحة» دا د «رواح» نه اسم مره ،دې.د زوال نه پس تلو ته وائى.(۴)

«دلجة» بضم الدال وفتحها وإسكان اللام ،،دا د «إدلاج» باب افعال نه هم اسم دې.اود «ادلاج» باب افتعال نه هم اسم دې.که د «أدلج» باب افعال نه وى. نوددې معنى د شپې په اوله حصه کښې تلل دى.اوکه د «أدلج» باب أفتعال نه وى.نود دې معنى د شپې په آخرى حصه کښې تلل دى.اوبعضې حضراتو ونيلى دى.چه «دلجة» په ټوله شپه کښې تلو ته وائى.(۵)

شيخ الاسلام علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله فرمائى.په دې جملوباندې انسان په پابندۍ سره عمل اوکړو.نو ولى ترې جوړيدې شى.خبره ئې خلاصه کړې ده.چه دا درې وختونه بس دى.
مولانا ګنګوهى رحمه الله فرمائى.د ديرشو کالوتجربې نه پس معلومه شوې ده. چه کوم څيز خومره ګران وى.د ديربه آسانتيا سره حاصليدې شى.اوبيا ئې دا حديث واورول، «واستعينوا بالغدوة والروحة وشيء من الدلجة» څوك چه غوارى.نوددې تجربه دې اوکړى.بيا دې اوګورى.چه

---

(۱) شرح کرمانى(۱۶۲\۱)_
(۲) فتح البارى(۹۵\۱)_
(۳) النهاية (۳۴۶\۳)_
(۴) مختار الصحاح (ص،۲۶۲)_
(۵) النهاية فى غريب الحديث والأثر(۱۲۹\۲) وشرح الكرمانى(۱۶۲\۱)_

څه کيفيت دې (١)

علامه شبير احمد عثماني رحمه الله فرمائي چه زړه د ټولو اندامونو بادشاه دې.که دې مضبوط وى نوټول اندامونه به په خپلو کارونوکښې چست او چابك وى اوکه دا بادشاه کمزورې شي نوباقي اندامونه څه هم نشي کولې.هرکارد زړه په طاقت سره کيږى اودزړه ته طاقت په مانځه او د الله تعالى په ذکرسره ملاويږى.د نبى ﷺ په دې ارشاد کښې د مونځونو وختونو ته اشاره ده نبى ﷺ د تقويت قلب دا عمل په مختلفو وختونو باندې تقسيم کړې دې کوم چه په ټوله شپه او ورځ کښې د فرح او نشاط وختونه دى دټولونه اول د صبا وخت دې.د خوشحالئ په وختونوکښې د ټولونه زيات هم دا وخت دې.د شپې په آرام کولو سره د ټولې ورځې ستومانتيا او ستړې والې ختم شى اوانسان په هرحيثيت سره تروتازه شى.دويم وخت «دوحة» د زوال نه پس دې.په قيلولة کولو سره په دې کښې هم د ستړى والى بوج کم شى.دريم وخت د دلجة دې.کوم چه د خوشحالئ په ټولو وختونوکښې خپل خصوصيت لرى.په اولنى وخت کښې د صبا مونځ په دويم وخت کښې د ماسپخين اومازيگرمونځ او په دريم وخت کښې د ماښام او ماخستن مونځ دې.نبى ﷺ دا د استعانت طريقه په مقصد کښې دکاميابئ دپاره خودلې ده (٢)

علامه کرمانى رحمه الله وغيره ليکلى دى.چه نبى ﷺ لکه چه يومسافر ته خطاب کولو.چه هغه دخپل نشاط(خوشحالئ) د وختونو خيال دې ساتى.او سفر دې کوى.دصبا په وخت کښې انسان تازه وى.اودهغه وخت هم يخ وى.دغه شان د زوال نه پس هم گرمى کمه شى.اود تازگئ وخت په مزه مزه زياتيرى.اودې سره سره تازگى هم زياتيرى.دغه شان د شپې په آخرى حصه کښې تازگى وى.ځکه چه انسان تر دهغه وخته پورې څه خوب کړې وى.نفس ته دهغه حق ملاؤ شوې وى. نولکه چه رسول الله ﷺ انسان د ژوند مسافرگرځوى.اودا ورته ښائى چه لکه څنگه د دنيا مسافرد خپل نشاط د وختونو خيال ساتى.اوپه هغې کښې سفر کوى.دغه شان اې د دين مسافروتاسوهم د نشاط د وختونو خيال ساتئ.اوخپل دينى اعمال هم په دې وختونو کښې کوئ.(٣) **والله سبحانه وتعالى أعلم وعلمه أتم وأحكم.**

**يواشکال اودهغې جواب** په دې حديث باندې يواشکال دا کيدې شى.چه دا حديث د عمربن على مقدمى په واسطه سره نقل شوې دې.اود ده په باره کښې د ائمه اورجال حديث اتفاق دې.چه سخت مدلس دې (٤)اوبيا دلته دې عنعنه کوى.نوددې تقاضا دا ده.چه دا روايت دې صحيح نه وى.

---

(١) فضل البارى(١/٤٦٣)_

(٢) فضل البارى(١/٤٦٤)_

(٣) شرح کرمانى(١/١٦٢)_

(٤) ددې باب په شروع کښې مونږ دده په حالاتوکښې دده د تدليس کيفيت بيان کړې دې.فارجع إليه إن شئت)_

د دې جواب دا دې چه اول خو چه په صحيحينوکښې ځومره مدلسين عنعنه کوی.هغه په سماع باندې محمول دی.(١)

بیا عمربن علی مقدمی په دې روایت کښې د سماع تصریح هم کړې ده. کومه چه ابن حبان روایت کړې ده.(٢) هم دا وجه ده چه حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی «قد احتمل أهل الصحاح تدليسه ورضوابه»(٣) دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی «ولم أرله في الصحيح إلا ماتوبع عليه»(٤).

**يوبل اشكال اودهغې جواب** دلته يواشكال دا هم شوې دې چه دا روايت د «معن بن محمد عن سعيد المقبرى» په سند سره مروى دې.اوسعيد په آخرى عمرکښې مختلط شوې وو.

علامه عينى رحمه الله فرمائى«سماع معن عن سعيد كان قبل إختلاطه ولولم يصح ذلك عند البخارى لما أودعه فى كتابه الذى سماه صحيحاً»(٥)

خو وړاندې مونږ د سعيدمقبرى په حالاتوکښې تفصيلاً او تحقيقاً بيان کړی دی چه سعيدمقبرى معمر او کبيرالسن ضرور ګرځيدلې وو.خومختلط شوې نه وو اوکه اختلاط راغلې هم وو.نودتغير نه پس د دوی نه چا روايت نه دې کړې .والله أعلم.

# ٢٩ = بَابُ الصَّلَاةُ مِنَ الْإِيمَانِ وَقَوْلُ اللّٰهِ تَعَالَى: وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ﴾(٦) يَعْنِي صَلَاتَكُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ

لفظ د «باب» مرفوع دې.اودمبتدا محذوف «هذا» دپاره خبردې.اوبه لفظ د باب باندې تنوين وئيل هم جائز دی اوبغيرتنوين نه مضاف ګرځول هم صحيح دی.

«الصلاة»مرفوع دې.ځکه چه دا مبتدا ده.«من الإيمان» د دې دپاره خبر دې که باب مضاف اوګنړلې شی.نو هم به «الصلاة» مرفوع وئيلی شی.ځکه چه د ..باب.. مضاف اليه صرف لفظ د ،،الصلاة،، نه دې.بلکه د ،،الصلاة من الإيمان،، پوره جمله ددې دپاره مضاف اليه ده.

بيا د «قول الله تعالى» عطف په «الصلاة» باندې دې.ځکه مرفوع دې.خودا په هغه صورت کښې دې.چه په «باب» باندې تنوين اووئيلی شی.اودا مضاف اونشی ګرځولې.اود تنوين نه

---

(١) عمدة القارى(١\٢٣٦)_

(٢) فتح البارى(١\٩٤) وعمدة القارى(١\٢٣٦)_

(٣) سير أعلام النبلاء(٨\٥١٤)_

(٤) هدى السارى(٤٣١)_

(٥) عمدة القارى(١\٢٣٦)_

(٦) البقرة:١٤٣

بغير ونيلو په صورت كښې به «قول الله..» د مضاف اليه په كيدو باندې مجرور وى.[1]

**د ترجمة الباب دماقبل بابونو سره ربط:** د ذكرشوى باب دماقبل سره ربط په دې طريقه دې چه وړاندې د استعانت بالاوقات ذكر راغلې وو.چه په دې درې وختونوسره په عبادت كښې مدد حاصل كړئ.اوپه دې وختونوكښې دټولونه افضل بدنى عبادت چه كوم ادا كيږى پنځه مونځونه دى.دكومو په ادا كولوكښې په دې وختونوسره مدد حاصليدې شى. نوځكه په دواړو بابونوكښې مناسبت او ربط بيخى ښكاره دې.[2]

د دې نه علاوه داسې هم وئيلى شى.چه دماقبل باب «باب الدين يسر» ضمناً او استطراداً راوړې وو.اوامام بخارى رحمه الله د شروع نه شعب ايمانيه بيانوى. نو د دې ضمنى باب نه پس دوباره شعب ايمانيه بيانوى.نوپه «باب الصلاة من الإيمان» او«صام رمضان إحتساباً من الإيمان» كښې مناسب لتول پكاردى.دا مناسبت بيخى ښكاره دې.چه دواړه دعظيم بدنى عباداتو ځنى دى.[3]

**دترجمة الباب مقصد:** د ترجمة الباب مقصد وړاندې ضمناً بيان شو.چه په اصل كښې امام بخارى رحمه الله شعب ايمانيه شمارى.چونكه ددې نه وړاندې باب ئې تبعاً د خاص مصلحت دپاره ذكركړې وو.نواوس بيا شعب ايمانيه طرف ته رجوع كوى.اودا خبره چه مونځ دايمان شعبه ده.بيخى ښكاره خبره ده.بلكه مونځ ددې اهم ترينه شعبه ده.دتوحيد او رسالت داقرار نه پس د مونځ درجه ده.امام بخارى رحمه الله چه لكه څنګه د نورو تراجمو په ذريعه تنبيه وركړې وه.چه هغه دايمان په شعبو كښې دى.دغه شان دلته هم د «صلاة» په باره كښې هم تنبيه وركوى.[4]

دا هم ممكن ده.چه دامام بخارى رحمه الله ددې ترجمې د انعقاد نه په امام ابوحنيفه رحمه الله باندې رد كول مقصود وى.ځكه چه هغوى اعمال په ايمان كښې داخل نه ګڼرى.نوامام بخارى رحمه الله دلته «الصلاة من الإيمان» اووئيل.اودا ئې ثابته كړه.چه مونځ د ايمان يوجزء دې.ځكه چه په دې كښې «من» د تبعيض دپاره دې. اوددې نه دا هم معلومه شوه.چه ايمان مركب دې.اعمال په دې كښې داخل دى.بيا چونكه د مونځ ادا كولوكيفيات دهركس په باره كښې مختلف وى.نو ځكه په دې سره په ايمان كښې د كمى او زيادت ثبوت هم اوشو.

وړاندې ئې د قرآن كريم آيت ذكركړې دې.چه﴿وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ﴾ په دې باندې د ټولو محدثينو رحمهم الله اتفاق دې.چه د ايمان نه مراد صلاة دې. او شان نزول هم په دې باندې دلالت

---

[1]) عمدة القارى(۲۳۹\۱)_

[2]) المصدر السابق)_

[3]) فتح البارى(۹۵\۱) كتاب الإيمان باب الدين يسر، وعمدة القارى(۲۳۹\۱)_

[4]) عمدة القارى(۲۳۹\۱)_

كوي.(زريه مونږ شان نزول ذكر كړو.) نو په مونځ باندې دايمان اطلاق د«اطلاق الكل على الجزء» د قبيل نه دي.( )

خو مونږ په جواب كښې وئيلى شو چه په «الصلاة من الايمان» كښې من تبعيضيه نه دې.بلكه ابتدائيه دي.اومطلب دا دې.چه مونځ دايمان د متعلقاتو او ثمراتو څخه دي.

اوترڅو پورې چه په آيت كښې په مانځه باندې دايمان د اطلاق تعلق دې. نو ددې په باره كښې وئيلى شي.چه د «اطلاق الكل على الجزء» د قبيلې څخه نه دې.د «اطلاق الأصل على الفرع» قبيلې څخه دې.

بيا وړاندې مونږ د كتاب الايمان په مباحثوكښې په تفصيل سره هغه ټولې خبرې بيان كړې دي.په كوموكښې چه داهل حق اهل سنت والجماعت اختلاف دې. حقيقت دا دې.چه د اهل حق په مينځ كښې كوم اختلاف دې.چه هغه د لفظى اختلاف سره مشابه دې.څكه چه جمهوردې وراړه اماماں چه دا فرمائى.چه اعمال په ايمان كښې داخل دى.هغوى ددې سره دا هم وائى.چه د اعمالو تارك د ايمان نه خاجېږى نه،البته د ترك اعمالو په وجه هغه مستحق د مواخذة دي.حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله چه دا فرمائى.چه اعمال په ايمان كښې داخل نه دى.هغوى هم دا فرمائى.چه تارك د اعمالو مستحق د مواخذة دي.اوكه دده په تقديركښې وى.ده ته به عذاب ملاوېږى.

البته دلته دا وئيلى شى.چه امام بخارى رحمه الله دلته د مرجئو ترديد كوى. څوك چه د اعمالو داهميت نه بيخى منكر دى.والله أعلم.

**دايت كريمه شان نزول:** آيت كريمه (وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيعَ اِيْمَانَكُمْ) دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه دا مروى دې.چه كعبه قبله كړې شوه.اوبيت المقدس ته به مونځ كولې شو ددې نه وړاندې څه كسان وفات شوى وو.په كوموكښې چه ابوامامه اسعدبن زراره،اوبراء بن معرور رضي الله عنهما وو.() كله چه كعبه دوباره قبله اوګرځولې شوه.نوددې حضراتو خپلوان د نبى عليه السلام په خدمت كښې حاضرشول. اوعرض ئې اوكړو.

---

[1]) تقريربخارى (۱۱/۱٤۲)_

[2]) وفى العمدة (۱۱/۲٤۰) منهم سعدبن زراره،وأبوامامة أحد بنى النجار والبراء بن معرور أحد بنى سلمة ففيه تحريفان :الأول: أنه أسعد بن زراره،لا سعد بن زراره،فإنه هوالذى مات قبل تحويل القبلة من بيت المقدس إلى الكعبة،والتحريف الثانى:أنه زاد ههنا واو العطف قبل أبوامامة ويعلم من ذكل أن الذين ماتوا هم ثلاثةرجال. والحق أنه اثنان .ابوامامة كنيته اسعد بن زرارة .فلذلك أتى بقوله ((أحد بنى النجار)) توضيحاً فالصواب.منهم أسعد بن زرارة وأمامامة أحد بنى النجار والبراء بن معرور أحد بنى سلمة».

قال الحافظ فى الفتح (۱۱/۹۸) والذين ماتوا بعد فرض الصلاة وقبل تحويل القبلة من المسلمين عشرة أنفس فبمكة .. وبأرض الحبشة .. ومن الأنصار بالمدينة : البراء بن معرور- بمهملات- وأسعد بن زرارة و هو الذى ذكره أصحاب السير أنه توفى فى شوال على رأس تسعة أشهر (بقيه حاشيه په راروان مخ....

چه «يارسول الله توفي إخواننا وهم يصلون إلى القبلة الأولى وقد صرفك الله تعالى إلى قبلة إبراهيم عليه السلام فكيف بإخواننا في ذلك» يعني يارسول الله زمونږ ډيرو رونړو اولنۍ قبلې بيت المقدس ته مونځونه کړي وو.اوس الله تعالى تاسو ته د حضرت ابراهيم عليه السلام قبلې ته د مخ کولوحکم اوکړو.نو زمونږ ددغه ورونړو د مونځونو به څه حکم وی. يا دهغوی په ثواب کښې خوبه څه کمې نه کيږی.نوپه دې باندې دا آيت نازل شو .چه کله تاسو بيت المقدس طرف ته مونځونه صرف دالله تعالى د رضا دپاره اود ايمان په تقاضا باندې دعمل کولودپاره کړی دی.نوستاسوهغه مونځونو په اجراوثواب کښې به څه کمې نشی راوستې.([1])

**يواشکال اودهغې جواب** دلته يواشکال دې.هغه دا چه آخر صحابه کراموﷺ ته د تحويل قبلې په وجه په مونځوکښې اشکال ولې پيښ شوې وو.اود تردد اصلی بنياد څه وو.

دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه منقول دی.چه په اسلام کښې د ټولونه اولنۍ نسخ د قبلې شوې وه.([2])

صحابه کرام رضي الله عنهم د نسخې نه واقف نه وو.د نسخې په اول ځل پيښ شوې وو. نو يکاړده چه هغوی ته اشکال پيښ شوې وو.چه دکومو نوروحضراتو په ژوند کښې دا حکم نه وو راغلې.نودهغوی به څه حال وی؟

خوصحيح دا ده.چه د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا ارشاد دهغوی دخپل علم مطابق وو.ځکه چه دنسخې صورت ددې نه وړاندې هم پيښ شوې وو.([3])

اوس اشکال نور هم قوی کيږی.چه هرکله ددې نه وړاندې هم د نسخې صورت پيښ شوې وو.اوپه دې کښې څه قسم تردد نه وو.نوپه دې کښې دا صورت ولې راپيښ شو؟

---

.....د تيرمخ بقيه) من الهجرة ومسجد رسول الله ﷺ يومئذ يبنى وذلک قبل بدر كما في الطبقات الكبرى لابن سعد (۶۱۱\۳) والإصابة في تمييز الصحابة (۳۵\۱) والإستيعاب بهامش الإصابة (۸۳\۱) وقدنقل فيه ما نقلناه آنفاً من أنه توفى فى شوال على رأس تسعة أشهر .. إلا أن فى الإستيعاب .. على رأس ستة أشهر..فليحرر)....

وأما سعد بن زرارة فهو أخو أسعد بن زرارة المذكور فقد ذكره أبوحاتم والباوردي وابن شاهين في الصحابة كما في الإصابة (۲۷\۲) ولم يذكر الحافظ ابن حجر رحمه الله تاريخ وفاته وإنه لو كان صحاحبيا فهو غير مشهور حتى قالابن عبدالبر فى الإستيعاب (۴۲\۲) وأخشى أن لا يكون أدرک الإسلام لأن أكثرهم لم يذكره)_

[1]) عمدة القارى(۲۴۰\۱) وجامع البيان فى تفسير القرآن للطبرى(۱۱\۲) والدرالمنثور(۱۴۶\۱) وتفسير عثمانى(ص.۲۸)_

[2]) قال على بن طلحة عن ابن عباس رضي الله عنهما كان أول ما نسخ من القرآن القبلة:تفسيرالقرآن العظيم لابن كثير(۱۹۲\۱) وأخرجه البيهقى فى سننه الكبرى (۱۲\۱) كتاب الصلاة باب إستبيان الخطأ بعد الأجتهاد)_

[3]) قال الشيخ هبة الله بن سلامة فى رسالته الناسخ والمنسوخ.إعلم ان اول النسخ فى الشريعة أمر الصلاة ثم أمر القبلة ثم الصيام الأول ثم الإعراض عن المشركين .. إنظرروائع البيان فى تفسير آيات الأحكام للشيخ محمد على الصابونى .(۱۰۴\۱)_

**دحضرت شيخ الهند رحمه الله جواب** حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائى چه داحاديثو په تولو ذخيره كښې داسې د دوو موقعو ذكر دې يوخودا دتحويل قبلې موقع وه اوبله د حرمت خمر په موقع باندې دا سوال پيدا شوې وو صحابو رضي الله عنهم عرض اوكړو يا رسول الله ﷺ بعضې كسان په جنګ بدر اوجنګ احد كښې شهيدان شوى وو دهغوى په خيټوكښې شراب موجود وو اګرچه شراب روسته حرام شوى وو خوبيا هم دا سوال شوې وو دهغې په جواب كښې دا آيت نازل شو ﴿لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا إِذَا مَا اتَّقَوْا .... الخ﴾ (١)

حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائى چه دا دواړه څيزونه داسې ووچه ددې نسخ دترقب اوانتظار نه پس وه مسلمانانوته اندازه وه چه اوس صبا يا مابنام حكم راتلونكې دې نو د خمر په باره كښې د ټولو نه اول دا آيت نازل شوې وو ﴿يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ﴾ (٢) كله چه حضرت عمرفاروق رضي الله عنه دا آيت واوريدلو نو وې وئيل «اللهم بين لنا فى الخمر بيانا شافيا» ددې نه پس دا آيت نازل شو. ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنتُمْ سُكَارَىٰ﴾ (٣) ددې نه پس حضرت عمر رضي الله عنه هم هغه خبره اوكړه.چه «اللهم بين لنا فى الخمر بيانا شافيا» ددې نه دا معلومه شوه.چه خلقو ته انتظار وو.چه حرمت به خامخا راځى.اود حرمت آخرى حكم راتلونكې دې.نوبيا په دريم ځل دا آيت نازل شو. ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ۞ إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَن يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَن ذِكْرِ اللَّهِ وَعَنِ الصَّلَاةِ ۖ فَهَلْ أَنتُم مُّنتَهُونَ ۞﴾ (٤) كله چه دا آيت نازل شو.نو هله حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل.«انتهينا انتهينا» (٥) اوس انتظار ختم شو.

بلكه په شعب الايمان دبيهقى كښې يو روايت كښې يخپله د نبى ﷺ نه دې خبرې طرف ته اشاره منقول ده.چه شراب به روسته حرام شى.حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائى

---

(١) سورة المائدة ٩٣\ والحديث أخرجه النسائى فى سننه الكبرى (٦\٣٣٧) كتاب التفسير.سورة المائدة باب قوله تعالى ﴿ إنما الخمر والميسر... ﴾ طولاً عن ابن عباس رضي الله عنهما وفيه فقا ناس هى رجس فى بطن فلان قتل يوم بدر وفلان قتل يوم أحد فأنزالله عزوجل ﴿ليس على الذين آمنوا وعملوا الصالحات جناح فيما طعموا إذا ما إتقوا وآمنو وعملو الصالحات ﴾) وانظر الدرالمنثور (٢\٣١٥)_

(٢) البقرة:٢١٩)_

(٣) النساء:٤٣)_

(٤) المائدة:٩٠. ٩١)_

(٥) سنن النسائى (٢\٣٢٢) كتاب الأشربة باب تحريم الخمر وانظر السنن لابى داؤد كتاب الأشربة باب فى تحريم الخمر رقم ٣٦٧٠ والجامع للإمام الترمذى كتاب التفسير باب ومن سورة المائدة رقم ٤٩و ٣٠) والدرالمنثور فى التفسير المائدة (١\٢٥٢)_

«فقام رسول الله ﷺ فقال: یاأهل المدینة إن الله یعرض علی الخمر تعریضاً لا أدری لعله سینزل فیها أمر...»[۱]
دغه شان په تحویل قبله کښې هم شوی وو دلته هم قرائن موجود وو.ددې وجې هر کس هر وخت کښې په انتظار وو چه دا دې د تحویل قبلې حکم راغلو .امام طبری رحمه الله روایت کړې دې «عن ابن عباس رضي الله عنهما أن رسول الله ﷺ لما هاجر إلی المدینة وکان أکثر أهلها الیهود أمره الله عزوجل أن یستقبل بیت المقدس ففرحت الیهود فاستقبلها رسول الله ﷺ ستة عشر شهراً فکان رسول الله ﷺ یحب قبلة إبراهیم علیه السلام فکان یدعو وینظر إلی السماء فأنزل الله عزوجل: ﴿قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ﴾ الآیة»[۲]
په دې پوره واقعه په اختصارسره داسې پوهه شی چه اول دمسلمانانو قبله خانه کعبه وه. ددې نه پس د امتحان دپاره څو ورځې (شپاړس یا اوولس میاشتې) بیت المقدس قبله اوګرځولې شوه.اوبنکاره ده.چه امتحان په هغه څیزکښې وی.کوم چه په نفس باندې ګران وی.الله تعالی فرمائی. ﴿وَإِنْ كَانَتْ لَكَبِيرَةً إِلَّا عَلَى الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ﴾[۳] یعنی دا خبره ګرانه ده.مګر په هغه کسانو نه ده.چاته چه الله تعالی هدایت کړې وی.په عامو مسلمانانو باندې خودا خبره ځکه ګرانه شوه.چه په هغوی کښې زیات قریش وو.اودقریشو د کعبې په فضیلت باندې اعتماد وو. نو هرکله چه دهغې په خلاف حکم ورته اوشونو ګران وو ورته،خوبه زړه کښې ئې خیال پاتې وو.اوخواصو ته ځکه ګران وو.چه دا حکم د ملت ابراهیمی خلاف دې اودوی په ملت ابراهیمی مامور وو.الله تعالی فرمائیلی دی. ﴿مِلَّةَ إِبْرٰهِيمَ حَنِيفًا﴾[۴] اواخص الخواص چه چا ذوق سلیم لرلو.اوچاته چه د مراتبوپه پیژندګلو کښې امتیاز کولوصلاحیت ورکړې شوې وو.هغوی دا ترقی معکوس ګنړله. خو دهغوی نه پورته چاته چه الله تعالی د حکمتونو اواسرارو ته د رسیدو علم ورکړې وو. او چا چه حقیقت بیت المقدس او حقیقت خانه کعبې ته دخپل فراست په نور کښې کتل.کوم چه الله تعالی دوی ته ورکړې وو.هغوی دا جدا جدا ګنړل.هغوی ته ددې علم وو.چه نبی ﷺ دټولو پیغمبرانوعلیهم السلام جامع دې.او ددوی رسالت ټول جهان او ټولو امتونو ته شامل دې.نوځکه په حکمت الهی کښې دا ضروری ده.چه بیت المقدس ته استقبال هم د څو ورځو دپاره ضرور اوکړې شی.ددې وجې هغوی څه پریشانه نه وو.کله چه امتحان اوشو.اوداللہ تعالی حکمت پوره شو. نوحکم اوشو چه اوس کعبې طرف ته مخ کوئ.نوچونکه د وړاندې نه انتظار وو. اوخلقوګنړل.چه قبله به بدلیږی.اود نبی کریم ﷺ آرزو هم دا وه.کومه چه پوره شوه.اوداللہ تعالی د حکمت تقاضا هم وه.ځکه چه څنګه ورته حکم ملاوْ شو. نو سمدستی ئې تعمیل اوکړو.
خلاصه دا چه د بیت الله قبله ګرځولو ګڼړ وجوهات دی.

---

[۱]) شعب الإیمان باب (۵\۴) رقم ۵۵۶۹) باب فی المطاعم والمشارب)_
[۲]) جامع البیان للطبری(۲\۱۳)_
[۳]) البقرة:۱۴۳)_
[۴]) سورة الحج:۷۸)

اولنۍ وجه دا چه ددې خبرې نه قطع نظر چه مکه معظمه د نبی ﷺ وطن وو. اود وطن سره اود وطن د هرڅيز سره طبعاً محبت وی.نبی ﷺ دټولو پیغمبرانوعلیهم السلام سردار جوړ کړې شوې وو.اوددوی دا سرداری په عالم بالاږ کښې مقرر شوې وه.د دوی ددې شان په لحاظ سره قبله هم هغه پکار وه.چه په هغې کښې د اولیت او سیادت شان وی.په قرآن کرآن کریم کښې د بیت الله د واولیت په باره کښې ارشاد دې ﴿إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ مُبَارَكًا وَهُدًى لِّلْعَالَمِينَ﴾[1]

۲ دویمه وجه دا ده.چه بیت الله ته (د جغرافې په لحاظ سره) مرکزیت حاصل دې. په بعضې روایاتوکښې راغلی دی.چه بیت الله د زمکې په نوم باندې قائم دې[2] چونکه بیت الله د زمکې په وسط باندې واقع دې.اوهرڅیزخپل مرکز طرف ته بالطبع مائل وی ددې وجې بیت الله ته د نبی ﷺ د زړه رجحان د طبعیت عین مطابق او د عقل سلیم عین موافق دې.
بیا یواځې دا نه چه بیت الله ته د اولیت او مرکزیت حاصل دې.بلکه د مبدا عالم کیدو سره سره دا مداردعالم هم دې.په قرآ کریم کښې دې ته ﴿قِيَامًا لِّلنَّاسِ﴾[3]
ونیلی شوی دی.یعنی بیت الله د دنیا دپاره د قیام او ثبات وه ده.د نبی ﷺ ذات په ټول جهان کښې د اولیت او دکمالاتو د مرکزیت شان لری.دغه شان د نبی ﷺ وجود د دنیا د بقاء دپاره سامان هم دې.اود مرکز د مرکز سره مناسبت ښکاره دې.بیت الله د ظاهر مرکز دې.اونبی ﷺ د باطن مرکز دې.

۳ دریمه وجه دا ده.چه ددوی ملت ابراهیمی دې.اودحضرت ابراهیم ؑ قبله خانه کعبه وه.دملت په اعتبارسره هم مناسبت دا وو.چه بیت الله د نبی ﷺ قبله وی.

۴ څلورمه وجه دا ده.چه د بیت الله په قبله جوړولوکښې د عربو تالیف وو.ځکه چه داهل عرب قبله بیت الله وه.او د نبی ﷺ د ټولونه وړاندې دعوت رسول هم دوی ته وو.
صحابه کرامو ﷺ ته دا ټوله نقشه د سترګو وړاندې وه.اوهغوی ته دا خبره ښه معلومه وه.چه دڅو مصلحتونو په وجه عارضی طور بیت المقدس ته د مخ کولوحکم شوې دې.ګنی اصلی قبله خو خانه کعبه ده.هغسې هم د ﴿فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا﴾[4] نه پس پوره یقین پیدا شو. که نن نه وی صبا ته به مخامخ بیت الله قبله ګرځی
هم دا وجه وه.چه کله بیت الله ته د استقبال حکم راغلو اودا عارضی قبله منسوخ کړې شوه. نواشکال پیښ شو.چه زمونږ دهغه مونځونو به څه حکم وی کوم چه عارضی قبلې طرف ته ادا شوی دی.هغه به د مفضول قبلې طرف ته د ادا کولو په وجه مفضول وی؟بیا چه کوم کسان ژوندی دی.نوهغه خو چه استقبال دقبلې اوکړی.نوتدارك او تلافی کولې شی.خوچه

---

[1] سورة آل عمران: ۹۶)_
[2] قال الرازی فی التفسیر الکبیر (۱۰۶\٤) قالو:الکعبة سرة الأرض ووسطها)_
[3] قال الله تعالی ( جعل الله الکعبة البیت الحرام قیاماً للناس .. المائدة (۹۷)_
[4] البقرة: ١٤٤)

كوم كسان وفات شوي دي دهغوي به څه انجام وي؟نوآيت نازل شو چه الله تعالى دايمان ضائع كونكې نه دې.

غرض دا چه د نسخې په وجه اشكال نه وو راغلې بلكه چونكه د ناسخ ترقب اوانتظار وو او دا خبره هغوي ته معلومه وه چه بيت المقدس عارضي اومفضوله قبله ده.ددې وجې دا معاملې نوعيت هم دا وو.چه دهغې نه اشكال پيدا شو.والله أعلم.(١)

**قوله يَعْنِي صَلَاتَكُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ:** دلته امام بخاري رحمه الله د «ايمانكم» تفسير په «صلاتكم» سره اوكړو او ورسره ئې د «عندالبيت» اضافه هم اوكړه.ددې وجې دلته لوې اشكال پيدا شوې دې.خكه چه د رواياتو نه معلوميږي.چه نبي ﷺ كله مديني منورې ته هجرت اوكړو نو شپاړس يا اوولس مياشتې ئې بيت المقدس ته استقبال كړې وو (٢) بيا ئې خانه كعبې ته استقبال اوكړو.په دغه دوران كښې څه صحابه كرام رضي الله عنهم وفات شوي وو.په دې باره كښې بعضې يهودو په مسلمانانو باندې اعتراض اوكړو اود بعضې مسلمانانو په زړونوكښې شبه پيدا شوه.چه داستقبال قبلې نه وړاندې زمونږ كوم مسلمانان ورنړه وفات شوي دي.دهغوي د مونځونو به څه حال وي.يعنى بيت المقدس ته چه كوم مونځونه شوي وو په هغوي كښې هغوي ته تردد پيښ شو.نوالله تعالى د تسلى دپاره دا آيت نازل كړو ﴿وَمَا كَانَ اللهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ﴾ چه حاصل ئې دا دې چه په مدينه منوره كښې بيت المقدس ته كوم مونځونه شوي دي.الله تعالى به هغه ضائع نكړي.

په دې صورت كښې په ظاهره دامام بخاري رحمه الله تفسير صحيح نه معلوميږي.خكه چه كله: بيت لفظ مطلقاً اووئيلى شي.نو مراد ترې بيت الله يعنى خانه كعبه وي.په قرآن پاك كښې دي.﴿وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ إِلَّا مُكَاءً وَتَصْدِيَةً﴾(٣)

خوچه بيت الله مراد واخستې شي.نو په دې صورت كښې به دترجمة الباب حاصل دا وي.چه تاسو كوم مونځونه خانه كعبې ته كړي دي.هغه به ضائع نشي.په دې صورت كښې په سوال او جواب كښې څه مناسبت نه پاتې كيږي.

بيا دا چه دا تفسيردهغه روايت نه هم خلاف دې.په كوم كښې چه ددې تفسيرپه «صلاتكم إلى بيت المقدس» سره شوې دې.(٤)

---

(١) درس بخاري (١/٢٥١، ٢٥٣) وإيضاح البخاري(٤/٣٥٦، ٣٦٢)_

(٢) كما في حديث الباب_

(٣) سورة الأنفال:٣٥)_

(٤) كما أخرج الطيالسي عن طريق شريك، وجريج عن أبي إسحاق عن البراء قال مات قوم كانوا يصلون نحو بيت المقدس فأنزل الله عزوجل ﴿ وما كان الله ليضيع إيمانكم﴾ أي صلاتكم إلى بيت المقدس (مسند أبي داود الطيالسي ص.٩٨ رقم ٧٢٢ وانظرالسنن الكبرى للنسائي (٦/٢٩١) كتاب التفسير باب قوله تعالى:﴿ قد نرى تقلب وجهك في السماء فلنولينك قبلة ترضاها﴾ رقم ١١٠٠٣)_

**ددې اشكال ځو جوابونه** ددې اشكال ځو جوابونه وركړې شوى دى.

① بعضې حضراتو دا وئيلى دى چه دلته تصحيف شوې دې په اصل كښې ((لغير البيت)) وو په كتابت كښې دغلطۍ په وجه ((عند البيت)) شوې دې.[1]
په دې تاويل سره ځو به عبارت صحيح شى خوچه تركومې پورې دتصحيف دعوه ده نوهغه بغيردليل نه ده ځكه چه دبخارى شريف په ټولونسخوكښې دا لفظ هم داسې دې[2] كه په يوه نسخه كښې هم دا لفظ وو نو مونږ به منلى وو چه په نورو نسخوكښې غلطى شوې ده.

② دويم جواب دا وركړې شوې دې چه ((عند)) د ((إلى)) په معنى دې اود ((بيت)) نه مراد ((بيت المقدس)) دې اوس دعبارت مطلب دا شو ((صلاتكم إلى بيت المقدس))[3]

③ امام نووى رحمه الله فرمائى چه دا عبارت مشكل دې ځكه ((صلاتكم إلى بيت المقدس)) وئيل پكار وو ځكه چه هم دا دامام بخارى رحمه الله مراد دې ځكه به دوى په دې كلام كښې تاويل كولې شى چه دامام بخارى رحمه الله په قول ((عندالبيت)) كښې خود بيت نه مراد بيت الله دې اود ((عندالبيت)) نه مراد دبيت الله د ګاونډ علاقه ده يعنى مكه مكرمه اومطلب دا دې چه كوم مونځونه تاسو دبيت الله په جوار كښې يعنى بيت المقدس ته ادا كړى دى الله تعالى به هغه ضائع نكړى.[4]
خوپه دې توجيه سره هم اشكال نه ختميږى ځكه چه سوال خو په مونځونو كښې دې كوم چه په مدينه منوره كښې بيت المقدس طرف ته شوى وو نوپه ((صلاة بمكة)) سره به اشكال څنګه ختم شى.

④ علامه سندهى رحمه الله فرمائى چه دا ټول اشكال ځكه راغلو چه ((عند البيت)) د ((صلاتكم)) متعلق ګرځولې شوې دې حالانكه دا د ((ليضيع)) سره متعلق دې او تقدير دكلام دا دې ((وماكان الله ليضيع صلاتكم قبل إستقبال البيت أى عند إستقبال البيت لا يبطل صلاتكم حين إستقبلتم البيت فإن إستقبال البيت خير فلا يترتب عليه فساد الأعمال السابقة والله تعالى أعلم))[5]
مطلب دا دې چه د بيت الله د استقبال دحكم نه وړاندې چه تاسو كوم مونځونه كړى دى د بيت الله داستقبال حكم راتلونه پس الله تعالى هغه مونځونه نه ضائع كوى ځكه چه استقبال بيت يو امر خير وو نودا به د سابقه اعمال خيرد ضياع دپاره څنګه سبب اوګرځى؟
خودعلامه سندهى رحمه الله دا توجيه دتكلف نه خالى نه ده اونه په دې توجيه باندې څه قرينه شته.

---

[1] نقله فى الفتح(١\٩٦)_
[2] فتح البارى(١\٩٦)_
[3] إمداد البارى(٤\٦٠٩)_
[4] شرح كرمانى(١\١٦٣)_
[5] [illegible] خارى(١\٢٨، ٢٩)_

⑤ حافظ ابن حجر رحمه الله دامام نووى رحمه الله دتوجيه سره نزدې نزدې توجيه بيان کړې ده البته هغوى ددې تقرير په بل انداز کښې کړې دې فرمائى چه دامام بخارى رحمه الله نظر په عميق او دهغوى مقاصد ډير ژور وى.

هغه دا چه لکه څنګه دامام بخارى رحمه الله د «ليضيع إيمانكم» تفسير مقصود دې دغه شان دهغوى د نظر وړاندې په يوه بله اختلافى مسئله کښې داصح قول په ګوته کول هم مقصود دى.
په دې خبره کښې اختلاف دې چه دهجرت نه وړاندې کوم طرف ته په مانځه کښې استقبال کولې شو.

① نوبعضې حضرات فرمائى چه نبى ﷺ بيت المقدس ته استقبال کړې وو.[1]

بعضې آثارهم داسې وارد دى. دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه منقول دى.«أول ما نسخ من القرآن فيما ذكرنا والله أعلم شأن القبلة تبارك وتعالى: ﴿ وَلِلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ۚ فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ ۚ ﴾ فاستقبل رسول الله فصلى نحو بيت المقدس وترك البيت العتيق فقال الله تعالى: ﴿ سَيَقُولُ السُّفَهَاءُ مِنَ النَّاسِ مَا وَلَّاهُمْ عَن قِبْلَتِهِمُ الَّتِي كَانُوا عَلَيْهَا ۚ ﴾ يعنون بيت المقدس فنسخها فصرفه الله تعالى إلى البيت العتيق فقال الله تعالى ﴿ وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۖ وَحَيْثُ مَا كُنتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ ﴾»[2]
ددې اثرنه معلومه شوه چه اول به نبى ﷺ خانه کعبې ته مخ کول اومونځ به ئې کولو، روسته بيت المقدس ته د استقبال حکم راغلوځکه چه په دې کښې دى. «فصلى نحو بيت المقدس وترك البيت العتيق» دا دې خبرې لره مستلزم ده چه اول دوى بيت الله ته مخ کولو اوبيا ئې هغه پريخوده. اوبيت المقدس ته ئې مخ کول شروع کړو.

② دويم قول دا دې چه نبى ﷺ به د هجرت نه وړاندې بيت المقدس ته استقبال کولو.[3]
بيا په دې کښې اختلاف دې چه نبى ﷺ به بيت المقدس ته مخ کولو نوبيت الله ته به ئې هم استقبال کولو. اوکه بيت الله ته به ئې استدبار کولو؟[4]
که چرته نبى ﷺ استدبار کولو. نوپه ظاهره معلوميږى چه دوى به ميزاب طرف ته شا کړې اودريدلو. ځکه چه ميزاب رحمت د شمال طرف ته دې. اوهم دې طرف ته بيت المقدس دې. اوکه دوى بيت الله ته استدبار نه کولو. نوبيا به د رکنين يمانيين مينځ کښې اودريدلو. ځکه

---

[1]) قال ابن عبدالبر رحمه الله :وقال آخرون :إنما صلى رسول الله ﷺ أول ما إفترضت عليه الصلاة إلى الكعبة ولم يزل يصلى إلى الكعبة طول مقامه بمكة ثم لما قدم المدينة صى إلى بيت المقدس ثمنية عشر شهراً (وفى الأصل ثانية عشر وهو تحريف) أ. ستة عشر شهراً ثم صرفه الله إلى الكعبة) التمهيد لما فى الموطا من المعانى والأسانيد(١٧\٤٩، ٥٠)_

[2]) المستدرک على الصحيحين للحاكم (٢\٢٦٧، ٢٦٨) كتاب التفسير والسنن الكبرى للبيهقى (٢\١٢) كتاب الصلاة باب إستبيان الخطاء بعد الإجتهاد)_

[3]) التمهيد لإبن عبدالبر(١٧\٤٩) وفتح البارى(١\٩٦)_

[4]) فتح البارى(١\٩٦)_

چه دا طرف جنوب ته واقع دې په دې صورت کښې به خانه کعبه ددوی او بيت المقدس په مينځ کښې واقع وه [1]

امام محمدبن سعد رحمه الله هم دا صورت د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړې دې [2] اوهم دا حافظ ابن حجر رحمه الله اختيارکړې دې.ځکه که اولنې صورت اومنلې شي نو حافظ رحمه الله فرمائي چه په دې صورت کښې به نسخ القبله مرتين لازميږي.ځکه چه وړاندې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اثر تيرشوې وو.چه د هجرت نه وړاندې دوی خانه کعبې ته مونځ کولو.اوبيا وړته بيت المقدس ته د مونځ کولوحکم اوشو.اودبيت الله قبله منسوخه شوه.اوبيا چه کله نبی ﷺ مدينې منورې ته هجرت اوکړو.نودوباره بيت المقدس قبله منسوخه شوه اوبيت الله قبله جوړه کړې شوه.نومعلومه شوه چه نسخ څو ځله واقع شوې ده.اوهرکله چه د نسخې دتعدد نه ځان ساتل ممکن وي.نود نسخ تکرارثابتولوته څه ضرورت نشته. [3]

هرکله چه په دې خبره باندې پوهه شوی.نواوس په دې باندې پوهه شئ چه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي.چه امام بخاری رحمه الله ((عندالبيت)) اووئيل.نودې خبرې ته ئې اشاره اوکړه.((أن الصلاة لما كانت عندالبيت كانت إلى بيت المقدس)) يعنی په مکه مکرمه کښې چه کله نبی ﷺ د کعبې په ګاونډ کښې وو په هغه وخت کښې به بيت المقدس ته مونځ کولې شو اګرچه کعبې ته استدبارپه هغه وخت کښې هم نه وو.

خوپه دې باندې بيا هم هغه اشکال واپس راځي.کوم چه دامام نووی رحمه الله په ذکرکړې توجيه باندې کيدل.چه په اصل کښې سوال اوجواب خو دهغه مونځونو په باره کښې وو.کوم چه په مدينه منوره کښې بيت المقدس طرف ته شوی وو.دمکې معظمې د مونځونوپه باره کښې نه وو.نوچه ((عندالبيت)) ئې اووئيل.ددې د دغه متعلقه شبهې سره د تعلق څه مطلب دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله ددې جواب ورکوی.((واختصر على ذلك إكتفاء بالأولية لأن صلاتهم إلى غيرجهة البيت وهم عندالبيت إذا كانت لاتضيع فأحرى أن لا تضيع إذا بعدوا عنه)) [4] يعنی امام بخاری رحمه الله چه عندالبيت اووئيل. نوپه دې سره صرف دمکې دمونځونوپه ذکر باندې اکتفا اوکړه.ځکه چه دمکې معظمې مونځونه په دې اعتبارسره چه د بيت الله په ګاونډ کښې ادا کيږي.د مدينې منورې د مونځونو نه غوره دي.نوددې ادنی په ذکرسره هغوی اکتفاء اوکړه.يعنی پکار دا وه.چه د بيت الله په جوارکښې چه اوسيږي.اودې ته مخ کړې شي.ددې په ځائې دا مقصود جوړه کړې شي.اوبل طرف ته مخ کولې شي.چه داسې اونشي.خوچونکه دالله تعالی حکم دې.چه بيت المقدس طرف ته مخ کړې شي.اومونځونه ادا کړې شي.ددې وجې د بيت الله په جوار کښې د کيدو باوجود دې په ځائې په استقبال کښې بالذات د بيت المقدس قصد

---

[1] شرح الزرقانی علی موطا الإمام المالک(۱\۳۹۷) کتاب القبلة باب ما جاء فی القبلة)_

[2] طبقات ابن سعد(۱\۲۴۳) ذکر صرف القبلة عن بيت ا لمقدس إی الکعبة والتمهيد (۱۷\۴۹)_

[3] فتح الباری(۱\۹۶)_

[4] فتح الباری(۱\۹۶)-

اوکړې شو.لکه چه د بیت الله هم خیال ساتلی شي. خو ضمنا اوتبعا د داسې مونځونو په باره کښې امام بخاري رحمه الله فرمائي چه دا مونځونه ضائع نه دی اوکله چه بیت الله سره دی طرف ته دمخ کولو په ځائې بل طرف مقصود جوړ کړې شي او مونځونه ورته ادا کولی شي.اوهغه نه ضائع کیږي. نو دکعبې نه لرې د مدینې منورې مونځونه به ولې ضائع کیږي. والله اعلم.

خلاصه دا چه امام بخاري رحمه الله «عندالبیت» اوونیل.دوو فائدو ته ئې اشاره کړې ده

①یوه فائده دا چه په ابتدائي زمانه د تحویل کښې ارجح الاقوال ته اشاره اوکړې شوه.چه: هجرت نه وړاندې په مکه معظمه کښې بیت المقدس طرف ته تحویل شوې وو.اوهغه هم په دې طریقه چه دوی به مونځ خو بیت المقدس ته کولو.خوبیت الله به ئې په مینځ کښې ساتلو.چه بیت الله ته مواجه هم فوت نشي.

②دویمه فائده دا اوشوه.چه مدینې منورې ته د راتلونه پس چه بیت المقدس ته کوم مونځونه شوی دی.په هغې په طریق اولی سره حکم ثابت دې.چه هرکله په مکه معظمه کښې اوسیږي.اوبیت الله کومه چه اصلي قبله ده.دهغې په ګاونډ کښې بیت المقدس ته شوی مونځونه نه ضائع کیږي.نود بیت الله نه لرې په مدینه منورې کښې چه کوم مونځونه بیت المقدس ته ادا شوی دی.هغه به ولې ضائع شي.

لکه چه د حافظ په نیز تقدیرد کلام دا دې.«یعنی صلاتکم التی صلیتموها عند البیت إلی بیت المقدس»[1]

دحافظ د تحقیق حاصل دا شو.چه نبی ﷺ په مکه معظمه کښې بیت المقدس ته په استقبال باندې مامور وو.خودوی د بیت الله د استقبال هم خیال ساتلو.اوس چه کله ئې مدینې منورې ته تشریف یوړلو.نو بیت الله ته د استقبال امکان باقي پاتې نشو.ځکه چه د مدینې منورې نه بیت ا لمقدس شمال طرف ته دې.اود مکه معظمه جنوب طرف ته.نوځکه به ئې هلته صرف استقبال د بیت المقدس کولو.

دحافظ رحمه الله په دې تحقیق سره داحادیثو په مینځ کښې تطبیق هم کیدې شي.اونسخ القبلة مرتین منل هم نه لازمیږي.

خودلته یواشکال دا کیږي.چه حدیث د امامت جبرئیل علیه السلام [2]کوم چه د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه مروی دې.په بعضې طرقوکښې راغلی دی.«أمنی جبرئیل عند باب البیت»[3]چه

---

[1]) المصدرالسابق)-

[2])انظرالسنن لأبی داود کتاب الصلاة باب فی المواقیت رقم ۳۹۳ و ۳۹٤ والجامع للترمذی کتاب الصلاة باب ما جاء فی مواقیت الصلاة رقم ۱٤۹ وانظر أیضاً نصب الرأیة (۲۲۱/۱و ۲۲٦) کتاب الصلاة باب المواقیت والتلخیص الحبیر (۱۷۳/۱و ۱۷٤) کتاب الصلاة باب أوقات الصلاة رقم ۲٤۲)_

[3]) قال الحافظ فی التلخیص الحبیر(۱۷۳/۱) رواه الشافعی هکذا .. وهکذا رواه البیهقی والطحاوی فی مشکل الآثار بهذا اللفظ)-

حضرت جبرئیل علیه السلام د بیت الله د دروازې سره مونځ کړې وو په دې صورت کښې صرف کعبې ته استقبال کیدې شي

ددې حدیث په رنړا کښې دا خبره فیصله کیږي چه اول کعبه قبله ګرځولې شوې وه بیا دا منسوخ کړې شوې وه اوبیت المقدس قبله جوړه کړې شوه روسته چه مدینې منورې ته لاړل نودوباره بیت الله قبله مقررکړې شوه په دې لحاظ سره دوه ځله نسخ منل لازمي دي.

ترکومې پورې چه د نسخې د تکرارتعلق دې نودا په هرځائې معیوبه خبره نه ده.دا په هغه وخت کښې معیوبه ګڼړلې شي چه څه حکمت په کښې نه وي اوکه حکمت وي نودنسخې په تکرار کښې څه عیب نشته.هم دا وجه ده چه صرف د قبلې په باره کښې نه بلکه په څو نورو مسائلو کښې هم بعضې حضرات د نسخې قائل دي.قاضي ابن العربي رحمه الله فرمائي ((نسخ الله القبلة مرتین ونکاح المتعة مرتین وتحریم الحمر الأهلیة مرتین ولا أحفظ رابعاً وهو سبحانه یمحو ما یشاء ویثبت وینسخ الله ما أراد ویبدل ولا یبدل القول لدیه))[1]

علامه زرقاني رحمه الله فرمائي ((وزاد غیره والوضوء مما مست النار)) یعنې دابن العربي رحمه الله نه علاوه نوروحضراتو په ((وضوء مما مست النار)) کښې هم تکرار د نسخې منلې دې[2]

بعضې حضراتو د ((کلام فی الصلاة)) مسئله هم په دې مسائلو کښې شمار کړې ده.په کوموکښې چه نسخ مکرر شوې ده.

البته کوم حضرات چه دتکرار نسخ فی القبله ددې قائل نه دي دهغوی د طرفه ((أمنی جبریل علیه السلام عند باب البیت)) هغه توجیه مناسب معلومیږي.کومه چه علامه شبیراحمد عثماني رحمه الله کړې ده.دوی فرمائي.زما په ذهن کښې یوه بله خبره راځي.چه په اول کښې نبي ﷺ څه خاص قبلې ته په مخ کولوباندې مامور نه وو.نه د بیت الله په استقبال اونه د بیت المقدس په استقبال.بلکه دوی ته اختیار وو.لکه څنګه چه ډیر احکام داسې دي.چه په ابتداء داسلام کښې دهغې څه تحدید او تعین نه وو.روسته تحدید او تعین اوشو.خوپه هغه وخت کښې نبي ﷺ د فطرت د تقاضې مطابق بیت الله ته مونځونه کول.چونکه قریشو د پخوا زمانې راسې د خانه کعبې احترام کولو.او د ټولو نه لویه خبره دا وه.چه پخپله دحضرت ابراهیم علیه السلام او روسته په ملت ابراهیمي کښې همیشه دپاره خانه کعبه قبله پاتې شوې ده.اوچونکه نبي ﷺ هم په ملت ابراهیم باندې وو.ددې وجې نبي ﷺ فطرتي طور دې طرف ته مائل وو.او دوی به هم دې طرف ته مونځ کولو.اوس چونکه نبي ﷺ د خپلې فطرتي تقاضې مطابق خانه کعبه قبله ګرځولې وه.او دوی هم دې طرف ته مونځ کولو.لکه چه دالله تعالی د طرف نه خاص دې طرف ته په استقبال باندې مامور نه وو نوکله چه ورته حضرت جبریل علیه السلام امامتي وکړه.نو هم دې طرف ته مونځ اوکړو.کوم طرف ته چه نبي ﷺ همیشه دپاره مونځونه

---

[1]) عارضة الأحوذي (۱۳۹\۲) أبواب الصلاة باب ما جاء في إبتداء القبلة)_

[2]) شرح الزرقاني علی الموطاء(۳۹۷\۱) کتاب القبلة باب ما جاء في القبلة)-

کول.څکه چه دالله تعالی د طرفه خو متعين قبله نه وه.د مودي راسي هم دا حال وو چه نبیﷺ به خانه کعبې ته استقبال کولو.خودالله تعالی د طرفه مامور نه وو.بلکه د فطرت دتقاضا مطابق به دا عمل کیدلو.د هجرت نه درې کاله وړاندې نبیﷺ بیت المقدس ته په استقبال باندې مامور شو.(۱) په تعین د قبله کښې هم دا د ټولو نه اولنې دالله تعالی حکم وو.نوبیا نبیﷺ هغه صورت اختیارکړلو.چه دواړو طرفونو ته به ئې استقبال کولو.لکه څنګه چه د حضرت ابن عباسؓ په روایت کښې تیرشو.اودا صورت په مکه معظمه کښې بغیر د څه تکلف نه ممکن وو.بیا چه کله نبیﷺ مدينې منورې ته تشریف یوړو.نودلته د جمعې صورت ممکن پاتې نشو.څکه چه اهل مدینه په اعتبارسره د کعبې او بیت المقدس طرفونه یو بل ته مخامخ دی.نواوس دالله تعالی په حکم باندې عمل پاتې شو.یعنی استقبال بیت المقدس،خودفطرتی د تقاضې په وجه ئې په زړه کښې شوق وو.بیت الله قبله مقرر کړې شی.نوددې نه پس تحویل د قبلې اوشو.

دالله په فضل په دې تقریر سره ټول اشکالات لرې شول.نه په دې د تکرار نسخ ضرورت پیښیږی.څکه چه ما اوونیل.چه په ابتداء کښې به نبیﷺاستقبال د کعبې کولو.نوهغه دالله تعالی حکم نه وو.بلکه د نبیﷺ فطری جذبه وه.اونه دحضرت ابن عباسؓ په حدیث «أمني جبريل عليه السلام عند باب البيت»سره څه اشکال راځی.څکه چه روایت د ابن عباسؓ کښې د نبیﷺ دهغه عمل ذکر دې. کوم چه نبیﷺ د مکې د اوسیدو په ژوند کښې نبیﷺ د استقبال بیت المقدس دحکم نه پس اختیار کړې وو.اوامام جبریل عليه السلام واقعه د دې نه څو کاله وړاندې ده.(۲)

علامه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی.چه بیت الله او بیت المقدس ته د مونځونو ادا کولو عمل د تقسیم بلاد په اصولو باندې مبنی دې.کله چه نبیﷺ مکه معظمه کښې اوسیدل. نوخانه کعبې ته ئې مخ کولو.څکه چه د مکې خلق دحضرت اسماعیل عليه السلام اولاد وو.او د هغوی قبله بیت الله وه.اوکله چه نبیﷺ مدینې منورې ته تشریف یوړلو.نو دوی بیت المقدس ته استقبال اوکړو.څکه چه په مدینه کښې اهل کتاب یهود آباد وو.اودهغوی قبله بیت المقدس وو.دا دواړه د پخوا زمانې راسې قبلې راروانې وې.مکه دحضرت اسماعيل عليه السلام قربانګاه وه.اوبیت المقدس دحضرت اسحاق عليه السلام قربانګاه وه.اودواړه مقدس ځایونه دی.بیا دتقسیم بلاد د عمل د نبیﷺ اختیاری هم کیدې شی.اوپه امر خداوندی هم کیدې.

په دې صورت کښې نه تکرارد نسخې لازمیږی.اونه داصرف اجتهادی معامله جوړیږی.(۳)

---

(۱) داستقبال قبلې حکم د الله تعالی په حکم سره شوې وو.اوکه د نبیﷺ په اجتهاد سره،ددې تفصیل وړاندې راتلونکې دې.

(۲) فضل الباری(۱\۴۷۵) و درس بخاری(۱\۲۵۴، ۲۵۶)_

(۳) فیض الباری(۱\۱۳۲، ۱۳۳)_

[٤٠] حدثنا عمرو بن خالد قال حدثنا زهير قال حدثنا أبو إسحاق عن البراء (١) أن النبي صلى الله عليه وسلم كان أول ما قدم المدينة نزل على أجداده أو قال أخواله من الأنصار وأنه صلى قبل بيت المقدس ستة عشر شهرا أو سبعة عشر شهرا وكان يعجبه أن تكون قبلته قبل البيت وأنه صلى أول صلاة صلاها صلاة العصر وصلى معه قوم فخرج رجل ممن صلى معه فمر على أهل مسجد وهم راكعون فقال أشهد بالله لقد صليت مع رسول الله صلى الله عليه وسلم قبل مكة فداروا كما هم قبل البيت وكانت اليهود قد أعجبهم إذ كان يصلي قبل بيت المقدس وأهل الكتاب فلما ولى وجهه قبل البيت أنكروا ذلك قال زهير حدثنا أبو إسحاق عن البراء في حديثه هذا أنه مات على القبلة قبل أن تحول رجال وقتلوا فلم ندر ما نقول فيهم فأنزل الله تعالى وما كان الله ليضيع إيمانكم

[٦٨٢٥، ٤٢٢٢، ٤٢١٦، ٣٩٠]

## رجال الحديث

① **عمرو بن خالد:** دوی ابوالحسن عمرو بن خالد بن فروخ بن سعید تمیمی حنظلی جزری حرانی مصری دي.(٢)

دوی دحماد بن سلمه. لث بن سعد. ابن لهیعه. ﷬ وغیره ډیرولویو محدثینو نه روایت کوی.(٣)

اوددوی نه سماع کونکو کښې امام بخاری ﷬ محمد بن یحیی ذهلی. او ابوزرعه عبیدالله بن عبدالکریم رازی ﷬ غوندې محدثین دی.(٤)

---

١) قوله عن البراء ﷺ: الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى كتاب الصلاة باب قول الله تعالى: ﴿ واتخذوا من مقام ابراهيم مصلى﴾ رقم ٣٩٩) وفى كتاب التفسير. سورة البقرة باب سيقول السفهاء من الناس ما ولاهم عن قبلتهم التى كانوا عليها رقم ٤٤٨٦ وباب ﴿ولكل وجهة هو موليها فاستبقوا الخيرات﴾ رقم ٤٤٩٢ وفى كتاب أخبارالآحاد بّب ما جاء فى إجازة خبرالواحد الصدوق فى الأذان والصلاة والصوم والفرائض والأحكام رقم ٧٢٥٢ ومسلم فى صحيحه فى (٢٠٠\١) كتاب المساجد باب تحويل القبلة من القدس إلى الكعبة والنسائى فى سننه (٨٤\١و ٨٥) كتاب الصلاة باب فرض القبلة (١٢١\١و ١٢٢) كتاب القبلة باب إستقبال القبلة والترمذى فى جامعه فى كتاب الصلاة باب ما جاء فى إبتداء القبلة رقم ٣٤٠ وفى كتاب التفسير باب ومن سورة البقرة رقم ٢٩٦٢ وابن ماجه فى سننه فى كتاب إقامة الصلاة والسنة باب القبلة رقم ١٠١٠)_

٢) فتح البارى (٩٦\١) وعمدة القارى(٢٤١\١) وتهذيب الكمال ت(٦٠١ \٢١)_

٣) تهذيب الكمال(٦٠١\٢١، ٦٠٢) وخلاصة الخزرجى (٢٨٨) والكاشف (٧٥\٢) رقم ٤١٤٩)_

٤) المصادر السابقة)_

اما ابوحاتم رحمه الله فرمائي «صدوق» (۱)

عجلي رحمه الله فرمائي «مصري ثبت ثقة» (۲)

امام بخاري رحمه الله فرمائي «مات بمصر سنة تسع وعشرين ومائتين» (۳)

تنبيه دا خبره دې معلومه وي چه د بخاري په بعضې نسخوکښې په دې ځائې کښې د عمروبن خالد (مع الواو) په ځائې عمربن خالد (بدون الواو) راغلې دې دا تصحيف دې په قدماؤ کښې ابوعلي غساني رحمه الله په دې باندې تنبيه کړې ده. دعمربن خالد په نوم راوی دامام بخاري په شيوخو يا رجالوکښې خولږې خبره ده. د صحاح سته په رجالوکښې هم د چا

راوي نوم عمربن خالد نشته. (۴)

البته دعمروبن خالد په نوم باندې دوه راويان نور دي

يو عمروبن خالد قرشي کوفي نزيل واسط دې. کوم چه متروک دې بلکه بعضې حضراتو

کذاب ګرځولې دې. او دې د ابن ماجه په رجالوکښې دې. (۵)

دويم عمروبن خالد ابوحفص اعشی دې. دې منکر الحديث دې اودده هيڅ روايت د اصول سته په يوکتاب کښې هم نشته. (۶)

۲ **زهير:** دوی زهير- بالتصغير- (۷) بن معاويه بن حديج (بضم الحاء المهملة وفتح الدال المهملة وبالجيم) (۸) بن الرحيل (بضم الراء المهملة وفتح الحاء المهملة) (۹) بن زهيربن خيثمه جعفي کوفي دی. ددوی کنيت ابوخيثمه دې. (۱۰)

دوی دحميد الطويل. زياد بن علاقه. ابوحازم سلمه بن دينار. اعمش. سليمان تيمي.

---

(۱) تهذيب الكمال(۲۱\۶۰۳)_

(۲) تهذيب الكمال(۲۱\۶۰۳) والكاشف(۲\۷۶) رقم ۴۱۴۹ وخلاصة الخزرجي (ص.۲۸۸)_

(۳) التاريخ الكبير(۶\۳۲۷) رقم ۲۵۴۲)_

(۴) فتح الباري(۱\۹۶) وعمدة القاري(۱\۲۴۱)_

(۵) تهذيب ا لكمال(۲۱\۶۰۳ ،۶۰۶) وتقريب التهذيب(ص. ۴۲۱)_

(۶) تهذيب الكمال(۲۱\۶۰۷ ،۶۰۶) وتقريب (ص.۴۲۱)_

(۷) عمدة القاري(۱\۲۴۱)_

(۸) عمدة ا لقاري(۱\۲۴۱) وخلاصة الخزرجي (ص.۱۲۳)_

(۹) عمدة القاري(۲۴۱) وتوضيح المشتبه لابن ناصرالدين الدمشقي (۴\۲۹) والمغنى للفتني (ص.۳۳) دا خبره دې معلومه وه چه صاحب د «خلاصة تذهيب تهذيب الكمال» د ..الرحيل.. په ضبط سره ليکلې دی ..بجيم مصغر.. يعنى لفظ ..رجيل.. دې د جيم سره نه چه د حاء مهملة سره. خودا خبره د ټولومراجع او مصادرو نه خلاف ده فتنبه

(۱۰) تهذيب الكمال(۹\۴۲۰، ۴۲۱) وعمدة القاري(۱\۲۴۱) وسير أعلام النبلاء(۸\۱۸۱)_

سماك بن حرب. سهيل ابی صالح. ابواسحاق سبیعی. منصور بن المعتمر. او موسی بن عقبه رحمهم الله وغيره حضراتو نه د حديثو روايت كړې دې

او ددوی نه دحديثو اوريدونكو په نوموونكښې امام يحيى القطان. يحيى بن آدم. عمروبن خالد شعيب بن حرب مدائنی او ابونعيم رحمهم الله وغيره ډيرحضرات دی.[1]

امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائی. «كان من معادن الصدق»[2]

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائی. «ثقة»[3]

امام احمد بن عبدالله عجلی رحمه الله فرمائی «ثقة مأمون»[4]

امام نسائی فرمائی.. «ثقة ثبت»[5]

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی. «كان من أوعية العلم صاحب حفظ وإتقان»[6]

امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائی. «زهير أحفظ من إسرائيل وهما ثقتان»[7]

يوځل شعيب بن حرب د زهير او شعبه په طريق سره يو حديث واورلو. اوپه سند كښې ئې زهيرمقدم كړو. ددوی نه خلقوتپوس اوكړو. چه تاسو زهيرپه امام شعبه باندې مقدم كوئ په دې باندې شعيب بن حرب رحمه الله اوفرمائيل. «كان زهير أحفظ من عشرين مثل شعبة» يعنی امام زهير د شعبه په مقابله كښې يوپه شل چنده زيات حافظ دې.[8]

معاذبن معاذ رحمه الله فرمائی. «إذا سمعت الحديث من زهير لا أبالي أن لا أسمعه من سفيان الثوري»[9]

دوی به د حديث د تثبت دومره خيال ساتلو. چه عام طور به ئې يوحديث د استاذ نه دوه ځله اوريدل. حميد الرواسی فرمائی. «كان زهير إذا سمع الحديث من المحدث مرتين كتب عليه فرغت» يعنی كله چه به ئې د استاذ نه حديث دوه ځله واوريدلو. نو په هغه حديث به ئې د نښې په طورسره اوليكل. چه ددې حديث د يادولو او تثبت نه زه فارغ شوم.[10]

---

[1]) داستاذانو اوشاګردانود تفصيل دپاره اوګورئ. تهذيب الكمال( ٩\٤٢١، ٤٢٣) وسيرأعلام النبلاء(١٨١\٨) –

[2])تهذيب الكمال(٩٤٢٤) وسيرأعلام النبلاء(١٨٣\٨)_

[3]) تهذيب الكمال(٩\٤٢٤) وسيرأعلام النبلاء (١٨١\٨)_

[4]) المصدرالسابق)_

[5]) المصدرالسابق)-

[6]) سيرأعلام النبلاء(١٨١\٨)_

[7]) سيرأعلام النبلاء(١٨٢\٨)_

[8]) تهذيب الكمال(٩\٤٢٣، ٤٢٤) وسيرأعلام النبلاء(١٨٢\٨)_

[9]) سيرأعلام النبلاء(١٨٢\٨) وتهذيب الكمال(٩\٤٢٣)_

[10]) سيرأعلام النبلاء(١٨٢\٨)_

سفيان بن عيينه رحمه الله خپل يو شاگرد ته فرمائى «عليك بزهير بن معاوية فما بالكوفة مثله»[1] خوكوم روايات چه زهيربن معاويه د ابواسحاق سبيعى رحمه الله نه روايت كوى نو په هغو باندې محدثين اظهار د اعتماد نه كوى ترڅوپورې چه بل ثقه راوى دده متابعت نه وى كړې. هم دا وجه ده چه امام احمد رحمه الله فرمائى «زهير فيما روى عن المشايخ ثبت بخ بخ، وفي حديثه عن أبي إسحاق لين، سمع منه بأخرة»[2]

امام ابوزرعه رحمه الله فرمائى «ثقة إلا أنه سمع من أبي إسحاق بعد الإختلاط»[3]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى «زهير أحب إلى من إسرائيل في كل شئ إلا في حديث أبي إسحاق .. وزهير ثقة متقن صاحب سنة تأخر سماعه من أبي إسحاق»[4]

د دوى پيدائش په ۹۵هـ كښې شوې وو. اود وفات په باره كښې ۱۷۲هـ ۱۷۳هـ ۱۷۴هـ او ۱۷۷هـ مختلف اقوال ملاويږى.[5] حافظ ذهبى رحمه الله ۱۷۳هـ ته ترجيح وركړې ده.[6]

تنبيه: دزهيربن معاويه مبحوث عنه روايت هم د ابواسحاق په طريق سره مروى دې. اواوس نو وړاندې مونږ ذكر اوكړو. چه چونكه د زهيرسماع د ابواسحاق نه دهغوى د اختلاط نه پس شوې وه. ددې وجې محدثين رحمهم الله ددوى داسې روايات ضعيف گرځوى.

خودا خبره دې معلومه شوه. چه هم په بخارى كښې كښې ددې متابعت سفيان ثورى اود ابواسحاق نمسى اسرائيل كړې دې.[7] نو روايت باب بې غباره دې. څه قسم اشكال پرې نشته. والله أعلم.

③ **ابواسحاق**: دوى ابواسحاق عمروبن عبدالله بن عبيد سبيعى (بفتح السين المهملة وكسر الباء المنقوطة بواحدة وسكون الياء المنقوطة من تحتها باثنتين وفي آخرها العين المهملة)[8] كوفى دې. ددوى د نيكه نوم بعضې حضراتود عبيد په ځائې على اوبعضې حضراتو ابوشعيرة

---

[1] سير أعلام النبلاء (۸\۱۸٤) وتهذيب الكمال (۹\٤۲٤)_
[2] تهذيب الكمال (۹\٤۲٤)_
[3] تهذيب الكمال (۹\٤۲٤) وسير أعلام النبلاء (۸\۲۸٤)_
[4] تهذيب الكمال (۹\٤۲٤ و ٤۲۵)-
[5] تهذيب الكمال (۹\٤۲۵) وتقريب التهذيب (۲۱۸.) رقم ۲۰۵۱)_
[6] الكاشف (۱\٤۰۸) رقم ۱٦٦۸) وسير أعلام النبلاء (۸\۱۸٤)_
[7] أنظرلما تابعه عليه سفيان كتاب التفسير سورة البقرة باب ﴿ ولكل وجهة هو موليها﴾ رقم ٤٤۹۲) وانظرلما تابعه عليه إسرائيل كتاب الصلاة باب قول الله تعالى ﴿ واتخذوا من مقام إبراهيم مصلى﴾ رقم ۳۹۹) وكتاب أخبار الآحاد باب ما جاء في إجازة خبرالواحد رقم ۷۲۵۲)_
[8] كتاب الأنساب للسمعاني (۱۳\۲۱۸)_

خودلې دي.اود ابوشعيرة نوم ،،ذوالخمد همدانى،، دي.(١)

سبيعى، سبع بن صعب بن معاويه طرف ته منسوب دي.(٢) حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى. «لم أظفرله بنسب متصل إلى السبيع وهومن ذرية سبيع بن صعب بن معاوية ...»دي.(٣) يعنى ابواسحاق بن سبيعى رحمه الله اگرچه د سبيع بن صعب په اولاد كښې دي.خوماته د سبيع پورې دده متصل نسب نامه ملاؤ نشوه.

بيا دې كوفې په يوه محله كښې دا قبيله استوگنه شوه.څكه ددهغه محلې نوم ،،سبيع،، شو.(٤)

دحضرت عثمان رضي الله عنه په دور خلاف كښې دوه كاله باقى وو.په هغه وخت كښې دوى پيدا شو.(٥)

دوى د حضرت على بن ابى طالب،حضرت اسامه بن زيد،اوحضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنهم زيارت كړې دي.خوددې حضراتو نه ددوى سماع ثابته نه ده.(٦)

البته په حضرات صحابه كرامو رضي الله عنهم كښې د حضرت ابن عباس،حضرت ابن عمر،حضرت عبدالله بن زبير،حضرت معاويه،حضرت عمروبن يزيد خطمى ، حضرت نعمان بن بشير، حضرت عمروبن الحارث،حضرت عمروبن حريث،حضرت زيدبن ارقم،حضرت براء بن عازب،حضرت سلمان بن صرد ،حضرت حارثه بن وهب،حضرت عدى بن حاتم،حضرت جابربن سمره،حضرت رافع بن خديج ،حضرت عروه بارقى ،حضرت ابوجحيفه،حضرت عماربن روميه ،حضرت خالد بن عرفطه،حضرت جريربن عبدالله،حضرت اشعث بن قيس ،حضرت حبشى بن جناده،حضرت سلمه بن قيس،حضرت مسور بن مخرمه،حضرت ذوالجوشن ،حضرت عبدالرحمن بن ابزى رضي الله عنهم اوددې نه علاوه د نورو ډيرو صحابه كرامو رضي الله عنهم نه روايت كوى.(٧)

په حضرات تابعينو رحمهم الله كښې د ډيرو حضراتو نه دوى سماع كړې ده. چه په هغوى كښې حضرت عمروبن ميمون،اسود بن يزيد،عوف بن مالك، مسروق،عبدالرحمن بن يزيد، عبدالرحمن بن الاسود ،سعيد بن جبير اوامام شعبى رحمهم الله وغيره دى.(٨)

---

(١) تهذيب الكمال(٢٢\١٠٢او ١٠٣)_

(٢) تهذيب الكمال(٢٢\١٠٣)_

(٣) سيرأعلام النبلاء(٥\٣٩٢، ٣٩٣)_

(٤) الأنساب للسمعانى(٣\٢١٨)_

(٥) سيرأعلام النبلاء(ت٥\٣٩٣)_

(٦) تهذيب الأسماء واللغات (٢\١٧١) وتهذيب الكمال(٢٢\١٠٣،١٠٨)_

(٧) المصادرالسابقة)_

(٨) المصادرالسابقة)_

د دوى نه په روايت کونکو کښې سليمان تيمى. اعمش. اسماعيل بن ابى خالد. قتاده. شريك بن عبدالله منصوربن المعتمر. سفيان ثورى. يوسف بن ابى اسحاق سبيعى. يونس بن ابى اسحاق سبيعى. اسرائيل بن يونس. زهيربن معاويه. ابوبكربن عياش. اوزائده رحمهم الله وغيره دى (١)

امام احمدبن حنبل. يحيى بن معين اوامام نسائى رحمهم الله فرمائى. «ثقة» (٢)

امام احمد بن عبدالله عجلى رحمه الله فرمائى. «كوفى تابعى، ثقة سمع ثمانية وثلاثين من أصحاب النبى ﷺ» (٣)

ابوحاتم رحمه الله فرمائى. «ثقة وهو أحفظ من أبى اسحاق الشيبانى، ويشبه الزهرى، فى كثرة الرواية واتساعه فى الرجال» (٤)

دامام شعبه رحمه الله نه چا تپوس اوکړو آيا د ابواسحاق سبيعى رحمه الله د امام مجاهد نه سماع حاصله ده؟ نو هغوى جواب ورکړو. «ماكان يصنع بمجاهد؟ كان هو أحسن حديثاً من مجاهد رحمه الله، ومن الحسن وابن سيرين» (٥)

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى. «وكان رحمه الله من العلماء العاملين ومن جلة التابعين» (٦)

دغه شان فرمائى. «وكان طلابة للعلم كبير القدر» (٧)

على بن مدينى رحمه الله فرمائى. «حفظ العلم على الأمة ستة فلأهل الكوفة: أبواسحاق والأعمش ولأهل البصرة قتادة ويحيى بن ابى كثير، ولأهل المدينة الزهرى، (٨) ولأهل مكة عمروبن دينار» (٩)

على بن المدينى رحمه الله فرمائى. «روى أبواسحاق عن سبعين رجلاً أو ثمانين رجلاً لم يرو عنهم غيره، وأحصيت مشيخته نحواً من ثلاثمائة شيخ، وقال على فى موضع آخر: أربع مائة شيخ» (١٠)

---

(١) تهذيب الأسماء واللغات (١٧١\٢ و ١٧٢) وتهذيب الكمال (١٠٨\٢٢ و ١١٠)_
(٢) تهذيب الكمال (١١٠\٢٢) وسير أعلام النبلاء (٣٩٩\٥)_
(٣) تهذيب الكمال (١١١\٢٢)_
(٤) تهذيب الكمال (١١١\٢٢)_
(٥) تهذيب الكمال (١١١\٢٢ و ١١٢) وسير أعلام النبلاء (٣٩٨\٥)_
(٦) سير أعلام النبلاء (٣٩٣\٥)_
(٧) المصدر السابق)_
(٨) سير أعلام النبلاء (٣٩٩\٥)_
(٩) ذكره الذهبى فى التاريخ كما فى هامش سير أعلام النبلاء (٣٩٩\٥)_
(١٠) تهذيب الكمال (١١١\٢٢) وسير أعلام النبلاء (٣٩٤\٥)_

دعبادت خاص کرد تلاوت ئې زيات ذوق لرلو فضيل رحمه الله فرمائى «كان أبو إسحاق يقرأ القرآن فى كل ثلاث»[١] هم پخپله فرمائى «ما أقلت عينى غمضاً منذ أربعين سنة»[٢]

هم ددوى د سروزرو په اوبو ليکلو قابل قول دې «يامعشر الشباب اغتنموا يعنى قوتكم وشبابكم قلما مرت بى ليلة إلا وأنا أقرأ فيها ألف آية وإنى لأقرأ البقرة فى ركعة وإنى لأصوم الأشهر الحرم، وثلاثة أيام من كل شهر، والاثنين والخميس»[٣]

دغه شان دوى فرمائى «ذهبت الصلاة منى وضعفت وإنى لأصلى فما أقرأ وأنا قائم إلا بالبقرة وآل عمران»[٤]
علاء بن سالم عبدى فرمائى چه ابواسحق سبيعى دخپل وفات نه دوه کاله وړاندې ډېر کمزورې شوې وو تردې چه بغيرد سهارې نه به اودريدې نشو خوچه کله به اودريدو نو يوزر(١٠٠٠) آياتونه به ئې وئيل.[٥]
بيا دوى د زهد او عبادت ،علم او پرهيزګارئ سره سره په جهاد کښې هم حصه اخستله. پخپله فرمائى «غزوت فى زمن زياد يعنى ابن أبيه — ست غزوات أو سبع غزوات»[٦]
غرض دا چه ابواسحاق سبيعى رحمه الله يو جليل القدر ثقه تابعى عالم وو په اصول سته کښې ددوى روايات موجود دى.[٧] امام نووى رحمه الله فرمائى «وأجمعوا على توثيقه وجلالته»[٨]
البته د مغيره قول دې «ما أفسد حديث أهل الكوفة غير أبى إسحاق والأعمش»[٩]
اول خو دا جرح مبهمه ده اوچه تعديل وى نو جرحې مبهمې څه حيثيت نه وى.[١٠]
بيا دويمه خبره داده چه حافظ ذهبى رحمه الله د مغيره رحمه الله دا قول نقل کوى اوليکى «قلت لا يسمع قول الأقران بعضهم فى بعض وحديث أبى إسحاق محتج به فى دواوين الإسلام ويقع لنا من عواليه»[١١]

---

[١]) سير أعلام النبلاء(٥\٣٩٤)_
[٢])سير أعلام النبلاء (٥\٣٩٦)_
[٣]) سير أعلام النبلاء(٥\٣٩٧)_
[٤]) المصدر السابق)_
[٥]) المصدر السابق)_
[٦]) سير أعلام النبلاء(٥\٣٩٥)_
[٧]) تهذيب الكمال(٢٢\١١٣)_
[٨]) تهذيب الأسماء واللغات (٢\١٧٢)_
[٩]) ميزان الإعتدال(٣\٢٧٠) وسير أعلام النبلاء(٥\٣٩٩)_
[١٠])قال الحافظ فى نزهة النظر(ص.١٣٦) والجرح مقدم على التعديل وأطلق ذلك جماعة ولكن محله إن صدر مبيناً من عارف بأسبابه لأنه إن كان غير مفسر لم يقدح فى من ثبتت عدالته)_

یعنی داقرانواو د یوې زمانې دخلقو قول به دخپلې زمانې دخلقو خلاف نشی اوریدې. اوپه ابواسحاق باندې په معتمدو کتابونوکښې اعتماد دلیل نیولې شوې دې. او مونږ ته ددوی عالی سند احادیث هم ملاؤ شوی دی.

په دوی باندې دویم اعتراض دا شوې دې چه دوی په آخری عمرکښې مختلط شوی وو(١) نوددوی نقل کړی احادیث قابل داحتجاج نه دی پکار.

نوددې جواب دا دې چه اول خود مختلط داحادیثو په باره کښې تفصیل دا دې که دماقبل الاختلاط اومابعدالاختلاط په احادیثوکښې تمیز نشو کیدې نوپه هغې کښې به توقف کولې شی.اوکه امتیاز په کښې کیدې شی.نوکوم احادیث چه د قبل الاختلاط وی.هغه به مقبول وی.(٢)

دابواسحاق د روایاتوپه باره کښې فیصله ده.چه کومو راویانو ترې بعد الاختلاط احادیث اوریدلی دی.اوکومو راویانو قبل الاختلاط.(٣)

بیا حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.((وهوثقة حجة بلانزاع وقد کبروتغیرحفظه تغیرالسن ولم یختلط))(٤) یعنی دې ثقه دې.اوبغیردڅه نزاع او جګړې نه حجت دې. د بوډاتوپ عمرته رسیدلې وو.اود دوی په حافظه کښې د عمردتقاضا مطابق لږ ډیر فرق راغلې وو.خوپه احادیثوکښې اختلاط ترې نه ووشوې.

دغه شان حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.((إلا أنه شاخ ونسی ولم یختلط))(٥) یعنی دوی بوډا شوی وو.اوڅه هیره ترې شروع شوې وه.خوداختلاط مرتبې ته نه وو رسیدلې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.((أحد الأعلام الأثبات قبل إختلاطه ولم أرفی البخاری من الروایة عنه إلا عن القدماء من أصحابه کالثوری وشعبة لا عن المتأخرین کابن عیینه وغیره،احتج به الجماعة))(١) یعنی ابواسحاق سبیعی رحمه الله د لویو عالمانو رحمهم الله څنې وو.داختلاط نه وړاندې ، ،ثبت، ،وو.په بخاری شریف کښې ماته ددوی د زړو شاګردانو روایات ملاویږی.لکه سفیان ثوری او امام شعبه رحمهما الله وغیره.اود دوی د متاخرینو شاګردانو مثلاً ابن عیینه وغیره روایات په

---

١) قال الحافظ فی التقریب (ص،٤٢٣) ثقة مکثر عابد من الثالثة إختلط بأخره)_

٢) قال الحافظ فی النزهة (ص،٩١) والحکم فیه أن ما حدث به قبل الإختلاط إذا تمیز قبل وإذا لم یتمیز توقف فیه)_

٣) نوکوموپه شمارڅوکسانوچه ددوی نه بعد الاختلاط روایاتونه اخستی دی. محدثینو رحمهم الله دهغوی تعین اوتصریح کړې ده.اوګورئ تهذیب الکمال (١١٠/٢٢) وتهذیب التهذیب(٨/٦٤،٦٥) ومیزان الإعتدال(٢٧٠/٣)_

٤) سیرأعلام النبلاء(٣٩٤/٥)_

٥) میزان الإعتدال(٢٧٠/٥)_

بخارى شريف كښې نشته.

ذكرشوې حديث باب اګرچه د زهيربن معاويه عن ابى اسحاق په طريق سره مروى دې.او زهيرددوى د روستنو شاګردانوكښې دې.خومونږ وړاندې تنبيه وركړې ده.چه ددوى د روايت متابعت شوې دې

دويم اعتراض په دوى باندې شوې دې.چه دا مدلس دې.(١) بيا په حديث باب كښې د سماع تصريح هم نشته

ددې جواب دا دې.چه دسفيان په طريق كښې د ابواسحاق د حضرت براء بن عازب نه د سماع تصريح موجود ده.(٢)دابواسحاق سبيعى رحمه الله وفات په ١٢٦هـ يا ١٢٧هـ يا ١٢٨هـ يا ١٢٩هـ كښې شوې وو.(٣)والله أعلم.

④ **البراء رضي الله عنه**:دا مشهور صحابى براء - **بفتح الباء الموحدة والراء المهملة المخففة وبعدها ألف ممدودة**(٤)بن عازب (٥)بن الحارث بن عدى انصارى حارثى اوسى دى.كنيت ئې ابوعماره دې. اوبعضې حضراتو ابوعمرو ونيلې دې اوبعضو ابوالطفيل.(٦)

دوى د نبى كريم ﷺ نه علاوه دحضرت ابوبكرصديق.حضرت عمرفاروق. حضرت على بن ابى طالب.حضرت بلال.حضرت ثابت بن وديعه انصارى.حضرت حسان بن ثابت.اود حضرت ابوايوب رضي الله عنهم نه روايت كړې دې.(٧)

---

(١) قال ابن حبان فى كتاب الثقات (١٧٧\٥) وكان مدلساً وقال الحافظ فى تهذيب التهذيب(٦٦\٨) وكذا ذكره في المدلسين حسين الكرابيسى وأبوجعفرالطبرى.وقال على بن المدينى رحمه الله فى العلل قال شعبة سمعت أبا إسحاق يحدث عن الحارث بن الأزمع بحديث فقلت له سمعته منه؟ فقال حدثنى به مجالد عن الشعبي قال شعبة وكان أبوإسحاق إذا أخبرنى عن رجل قلت له هذا أكبر منك فإن قال نعم.علمت أنه لقى وإن قال أنا أكبر منه تركته)_

(٢) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة البقرة باب ﴿ ولكل وجهة هو موليها﴾ رقم ٤٤٩٢) وعمدة القارى(٢٤٢\١)_

(٣) تهذيب الأسماء (١٧٢\٢) وتهذيب الكمال(١١٢\٢٢) وسيرأعلام النبلاء(٤٠٠\٥) وخلاصة الخزرجى (ص.٢٩١) وتقريب التهذيب(ص.٤٢٣) رقم ٥٠٦٥) والكاشف (٨٢\٢) رقم (٤١٨٥)_

(٤) المغنى (ص.٩) وقال العينى رحمه الله فى العمدة على المشهور وقال النووى فى تهذيب الأسماء واللغات (١٣٢\١)وحكى فيه القصر)_

(٥) بالعين المهملة والزاى كما فى المغنى (ص.٥٠) وشرح ا لكرمانى(١٦٣\١) صحابى .ذكره ابن سعد فى الطبقات (٣٦٥\٤) قال العينى رحمه الله فى العمدة (٢٤٢\١) وليس فى الصحابة عازب غيره ولا فيهم البراء بن عازب سوى ولده)_

(٦) تهذيب الأسماء واللغات (١٣٢\١) وتهذيب الكمال(٣٤\٤و ٣٥)_

(٧) تهذيب الكمال(٣٥\٤و ٣٦)_

د دوی نه په روایت کونکوکښې حضرت عبدالله بن یزید خطمی.اب.جحیفه وهب عبدالله السوائی رضی الله عنه نه علاوه ډیرتابعین رحمهم الله دی.چه په هغوی کښې امام شعبی.ابن ابی لیلی.اوابواسحاق سبیعی رحمهم الله وغیره مشهور دي.[1]

دوی دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه همزولي وو.[2] د بدر په موقع د کم عمرۍ په وجه شریك شوې نه وو.[3] البته ددې نه پس ئې په ټولوغزاګانوکښې شرکت کړې دې.[4]

دابوعمروشیبانی رحمه الله د قول مطابق هم دوی د ((ری)) فاتح دې.دحضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه سره د ((تستر)) په غزا کښې شریك وو.د صفین.جمل اوقتال خوارج په موقعو باندې دحضرت علی رضی الله عنه سره ملګرې وو.[5] په آخره کښې ئې په کوفه کښې استوګنه اختیار کړې وه.[6]

د دوی نه درې سوه پنځه احادیث مروی دی.په کوم کښې چه متفق علیه دوه ویشت احادیث دی.اوبخاری انفرادی احادیث پنځلس اود مسلم انفرادی احادیث شپږ دی.[7] دوی د مصعب بن زبیر په زمانه کښې د ۷۱ ه یا ۷۲ه کښې وفات شوی وو.[8] رضی الله عنه وارضاه

**قوله**: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ أَوَّلَ مَا قَدِمَ الْمَدِينَةَ نَزَلَ عَلَى أَجْدَادِهِ أَوْقَالَ أَخْوَالِهِ مِنْ الْأَنْصَارِ: یعنی نبی کریم صلی الله علیه وسلم چه د ټولونه وړاندې کله مدینې منورې ته تشریف یوړلو.نودټولونه وړاندې دخپلونیکونو(دموردطرفه) یا ماماګانوکره ډیره شو.کوم چه د انصارونه وو.

په دې جمله کښې د((كان أول ماقدم..))پوره جمله د لفظ((أن))دپاره خبر دې اوپه محل د رفع کښې دې.بیا ((أول)) بنا برظرفیت منصوب دې.اوپه ((ماقدم)) کښې ..ما.. مصدریه

---

[1] تهذیب الکمال(۳۶\٤و ۳۷)_

[2] أخرجه ابن سعد فی طبقاته (۳۶۸\٤) بسنده عن البراء رضی الله عنه .. وأنا وعبدالله بن عمر رضی الله عنهما لدة.. وانظر تقریب التهذیب(۱۲۱) رقم ۶٤۸)_

[3] عن البراء رضی الله عنه قال إستصغرت أنا وابن عمر یوم بدر. رواه البخاری فی صحیحه فی کتاب المغازی باب عدة أصحاب بدر رقم ۳۹۵۵ و۳۹۵۶ وابن سعد فی طبقاته (۳۶۷\٤و ۳۶۸)_

[4] عمدة القاری (۲٤۷\۱) وتهذیب الأسماء (۱۳۲\۱) وأخرج البخاری فی صحیحه (۶٤۲\۲) فی خاتمة کتاب المغازی باب کم غزالنبی صلی الله علیه وسلم عن أبی إسحاق قال حدثنا البراء قال غزوت مع النبی صلی الله علیه وسلم خمس عشرة وانظرالمسند لأبی داود الطیالسی رحمه الله (ص.۹۸) رقم ۷۲ وطبقات ابن سعد(۳۶۸\٤) والإصابة (۱٤۲\۱)_

[5] الإصابة (۱٤۲\۱) وعمدة القاری(۲٤۲\۱) وتهذیب الأسماء (۱۳۳\۱)_

[6] طبقات ابن سعد(۳۶۸\٤) والإصابة (۱٤۲\۱) وتهذیب الأسماء (۱۳۲\۱)_

[7] خلاصة الخزرجی (ص.٤۶) وعمدة القاری(۲٤۱\۱. ۲٤۲) وتهذیب الأسماء (۱۳۲\۱)_

[8] طبقات ابن سعد (۳۶۸\٤) وخلاصة الخزرجی (ص.٤۶) وتهذیب الأسماء (۱۳۲\۱) وتقریب التهذیب (ص ۱۲۱) رقم ۶٤۸) وتعلیقات تهذیب الکمال (۳۵\٤)_

دې «المدينة» د «قدم» فعل دپاره مفعول فيه دې اود «نزل على أجداده» جمله د «كان» دپاره خبردې اوددې اسم «ضمير» دې. كوم چه نبي ﷺ ته راجع كيږي. اوپه «من الأنصار» كښې «من» بيانيه دې. نوتقديرد عبارت داسې شو. «أن النبي ﷺ كان أول قدومه المدينة نزل...»(١)

**قوله** نَزَلَ عَلَى أَجْدَادِهِ أَوْقَالَ أَخْوَالِهِ مِنْ الْأَنْصَارِ: دوى دخپلونيكونو (دمورد طرفه) يا ماماگانوكره ډيره شو. كوم چه د انصارو نه وو.

دلته «أو» دشك دپاره دې. اودا شك ابواسحاق ته شوې دې.(٢)

دلته د «أجداد» او «أخوال» نه براه راست د نبي ﷺ نيكونه (دمورد طرفه) يا ماماگان مراد نه دي. خكه چه ددوى موربى بى آمنه بنت وهب قريشيه وه. بلكه دلته ددوى د نيكه عبدالمطلب نيكونه او ماماگان مراد دي.(٣) خكه چه د دوى پلارهاشم په مدينه منوره كښې د بني عدي بن نجاركښې وادۀ كړې وو.(٤)

**د نبي كريم د قرنيكه هاشم د نكاح واقعه** د نبي كريم ﷺ قرنيكۀ هاشم مدينې منورې ته تلى وو. هلته ئې د د بنوعدى بن نجارديوې ښځې سره (چه دهغې نوم سلمى بنت عمرو وو) د نكاح اراده پيدا شوه. هغه اول د أحيحه بن الجلاح په نكاح كښې وه. دوى د ممتاز اومنفردو صفاتومالكه ميرمن وه. په خپل خاندان اوخپل قوم كښې ورته سيادت اوشرافت حاصل وو. ددې وجې هغې دنكاح دپاره شرط كيخودو. چه د ناخوښئ اوخفگان په صورت كښې به دې ته دخپل خاوندنه دجدا كيدو اختيار وى.

بهرحال دهاشم بن عبدمناف سره ددوى نكاح اوشوه. اوهلته عبدالمطلب پيدا شو.

عبدالمطلب د نبي ﷺ د نيكۀ اصلي نوم نه وو. بلكه ددوى اصلي نوم شيبة الحمد وو. هاشم د شام دسفرپه دوران كښې وفات شو. دهغوى نه پس «سقايه» او «رفادہ» يعني حاجيانوته اوبه وركول اودهغوى ملمستيا كول. ددې ذمه وارى دهغوى ورور مطلب بن عبدمناف باندې راغله.

مطلب دخپل وراره د راوستلو دپاره مدينې منورې ته لاړو. نوسلمى بنت عمرو ورسره د خوى د پريخود نه انكار اوكړو. هغوى پوهه كړه. چه زما وراره په يوپردى قوم كښې تربيت حاصلوى. اوبالغ كيږي. مونږ دعزت شرافت اوسيادت خاوندان يو. دخلقوذمه وراياني په مونږ باندې دى. دده دپاره دده قوم. خاندان او ښار ددې ځائې نه غوره دې.

---

(١) عمدة القارى (٢٤٣\١)_
(٢) فتح البارى (٩٦\١)_
(٣) المصدر السابق)_
(٤) المصدر السابق وسيرت ابن هشام مع الروض الأنف (٩٥\١)_

يوطرف ته شيبه(مطلب) خپل ترهٔ ته اووئيل چه زه دخپلې موردا جازت نه بغيرنشم تلې.ددې نه پس ورته مور اجازت ورکړو.اودوی خپل ورارهٔ په خپله سورلۍ باندې ځان سره روسته سور کړو او روان شو.کله چه د قريشوخلقو شيبه په داسې حال کښې اوليدو.نوويې وئيل مطلب دا غلام اخستې دې.نوخلقو شيبه دعبدالمطلب په نوم باندې يادول شروع کړل او مطلب به وئيل.((ويحكم إنما هو ابن أخي هاشم)) يعنی دې زما د وروهاشم خوئې دې.(١)

خلاصه دا شوه.چه دلته د اجداد يا اخوال نسبت کوم نبی ﷺ ته شوې دې.نو دا مجازاً دې حقيقة نه دې.

په دې مقام کښې دويم مجاز دا هم دې.چه د اجداد اواخوال نه مراد بنومالك بن نجاردی او ددوی د نيکهٔ ماماخيل بنوعدی بن النجار وو.کوم چه دمالك عدی ورو وو.ددې وجې هغه ته هم نيکونه يا ماماخيل اووئيلی شو.يا ورته ددې وجې اووئيلی شو.چه د دواړوکورونه نزدې نزدې وو.(٢)

بيا دلته دې دا خبره هم ښکاره وی.چه د اجداد يا اخوال په لفظ کښې د راوی شك دې.خوپه دواړه کښې ښکاره ده.چه څه تعارض نشته.ځکه چه دنکيه کور هم دماماګانوکور وی.(٣)

**قوله: وَأَنَّهُ صَلَّى قِبَلَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ سِتَّةَ عَشَرَ شَهْرًا أَوْ سَبْعَةَ عَشَرَ شَهْرًا:** يعنی نبی ﷺ بيت المقدس طرف ته شپاړس يا اوولس مياشتو پورې مونځونه کول.

((بيت المقدس)) په،،المقدس،،کښې دوه لغته مشهور دی.

يودا چه دا د ((مَفْعِل)) په وزن مصدرميمی يا ظرف مکان دې.دويم لغت دا دې.چه دا د باب تفعيل نه داسم مفعول صيغه ده.(٤)

بيا دا په اضافت سره هم مستعمل دې.په دې صورت کښې به دا د ((إضافة الموصوف إلى الصفة)) دقبيلې ځنې وی.لکه څنګه چه په ((مسجد الجامع)) کښې هم دا صورت دې.دغه شان ((البيت المقدس)) هم مستعمل دې.په دې صورت کښې به موصوف اوصفت وی.بهرحال ددې مفهوم هغه ځائې دې.چرته چه دګناهونونه تطهيراوپاکی حاصليږی.(٥)

علامه کرمانی رحمه الله ((المقدس)) په صيغه د اسم فاعل ازباب تفعيل احتمال هم ذکرکړې دې.

---

(١) دتفصيل دپاره اوګورئ السيرة النبوية لابن هشام مع الروض الأنف للسهيلی(١\٩٥)_

(٢) فتح الباری(١\٩٦) وعمدة القاری(٢٤٣)_

(٣) تقرير بخاری شريف(١\١٤٣)_

(٤) شرح کرمانی(١\١٦٤) والنهاية (٤\٢٣و ٢٤) وعمدة القاری(١\٢٤٢) وتهذيب التهذيب الأسماء واللغات(٣\١٠٩) حرف القاف فصل فی أسماء المواضع)_

(٥) المصادر السابقة)_

دکوم مفهوم چه هم ښکاره دي.[1]

**بيت المقدس ته د استقبال موده** په رواياتوکښې په دې خبره کښې اختلاف دې چه نبی ﷺ دهجرت نه پس څومره موده بيت المقدس ته استقبال کړې وو.

دبخاری شريف په ټولو رواياتوکښې په تردد سره «ستة عشر شهراً أو سبعة عشر شهراً» راغلی دی[2] دمسلم شريف يو روايت د بخاری پشان په تردد سره راغلې دې اوبل روايت په جزم سره «ستة عشر شهراً» راغلې دې.[3]

په سنن نسائی کښې هم يو روايت په تردد سره[4]

اوبل روايت کښې «ستة عشر شهراً» په جزم سره د الفاظ راغلی دی.[5]

په جامع ترمذی کښې هم د بخاری شريف پشان په تردد سره الفاظ راغلی دی.[6] اوپه مسند احمد، معجم کبيرطبرانی او بزارکښې هم په يو روايت کښې په جزم سره «ستة عشر شهراً» الفاظ راغلی دی.[7]

اومعجم طبرانی اوبزارپه دويم روايت کښې په جزم سره «سبعة عشر شهراً» الفاظ راغلی دی.[8] ددې رواياتونه علاوه څه بعضې نور روايات هم دی.چه په هغې کښې په بعضو کښې د اتلس مياشتو[9] په بعضو کښې د دوو کالو[10] اوپه بعضو کښې د ديارلسو مياشتو[11] په

---

[1] شرح كرمانى(١\١٦٤) وعمدة القارى(١\٢٤٢)_

[2] روايت دباب اوكتاب الصلاة باب قول الله تعالى:﴿ واتخذوا من مقام إبراهيم مصلى﴾ رقم ٣٩٩) وكتاب التفسيرسورة البقرة باب ﴿ سيقول السفهاء من الناس..﴾ رقم ٤٤٨٦) وباب ﴿ ولكل وجهة هو موليها﴾ رقم ٤٤٩٢) وكتاب أخبارالآحاد باب ما جاء فى إجازة خبرالواحد الصدوق ..) رقم ٧٢٥٢)_

[3] صحيح مسلم (١\٢٠٠) كتاب المساجد باب تحويل القبلة من القدس إلى الكعبة)_

[4] سنن نسائى.(١\٨٥) كتاب الصلاة باب فرض القبلة)_

[5] سنن نسائى(١\١٢١، ١٢٢) كتاب القبلة باب إستقبال القبلة)_

[6] جامع ترمذى كتاب الصلاة باب ما جاء فى إبتداء القبلة رقم ٣٤٠) وكتاب التفسيرباب ومن سورة البقرة رقم ٢٩٦٢)_

[7] مسندأحمد(١\٣٥٠و ٣٥٧) أحاديث سيدنا عبدالله بن عباس رضي الله عنهما وكشف الأستارعن زوائد البزار (١\٢١٠ و ٢١١) كتاب الصلاة باب ما جاء فى القبلة رقم ٤١٨) ومجمع الزوائد (٢\١٢) كتاب الصلاة باب ما جاء فى القبلة)

[8] كشف الأستار (١\٢١٠) كتاب الصلاة باب ما جاء فى القبلة رقم ٤١٧) ومجمع الزوائد(٢\١٣و ١٤) كتاب الصلاة باب ماجاء فى القبلة)_

[9] أخرجه ابن ماجه فى كتاب إقامة الصلاة والسنة فيها باب القبلة رقم ١٠١٠)_

[10] حكاه الحافظ فى الفتح (١\٩٧) والعينى فى العمدة (١\٢٤٥)_

[11] رواه ابن جريرفى جامع البيان(٢\٤)_

بعضو كښې په تردد سره دنهو يا لسو مياشتو [۱] اوپه بعضوكښې صرف د دوو مياشتو [۲] تصريحات ملاويږى.
په دې كښې د شپاړسو مياشتو يا د اوولسو مياشتو يا په تردد سره شپاړس يا اوولس مياشتو روايات صحيح دى.اوباقى روايات ضعيف دى.[۳]
تركومې پورې چه د شپاړسو يا د اوولسواوشپاړسو مياشتودتردد او شك د رواياتوتعلق دې.نوپه هغې كښې جمع ممكن ده.
حافظ ابن حجر رحمه الله په دې كښې د تطبيق دا صورت اختيار كړې دې.چه «من جزم بستة عشر لفق من شهر القدوم وشهر التحويل شهراً وألغى الزائد ومن جزم بسبعة عشر عدهما معاً ومن شك تردد في ذلك» [۴]
مطلب دا دې.چه چونكه نبى ﷺ په دولسم ربيع الاول مدينې منورې ته هجرت كړې وو او رسيدلې وو.بيا په بل كال دصحيح قول مطابق د رجب په نصف كښې دتحويل قبلې حكم راغلې وو.[۵]د دولسم ربيع الاول نه ترپنځلسم رجب پورې د شمارولو يوصورت دا دى.چه د دولس ربيع الاول نه پس خومره ورځې دى.هغه هم واخستې شى.اود رجب پنځلس ورځې هم واخستې شى.چه جمع كړې شى.اوكسر ترې حذف كړې شى.نوچه حساب اولګولې شى.دا ټولې شپاړس مياشتې جوړيږى
اوكه د ربيع الاول روځې پوره مياشت حساب كړې شى.اود رجب پنځلس ورځې هم پوره مياشت حساب كړې شى.نوبيا ټولې اوولس مياشتې جوړيږى.
نواوس دحافظ رحمه الله وغيره حضراتود توجيه مطلب دا دې.چه په كومو رواياتوكښې د شپاړس مياشتوذكر راغلې دې.نوپه هغې كښې دهجرت د مياشتې د ورځو او د تحويل قبلې د مياشتې د ورځو حساب لګولې شوې دې. او چه څومره ورځې دمياشتې نه زياتې جوړيدې هغه ئې ترې حذف كړې دى.لكه چه د ربيع الاول اورجب دواړه مياشتې ئې ملاؤ كړې دى.يوه مياشت ئې شماركړې ده.اوباقى د ربيع الثانى نه واخله تر جمادى الثانى دا ټولې پنځلس مياشتې جوړيږى.په دې طريقه ددې رواياتو مطابق مدينې منورې ته د رسيدو نه پس د استقبال قبلې ټوله مودة شپاړس مياشتې جوړيږى.
اوپه كومو رواياتوكښې چه داوولس مياشتو ذكردې.په هغې كښې د قدوم مدينې مياشت اود تحويل قبلې مياشت جداجدا مياشتې شمارلې شوى دى.په دې طريقه د ربيع الاول نه

---

[۱] كما فى الفتح (۱\۹۷) والعينى فى العمدة (۱\۲۴۵)_

[۲] انظرفتح البارى (۱\۹۷)_

[۳] المصدرالسابق)_

[۴] فتح البارى (۱\۹۶)_

[۵] فتح البارى (۱\۹۶و۹۷)_

واخله تر رجب پورې تولې اوولس مياشتې جوړيږي
اوبيا چه په كومو رواياتوكښې په شك اوتردد سره شپاړس يا اوولس مياشتې خودلې شوي دي په حقيقت كښې دهغې راويانوچه كله كتلي دي.چه په يو اعتبارسره دې مودې ته شپاړس مياشتې ونيلې شي اوپه بل اعتبارسره ورته اوولس مياشتې ونيلې شي.نوهغوى په (أو) سره تعبيركړې دې

**د تحويل قبلې حكم په كومه مياشت كښې راغلې وو؟** بيا ددې رواياتوپه بنياد په عالمانو رحمهم الله كښې هم اختلاف پيدا شوې دې. چه د تحويل قبلې حكم په كومه مياشت كښې شوې وو؟
جمهورعالمان رحمهم الله فرمائى.چه د رجب په نيمه ۲ﻫ كښې تحويل قبله شوې وه (۱) هم دا امام حاكم رحمه الله دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه په صحيح سند سره نقل كړى دى.(۲)ددې قول مطابق تحويل د قبلې په اوولس مياشتوكښې شوې وو.لكه چه دوى د قدوم او د تحويل مياشتې جدا جدا شمارلى دى.
موسى بن عقبه رحمه الله فرمائى.چه د تحويل قبلې حكم په جمادى الثانيه كښې راغلې وو (۳) ددې قول مطابق استقبال دبيت المقدس شپاړس مياشتې بيان شوې دې.(۴)ځكه چه د قدوم او تحويل مياشتې جدا جدا شمار كړې شى. نو ددې نه شپاړس مياشتې جوړيږي.
اود محمد بن حبيب د قول مطابق تحويل د قبلې په نصف شعبان كښې شوې وو.(۵)ددې قول تائيد دهغه روايت نه كيږى.په كوم كښې چه د استقبال بيت المقدس مودة اتلس مياشتې بيان شوى دى.(۶) ځكه چه شهرقدوم او شهر تحويل جدا جدا شمار كړې شى.نو د دې نه اتلس مياشتې جوړيږي. ابن حبان رحمه الله فرمائى.چه دتحويل قبلې حكم اوولس مياشتې او درې ورځې پس راغلې وو.(۷)
حافظ ابن حجر رحمه الله د ابن حبان رحمه الله دقول توجيه كړې ده.چه ددې نه شپاړس مياشتې او درې ورځې جوړيږي.اوولس مياشتې اودرې ورځې نه جوړيږي .ځكه چه دوى دجمهورو دقول (چه تحويل دقبلې درجب نيمې ته شوې وو.اوددوى قدوم په ربيع الاول كښې شوې وو) ذكركولو نه پس فرمائى.(وقال ابن حبان سبعة عشر شهراً وثلاثة أيام وهو مبنى على أن القدوم فى ثانى عشر شهر ربيع الأول)(۸) اود ربيع الاول د دولس تاريخ نه د دويم كال رجب پنځلسم تاريخ پورې شپاړس

---

۱) فتح البارى(۱\۹۷) وعمدة القارى(۱\۲۴۵)_
۲) المصادر السابقة)_
۳) المصادر السابقة)_
۴) أخرجه ابن ماجه فى كتاب إقامة الصلاة والسنة فيها باب القبلة رقم ۱۰۱۰)_
۵) المصادر السابقة)_
۶) خرجه ابن ماجه فى سننه فى كتاب إقامة الصلاة والسنة فيها باب القبلة رقم ۱۰۱۰)
۷) فتح البارى(۱\۹۷) وعمدة القارى(۱\۲۴۵)_
۸) فتح البارى(۱\۹۷)_

مياشتې اودرې ورځې جوړېږي.
البته علامې عيني رحمه الله فرماني چه دابن حبان رحمه الله قول په هغه قول باندې مبني دې دکوم مطابق چه تحويل په نصف شعبان کښې شوې وو.په دې صورت کښې بنکاره ده.چه ټوله موده اوولس مياشتې او درې ورځې جوړېږي.(١)والله أعلم وعلمه أتم وأحكم.

**نبی کریم ﷺ بیت المقدس ته استقبال په قرانی حکم باندې کړې ووکه په خپل اجتهاد سره؟**

نبی کریم ﷺ چه بیت المقدس ته کوم مونځونه کول.هغه ئې په خپلې رائې سره کړې وو.اوکه دقرآن په حکم سره.

دشوافع حضراتو رحمهم الله دواړه قولونه دی.لکه څنګه چه ماوردی رحمه الله په «الحاوی» کښې نقل کړې دی.(٢)

قاضي عياض رحمه الله فرمائي.چه داکثرو عالمانو رحمهم الله رائې دا ده.چه نبی ﷺ په خپل اجتهاد او رائې سره داسې کړې وو.(٣)د نبی ﷺ مقصود ديهودو تاليف قلب وو.نبی ﷺ به دا سوچ کړې وی.که زه ددوی قبلې طرف ته استقبال اوکړم.نودوی به زما دين طرف ته مائل شی خو يهوديان ډيرسخت مزاجه اوتنګ نظروو.هغوی نبی ﷺ ته چرته مائل کيدل.کله چه نبی ﷺ ته دا اندازه اوشوه.چه ددې تاليف په وجه هغوی اسلام طرف ته نه مائل کيږی.نودنبی ﷺ زړه دا غوښتل شروع کړل.چه دخپل پلار(حضرت ابراهيم عليه السلام) قبلې طرف ته متوجه شی.خوچونکه د نبی ﷺ اجتهاد باقی پريخودې شوې وو.نودالله تعالی دطرفه حکم راغلو.ددې وجې نبی ﷺ په خپلې ارادې سره بيت المقدس نه وو پريخودې.بلکه دالله تعالی دحکم انتظار ئې کولو.په دې انتظارکښې به نبی ﷺ آسمان طرف ته نظرپورته کول.هم دا الله تعالی په آيت کريمه ﴿قَدْ نَرَىٰ تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ ۖ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا﴾(٤) کښې ذکرکړه.اوددې نه پس الله تعالی بيا د بيت المقدس قبله منسوخ کړه. اوکعبه ئې قبله اوګرځوله.(٥)

ددې تقرير نه معلومه شوه.چه بيت المقدس الله تعالی قبله مقررکړې وه. او بيت المقدس کومه چه نبی کريم ﷺ دخپل طرف نه قبله جوړه کړې وه.هغه منسوخ کړه.په دې سره دا لازمه شوه.چه په قرآن سره د سنت نسخ کيږی.

بيا دلته دوه بحثونه دی.

① اول دا چه په احکام شرعيه کښې نسخ کيدې شی که نه؟

---

(١) عمدة القاری(٢٤٥/١)_

(٢) حکاه النووی فی شرح مسلم (٢٠٠/١) کتاب المساجد باب تحويل القبلة من القدس إلى الکعبة)_

(٣) (المصدرالسابق)_

(٤) (البقرة: ١٤٤)_

(٥) جامع البيان فی تفسير القرآن (١٣/٢) القول فی تأويل قوله تعالی (قد نری تقلب وجهک..))_

② دويم دا چه نسخ السنة بالقرآن جائزده که نه؟
**اولنی بحث د نسخ د واقع کیدو امکان** په دې مسئله کښې داهل حق په مینځ کښې خو هډو اختلاف نشته.البته یهود دا وائي چه دالله تعالی په احکامو کښې.اودالله تعالی په کلام کښې نسخ نشي کیدې.ځکه چه دنسخ منلو مطلب دا دې.چه الله تعالی ته د وړاندې نه د دویم حکم پته نه وه.ځکه که چیرته الله تعالی ته د دویم حکم علم وو نو داول نه به ئې دویم حکم نازل کړې وو.اودې څیزته ((بداء)) وائي.یعني چه د یوڅیز په باره کښې د وړاندې نه علم نه وي.روسته ورته دهغې علم اودهغې په مصلحتونو باندې علم اوشي، او ((بداء)) دالله تعالی په حق کښې محال ده.ځکه چه دا خو نعوذ بالله دالله تعالی جهل لره مستلزم ده.(۱)
خوحقیقت دا دې.چه په قرآن اوحدیث کښې په احکام خداوندي کښې د نسخې واقع کیدل ثابت دي.الله تعالی فرمائیلي دي.﴿مَا نَنسَخْ مِنْ آيَةٍ أَوْ نُنسِهَا نَأْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَا أَوْ مِثْلِهَا﴾(۲)
بیا دنسخ په امکان او وقوع باندې دا ډیر لوئې دلیل دې.چه دنبي ﷺ په نبوت باندې یقیني دلائل قائم دي.اوچه ترڅو پورې شرائع سابقه منسوخ اونه ګڼړلی شي.نود نبي ﷺ نبوت نشي ثابت کیدې.نومعلومه شوه.چه د نسخ قائل کیدل لازمي اوضروري څیزدې.(۳)
ددې نه علاوه په شرائع سابقه کښې هم نسخ واقع شوې ده.هم په تورات کښې دي.چه حضرت آدم ﷺ ته حکم شوې وو.چه هغوی دخپلو لونړو نکاح دخپلو ځامنو سره اوکړي. او روسته دا حکم په اتفاق سره منسوخ شوې دې.(۴)
دغه شان دحدیث مبحوث عنه نه هم ښکاره معلومیږي.چه د هجرت نه وړاندې بیت المقدس قبله وه.بیا هغه منسوخ شوه.اوکعبه قبله اوګرځولې شوه.
ترکومې پورې چه د یهودیانود اعتراض تعلق دې.چه دنسخ نه دا معلومیږي. چه الله تعالی وړاندې کوم حکم مناسب ګڼړلې وو.روسته ورته (معاذالله) دخپلې غلطۍ احساس اوشو. اوهغه ئې واپس کړو.نودا ډیرسطحي قسم اعتراض دې.اولږ غورکولونه پس ددې غلطي ښکاره کیږي.
ځکه چه نسخ مطلب د رائې بدلیدل نه دي.بلکه په هرزمانه کښې دهغه دور مناسب احکامات ورکول دي.دناسخ کاردانه وي.چه هغه منسوخ غلط اوګرځوي .بلکه دهغه کار دا وي.چه دحکم د مودې نفاذ متعین کړي.دا اوښائي . چه اولنی حکم ترڅومره مودې پورې نافذ وو.ترهغه مودې پورې هغه مناسب وو. خواوس دحالاتو تبدیلۍ په وجه د نوی حکم

---

(۱) التفسیرالکبیرللرازی(۲۲۷\۳) تفسیرآیت ﴿ ماننسخ من آیة أوننسها﴾ المسألة الخامسة وعلوم القرآن (۱۵۹و ۱۶۰) باب چهارم ناسخ ومنسوخ ـ
(۲) البقرة:۱۰۶)_
(۳) تفسیرکبیر(۲۲۷\۳)-
(۴) المصدرالسابق)_

ضرورت دي. كوم كس چه هم په مناسب فكرسره غور اوكړي. نوهغه دې نتيجې ته د رسيدو نه بغيرنشي پاتې كيدې چه دا تبديلي دحكمت الهى عين مطابق ده. اودې ته په هيڅ اعتبارسره عيب نشي ونيلې. حكيم هغه نه وى چه په هرقسم حالاتوكښې يوقسم نسخه وركوى بلكه حكيم هغه وى چه د مريض اومرض د حالت په بدليدو باندې ژورسوچ كوى او د هغې مناسب سره سره په نسخه كښې تبديلى راولى.

گورئ په مخلوقات كښې داسې وى چه يوحكم اوقانون چه جارى كړى. نوكله خو هغه ددې وجې بيا منسوخ كوى چه ددې قانون په تولوا ړخونو باندې غورنه وو شوې. اوس دڅه وخت تيريدو نه پس غلطى ښكاره شوه. ددې وجې د دغه قانون منسوخ كولوته خبره اورسيده او يا دا وجه وى چه داسې قسم حالات راتلونكى وى. كوم چه دقانون جوړونكو اوجارى كونكو په علم كښې نه وو. څه وخت تيريدو نه پس په حالاتوكښې داسې تبديلى راغله. چه هغه قانون نشى چليدې. ځكه په قانون كښې تبديلى كوى.

بل طرف ته الله تعالى خو عليم اوخبيرذات دې. دهيڅ څيز هيڅ يواړخ دهغه نه پټه نه وى. اونه د راروانو حالاتونه هغه بې خبره دې. ددې وجې دا ممكن نه ده. چه نسخ د څه لاعلمۍ په بنياد باندې ياد غلطۍ ښكاره كيدو په وجه اوشى.

البته دنسخ مثال باندې داسې پوهيدې شئ چه يوهوښياراوقابل حكيم د مريض معائنه اوكړه. اودمرض تشخيص وكړو. اوس حكيم صاحب ته معلومه شوه. چه دده دپاره په اولنو پنځلسو ورځو كښې فلانئ نسخه فائده منده ده. اود روستو دپاره فلانئ نسخه فائده منده ده. اوس هغه هوښيارطبيب يوصورت خودا اختياروليې شى چه پنځلس ورځې دا نسخه استعمال كړه. اوددې نه پس دومره ورځې دا بله نسخه استعمال كړه. خوحكيم اوحاذق طبيب په خپل مريض باندې ذهنى دباؤ اچولوپه ځائې دا اوكړى چه هغه ته يوه دارو وركړى. اودا ورته اووائى چه پنځلس ورځو پورې دا دوائى استعمال كړه. اوددې نه پس ماته ځان اوښايه. اوپنځلس ورځې پس هغه مريض ته دويمه دوائى وركړى. نودنسخې دا تبديلئ دهرڅا په نيز هم عيب نه بلكه هوښيارتيا اوپه مصلحت حكمت باندې مبنى گڼرلې شى.

دغه شان دالله تعالى په علم كښې هم يو حكم تريوې مودې پورې مقرر وى. د هغې په باره كښې د وړاندې نشى خودلې. ددغه مودې تيريدو نه پس د مصلحت او حكمت په مقتضا باندې الله تعالى دويم حكم وركوى. دا ديوحكم منسوخ كول اوبل حكم وركول دالله تعالى په كمال علم اوكمال حكمت باندې مبنى وى.

اودا خبره صرف شرعى احكامو پورې مخصوص نه ده. دكائنات ټوله كارخانه هم په دې اصولوباندې روانه ده. الله تعالى خپل حكمت بالغه سره په موسمونو كښې تبديلى راولى. كله يخنى كله گرمى. كله پسرلې كله خزان. كله باران كله خشك سالى. دا ټول تغيرات دالله تعالى دحكمت بالغه عين مطابق دى. اوكه يوكس دې ته ،، بداء،، وائى. اودا اعتراض كوى چه په دې سره معاذالله دالله تعالى په رائې كښې تبديلى راتلل لازميږى. چه هغوى په يووخت كښې يخنى خوښه كړې وه. او ورسته ورته دخپلې غلطۍ احساس اوشو. اودهغې په

خاني نې ګرمی کړه نوهغه ته به په د احمق نه سوا بل څه ونیلی شی.هم دغه معامله د شرعی احکامو د نسخ هم ده.چه دې ته ((بداء)) ونیل اودا عیب ګنړل ډیره لویه کوتاه نظری اودحقائقونه ناواقفیت دې.

بیا دې دلته یوه خبره دا هم معلومه وی چه مونږ مخکښې ذکرکړی دی.چه د نسخ په امکان کښې دا هل اسلام څه اختلاف نشته.نودغه شان په وقوع کښې هم څه اختلاف نشته.البته په معتزلو کښې صرف د ابومسلم اصفهانی رائې دا ده.چه د نسخ امکان شته.خوپه قرآن کریم کښې چرته هم نسخ نه ده واقع شوې.

خوحقیقت دا دې چه دا موقف د دلائلو په لحاظ سره ډیرکمزورې دې.اوکه دا رائې اختیار کړې شی.نوددې نه پس د قرآن کریم په بعضې آیاتونوکښې د داسې تاویلاتوضرورت پیښیږی.کوم چه د اصول تفسیرنه بیخی خلاف دی.

په اصل کښې چه کوم کسان په قرآن کریم کښې د نسخ قائل نه دی.نودهغوی په زړونوکښې دا خبره ناسته ده.چه نسخ یوقسم عیب دې.دکوم نه چه قرآن کریم خالی ساتل پکار دی. حالانکه نسخ عیب ګنړل دعقل کمزوری ده.

بیاعجیبه دا ده.چه ابومسلم اصفهانی اوده متبعین عام طور د یهودیانو پشان ددې خبرې نه انکار نه کوی.چه دالله تعالی په ډیرواحکامو کښې نسخ واقع شوې ده.بلکه هغوی صرف دا وائی.چه په قرآن کریم کښې نسخ نشته.اوس که نسخ عیب وی.نوپه غیرقرآنی احکامو کښې دا عیب ولې پیدا شوې دې؟حالانکه هغه هم دالله تعالی احکام دی.اوکه دا عیب نه وی.نو کوم څیز چه د قرآنی احکامو نه سوا په نورو کښې عیب نه وی.نوپه قرآنی احکامو کښې ولې عیب ګرځولې شی؟

حاصل د کلام دا دې.چه دجمهورو اهل اسلام په نیز احکام شرعیه برابره ده که قرآنی احکام وی. اوکه غیرقرآنی.په دې کښې یواځې دنسخ امکان نه بلکه واقع شوې هم ده.اوپه یهودو کښې بعضې خو بیخی دامکان نه انکارکوی. او بعضې صرف د واقع کیدو نه انکار کوی. او جمهوراهل اسلام په دې خبره متفق دی.چه دنسخ صرف امکان نه بلکه وقوع هم شته. البته په معتزلو کښې صرف ابومسلم اصفهانی اودهغه متبعینوکښې د یو څو اهل تجدد رائې دا ده.چه دنسخ وقوع په نورشرعی احکاموکښې شته.البته په قرآن کریم کښې د نسخ وقوع نشته.والله أعلم.

**دویم بحث نسخ السنت بالقران جائز ده که نه؟** په دې بحث باندې د پوهیدلو نه وړاندې په دې پوهه شی:چه دنسخې څلورصورتونه دی.

① نسخ الکتاب بالکتاب.② نسخ السنة بالسنة.

③ نسخ الکتاب بالسنة.④ نسخ السنة بالکتاب.

په دې كښې اولنې صورت يعنى نسخ الكتاب بالكتاب متفق عليه دى.(١)البته لګه څکه چه مونږ وړاندې بيان كړې دې په دې كښې اختلاف ضرور شته.چه په قرآن كريم كښې نسخ واقع شوې ده كه نه ده.نوجمهور اهل سنت ددې قائل دى.اوابومسلم اصفهانى معتزلى اودهغه څه متبعين ددې نه انكاركوى.

دويم قسم نسخ السنة بالسنة دى.ددې څلور صورتونه دى.

① نسخ المتواتر بالمتواتر② نسخ الآحاد بالآحاد③ نسخ الآحاد بالمتواتر④ نسخ المتواتر بالآحاد.

ظاهريه اوطوفى حنبلى خود هر صورت د جواز قائل دى.اوجمهور ﷺ داولنو دريو صورتونو د جواز قائل دى.البته د څلورم صورت يعنى نسخ المتواتر بالآحاد ددې نه انكار كوى (٢)څكه چه متواترقطعى وى.اوخبرواحد ظنى.اوظنى دقطعى دپاره ناسخ نشى جوړيدې.څكه چه ناسخ دپاره پكارده.چه كم ازكم د منسوخ سره برابر وى.الله تعالى فرمائيلى دى.﴿مَا نَنْسَخْ مِنْ آيَةٍ أَوْ نُنْسِهَا نَأْتِ بِخَيْرٍ مِنْهَا أَوْ مِثْلِهَا﴾ (٣)

په دې باندې اشكال كيږى.چه احناف بعضې وخت حديث صحيح په حديث حسن باندې منسوخ كوى.حالانكه د صحيح درجه د حسن نه پورته ده.

ددې جواب دا دې.چه دخبرواحد او په ظنيت كښې دواړه سره برابر دى.(كه حديث حسن دې اوكه حديث صحيح دواړه ظنى اواخبار آحاد دى)اوكيدې شى.چه حديث حسن په بعضې قرائنو سره د حديث صحيح دپاره ناسخ شى.والله أعلم.

---

(١) أصول البزدوى مع كشف الأسرار(١٧٥\٣و ١٧٦)..

وقال الكلوذانى الحنبلى يجوز نسخ القرآن بالقرآن والسنة المتواترة بمثلها والآحاد بالآحاد التمهيد فى أصول الفقه ٣٦٨\٢) وقال محققه فى تعليقاته كل هذا بالإتفاق بين القائلين بالنسخ كما قال الآمدى فى الأحكام (١٤٦\٣) ..

دغه شان اوګورئ الإعتبارفى الناسخ والمنسوخ من الآثارللحازمى (ص.٩٩) مسائل النسخ)_

(٢) قال ابن النجارالحنبلى فى شرح الكوكب المنير(٥٥٩\٣و ٣٦١و٥٦٢) ويجوز نسخ قران ونسخ سنة متواتر بمثلهما ونسخ سنة بقرآن ونسخ آحادمن السنة وهى الحديث غير المتواتربمثله أى بحديث غيرمتواتر.ونسخ آحاد بمتواترويجوز عقلاً لا شرعاً نسخ سنة متواترة بآحاد عند الجمهور وحكاه بعضهم إجماعاً وقال الطوفى من أصحابه والظاهرية يجوز واختارهذا القول الباجى ولكن فى زمن النبى ﷺ وقال لايجوز بعده إجماعاً لأنه ﷺ كان يبعث الآحاد بالنسخ إلى أطراف البلاد قال ابن قاضى الجبل: واختاره أيضاً القرطبى المالكى.

وقال ابن الحاجب فى مختصر المنتهى مع شرحه بيان المختصر (٥٣٥\٢) يجوز نسخ القرآن بالقرآن كالعدتين والمتواتر بالمتواتر والآحاد بالآحاد والآحاد بالمتواتر.وأما نسخ المتواتر بالآحاد فنفاه الأكثرون.

واحتج المصنف على عدم جواز نسخ الخبر المتواتر بالآحاد بأن الخبر المتواتر مقطوع والآحاد مظنون والمظنون لا يقابل المقطوع بل يطرح المظنون ويعمل بالمقطوع)_

(٣) البقرة:١٠٦)_

دريم قسم نسخ الكتاب بالسنة ده.په دې كښې اختلاف دې.

دجمهورو فقهاؤ اومتكلمينو رحمهم الله په نيز دا جائز دې دامام شافعى رحمه الله محققينو ملګروهم دا مذهب دې.

امام شافعى رحمه الله په خپلو عاموكتابونوكښې ليكلى دى چه دا صحيح نه ده.هم دا داكثرو محدثينو رحمهم الله قول دې.

بيا دمانعينواختلاف دې.بعضې وائى چه عقلاً هم دا صحيح نه ده دامام شافعى رحمه الله ظاهر مذهب هم دا دې.اوهم دا د حارث محاسبى.عبدالله بن سعيد اوقلانسى رحمهم الله رائې ده. اود امام احمد بن حنبل رحمه الله نه يو روايت هم دا دې.

بعضې نورحضرات فرمائى.چه عقلاً خوجائزده.البته په شريعت كښې واقع شوې نه ده.كه په شريعت كښې ددې څه مثال موندې شو.نوبيا به جائز وه.دابن شريح په دوو روايتونوكښې يو روايت دا دې.

څلورم قسم نسخ السنة بالكتاب دې.په دې كښې هم اختلاف دې.جمهورخو قائل دى.نوكوم حضرات چه د نسخ الكتاب بالسنة قائل دى.نودهغوى نه علاوه هغه حضرات هم د نسخ السنة بالكتاب قائل دى.كوم چه د نسخ الكتاب بالسنة قائل نه دى.په دوى كښې عبدالقادر بغدادى اوابوالمظفرسمعانى هم دى.اوامام شافعى رحمه الله د اولنۍ مسئلې پشان دلته هم د جواز نه انكار كړې دې.

دا خبره دې ياده وى.چه امام شافعى رحمه الله په بعضې مقاماتوكښې داسې كلام كړې دې. چه دهغې نه عدم جوازمعلوميږى.اوبعضې ځايونو د كلام نه جواز مفهوم كيږى.هم ددې وجې نه دهغوى ملګرودهغوى نه دواړه اقوال نقل كړى دى.(١) والله أعلم.

**قوله: وَأَنَّهُ صَلَّى أَوَّلَ صَلَاةٍ صَلَّاهَا صَلَاةَ الْعَصْرِ:** نبى ﷺ دټولونه وړاندې دمازيګرمونځ كړې وو.

**تحويل دقبلې په كوم جمات كښې اوپه كوم مونځ كښې شوې وو؟** تحويل دقبلې د ماسپخين په مانځه كښې شوې وو.يا د مازيګرپه مانځه كښې.دغه شان په مسجد نبوى كښې شوې وو.كه په مسجدالقبلتين.كښې؟په دې كښې اختلاف دې.

د واقدى.ابن سعد.اوابن الجوزى رحمهم الله رائې دا ده.چه تحويل په مسجد القبلتين كښې د ماسپخين په مانځه كښې شوې وو.واقعه داسې پيښه شوه.چه نبى كريم ﷺ د بشرين براء بن معرور د مورد زيارت دپاره دهغوى قبيلې بنوسلمه ته تشريف اوړې وو.هغوى ددوى دپاره روټۍ تياره كړه.اوهلته دماسپخين دمانځه وخت شو.نبى ﷺ دوه ركعته مونځ وركړې وو.چه

---

(١) د نسخ په دې څلوروصورتونوكښې دتفصيل اود مبسوط دلائلودپاره أصول البزدوى مع شرح كشف الأسرار(٣\١٧٥و ١٨٦) باب تقسيم الناسخ والتمهيد فى أصول الفقه (٢\٣٦٨و ٨٧) والإعتبارفى الناسخ والمنسوخ من الآثار(٩٩و١٠٩) وبيان المختصرشرح مختصر المنتهى لإبن الحاجب (٢\٥٣٥و٥٥١) والرسالة للإمام الشافعى (١٠٦-١١٣) إبتداء الناسخ والمنسوخ وشرح الكواكب المنير(٣\٥٥٩و ٥٦٣)_

دتحويل حكم راغلو نونبى ﷺ كعبې طرف ته مخ كړو.[۱]

دحضرت عماره بن روبيه رضي الله عنه نه مروى دى چه «كنا مع النبى ﷺ فى إحدى صلاتى العشى حين صرفت القبلة فدار ودرنا معه فى ركعتين».[۲]

امام بزار رحمه الله دحضرت انس رضي الله عنه نه روايت نقل كړې دې «انصرف رسول الله نحو بيت المقدس وهو يصلى الظهر وانصرف بوجهه إلى الكعبة».[۳]

امام طبرانى هم دا مفهوم په خپل سند سره دحضرت انس رضي الله عنه نه نقل كړې دې.[۴]

ددې ټولو رواياتونه معلوميږى چه تحويل د قبلې دماسپخين په مانځه كښې شوې وو خو دې رواياتو كښې يو روايت هم د ضعف نه خالى نه دې.[۵]

دبعضې عالمانو رحمهم الله رائې دا ده چه تحويل خودماسپخين په مانځه كښې شوې وو البته دا حضرات دا وائى چه په مسجدالقبلتين كښې نه بلكه په مسجد نبوى كښې دتحويل قبلې حكم راغلې وو. اونبى ﷺ خپل مخ كعبې طرف ته كړو. هم دا دعلامه سيوطى اوعلامه آلوسى رحمهما الله رائې ده.[۶]

ددې حضراتو دليل دحضرت ابوسعيد بن المعلى رضي الله عنه روايت دې. دوى فرمائى. «كنا نغدوا للسوق على عهد رسول الله ﷺ فنمر على المسجد فنصلى فيه، فمررنا يوماً ورسول الله ﷺ قاعد على المنبر فقلت لقد حدث أمر فجلست فقرأ رسول الله ﷺ ﴿قد نرى تقلب وجهك فى السماء﴾ حتى فرغ من الآية قلت لصاحبى تعال نركع ركعتين قبل أن ينزل رسول الله ﷺ لنكون أول من صلى فتوارينا فصليناثم نزل رسول الله ﷺ فصلى للناس الظهر يومئذ».[۷]

---

[۱] طبقات ابن سعد(۱\۲٤۱و۲٤۲) ذكر صرف القبلة عن بيت المقدس إلى الكعبة وأوجز المسالك (٤\٩٥)

[۲] أخرجه ابن أبى داود بسند ضعيف قاله الحافظ فى الفتح (۱\۵۰۳) كتاب الصلاة باب التوجه نحوالقبلة حيث كان وأخرجه ابن سعد فى طبقاته (۱\۲٤۳) عن عمارة بن أوس)_

[۳] كشف الأستارعن زاندالبزار(۱\۲۱۲) كتاب الصلاة باب ما جاء فى القبلة رقم ٤۲۰) ومجمع الزوائد (۲\۱۳) باب ما جاء فى القبلة قال الهيثمى وفيه عثمان بن سعيد ضعفه يحيى القطان وابن معين وأبوزرعه ووثقه أبونعيم الحافظ وقال أبوحاتم شيخ)_

[۴] فتح البارى(۱\۵۰۳ كتاب الصلاة باب التوجه نحوالقبلة حيث كان)_

[۵] قاله الحافظ فى الفتح (۱\۵۰۳)_

[۶] روح المعانى (۲\۱۰) وأوجزالمسالك (٤\٩٥) ما جاء فى القبلة)_

[۷] السنن الكبرى للنسائى (۶\۲۹۱) كتاب التفسيرسورة البقرة باب قوله تعالى:( قدنرى تقلب وجهك فى السماء فلنولينك قبلة ترضاها) رقم ۱۱۰۰٤۰)_

حافظ ابن كثير رحمه الله فرمائى. «والمشهور أن أول صلاة صلاها إلى الكعبة صلاة العصر» يعنى مشهوره دا ده چه اولنئ مونځ كوم چه نبى ﷺ دتحويل قبلې نه پس كعبې ته كړې وو.هغه د مازيګر مونځ وو.فرمائى.هم دا وجه ده چه اهل قبا ته په دغه ورځ دتحويل قبلې علم اونشو.بلكه په راروانه ورځ دصبا په مانځه كښې اوشو.(۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.تحقيق دا دې چه تحويل قبلې نه پس چه نبى ﷺ كوم اولنئ مونځ كعبې ته كړې وو.هغه دماسپخين مونځ وو.اودا مونځ نبى ﷺ د بنو سلمه په جمات كښې كړې وو.كوم ته چه نن هم مسجدالقبلتين وائى.دوى هلته د براء بن معرور دوفات په باره كښې تشريف اوړې وو.(۲)

دا مونځ نبى ﷺ دوه ركعته بيت المقدس طرف مخ كړې ادا كړى وو.او باقى دوه ركعته ئې بيت الله ته مخ كړې ادا كړى وو.اوپه مسجد نبوى ﷺ كښې چه نبى ﷺ د ټولونه اولنئ كوم مونځ ادا كړې وو.هغه د مازيګر وو.(۳)

دحافظ ابن حجر رحمه الله په دې تقريرسره د واقدى وغيره په بياناتو اومختلفو رواياتوپه مينځ كښې تطبيق كيږى.

**قوله: وَصَلَّى مَعَهُ قَوْمٌ فَخَرَجَ رَجُلٌ مِمَّنْ صَلَّى مَعَهُ فَمَرَّ عَلَى أَهْلِ مَسْجِدٍ وَهُمْ رَاكِعُونَ:** دنبى ﷺ سره څه كسانو مونځ ادا كړو.بيا دوى سره چه چا مونځ كړې وو په هغوى كښې يوكس اووتل.اودجمات دخلقو په خواه كښې تيرشو.هغه خلق په ركوع كښې وو.يعنى په مانځه كښې مشغول وو.

**نوروخلقو ته دتحويل قبلې خبروركونكې څوك وو؟** دنبى ﷺ سره چه ئې مونځ كړې وو.اوبيا وتلې وو.دا څوك وو؟بعضې عالمان رحمهم الله فرمائى.چه دا عبادبن بشربن قيظى رضي الله عنه وو.(۴)

اوبعضې عالمان رحمهم الله فرمائى.دا دوى عبادبن نهيك (بفتح النون وكسر الهاء)وو.(۵)

---

(۱) تفسير القرآن العظيم(۱۹۳/۱)_

(۲) فتح البارى(۹۷/۱) كښې دحضرت براء بن معرور د خوى بشردوفات ذكردې.حالانكه دا صحيح نه ده.ځكه چه د قبلې دتبديلې نه وړاندې چه څوك وفات شوى وو.هغه براءبن معرور وو دهغه خوئې نه وو.هم په دې باب كښې دآيت كريمه د نزول لاندې ذكر راغلې دې چه دتحويل قبلې نه وړاندې په انصاروكښې د دوو حضراتو وفات واقع شوې وو.يواسعد بن زراره.اوبل هم دا حضرت براء بن معرور وو. رضي الله عنه اوحضرت براء بن معرور رضي الله عنه خوئې دحضرت بشروفات د غزوه خيبر نه پس شوې وو.فتنبه الإصابة (۱۵۰/۱)_

(۳)فتح البارى (۹۷/۱)_

(۴) كما رواه ابن منده من حديث تويلة بنت أسلم كذا فى فتح البارى(۹۷/۱) والأصابة (۲۶۳/۲)_

(۵) فتح البارى(۹۷/۱) والإصابة (۲۶۶/۲) والسعاية (۹۲/۲)_

داولنى نوم تصريح تويله (۱) بنت اسلم يا مسلم انصاريه حارثيه رضي الله عنها په روايت كښې راغلى دى. هغوى فرمائى. ((جاء رجل من بنى حارثة يقال له عباد بن بشر بن قيظى فقال إن النبى ﷺ قد استقبل البيت الحرام فتحولوا إليه)) (۲)

**د دويم جمات نه كوم جمات مراد دې؟** بيا په دې روايت كښې چه كوم روايت وارد شوې دې چه هغه ديوجمات په خلقو تيرشو. ددې جمات نه كوم جمات مراد دې؟

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى. چه دا واقعه دبنومسلمه دجمات وه. (۳)

خوبه دې جواب باندې دا اعتراض دې چه كله نبى ﷺ پخپله مسجد بنوسلمه كښې يعنى ذوالقبلتين كښې موجود وو. نوبيا يوكس ته دبنومسلمه دجمات خلقو ته د خبر وركولو ضرورت وو؟

حقيقت دا دې چه حافظ رحمه الله د بنوسلمه دكوم جمات نوم ليكلې دې. دا دهغوى خپل گمان دې. كوم چه ئې په ..قيل.. سره وئيلى دى. اوددې ئې څه سند هم نه دې ذكر كړې. صحيح دا ده. چه د بنوحارثه دجمات واقعه ده. لكه څنگه چه توليه بنت د اسلم رضي الله عنها په روايت كښې تصريح موجود ده. هغه فرمائى. ((صلينا الظهر أو العصر فى مسجد بنى حارثة فاستقبلنا مسجد إيلياء فصلينا ركعتين)) (۴)

**يواشكال اودهغې جواب:** دلته يواشكال بل كيږى. هغه دا چه په كتاب الصلاة كښې دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما روايت راځى. په هغې كښې دى. ((بينا الناس بقباء فى صلاة الصبح إذ جاءهم آت..)) (۵) ددې روايت نه معلوميږى. چه راتلونكى كس بنوعمروبن عوف ته خبر وركړې وو. كوم چه په قباء كښې آباد وو. اوهغوى دصبا مونځ كولو.

دلته د حافظ ابوالفضل بن طاهر رحمه الله دنقل مطابق خبر وركونكې كس عبادبن بشر رضي الله عنه وو. (۶) اوس په دې رواياتوكښې تعارض راځى. چه آيا د بنوحارثه جمات ته خبر وركونكې كس

---

(۱) ددې نوم تويله (نون سره مصغراً) هم راغلې دې. او تويله (تائے مثناة فوقانيه) سره هم راغلې دې. فتح البارى (۹۷\۱) كښې ((طويلة)) واقع دې. او (۵۰۳\۱) كښې ((ثويلة)) (بالثاء المثلثة) واقع دې. دا دواړه غلط دى. اوگورئ (الإصابة (۲۵۶\۴ و ۲۵۷) و (۴۲۰\۴) حافظ په ((الإصابة)) كښې ((نويلة)) (بالنون) راجح گرځولې دې)_

(۲) الإصابة (۲۶۳\۲) والتمهيد (۴۶\۱۷)_

(۳) قال الحافظ رحمه الله فى الفتح (۹۷\۱) وأهل المسجد الذين مر بهم قيل هم من بنى سلمة..)_

(۴) رواه الحافظ أبوبكر بن مردويه كما فى تفسير ابن كثير (۱۹۳\۱) وأبوحاتم فى تفسيره كما فى الفتح (۵۰۳\۱)_

(۵) صحيح بخارى كتاب الصلاة باب ما جاء فى القبلة رقم ۴۰۳)_

(۶) فتح البارى (۵۰۶\۱) كتاب الصلاة باب ما جاء فى القبلة)_

عباد بن بشر رضي الله عنه وو.اوكه دمسجد قباء مخبر وو؟بيا دا چه دا د مازيګردمونځ واقعه وه اوكه دصبا دمونځ.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د حضرت براء په حديث باب كښې چه دجمات دخلقو ذكردې.هغه بنوحارثه وو.چونكه هغوى په مدينه منوره كښې دننه اوسيدل.څكه هغوى ته د مازيګرپه مانخه كښې خبر ملاؤ شو.اوهغوى ته خبر وركونكې عبادبن بشريا عبادن بن نهيك رضي الله عنهما وو دحضرت براء رضي الله عنه په حديث باب كښې هم ددې ذكردې.

دقباء خلق چونكه د مدينې منورې نه بهراوسيدل.ددې وجې هغوى ته به خبر رسيدو كښې روستوالې اوشو.په دويمه ورځ دصبا په مونځ كښې هغوى ته خبر اوشو.هغوى ته دخبر رسونكى نوم معلوم نه دې.په ظاهره دعبادبن بشر رضي الله عنه نه علاوه بل صحابى رضي الله عنه معلوميږى. څكه چه عباد بن بشر رضي الله عنه د بنوحارثه سره تعلق ساتلو.اود مسلم په روايت كښې اهل قباء ته د خبر وركونكى كس ذكر «رجل من بنى سلمة» په الفاظوسره راغلې دې.دحضرت انس رضي الله عنه په روايت كښې دى.«فمر رجل من بنى سلمة وهم ركوع فى صلاة الفجروقد صلوا ركعة ..»(۱)اودا خبره يقينى ده.چه بنو حارثه اوبنو مسلمه دواړه جدا جدا قبيلې دى.(۲)

خلاصه دا شوه،چه دتحويل قبلې حكم دټولو نه وړاندې دماسپخين په مانخه كښې راغلې وو.په دغه وخت كښې نبى صلى الله عليه وسلم په مسجد ذوالقبلتين كښې وو.چه دمانخه په حالت كښې نبى صلى الله عليه وسلم اوټولو مونځګذارو كعبې طرف ته مخ كړل.(۳)

تركومې پورې چه دحضرت ابوسعيدبن المعلى رضي الله عنه د روايت تعلق دې.دكوم نه چه معلوميږى. چه دتحويل حكم دماسپخين په مانخه كښې په مسجد نبوى كښې راغلې وو. نوداحديث مونږ د دويمې ورځې په واقعه باندې حمل كولې شو.يعنى مطلب دا دې.چه حضرت ابوسعيدبن المعلى رضي الله عنه ته د تحويل قبلې داول نه علم نه وو.په دويمه ورځ كله چه نبى صلى الله عليه وسلم د څه ضرورت دپاره د ماسپخين نه وړاندې خطبه وركوله.په هغې كښې د تحويل قبلې ذكر هم راغلو.اوآيت مذكوره ئې هم واورولو.په دغه وخت كښې دوى مسجد نبوى ته راورسيدل.اودا ئې اوګڼړل.چه دا حكم اوس نازل شو.نود «أول من صلى» جوړيدو دپاره ئې خپل ملګرى سره يوځائې مونځ اوكړو.ددې نه پس نبى صلى الله عليه وسلم دماسپخين دمونځ امامتى وركړه.كومه چه ښكاره خبره ده.خانه كعبې طرف ته ئې مخ كړې وو اومونځ ئې كړې وو.

چه دا احتمال موجود وى.نوددې باوجود دا حديث ددې خبرې دپاره د دليل په طور پيش كول صحيح نه دى.چه اولنې مونځ په مسجد نبوى كښې دماسپخين شوې وو.حالانكه د صحيح بخارى په روايت كښې اولنې مونځ د مازيګرخودلې شوې دې.

---

(۱) صحيح مسلم (۲۰۰/۱) كتاب المساجد باب تحويل القبلة من القدس إلى الكعبة)_

(۲) فتح البارى(۵۰۶/۱) كتاب الصلاة باب ما جاء فى القبلة)-

(۳) كما حكاه ذاك [illegible] الطبقات (۲۴۱/۱و ۲۴۲) ذكر صرف القبلة عن بيت المقدس إلى الكعبة)_

ددې نه پس په مسجد نبوی کښې پوره مونځ دمازيګرخانه کعبې طرف ته شوې دې(١)په دې مونځ کښې د بنوحارثه امام (٢)عبادبن بشر رضي الله عنه وو.دوی چه د مانځه نه فارغ شونو زر راووتلو.اوډيرې قوم جمات ته اورسيدلو.هغه وخت هلته مونځ کيدو.هغوی مونځګذارو ته خبر ورکړو چه قبله بدله شوې ده.نوخلقو هم په هغه وخت کښې خپل طرف بدل کړل(٣)
چونکه مسجد بنی عمروبن عوف د مدينې منورې نه بهر په قبا کښې وو.دغه حضراتو ته په دغه ورځ خبر اونه رسيدل.په دويمه ورځ د بنو سلمه يو سړې دصبا په مانځه کښې قبا ته اورسيدل. اوهغه خلقو ته ئې د قبلې بدليدو خبر اورسولو(٤) په دې طريقه په ټولو رواياتو کښې تطبيق راځی.والعلم عندالله سبحانه.

**تنبيه:** حافظ ابن حجر رحمه الله دلته اويه کتاب الصلاة کښې دحضرت براء بن عازب رضي الله عنه د حديث په تحقيق کښې هم دا ذکرکړی دی.چه دا کس حضرت عبادبن بشر رضي الله عنه يا عباد بن نهيک رضي الله عنه وو.(٥)خوچه کله د بخاری په آخر کښې «كتاب أخبار الآحاد» ته رسيدلې دې نو ليکی. «وقد تقدم شرحه فی كتاب العلم وفی أبواب إستقبال القبلة أيضاً وبينت هناك أن الراجح أن الذی أخبر فی حديث البراء رضي الله عنه بالتحويل لم يعرف إسمه»(٦) يعنی روسته بيانيږی.چه دحديث براء رضي الله عنه د مخبر نوم معلوم نه دې.حالانکه پخپله دحافظ رحمه الله دتحقيق مطابق هلته عبادبن بشر رضي الله عنه مراد دې.البته دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما په روايت کښې چه دکوم مخبر ذکردې.حافظ رحمه الله دهغوی په باره کښې دلاعلمۍ اظهار کړې دې.(٧) فانتبه والله سبحانه أعلم.

**داهل قباء د منسوخ قبلې طرف ته د مونځ د ادا کولوحکم:** د وړاندينی تقريرنه تاسو ته معلومه شوه.چه تحويل دماسپخين په مانځه کښې شوې وو. اهل قباء په دغه ورځ د مازيګر،ماښام اوماخستن مونځ بيت المقدس طرف ته کړی وو. تردې چه په دويمه ورځ د صبا په مانځه کښې ورته خبر کيږی.
اوس سوال دا دې.چه دهغوی دهغه مونځونو به څه حکم وی.کوم چه هغوی منسوخ قبلې ته کړی وو آيا دهغې د راګرځولې حکم به ورته شوې وو.اوکه دهغوی دپاره به اعاده لازم نه وه.

---

١) كما فی حديث الباب)_
٢) وكان يؤم بنی حارثة كذا فی الإصابة(٢\٢٦٣)_
٣) كما فی حديث تويلة بنت أسلم عند ابن مردويه وابن أبی حاتم انظرتفسير ابن كثير(١\١٩٣) وفتح البارى (١\٥٠٣)_
٤) يدل على ذلک ما رواه مسلم فی صحيحه (١\٢٠٠) كتاب المساجد باب تحويل القبلة من القدس إلى الكعبة)_
٥) فتح البارى(١\٩٧) و(١\٥٠٦)_
٦) فتح البارى(١٣\٢٣٨) كتاب أخبار الآحاد باب ما جاء فی إجازة خبرالواحد الصدوق..)_
٧) فتح البارى(١\٥٠٦)_

په دې مسئله كښې دواړه قولونه دى البته په دې كښې اختلاف نشته چه د منسوخ كيدو نه پس او دحضرت جبريل ﷺ د تبليغ نه وړاندې حكم نه لازميږى
امام طحاوى رحمه الله فرمائى چاته چه دعوت نه وى رسيدلې اوهغه ته د فرضيت خداوندى علم نه وى اونه دا ممكن وى چه دچا نه علم حاصل كړى په داسې صورت كښې دهغه په ذمه فرض نه لازميږى (۱)

**په دارالحرب كښې داسلام قبلونكى حكم** ددې ځائې دعالمانو ﷺ په مينځ كښې دا اختلاف پيدا شوې دې چه كوم كس په دارالكفر كښې يا د دارالاسلام په اطرافو ومضافاتو كښې مسلمان شوې وى اوپه هغه ځائې كښې داسې بل څوك موجود نه وى دچا نه چه دشريعت علم حاصليدې شى اونه هغه ته دا معلومه وى چه الله تعالى كوم څيزونه فرض كړى دى دخه مودې نه پس هغه ته د هغې د فرضيت علم اوشى نودهغه په ذمه به د مونځونو قضا وى كه نه؟

دامام مالك ، شافعى اوڅو نورو حضراتو ﷺ رائې دا ده چه دده روژو او مونځونو قضا به دده په ذمه لازم وى ځكه چه هغه دمعلومولو دپاره په وتلو اوپه كوشش كولو قادر وو
امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى چه دده په ذمه به دغه عبادات اوفرائض په هغه وخت كښې لازم وى كله چه هغه ددې باوجود چه دعلم حاصلول ممكن وو خوده كوشش نه وى كړې او كوتاهى ئې كړې وى اوكه ده ته داسې كس نه وى رسيدلې دچا نه چه ده د شريعت علوم حاصلولى شول نود هغه په ذمه څه لازم نه دى (۲) والله أعلم

**قوله** فَقَالَ أَشْهَدُ بِاللَّهِ لَقَدْ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ مَكَّةَ فَدَارُوا كَمَا هُمْ قِبَلَ الْبَيْتِ: هغوى اووئيل زه الله تعالى ګواه جوړوم او وايم چه ما د رسول الله ﷺ سره مكې مكرمې ته مخ كړې مونځ كړې دې هغوى ټول هم په دغه حالت كښې بيت الله طرف ته تاؤ شول

ددې تاويدو صورت د تويله بنت اسلم رضي الله عنها په حديث كښې راغلې دې «فتحول النساء مكان الرجال والرجال مكان النساء» (۳)
په ظاهره دا صورت شوې وو چه كله د بيت المقدس په ځائې بيت الله شريف قبله جوړه كړې شوه نونبى ﷺ دخپل ځائې نه اخوا شوه اودجمات آخرى حصې ته راغلو اوسړى دښځو ځايونو ته لاړل اوښځې دسړو ځايونوته ځكه چه بيت المقدس شمال كښې دې اومكه معظمه جنوب كښې په مينځ كښې مدينه منوره وه نوكله چه به ئې بيت ا لمقدس طرف ته مخ كولو نونبى ﷺ به دجمات شمالى ديوال ته مخ په لور مونځ وركولو اوكله چه كعبه ددوى

---
(۱) عمدة القارى (۱\۲۴۷و۲۴۸)_
(۲) عمدة القارى (۱\۲۴۸)_
(۳) تفسيرابن كثير (۱\۱۹۳) والإصابة (۴\۲۵۷)_

قبله مقرر کړې شوه نو خواه مخواه نبي ﷺ دخپل ځائې نه اخوا شو اودهغې مخالف طرف جنوبي ديوال طرف ته لاړلو اوهغې طرف ته ئې مخ کړو اواودريدلو اوښځې دسړو ځائې ته اوسړي دښځو ځائې ته لاړل.[1]

**ايا په مانځه کښې په مخ کرځولوسره عمل کثيرنه راځي؟** تاسوګورئ چه په دې صورت کښې امام دخپل ځائې نه ځي.اومخامخ ديوال طرف ته منتقل کيږي دغه شان په مقتديانو کښې سړي دښځو ځائې ته اوښځې د سړو ځائې منتقل کيږي. اګرچه سړي مقتديان په خپل ځائې ولاړ وي.نوترڅه حده پورې خپل مخ بدلولې شي.خوڅه نه څه عمل هغوي هم ضرور کوي.اوامام اوښځودپاره خودخپل ځائې په بدلولوکښې د ډيرعمل ضرورت وي.نوآيا دا عمل مفسد د مانځه نه دې؟

ددې ځوجوابات ورکړې شوي دي.

① يوجواب دا ورکړې شوې دې.چه دا دهغه وخت واقعه ده.چه عمل کثيرمفسد د صلاة نه وو.② دويم جواب دا دې.چه هغه مشي اوعمل مفسد دصلاة وي.چه هغه متوالي اوپرله پسې وي.حالانکه دلته مشي متوالي نه وه.بلکه په توقف سره وه.

③دريم جواب چه زړه پرې مطمئن کيږي.هغه دا دې چه عمل کثيراګرچه مفسد د صلاة دې. خودډې نه د ضرورت مواضع مستثنى دي.ګورئ د محدث دپاره ،،بناء،، جائزده ترهغه وخته پورې چه په مينځ کښې کلام نه وي شوې حالانکه د بناء دپاره هغه د مشي اودس وغيره اعمال کوي.دغه شان دلته هم دا د مواضع ضرورت څخه دې.نواجازت به وي ځکه چه قاعده ده.((الضرورات تبيح المحظورات)) بيا خاص کرپه داسې موقع خوددې اعتراض هډو ضرورت نشته.چه دا عمل د نبي ﷺ اوصحابه نه صادرشوي دې.[2]

**ديوکس په خبر باندې قطعي قبله پريخودل څنګه جائز شو؟** دلته په حديث باب کښې تاسوګورئ چه يوکس دجمات خلقو په خواه کښې تيريږي. اودا خبر ورکوي چه قبله بدله شوه.اوددغه يوکس په خبر باندې يقين کوي .اوټول مونځګذار خپل مخ بل طرف ته اړوي اوس سوال دا دې.چه دبيت المقدس قبله خوپه يقيني دليل سره ثابته وه. صحابه کرامو ﷺ نبي اکرم ﷺ په خپلو سترګوباندې بيت المقدس طرف ته په استقبال کولوباندې ليدلې وو.نوصرف ديوکس په خبرباندې دې حضراتوقطعي قبله څنګه پريخوده اوکعبې طرف ته ئې مخ کړل؟

ددې جواب دا دې.چه خبر واحدکه محتف بالقرائن وي.يعنى هغې سره قرائن شامل شي نوهغه د قطعيت فائده ورکوي.[3]

---

[1]) فتح الباري(۱\۵۰۷) کتاب الصلاة باب ماجاء في القبلة)۔

[2]) فتح الباري(۱\۵۰۷) کتاب الصلاة باب ما جاء في القبلة او السعاية في کشف ما في شرح الوقاية (۲\۹۳)

[3]) نزهة النظرفي توضيح نخبة الفکر(۲۷\۱۲۴)_

دلته اوګورئ صحابه كرامو ﷺ ته دا معلومه وه چه د نبى كريم ﷺ خواهش اوآرزو بلكه ډيرخواهش اوآرزو دا ده چه بيت الله قبله جوړه كړې شى اوبيا دهغه مناسبتونو هم هغوى ته علم وو. كوم چه د نبى ﷺ د خانه كعبې سره وو ددې وجې هغوى ته دا معلومه شوه چه دا حكم خامخا راتلونكې دې ددې وجې دا محتف بالقرائن وو اوپه دې سره د قطعيت فائده حاصله شوه ددې وجې صحابه كرامو ﷺ ديوكس په خبر باندې عمل اوكړو والله أعلم.

آياچه د خارج نه ديوخيزتلقين اوشى اوپه هغې باندې عمل اوشى په دې مونځ نه فاسديږى؟
دلته يوه خبره دا ده چه دخارج نه يوكس مونځګذارته تلقين اوكړى اوهغه پرې عمل اوكړى نوپه دې سره مونځ فاسديږى. حالانكه دلته دخارج نه يوكس د بنو عمروبن عوف په جمات كښې يعنى مسجد قباء كښې اومسجد بنى حارثه كښې مونځګذارته دا ښائى چه قبله بدله شوې ده. خپل مخ واړوئ. اوخلقوهغه دهغه كس تلقين قبلول كړو اوخپل مخونه ئې بيت الله ته واړول. آيا په دې باندې مونځ فاسد نشو؟
ددې جواب دا دې. كه يوكس دخارج نه مونځګذار ته څه هدايت وركړى او مونځګذاردهغه په هدايت باندې بغيردڅه چون چراء اوبغيرد سوچ غورنه عمل اوكړى نومونځ فاسديږى اوكه دهغه په هدايت باندې مونځګذارپخپله عمل اوكړى. اودغوركولونه هغه ته خپله غلطى معلومه شى. اوبيا هغه ددې اصلاح اوكړى. نوپه داسې صورت كښې مونځ نه فاسديږى. ([2])
دلته به هم دا صورت راپيښ شوې وى. چه چونكه د داسې حكم د راتلو اميد وو ددې وجې دخبر ملاويدونه پس به هغوى سوچ كړې وى. چه دخبرپه صحت باندې ئې يقين راغلې وى نوبيا به ئې خپل مخونه اړولى وى. والله أعلم بالصواب.

**قوله: وَكَانَتِ الْيَهُودُ قَدْ أَعْجَبَهُمْ إِذْ كَانَ يُصَلِّي قِبَلَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ وَأَهْلُ الْكِتَابِ:** يهودوته نبى ﷺ په هغه وخت كښې خوښ وو. په كوم وخت كښې چه نبى ﷺ بيت المقدس طرف ته مخ كولو. اواهل كتاب هم خوشحاله وو.
يعنى ديهودو دا خبره خوښه وه. چه نبى ﷺ بيت المقدس طرف ته مونځ كوى. څكه چه بيت المقدس دهغوى قبله وه.
دلته په «وأهل الكتاب» كښې «أهل» مرفوع دې. اوددې عطف په «اليهود» باندې دې. سوال دا

---

[1]) فتح البارى(۱/۵۰۷) كتاب الصلاة باب ماجاء فى القبلة)_
[2]) قال ابن العابدين ﷺ فى ردالمحتار(۱/۴۲۲) وفى القنية قيل لمصل منفرد تقدم فتقدم بأمره أو دخل فرجة الصف فتقدم المصلى حتى وسع المكان عليه فسدت صلاته وينبغى أن يمكث ساعة ثم يتقدم برأى نفسه وعلله فى شرح القدورى بأنه إمتثال لغيرأمرالله تعالى)..
وقال فى الدرالمختار(۱/۴۵۹و ۴۶۰) .. لوإمتثل أمرغيره .فقيل له تقدم فتقدم أو دخل فرجة الصف أحد فوسع له فسدت بل يمكث ساعة ثم يتقدم برأيه قهستانى معزياً للزاهدى)_

دې چه داهل کتابونه کوم خلق مراد دی؟قرین قیاس دا دی چه داهل کتاب نه نصاری مراد دی خواشکال دا دې که انصاری مراد وی نود یهودو د خوشحالیدو یوه جائزه وجه دا وه چه دهغوی دقبلې استقبال کولې شو. خو د نصاری دخوشحالئ دپاره په دې کښې څه سامان نه وو ځکه چه دهغوی قبله بیت المقدس نه وو بلکه بیت اللحم وو. کوم چه دهغه ځائې نه جنوبی طرف ته واقع وو.

خوونیلی شی چه نبی ﷺ بیت المقدس ته مخ کولو. نویه دې کښې نصارو ته په دوو وجوهو خوشحالی کیدې شوه.

یوه وجه خودا چه کوم کس په مدینه کښې بیت المقدس ته مخ کوی. نودهغه مخ تبعاً بیت اللحم ته هم راځی. ځکه چه دمدینې منورې نه دواړه په یوطرف وو.

دویمه وجه دا ده. چه نصاری هم د دین موسوی اودتورات د احکامو مامور وو. ځکه چه په انجیل کښې احکام ډیر کم وو. زیاتې قصې اومواعظ وو. نوځکه د قوانینواواحکامو اصل مجموعه د نصارو دپاره تورات وو. چونکه د اهل تورات قبله هم بیت المقدس وو. نوځکه نصاری ورسره هم خوشحاله شول.

دنصارو دخوشحالئ یوه وجه دا هم کیدې شی چه داسلام په مقابله کښې ټول امتونه یو دی. نصاری دا سوچ کولو. چه زمونږ قبله دې متعین نه وی. خوچه کومه قبله دمسلمانانو دپاره د سکون باعث وه. چه هغه خو هم جوړه نشی.

اوکه د«أهل کتاب» نه نصاری مراد نه وی. نوبیا به بیا عطف الخاص علی العام وی. اوپه دې صورت کښې به د ..یهود.. نه مراد عوام اوداهل کتاب نه مراد دیهودوعالمان وی. اوداهل کتاب نه هغه یهود هم مراد کیدې شی. کومو چه اسلام قبول کړې وو. یا داسلام قبلونکی جوړیدل. دهغوی دخوشحالئ یوه وجه دا هم کیدې شوه. چه هغوی ته دخپل ایمان دپاره یوه نښه ملاؤ شوه. ځکه چه د نبی ﷺ د نبوت په نښو کښې یوه نښه دا هم وه. چه دځه ورځودپاره به د بیت المقدس استقبال هم کوی.(۱)

علامه کرمانی رحمه الله ونیلی دی چه دا هم کیدې شی چه په «وأهل الکتاب» کښې واو د ..مع.. په معنی وی. اوددې نه روسته دمفعول معه په وجه منصوب وی. اوس به تقدیرد عبارت دا وی. «کان یصلی نحوبیت المقدس مع أهل الکتاب» یعنی یهودو ته به دا ښه معلومیده. چه نبی ﷺ د اهل کتاب یعنی یهودیانوسره بیت المقدس ته مونځ کوی علامه کرمانی رحمه الله فرمانی «وهذا هو الأظهر لوصح روایة النصب»(۲)

---

(۱) ددې تولوتفصیلاتو دپاره اوګورئ شرح کرمانی(۱\۱۶۵) وفتح الباری(۱\۹۷) وعمدة القاری (۱\۲۴٤) وفضل الباری(۱\٤۷۶) وإیضاح البخاری(٤\۳۶۳)-

(۲) [illegible] (۱\۱۶۸) [illegible] القاری(۱\۲٤٤)_

**قوله**: فَلَمَّا وَلَّى وَجْهَهُ قِبَلَ الْبَيْتِ أَنْكَرُوا ذَلِكَ: بيا كله چه نبي ﷺ بيت الله طرف ته مخ كړو نويهودو اعتراض كول شروع كړو. دانكار دا صورت هم كيدې شي چه د دوى تراوسه پورې كوم عمل وو. يا به هغه صحيح وو. اويا چه اوس څه كوى دا به صحيح وى. نوكه د ماضى عمل ئې صحيح وو. نواوس چه كوم عمل كوى. دا غلط دې اوكه دا عمل صحيح وى نوبيا د ماضى عمل به غلط وو.

ددې جواب دا دې. چه تراوسه پورې نبي ﷺ دالله تعالى په حكم باندې بيت المقدس ته مخ كولو اوپه دې استقبال كښې ستاسوتاليف مقصود وو خوددې نه پس الله تعالى بيت الله قبله اوګرځوله. ځكه چه ستاسودپاره تاليف مفيد نشو. اوكعبه چونكه د نبي ﷺ د جدامجد حضرت ابراهيم ﷺ قبله ده. او د هغوى قبله پاتې شوې ده. نونبي ﷺ دخپل مورث اعلى قبلې طرف ته واړولې شو.

د انكاردا صورت هم كيدې شي. چه هغوى وئيلى وى. دوى بيت المقدس ولې پريخودو او خانه كعبه ئې قبله جوړه كړه. حالانكه بيت المقدس خودانبياء سابقينوعليهم السلام قبله وه.

ددې جواب دا دې. چه بيت المقدس اګرچه دانبياء بنى اسرائيل عليهم السلام قبله وه. خو خانه كعبه دحضرت ابراهيم او حضرت اسماعيل عليهما السلام قبله ده. نودواړه د پيغمبرانوعليهم السلام قبلې شوې. اوكعبې ته ددې وجې هم ترجيح حاصل ده. چه دا د محمد ﷺ جدامجد حضرت اسماعيل اوحضرت ابراهيم عليهما السلام قبله پاتې شوې ده. والله أعلم.

**قوله**: قَالَ زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ عَنْ الْبَرَاءِ فِي حَدِيثِهِ هَذَا: علامه كرمانى رحمه الله فرمائى. چه په دې كښې يواحتمال خو دا دې. چه امام بخارى رحمه الله دا دتعليق په طورذكركړې وى. اودا احتمال هم شته. چه د حديث سابق د لاندې دا داخل وى. بيا خاص كركله چه حرف عطف مقدرمنل هم جائز اوګرځولې شى. ((كما هومذهب بعض النحاة)) (¹)

حافظ ابن حجر رحمه الله په جزم سره فرمائيلى دى. چه دا دحديث سابق د لاندې دې. امام بخارى رحمه الله دخپل عادت مطابق حرف عطف حذف كړې دې. اودا ئې ذكركړې دې. كوموحضراتوچه دا تعليق ګرځولې دې. دهغوى نه غلطى شوې ده. ځكه چه امام بخارى رحمه الله په كتاب التفسيركښې دا ټكړه د پورتنى حديث سره ((عن أبي نعيم عن زهير)) په طريق سره مكمل نقل كړې دې. (²)

علامه عينى رحمه الله اول خو په علامه كرمانى رحمه الله باندې رد كړې دې. چه هغوى تقديرحرف عطف منلې دې. اودا ئې مسند ګرځولې دې. حالانكه دصحيح مذهب مطابق د حرف عطف تقدير صحيح نه دې.

---

(¹) شرح الكرمانى (۱\۱۶۵)_
(²) فتح البارى (۱\۹۸)

اوبيا ئې په حافظ ابن حجر رحمه الله باندې په دې طريقه رد كړې دې چه هغوى دتعليق احتمال بيخي رد كړې دې.علامه عينى رحمه الله فرمائى چه په دې كښې هيڅ شك نشته.چه ددې صورت هم د تعليق دې اودمعلق كيدو احتمال هم موجود دې.ځكه چه په دې ټكړه كښې اوپه ماقبل حديث كښې داسې څه څيز نشته.كوم چه لازمى طور دواړه يوګرځول ضرورى وى اوتركومې پورې چه په تفسير كښې هم په يوسياق سره د ذكركولوتعلق دې.نودهغې نه دا نه لازميږى چه په دې مقام كښې تعليق نه دې.

زهيربن معاويه چه دلته دحضرت براء رضي الله عنه حديث ذكركړې دې.ددې تخريج امام ترمذى او ابوداود د ابن عباس رضي الله عنهما نه كړې دې (۱) ((قال لما وجه النبى صلى الله عليه وسلم إلى الكعبة قالوا:يارسول الله صلى الله عليه وسلم كيف بإخواننا الذين ماتوا وهم يصلون إلى بيت المقدس فأنزل الله تعالى ﴿وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ﴾)) (اللفظ للترمذى) ددې تخريج ابن حبان هم په خپل صحيح كښې كړې دې.(۲) اوامام حاكم رحمه الله په مستدرك (۳) كښې كړې دې.(۳)

**قوله: أَنَّهُ مَاتَ عَلَى الْقِبْلَةِ قَبْلَ أَنْ تُحَوَّلَ رِجَالٌ وَقُتِلُوا:** يعنى د بيت المقدس نه بيت الله طرف ته دقبلې بدليدو نه وړاندې څه حضرات وفات شوى وو.اوقتل كړې شوى وو

د ((انه)) ضمير،ضمير شان دې.اود((مات)) فعل ،فاعل،((رجال)) دې.په مينځ كښې ((قبل أن تحول)) دفعل اوفاعل په مينځ كښې دجمله معترضه په طور سره ده. اود((قتلوا)) عطف په ((مات)) باندې دې.اود((القبلة)) نه مراد ((القبلة المنسوخة)) يعنى بيت المقدس مراد ده.(۴)

دفرضيت صلاة نه پس اوتحويل قبلې نه مخكښې چه كوم حضرات وفات شوى وو.هغه تول لس كسان وو.په هغوى كښې د دريوكسانو وفات ،عبدالله بن شهاب زهرى،مطلب بن ازهر زهرى. او سكران بن عمروعامرى رضي الله عنهم په مكه كښې شوې وو.اودپنځوحضراتو،حطاب حاء مهملې سره- بن حارث جمحى،عمروبن اميه اسدى،عبدالله بن حارث سهمى،عروه بن عبدالعزى عدوى.اوعدى بن نضله عدوى رضي الله عنهم وفات په حبشه كښې شوې وو.اود دوو حضراتو حضرت براء بن معرور اواسعدبن زراره رضي الله عنهما وفات دچا تعلق چه د مدينې د انصارو سره وو.په مدينه كښې شوې وو.

په دغه موده كښې يوكس اياس بن معاذ شهلى رضي الله عنه هم وفا شوې وو. خو دهغوى اسلام

---

(۱) سنن أبى داود كتاب السنة باب الدليل على زيادة الإيمان ونقصانه رقم ۴۶۸۰) وجامع ترمذى كتاب التفسيرباب ومن سورة البقرة رقم ۲۹۶۴)_

(۲) مواردالظمآن إلى زوائد ابن حبان(ص.۴۲۵) كتاب التفسير.سورة البقرة رقم ۱۷۱۸)_

(۳) مستدرك للحاكم(۲\۲۶۹) كتاب التفسير)_

(۴) عمدة القارى(۱\۲۴۸و۲۴۹)_

(۵) عمدة القارى(۱\۲۴۹)_

مختلف فیه دي.(۱)

یاد ساتي: چه دلته د «مات رجال» سره «وقتلوا» هم ونیلی شوی دی د «قتلوا» دا لفظ دزهیرد طریق نه سوا په بل طریق کښې نشته بلکه په ټولو روایتونوکښې د «موت» ذکرراغلي دي.(۲)

ددې وجې علامه عینی رحمه الله فرمائي. «فیحتمل أن تکون هذه غیرمحفوظة»(۳) یعنی ددې خبرې احتمال شته چه دا لفظ غیرمحفوظ وي.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه ماته چرته هم داخبر نه دې ملاؤ شوې چه دتحویل قبلې نه وړاندې یومسلمان هم قتل شوې وي.خودعدم ذکرنه عدم وقوع نه لازمیږي ددې وجې که دا لفظ د «قتلوا» محفوظ وي.نوبه دې به محمول وي.چه په دغه موده کښې څه غیرمعروف مسلمانان قتل شوی وو.دهغوی د نومونو اهتمام څکه نه دې کړې شوې چه په هغه زمانه کښې د تاریخ زیات اهتمام نه وو.

حافظ رحمه الله فرمائي.چه ماته په مغازی ابن اسحاق کښې د یوکس سویدبن الصامت ذکرملاؤ شوې دې.ابن اسحاق رحمه الله فرمائي.چه دا کس نبی ﷺ سره دهغه وخت نه وړاندې ملاؤ شوې وو.کله چه انصارد نبی ﷺ سره په عقبه اولی کښې ملاؤ شوی وو.نبی ﷺ هغه ته داسلام دعوت ورکړو.په دې باندې هغه اوونیل.«إن هذا القول حسن» ددې نه پس هغه مدینې منورې نه واپس شو.اوهلته د «بعاث» (په باء ضمه اوعین مهمله مفتوحه اوددې نه پس الف اوپه آخرکښې ثائې مثلثه)(۴) کښې قتل شوې وو.دا دهجرت نه وړاندې واقعه ده.دده قوم به ونیل.«لقد قتل وهومسلم»(۵) کیدې شي چه د «قتلوا» دا کس مراد وي.(۶)

خوعلامه عینی رحمه الله فرمائي.چه اول خودا ټول کلام په هغه وخت کښې دې. چه دا لفظ محفوظ وي.اوددې محفوظ کیدل یواحتمالی امردې.اوپه احتمال باندې حکم لګول صحیح نه دی.

اوبیا ترکومې پورې چه دحافظ رحمه الله ددې قول تعلق دې.چه په هغه وخت کښې تاریخ زیات اهتمام نه وو.نودا نشي منلې.ګوره نه د فرضیت صلاة نه پس اود تحویل قبلې نه وړاندې په کوم ملک کښې اوپه کوم ښارکښې څوک په خپل مرګ مړه شوی وو.دهغې هم څومره اهتمام سره ذکرشوې دې.نوکه څوک په دغه وخت کښې قتل شوی وو.نویقیناً دهغې ذکربه هم په یقین سره زیات په اهتمام سره وې.څکه چه خپل مرګ د قتل نه یقیناً غیرمعمولی دې.

---

(۱) فتح الباری(۹۸\۱) وعمدة القاری(۲۴۹\۱)_
(۲) المصادرالسابقة)_
(۳) عمدة القاری(۲۴۹\۱)_
(۴) معجم البلدان(۴۵۱\۱)_
(۵) السیرة النبویة لابن هشام (۲۶۵\۱و ۲۶۶)_
(۶) فتح الباری(۹۸\۱)_

اوترکومې پورې چه د سویدبن الصامت دواقعه تعلق دې.نوهغه دلیل جوړول دې وجې صحیح نه دی.چه ددغه کس اسلام متفق علیه نه دې.بیا بله دغور خبره دا ده.چه دلته :

((قتلوا))صیغه د جمعې ده.اوهغه صرف یوکس دې.دیوکس دپاره دجمعې دصیغې استعمال څنګه صحیح کیدې شی؟

بیا دلته دا خبره هم دغور قابله ده.چه دصغاني وغیره د تصریح مطابق ..بعاث.. د مدینې منورې نه د دوو ورځو په مسافت باندې یوځائې دې.چرته چه په جاهلیت په زمانه کښې : اوس اوخزرج جنګ شوې وو.په هغه وخت کښې اسلام نه وو.په داسې زمانه کښې دیوکس په قتل باندې څنګه استدلال کولې شی.چه دهغه قتل په هغه وخت کښې شوې وو.کله چه بیت المقدس قبله وه.()

حافظ ابن حجر رحمه الله دخپلې زمانې دبعضې فضلاؤ په حوالې سره لیکی.چه ممکن ده : ((قتلوا))نه مراد په مکه معظمه کښې ضعیفه مسلمانان مراد وی.لکه دعمار رضی الله عنه مور پلار. حافظ رحمه الله فرمائی.چه دا مراد اوګرځولې شی.نوددې دپاره ددې ثبوت ضروری دې.چه دهغوی شهادت داسراء نه پس یعنې د فرضیت صلاۃ نه پس شوې وو.()والله أعلم

**قوله: فَلَمْ نَدْرِ مَا نَقُولُ فِيهِمْ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ:**

مونږ ته نه معلومیده.چه مونږ د داسې خلقوپه باره کښې څه اووایو.آیا دهغوی په ثواب کښې خوبه څه کمې نه وی راغلې.نوالله تعالی دا آیت نازل کړو.

دذکرشوی آیت شان نزول اوددې سره متعلقه تولوتفصیلاتوباندې په ترجمة الباب کښې وړاندې کلام شوې دې.

## ۳۰ = بَابُ حُسْنِ إِسْلَامِ الْمَرْءِ

**دماقبل سره ربط:** حافظ ابن حجر رحمه الله دماقبل باب ((الصلاة من الإيمان)) او باب ((حسن إسلام المرأ)) په مینځ کښې دامناسبت بیان کړې دې.چه په ماقبل باب کښې دصحابه کرامو رضی الله عنهم ددینی حرص دهغوی دشغف ذکروو.چه هغوی سره دا فکرپیدا شوې وو. چه قبله خو بدله شوه.زمونږ دهغه وروڼو په څه کیږی.چاچه اولنئ قبلې ته مونځونه کول.آیا دهغوی په ثواب کښې خوبه کمې نه وی راغلې.دامام بخاری رحمه الله ذهن ددې ځائې نه دتحریم خمر واقعه نه

---

) عمدة القاري (۱/۲٤۹)..

معلومه دې وی.چه علامه عینی رحمه الله په حافظ باندې رد په دې طریقه کړې دې.چه د ((بعاث)) واقعه دجاهلیت په زمانه کښې راغلې وه.اودسویدبن الصامت قتل د بعاث په موقع شوې وو.اوپه سیرت ابن هشام (۱/٤٦٦) کښې دی.((وكان قتله قبل يوم بعاث)) چه د سوید قتل د یوم بغاث نه وړاندې شوې وو په دې طریقه دعلامه عینی رحمه الله اشکال نور هم سختیږی.والله أعلم.)_

) فتح الباري (۱/۹۸)_

منتقل شو چه هم داسې قسم اشکال دتحريم خمريه واقعه کښې هم پيښ شوې وو چه دشراب څکلواول اجازت وو او روسته دهغې حرمت نازل شو.څوپه دغه دوران کښې بعضې صحابه کرام رضي الله عنهم وفات شوی وو اوبعضې شهيدان شوی وو اودهغوی په خيټوکښې شراب موجود وو.دهغوی حال به څه وی؟ په هغې باندې آيت نازل شوې وو ﴿لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا إِذَا مَا اتَّقَوا وَّآمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ثُمَّ اتَّقَوا وَّآمَنُوا ثُمَّ اتَّقَوا وَّأَحْسَنُوا وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ﴾ (١) په هغې کښې ذکرراغلې وو چه دمحسنينوپاره د ويرې څه خبره نشته دغه شان دالله تعالى ارشاد دې ﴿إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجْرَ مَنْ أَحْسَنَ عَمَلًا﴾ (٢) يعنى الله تعالى د نيکانو خلقودعمل ثواب نه ضائع کوی.صحابه کرام رضي الله عنهم خو نيك عمل کونکی وو دهغوی عمل به ولې ضائع کيږی. نوددې احسان نه انتقال د ذهن اوشو.اوترجمه ئې قائمه کړه «باب حسن إسلام المرء» (٣)

حافظ رحمه الله چه کوم مناسبت بيان کړې دې.دا ډير لرې مناسبت دې.ددې نه غوره توجيه هغه ده.کومه چه علامه عينى رحمه الله بيان کړې ده.هغوی فرمائى.چه وړاندې د «الصلاة من الإيمان» ذکروو.اوپه دې باب کښې «من حسن إسلام المرء» ذکردې.اودا معلومه ده. چه «لايحسن إسلام المرء إلا بإقامة الصلاة» چه په مانځه سره د سړی په اسلام کښې حسن راځى.نوپه دې طريقه په دواړو بابونوکښې مناسبت موجود شو. (٤)

**د ترجمة الباب مقصد** دترجمة الباب مقصد دمعمول مطابق په ايمان کښې دزيادت اونقصان اثبات دې. او ورسره ورسره په مرجئو،معتزلواوخوارجوباندې رد هم دې.

ترکومې چه په ايمان کښې زيادت اونقصان تعلق دې.نوپه دې باندې داسې پوهه شئ چه يودې اسلام اويو دې په ددې حسن،داسلام معنى ده.اطاعت.نوکه د ظاهرسره په باطن کښې هم اطاعت وی.نوپه اسلام کښې يوقسم حسن پيدا شو. اوکه دې سره مزيدانشراح پيدا شی.نوپه اسلام کښې دحسن نوره اضافه هم اوشی. اوکه دطاعتونواواعمال صالحه په ذريعه په ايمان کښې نورنورانيت اوورحانيت پيدا شی.نوددې حسن به نورهم زيات شی.غرض دا چه اسلام حسن قبلوی. او دحسن مختلف مراتب دی.ددې نه معلومه شوه.چه په اسلام کښې کمې اوزياتې کيږی.اواسلام او ايمان يوځيزدې.نوهرکله چه په اسلام کښې تفاوت ثابت شو.نوپه ايمان کښې هم ثابت شو.والله أعلم.

دمرجئوترديد په دې طريقه کيږی.چه چونکه داسلام حسن په اعمالو سره راځى.اوپه دې

---

(١) المائدة:٩٣)_

(٢) الکهف:٣٠)_

(٣) فتح البارى(١\٩٨)قبيل باب حسن إسلام المرء)_

(٤) عمدة القارى.(١\٢٤٩)

حسن كښې په اعمالوكښې دتفاوت په وجه كمې زياتې راځي.نودا ثابته شوه.چه اعمال دايمان او اسلام دپاره جزء دې.نوپه دې طريقه د مرجئو هم ترديداوشو.څكه چه دهغوئ په نيزداعمال په وجود اونه وجود كښې څه فرق نشته.

دمعتزلو اوخوارجوترديد داسې دې.چه په اعمالوكښې د زيادت په صورت كښې به د اسلام او ايمان په حسن كښې زيادت كيږي.او په اعمالو كښې به كمى راځي.دايمان اواسلام نفي نه كيږي. والله أعلم بالصواب.

[۳۱] قَالَ مَالِكٌ أَخْبَرَنِي زَيْدُ بْنُ أَسْلَمَ أَنَّ عَطَاءَ بْنَ يَسَارٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ (١) أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِذَا أَسْلَمَ الْعَبْدُ فَحَسُنَ إِسْلَامُهُ يُكَفِّرُ اللَّهُ عَنْهُ كُلَّ سَيِّئَةٍ كَانَ زَلَفَهَا وَكَانَ بَعْدَ ذَلِكَ الْقِصَاصُ الْحَسَنَةُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا إِلَى سَبْعِ مِائَةِ ضِعْفٍ وَالسَّيِّئَةُ بِمِثْلِهَا إِلَّا أَنْ يَتَجَاوَزَ اللَّهُ عَنْهُ.

## رجال الحديث

① مالك:دوى امام مالك بن انس رحمه الله دى.ددوى حالات د«باب من الدين الفرار من الفتن» لاندې تيرشوى دى.

② زيد بن اسلم:ددوى حالات د«باب كفران العشير وكفر دون كفر»لاندې تيرشوى دى.

③ عطاء بن يسار:دوى حالات وړاندې «باب كفران العشير وكفر دون كفر»لاندې تيرشوى دى.

④ حضرت ابوسعيد الخدري رضى الله عنه: ددوى حالات وړاندې «من الدين الفرار من الفتن»لاندې تيرشوى دى.

قَالَ مَالِكٌ:دا تعليق دې.څكه چه دبخاري رحمه الله داامام مالك رحمه الله نه سماع ثابته نه ده.امام بخاري رحمه الله دلته دا تعليقاً ذكركړې دې.اوبيا ئې دا په خپل كتاب كښې موصولاً چرته هم نه دې ذكركړې.د داسې رواياتوشماريوسل يوكم شپيته دى.لكه څنګه چه مونږ دكشف البارى په مقدمه كښې ذكركړى دى.(٢)

علامه ابن حزم رحمه الله فرمائي.چه دا چونكه معلق روايت دې.اوپه تعليق كښې انقطاع وي. نودا انقطاع به قادح وي.اودا به صحيح نشي ګرځولې.(٣)

خوعلامه عيني رحمه الله فرمائي.چه دعلامه ابن حزم رحمه الله خبره صحيح نه ده. څكه چه دا اګرچه دلته تعليقاً مروى دې.ليكن په ګڼو طرقو سره دا موصولاً مروى دې.امام بخارى رحمه الله

---

(١) الحديث أخرجه النسائي فى سننه (٢٦٦/٢و ٢٦٧) كتاب الإيمان وشرائعه باب حسن إسلام المرء)_

(٢) كشف البارى(١٥٨/١) مقدمة الكتاب تعداد روايات بخاري)_

(٣) عمدة القارى(٢٥٠/١)_

دشهرت د وجې هغه طرق ذكرنكړل.بله دا چه دامام بخارى رحمه الله عادت اوطريقه معلومه ده.
چه دوى بغيرد ثبوت اود تثبت نه په جزم سره روايت نه نقل كوى.اوبيا دلته دوى ((قال مالك))فرمائيلى دى.په جزم سره روايت كوى.بيا هرمنقطع قادح فى الصحة خو نه وى.نوپه ذكرشوى روايت باندې اګرچه اصطلاحاً د انقطاع اطلاق كولې شى.خوپه حقيقت كښې دمتصل په حكم كښې دې.خكه چه دا روايت صحيح دې.[1]
دا تعليق ابوذرهروى رحمه الله په بعضونسخوكښې [2]امام نسائى په خپل سنن كښې[3] امام اسماعيلى رحمه الله په خپل مستخرج كښې [4]امام بزارپه خپله مسندكښې [5]امام بيهقى په شعب الايمان كښې [6]امام دارقطنى رحمه الله په غرائب مالك كښې [7] حسن بن سفيان رحمه الله په خپل مسند كښې[8] اوامام اسماعيل بن عبدالله سمويه رحمه الله په خپلو..فوائد.. كښې [9] نقل كړې دې.
**دوه اشكالات اوهغې جوابونه** په دې سند باندې يواشكال خودا كيږى.چه دا روايت معن بن عيسى رحمه الله د ،، مالك عن زيد عن عطاء عن أبي هريرة رضي الله عنه ،، په طريق سره نقل كوى.لكه چه په دې خبره كښې شك دې.چه دا روايت د حضرت ابوسعيد رضي الله عنه نه مروى دې.اوكه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه؟ [10]

دويم اشكال دا دې.چه سفيان بن عيينه رحمه الله دا روايت د ((زيدبن أسلم عن عطاء))په طريق سره مرسلاً نقل كوى.په هغې كښې نه دحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه ذكرشته. اونه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه[11] امام بزار رحمه الله فرمائى.((لانعلم رواه عن زيدبن أسلم عن عطاء عن أبي سعيد إلا مالك))[12]

---

[1]) المصدرالسابق)_
[2]) كما فى الفتح (۹۸\۱) والعمدة (۲۵۰\۱) وتغليق التعليق(۴۴\۲) وهدى السارى(ص.۲۰)_
[3]) سنن نسائى (۲۶۶\۲و ۲۶۷) كتاب الإيمان وشرائعه باب حسن إسلام المسلم)_
[4]) فتح البارى(۹۸\۱) وعمدة القارى(۲۵۰\۱) وهدى السارى(.۲۰) وتغليق التعليق(۴۴\۲و ۴۵)-
[5]) المصادرالسابقة)_
[6]) شعب الإيمان للبيهقى (۵۸\۱و ۵۹) باب الدليل على أن الإيمان والإسلام على الإطلاق وعبارتان عن دين واحد رقم ۲۴)_
[7]) فتح البارى(۹۹\۱) وعمدة القارى(۲۵۰\۱) وهدى السارى (ص.۲۰) وتغليق التعليق(۴۵\۲و ۴۸)_
[8])المصادرالسابقة)_
[9]) تغليق التعليق (۴۶\۲) وهدى السارى(ص.۲۰)-
[10]) فتح البارى(۹۹\۱) وعمدة القارى(۲۵۰\۱) وتغليق التعليق(۴۸\۲)_
[11]) المصادالسابقة)_
[12]) تغليق التعليق(۴۶\۲)_

ترکومې پورې چه داوننی اشکال تعلق دی نوهغه ددې وجې قابل اعتنا، نه دې چه امام دارقطنی رحمه الله فرمائیلی دی معن بن عیسی کوم چه دا روایت د حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه په ځنې د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه نقل کوی دا د نورو ټولوطرقو نه خلاف دې.ځکه چه کوم نه که نهه حضرات ،ابن وهب، ولیدبن مسلم، طلحه بن یحیی، زیدبن شعیب، اسحاق بن فروی، سعید زبیری، عبدالله بن نافع، ابراهیم المختار، اوعبدالعزیزبن یحیی رحمهم الله د «مالك عن زید، عن عطاء عن أبي سعید» په طریق باندې اتفاق کوی نو د معن بن عیسی طریق شاذ دې.دکوم چه څه اعتبار نشته.(۱) ددې نه علاوه چه د معن بن عیسی نه روایت کونکې راوی هم ضعیف دې.(۲)

بیا ترکومې پورې چه دوصل اوارسال تعلق دې نودا هم قادح نه دې.ځکه چه سفیان بن عیینه رحمه الله اګرچه ثقه دې.خوامام مالك رحمه الله د اهل مدینې داحادیثوپه معامله کښې اتقن او احفظ دې.نود نورو په مقابله کښې به ددوی قول ته ترجیح وی.اوددوی تفرد دکوم طرف ته چه امام بزار رحمه الله اشاره کړې ده.هغه به هیڅ مضر نه وی.(۳)

هم دا وجه ده.چه خطیب بغدادی رحمه الله «الرواة عن مالك» کښې لیکی.«هذا الحدیث ثابت من حدیث مالك»(۴) اوابن بطال رحمه الله فرمائی «هوحدیث مشهور من روایة مالك في غیرالموطا»(۵)

**قوله** إِذَا أَسْلَمَ الْعَبْدُ فَحَسُنَ إِسْلَامُهُ يُكَفِّرُ اللَّهُ عَنْهُ كُلَّ سَيِّئَةٍ كَانَ زَلَفَهَا: بنده چه کله مسلمان وی.اوده اسلام حسن وی.یعنی هغه ښه مسلمان جوړ شی.نوالله تعالی دهغه هرهغه ګناه معاف کړی.کومه چه هغه کړې وی.

**قوله**: زَلَفَهَا: علامه خطابی رحمه الله فرمائی.چه «زلف» «ازباب تفعیل» او «أزلف» «ازباب افعال» دواړه یوه معنی لری.یعنی «أسلفها وقدمها»(۶)

صاحب محکم ابن سیده رحمه الله لیکلی دی.«زلفه» (مخففاً ازباب نصر) او «زلفه» (مشدداً ازباب تفعیل) ددې معنی ده.«قدمه»،اود «ازلفه» «ازباب افعال» معنی «قربه» راځی.(۷)

ددې نه پس په دې باندې پوهه شئ.چه زمونږ په نسخوکښې «زلفها» دې.په دې کښې اختلاف دې.چه دا بالتخفیف دې اوکه بالتشدید؟

---

(۱) تغلیق التعلیق(۲/۴۸) وفتح الباری(۱/۹۹) وعمدة القاری(۱/۲۵۰)_
(۲) تغلیق التعلیق(۲/۴۸)_
(۳) فتح الباری(۱/۹۹) وعمدة القاری(۱/۲۵۰) وتغلیق التعلیق(۲/۴۹)_
(۴) تغلیق التعلیق(۲/۴۷) وفتح الباری(۱/۹۹) وعمدة القاری(۱/۲۵۰)-
(۵) عمدة القاری(۱/۲۵۰)_
(۶) عمدة القاری(۱/۲۵۱)_
(۷) المصدر السابق)_

صاحب دمشارق بالتخيف ضبط كړي دي اوامام نووى رحمه الله بالتشديد.(۱) والله أعلم.

**په حديث باب كښې دامام بخارى رحمه الله تصرف** ددې حديث دوه حصې دى يوه حصه خودا ده كومه چه ستاسو وړاندې ده. اوبله حصه امام بخارى رحمه الله حذف كړې ده. پوره حديث داسې دې: «إذا أسلم العبد فحسن إسلامه كفر الله عنه كل سيئة كان زلفها وكتب له كل حسنة كان زلفها..» (۲) لكه چه امام بخارى رحمه الله ددې دويم جزء يعنى «وكتب له كل حسنة كان زلفها» كومه چه كتابت حسنه سره متعلق ده. حذف كړې ده.

**دكتابت حسنه سره د متعلقه حصې حذف كولووجه** بعضې عالمانو رحمهم الله فرمائيلى دى چه امام بخارى رحمه الله د كتابت حسنه سره متعلقه حصه ځكه حذف كړې ده. چه هغه د قواعدخلاف وه. يعنى داسلام راوړلو نه پس د سيئاتو معاف كيدل خو ښكاره خبره ده. اويه نصوص كښې مصرحه ده.(۳) ودمسلمانيدو په صورت كښې دكفر دزمانې اعمال حسنه باندې د اجر او ثواب ترتب دا د قواعدو خلاف خبره ده.(۴)

**په طاعاتو، قرباتو، اوعباداتو د اجراوثواب ترتب** دا خبره چه دا د قواعدو نه خلاف ده په دې باندې د پوهيدو دپاره اول په يوه مقدمه باندې ځان پوهه كړئ. گورئ درې څيزونه دى طاعات، قربات او عبادات. په طاعاتوكښې دثواب حصول په موافقة الامرباندې موقوف وى. ځكه چه د طاعاتوحقيقت هم دا موافقة الامردې.(۵) په قرباتوكښې ثواب په هغه وخت كښې حاصليږى. چه متقرب ته د «من يتقرب إليه» معرفت حاصل وى. اويه عباداتوكښې ثواب په هغه وخت كښې وى. چه دمعرفت سره نيت هم وى.(۶)

دطاعت مثال دالله تعالى دمعرفت حصول دې. اوكافردالله تعالى دمعرفت حاصلولو مامور دې. نوكه ده د الله تعالى معرفت حاصل كړو. ده ته به اجراوثواب ملاويږى

دقربت مثال صدقات نافله دى. دلته صرف د متقرب اليه معرفت كافى دې

دعباداتومثال صلاة .زكاة. صوم اوحج وغيره دى. په دې اموروكښې د متقرب اليه د معرفت سره سره نيت هم ضرورى دې

اوس په دې باندې پوهه شئ. چه كافرته نه معرفت حاصل دې اونه دده د نيت څه اعتبار شته. كه ده ته دالله تعالى معرفت حاصل وو. ده به كفر ولې كولو بيا هركله چه هغه د معرفت

---

(۱) المصدرالسابق)۔
(۲) تغليق التعليق (۴۵/۲) وسنن نسائى (۲۶۶/۲و ۲۶۷) كتاب الإيمان وشرائعه باب حسن إسلام المسلم)۔
(۳) كما سيأتى تفصيله قريباً إن شاء الله تعالى)۔
(۴) فتح البارى (۹۹/۱) وعمدة القارى (۲۵۲/۱)۔
(۵) شرح نووى على صحيح مسلم (۷۶/۱) كتاب الإيمان باب بيان حكم عمل الكافر إذا أسلم بعده)۔
(۶) شرح نووى (۷۶/۱) وفتح البارى (۹۹/۱) وعمدة القارى (۲۵۲/۱) وكشف البارى (۲۶۶/۱)۔

نه خالي دي.کوم چه د قربت دپاره موقوف عليه ده. نو عبادت ته به څنګه رسی کوم څر کښې چه يوه درجه پورته بله ده.يعنې د معرفت نه پس د نيت وجود هم شرط دی.معلومه شوه.چه دکافرد قرباتو او عباداتو څه اعتبار نشته

**د کفر په زمانه کښې په اعمال حسنه باندې داجراوثواب ترتب خلاف قواعد نه دی** ډیرو زياتومحققينوپه دې خبره باندې کلام کړې دې.د کفر په زمانه کښې په اعمال حسنه باندې ترتب دثواب خلاف قواعد دې.دا حضرات فرمائي.چه دا خبره صحيح نه ده.ځکه چه خلاف قاعده خودا خبره ده.چه په زمانه دکفرکښې کوم نيك اعمال اوشی.په هغه وخت کښې هغه ليکلی شی.حالاتکه دحديث نه دا نه ثابتيږی.بلکه د حديث نه دا ثابتيږی.که په زمانه دکفرکښې بعضې اعمال صالحه اوکړی.اوبيا مسلمان شی.نواوس به دغه اعمال مرضيه شمارلی شی.اوپه زمانه داسلام کښې هغه اعمال صالحه ليکل کوم چه په زمانه دکفرکښې شوی وو.د قواعدو خلاف نه دی.دغه شان دا هم کيدې شی.چه دا اعمال غيرمعتبر وو خو داسلام په برکت الله تعالي هغه قبول کړی.اوپه هغې باندې داجراوثواب ترتب اوکړی.ديوې دلې رايه ده.که کافرپه حالت دکفرکښې نيك اعمال کړی وی.اوبيا هغه مسلمان شی نوهغه ته به په دغه اعمال صالحه باندې اجراوثواب ملاويږی. (۱)

امام نووی رحمه الله فرمائي.چه دمحققينو رحمهم الله په دې باندې اجماع ده.که کافرد تقرب الی الله دپاره بنه اعمال کړی وی.لکه صدقات،صله رحمی،اواعتاق وغيره،اوبيا هغه اسلام راوړی.نودا ټول اعمال به ليکلی شی.اوکه داسلام په حالت کښې ورته مرګ راشی نوبه دې به ورته اجراوثواب هم ملاويږی.نودا خبره خلاف عقل هم نه ده.اوپه شريعت کښې دا خبره راغلې هم ده.(لکه چه مونږ به ئې وړاندې ذکراوکړو) نوددې خبرې قبولو ضروری دی.اودې ته دقواعدنه خلاف وئيل دمنلو خبره نه ده.(۲)

ترکومې پورې چه دهغه فقهاؤ دقول تعلق دی.ځوك چه دا وائی.چه دکافرهيڅ عبادت صحيح نه دې.اوکه هغه اسلام راوړی.نوهم دهغې شمارنه کيږی.نودهغوی مراد دا دې چه د دنياوی احکامو په اعتبارسره دهغې څه اعتبارنشته.باقی پاتې شوه دا خبره چه په دې به په آخرت کښې ثواب وی اوکه نه؟ دفقهاؤ په قول کښې دې سره څه تعرض نشته.(۳)بيا دا هم يوحقيقت دې چه دکافرد بعضې اعمالوپه دنيا کښې هم اعتبارشته.که دکافره په ذمه کفاره ظهار لازمه شی.اوهغه هم په حالت دکفرکښې کفاره ادا کړی.نودا به دهغه دپاره کافی وی.داسلام راوړلونه پس په ده باندې دهغې اعاده لازم نه ده.(۴)

---

(۱) عمدة القاری(۲۵۳/۱)-

(۲) عمدة القاری(۲۵۳/۱) وفتح الباری(۹۹/۱)_

(۳) شرح نووی علی صحيح مسلم(۷۷/۱) وعمدة القاری(۲۵۳/۱)_

(۴) المصادرالسابقة)_

ابراهيم حربى، ابن بطال، قرطبى، اوابن منير رحمهم الله هم ددې قائل دى.(۱)

ابن المنير رحمه الله فرمائى چه دقواعدوخلاف خودا خبره ده چه په زمانه د كفركښې هغه اوليكلى شى اوتركومې پورې چه ددې صورت تعلق دې چه الله تعالى دهغه د اسلام راوړلو نه پس په نيكوكښې دهغه نيكواعمالو د ثواب زيادت اوكړى كوم چه ده په حالت دكفر كښې كړې وى نوددې دپاره څه مانع موجود نشته لكه څنګه چه دالله تعالى دپاره په دې خبره كښې څه مانع نشته چه په يوبنده باندې بغيردڅه عمل نه فضل اوكړى ګورئ هغه كس ته پوره ثواب ملاويږى كوم كس چه د بيمارئ يا دڅه عذر په وجه خپل معمولات ادا نكړې شى. هركله چه الله تعالى دمعدوم عمل ثواب ليكلى شى نود موجود عمل ثواب به ولې نشى ليكلې؟ اګرچه په هغې كښې شروط نه وى.(۲)

ابن بطال رحمه الله فرمائى چه الله تعالى ته هرقسم اختيارشته چه په خپلو بندګانو باندې څه قسم فضل اوكړى چاته داعتراض كولوڅه حق نشته.(۳)

**دكفردزمانې په نيكو اعمالو داسلام راوړلو نه پس د اجراوثواب دترتيب دلائل** په زمانه دكفر كښې چه كوم اعمال حسنه شوى وى په هغې باندې داجراوثواب دحصول دلائل لاندې دى.

① اولنې دليل خوهم دا د ابوسعيد خدرى رضي الله عنه حديث باب دې كوم چه په دې مسئله كښې صريح دې.(۴)

② دويم دليل دحضرت حكيم بن حزام رضي الله عنه روايت دې هغوى فرمائى.((يارسول الله أرأيت أشياء كنت أتحنث بها فى الجاهلية من صدقة أوعتاقة ومن صلة رحم فهل فيها من أجر؟ فقال النبى ﷺ أسلمت على ماسلف من خير)) اودمسلم په روايت كښې دى((أسلمت على ما أسلفت من خير))(۵) يعنى په ماضى كښې چه تاسوكوم نيك اعمال كړى دى تاسودهغې سره مسلمانان شوى ئې يعنى هغه اعمال عبث نه ځى.

خوكوم حضرات چه دكفرد زمانې اعمال غيرمعتبرګڼرى هغوى ددې روايت په باره كښې فرمائى چه ددې حديث مطلب دا كيدې شى چه تاسو دكفرپه زمانه كښې كوم ښه خصلتونه اوخويونه اختياركړى وو اوښه ښه اعمال موكړى وو. د هغې په وجه تاسو ته ملكه حاصله

---

(۱) عمدة القارى(۲۵۳/۱) وفتح البارى(۹۹/۱و ۱۰۰)_

(۲) عمدةالقارى(۲۵۳/۱) وفتح البارى(۱۰۰/۱)_

(۳) شرح نووى على صحيح مسلم(۷۷/۱) وفتح البارى(۱۰۰/۱) وعمدة القارى(۲۵۳/۱)_

(۴) وقد سبق تخريج الحديث سابقاً مفصلاً)_

(۵) انظرالصحيح البخارى كتاب الزكاة باب من تصدق فى الشرك ثم أسلم رقم (۱۴۳۶) وكتاب البيوع باب شراء المملوك من الحربى وهبته وعتقه رقم ۲۲۲۰) كتاب العتاق باب عتق المشرك رقم ۲۵۳۸) وكتاب الأدب باب من وصل رحمه فى الشرك ثم أسلم رقم ۵۹۹۲) والصحيح لمسلم (۷۶/۱) كتاب الإيمان باب بيان حكم عمل الكافر اذا أسلم بعده)_

شوې ده اوس دهغه ملكۀ په وجه تاسو په اسلام كښې هم نفع اخلئ نوكه دكفرپه زمانه كښې مو صدقات كول.نواوس دهغې ملكه پيدا شوې ده چه داسلام په زمانه كښې به هم هغه ملكه تاسو صدقه كولوته اماده كوى.يا غلامان مو آزادول.نواوس په اسلام كښې به هم دهغې تقاضا وى.(١)

بعضې حضراتوددې دويم مطلب بيان كړې دې.هغوى فرمائى.چه ددې حديث مطلب دا دې چه تاسودكفرپه زمانه كښې كوم نيك اعمال كړى دى.په هغې باندې ستاسوتعريف كيږى تاسودهغې په وجه ثناء جميل حاصله كړې ده. خلقو ستاسو مدح اوتعريفونه كړى دى هغه بنه تعريفونه به تاسوته اوس په اسلام كښې هم حاصل وى.(٢)

بعضې حضراتوددې دا تاويل كړې دې.چه «أسلمت ببركة ما أسلفت» يعنى دهغه نيكواوبنه اعمالوپه وجه تاته د مسلمانيدو توفيق ملاؤ شو.«لأن المبادئ عنوان الغايات» خكه چه ابتدائى آثار د عاقبت دليل اوعنوان وى.مشهوره ده.چه نيكى. نيكى راكاږى.نودبنه اعمالوپه وجه طبعيت ايمان طرف ته خى.(٣)

بعضې حضرات فرمائى.چه ددې مطلب دا دې.دهغه اعمالوپه بركت تاسوته په اسلام كښې رزق واسع ملاويږى.(٤)

خودا ټول معانى اوتاويلات دتبادر نه خلاف دى.كه يوكس خالى الذهن وى. اودا حديث اووائى.يا ئې واورى.نوسمدستى به هغه په ذهن كښې هم دا راخى.چه دكفرپه زمانه كښې كوم نيك اعمال شوى وى.دمسلمانيدونه پس به دهغې اعتبار وى.په دې صورت كښې به ددې معنى دا وى.چه «أسلمت مع ما أسلفت» تادهغه نيكو اعمالو سره مسلمان شوې ئې.كوم چه دې په تيره شوې زمانه كښې كړى دى. يعنى هغه به عبث اوضائع كيږى نه.

③ دريم دليل دمسلم شريف يوحديث دې.حضرت عائشې رضي الله عنها نبى كريم ﷺ ته عرض اوكړو. «يارسول الله ابن جدعان كان فى الجاهلية يصل الرحم ويطعم المسكين فهل ذاك نافعه؟ قال ﷺ لا ينفعه إنه لم يقل يوماً رب اغفرلى خطيئتى يوم الدين»(٥) يعنى ابن جدعان به د جاهليت په زمانه كښې صله رحمى هم كوله.مسكينانوته به ئې روټى هم وركوله.آيا دا اعمال به دهغوى دپاره نافع وى. نبى ﷺ اوفرمائيل.دا به نافع نه وى.خكه چه هغه يوه ورځ هم دا نه وو وئيلى.چه «رب اغفرلى خطيئتى يوم الدين» ددې مطلب حضرات محدثين دا بيانوى چه چونكه هغه په بعث

---

(١) شرح النووى على صحيح مسلم(٧٦١١) وفتح البارى (٣٠٢١٣) كتاب الزكاة باب من تصدق فى الشرك ثم أسلم المصادرالسابقة)_

(٢) المصادرالسابقة)_

(٣) شرح نووى(٧٧١١) وفتح البارى(٣٠٢١٣) وعمدة القارى(٢٥٣١١)_

(٤) فتح البارى(٣٠٢١٣)-

(٥) صحيح مسلم(١١٥١١)كتاب الإيمان باب الدليل على أن من مات على الكفرلاينفعه عمل)_

بعدالموت باندې ايمان نه ساتلو ددې وجې هغه کافر وو اودکفرپه حالت کښې مړ شوې وو. اودکفرپه حالت کښې په مرګ سره دا اعمال فائده نه ورکوی.(١)

معلومه شوه.که هغه ((رب اغفرلی خطیئتی یوم الدین)) ونیلی وو یعنی که هغه په آخرت باندې ایمان راوړلو.نودهغه نیك اعمال به دهغه په حق کښې لیکلی شول اودهغې ثواب به ورته ملاویدل.والله سبحانه وتعالی أعلم.

**دکفردزمانې په معاصی او جرائمو به داسلام راوړلونه پس مواخذه وی** بیا په زمانه دکفرکښې چه نې کوم ګناهونه اومعاصی کړې وی.آیا د اسلام قبلولونه پس به په هغې باندې مواخذه وی اوکه کهاته به ختمه وی؟

جمهورعالمان رحمهم الله چه په هغوی کښې ائمه ثلاثه یعنی امام ابوحنیفه.امام مالك اوامام شافعی رحمهم الله هم داخل دی.ددوی رائې دا ده.که کافرد زړه په اخلاص سره مسلمان شی نود کفرسره معاصی هم ختمیږی.(٢)

اوامام احمدبن حنبل رحمه الله (٣) په شوافعوکښې ابوعبدالله حلیمی رحمه الله (٤) او ابوبکربیهقی رحمه الله (٥)اوپه ظاهریه کښې ابومحمدبن حزم رحمه الله (٦)اواحنافو رحمهم الله په متاخرینوکښې علامه انورشاه کشمیری رحمه الله (٧)رائې دا ده.چه په دې کښې تفصیل دې.که داسلام نه پس لکه څنګه چه د کفر نه توبه اوویستله.دغه شان نې د ګناهونو نه هم توبه اوویستله.نواسلام لکه څنګه چه دکفرهادم دې.دغه شان به دګناهونو جرائموهم هادم وی.اوکه صرف دکفر نه نې توبه اوویستله.اوپه معاصی اوجرائموکښې اوس هم مشغول وو.نوبیا به وړاندینی ګناهونه نه معاف کیږی.اود روستنو جرائموسره به ترې د وړاندینو ګناهونو هم تپوس کیږی.

---

(١) شرح نووی علی صحیح مسلم(١١٥/١)_

(٢) أنظرفتح الملهم (٢٧٢/١) كتاب الإيمان باب كون الإسلام يهدم ما قبله وكذا الحج والهجرة وفيه تفصيل حسن فراجعه لزاماً )_

(٣) فتح الباري(١٢/٢٦٦و ٢٦٧) كتاب إستتابة المرتدين باب إثم من أشرک بالله وعقوبته فی الدنيا والآخرة)

(٤) المصدرالسابق وشعب الإيمان للبيهقی(٥٨/١) باب الدليل علی أن الإيمان والإسلام علی الإطلاق عبارتان عن دين واحد)_

(٥) قال البيهقی فی سننه الكبری (١٢٣/٩) كتاب السير.باب ترک أخذ المشركين لما أصابوا ) بعد ذكر حديث ابن مسعود رضي الله عنه وكأنه جعل الإيمان كفارة لما مضی من كفره وجعل العمل الصالح بعدكفارة لما مضی من ذنوبه سوی كفره)_

(٦) قال ابن حزم فی ..المحلی.. (٣٩/١) مسألة :ومن عمل فی كفره عملا سيئاً ثم أسلم فإن تماری علی تلک الإساءة حوسب وجوزی فی الآخرة بما عمل من ذلک فی شركه وإسلامه)-

(٧) فيض الباری(١/١٣٥و ١٣٦)_

**امام احمد رحمه الله اود دوى د متبعينو رحمهم الله، دلائل** امام احمداوددوى هم خيال عالمانو رحمهم الله په صحيحينو كښې د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په يو روايت باندې استدلال كړې دې.((قال قال رجل يا رسول الله ﷺ أنواخذ بما عملنا فى الجاهلية قال : من أحسن فى الإسلام لم يواخذ بما عمل فى الجاهلية ومن أساء فى الإسلام أخذ بالأول والآخر))(١)

دمسلم شريف په يوروايت كښې دى.((ومن أساء أخذ بعمله فى الجاهلية والإسلام))(٢)

ددې حديث نه معلومه شوه.چه كوم كس په زمانه داسلام كښې ګناهونه اختيار كړى هغه به د كفرد زمانې په معاصى اوجرائمو باندې هم نيولې شى

ابن حزم ظاهرى رحمه الله دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په حديث باندې استدلال كړې دې.((إن ناسا من أهل الشرك قتلوا فأكثروا، وزنوا فأكثروا، ثم أتوا محمدا ﷺ فقالوا: إن الذى تقول وتدعو إليه لحسن، ولو تخبرنا أن لما عملنا كفارة، فنزلت ﴿ وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ ۚ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ يَلْقَ أَثَامًا ۞ يُضَاعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيَخْلُدْ فِيهِ مُهَانًا ۞ إِلَّا مَن تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا ﴾))(٣)

ابن حزم رحمه الله فرمائى.چه په دې آيت كښې الله تعالى داعمال سيئه اسقاط په ايمان. عمل توبه اوعمل صالح باندې مرتب كړې دې.نوكه د مسلمانيدو نه پس عمل صالح نه كوى. بلكه د كفرد زمانې پشان په ګناهونو كښې اخته وى.نودهغه زمانې په ګناهونوبه هم مواخذه وى.(٤)

**دجمهورود طرفه دذكرشوو دلائلوجواب** جمهورعالمان رحمهم الله دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د روايت په جواب كښې فرمائى.چه دا حديث محتمل دې.د يو محتمل روايت په وجه نورتول روايات مقيد كول صحيح نه دى.

① په دې كښې اولنې احتمال هغه دې.كوم چه امام طحاوى رحمه الله بيان كړې دې. دكوم خلاصه چه دا ده.چه د ((احسان فى الإسلام))معنى دا ده.چه داسلام زمانه لاندې كړى.اومسلمان شى.اود ((إساءت فى الإسلام))معنى دا ده.چه داسلام زمانه لاندې كړى.اواسلام قبول نكړى.(٥)

---

(١) صحيح البخارى كتاب إستتابة المرتدين والمعاندين وقتالهم باب إثم من أشرک بالله وعقوبته فى الدنيا والآخرة رقم ٦٩٢١) وصحيح مسلم (٧٥\١١) كتاب الإيمان باب هل يؤاخذ بأعمال الجاهلية)_

(٢) صحيح مسلم و المصدرالسابق)_

(٣) صحيح البخارى (٧١٠\١٢و ٧١١) كتاب التفسير.سورة الزمراء باب قوله ﴿ياعبادى الذين أسرفوا على أنفسهم لا تقنطوا من رحمة الله..﴾ وصحيح مسلم (٧٦\١١) كتاب الإيمان باب كون الإسلام يهدم ما قبله وكذا الحج والهجرة وسنن النسائى الصغرى(١٦٣\١٢) كتاب المحاربة باب تعظيم الدم وسنن النسائى الكبرى (٤٤٦\٦) كتاب التفسير.سورة الزمر.باب قوله تعالى:﴿ياعبادى الذين أسرفوا على أنفسهم﴾ رقم ١١٤٤) وسنن أبى داود كتاب الفتن والملاحم باب فى تعظيم قتل المؤمن رقم ٤٢٧٣و ٤٢٧٤)_

(٤) المحلى لابن حزم(٣٦\١١)_

(٥) شرح مشكل الآثار للطحاوى(٤٤٢\١١و٤٤٣)_

④ دويم احتمال ابوحاتم بن حبان بستى[1] عبدالملك بونى [2] قرطبى[3] اوامام نووى رحمه الله[4] بيان كړى دى.دا حضرات فرمائى چه «احسان فى الإسلام» دا دې چه د زړه په اخلاص سره اسلام كښې داخل شى او «إساءت فى الإسلام» دا دې چه په ظاهره مسلمان وى اوپه باطن كښې منافق وى

③ مهلب.اوامام طبرى رحمهما الله دا احتمال بيان كړې دې چه «احسان فى الإسلام» دا دې چه دمسلمانيدو نه پس په اسلام قائم پاتې شى او «إساءت فى الإسلام» دا دې چه د مسلمانيدو نه پس بيرته مرتد شى.[5]

دامام بخارى رحمه الله رجحان هم دې طرف ته معلوميږى خكه چه دوى دا حديث په «كتاب إستتابة المرتدين» كښې راوړې دې.والله أعلم.

④ ددې حديث څلورم مطلب امام خطابى رحمه الله بيان كړې دې چه دلته د مواخذه نه مراد تعذيب نه دې بلكه د جاهليت جرائم ئې ورته ورياد كړى دى.اويوقسم زجراوزورنه وركول مقصود دى.[6] مطلب دا دې چه ده ته به دا وئيل شى.چه اې بې غيرته دا سلام نه وړاندې هم تا دا جرائم كول.اودمسلمانيدونه پس هم ته دا جرائم كوې.اسلام ته ددې جرائمونه منع نكړې تاته حيا اوشرم نه راځى.!!

تركومې پورې چه د ابن حزم رحمه الله په آيت قرآنى ﴿إِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا﴾ په مفهوم باندې د استدلال تعلق دې.نواول خودا وئيلى شى.چه ددې مفهوم هم هغه دې كوم چه د

---

[1] الإحسان بترتيب صحيح ابن حبان (١٢\١٠٥) باب الإخلاص وأعمال السر وقد بوب على هذا الحديث بقوله ..ذكرالأخباربأن المرء المسلم ينفعه إخلاصه حتى يحبط ماكان قبل الإسلام من السيئة وأن نفاقه لا تنفعه معه الأعمال الصالحة)_

[2] فتح البارى(١٢\٢٦٦) كتاب إستتابة المرتدين .. باب إثم من أشرك بالله وعقوبته فى الدنيا والآخرة)_

[3] المصدرالسابق)_

[4] شرح نووى على صحيح مسلم(١\٧٥) كتاب الإيمان باب هل يؤاخذبأعمال الجاهلية)_

[5] فتح البارى(١٢\٢٦٦)_

[6] قال الخطابى رحمه الله فى أعلام الحديث(٤\٢٣١١و ٢٣١٢) ظاهر هذا الحكم خلاف ما أجمعت عليه الأمة من أن الإسلام يجب ما قبله قال الله تعالى:﴿ قل للذين كفرو إن ينتهوا يغفرلهم ما قد سلف﴾ ووجه هذا الحديث وتأويله أنه إذا أسلم مرة لم يواخذ بما كان سلف من كفره ولم يعاقب عليه وإن أساء فى الإسلام غاية الإساءة وركب أشد ما يكون من المعاصى ما دام ثابتاً على إسلامه وإنما يوخذ بما جناه فى الإسلام من المعصية ويعير بما كان منه فى الكفر ويبكت به كأنه يقال له أليس قد فعلت كيت وكيت وأنت كافر؟ فهلا منعك إسلامک من معاودة مثله.إذا أسلمت؟ ثم يعاقب على قدر ما يستحقه من المعصية التى إكتسبها فى الإسلام ولايجوز أن يعاقب عقوبة الكفارلأن المسلم لا يخلدفى النارو الكافرمخلد فيها أبداً )_

حديث ((ومن أساء أخذ بعمله فى الجاهلية والإسلام)) دې اوپه دې كښې هغه ټول تاويلات كيدې شى كوم چه وړاندې تيرشول

دويمه خبره دا ده چه ابوحيان((الا من تاب..)) استثناء منقطع ګرځولې ده.(١) نو ((الا)) د ((لكن)) په معنى كښې دې او ﴿إِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا﴾ مبتدا ده.او ﴿فَأُولَٰئِكَ يُبَدِّلُ اللَّهُ سَيِّئَاتِهِمْ حَسَنَاتٍ﴾ دهغې خبردې.(٢) د دې تاويل نه پس دابن حزم رحمه الله ټول استدلال ختميږى.څكه چه دهغوى د استدلال بنياد د استثنا په اتصال باندې دې. اوكله چه استثناء منقطع شوه اود ماقبل سره متعلق نه ده.بلكه مستقل كلام دې. نود سيئات داسقاط دپاره د ايمان او اسلام نه سوا توبه او عمل صالح ددې دپاره موقوف عليه نشى ګرځولې. والله أعلم.

**د جمهورو دلائل** ① دجمهورو يودليل خود قرآن پاك دا آيت دې ﴿قُل لِّلَّذِينَ كَفَرُوا إِن يَنتَهُوا يُغْفَرْ لَهُم مَّا قَدْ سَلَفَ﴾ (٣) ددې آيت نه معلومه شوه.كه دكفرنه منع شو اواسلام ئې قبول كړو نومخكنى ټول ګناهونه اوجرائم به ورته معاف شى.

بعضې حنابلو په آيت كښې تاويل كړې دې.چه دسابقه نصوص په رڼړا كښې ددې نه مراد ((ماقد سلف مما انتهوا عنه)) دې.يعنى هغه سابقه ګناهونه به ئې معاف شى.دكومونه چه دې منع شوې دې.اوتوبه ئې ويستې ده.څكه چه توبه وائى. ((ندامت على الذنب اقلاع عن الذنب)) او ((عزم على عدم العود)) ته،اوس كه يوكس مسلمان شى.اودعدم عود الى الفاحشه عزم نه لرى.نو دده توبه مكمل نه ده.نوپه سابقه فواحش اومعاصى باندې به دده مواخذه كولې شى.

خوددې جواب دا دې.چه آيت د محتمل رواياتوپه بناء باندې مقيد كول صحيح نه دى.

تركومې پورې چه دده د توبې نه قبليدو تعلق دې.نودا خبره څكه صحيح نه ده.چه د توبې دا ټول شرائط دمسلمان دپاره دى.دكافر صرف مسلمانيدل د ټولو ګناهونه معاف كيدو دپاره كافى دى.هغه چه اسلام راوړى.نوداسې معصوم شى. لكه چه نن پيدا شوې دې.د نصوص نه هم دا مستفاد كيږى.((كما سيأتى))

② دويم دليل دحضرت عمروبن العاص رضي الله عنه حديث دې.چه نبى صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى.((أما علمت يا عمرو أن الإسلام يهدم ما كان قبله؟)) (٤) په دې روايت كښې مطلقاً دماقبل ټولو ګناهونو د منهدم كيدو ذكر راغلې دې.

---

(١) كما فى روح المعانى(١٩\٤٩)_

(٢) وقرنت الجملة بالفاء لوقوعها خبراً عن الموصول كما فى قولک الذى يأتينى فله درهم انظرروح المعانى (١٩\٤٩) وانظر أيضاً بيان القرآن (١٤\٥٨)_

(٣) سورة الأنفال:٣٨)_

(٤) صحيح مسلم (١\٧٦) كتاب الإيمان باب كون الإسلام يهدم ما قبله وكذا الحج والهجرة)_

③دريم دليل دحضرت اسامه رضي الله عنه قصه ده[1] په کوم کښې چه دا راغلی دی چه دوی يوکس د «لااله إلا الله» ونيلو نه پس قتل کړې وو نونبی ﷺ دخفګان اظهار اوکړو اووې فرمائيل.
«أقتلته بعد ما قال لااله إلا الله» دوی به معذرت پيش کولو خو نبی ﷺ به هم دا ارشاد کولو.
«أقتلته بعدما قال لااله الا الله» حضرت اسامه رضي الله عنه فرمائی «حتی تمنيت أنی لم أکن أسلمت قبل ذلك اليوم» زما دا تمنا پيدا شو چه کاش دې نه وړاندې زه مسلمان شوې نه ووم
دې نه معلوميږی چه دصحابه کرامو رضي الله عنهم په ذهنونوکښې دا خبره پرته وه چه اسلام سابقه ګناهونه ختموی. والله أعلم.

**قوله: وَكَانَ بَعْدَ ذَلِكَ الْقِصَاصُ الْحَسَنَةُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا إِلَى سَبْعِ مِائَةِ ضِعْفٍ:** ددې نه پس به برابر په برابر معامله کيږی. اوددې صورت به دا وی چه د يوې نيکۍ په بدله کښې به لس نيکۍ ملاويږی. دا خو اولنۍ درجه ده. اوچه اوچتيږی. نواووه سوو ته رسی.
ګورۍ دا داسلام حسن او دسړی اخلاص دې چه يوه نيکی د يونه متجاوز شی اولس بلکه اووه سوو ته رسی.
**ايا په نيکۍ کښې صرف د اووه سوو پورې زيادت کيږی؟** دلته يوسوال دا پيدا کيږی چه ددې حديث نه معلوميږی چه زيادت تر اووه سوو پورې کيږی. حالانکه په آيت قرآنی کښې دی.
﴿مَثَلُ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ أَنْبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ فِي كُلِّ سُنْبُلَةٍ مِائَةُ حَبَّةٍ وَاللَّهُ يُضَاعِفُ لِمَنْ يَشَاءُ﴾[2] ددې نه معلوميږی چه د اووه سوونه هم زياتيدې شی.
دحديث باب په رڼاکښې د بعضې عالمانو رحمهم الله دا رائې ده چه زيادت صرف اووه سوو پورې کيږی. ددې نه زيات نه کيږی. اوترکومې چه د آيت قرآنی تعلق دې نودهغې مفهوم د دوی په نيز دا دې چه د «يضاعف» نه د اووه سوو زيادت مراد دې خکه چه اګرچه دالله تعالی په مشيت اواختيارکښې دی چه ددې نه زياته اضافه اوزيادت اوکړی خوچه کومه اضافه کولې شی هغه به د اووه سوو پورې وی.
حالانکه دجمهورو عالمانو رحمهم الله دا رائې ده چه ديوې نيکۍ په اووه سوو پورې تحديدلازمی نه دې. ددې نه زياته اضافه هم کيدې شی.[3] دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په حديث کښې دی.

---

[1] انظرصحيح بخاری (۶۱۲\۲) کتاب المغازی باب بعث النبی ﷺ أسامة بن زيدإلی الخرقات من جهينة (۱۰۱۵\۲) کتاب الديات باب قول الله (ومن أحياها..) وصحيح مسلم (۶۷\۱ و ۶۸) کتاب الإيمان باب تحريم قتل الکافر بعد قوله ((لاإله إلا الله))وسنن أبی داود کتاب الجهاد باب علی ما يقاتل المشرکون رقم ۲۶۴۳)_
[2] سورة البقرة:۲۶۱)_
[3] فتح الباری(۱۰۰\۱) وعمدة القاری(۲۵۲\۱)_

((کتبها الله له بها عنده عشر حسنات إلى سبعمائة ضعف إلى أضعاف کثیرة))[1]

دغه شان ابن ابی عاصم النبیل رحمه الله به ..کتاب العلم.. کښې د حضرت ابوهریره رضي الله عنه حدیث نقل کړې دې ((إن الله تعالی یعطی بالحسنة ألف ألف حسنة))[2] یعنی الله تعالی د یوې نیکۍ په بدله کښې شل لاکهه نیکۍ ورکوی

په یوحدیث کښې دی ((من تصدق بعدل تمرة من کسب طیب ... ولا یقبل الله إلا الطیب .. فإن الله یتقبلها بیمینه ثم یربیها لصاحبه کما یربي أحدکم فلوه حتی تکون مثل الجبل))[3]

یعنی کوم کس چه خپلې پاکې حلالې ګټې نه د قجورې یوه حصه صدقه کړی نو الله تعالی هغه په خپل ښی لاس سره قبلوی اوبیا دهغې تربیت کوی اوبیا هغه زیاتوی اودهغې خسمانه کوی لکه څنګه چه په تاسوکښې یوکس د اسپې د بچې خسمانه کوی تردې هغه قجوره یادهغې برابرځیزد غرهومره شی ښکاره ده.که قجوره د غرهومره زیاتیدې شی نوبیا هغې کښې به صرف داووه سوواضافه نه کیږی بلکه ددې نه به زیاته اضافه کیږی.والله أعلم

**قوله وَالسَّيِّئَةُ بِمِثْلِهَا إِلَّا أَنْ يَتَجَاوَزَ اللَّهُ عَنْهَا:** او ګناه به صرف یوه ګناه ګڼلې شی په هغې کښې به اضافه نه کیږی البته دالله تعالی په اختیارکښې دی چه هغه معاف کړی په دې صورت کښې به هغه یوه ګناه هم نه پاتې کیږی

الله تعالی ډیررحیم اوکریم دې دمومن سره دالله تعالی خاص رعایت وی. تردې چه دقیامت په ورځ به داسې هم وی چه د سړی ګناهونه به معاف کړی اود هغې په ځائې به ورله نیکۍ اولیکلی شی

دحضرت ابوذر رضي الله عنه نه مروی دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی ((عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي لَأَعْلَمُ آخِرَ أَهْلِ الْجَنَّةِ دُخُولًا الْجَنَّةَ وَآخِرَ أَهْلِ النَّارِ خُرُوجًا مِنْهَا رجل یؤتی به یوم القیامة فیقال أعرضوا علیه صغار ذنوبه فیقال عملت یوم کذا وکذا : کذا وکذا؟ فیقول نعم لا یستطیع أن ینکر، وهو مشفق من کبار ذنوبه أن تعرض علیه فیقال له فإن لك مکان کل سیئة حسنة فیقول رب قد عملت أشیاء لا أراها ههنا فلقد رأیت رسول الله صلی الله علیه وسلم ضحك حتی بدت نواجذه))[4]

---

[1]) والحدیث بتمامه :عن ابن عباس رضی الله عنهما عن النبی صلی الله علیه وسلم فیما یروی عن ربه قال قال إن الله تعالی کتب الحسنات والسیئات ثم بین ذلک فمن هم بحسنة فلم یعملها کتبها الله له عنده حسنة کاملة فإن هو هم بها فعملها کتبها الله له بها عنده عشر حسنات إلی سبع مائة ضعف إلی أضعاف کثیرة ومن هم بسیئة فلم یعملها کتبها الله له عنده حسنة کاملة فإن هو هم بها فعملها کتبها الله له سیئة واحدة)) صحیح البخاری (۹۶۰/۲و ۹۶۱)کتاب الرقاق باب من هم بحسنة أو سیئة وانظر الصحیح لمسلم (۷۸/۱) کتاب الإیمان باب بیان تجاوز الله تعالی عن حدیث النفس .. )_

[2]) عمدة القاری(۲۵۲/۱)_

[3]) صحیح البخاری(۱۸۹/۱) کتاب الزکاة باب الصدقة من کسب طیب)_

[4]) صحیح مسلم (۱۰۶/۱) کتاب الإیمان باب إثبات الشفاعة وإخراج الموحدین من النار وجامع الترمذی کتاب صفة جهنم باب منه بعد باب ما جاء أن للنار نفسین وما ذکر من یخرج من النار من أهل التوحید رقم ۲۵۹۶)

يعنى كله چه الله تعالى دهغه واړه ګناهونه د هغه وړاندې پيش كړى.نوهغه به ويره محسوس كړى چه دا خو زما واړه ګناهونه دى.كوم چه يوپه يومحفوظ دى اولوی ګناهونه به وړيسې شمارلې شى.معلومه نه ده.چه دهغې نه پس به زما څه حشر وى.خوالله تعالى به په خپل فضل اوكرم سره دهغه ګناهونه په نيكو بدل كړى.اوس به دهغه حوصله زياته شى اوعرض به اوكړى.چه يا الله ما خو نور لوئې لوئې ګناهونه كړى وو زه هغه دلته نه وينم هغه ته به دا اميد وى چه دهغې په بدله كښې به هم نيكئ راكړې شى

[۳۲]حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ قَالَ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ() قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَحْسَنَ أَحَدُكُمْ إِسْلَامَهُ فَكُلُّ حَسَنَةٍ يَعْمَلُهَا تُكْتَبُ لَهُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا إِلَى سَبْعِ مِائَةِ ضِعْفٍ وَكُلُّ سَيِّئَةٍ يَعْمَلُهَا تُكْتَبُ لَهُ بِمِثْلِهَا

## رجال الحديث

①اسحاق بن منصور:دوى ابويعقوب اسحاق بن منصور بن بهرام (۲)كوسج تميمى مروزى نيشاپورى دى.

حاكم رحمه الله فرمائى.چه دوى په مرو كښې پيدا شوى وو.اوددوى خسمانه په نيشاپور كښې شوې وه.هم هلته ددوى اولاد خوارهٔ شوى وو.اووفات شوى وو. د حديث په امامانوكښې يوامام اوپه زاهدانوكښې يوزاهد وو.دسنتو سخت پابند وو.(۳)

دعلم دتثبيت به ئې ډير زيات اهتمام كولو.وئيلى شى.چه دوى د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه څه مسائل ليكلى وې.چا ورته اووئيل.چه امام احمد رحمه الله په دې مسائلوكښې د بعضو نه رجوع كړې ده.دوى سمدستى هغه ټول مسائل په يوه تيله كښې واچول.اوپه خپل شا باندې باركړل.اوبغداد ته پيدل روان شو.چه هلته اورسيدل.نودوباره ئې امام احمد رحمه الله ته هغه مسائل وړاندې كړل.هغوى دهغې بيا تائيد اوكړو.امام احمد رحمه الله ته ددوى دا عمل ډير زيات خوښ شو.(۴)

دوى دامام احمد ،اسحاق بن راهويه،ابواليمان الحكم بن نافع،سفيان بن عيينه،ابوداود طيالسى،عبدالرزاق بن همام،عفان بن مسلم ،يحيى بن سعيد القطان،او يزيدبن هارون رحمهم الله نه داحاديثو روايت كړې دې.(۵)

---

۱) الحديث أخرجه مسلم فى صحيحه (۷۸\۱) فى كتاب الإيمان باب بيان تجاوز الله تعالى عن حديث النفس)

۲) قال النووى : بكسرالباء الموحدة .والمشهور فتح باء بهرام انظ شرح الكرمانى (۱۷۰\۱) وعمدة القارى (۲۵۳\۱) والمغنى (ص.۱۲۰)

۳) تهذيب الكمال(۴۷۷\۲)_

۴) المصدرالسابق)_

۵) تهذيب الكمال(۴۷۴\۲و ۴۷۶)_

اوددوی نه په روایت کونکوکښې دابوداود رحمه الله نه سوا داصول سته تولو مصنفینو. ابراهیم بن حربی. عبدالله بن احمدبن حنبل. ابوزرعه. اوابوحاتم رازی رحمهم الله وغیره حضرات دی.(۱)

امام مسلم رحمه الله فرمائی «ثقة مأمون أحد الأئمة من أصحاب الحديث»(۲)

امام نسائی رحمه الله فرمائی. «ثقة ثبت»(۳)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی «صدوق»(۴)

خطیب بغدادی رحمه الله لیکی. «كان فقيهاً عالماً وهوالذی دون عن أحمد بن حنبل وإسحاق بن راهويه: المسائل»(۵)

امام بخاری رحمه الله فرمائی په جمادلی الاولی ۲۵۱هـ کښې د کل په ورځ دوی وفات شوی وو او په راروانه د نبې په ورځ دفن شوی وو (۶) رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

④ عبدالرزاق: دوی ابوبکرعبدالرزاق بن همام بن نافع صنعانی یمانی دی. په ۱۲۶هـ دوی پیدا شوی وو.(۷)

دوی د اسرائیل بن یونس. ثوربن یزید. سفیان ثوری. سفیان بن عیینه. عبدالله بن المبارك. امام اوزاعی. فضیل بن عیاض. مالك بن انس. مثنی بن الصباح. معمربن راشد. ابومعشر نجیح بن عبدالرحمن اوهشیم بن بشیر رحمهم الله وغیره نه سماع دحدیث کړې ده.(۸)

اوددوی نه په سماع کونکوکښې امام احمد. امام اسحاق بن راهویه. اسحاق بن منصور. ابوخیثمه. زهیربن حرب. سفیان بن عیینه (دا ددوی په شیوخوکښې هم دی) سلیمان بن داود الشاذ کونی وعباس بن عبدالعظیم عنبری. علی بن المدینی. محمدبن یحی ذهلی. معتمربن سلیمان (دې ددوی په شیوخوکښې دې) وکیع بن الجراح (دا دوی په اقرانوکښې دې) اویحیی بن معین رحمهم الله وغیره ډیرمحدثین دی.(۹)

---

۱) تهذیب الکمال(۱۲\۴۷۶)_
۲) تهذیب الکمال(۱۲\۴۷۶)_
۳) المصدرالسابق)_
۴) المصدرالسابق)_
۵) تهذیب الکمال(۱۲\۴۷۷)-
۶) التاريخ الصغير(ص.۲۳۸) والتاريخ الكبير(۱\۴۰۱۱) رقم ۱۲۹۱) وتهذيب الكمال(۱۲\۴۷۷) وعمدة القاری(۱\۲۵۳) والكاشف للذهبي(۱\۲۳۹) رقم ۳۲۲) وتقريب التهذيب(۱۰۳) وخلاصة الخزرجي(۳۰)
۷) تهذيب الكمال (۱۸\۶۱) وسير أعلام النبلاء(۹\۵۶۵)_
۸) تهذيب الكمال (۱۸\۵۲و ۵۴)_
۹) تهذيب الكمال (۱۸\۵۴و ۵۶)_

دامام احمدبن حنبل رحمه الله نه احمدبن صالح مصرى رحمه الله تپوس اوكړو «رأيت أحداً أحسن حديثاً من عبدالرزاق؟» نوهغوى جواب وركړو «لا»(١)

امام ابوزرعه رحمه الله فرمائى «عبدالرزاق أحد من ثبت حديثه»(٢)

ددوى استاذ معمربن راشد رحمه الله فرمائى «وأما ابن همام فإن عاش فخليق أن تضرب إليه أكباد الإبل»(٣) يعنى ددوى استاذ ددوى د طالبعلمئ په زمانه كښې پيشنگوئى كړې وه كه دې ژوندې پاتې شو نوددې قابل دې چه دلرې لرې نه به خلق ده ته راسيږى

هشام بن يوسف رحمه الله فرمائى «كان عبدالرزاق أعلمنا وأحفظنا»(٤)

امام ذهلى رحمه الله فرمائى «وكان أيقظهم فى الحديث وكان يحفظ»(٥)

د ائمه رجال اومحدثين عظام رحمهم الله ددې نقولونه معلومه شوه چه حافظ عبدالرزاق بن همام صنعانى رحمه الله په محدثينو رحمهم الله كښې يوډير لوئې امام د حديث په حافظانوكښې ډيرلوئې حافظ وو.د احاديثو د روايت په سلسله كښې په دوى باندې د محدثينو رحمهم الله اعتماد وو

البته بعضې حضراتوددوى دحافظې په باره كښې كلام كړې دې دغه شان څه حضراتو په دوى باندې د تشيع الزام هم لګولې دې.دغه شان ددوى نه د أهل بيتو په فضائلوكښې اودڅه نورو حضراتوپه مناقبوكښې منكر روايات هم مروى دى.

ابن حبان رحمه الله فرمائى «وكان ممن جمع وصنف وحفظ وكان ممن يخطئ إذا حدث من حفظه على تشيع فيه»(٦)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى «ثقة حافظ مصنف شهير عمي فى آخر عمره فتغير وكان يتشيع»(٧)

امام نسائى رحمه الله فرمائى «فيه نظر لمن كتب عنه بأخرة وروى عنه أحاديث مناكير»(٨)

تركومې پورې چه د حافظې د تغيرتعلق دې.نودا يوحقيقت دې چه ددوى حافظه په آخرى عمركښې متغيره شوې وه.په آخرى عمركښې چه به كله دوى حديث بيانولو نوپه هغې كښې به ئې غلطى كوله.ددې وجې دهغه حضراتو د روايت اعتبارنه دى كول پكار.چه ددوى نه په آخرى عمر كښې روايت كړې دې.

---

(١) تهذيب الكمال(١٨\٥٧) وسير أعلام النبلاء(٩\٥٦٩)_

(٢) تهذيب الكمال(١٨\٥٧) وتهذيب التهذيب(٦\٣١١)_

(٣) المصدرالسابق وتهذيب التهذيب(٦\٣١٢)_

(٤) سيرأعلام النبلاء(٩\٥٦٦- ٥٨٠) وتهذيب الكمال(١٨\٥٨) وتهذيب التهذيب(٦\٣١٢)-

(٥) تهذيب التهذيب(٦\٣١٤) وهدى السارى(٤١٩)_

(٦) الثقات لابن حبان(٨\٤١٢)_

(٧) تقريب التهذيب(ص.٣٥٤) رقم ٤٠٦٤)_

(٨) ميزان الإعتدال(١٢\٦١٠)_

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي: «أتينا عبد الرزاق قبل المائتين وهو صحيح البصر ومن سمع منه بعد ما ذهب بصره فهو ضعيف السماع»[1]

دغه شان د يحيى بن معين رحمه الله نه چه کله عبد الله بن احمد رحمه الله تپوس اوکړو «تحفّظ السن عن عبد الرزاق؟» نو هغوى جواب ورکړو: «أما حيث رأيناه فما كان يبلغ الثمانين نحو من سمعين»[2] يعنى څه وخت چه مونږ دهغوى نه احاديث اوريدل. هغه وخت کښې هغوى اتيا کالو ته نه وو رسيدلى بلکه اويا سره نزدې نزدې وو.

بيا دمختلط د رواياتوپه باره کښې محدثينو رحمهم الله اصول بيان کړى دى. چه کومو حضراتو قبل الاختلاط روايتونه نقل کړى دى. هغه مقبول دى. اوچا چه بعدالاختلاط روايات نقل کړى دى. هغه مردود دى. دامام عبدالرزاق رحمه الله احاديث هم مميز دى. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي «احتج به الشيخان في جملة من حديث من سمع منه قبل الاختلاط، وضابط ذلك من سمع منه قبل المائتين فأما بعدها فكان قد تغير»[3]

دلته دا خبره هم په ذهن کښې اچول پکار دى. چه امام عبدالرزاق رحمه الله د «المصنف» سره نورو کتابونو تصنيف د اختلاط نه وړاندې کړې دې. نو داختلاط په وجه په دې کتابونو کښې د يو کتاب روايت رد کول ټيک نه دى. هم دا وجه ده. چه امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائي «من سمع من الكتب فهو أصح»[4]

دامام احمد رحمه الله قول دې: «من سمع منه بعد ما عمي فليس بشيء وما كان في كتبه فهو صحيح وما ليس في كتبه فإنه كان يلقن فيتلقن»[5]

هم امام احمد رحمه الله فرمائي: «كان يتعاهد كتبه»[6]

دامام بخارى رحمه الله قول هم دې: «ما حدث من كتابه فهو أصح»[7]

ترکومې پورې چه د تشيع تعلق دې. نو دا حقيقت دې. که په امام عبدالرزاق کښې که څه تشيع وو. نو هغه داسې نه وو. چه دطعن سبب جوړ شوې وو. ځکه چه هغه بدعت سبب د ضعف

---

[1]) تهذيب الكمال (۱۸\۵۸) وسير أعلام النبلاء (۹\۵۶۵) وتهذيب التهذيب (۶\۳۱۲)_
[2]) كتاب الضعفاء الكبير للعقيلي (۳\۱۰۸) وسير أعلام النبلاء (۹\۵۷۰)_
[3]) هدى السارى (۴۰۹ و ۴۲۰)_
[4]) تهذيب الكمال (۱۸\۵۸) وتهذيب التهذيب (۶\۳۱۲)_
[5]) هدى السارى (۴۱۹)_
[6]) تهذيب الكمال (۱۸\۵۷) وتهذيب التهذيب (۶\۳۱۲)_
[7]) التاريخ الكبير (۶\۱۳۰) وسير أعلام النبلاء (۹\۵۷۱) وميزان الإعتدال (۲\۶۱۰)_

دي چه دهغې متصف داعى هم وى.اوبيا كه اومنلې شى چه هغه متشيع وو.نودهغوى ددې نه رجوع هم ثابته ده.

دامام احمد رحمه الله نه دهغوى خوئي عبدالله بن احمد رحمه الله تپوس اوكړو «عبدالرزاق كان يتشيع ويفرط فى التشيع؟» نوهغوى جواب وركړو.«أما أنا فلم أسمع منه فى هذا شيأ ولكن كان رجلاً تعجبه أخبار الناس أوالأخبار» (١)يعنى ماته دهغوى د شيعيت په باره كښې څه علم نشته.البته دا ده چه هغوى د خلقو دواقعاتو سره شوق زيات ساتل.اوهغه به ئې نقل كولې.كيدې شى.په داسې واقعاتوكښې داسې څه خبره راغلې وى.په كومو باندې چه دهغوى په تشيع باندې استدلال كړې شوې وى.

يخپله دامام عبدالرزاق رحمه الله نه منقول دى.«والله ما انشرح صدرى قط أن أفضل علياً على أبى بكر وعمر،رحم الله أبابكر،و رحم الله عمر،و رحم الله عثمان،و رحم الله علياً،من لم يحبهم فما هو مؤمن وقال أوثق عملى حبى إياهم» (٢)

دغه شان دهغوى نه دا هم منقول دى «أفضل الشيخين بتفضيل على رضى الله عنه إياهما على نفسه ولولم يفضلهما لم أفضلهما كفى بى إزراء أن أحب علياً ثم أخالف قوله» (٣)

بيا امام احمد رحمه الله نقل كړى دى.چه امام عبدالرزاق د شيعيت نه رجوع كړې وه.حافظ ابن حجر رحمه الله د عبيدالله بن موسى رحمه الله په حالاتوكښې ليكلى دى.«تركه أحمد لتشيعه وقد عوتب أحمد على روايته عن عبدالرزاق فذكر أن عبدالرزاق رجع» (٤)يعنى امام احمد رحمه الله چه كله عبيدالله بن موسى دتشيع په وجه باندې پريخودو.نوپه هغوى باندې اعتراض اوشو.چه تاسو د عبدالرزاق نه ولې روايتونه كړى دى.په دې باندې هغوى اووئيل.چه امام عبدالرزاق د شيعيت نه رجوع كړې وه.(٥)

دا خبره دې معلومه وى.چه دامام عبدالرزاق په باره كښې د بعضې نورو حضراتو نه كلام منقول دې.

---

(١) تهذيب الكمال(٦٠١١٨) وتهذيب التهذيب(٣١٣١٦) وميزان الإعتدال(٦١٠١٢) وسيرأعلام النبلاء (٥٧٠١٩)-

(٢) تهذيب الكمال(٦٠١١٨) وتهذيب التهذيب(٣١٣١٦) وسير أعلام النبلاء(٥٧٤١٩)_

(٣) المصادر السابقة والكامل لابن عدى(٣١٢١٥)_

(٤) تهذيب التهذيب(٥٣١٧)-

(٥) قال الشيخ محمد عوامة حفظه الله تعال:والتشيع فى عرفهم محبة على رضى الله عنه وتقديمه على الصحابة إلا أبا بكروعمر.فإن قدمه عليهما رضى الله عنهم جميعاً كان غالياً فى تشيعه وعلى رضى الله عنه مقدم عند أهل السنة على الصحابة جميعاً إلا أبابكروعمر وعثمان رضى الله عنهم حسبما تقرر رأيهم عليه فيكون خلاف عبدالرزاق مع غيره فى ندبه على رضى الله عنه على عثمان أولاً كذا فى تعليقاته على الكاشف للذهبى(٦٥٢١١)_

سفيان بن عيينه رحمه الله فرمائي «أخاف أن يكون من الذين ضل سعيهم في الحياة الدنيا»(١)

دغه شان عباس بن عبدالعظيم عنبرى رحمه الله فرمائي «والله الذى لا إله إلا هو إن عبدالرزاق كذاب والواقدى أصدق منه»(٢)

هم دې عباس بن عبدالعظيم د زيدبن المبارك نه نقل كړى دى «كان عبدالرزاق كذاباً يسرق الحديث»(٣)

تركومې پورې چه دسفيان بن عيينه رحمه الله دقول تعلق دې نولكه څنګه چه بنكاره ده چه دا جرح مبهم وى هغوى ددې څه وجه نه ده ذكركړې اوكومه جرح چه مبهم وه اودهغې په مقابله كښې دائمه جرح والتعديل نه دهغه راوى په باره كښې تعديل اوتوثيق منقول وى نوداسې جرح مقبول نه وى.

بيا ممكن ده چه ددوى د قول اعتماد هم هغه تشيع وو كوم چه مونږ اوس رد كړو نوځكه دا قول دهغوى په حق كښې جارح نه دې

عباس بن عبدالعظيم چه په قسم سره دوى ته كذاب ونيلى دى نوحفاظو دحديث دا قول رد كړې دې

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائي «هذا ما وافق العباس عليه مسلم بل سائر الحفاظ وأئمة العلم يحتجون به إلا تلك المناكير المعدودة فى سعة ما روى»(٤)

دغه شان دوى فرمائي «بل والله ما بر عباس فى يمينه ولبئس ما قال يعمد إلى شيخ الإسلام ومحدث الوقت ومن احتج به كل أرباب الصحاح وإن كان له أوهام مغمورة وغيره أبرع فى الحديث منه فيرميه بالكذب ويقدم عليه الواقدى الذى أجمعت الحفاظ على تركه؟ فهو فى مقالته هذه خارق للإجماع بيقين»(٥)

هم دا الزام زيدبن المبارك هم لګولې وو نودهغې جواب هم په دې كښې راغلو په اصل كښې داسې معلوميږى چه زيدبن المبارك. ته امام عبدالرزاق د يوې جملې په وجه نه ناخوښه شوې وو په هغې باندې دوى دهغوى كتابونه اوشلول اودهغه خائې نه لاړل. دهغې نه پس هغوى دامام عبدالرزاق په حق كښې خپله دغه ذكرشوې رائې قائمه كړه.

پوره واقعه امام عقيلى رحمه الله په كتاب الضعفاء كښې ذكركړې دې «كان زيد بن المبارك قد لزم عبدالرزاق فأكثر عنه ثم خرق كتبه ولزم محمدبن ثور، فقيل له فى ذلك فقال كنا عند عبدالرزاق فحدثنا

(١) الضعفاء الكبير للعقيلى (١٠٩/٣) وميزان الإعتدال (٦١٠/٢) وسير أعلام النبلاء (ت ٥٧١/٩)-

(٢) الضعفاء للعقيلى (١٠٩/٣) وميزان الإعتدال (٦١١/٢) وتهذيب التهذيب (٣١٤/٦) وسير أعلام النبلاء (٥٧١/٩) والكامل لابن عدى (٣١١/٥)_

(٣) تهذيب التهذيب (٣١٥/٦) وسير أعلام النبلاء (٥٧٤/٩)_

(٤) ميزان الإعتدال (٦١١/٢)_

(٥) سير أعلام النبلاء (٥٧١/٩ و ٥٧٢)_

بحديث معمر عن الزهرى عن مالك بن أوس بن الحدثان.. الحديث الطويل فلما قرأ قول عمر لعلي والعباس فجئت أنت تطلب ميراثك من ابن أخيك وجاء هذا يطلب ميراث إمرأته حيث قال عبدالرزاق إنظروا إلى الأنوك[1] يقول تطلب ميراثك من ابن أخيك ويطلب هذا ميراث زوجته من أبيها لايقول رسول الله ﷺ قال زيد بن المبارك فلم أعد إليه ولا أروى عنه[2]

يعنى عبدالرزاق د اميرالمومنين سيد حضرت عمرالفاروق رضي الله عنه په باره کښې د «أنوك» شنيع لفظ استعمال کړو.اوګستاخى ئې اوکړه ددې وجې ئې دهغوى نه روايتونه اخستل پريخودل.

حافظ ذهبى رحمه الله په دې واقعه باندې تبصره کوى.اوفرمائى.عبدالرزاق چه دحضرت عمر رضي الله عنه په حق کښې داسې شنيع لفظ استعمال کړو.نودېره بده ئې کړې ده حالانکه که هغه تبصره کوله.نوپکارده چه داسې ئې وئيلې وو.«قال أميرالمؤمنين عمرالفاروق» اګرچه هغوى ته ددې تبصرې کولوحق هم نه وو.خکه چه اول خو دحضرت عمر رضي الله عنه مقام اودهغوى عزت اوعظمت منلې شوې دې.بيا دا چه حضرت عمر رضي الله عنه دشان مصطفى ﷺ نه زيات خبر وو.روسته راتلونکى دهغوى پشان خنګه کيدې شى.بيا حضرت عمر رضي الله عنه دلته مقام عنومت اوبنوت (يعنى دميراث احکام) بيانول.په دې مقام باندې «رسول الله ﷺ» وئيل مناسب نه وو. خکه چه د ميراث استحقاق دحضرت عباس رضي الله عنه دهغوى دتره ولئ اودحضرت فاطمې رضي الله عنها د لورتوب په وجه ظاهرولې شو.د رسالت په وجه نه.ددې وجې حضرت عمر رضي الله عنه د ميراث په مسئله کښې د ميراث اصطلاح استعمال کړه.په کوم کښې چه څه قباحت نه وو.ددې وجې د عبدالرزاق دا رائې بيخى غلطه وه.

خوددې باوجود ددې واقعه په بنياد هغه بيخى مجروح ګرځول او«كذاب يسرق الحديث» وئيل ورته صحيح نه دى.دوى فرمائى.«وبكل حال فنستغفر الله لنا ولعبد الرزاق فإنه مأمون على حديث رسول الله ﷺ صادق»[3]

دامام عبدالرزاق رحمه الله په احاديثوباندې دمحدثينو رحمهم الله خومره اعتماد وو.ددې اندازه ددې واقعه نه لګولې شى.

ابوصالح محمدبن اسماعيل ضرارى رحمه الله فرمائى.کله چه مونږ امام عبدالرزاق رحمه الله ته دهغوى نه دحديث اوريدو دپاره صنعاء ته اورسيدو.نوهلته راته دچانه معلومه شوه.چه

---

[1] الأنوك الأحمق والجمع النوكى كذا فى لسان العرب (١٠\\٥٠١)_

[2] الضعفاء الكبير للعقيلى(٣\\١١٠)_

[3] سيرأعلام النبلاء(٩\\٥٧٢و ٥٧٣) قال الذهبى فى ميزان الإعتدال(٢\\٦١١) فى هذه الحكاية إرسال والله أعلم بصحتها ولا أعترض على الفاروق رضي الله عنه فيها فإنه تكلم بلسان قسمة التركات)-

زمونږ لويو محدثينو .يحيى بن معين اواحمد بن حنبل رحمهما الله دهغوى نه احاديث اوريدل پريخى دي.اودا چه دا حضرات هغه نه خوښوى.كله چه مونږ دا واوريدل.نومونږ ډيرزيات خفه شو.نوهسې مو دومره خرچه اوكړه.سفر مو اوكړو اومشقت مو برداشت كړو.هم په دغه وخت كښې دحج زمانه راغله.زه مكې مكرمې ته اورسيدم.هلته مې دامام يحيى بن معين رحمه الله سره ملاقات اوشو.ما ورته اووئيل.اې ابوزكريا! مونږ اوريدلى دى چه تاسو د عبدالرزاق احاديث پريخى دي.اودهغه نه مو اعراض كړې دې.نوهغوى اووئيل «ياأباصالح لو ارتد عبدالرزاق عن الإسلام ماتركنا حديثه»[1] يعنى كه عبدالرزاق والعياذبالله مرتد شى.نوبيا هم دهغوى احاديث دومره قوى دى.چه مونږ هغه نه پريږدو.

خلاصه دا چه امام عبدالرزاق بن همام رحمه الله په ائمه حديث كښې يوجليل القدر ثقه امام دې.البته دهغوى په حافظه كښې په آخرى عمر كښې تغيرراغلې وو.ددې وجې دهغوى هغه روايات قابل قبول نه دى.كوم چه هغوى د ٢٠٠ه نه پس كړى دى.دغه شان دهغوى نه څه منكر احاديث هم مروى دى.كوم چه حفاظ حديث په ګوته كړى دى.

تركومې پورې چه دهغوى د شيعيت تعلق دې.نواول خو هغه ثابت نه دى. اوكه ثابت هم شى.نومضرنه دى.

حافظ ابن عدى رحمه الله دهغوى په باره كښې خپله كومه رائې ليكى.هغه ډير معتدل او قول فيصل دې.هغوى فرمائى.«ولعبدالرزاق أصناف وحديث كثير، وقد رحل إليه ثقات المسلمين وأئمتهم وكتبوا عنه ولم يروا بحديثه بأساً إلا أنهم نسبوه إلى التشيع، وقد روى أحاديث فى الفضائل مما لايوافقه عليها أحد من الثقات فهذا أعظم ما رموه به من روايته لهذه الأحاديث ولما رواه فى مثالب غيرهم مما لم أذكره فى كتابى هذا وأما فى باب الصدق فأرجوا أنه لابأس به إلا أنه قد سبق منه أحاديث فى فضائل أهل البيت ومثالب آخرين مناكير»[2]

په شوال ٢١١ه كښې وفات شوى وو.[3] رحمه الله رحمة واسعة

③ معمر:دوى معمربن راشد ازدى دى.ددوى مختصرحالات د«بدء الوحى» كښې دشپږم نمبر حديث لاندې تيرشوى دى.[4]

④ همام:دوى همام بن منبه [اسم فاعل از تفعيل][5] بن كامل بن سيبح [بكسر السين المهملة

---

[1]) الضعفاء الكبير للعقيلى (١١٠/٣) وميزان الإعتدال(٦١٢/٢) وسيرأعلام النبلاء(٥٧٣/٩) وتهذيب التهذيب(٣١٤/٦) والكامل لابن عدى(٣١١/٥)_

[2]) الكامل فى ضعفاء الرجال لابن عدى(٣١٥/٥)-

[3]) تهذيب الكمال(٦١/١٨) والتاريخ الكبير(١٣٠/٦) والثقات لابن حبان(٤١٢/٨) وطبقات ابن سعد(٥٤٨/٥)

[4]) كشف البارى(٤٦٥/١ و [illegible])_

[5]) المغنى فى ضبط أسماء الرجال (ص [illegible])

وسكون التحتية وبجيم وقيل بفتح السين (١)يماني صنعاني (٢)ابناوى (٣) دى.د دوى كنيت بوعقبه دې.وهب بن منبه.معقل بن منبه.اوغيلان بن منبه د دوى ورنړه دى.
همام بن منبه دحضرت عبدالله بن زبير.حضرت عبدالله بن عباس.حضرت عبدالله بن عمربن الخطاب.حضرت معاويه بن ابى سفيان.اوحضرت ابوهريرهؓ وغيره نه روايت كړې دې
ددوى نه ددوى ورو وهب بن منبه.اووراره عقيل بن معقل منبه.على بن الحسن اومعمربن راشد رحمهم الله روايت كوى.(٤)
ابن حبان رحمه الله دوى په ‹‹ثقات›› كښې ذكركړى دى.(٥)
امام يحيى بن معين رحمه الله فرمائى.((ثقة))(٦)
امام عجلى رحمه الله فرمائى.((يمانى تابعى ثقة))(٧)

دا هغه همام بن منبه رحمه الله دې.دچا حديثوكتابچه د ‹‹صحيفه همام بن منبه›› په نوم سره مشهوره وه.دا صحيفه دوى براه راست د حضرت ابوهريرهؓ نه اوريدلې اوليكلې وه.
د دې احاديثو د ضبط واقعه امام احمد رحمه الله بيان كړې ده.چه همام بن منبه به هميشه دپاره په جهاد كښې شركت كولو.اودخپل ورور وهب بن منبه رحمه الله دپاره به ئې كتابونه اخستل. هغوى په مدينه منوره كښې دحضرت ابوهريرهؓ په مجلسونوكښې ناسته اختياركړه. اوهلته ئې دا احاديث واوريدل.اودا ئې ضبط كړل.دا يوسل څلويښتو ته نزدې احاديث وو.د معمربن راشد ملاقات ددوى سره په يمن كښې په هغه وخت كښې اوشو.كوم وخت چه هغوى ډيركمزورى شوى وو. تردې چه دهغوى وريځې دهغوى په سترګوباندې راغلې وې.په داسې وخت كښې معمر رحمه الله دهغوى نه دا صحيفه واوريده.كيفيت ئې دا وو.چه كله به په اورولو اورولوهمام رحمه الله ستړې شو.نومعمرباقى احاديث هغوى ته واورول.(٨)

---

(١) المغنى(ص.٤١٠)_
(٢) الصنعاني:نسبة إلى صنعاء مدينة باليمن بزيادة النون فى آخره والقياس أن يقال صنعاوى ومن العرب من يقوله .فأبدلوا من الهمزة النون كذا فى العمدة (٢٥٤|١)_
(٣) الأبناوى بفتح الهمزة وسكون الباء الموحدة وفتح النون نسبة إلى الأبناء وهم قوم باليمن من ولد الفرس الذين جهزهم كسرى مع سيف بن ذى يزن إلى ملك الحبشة فغلبوا الحبشة وأقاموا باليمن وقال أبوحاتم بن حبان كل من ولد باليمن من أولادالفرس وليس من العرب يقال أبناوى وهم الأبناويون كذا فى العمدة(٢٥٤|١)
(٤) تهذيب الكمال(٢٩٨|٣٠و ٢٩٩)_
(٥) كتاب الثقات لابن حبان(٥١٠|٥)_
(٦) تهذيب الكمال(٢٩٩|٣٠)-
(٧) تهذيب التهذيب(٦٧|١١)_
(٨) تهذيب الكمال(٢٩٩|٣٠) وسير أعلام النبلاء(٣١٢|٥)_

دا صحيفه امام عبدالرزاق د معمرنه روايت كوله اومعمربن دهمام بن منبه اوهغه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت كوله
امام احمد رحمه الله (دوى دامام عبدالرزاق بن همام رحمه الله خاص شاگرد وو) دا ټوله صحيفه په خپل مسند كښې نقل كړې ده.په مسنداحمدكښې ددې ټولو احاديثو تعداد يوسل شپږديرش دى ددې صحيفه يوه مخطوطه نسخه كومه چه حافظ احمد بن يوسف سلمى نيشاپورى متوفى (۲۶۴هـ) روايت دې په مكتبه ظاهريه دمشق كښې شته. مشهورمحقق ډاكټرمحمدحميدالله حيدرآبادى ددې مخطوطه تحقيق كړې دې. اوپه ۱۳۷۲هـ مطابق ۱۹۵۳م كښې ئې په دمشق كښې شائع كړې وه. جزاه الله تعالى خيراً.
محمدبن سعد رحمه الله فرمائى چه ددوى وفات په ۱۳۱هـ كښې شوې وو.(۱)
امام بخارى رحمه الله دعلى بن المدينى رحمه الله په واسطه سره نقل كړى دى.چه دهمام بن منبه وفات په ۱۳۲هـ كښې شوې وو.(۲)والله أعلم، رحمه الله تعالى رحمة واسعة.
⑤ دحضرت ابوهريره رضي الله عنه تفصيلى حالات كتاب الايمان د «باب أمور الإيمان» لاندې تيرشوى دى.(۳)

**قوله**: إِذَا أَحْسَنَ أَحَدُكُمْ إِسْلَامَهُ فَكُلُّ حَسَنَةٍ يَعْمَلُهَا تُكْتَبُ لَهُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا إِلَى سَبْعِ مِائَةِ ضِعْفٍ وَكُلُّ سَيِّئَةٍ يَعْمَلُهَا تُكْتَبُ لَهُ بِمِثْلِهَا: كله چه په تاسوكښې يوكس په خپل اسلام كښې ښه والې اوخوبيانې پيدا كړى.اواطاعت اختياركړى.نوهرهغه نيك كاركوم چه هغه كوى.دلس چند نه واخله تراووه سوو پورې ليكلى شى.اوهربدعمل چه هغه كوى.نوهغه صرف يو ليكلى شى.
ددې حديث سره متعلق ټول تفصيلات په مخكنى حديث كښې تيرشوى دى.

## ۳۱ = بَابٌ أَحَبُّ الدِّينِ إِلَى اللَّهِ أَدْوَمُهُ

**د مخكنى باب سره ددې باب ربط** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه ددې باب د مخكنى باب سره مناسبت داسې دې. چه په ماقبل كښې داسلام دحسن بيان وو.او اوس دلته حدبندى كولې شى. چه په اسلام كښې دحسن تصوركولونه پس دې داسې نه وى.چه يوكس په اعمالوكښې دغلو اوتجاوز عن الحدود ارتكاب شروع كړى.ځكه كه تجاوزعن الحدود اوغلواختيار كړې شى.نوبه آخركښې به دسترى والى د وجې عمل بيخى پريږدى.ددې وجې

---

(۱) تهذيب الكمال(۳۰۰/۱۳۰) وطبقات ابن سعد(۵۴۴/۵) خودطبقات په مطبوعه نسخه كښې ((مات سنة إحدى أوإثنتين ومائة)) دا الفاظ ډاكټربشار عواد معروف محقق تهذيب الكمال نقل كوى.او ليكى (وهو تحريف)_
(۲) التاريخ الكبير(۲۳۶/۸) رقم ۲۸۴۷)_
(۳) كشف البارى (۵۹۱/۱و ۶۶۳)_

دلته دا اوخودلې شوه چه بيشكه داعمالو په ذريعه په اسلام كښې حسن راځي خوميانه روى اختيار كړئ اومداومت اختيار كړئ نوهله به هغه حسن قائم پاتې شي (١)

علامه عينى رحمه الله فرمائى چه په ماقبل كښې داسلام دپاره دحسن يعنى «امتثال اوامر، اجتناب عن النواهى اوشفقة على خلق الله» بيان وو او اوس په هغې باندې د مداومت اومواظبت بيانول مطلوب دى.خكه چه كله بنده مداومت اومواظبت اختيار كړى نودالله تعالى په محبت كښې زيادت كيږى اوداسلام حسن دائمى وى (٢) دا مناسبت زيات ښكاره دې

**دترجمة الباب مقصد** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دامام بخارى رحمه الله ددې ترجمې نه مقصد دا دې چه دايمان اطلاق په عمل باندې صحيح دې خكه چه ترجمه ئې قائمه كړې ده «أحب الدين إلى الله أدومه» دين دعمل په معنى دې.اومطلب دا دې چه دالله تعالى په نيزدتولونه محبوب عمل هغه دې.په كوم باندې چه مداومت اوشى ددې نه معلومه شوه چه اعمال په دين كښې داخل دى.اودمصنف رحمه الله په نيزدايمان.اسلام اودين اطلاق په يوحقيقت باندې كيږى.نوهركله چه دا ثابته شوه.چه اعمال په دين كښې دى نوبيا په ايمان او اسلام كښې داخليدل ئې هم ثابت شو.(٣)

ابن بطال رحمه الله فرمائى.چه د ترجمة د انعقاد نه دامام بخارى رحمه الله مقصود په مرجئو باندې رد دې.چه تاسو وائې.چه داعمالو د ايمان او دين سره څه تعلق نشته.حالانكه دلته عمل ته دين وئيلې شوې دې.اوپه دې باندې د مداومت ترغيب وركړې شوې دې (٤)

[٣٢] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ هِشَامٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ (٥) أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا وَعِنْدَهَا امْرَأَةٌ قَالَ مَنْ هَذِهِ قَالَتْ فُلَانَةُ تَذْكُرُ مِنْ صَلَاتِهَا قَالَ مَهْ عَلَيْكُمْ بِمَا تُطِيقُونَ فَوَاللَّهِ لَا يَمَلُّ اللَّهُ حَتَّى تَمَلُّوا وَكَانَ أَحَبَّ الدِّينِ إِلَيْهِ مَا دَامَ عَلَيْهِ صَاحِبُهُ [١١٠٠، وانظر: ١٨٦٩]

---

(١) فتح البارى(١/١٠١)_

(٢) عمدة القارى(١/٢٥٥)_

(٣) فتح البارى(١/١٠١)_

(٤) شرح كرمانى(١/١٧٣)_

(٥) الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى كتاب التهجد باب ما يكره من التشديد فى العبادة رقم (١١٥١) ومسلم فى صحيحه (١/٢٦٧) كتاب صلاة المسافرين باب فضيلة العمل الدائم من قيام الليل وغيره .. والنسائى فى سننه (١/٢٤٣) كتاب قيام الليل وتطوع النهار باب الإختلاف على عايشة رضى الله عنها فى إحياء الليل وابن ماجه فى سننه فى كتاب الزهد باب المداومة على العمل رقم (٤٢٣٨)_

## رجال الحديث

① **محمدبن مثنى**: دوى ابوموسى محمدبن المثنى بن عبيد عنزى بصرى دى ددوى حالات مخكښې د «كتاب الايمان، باب حلاوة الايمان» لاندې تيرشوى دى

② **يحيى**: دوى مشهورمحدث امام يحيى بن سعيدالقطان تميمى رحمه الله دى ددوى حالات د «كتاب الايمان، باب من الايمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه» لاندې تيرشوى دى

③ **هشام**: ددوى حالات په كشف البارى (۱/۲۹۱اردو) كښې مختصرراغلى دى. خو چونكه دوى دصحاح سته په اهم ترينو راويانوكښې دې. ددې وجې لږ په تفصيل سره ددوى حالات دوباره ذكركولى شى. دوى هشام بن عروه بن الزبيربن العوام قرشى اسدى مدنى رحمه الله دى. ددوى كنيت ابوالمنذر دې. بعضې حضراتو ئې كنيت ابوعبدالله ذكركړې دې.[1]

دحضرت انس، حضرت جابربن عبدالله، حضرت سهل بن سعد، حضرت ابن عمر رضي الله عنهما زيارت ئې كړې دې. خوروايت ئې ترې نه دې كړې. دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په باره كښې خودا هم منقول دى. چه هغوى دهشام په سر باندې لاس رابنكلې وو. اودعا ئې ورته كړې وه.[2]

په صغارتابعينوكښې ددوى شماركيږى.[3] دخپل پلارعروه نه علاوه ئې دخپل تره عبدالله بن زبير رضي الله عنهما دخپلې بى بى فاطمه بنت المنذر، عبدالله بن عروه بن الزبير، ابن شهاب زهرى، يزيدبن رومان، عبدالرحمن بن القاسم بن محمدبن ابى بكرالصديق، ابوالزبير محمدبن مسلم مكى، اوابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف رحمهم الله نه روايت كړى دى.[4]

ددوى نه روايت كونكوكښې امام شعبه، امام مالك، سفيان ثورى، اسرائيل بن يونس، اسماعيل بن عليه، ايوب سختيانى، حمادبن زيد، حمادبن سلمه، داود بن نصيرطائى، عبدالله بن المبارك، وكيع بن الجراح اويحيى بن سيعدالقطان رحمهم الله وغيره مشهور محدثين دى.[5]

امام عجلى رحمه الله فرمائى. «كان ثقة»[6]

امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائى. «وكان ثقة ثبتا كثيرالحديث حجة»[7]

---

[1]) تهذيب الكمال(۳۰\۲۳۲و ۲۳۳)_

[2]) المصدرالسابق وسيرأعلام النبلاء(۶\۳۵)_

[3]) هدى السارى(ص.۴۴۸)-

[4]) تهذيب الكمال(۳۰\۲۳۳و ۲۳۴)_

[5]) تهذيب الكمال(۳۰\۲۳۴و ۲۳۷)-

[6]) تهذيب الكمال(۳۰\۲۳۸)_

[7]) طبقات ابن سعد (ج۷،ص۳۲۱))-

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی «ثقة إمام الحديث»[1]
ابن حبان فرمائی «كان حافظا متقنا ورعا فاضلا»[2]
حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی «الإمام الثقة شيخ الإسلام....»[3]
او هم دوی فرمائی «أحد الأعلام حجة إمام»[4]
دغه شان دوی فرمائی «الإمام الحافظ الحجة...»[5]
په هشام بن عروه باندې امام مالك، يعقوب بن شيبه او ابوالحسن بن القطان رحمهم الله كلام كړې دې.ابوالحسن بن القطان رحمه الله فرمائيلی دی «هو وسهيل بن أبي صالح اختلطا وتغيرا»[6]
يعنی ددوی په حافظه كښې دومره تغير راغلې وو چه هغه مختلط (گډ وډ) شوې وو.
دغه شان يعقوب بن شيبه رحمه الله فرمائی «ثبت، ثقة، لم ينكر عليه شئ إلا بعد ما صار إلى العراق، فإنه انبسط في الرواية عن أبيه، فأنكر ذالك عليه أهل بلده، والذي يرى أن هشاما يسهل لأهل العراق أنه كان لا يحدث عن أبيه إلا بما سمعه منه، فكان تسهله أنه أرسل عن أبيه مما كان يسمعه من غير أبيه عن أبيه»[7]
يعنی د هشام اصل عادت دا وو چه هغه به د خپل پلار نه براه راست (بې واسطې) اوريدلې شوی احاديث روايت كول.خو كله چه هغه عراق ته لاړو نو هلته ئې د عراق خلقو دپاره څه داسې آسانی اوكړله.چه بعضې هغه احاديث كوم چه دوی د خپل پلار نه براه راست نه وو اوريدلی.خو دچا په واسطې سره ئې اوريدلی وو.اسې احاديثو كښې به دوی واسطه حذف كوله.او براه راست به ئې د خپل پلار نه روايت كول.
دغه شان عبدالرحمن بن يوسف بن خراش رحمه الله فرمائی «كان مالك لا يرضاه...بلغني أن مالكا نقم عليه حديثه لأهل العراق، قدم الكوفة ثلاث مرات، قدمة كان يقول: ،،حدثني أبي قال: سمعت عائشة رضي الله عنها،، وقدم الثانية فكان يقول: ،،أخبرني أبي عن عائشة،، وقدم الثالثة فكان يقول: ،،أبي عن عائشة رضي الله عنها،، يعني يرسل عن أبيه»[8]

---

[1]) تذكرة الحفاظ للذهبي (١٤٤/١) وتهذيب الكمال (٣٠/٢٣٨) وسير أعلام النبلاء (٣٥/٦)_
[2]) الثقات لابن حبان (ج٥.ص٥٠٢)-
[3]) سير أعلام النبلاء (ج٦.ص٣٤)-
[4]) ميزان الإعتدال (ج ٤.ص٣٠١)-
[5]) تذكرة الحفاظ (ج١.ص١٤٤)
[6]) ميزان الإعتدال (ج ٤.ص٣٠١) وسير أعلام النبلاء (ج٦.ص٣٥)-
[7]) تهذيب الكمال (ج٣٠.ص٢٣٨)-
[8]) اوګورئ.سير أعلام النبلاء (ج٦.ص٣٥).وتهذيب الكمال (ج٣٠.ص٢٣٩).وميزان الإعتدال (ج٤.ص٣٠٢). وهدى الساري (ص٤٤٨)-

ترکومې پورې چه د ابوالحسن بن القطان رحمه الله د کلام تعلق دې چه هغه مختلط شوې وو نو حافظ ذهبي رحمه الله ددوی زبردست رد کړې دې دوی په ميزان الاعتدال کښې فرمائي «أحد الأعلام حجة إمام لکن في الکبر ناقص حفظه، ولم يختلط أبداً، ولا عبرة بما قاله أبوالحسن ابن القطان من أنه وسهيل بن أبي صالح اختلطا و تغيرا، نعم، الرجل تغيّر قليلاً، ولم يبق حفظه فهو في حال الشبيبة، فنسي بعض محفوظه أو وهم، فکان ماذا؟ أهو معصوم من النسيان؟ ولما قدم العراق في آخر عمره حدث بجملة کثيرة من العلم، في غضون ذلك يسير أحاديث لم يجودها، و مثل هذا يقع لمالك، ولشعبة، ولوکيع، ولکبار الثقات، فدع عنك الخبط، وذر خلط الأئمة الأثبات بالضعفاء و المخلطين، فهشام شيخ الإسلام، ولکن أحسن الله عزاء نافيك يا ابن القطان»(١)

د حافظ ذهبي رحمه الله د کلام خلاصه دا ده چه د هشام په حافظه کښې بالکل آخری عمر کښې لږ ډير تغير ضرور راغلې وو خو هغه د ,,مختلط،، درجې ته نه وو رسيدلې دا تغيرهم د بوډاتوب په وجه لازميږی څکه دا خبره بالکل ښکاره ده. چه د ځوانۍ په زمانه کښې کومه زبردسته حافظه وی هغه د بوډاتوب په زمانه کښې نه وی ترکومې پورې چه آخری عمر کښې په عراق کښې د بعضو داسې حديثونو تعلق دې چه هغې کښې څه خاميانې او خرابيانې) وی نو د داسې خاميانو نه خو لوئې لوئې ثقات ائمه هم خالی نه وی. لکه چه داسې وهمونه د امام مالك. امام شعبه او امام وکيع بن الجراح رحمهم الله پشان د علم حديث بادشاهانو ته هم لاحق شوی وو نو د داسې معمولی وهمونو په وجه ثقات ضعيفانو او مختلطينو سره ملاوول هيڅ کله هم مناسب نه دی.

هم دا خبره دوی په ,,سير اعلام النبلاء،، کښې هم ليکلې ده بلکه په دې کښې دا زيادت هم شته چه «وما هذا التغير بضار أصلاً، وإنما الذي يضر الإختلاط، وهشام فلم يختلط قط، هذا أمر مقطوع به، و حديثه محتج به في الموطا، والصحاح، و السنن، فقول ابن القطان: ،،إنه اختلط،، قول مردود مرذول، فأين إماماً من الکبار سلم من الخطإ و الوهم، فهذا شعبة، وهو في الذروة، له أوهام، وکذالك معمر، والأوزاعي، ومالك رحمهم الله»(٢)

يعنی مطلق تغير مضر او قادح نه دې بلکه مضر او قادح ,,اختلاط،، دې او د هشام په باره کښې دا امر فيصله شوې او يقينی دې چه هغه د ژوند په هيڅ مرحله کښې ,,مختلط،، شوې نه وو هم دا وجه ده چه ددوی د حديثونو نه په موطا. کتب صحاح. او په سنن کښې استدلال او احتجاج شوې دې نو د ابن القطان رحمه الله قول چه هغه مختلط شوې وو نا قابل قبول دې ترکومې پورې چه د معمولی وهم تعلق دې نو ددې نه د شعبه .معمر. اوزاعی او مالك رحمهم الله پشان امامان هم محفوظ نه دی

---

١) ميزان الإعتدال (ج ٤، ص ٣٠١، ٣٠٢)-
٢) سير أعلام النبلاء (ج ٦، ص ٣٥، ٣٦)-

تركومې پورې چه د يعقوب بن شيبه رحمه الله دا وينا ده چه دوى به واسطه حذف كوله.او د خپل پلار نه به ئې ارسالاً روايت كولو.نو دا تدليس دې.[1] خو ياد ساتئ چه دوى هميشه تدليس نه كولو.ددوى عادت مستقل د تدليس نه وو: بلكه كله كله به ئې داسې كول.لكه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى «ثقة فقيه ربما دلس»[2] يعنى دې ثقه دې اوفقيه دې.كله كله به ئې تدليس كولو.

حافظ ذهبى رحمه الله د يعقوب بن شيبه ددې قول نقل كولو نه پس فرمائى «فى حديث العراقيين عن هشام أوهام تحتمل، كما وقع فى حديثهم عن معمر أوهام»[3] يعنى د عراق خلق چه د هشام نه كوم روايات نقل كوى.هغې كښې معمولى اوهام دى.چه دا برداشت كيدې شى.هم دغه شان اوهام د معمر په روايتونو كښې هم دى.كوم چه د عراق خلق ددوى نه روايت كوى.

بيا تركومې پورې چه د عبدالرحمن بن يوسف بن خراش رحمه الله د قول تعلق دې چه امام مالك رحمه الله به دا نه خوښول.او ذوى به د هغوى په حديثونو تنقيد كولو.كوم چه به دعراق خلقو روايت كول.نو دا تنقيد هم د هغه وهمونو او نا آشنا تدليس په وجه وو.كوم چه به هغوى كولو.داسې وهمونه هم قادح (او قابل د جرحې) نه دى.او داسې تدليس هم قابل د برداشت دې.

هم دا وجه ده.چه حافظ رحمه الله ددوى ذكر هغه مدلسينو كښې كړې دې.كومو چه به كله كله تدليس كولو.او ددوى تدليس برداشت كولې شى.[4]

د مذكوره ټول تقرير او اقوالو خلاصه دا شوه.چه د هشام بن عروه رحمه الله ثقاهت. تثبت. او فقاهت مجمع عليه دې.په آخرى عمر كښې ددوى په حافظه كښې معمولى تغير ضرور پيدا شوې وو.خوهغه د اختلاط په درجه كښې نه وو. البته هغه به كله كله تدليس كولو.خو دا تدليس داسې نه دې.چه ددوى رواياتو دپاره قادح جوړ شى.هم دا وجه ده.چه سره د امام مالك رحمه الله، ټولو مشهورو د حديثو مصنفينو ددوى روايات د احتجاج او استدلال په طور پخپلو كتابونو كښې ليكلى دى.والله اعلم.

په عامو حالاتو كښې هم په قول او فعل كښې ددوى د صدق عادت وو.ددې اندازه دهغه واقعې نه كيږى.كومه چه ددوى په حالاتو كښې اصحاب د سير او تراجمو رانقل كړې ده.چه: خليفه منصور هشام بن عروه ته اووئيل.چه اې ابو المنذر! تاسو ته هغه ورځ ياده ده په كومه ورځ چه زه سره د خپلو رونړو تاسو ته راغلې ووم.تاسو د يو لرګى په پيالۍ كښې ستوان اوبو كښې ګډ كړى وو.او تاسو څكل؟ مونږ چه كله ستاسو نه اووتلو.نو زمونږ پلار مونږ ته اووئيل.چه ددې لوئې حضرت د حقوقو خيال ساتئ.څكه چه تركومې پورې دې

---

[1]) قاله الحافظ فى هدى السارى(ص٤٤٨))-

[2]) تقريب التهذيب(ص٥٧٣ رقم:٧٣٠٢))-

[3]) سير أعلام النبلاء(ج٦ص٤٦))-

[4]) تعريف أهل التقديس بمراتب الموصوفين بالتدليس(ص١٨) او اوګورئ:تعليقات الشيخ محمد عوامة على الكاشف للذهبى (ج٢،ص٣٣٧))-

ژوندې دې.ستاسو په قوم كښې به څه نا څه خير وى.هشام اوفرمائيل.چه اميرالمؤمنين ماته دا واقعه بالكل ياده نه ده.

كله چه دوى د منصور د دربار نه اووتل.نو چا دوى ملامته كړل.او وې ونيل. چه تاسو هم عجيبه يې! اميرالمؤمنين تاسو ته داسې واقعه يادوى.چه ددې په حواله سره تاسو نور قربت حاصلولې شو خو تاسو صفا انكار كوئ.هشام بن عروه اوفرمائيل.چه هركله ماته دا واقعه ياده نه ده.نو زه ولې ووايم.چه ماته ياده ده.د الله تعالى خو زما سره دا معامله ده.چه صرف صدق سره ئې خير ايخودې دې.(۱)

ابوجعفر منصور به ددوى ډير زيات اكرام كولو.يو خل هشام بن عروه د خليفه منصور لاسونه ښكلول اوغوښتل.نو خليفه اوونيل.«يا ابن عروه! إنا نكرم ذالك، إنا نكرمك عنها ونكرمها عن غيرك»(۲)يعنى اې ابن عروه! مونږ ته دا خوښه نه ده.چه زمونږ لاسونه ښكل كړې شى.په اصل كښې مونږ خپل لاسونه ددې قابل نه ګڼړو.چه تاسو دا ښكل كړئ.او نور خلق ددې قابل نه ګڼړو.چه هغوى دا لاسونه ښكل كړى.په دې وجه مونږ تاسو ددې نه بچ كوو.او دا ستاسو نه سوا د نورو خلقو نه بچ كوو.

په ۱۴۵ ه يا ۱۴۶ه يا ۱۴۷ه كښې ددوى وفات په بغداد كښې اوشو. رحمه الله رحمة واسعة(۳)

④ **عروه:** د حضرت عروه رحمه الله حالات هم په ..كشف البارى ړومبى جلد..(۲۹۱/۱)(اردو) كښې په ډير مختصر انداز كښې مونږ ذكركړى دى.خو چونكه دا د حديث په راويانو كښې اساطين (ډشان د ستنو) دى.په دې وجه ددوى حالات لږ تفصيل سره دلته ذكركولې شى.

دا مشهور تابعى د مدينې منورې په فقهاء سبعه (۴)كښې يو فقيه، حضرت عروه بن الزبير بن العوام بن خويلد بن اسد بن عبدالعزى بن قصى قرشى اسدى مدنى دې.ابوعبدالله ددوى كنيت دې.(۵)

---

(۱) تاريخ بغداد(ج۱۴.ص۳۹) و وفيات الأعيان لإبن خلكان (ج۶.ص۸۱) و سيرأعلام النبلاء (ج۶.ص۴۴، ۴۵) و تهذيب الكمال(ج۳۰.ص۲۳۹))-

(۲) تاريخ بغداد(ج۱۴.ص۳۹)وتهذيب الكمال(ج۳۰.ص۲۳۹، ۲۴۰) و سيرأعلام النبلاء(ج۶.ص۴۹)) ووفيات الأعيان(ج۶.ص۸۱، ۸۲))-

(۳) تاريخ بغداد(ج۱۴.ص۴۱، ۴۲) وتهذيب الكمال(ج۳۰.ص۲۴۰، ۲۴۱)و سيرأعلام النبلاء (ج۶.ص۴۶)و وفيات الأعيان(ج۶.ص۸۰))-

(۴) وهم سعيد بن المسيب، وعروه بن الزبير،والقاسم بن محمد، وعبيدالله بن عبدالله بن عتبة بن مسعود، وخارجة بن زيد، وسليمان بن يسار، وفى السابع ثلاثة أقوال.فقيل:سالم بن عبدالله بن عمر، وقيل:أبوسلمة بن عبدالرحمن، وقيل: أبوبكر بن عبدالرحمن بن الحارث بن هشام.كذا فى تهذيب الأسماء واللغات للنووى(ج۱ ص۱۷۲) ترجمة خارجة بن زيد)-

(۵) تهذيب الأسماء(ج۱.ص۳۳۱) وتهذيب الكمال(ج۲۰.ص۱۱، ۱۲) وغيره كتب تراجم)-

الله تعالى دوى ته لوئى نسبى او خاندانى شرف وركړې وو.د نبى كريم ﷺ په ..حوارى..
عشره مبشره كښې يو جليل القدر صحابى حضرت زبيربن العوام رضي الله عنه ددوى پلار محترم.د
رسول كريم ﷺ خليفه صديق اكبر رضي الله عنه ددوى نيكه (د مور پلار) وو.او ذات النطاقين
حضرت اسماء بنت ابى بكر الصديق رضي الله عنها ددوى مور محترمه.او حضوراكرم ﷺ ددوى
ما ما(د تروړ خاوند) او حضرت عائشه رضي الله عنها ددوى تروړ ده.([1])
دوى د خپل پلار حضرت زبير بن العوام. د خپلې مور اسماء بنت ابى بكر الصديق.د خپلې
تروړ حضرت عائشه، حضرت سعيد بن زيد. حضرت على بن ابى طالب. سهل بن ابى
حثمه. سفيان بن عبدالله الثقفى. حضرت جابر.حضرت حسن. حضرت حسين.محمد بن
مسلمه. حضرت ابوهريره. حضرت ابن عباس. حضرت زيد بن ثابت. حضرت ابوايوب
انصارى. حضرت مغيره بن شعبه. حضرت اسامه بن زيد.حضرت معاويه. حضرت عمرو
بن العاص. حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص. حضرت ام هانى بنت ابى طالب. او د
حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه علاوه د نورو صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم نه هم روايت كوى.([2])
ددوى نه په روايت كونكو خلقو كښې ددوى د ځامنو يحى. عثمان. هشام. او د محمد نه
علاوه سليمان بن يسار. ابوسلمه بن عبدالرحمن. ابن شهاب زهرى . صفوان بن سليم.
ابوالزناد . صالح بن كيسان. او محمد بن المنكدر رحمهم الله وغيره ډير محدثين دى.([3])
د اصح قول مطابق په ۲۳ھ كښې ددوى ولادت شوې دې.([4])
امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائى:((كان ثقة كثير الحديث فقيهاً عالماً([5]) مأموناً ثبتاً))([6])
امام احمد بن عبدالله عجلى رحمه الله فرمائى.((مدنى تابعى ثقة وكان رجلاً صالحاً، لم يدخل فى شىء من
الفتن))([7])امام زهرى رحمه الله فرمائى.((عروة بحر لاينزف))([8])
هشام بن عروه رحمهما الله فرمائى.((والله ما تعلمنا جزءاً من ألف جزء، وفى رواية: من ألفى جزء- من
أحاديثه]-))([9])

---

[1]) اوګورئ عمده القارى(ج ۱.ص۳۸) بدء الوحى)_
[2]) سيراعلام النبلاء(ج ٤.ص٤٢١. ٤٢٢) وتهذيب الكمال(ج ٢٠.ص١٢. ١٤))-
[3]) سير اعلام النبلاء(ج ٤.ص٤٢٢)وتهذيب الكمال(ج ٢٠.ص ١٤. ١٥))-
[4]) سير أعلام النبلاء(ج ٤.ص٤٢٢))-
[5]) كذا فى السير(ج ٤.ص٤٢٢) وتهذيب الكمال(ج ٢٠.ص١٥) والكاشف(ج ٢.ص١٨. رقم:٣٧٧٥)وتهذيب الأسماء واللغات(ج ١.ص٣٣٢) وخلاصة الخزرجى(ص٢٦٥))-
[6]) (ألطبقات لإبن سعد(ج٥.ص١٧٩) وفى المطبوع من كتاب الطبقات:.. عالياً..(بالياء بعد اللام) ولعله تصحيف من .. عالماً.. كما فى المراجع الأخرى التى سبقت آنفاً.والله أعلم)-
[7]) تهذيب الكمال(ج ٢٠.ص١٥. ١٦) و سير أعلام النبلاء(ج ٤.ص٤٣٣. ٤٣٦))-
[8]) تهذيب الكمال(ج ٢٠.ص١٦) وسير أعلام النبلاء(ج ٤.ص٤٣٦) والتاريخ الكبير(ج٧.ص٣١))-
[9]) و تهذيب الكمال(ج ٢٠.ص١٦)وسير أعلام النبلاء(ج ٤.ص٤٢٥)و التاريخ الكبير(ج٧.ص٣٢))-

پخپله حضرت عروه بن الزبير رحمه الله فرمائي: ((ما ماتت عائشة حتى تركتها قبل ذالك بثلاث سنين))[1] يعنى د حضرت عائشې رضي الله عنها د وفات نه درې كاله وړاندې پورې ما ددوئ ټول حديثونه اوريدلي وو.

حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله فرمائي: ((ما أحد أعلم من عروة ابن الزبير، وما أعلمه يعلم شيئاً أجهله))[2]

امام زهري رحمه الله فرمائي: ((كان عروة بحراً لا تكدره الدلاء))[3] يعنى حضرت عروه رحمه الله يو لوئې سمندر وو. په ډولچو سره هغه ګنده كيدونكې نه وو.

سفيان بن عيينه رحمه الله فرمائي: ((كان أعلم الناس بحديث عائشة ثلاثة: القاسم بن محمد، و عروة بن الزبير، وعمرة بنت عبدالرحمان))[4]

عبدالرحمن بن حميد بن عبدالرحمن بن عوف فرمائي چه زه خپل پلار سره جمات ته داخل شوم. اومې كتل چه ډير زيات خلق د يو سړي ګيرچاپيره راجمع دي. زما پلار ماته اووئيل چه خويه! اوګوره دا څوك دې؟ ما اوكتل. نو هغه عروه بن الزبير وو. ما خپل پلار ته په وئيلو كښې تعجب ښكاره كړو. نو هغوى اوفرمائيل: ((يا بني لا تعجب، فوالله لقد رأيت أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم وإنهم ليسألونه))[5]

هشام بن عروه رحمه الله فرمائي: ((ما سمعت أحداً من أهل الأهواء يذكر عروة إلا بخير))[6]

حضرت عروه بن الزبير رحمه الله چه څنګه د فقهې او حديث بحرزخار (لوئې سمندر) وو. نو ددې سره سره د زهد او تقوى، عبادت او طاعت، او د صبر او تحمل هم يو لوئې مثال وو. ددوى په يوه خپه كښې داسې تكليف پيدا شو. چه د هغې كټ كول او جدا كول لازمي شو. په دغه موقعه باندې دوى د صبر او تحمل، د ذكروانابت، اود رضا بالقضاء يوه لويه مظاهره اوكړله. ټولو أصحاب سير د دوى واقعه ذكر كړې ده. مونږ دلته اختصار سره دا ذكر كوو.

حضرت عروه بن الزبير رحمه الله خپل خوئي محمد بن عروه خان سره كړو. او وليد بن عبدالملك ته لاړل. محمد بن عروه دغه كار دپاره غوجل (دڅاروو تړلو خائي) ته لاړو. هلته يو څاروى دوى اووهلو. ددوى هم په دغه وخت وفات اوشو. د حضرت عروه رحمه الله پخپله خپه باندې يوه دانه راوختله. ددې تكليف زيات شو. د طبيبانو (ډاكټرانو) سره مشوره اوكړې شوه. نو ټولو

---

[1] وسير أعلام النبلاء (ج ٤. ص ٤٢٤) و تهذيب الكمال (ج ٢٠. ص ١٧))-
[2] و تهذيب الكمال (ج ٢٠. ص ١٧) وسير أعلام النبلاء (ج ٤. ص ٤٢٥))-
[3] و تهذيب الكمال (ج ٢٠. ص ١٨) وسير أعلام النبلاء (ج ٤. ص ٤٢٥) وتهذيب الأسماء (ج ١. ص ٣٣٢))-
[4] و تهذيب الكمال (ج ٢٠. ص ١٨) وتهذيب الأسماء (ج ١. ص ٣٣٢))-
[5] تهذيب الكمال (ج ٢٠. ص ١٨، ١٩) وسير أعلام النبلاء (ج ٤. ص ٤٢٥))-
[6] تهذيب الكمال (ج ٢٠. ص ٢١) وسير أعلام النبلاء (ج ٤. ص ٤٣٣))-

په اتفاق سره زانې وزکړله چه د خپې کټ کولو نه بغير خلاصې نشته كله چه طبيبان راجمع شو اوکار شروع شو نو طبيبانو اووئيل چه مونږ تاته لږ شان شراب څکول غواړو.دوی جواب ورکړو چه زه د صحت حاصلولو دپاره حرام څيز نه استعمالوم.دوی اووئيل چه بنه ده.مونږ تاته د خوب راوستلو دوائی درکوو نو دوی اوفرمائيل «ما أحب أن أسلب عضواً من أعضائي وأنا لا أجد ألم ذالك فأحتسبه» دغه شان ئې د خوب راوستلو دوايئ نه هم انکار اوکړو بيا څه اجنبي قسمه خلق ئې اوکتل نو دوی تپوس اوکړو چه دا څوك دی؟ اووئيلی شو چه دا خلق ددې عمل په دوران ستاسو د نيولو دپاره راغلی دی.څکه ممکن ده چه تکليف د نا قابل برداشت شی.دوی اوفرمائيل ما ته اميد دې چه ددې ضرورت به نه راپيښيږی.بيا دوی په تسبيح و تهليل کښې مشغوله شو او طبيبانو خپل کار شروع کړو مخکښې ئې څه حصه په چاقو سره کټ کړله.بيا ئې هډوکې د آرې په ذريعه کټ کړو په دې دوران کښې دوی په تکبيراو تهليل کښې مشغوله وو.هيڅ جزع فزع (او فرياد) ئې اونکړو.ترڅو چه ددې عمل په دوران خليفه وليد بن عبدالملك هلته چا سره خبرې کولې.طبيبان د خپل عمل نه فارغ شو.او خليفه ته خبر هم اونشو.بيا گرم تيل راوړلی شو.او د وينې بندولو دپاره په دې کښې خپه کيخودې شوه.په دې موقعه دوی باندې بې هوشی راغله.په هوش کښې راتلو سره ئې د مخ نه خولې اوچې کړې.او وې فرمائيل «لقد لقينا من سفرنا هذا نصباً» كله چه دوی خپل کټ کړې شوی قدم ته اوکتل.نو پخپلو لاسونو کښې ئې الټه پلټه کړو.او وې فرمائيل «أما والذي حملني عليك، إنه ليعلم أني ما مشيتُ بك إلى حرام، أو قال معصية»

په داسې موقعه دوی ته د خپل خوئی د حادثاتی مرگ اطلاع ملاو شوه خو هغوی په قضاء راضی پاتی شو.د جزع فزع هيڅ کلمه ئې د ژبې نه اونبنکله.کله چه مدينې منورې ته اورسيدو.نو د الله تعالى شکر ئې ادا کړو.وې فرمائيل «اللهم كان لي بنون سبعة، فأخذت واحداً، وأبقيت لي ستة، وكان لي أطراف أربعة، فأخذت طرفاً وأبقيت ثلاثة، ولئن ابتليت لقد عافيت، ولئن أخذت لقد أبقيت»(١)

د عبادت داسې ذوق وو.چه روزانه به ئې مصحف ته په کتلو څلورمه حصه قرآن تلاوت کولو.بيا ئې د شپې دا په مانځه کښې لوستلو.البته په کومه شپه چه ددوی خپه کټ کړې شوه په دغه شپه ئې دا معمول پوره نکړې شو.حالانکه نور معمولات ئې په دغه ورځ هم پرې نخودل.

هشام بن عروه فرمائی.«كان يصوم الدهر كله إلا يوم الفطر، ويوم النحر، ومات وهو صائم»(٢)

---

(١) اوګورئ. وفيات الأعيان(ج٣.ص٢٥٥. ٢٥٧) وتهذيب الكمال(ج٢٠.ص٢٠. ٢١) و سير أعلام النبلاء (ج٤ص٤٢٩-٤٣١))-

(٢) تهذيب الكمال(ج٢٠.ص٢١))-

قاضي ابن خلكان رحمه الله ليکي چه دحضرت معاويه رضي الله عنه په عهد خلافت کښې په مسجد حرام کښې د عبدالملك بن مروان، عبدالله بن الزبير، مصعب بن الزبير او د عروه بن الزبير رحمهم الله اجتماع اوشوه.هر يو د خپلې تمنا او آرزو اظهار اوکړو
حضرت عبدالله بن الزبير رضي الله عنه اوفرمائيل.. زما آرزو دا ده.چه په حرمين شريفين باندې زما حکومت وی.او ماته خلافت ملاو شي..
مصعب بن الزبير اوفرمائيل.. زما آرزو دا ده.چه د عراقينو حکومت ماته ملاو شي.او د قريشو دوه د ټولو نه شريفې او عقلمندې ښځې سکينه بنت الحسين او عائشه بنت طلحه پخپله نکاح کښې راولم..
عبدالملك بن مروان اووئيل.زما آرزو دا ده.چه زه د ټولې زمکې مالك جوړ شم.او د معاويه رضي الله عنه خليفه زه جوړ شم..

حضرت عروه بن الزبير رحمه الله اوفرمائيل.((لست في شئ مما أنتم فيه، منيتي الزهد في الدنيا، والفوز بالجنة في الآخرة، و أن أكون ممن يروى عنه هذا العلم))،يعنى ما ته د هغه څيزونو هيڅ تمنا نشته دکومو چه تاسو تمنا کوئ.زما آرزو خو دا ده.چه د دنيانه بې رغبته اوسيږم.په آخرت کښې د جنت کاميابی ملاو شي.او ددې علم يعنى د حديثو روايت زما نه اوکړې شي.
د خدائې کول هم داسې اوشو.چه هر يو ته د هغه آرزو ملاو شوه.عبدالملك بن مروان به وئيل. ((من سره أن ينظر إلى رجل من أهل الجنة فلينظر إلى عروة بن الزبير))[1]
ددوی د وفات په باره کښې مختلف اقوال دی.چه په هغې کښې اصح قول ۹۳ھ او ۹۴ھ دې.[2]((والله اعلم. رحمه الله تعالى و رضى عنه وجزاه عن العلم وأهله خيراً))۔

⑤ **عائشه رضى الله عنها:** دا ام المؤمنين حضرت عائشه الصديقه بنت حضرت ابوبکر الصديق رضي الله عنهما ده.ددوی مختصرحالات د،،بدء الوحی،،د دويم حديث لاندې تير شوی دی.[3]

**قوله: عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا وَعِنْدَهَا امْرَأَةٌ:**
يعنى حضوراکرم صلى الله عليه وسلم حضرت عائشه رضي الله عنها خواته تشريف راوړو.ددوی سره په دغه وخت يوه ښځه وه..

---

[1]) اوګورئ:وفيات الأعيان(ج۳،ص۲۵۸) وسيرأعلام النبلاء(ج٤،ص١٤١)ترجمة مصعب بن الزبير (ج٤،ص٤٣١) ترجمة عروه بن الزبير. وفيه ذكر ابن عمر. وقد تمنى المغفرة)۔
[2]) اوګورئ: الكاشف للذهبي(ج۲،ص۱۸) رقم(۳۷۷۵)وسيرأعلام النبلاء(ج٤،ص٤٣٤)و تهذيب الكمال(ج۲۰،ص۲۳، ۲٤)وطبقات إبن سعد(ج۵،ص۱۸۲)و وفيات الأعيان(ج۳،ص۲۵۸))۔
[3]) اوګورئ:كشف البارى(ج۱،ص۲۹۵،۲۹۱) د حضرت عائشې رضى الله عنها تفصيلى حالاتو دپاره اوګورئ: طبقات إبن سعد(ج۸،ص۵۸، ۸۱)وحلية الأولياء(ج۲،ص٤٣)و تاريخ الإسلام للذهبي (ج۲،ص۲۹٤)والبدايه والنهاية(ج۸،ص۹۱، ۹٤)و تهذيب التهذيب(ج۱۲،ص٤٣٣، ٤٣٦)و شذرات الذهب (ج۱،ص۶۱،۹،۶۳) وسير أعلام النبلاء(ج۲،ص۱۳۵، ۲۰۱))۔

امام بخاری رحمه الله په کتاب التهجد کښې هم دا روایت نقل کړې دې په هغې کښې «كانت عندي إمرأة من بني أسد» راغلی دی (۱) حالانکه مسلم شریف کښې د امام زهری رحمه الله په طریق سره روایت رانقل دې هغې کښې دی «أن الحولاء بنت تُويت بن حبيب بن أسد بن عبد العزى مرت بها وعندها رسول الله ﷺ فقلت: هذه الحولاء بنت تويت....» (۲) معلومه شوه چه دا ښځه حولاء بنت تویت ده ددوی تعلق د حضرت خدیجه رضی الله عنها قبیلې سره دې. (۳)

دلته یو اشکال دا کیږی چه د حدیث باب نه معلومیږی چه دا حولاء بنت تویت د حضرت عائشې رضی الله عنها سره ناسته وه په دې حال کښې حضوراکرم ﷺ تشریف راوړو حالانکه د زهری روایت کوم چه امام مسلم نقل کړې دې هغې کښې دی «مرت بها وعندها رسول الله ﷺ» په ښکاره دواړو حدیثونو کښې تعارض دې. لکه چه ددې احتمال اظهار هم شوې دې چه دا دوه مختلف قصې وی. او د کومې ښځې ذکر چه په دې دواړو حدیثونو کښې راغلې دې دا یوه ښځه نه وی بلکه دوه جدا جدا ښځې وی. (۴) او دا احتمال هم ښکاره کړې شوې دې چه قصې دواړه جدا جدا دی. خو ښځه هم هغه یوه ده. ګویا ددې سره واقعه دوه ځله راپیښه شوې ده. (۵)

خو علامه عینی او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه نه خو قصې جدا جدا دی او نه ښځې جدا جدا دی. خو دا روایت بالمعنی دې اصل روایت محمد بن نصر په.. قیام اللیل.. کښې د.. محمد بن اسحاق عن هشام.. طریق سره نقل کړې دې. هغې کښې دی «مرت برسول الله ﷺ الحولاء بنت تويت» (۶)

یعنی.. حولاء بنت تویت رضی الله عنها د حضور ﷺ په خواکښې تیره شوه.. د تطبیق صورت دا دې چه دا حولاء بنت تویت رضی الله عنها مخکښې د حضرت عائشه رضی الله عنها سره وه. کله چه حضوراکرم ﷺ حضرت عائشې رضی الله عنها خواته تشریف یوړو. نو هغه پاسیدله او لاړه. کله چه تلله. نو د حضور ﷺ په خواکښې تیره شوه. په دې طریقه د حدیث باب «أن النبي ﷺ دخل عليها وعندها إمرأة» مفهوم هم صحیح کیږی. چه په شروع کښې دا ښځه د حضرت عائشې رضی الله عنها سره ناسته وه. او د مسلم د روایت «مرت بها وعندها رسول الله ﷺ» معنی هم صحیح کیږی. ځکه چه دا د

---

(۱) صحیح بخاري.. کتاب التهجد.. باب ما یکره من التشدید فی العبادة (رقم: ۱۱۵۱))-

(۲) صحیح مسلم (ج ۱.ص ۲۶۷) کتاب صلاة المسافرین. باب فضیلة العمل الدائم)-

(۳) فتح الباری (ج ۱.ص ۱۰۱))-

(۴) فتح الباری (ج ۱.ص ۱۰۱) و عمدة القاری (ج ۱.ص ۲۵۶))-

(۵) پورتنی حواله جات)-

(۶) پورتنی حواله جات)-

هغه وخت ذکردي. کله چه حضور ﷺ راغي. اودحضرت عائشي رضي الله عنها سره کيناستلو او هغه د حضرت عائشي رضي الله عنها د خوانه پاسيدله او لاړله. کله چه تلله. نو د حضور ﷺ په خواکښي تيره شوه. چه دا محمد بن نصر مروزي په «مرت برسول الله ﷺ الحولاء بنت تويت» الفاظو سره ذکر کړي ده.(١) والله اعلم.

**قوله قَالَ مَنْ هَذِهِ قَالَتْ فُلَانَةُ تَذْكُرُ مِنْ صَلَاتِهَا:** دوی (ﷺ) تپوس اوکړو چه: دا ښځه څوك ده؟ حضرت عائشي رضي الله عنها جواب ورکړو چه دا فلانۍ ښځه ده. بيا دوی د هغوی د مونځ سره د شوق ذکر اوکړو.

د «فلانة» لفظ چونکه د علم موئث نه کنايه دې په دې وجه غير منصرف دې (٢)

«تذکر» د مضارع معروف نه د واحد موئث غائب صيغه ده. او ددې ضمير حضرت عائشي رضي الله عنها طرف ته راجع دې.(٣) مطلب دا دې چه حضرت عائشي رضي الله عنها ددوی د مونځ کيفيت. ددې اوګدوالې وغيره ئې ذکرکړو. ځکه چه دا مونځ سره په ډير زيات شوق سره موصوفه وه. مونځونه به ئې ډير کول. ترڅو چه ددې شناخت به د مونځ په ذريعه کيدلو.

په بعضو نسخو کښې «يذکر» ( د واحد مذکر غائب مضارع مجهول) روايت راغلې دې.(٤) اوس به ددې مطلب دا وی. چه دا ښځه داسې وه. چه ددوی مونځ ډير مشهور وو. خلقو به ددوی د مونځ ډير ذکرکولو.

د دويمې نسخې مطابق ددوی په باره کښې د تعريفي کلماتو صدور به د خلقود طرفه ګڼړلې شی. او په ړومبی صورت کښې به ددوی د تعريفي کلماتو صدور د حضرت عائشه رضي الله عنها نه ګڼړلې شی.

دحضرت عائشي رضي الله عنها نه د تعريفي کلماتو د صدور منلو په صورت کښې اشکال کيږی. دوی دهغوی په مخکښې څنګه تعريف اوکړو. حالانکه ددې ممانعت په حديث کښې وارد شوی دې؟ (٥)

ابن التين رحمه الله فرمائی. ممکن ده. چه حضرت عائشي رضي الله عنها ته ددوی په باره کښې مکمل

---

(١) اوګورئ: عمدة القاری(ج١.ص٢٥٦) و فتح الباری(ج١ص.١٠١))-

(٢) فتح الباری (ج١.ص١٠١) وعمدة القاری(ج١.ص٢٥٦))-

(٣) فتح الباری(ج١.ص١٠١) وعمدةالقاری(ج١.ص٢٥٧))-

(٤) پورتنی حواله جات)-

(٥) عن أبی بکرة رضي الله عنه قال:مدح رجل رجلاً عند النبی ﷺ قال ويحک! قطعت عنق صاحبک! قطعت عنق صاحبک! مراراً. إذا کان أحدکم مادحاً صاحبه لا محالة فليقل: أحسب فلاناً. والله حسيبه. ولا أزکی علی الله أحداً. احسبه. إن کان يعلم ذاک.کذا وکذا.. صحيح مسلم(ج٢.ص٤١٤) کتاب الزهد. باب النهی عن المدح إذاکان فيه إفراط و خيف منه فتنة علی الممدوح. و راجعه لأحاديث أخر فی هذا الموضوع)-

اطمينان وى چه د تعريف په وجه به په دوى كښې هيڅ اثر نه كيږى په دې وجه ئې د هغوى په وړاندې تعريف اوكړو (١)

خو حافظ ابن حجر او علامه عينى رحمهما الله د حسن بن سفيان د مسند په حواله د..حماد بن سلمه عن هشام.. طريق سره روايت نقل كړې دې «كانت عندى إمرأة، فلما قامت قال رسول الله ﷺ :من هذه يا عائشة؟ قلت يا رسول الله،هذه فلانة، وهى أعبد أهل المدينة» (٢) ددې نه معلوميږى چه دا تعريف دهغوى په وړاندې نه وو شوې.والله اعلم

**قوله قَالَ مَهْ عَلَيْكُمْ بِمَا تُطِيقُونَ:** ..نبى كريم ﷺ اوفرمائيل بس كړه! په كومو اعمالو چه د هميشوالى طاقت وى.هغه لازم اونيسى..

«مه» اسم فعل دې. چه د «اكفف» په معنى كښې دې.او دا په يو خبره باندې د زجر دپاره استعماليږى.دلته دا هم ممكن ده.چه خطاب حضرت عائشې ﵂ ته وى.اومقصود دا وى چه ددې ښځې تعريف مه كوه.او دا هم ممكن ده چه د عمل بما لا يطاق (د وس نه د بهر عمل) زجر مقصود وى.(٣)

بيا دلته اگرچه مقام ښځو ته د خطاب دې.نو «عليكن بما تطقن» وئيل پكار وو خو چونكه حكم د پوره امت دپاره عام كول مقصود وو.په دې وجه ئې سړى غالب كړل.او ښځې ئې په دې كښې شاملې كړلې.او وې فرمائيل «عليكم بما تطيقون»(٤)

بيا د «عليكم بما تطيقون» وئيلو تقاضا خو ښكاره ده.چه په هغه اعمالو باندې د اقتصار حكم دې.د كوم چه طاقت وى.او ددې مفهوم دا دې.چه هغه اعمال اونكړې شى.كوم چه د طاقت نه بهر وى.قاضى عياض ﷫ فرمائى ممكن ده.چه دا حكم صرف ..صلاة الليل.. سره مخصوص وى.يعنى د ..صلاة الليل.. په سلسله كښې داسې انداز اختيار نكړې شى.چه دهغې روستو طاقت نه وى.او دا احتمال هم شته.چه دا حكم صرف د ..صلاة الليل.. نه وى بلكه ټولو احكام شرعيه ته عام وى.(٥)

حافظ ابن حجر ﷫ فرمائى.چه اگرچه د حديث باب د ورود سبب مونځ دې خكه چه د حولاء بنت تويت ﵂ د مانځه كيفيت مخې ته د راتللو نه پس حضور ﷺ دا ارشاد فرمائيلې وو. خو د حديث شريف الفاظ عام دى.او اعتبار د الفاظو دعموم وى.خصوصاً هم ددې تعميم

---

(١) فتح البارى(ج١.ص١٠١) وعمدة القارى(ج١.ص٢٥٧))-
(٢) پورتنى حواله جات)-
(٣) فتح البارى(ج١.ص١٠٢) وعمدة القارى(ج١.ص٢٥٦))-
(٤) فتح البارى(ج١.ص١٠٢)و عمدة القارى(ج١.ص٢٥٧))-
(٥) پورتنى حواله جات)

په لحاظ سره د ،،علیکن....،، ونیلو په ځانې د،،علیکم....،، تعبیر اختیار کړې شوې دې[1] والله اعلم

**قوله فَوَاللّٰهِ:** ،،په خدائې،،

ددې نه عالمانو دا استنباط کړې دې چه د استحلاف نه بغیر حلف اخستل جائز دی خصوصاً کله چه په دینې امورو کښې د یو امر فخامت شان (او عظمت) بیانول مقصود وی یا ددې ترغیب ورکول مقصود وی یا د یو محذور (ممنوع) نه متنفره کول مقصود وی.[2]

**قوله لَا یَمَلُّ اللّٰهُ حَتّٰی تَمَلُّوا:** ،،الله تعالی ثواب تر هغه وخته پورې نه قطع کوی ترکومې پورې چه تاسو ناراسته نه شئ او عمل پرې نږدئ.

،،ملّ یملّ،، د باب ،،سمع،، څخه دې ،،ملال،، وائی د یو څیز د خوښولو او رغبت کولو نه پس د نفس ددې نه متنفر کیدل. او دا ګران ګنړل.[3] دا خو په انسانانو کښې کیږی خکه چه دا یو انفعالی کیفیت دې خو بالاتفاق الله تعالی دپاره دا کیفیت یا صفت محال دې ځکه چه الله تعالی د انفعالاتو نه پاک دې[4]

اوس چه دلته الله تعالی دپاره د ،، ملال،، لفظ استعمال کړې شوې دې د دې په باره کښې د امام اسماعیلی، امام ابن عبدالبر، او د محققینو وینا دا ده چه د مشاکلت او ازدواج په طور باندې دلته الله تعالی دپاره د ،، ملال،، لفظ استعمال شوې دې لکه څنګه چه د الله تعالی ارشاد دې ﴿وَجَزٰٓؤُا سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا﴾[5] یعنی د بدئ بدله هم ددې پشان بدی ده دلته د ،، سیئة،، اطلاق حقیقتاً نه دې بلکه مشاکلت کړې شوې دې ځکه چه د سیئه بدله سیئه نه ده ځکه چه د بدلې په طور چه کومه بدی اوکړې شی هغه حقیقتاً نه وی صرف صورتاً بدی وی دغه شان د الله تعالی ارشاد دې ﴿فَاعْتَدُوْا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ﴾[6] یعنی ،،چه په تاسو زیاتې اوکړو نو تاسو هم په هغوی زیاتې اوکړئ لکه څنګه چه هغوی کړې دې،، مطلب دا دې که کافران د مکې په حرم کښې د حرمت په میاشت کښې او ستاسو د احرام په حالت کښې په جنګ رضامند شی نو تاسو هم د هیڅ حرمت خیال مه ساتئ دلته د اسلام د منکرینو د ،، اعتداء،، په جواب کښې کومه د حق کاروائی ده هغې ته هم ،، اعتداء،، ونیلې شوې ده حالانکه دا په حقیقت کښې اعتداء نه ده محض صورتاً اعتداء ده

---

[1]) فتح الباری(١٠٢/١)

[2]) فتح الباری(ج ١،ص ١٠٢)

[3]) فتح الباری(ج ١،ص ١٠٢)

[4]) پورتنی حواله)

[5]) الشوری ٤٠)

[6]) البقره ١٩٤)

ولته د الله تعالى د ..ملال.. نه ثواب قطع كول مراد دى. ثواب قطع كول د الله تعالى .. ملال.. سره تعبير كړې شو چه بنده د ملال په وجه عمل قطع كوى په دې باندې د ثواب انقطاع مرتب كيږى ځكه چه ملال د عمل قطع كولو سبب دې او عمل قطع كول د ثواب قطع كولو سبب دې په دې وجه ثواب قطع كولو باندې د ملال اطلاق اوكړې شو.(١)

علامه هروى رحمه الله فرمائى چه د «لا يمل الله حتى تملوا» مطلب دې «لا يقطع عنكم فضله حتى تملوا سؤاله فتزهدوا فى الرغبة إليه».(٢)

بعضې حضرات فرمائى چه ددې معنى ده «لا يتناهى حقه عليكم فى الطاعة حتى يتناهى جهدكم».(٣) يعنى تركومې پورې چه ستاسو طاقت باقى دې تر هغه وخته پورې به د هغه حق په تاسو باندې وى.

دا ټول تاويلات په دې صورت كښې دى كله چه .. حتى.. ددې په اصل معنى يعنى د غايت انتهاء دپاره واخستلې شى حالانكه بعضو حضراتو دا د انتهائې غايت په معنى كښې نه دې اخستې.

لكه چه بعضو حضراتو د «لا يمل الله حتى تملوا» معنى كړې ده.«لا يمل الله إذا مللتم» يعنى كه ستړى شئ نو بيا هم الله تعالى ته ..ملال.. نه راځى.(٤) په كلام دعربو كښې ددې ډير مثالونه ملاويږى.لكه وئيلې شى.«لا أفعل كذا حتى يبيض القار» يا وئيلې شى «لا أفعل كذا حتى يشيب الغراب» يعنى كه قار ( تاركول\ تور تيل) سپين شى.نو بيا به هم اونكړم.دغه شان كه كارغه سپين شى.بيا به هم دا كار اونكړم.

دغه شان د بليغ سړى په باره كښې وئيلې كيږى.«لا ينقطع حتى ينقطع خصومه»(٥) يعنى كه دده په مقابله كښې خلق خاموش شى.بيا هم دې نه خاموشه كيږى. دا مطلب نه دې چه كله دده مقابل خاموش شى.نو دې هم خاموش كيږى. ځكه چه په دې صورت كښې به ده له په هغوى باندې هيڅ فضيلت نه حاصليږى.

---

(١) اوګورئ: التمهيد(ج١.ص١٩٤. ١٩٥) و أعلام الحديث للخطابى(ج١.ص١٧٣) و فتح البارى (ج١.ص١٠٢)وعمدة القارى(ج١.ص٢٥٧))-

(٢) فتح البارى(ج١.ص١٠٢))-

(٣) نقله الخطابى فى أعلام الحديث(ج١.ص١٧٤) و إبن حجر فى الفتح(ج١.ص١٠٢) والعينى فى العمدة(ج١.ص٢٥٧))-

(٤) اوګورئ:أعلام الحديث للخطابى(ج١.ص١٧٣. ١٧٤) فتح البارى(ج١.ص١٠٢)و عمدة القارى (ج١.ص٢٥٧))-

(٥) قال الحافظ:و هذا المثال أشبه من الذى قبله. لأن شيب الغراب ليس ممكناً عادةً. بخلاف الملل من العابد.. فتح البارى(ج١.ص١٠٢))-

علامه مازرى رحمه الله فرمائى چه ,,حق،، دلته د ,, واو،، په معنى كښې دې نو د ((لايمل الله حق تملوا)) معنى به دا وى چه ((لايمل الله وتملون)) گويا چه د الله تعالى نه د ملال نفى اوكړې شوه او خلقو دپاره دا ثابت كړې شوې دې [1]

بعضو خلقو ونيلى دى چه ,,حتى،، د ,,حين،، په معنى كښې دې او مطلب دا دې ((لايمل الله حين تملون)) [2]

ابن حبان رحمه الله پخپله ,, صحيح،، كښې فرمائى ((لايسأم الله حتى تسأموا من ألفاظ التعارف التى لايتهيأ للمخاطب أن يعرف القصد فيما يخاطب به إلا بهذه الألفاظ)) [3] يعنى دا د هغه قسم متعارف الفاظو څخه دى چه ددې مراد هم ددې الفاظو نه بغير پيژندل زمونږ دپاره ممكن نه دى وجه دا ده چه د عقائد الهيه دتعبير دپاره زمونږ سره متعين بالكل متعين الفاظ نشته څكه چه زمونږ د الفاظو لمنه ډيره تنگه ده. په دې وجه چه مونږ كله ددې عقائدو تعبير كوو نو ددې دپاره هم هغه الفاظو استعمالوو. كوم چه مونږ پخپل عرف كښې استعمالوو

ابن حبان رحمه الله په ټولو متشابهاتو كښې هم دا مذهب اختيار كړې دې [4] والله اعلم

**قوله** وَكَانَ أَحَبَّ الدِّينِ إِلَيْهِ مَادَامَ عَلَيْهِ صَاحِبُهُ: ,,د الله تعالى په نيز هغه عمل زيات محبوب دې. په كوم چه عمل كونكې مداومت او هميشوالې اوكړى ,,

د ,,إليه،، ضمير لكه څنگه چه دترجمې نه ښكاره دې الله ﷻ طرف ته راگرځى. هم دې څنې كښې دمستملى په روايت كښې د ,,إلى الله،، تصريح موجود ده [5] ددې نه علاوه اسحاق بن راهويه پخپل مسند كښې د ,,عبدة عن هشام،، په طريق سره. امام بخارى او مسلم د ,,أبو سلمه عن عائشة،، طريق سره. اومسلم د ,, قاسم عن عائشة،، طريق سره دغه شان روايت نقل كړې دې. ترجمة الباب هم ددې روايتونو مطابق قائم دې [6]

حالانكه د هشام نه روايت كونكو نورو راويانو د ,,إليه،، ضمير حضوراكرم ﷺ طرف ته راگرځولې ې. لكه څنگه چه امام بخارى رحمه الله په ,, كتاب الرقاق،، كښې د ,, مالك عن

---

[1] ) فتح البارى(ج ١.ص ١٠٢))-

[2] ) فتح البارى(ج ١.ص ١٠٢) قال العينى رحمه الله فى العمدة(ج ١.ص ٢٥٧) و حكى الماوردى أن ,,حتى،، ههنا بمعنى ,,حين،، أو بمعنى الواو. وهذا ضعيف جدا..)-

[3] ) أنظر: ,,ألإحسان بترتيب صحيح ابن حبان(ج ٢.ص ٦٤). ذكر الإخبار عما يجب على المرء من الرفق فى الطاعات و ترك الحمل على النفس ما لا تطيق..)-

[4] ) فتح البارى(ج ١.ص ١٠٢))-

[5] ) فتح البارى(ج ١.ص ١٠٢))-

[6] ) فتح البارى(ج ١.ص ١٠٢.١٠٣))-

هشام.. په طریق کښې ددې تصریح کړې ده.()

خو یاد ساتئ چه په دواړو روایتونو کښې هیڅ تعارض نشته ځکه چه کوم څیز د الله تعالی ته خوښ وی هغه به د الله تعالی د رسول په نیز لازما محبوب وی.()

ابن الجوزی رحمه الله فرمائی چه د دائمی عمل خوښیدو دوه وجې دی.① یوه داچه کوم سړې عمل شروع کولو نه پس بیا پریږدی.نو هغه ګویا د وصال حاصلیدو نه پس اعراض کوی.په دې وجه هغه د مذمت مستحق کیږی.هم دا وجه ده.چه دهغه سړی په باره کښې وعید وارد شوې دې.کوم چه د یو آیت یادولو نه پس بیا هیروی.حالانکه ددې د یادولو نه وړاندې هغه د وعید او مذمت مستحق نه وو.

② دویمه وجه دا ده.چه په خیر باندې همیشوالې کونکې ګویا داسې دې. لکه چه یوکس هر وخت خدمت دپاره حاضر او تیار ولاړ وی.بنکاره ده.یو هغه سړې دې چه هغه روزانه په یو متعین وخت کښې حاضریږی.او یو هغه سړې دې چه هغه یوه ورځ مکمل حاضری ورکوی بیا مستقل غائب وی.یقینا چه په دواړو کښې به لوئې فرق وی.()

امام نووی رحمه الله فرمائی.چه په قلیل عمل کښې د دوام فائده دا ده چه د ذکر .مراقبې. اخلاص. او اقبال علی الله پشان د طاعاتو سلسله همیشه جاری وی.په خلاف دهغه عمل کوم چه ګران وی.چه د هغې سلسله ډیره پوره نه چلیږی.بیا نتیجه دا راوځی چه هغه لږ چه همیشه وی.زیاتیږی.او د هغه ډیر نه چه منقطع شی.ډیر زیاتیږی.()والله اعلم.

## ٣٢ = بَاب زِيَادَةِ الْإِيمَانِ وَنُقْصَانِهِ

وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى ﴿وَزِدْنٰهُمْ هُدًى﴾ (الکهف:١٣) ﴿وَيَزْدَادَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِيْمَانًا﴾ (المدثر:٣١) ﴿اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ﴾ (المائدة:٣) ((فَإِذَا تَرَكَ شَيْئًا مِنَ الْكَمَالِ فَهُوَ نَاقِصٌ))

**د وړاندې سره ربط او مناسبت** وړاندې امام بخاری رحمه الله په اعمالو کښې دوام .. احب الی الله .. کیدل بیان کړی وو.او اوس ئې باب قائم کړې دې د .. ایمان د نقصان او د زیادت.. او په دې کښې هیڅ شك نشته چه د اعمالو په دوام سره ایمان کښې زیاتوالې کیږی.او په همیشوالی پریخودو سره ایمان کښې کمې راځی.وړاندې د مداومت او همیشوالی ترغیب او تلقین وو.او د هغې په نتیجه کښې چونکه ایمان کښې زیاتوالې کیږی.او په همیشوالی پریخودو سره ایمان کښې نقصان راځی.په دې وجه امام بخاری رحمه الله دا ترجمه قائم کړې ده.

---

() پورتنی حواله)-

() مخکنی حواله)-

() نیره حواله)-

() شرح النووی علی صحیح مسلم(ج١.ص٢٦٦) کتاب صلاة المسافرین. باب فضیلة العمل الدائم)-

بيا زياتي او كمي د امام بخاري او د محدثينو د جماعت په نيز واضح دي. كوم حضرات چه د زيادت او نقصان قائل نه دي.د هغوى د رائي مطابق هم دلته په ايمان كښي زيادت او نقصان منلي كيدي شي.البته ددوى په نيز نفس ايمان كښي د زيادت او نقصان په ځائي به صفت ايمان كښي زيادت او نقصان مراد وى.يعني په انشراح او بشاشت كښي زياتي او كمي. يا به د ايمان د نور زياتي او كمي مراد وى.(۱)و الله اعلم.

**د ترجمي مكرر كيدو اشكال او د هغي جواب:** امام بخارى رحمه الله د كتاب الايمان ابتداء په «باب قول النبى ﷺ: بنى الإسلام على خمس وهو قول وفعل، ويزيد وينقص» سره كړي ده.ګويا په زيادت او نقصان باندي وړاندي باب قائم شوي دي.اوس دلته «باب زيادة الإيمان ونقصانه» ونيل عين تكرار دي.

هم دا اشكال په «باب تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال» كښي راپيښ شوي وو. هلته ددي جواب وركړي شوى دى.د هغي خلاصه دا ده.چه ① د «بنى الإسلام على خمس الخ» ترجمه. ترجمهٔ جامعه ده.او راروان تراجم ددي تفصيل او توضيح دي.

② دويم جواب دا دي.چه په شروع د ،، كتاب الايمان،، كښي د زيادت او نقصان بحث تبعاً او ضمناً ذكر كړي شوي وو.او په «باب تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال» او په دي باب كښي استقلالاً ذكركړي شوي دي.( د«باب تفاضل أهل الإيمان» او د«باب زيادة الإيمان ونقصانه» په مينځ كښي د تكرار اشكال روستو ختمولي شي.)

خكه چه په شروع د ،، كتاب الايمان،، كښي اصل مقصود د ايمان تركيب ثابتول وو.لكه چه امام بخارى رحمه الله په «وهو قول وفعل» وئيلو سره دتركيب دعوه كړي وه.بيا ئي «يزيد وينقص» ضمناً او تبعاً ذكركړل.هم دا وجه ده.چه امام بخارى رحمه الله كوم روايت د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما پيش كړي دي.هغه په تركيب دلالت كوى.خو په زيادت او نقصان نه كوى خو دا جواب څه كمزوري شان دي.خكه چه ښكاره هم دا ده.چه هلته امام بخارى رحمه الله دري دعوي كړي وي:

① «بنى الإسلام على خمس.....» ② «وهو قول وفعل» ③ «ويزيد وينقص» په دي كښي هره يوه دعوه روستو راتلونكي دعوي دپاره علت دي.چه «بنى الإسلام....» د« وهو قول وفعل» دپاره، او «وهو قول وفعل» د «يزيد وينقص» دپاره علت دي.يا داسي اووئيلي شي.چه هره روستو راتلونكي دعوه په وړاندينۍ دعوي باندي متفرع او د هغي نتيجه جوړيږي.لكه كله ئي چه «بنى الإسلام...» اووئيل.نو په دي باندي «وهو قول وفعل» مرتب او متفرع شو.او كله ئي چه « وهو قول وفعل» اووئيل.نو په دي باندي «يزيد وينقص» مرتب او متفرع شو.

(۱) عمدة القارى (ج ۱.ص۲۵۸)-

ددې تقرير نه معلومه شوه چه «يزيد وينقص» تبعاً او ضمناً نه دې بلکه اصلاً او استقلالاً ذکرکړې شوې دې.نو بهتره دا ده چه داسې اووئيلې شي چه ② په اصل کښې امام بخاري رحمه الله هلته د اسلام متعلق درې دعوې کړې وى ① «بنى الإسلام على خمس.....» ② «وهوقول و فعل» ③ «ويزيد وينقص» په دې کښې . .هو. .ضمير او د «يزيد وينقص» ضميرونه اسلام طرف ته راګرځي اګرچه د امام بخاری رحمه الله په نيز ايمان او اسلام متحد يا متلازم دى خو مرجنه ته ددې وئيلو موقعه ملاويدله.چه هلته تاسو ترکيب او زيادت او نقصان تاسو په اسلام کښې ثابت کړې دې.او مونږه ترکيب او زيادت او نقصان انکار د ايمان په باره کښې کوو د ايمان په باره کښې تاسو زيادت او نقصان نه دې ثابت کړې امام بخاری رحمه الله ددې دپاره دا عنوان کيخودو «باب زيادة الإيمان ونقصانه» چه مونږ په ايمان کښې هم زيادت او نقصان ثابتوو.کله چه په ايمان کښې زيادت او نقصان راشي.نو ښکاره ده چه ترکيب به هم راځي.والله اعلم.

بيا اشکال کيږي.چه وړاندې امام بخاری رحمه الله د زيادت او نقصان د بحث دپاره مستقلاً د «باب تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال» ترجمه منعقد کړې ده.او اوس دلته «باب زيادة الإيمان و نقصانه» کښې بعينه هم هغه مسئله مستقلاً ذکر کوى.نو دا تکرار دې؟

ددې اشکال جواب هم د «باب تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال» د شرح لاندې مونږ وړکړې دې د هغې خلاصه دا ده: ① يو جواب دا دې.چه په دې باب کښې اعمالو کښې د اهل ايمان تفاوت بيانول مقصود دى.او دلته پخپله ايمان يعنى په نفس تصديق کښې کمې او زياتې بيان کړې شوې دې.[1]

② دويم جواب دا ورکړې شوې دې.چه هغه باب کښې د نفس ايمان کمې او زياتې بيان کړې شوې دې.او دلته ئې د مؤمن به په اعتبار سره کمې او زياتې ثابت کړې دې.[2]

③ دريم جواب دا دې.چه چونکه دايمان کمى زياتى مسئله مختلف فيها ده.او د امام بخاری رحمه الله عادت دې.چه په کومه مسئله کښې اختلاف وى.او سخت او مشهور وى.او د امام بخاری رحمه الله رجحان يو طرف ته وى.او د بل طرف خلق دلائل پيش کوى.نو امام بخاری رحمه الله د خپلې دعوې ثابتولو دپاره د تعبير مختلفې طريقې اختياروى.او ددې يوې مسئلې ثابتولو دپاره مختلف اندازسره، مختلف بابونه قائموى.دلته هم دوى دغه شان کړى دى.والله اعلم.

---

[1] فتح البارى(ج۱.ص۱۰۳))-

[2] لامع الدرارى(ج۱.ص۵۹۱) والأبواب والتراجم لصحيح البخارى(۳۷).ددې جواب سره متعلق تفصيل دپاره شاته د ..باب تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال..تشريح ته رجوع اوکړئ.)-

د حافظ ابن حجر رحمه الله رجحان په دې کښې ړومبنی جواب طرف ته دې چه دلته په نفس تصدیق کښې کمې او زیاتې بیانول مقصود دی (١)
اوس که دا اومنلې شي نو مسئله به اختلافي وي.ددې تفصیل وړاندې د... کتاب الایمان.. په ابتداء کښې تیر شوې دې.چه جمهور محدثین په دې کښې د کمی زیاتی قایل دی.ځکه چه تصدیق د باطنی عقیدې نوم دې او عقیده د زړه غوټې ته وائی او غوټه کله سسته وی او کله مضبوطه وی.او دا ممکن ده.چه تصدیق کښې کمې او زیاتې دعلم د زیاتوالی او مشاهدې په اعتبار سره اوشي.په قرآن کریم کښې الله تعالی فرمائی ﴿أَيُّكُمْ زَادَتْهُ هَٰذِهِ إِيمَانًا﴾ (٢)ددې نه هم زیاتوالې په اعتبار د معانئې او مشاهدې ثابتیږی.
حالانکه د امام ابوحنیفه رحمه الله او د عامو متکلمینو رائې دا ده.چه په ایمان یعنی نفس تصدیق کښې کمې او زیاتې نه کیږی.
دا حضرات فرمائی.چه په نصوصو کښې چه تصدیق کښې کوم کمې زیاتې معلومیږی هغه په ذاتیاتو کښې د کمی او زیاتی په لحاظ سره نه دې.بلکه د خارجی امورو په اعتبار سره دې. د اعمال صالحه په ذریعه ایمان کښې جلاء (رڼا) اوقلب کښې نورانیت پیدا کیږی.زړه کښې انشراح (فراخي) حاصلیږی.ددې انشراح.رڼا او نورانیت په وجه سرې ته دا معلومیږی. چه ایمان کښې اضافه اوشوه. حالانکه ایمان خو نفس تصدیق دې.هغه خو پخپل حال دې.البته په دې کښې څه رڼا او نورانیت پیدا شوې دې.
شیخ الحدیث مولانا محمد یونس صاحب رحمه الله فرمائی.چه .. د انصاف خبره دا ده.چه لکه څنګه د اعمالو په اعتبار سره ایمان کښې کمې او زیاتې کیږی پخپله تصدیق کښې هم کمې او زیاتې کیږی.ځکه چه تصدیق د زړه د غوټې نوم دې.او د غوټې مضبوطه او کمزورې کیدل بنکاره خبره ده.یوه غوټه خو داسې وی.چه دا خو بچې هم کلاوولې شی او بله غوټه داسې وی.چه دا یو پهلوان هم نشی کلاوولې.
دغه شان کافر پخپله عقیده کښې دومره کمزورې وی.چه دا په معمولی خبرې سره متزلزل (خوځیدلې) کیدې شی.او هغه د خپلې نظرئې او خیالاتو نه اړولې کیدې شی.او دویم ډله په مقابل کښې دومره پوخ وی.چه هغه په هیڅ شان سره د خپلې رائې نه اوړیدو ته تیار نه وی
هم دا حال د مسلمان دې.چه یو مسلمان د دومره کمزورې عقیدې والا وی. چه هغه په معمولی خبره د خپل ځائې نه اخوا کیږی.دمال په لالچ سره دین بدلوی. او په بعضو وختونو کښې د تورې د ویرې نه دین بدلوی لکه څنګه چه عام طور دفتنو په موقعو کښې کیږی.او بعضې دومره پاخه او سخت وی چه نه د مال لالچ هغوی د دین نه اړولې شی.او نه د تورې یره هغه د خپل ځائې نه خوزولې شی. والعلم عندالله سبحانه
خو حقیقت دا دې.چه په نفس تصدیق کښې کمې زیاتې ممکن دې.ترکومې پورې چه

---

(١) اوګورئ: فتح الباری(ج١.ص١٠٣. ١٠٤))-
(٢) سورة التوبة:١٢٤)-

تصديق د غوټې او د زړه د عقد په معنى كښې د كيدو او ددې د مضبوط او كمزور كيدو تعلق دې نو دا د زړه د عقد د مضبوطئ او كمزورئ د اوصافو ځنې دې.دا ددې عقد په ذات او نفس كښې تبديلى او كمى زياتې نه دې كله كله داسې مواقع او حالات راپيښيږى چه د زړه د عقد په اوصافو كښې كمې اوكمزورى راځى او كله ددې په اوصافو كښې مضبوطى پيدا كيږى

البته ددې خبرې نه انكار نشته.چه دا غوټه او د زړه عقد بالكل كلاويږى اوكله نه كلاويږى كله چه دمسلمان د زړه عقد كلاويږى.نو كفر طرف ته منتقل كيږى.او كله چه د كافر د زړه عقد كلاويږى.نو دا بل ملت طرف ته منتقل كيږى. نو د اوصافو د كمى زياتى په وجه په نفس تصديق كښې د كمى زياتى قائل كيدل صحيح نه معلوميږى.والله اعلم

وقول الله تعالى ﴿وَزِدْنٰهُمْ هُدًى﴾ (الكهف:۱۳) ﴿وَيَزْدَادَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِيْمَانًا﴾ (المدثر:۳۱) ﴿اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ﴾ (المائدة:۳) ((فَاِذَا تَرَكَ شَيْئًا مِنَ الْكَمَالِ فَهُوَ نَاقِصٌ))

امام بخارى رحمه الله دلته درې آيتونه ذكر كړى دى.ړومبى دواړه آيتونه د كتاب الايمان په شروع كښې تير شوى دى.خو دلته دوى دغه دواړه آيتونه د تمهيد په طور ذكر كړى دى په اصل كښې امام بخارى رحمه الله په ﴿اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ﴾ [1] سره د خپلې مدعا يعنى د ايمان زيادت او نقصان ثابتول غواړى .خو په دې سره د ايمان زيادت او نقصان نصاً نه ثابتيږى.

نو امام بخارى رحمه الله د تمهيد په طور ړومبى دواړه آيتونه ذكركړى دى.چه په دې كښې د ايمان او هدايت زيادت صراحتاً او نصاً مذكور دې.او كوم څيز چه قابل د زيادت وى.هغه قابل د نقصان هم وى.ځكه چه زيادت او نقصان د اضافى امورو ځنې دې. هركله چه په ړومبى دوو آيتونو سره دا معلومه شوه.چه په ايمان او هدايت كښې زياتوالې كيدې شى.نو استلزاماً دا هم معلومه شوه.چه په دې كښې كمى هم كيږى.بيا په دريم آيت كښې د كمال ذكر دې.او د كمال مقابل نقص دې.معلومه شوه.چه كمال په معنى د .. الزيادة.. دې.هم دا

د امام بخارى رحمه الله د ارشاد((فإذا ترك شيئاً من الكمال فهوناقص)) مطلب دې.

حاصل دا دې.چه په ړومبى دوو آيتونو سره نصاً د ايمان او هدايت زياتوالې معلوميږى.او استلزاماً نقص (هم ثابتيږى).او په دريم آيت كښې هم دا زياتوالې كمال سره تعبير كړې شوې دې.ځكه چه د كمال مقابل نقص دې.ځكه كه كمال پريخودلې شى.نو نقص به پيدا كيږى.نو معلومه شوه.چه د كمال نه مراد زياتوالې دې.والله اعلم

هم دا مضمون حافظ رحمه الله په دې طريقه بيان كړې دې.چه چونكه په ړومبى دواړه آيتونه د توطئه او تمهيد په طور راوړلى شوې دى.او ددې نه زياتوالى نصاً مستفاد كيږى.چه دا نقص ته مستلزم دې.حالانكه په دريم آيت كښې چه د ..كمال.. كوم ذكر دې.هغه د زيادت په معنى كښې صريح نه دې.بلكه صرف د نقص معنى ته مستلزم دې.او د نقص دا استلزام

---

[1] المائدة:۳

د زيادت قبلولو مستدعی دي.په دې وجه امام بخاري رحمه الله په ((فإذا ترك شيئاً من الكمال فهو ناقص)) ونيلو سره ددې تشريح فرمانيلې ده.او هم ددې نکتې په وجه ئې د دريم آيت او رومبی دواړو آيتونو ذکر کولو په انداز کښې تفاوت کړې دې چه د رومبی دواړو په شروع کښې ئې ،، وقول الله تعالى،، اوفرمائيل.او د دريم آيت په شروع کښې ئې ،، وقال،، اوفرمائيل.(١)

**يو اشکال او دهغې جواب** بعضو عالمانو دلته اشکال کړې دې.چه په ﴿اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ﴾ د ايمان په کمی او زياتی باندې استدلال کول صحيح نه دې.په دې وجه چه دا يو محتمل آيت دې.ځکه کيدې شی.چه په دې آيت کښې د ،،اکمال،، نه ((إظهار الحجة على المخالفين)) مراد وی.يعنی د مخالفينو په مقابله کښې حجت اسلام غالب کول.اودا هم کيدې شی.چه دا د((إظهار أهل الدين على المشركين)) په معنی کښې وی.يعنی مسلمانان دغيرمسلمو په مقابله کښې غالب کول.په دې دواړو صورتونو کښې د امام بخاري رحمه الله مدعا نه ثابتيږی.ځکه چه په دې کښې د ايمان د کمی او زياتی معنی نشته.

البته د،، اکمال،، په معنی کښې يو دا احتمال هم شته.چه ددې نه اکمال د فرائضو مقصود وی.په دې صورت کښې ددوی مدعا ثابتيږی.خو ددې معنی د اختيارولو په صورت کښې دا لازميږی.چه تر اوسه پورې دين ناقص وو.او څومره صحابهٔ کرام رضي الله عنهم هم چه ددې آيت د نزول نه مخکښې مخکښې وفات شوی دی.تول ،،العياذ بالله،،ناقص الايمان وو.حالانکه دا خبره صحيح نه ده.ايمان په هره موقعه کامل پاتې شوې دې؟

ددې اشکال جواب دا دې.چه قرآن کريم د الله جل جلاله يو جامع کلام دې.نو کيدې شی.چه دا تولې معانې مراد وی.

په دريمه معنی چه کوم اشکال کيږی.د هغې جواب دا دې.چه نقص يو اضافی څيز دې.د نقص يو صورت هغه دې.کوم چه قابل د مذمت دې.او يو صورت هغه دې.کوم چه قابل د مدح وی.

قابل د مذمت نقص هغه دې.کوم چه اختياری وی.لکه يوکس ته دا علم شته. چه زما په ذمه ددې فرائضو او واجباتو ادا کول دی.بيا هغه په قصد سره دا پريږدی.

او ددې په مقابله کښې دويم قسم کوم چه قابل د مدح او تعريف دې.هغه نقص دې.کوم چه غير اختياری دې.لکه يوکس ته د فرائضو او ذمه دارئ علم نه وې شوې.يا علم شوې وی.خو هغه غير مکلف وی.د نقص دا صورت قابل د مذمت خو څه جوړيږی.چه په دې جهت سره قابل د مدح هم دې.چه ددې سړی زړه مطمئن کيږی.او ددې خبرې منتظر وی.چه روستو به کوم احکام راځی.مونږ به هغه منو.د حضرات صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم شان هم دا وو.چه دوی په حضوراکرم صلى الله عليه وسلم باندې ايمان راوړو.او ورسره ئې دا عزم هم کړې وو.چه روستو به

---

(١) اوګورئ: فتح الباري(ج١،ص١٠٤))-

كوم څه په تاسو نازليږي هغه به منو او د كومو اعمالو چه مونږه مكلف كولې شو په هغې باندې به مونږه عمل كوو «لوزيد لقبل ولوكلف لعمل» د دوى شان وو.

بهرحال دلته د «اكمال» نه مراد اكمال د فرائضو دې خو د دې نه نه لازميږي چه كله شريعت ناقص پاتې شوې وى بلكه شريعت مخكښې هم كامل وو او س اكمل شو. دا داسې ده لكه ونيلې شى چه دين محمدى د دين عيسوى او دين موسوى نه اكمل دې حالانكه هغه شريعتونه هم پخپله زمانه كښې هم كامل وو خو شريعت محمديه پخپله زمانه كښې د هغې نه اكمل دې. ځكه چه كومه د خوبئ (خصلت) خبره هغه شريعتونو كښې وه د هغې سره زياتى نورې د خوبيانو (او خصلتونو) خبرې په دې كښې جمع كړې شوى دى.(١)

٣٣- حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ (٢) عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَخْرُجُ مِنْ النَّارِ مَنْ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَفِي قَلْبِهِ وَزْنُ شَعِيرَةٍ مِنْ خَيْرٍ وَيَخْرُجُ مِنْ النَّارِ مَنْ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَفِي قَلْبِهِ وَزْنُ بُرَّةٍ مِنْ خَيْرٍ وَيَخْرُجُ مِنْ النَّارِ مَنْ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَفِي قَلْبِهِ وَزْنُ ذَرَّةٍ مِنْ خَيْرٍ قَالَ أَبُو عَبْد اللَّهِ قَالَ أَبَانُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا أَنَسٌ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِيمَانٍ مَكَانَ مِنْ خَيْرٍ [أنظر: ٤٤٧٦، ٦٥٦٥، ٧٤١٠، ٧٤٤٠، ٧٥٠٩، ٧٥١٠، ٧٥١٦]

## رجال الحديث

① **مسلم بن ابراهيم:** دا مسلم بن ابراهيم القصاب ازدى فراهيدى بصرى دې. ابوعمرو د دوى كنيت دې.(٣) شحام نوم سره هم مشهور دې.(٤)

د عبدالله بن عون، قره بن خالد، مالك بن مغول، سعيد بن ابى عروبه، هشام دستوائى، شعبة بن الحجاج او د مبارك بن فضاله رحمهم الله وغيره نه ئې روايت كړې دې.(٥)

---

(١) اوګورئ: فتح البارى (ج١،ص١٠٤))-

(٢) ألحديث اخرجه البخارى فى صحيحه أيضاً. فى كتاب التفسير،سورة البقرة، باب قول الله تعالى: ﴿وَعَلَّمَ آدَمَ الْأَسْمَاءَ كُلَّهَا﴾ رقم(٤٤٧٦) وفى كتاب الرقاق، باب صفة الجنة والنار،رقم(٦٥٦٥) وفى كتاب التوحيد، باب قول الله تعالى ﴿لِمَا خَلَقْتُ بِيَدَيَّ﴾ رقم(٧٤١٠)و باب قول الله تعالى ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ﴾ رقم(٧٤٤٠)و باب كلام الرب عزوجلّ يوم القيامة مع الأنبياء وغيرهم ،رقم(٧٥٠٩)و(٧٥١٠) وباب ماجاء فى قوله عزوجلّ: ﴿وَكَلَّمَ اللَّهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا﴾ رقم(٧٥١٦) ومسلم فى صحيحه(ج١،ص١٠٨، ١٠٩) كتاب الإيمان، باب إثبات الشفاعة و إخراج الموحدين من النار،و الترمذى فى جامعه فى كتاب صفة جهنم، باب ما جاء أن للنار نفسين، وما ذكر من يخرج من النار من أهل التوحيد، و إبن ماجه فى سننه، فى كتاب الزهد، باب ذكر الشفاعة، رقم(٤٣١٢))-

(٣) تهذيب الكمال(ج٢٧،ص٤٨٧))-

(٤) طبقات ابن سعد(٣٠٤/٧)_

(٥) اوګورئ: تهذيب الكمال(ج٢٧،ص٤٨٧، ٤٨٩) وسير أعلام النبلاء(ج١٠،ص٣١٥))-

ددوی نه په روایت کونکو کښې امام بخاری. امام ابوداؤد. یحی بن معین. نصر بن علي. امام عبدالله بن عبدالرحمن دارمی. ابوزرعه. ابوحاتم. او ابومسلم کجی رحمهم الله وغیره ډیر آئمه محدثین دی (۱)

امام یحي بن معین رحمه الله فرمائی ،،ثقة مأمون،،(۲)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی ،،ثقة صدوق،،(۳)

امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائی ،،کان ثقة کثیر الحدیث،،(۴)

امام حبان رحمه الله فرمائی ،،وکان من المتقنین،،(۵)

علامه سمعانی رحمه الله فرمائی ،،من الثقات المتقنین،،(۶)

امام عجلی رحمه الله فرمائی ،،کان ثقة عمی بأخرة،،(۷)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ،،ثقة مأمون مکثر عمی بأخرة،،(۸)

دا مسلم بن ابراهیم بصری دي د طلب حدیث په سلسله کښې د بصرې نه کله هم او نه وتلو (۹) ددې باوجود محدثینو دوی په .. مکثرینو.. کښې شمار کړې دي لکه څنګه چه د شاته نقلونو نه معلومیږی.

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی «ما رحل مسلم إلی أحد، وکتب عن قریب من ألف شیخ....»(۱۰)

پخپله فرمائی «کتبت عن ثمان مائة شیخ، ما جزت الجسر»(۱۱) یعنی ما د اتو سوو شیوخو نه حدیثونه روایت کړی دی. ما ته د بصرې د پل نه اوړیدل لازمی شو.

د علم جرح ئې دومره زیات وو چه په کثرت سره ئې د ښځو نه هم روایتونه اوکړل لکه امام عجلی رحمه الله فرمائی چه ،،و روی عن سبعین إمرأة،،(۱۲)

---

(۱) تهذیب الکمال(ج۲۷.ص۴۸۹. ۴۹۰) وسیر أعلام النبلاء(ج۱۰.ص۳۱۵))-
(۲) تهذیب الکمال(ج۲۷.ص۴۹۰)وسیر أعلام النبلاء(ج۱۰.ص۳۱۵)والکاشف)_
(۳) تهذیب الکمال(ج۲۷.ص۴۹۱) وسیر أعلام النبلاء(ج۱۰.ص۳۱۶)وتهذیب التهذیب(ج۱۰.ص۱۲۲))-
(۴) الطبقات لابن سعد(ج۷.ص۳۰۴))-
(۵) الثقات لابن حبان(ج۹.ص۱۵۷))-
(۶) ألأنساب للسمعانی(ج۴.ص۳۵۷) نسبت ..فزاهیدی..)-
(۷) تهذیب الکمال(ج۲۷.ص۴۹۰. ۴۹۱)وتهذیب التهذیب(ج۱۰.ص۱۲۲) وسیر أعلام النبلاء (ج۱۰.ص۳۱۶))-
(۸) تقریب التهذیب(ص۵۲۹)رقم(۶۶۱۶))-
(۹) الکاشف(ج۲.ص۲۵۷)رقم(۵۴۰۵))-
(۱۰) تهذیب الکمال(ج۲۷.ص۴۹۱) وسیر أعلام النبلاء(ج۱۰.ص۳۱۵))-
(۱۱) پورتنی حواله جات،-
(۱۲) تهذیب الکمال(ج۲۷.ص۴۹۱)وسیر أعلام النبلاء(ج۱۰.ص۳۱۶)والخلاصة للخزرجی(ص۳۷۴))-

د حديث په نشر و اشاعت کښې دومره مصروف وو چه د واده حاجت هم رانغلو پخپله فرمائی ((ما أتيت حلالاً ولا حراماً قط))[1]

ابوحاتم رحمه الله فرمائی ((كان لا يحتاج إليه، يعني الجماع))[2] يعنى دوى دعلم نه داسې خپل مشغله جوړه کړې وه چه د سرو د فطرى خواهش تقاضا نې ختمه شوې وه

دوى په ۱۳۳ھ کښې پيداشوى وو او په ۲۲۲ھ کښې وفات شو[3] رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

(۲) **هشام:** دا ابوبكر هشام بن ابوعبدالله سنبر بصرى دستوائى دې[4]

((دستوا، بفتح الدال و سكون السين المهملتين، وضم التاء ثالث الحروف، وفتح الواو، وفي آخره الألف وقيل: بفتح التاء المثناة من فوق))[5] په اهواز کښې د يو وړوکى ښار کلى نوم دې[6] چونکه هشام بن ابى عبدالله به د هغه ځائې نه درآمد شوې کپړې خرڅولې په دې وجه هغه ته دستوائی.. ونيلې شی.[7]

دوى د يحي بن ابى كثير، قتادة، ايوب سختيانى، حماد بن ابى سليمان فقيه، ابوالزبير، عبدالله بن ابى نجيح او د عاصم بن بهدله رحمهم الله وغيره نه د حديثو علم حاصل کړې دې[8]

ددوى په شاګردانو کښې ددوى د دوو ځامنو معاذ بن هشام او د عبدالله بن هشام نه علاوه امام شعبه، ابن المبارك، يزيد بن زريع، اسماعيل بن عليه يحي القطان، وكيع بن الجراح، عبدالرحمن بن مهدى، يزيد بن هارون، ابوداؤد طيالسى، او ابونعيم الفضل بن دكين رحمهم الله وغيره ډير اساطين (د دين د ستنو پشان عالمان) د علم حديث شامل دى[9]

امام شعبه بن الحجاج رحمه الله فرمائی ((كان هشام الدستوائي أحفظ مني عن قتادة))[10] او فرمائی (( هشام الدستوائي أعلم بحديث قتادة مني وأكثر مجالسة له مني))[11]

---

[1] تهذيب الكمال(ج۲۷، ص۴۹۱) وتهذيب التهذيب(ج۱۰، ص۱۲۲) وسير أعلام النبلاء(ج۱۰، ص۳۱۶))-

[2] سير أعلام النبلاء(ج۱۰، ص۳۱۶) و تهذيب الكمال(ج۲۷، ص۴۹۱))-

[3] طبقات ابن سعد(۳۰٤/۷) والثقات لابن حبان(۱۵۷/۹))-

[4] تهذيب الكمال(ج۳، ص۲۱۵، ۲۱۶))-

[5] الأنساب للسمعانى(ج۲، ص۴۷۶))-

[6] تقريب التهذيب(ص۵۷۳) رقم(۷۲۹۹))-

[7] الأنساب للسمعانى(ج۲، ص۴۷۶) و تهذيب الكمال(۲۱۶/۳۰) والكاشف(ج۲، ص۳۳۷) رقم(۵۹۶۹) پورتنی حواله جات)-

[8] تهذيب الكمال(ج۳۰، ص۲۱۶) وسير أعلام النبلاء(ج۷، ص۱۴۹، ۱۵۰))-

[9] تهذيب الكمال(ج۳۰، ص۲۱۶، ۲۱۷) وسير أعلام النبلاء(ج۷، ص۱۵۰))-

[10] تهذيب الكمال(ج۳۰، ص۲۱۸) وسير أعلام النبلاء(ج۷، ص۱۵۰) وهدى السارى(ص۴۴۸))-

[11] تهذيب الكمال(ج۳۰، ص۲۱۸) وسير أعلام النبلاء(ج۷، ص۱۵۰))-

د ابن علية رحمه الله نه معلى بن منصور رحمه الله د بصرې د حفاظو په باره کښې تپوس اوکړو نو دوی د بصرې په حفاظو کښې د هشام دستوائی رحمه الله ذکر هم اوکړو (١)

امام وکيع رحمه الله فرمائی .((حدثنا هشام الدستوائی، وکان ثبتاً)) (٢)

يحي بن سعيد القطان رحمه الله چه به کله د هشام نه حديث اوريدلو بيا به دوی نه دبل حديث د بل چا نه د اوريدو پرواه نه وه (٣)

ابوداؤد طيالسی رحمه الله فرمائی .((کان هشام الدستوائی أمير المؤمنين فی الحديث)) (٤)

د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه چه کله د امام اوزاعی رحمه الله او د هشام رحمه الله په باره کښې تپوس اوکړې شو .((أيهما أثبت فی يحی بن أبی کثير)) چه د يحي بن ابی کثير په حديثونو کښې په دوی دواړو کښې کوم يو زيات مضبوط دې؟ نو دوی جواب ورکړو ((الدستوائی لا تسأل عنه أحداً، ما أری الناس يروون عن أحد أثبت منه مثله عسی، و أما أثبت منه فلا)) (٥) يعنی دوی جواب ورکړو چه دستوائی زيات مضبوط دې .ددوی په باره کښې دچا نه دتپوس ضرورت نشته زه نه پيژنم چه د دوی نه زيات د يو مضبوط راوی نه خلق روايت کوی ددې پشان کيدې شی خود وی .خو ددوی نه څوك زيات شی .هيڅ څوك داسې نشته.

او امام احمد رحمه الله فرمائی .((أکبر من فی يحی بن ابی کثير من أهل البصرة هشام الدستوائی)) (٦)

امام علی بن المدينی رحمه الله فرمائی .((هشام الدستوائی ثبت)) (٧)

امام عجلی رحمه الله فرمائی .((هشام الدستوائی بصری، ثقة ثبت فی الحديث)) (٨)

خلاصه دا چه هشام دستوائی رحمه الله د صحاح سته د ثقه ترين راويانو کښې دې .ددوی په ثقاهت او تثبت باندې هيڅ چا کلام نه دې کړې .خصوصاً د يحي بن ابی کثير او قتادة رحمهما الله په حديثونو کښې خو دوی ته ددې حضراتو په ټولو شاګردانو باندې فوقيت حاصل دې .البته بعضو خلقو ده لره .. قدری .. ګرځولې دې .لکه څنګه چه.

امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائی .((وکان ثقة ثبتاً فی الحديث حجة، إلا أنه يرمی بالقدر)) (٩)

---

(١) پورتنی حواله جات .)-

(٢) تهذيب الکمال(ج٣٠.ص٢١٩)وسير أعلام النبلاء(ج٧.ص١٥١))-

(٣) پورتنی حواله جات .)-

(٤) تهذيب الکمال(ج٣٠.ص٢٢٠)وسير أعلام النبلاء(ج٧.ص١٥١) والکاشف(ج٢.ص٣٣٧) رقم (٥٩٦٩) وخلاصة الخزرجی(ص٤١٠) )-

(٥) تهذيب الکمال(ج٣٠. ٢٢٠)وسير أعلام النبلاء(ج٧.ص١٥١)او اوګورئ هدی الساری(ص٤٤٨))-

(٦) تهذيب الکمال(ج٣٠.ص٢٢٠) وسير أعلام النبلاء(ج٧.ص١٥١))-

(٧) تهذيب الکمال(ج٣٠.ص٢٢٠))-

(٨) تهذيب الکمال(ج٣٠.ص٢٢١)وسير أعلام النبلاء(ج٧.ص١٥١)وهدی الساری(ص٤٤٨))-

(٩) الطبقات لابن سعد(ج٧.ص٢٧٩))-

دغه شان امام عجلى رحمه الله فرمائى «كان يقول بالقدر، ولم يكن يدعو إليه»(١)
دغه شان د امام يحي بن معين رحمه الله نه هم دا خبره نقل كيږى.(٢)
خو اول د هشام دستوائى رحمه الله په باره كښې حافظ رحمه الله دا يو قول نقل كړې دې چه هغوى د خپلې فاسدې عقيدې نه رجوع كړې وه.(٣)
دويمه خبره دا ده چه مونږه بار بار ذكركړى دى چه .. بدعت.. مطلقاً د روايت قبلولو دپاره قادح نه دې بلكه دهغه مبتدع روايت رد كولې شى چه هغه داعى هم وى.(٤)حالانكه هشام رحمه الله نه چه كومو حضراتو ..قدرى.. ونيلى دى هغوى ددې خبرې اقرار كوى چه هغه داعى نه وو.
لكه چه د امام عجلى رحمه الله قول تير شوې دې.«ولم يكن يدعوا إليه».
دغه شان د امام يحي بن معين رحمه الله نه حافظ محمد بن البرقى رحمه الله تپوس اوكړو «أرأيت من يرى بالقدر يكتب حديثه؟» نو امام يحي بن معين رحمه الله جواب وركړو «نعم، قد كان قتادة، وهشام الدستوائى، سعيد بن أبي عروبة، وعبدالوارث، وذكر جماعة، يقولون بالقدر، وهم ثقات، يكتب حديثهم، مالم يدعوا إلى شيء»(٥)
هم دا وجه ده چه حافظ ابن حجر رحمه الله ددوى تصديق كړې دې او فرمائيلې ئې دى «أحد الأثبات، مجمع على ثقة وإتقانه....»(٦) ددې نه پس چه ابن سعداو عجلى رحمهما الله كوم ددوى په باره كښې كلام كړې دې هغه ئې نقل كړې دې او ددې الزام غير معتبر كيدل ئې په دې طريقه ښكاره كړى دى.فرمائى:«قلتُ:احتج به الأئمة»(٧) يعنى په دوى چه د .. بدعت.. كوم الزام دې هغه قادح او د روايت قبلولو نه مانع نه دې.په دې وجه ټولو ائمة حديث ددوى

---

(١) تهذيب الكمال(ج٣٠.ص٢٢١) وسير أعلام النبلاء(ج٧.ص١٥١))-
(٢) قاله الذهبى فى الميزان(ج ٤.ص ٣٠٠)رقم(٩٢٢٩))-
(٣) ميزان الإعتدال(ج ٤.ص ٣٠٠)رقم(٩٢٢٩))-
(٤) قال الذهبى رحمه الله فى السير(ج٧.ص١٥٤):.....فيجمع تصرفات أئمة الحديث تؤذن بأن المبتدع إذا لم تبح بدعته خروجه من دائرة الإسلام. ولم تبح دمه.فإن قبول ما رواه سائغ. وهذه المسألة لم تتبرهن لى كما ينبغى، والذى اتضح لى منها أن من دخل فى بدعة. ولم يعد من رؤوسها ولا أمعن فيها: يقبل حديثه. كما مثل الحافظ أبو زكريا. أى يحى بن معين. بأولئك المذكورين. وسيأتى فى المتن قريباً. وحديثهم فى كتب الإسلام لصدقهم وحفظهم..)-
(٥) وسير أعلام النبلاء(ج٧.ص١٥٣. ١٥٤))-
(٦) هدى السارى(ص٤٤٨))-

روایات قبول کړې دی او دهغې نه نې استدلال کړې دې والله اعلم
هشام دستوائی رحمه الله ډیر زیات نرم زړه او د اخلاص مالك وو د خپل نفس به نې همېشه محاسبه کوله
امام محمد بن سعد رحمه الله لیکلی دی چه کله به د شپې فوراً ډیوه مړه شوه نو هشام رحمه الله به بستره باندې زبیدو ددوی کور والا چه به کله ډیوه اولګوله نو دوی ته به آرام کیدو نو خلې ددوی بی بی په دې باره کښې ددوی نه تپوس اوکړو نو وې فرمائیل «إنی إذا فقدت السراج ذکرت ظلمة القبر»(١) یعنی چه ډیوه مړه شی او تیاره جوړه شی نو ماته د قبر تیاره رایادیږی بیا ماته آرام نه راځی
دومره زیات به نې ژړل چه ددې په وجه نې نظر ختم شوې وو بس سترګې به نې کلاوې خو څه به نې نه لیدل (٢)
پخپله به نې وئیل «لیتنا نتجو لا علینا ولا لنا»(٣) کاش! معامله برابر سرابر شوې وه او په خه طریقه خلاص شوې وې!!
امام شعبه رحمه الله به فرمائیل «ما من الناس أحد أقول: إنه طلب الحدیث یرید به الله، إلا هشام صاحب الدستوائی....»(٤)
د دومره زیات اخلاص باوجود به نې د خپل نفس احتساب په دې طریقه کولو چه پخپله به نې فرمائیل «والله ما أستطیع أن أقول: إنی ذهبت یوما قط أطلب الحدیث أرید به وجه الله عزوجل»(٥)
دهشام دستوائی رحمه الله د وفات په باره کښې مختلف اقوال منقول دی راجح دا دې چه به ۱۵۴هـ کښې ددوی وفات شوې دې. (٦) رحمه الله تعالی رحمة واسعة _
④ **قتادة:** دا مشهور تابعی محدث حضرت قتاده بن دعامه سدوسی رحمه الله دې د دوی مختصر حالات د ،،باب من الإیمان أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه،، لاندې تیر شوی دی
③ **انس:** دا د حضوراکرم ﷺ خادم خاص حضرت انس بن مالك رضی الله عنه دې ددوی مختصر حالات هم شاته د ،،باب الإیمان أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه،، لاندې ذکر شوی دی

---

١) ألطبقات(ج۷.ص۲۷۹)و تهذیب الکمال(ج۳۰.ص۲۲۲)وسیر أعلام النبلاء(ج۷.ص۱۵۲))-
٢) تهذیب الکمال(ج۳۰.ص۲۲۲)وسیر أعلام النبلاء(ج۷.ص۱۵۲))-
٣) تهذیب الکمال(ج۳۰.ص۲۱۸)وسیر أعلام النبلاء(ج۷.ص۱۵۲))-
٤) سیر أعلام النبلاء(ج۷.ص۱۵۰)و تهذیب الکمال(ج۳۰.ص۲۱۸))-
٥) وسیر أعلام النبلاء(ج۷.ص۱۵۲))-
٦) اوګورئ تهذیب الکمال مع حاشیه(ج۳۰.ص۲۲۲. ۲۲۳)والأنساب للسمعانی(ج۲.ص۴۷۶)و طبقات ابن سعد(ج۷.ص۲۸۰)وسیر أعلام النبلاء(ج۷.ص۱۵۵)والکاشف مع التعلیق(ج۲.ص۳۳۷) رقم(۵۹۶۹)و تقریب التهذیب(ص۵۷۳)رقم(۷۲۹۹) وخلاصة الخزرجی(ص۴۱۰))-

**قوله** قَالَ يَخْرُجُ مِنَ النَّارِ مَنْ قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَفِي قَلْبِهِ وَزْنُ شَعِيرَةٍ مِنْ خَيْرٍ وَيَخْرُجُ مِنَ النَّارِ مَنْ قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَفِي قَلْبِهِ وَزْنُ بُرَّةٍ مِنْ خَيْرٍ وَيَخْرُجُ مِنَ النَّارِ مَنْ قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَفِي قَلْبِهِ وَزْنُ ذَرَّةٍ مِنْ خَيْرٍ: كوم كس چه لا اله الا الله ونيلي وى او دده په زړه كښې د اوربشې برابر خير (ايمان) وى نو يوه نه يوه ورځ به ضرور د جهنم نه راوخى او كوم كس چه كلمه ونيلي وى او دده په زړه كښې د غنمو برابر خير يعنى ايمان وى نوهغه به ضرور دجهنم نه راوخى دغه شان چه كوم كس كلمه ونيلي وى. او دهغه په زړه كښې د ذرې برابر خير يعنى ايمان وى نو هغه به د جهنم نه ضرور راوخى.

..يخرج.. د مجرد نه د معروف صيغه ده دا .. يخرج.. (د باب افعال نه مجهول) هم ونيلې شوې دې ددې تائيد دهغه روايت نه كيږى په كوم كښې چه ،،أخرجوا،، صيغه راغلې ده.(١)

په دې حديث كښې چه د ..خير.. كومې مختلف درجې ،،شعيرة،برة،، او ،،ذرة،، سره تعبير كړې شوى دى. ددې نه د عمل مختلفې درجې مراد دى او كه د تصديق؟ په دې كښې اختلاف دې.

د علامه مهلب بن ابى صفره رحمه الله رائې دا ده چه په دې سره د اعمالو مختلفې درجې بيان كړې شوى دى.او ددې نسبت قلب طرف ته كړې شوې دې. خكه چه عمل په نيت باندې موقوف دې.او دا د قلب فعل دې.(٢)

د بعضو نورو حضراتو رائې دا ده.ممكن ده چه ددې نه د تصديق مختلفې درجې مراد وى.ددې قرينه داده.چه د ټولو درجو اضافت قلب طرف ته شوې دې.او په تصديق كښې په زيادت د علم او مشاهدې سره اضافه كيږى.(٣)والله اعلم.

**ذرة:** دا لفظ د ذال معجمه فتحې او په راءِ مشدده سره دې.حالانكه د شعبه په روايت كښې كوم چه امام مسلم رحمه الله نقل كړې دې.(٤)هغوى دا ،، ذرة،، (بضم الذال المعجمة و تخفيف الراء المهمله) ونيلې دې.كوم چه تصحيف دې.(٥)

بيا د،،ذرة،،مختلفې معانې بيان كړې شوى دى يو قول دا دې چه په موزونى څيزونو كښې د ټولو نه كمتر څيز ته وائى.

دويم قول دادې.چه ذره هغې بوسرى( ريزې) ته ونيلې شى.كوم چه په شعاع كښې په نظر راخى.

---

(١) فتح البارى(ج١.ص ١٠٤) عمدة القارى(ج١.ص ٢٦٠)وشرح الكرمانى(ج١.ص ١٧٤))-

(٢) فتح البارى(ج١.ص ١٠٤)وعمدة القارى(ج١.ص ٢٦١)و شرح الكرمانى(ج١.ص١٧٥))-

(٣) بورتنى حواله جات )

(٤) صحيح مسلم(ج١.ص١٠٩)كتاب الإيمان. باب إثبات الشفاعة و إخراج الموحدين من النار.)

(٥) فتح البارى(ج١.ص ١٠٤))

دريم قول دا دي چه ورکوټي ميږي ته وائي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دی چه که ته په خاورو کښې لاس اولګې او خپل لاس اوڅنډې نو د لاسونو نه چه کوم دوړيږی هغه به ذره وی.

يو قول دا هم دي چه د څلورو ذرو ملاويدو نه پس يو .. خردل .. جوړيږی.(١)

بيا په دې حديث کښې د ،،لااله الا الله،، نه مراد پوره کلمه ده لکه وئيلې شی چه ((قرأت: قل هوالله أحد)) اوددې نه پوره سورت مراد وی نو دا اشکال کيدل پکار نه دی چه په ،،لااله الا الله،، کښې صرف توحيددې د رسالت اقرار نشته په دې وجه به دده نجات د ايمان بالرسالة نه بغير څنګه کيږی؟ چونکه ،،لااله الا الله،، د کلمې عنوان دې نو پوره کلمه مراد ده چه په دې کښې رسالت او رسول سره د ملاو شوو ټولو عقائدو بيان داخل دې.(٢) والله أعلم.

**قوله** :قَالَ أَبُوعَبْدِ اللّٰهِ قَالَ أَبَانُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا أَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِيمَانٍ مَكَانَ مِنْ خَيْرٍ: د ابو عبدالله نه مراد پخپله امام بخاری رحمه الله دې په بعضو نسخو کښې ،،قال أبوعبدالله،، موجود نه دې بلکه په ،،وقال أبان.....،، وئيلو سره ددې تعليق ذکرکړې شوې دې.(٣)

دا حديث د امام بخاری رحمه الله د تعليقاتو څنې دې چه دا امام حاکم رحمه الله پخپل کتاب .. کتاب الاربعين .. کښې د ،،أبوسلمة موسى بن إسماعيل قال حدثنا أبان.....)) طريق سره موصولاً روايت کړې دې.(٤) دغه شان امام بيهقی رحمه الله هم د حاکم رحمه الله طريق سره پخپل ..کتاب الاعتقاد.. کښې موصولاً نقل کړې دې.(٥)

**د مذکوره تعليق مقصد** ددې تعليق ذکرکولو سره د امام بخاری رحمه الله دوه بنيادی مقصدونه دی.

① **يو مقصد** خو دا دې چه د حضرت انس رضي الله عنه دا حديث کوم چه دهشام طريق سره نقل دې هغې کښې قتاده د حضرت انس رضي الله عنه نه عنعنه سره روايت کوی او قتاده مدلس دې ددوی عنعنه مقبول نه ده تر هغه وخته پورې چه د تحديث صراحت ملاو نشی دلته چه امام بخاری رحمه الله د ابان کوم طريق نقل کړې دې په دې کښې قتاده د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت کولو

---

(١) ددې ټولو اقوالو دپاره اوګورئ: فتح الباری(ج١،ص١٠٤) و عمدة القاری(ج١،ص٢٦٠))-

(٢) فتح الباری(ج١،ص١٠٤) وعمدة القاری(ج١،ص٢٦٠))-

(٣) عمدة القاری(ج١،ص٢٦١))-

(٤) عمدة القاری(ج١،ص٢٦١)و فتح الباری(ج١،ص١٠٤) وهدی الساری(ص٢٠) و تغليق التعليق (ج٢،ص٤٩))-

(٥) هدی الساری(ص٢٠) وتغليق التعليق(ج٢،ص٥٠))-

سره د تحديث صراحت كړې دې نو د حضرت انس رضي الله عنه دا حديث بې غباره (او محفوظ) دې.
ددې مقصد دپاره ئې دويم طريق سره ددې متابعت ذكر كړې دې.[1]

② دويم مقصد دا دې چه د هشام دستوائى رحمه الله په طريق كښې ،،من خير،، دې.
او د ابان رحمه الله په طريق كښې ،، من ايمان،، دې مؤلف رحمه الله دا اوښودل چه دهشام په روايت كښې د ،،خير،، نه مراد ،،ايمان،، دې لكه څنګه چه د ابان په روايت كښې واقع شوې دې.[2]
ددې دواړو مقصدونو نه علاوه د متابعت يوه عمومى فائده تقويت هم وى نو دلته دا متابعت تقويت دپاره هم ګرځولې شى.[3]

**يو اشكال او دهغې جواب** دلته دا اشكال كيږى چه امام بخارى رحمه الله مخكښې د عنعنې روايت ذكركړو بيا ئې تحديث والا طريق نقل كړو دغه شان ئې مخكښې د ،،من خير،، والا روايت نقل كړو ددې نه پس ئې د ،،من ايمان،، تفسير والا روايت ذكر كړو دومره اوږده طريقه ئې ولې اختيار كړله؟ حالانكه دا ممكنه وه چه اصلاً ئې د ابان طريق سره موصولاً حديث نقل كړې وې چه هغې كښې دتحديث تصريح هم شته او د ..ايمان تصريح هم؟!
ددې جواب دا دې چه اصل كښې د هشام په روايت كښې اګرچه عنعنه ده خو هغه د ابان په مقابله كښې اوثق او احفظ دې په دې وجه امام بخارى رحمه الله دهشام روايت وړاندې نقل كړو او د ابان روايت ئې متعابعة ذكركړو په دې طريقه اصلاً د اتقن او اضبط راوى روايت راغلو او استشهاداً هغه روايت ذكر كړې شو په كوم كښې چه د تحديث صراحت او د مخكنى حديث تفسير دې.[4] والله أعلم.

## رجال الحديث

① ابان: دا ابو يريد ابان بن يزيد عطار بصرى دې.[5]
دا دحضرت حسن بصرى، عاصم بن بهدله، عبيدالله بن عمر القواريرى، عمرو بن دينار، قتاده بن دعامه، مالك بن دينار، هشام بن عروه، يحي بن سعيد انصارى او يحي بن ابى كثير رحمهم الله وغيره نه روايت كوى.[6]
ددوى نه ابوداؤد طيالسى، سهل بن بكار، عبدالله بن المبارك، عبيدالله بن موسى، عفان

---

[1] فتح البارى (ج١ص١٠٥) وعمدة القارى(ج١ص٢٦١))-
[2] پورتنى حواله جات.)-
[3] عمدة القارى(ج١ص٢٦١))-
[4] فتح البارى(ج١ص١٠٥) وعمدة القارى(ج١ص٢٦١))-
[5] تهذيب الكمال(٢٤١٢)وسير أعلام النبلاء(ج٧/٤٣١) وغيره كتب رجال))-
[6] تهذيب الكمال(٢٤١٢)وسير أعلام النبلاء(ج٧/٤٣٢) وتهذيب التهذيب(ج١/١٠١) )-

بن مسلم. مسلم بن ابراهیم. ابوالولید هشام بن عبدالملک طیالسی. وکیع بن الجراح. یحيٰ القطان. او یزید بن هارون رحمهم الله روایت کوی ()

امام احمد رحمه الله فرمائی «ثبت فی کل المشایخ» ()

امام یحيٰ بن معین رحمه الله فرمائی «ثقة» ()

امام نسائی رحمه الله فرمائی «ثقة» ()

امام علی بن المدینی رحمه الله فرمائی «کان عندنا ثقة» ()

امام عجلی رحمه الله فرمائی «بصری ثقة، وکان یری القدر ولا یتکلم فیه» ()

ابن شاهین ددوی توثیق کړې دې ()

ابن حبان رحمه الله دې په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې ()

ابوحاتم رحمه الله فرمائی «صالح الحدیث» ()

ددې اقوالو نه معلومه شوه چه ابان بن یزید عطار ثقه راوی دې البته په دوی باندې بعضو محدثینو کلام هم کړې دې لکه:

د امام عجلی رحمه الله قول اوس تیر شو «وکان یری القدر ولا یتکلم فیه».
خو ددې جواب بالکل واضح دې خکه چه دوی پخپله تصریح هم اوکړله چه هغوی به په دې سلسله کښې هیڅ بحث نه کولو او وړاندې بار بار مونږ ذکر کړی دی چه .. بدعت.. په هغه صورت کښې قادح وی کله چه صاحب د بدعت داعی هم وی.
دغه شان ابن عدی رحمه الله دوی پخپل کتاب .. الکامل.. کښې ذکرکړی دی او ددوی یو خو غریب حدیثونه ئې نقل کړی دی ددې نه پس هغوی فرمائیلی دی «و أبان بن یزید العطار، له

---

) تهذیب الکمال(٢٥\٢)وتهذیب التهذیب(ج١\١٠١) وسیر أعلام النبلاء(ج٧\٤٣٢))-
) تهذیب الکمال(٢٥\٢)وتهذیب التهذیب(ج١\١٠١) وسیر أعلام النبلاء(ج٧\٤٣٢) والکاشف (ج١\٢٠٧)رقم(١١١) وخلاصة الخزرجی(ص١٥) وهدی الساری(ص٣٨٧))-
) تهذیب الکمال(٢٥\٢)وتهذیب التهذیب(ج١\١٠١) وهدی الساری(ص٣٨٧) وسیر أعلام النبلاء (ج٧\٤٣٢))-
) تهذیب الکمال و تهذیب التهذیب وسیر أعلام النبلاء ..پورتنی حواله جات..)-
١٠٠\١))-
١٠٢) وسیر أعلام النبلاء(ج٧\٤٣٢))-
)-

رواياته غير ما ذكرت، وهو حسن الحديث، متماسك، يكتب حديثه، وله أحاديث صالحة من تفاريق غير، وعامتها مستقيمة، وأرجو أنه من أهل الصدق»(۱)

د ابن عدی رحمه الله دا مذکوره عبارت اګرچه په توثیق باندې دلالت کوی.خو چونکه د دیر زیات توثیق الفاظ نه دی.د کوم چه هغه یقیناً چه مستحق وو.په دې وجه حافظ ذهبی رحمه الله ددې عبارت نقل کولو نه پس لیکلی دی:«قلتُ: بل هو ثقة حجة، فاهيك أن أحمد بن حنبل ذكره، فقال: كان ثبتاً في كل المشايخ، وقال ابن معين والنسائي: ثقة»(۲)

بیا ابن الجوزی رحمه الله هم دوی په کتاب الضعفاء کښې ذکر کړې دې.او د کدیمی په طریق ئې نقل کړې دی.چه یحي بن سعید القطان به ددوی نه روایت نه کولو.(۳)

خو دا جرح بالکل مردود ده.څکه چه اول خو دا جرح مبهم ده.څکه دا معلومه نه ده چه یحي القطان رحمه الله به ولې روایت نه کولو؟ ددې هیڅ وجه نه ده بیان کړې شوې.

دویمه خبره دا چه کدیمی پخپله ضعیف (۴)او غیرمعتمد دې.(۵)

دریمه خبره دا ده.چه د کدیمی بالکل خلاف امام یحي بن معین رحمه الله ددوی توثیق کړې دې. فرمائی.«ثقة كان يحي بن سعيد يروي عنه»(۶)

حافظ ذهبی رحمه الله په ابن الجوزی رحمه الله باندې د خپل خفګان اظهار کړې دې. ددوی تردید ئې کړې دې.او فرمائیلی ئې دی.«وقد أورده أيضاً العلامة أبو الفرج ابن الجوزي في الضعفاء، ولم يذكر فيه أقوال من وثقه وهذا من عيوب كتابه: يسرد الجرح ويسكت عن التوثيق»(۷)

---

(۱) الكامل فى ضعفاء الرجال(ج۱،ص۳۹۰، ۳۹۱))-

(۲) ميزان الإعتدال(ج۱،ص۱۶))-

(۳) اوګورئ: ميزان الإعتدال (ج۱۱\۱۶) وتهذيب التهذيب(ج۱۱\۱۰۲) وسير أعلام النبلاء(ج۷\۴۳۲) )-

(۴) قال الحافظ في هدى السارى(ص۳۸۷): وهذا مردود، لأن الكديمى ضعيف..وانظر تقريب التهذيب (۵۱۵)رقم(۶۴۱۹))-

(۵) قال الذهبى فى الميزان(ج۱،ص۱۶):... روى الكديمى، وليس بمعتمد: سمعت علياً يقول سمعت يحى بن سعيد قول: لا أروى عن أبان العطار..وقال ابن حجر فى تهذيب التهذيب(۱۰۲\۱۱) والكديمى ليس بمعتمد.. وقد أسلفنا قول ابن معين، أن القطان كان يروى عنه، فهو المعتمد.والله أعلم) )-

(۶) تهذيب الكمال(۲۵\۲)وتهذيب التهذيب(ج۱۱\۱۰۱) وهدى السارى(ص۳۸۷) وقال الذهبى فى سير أعلام النبلاء (ج۷،ص۴۳۲) بعد ما نقل عن طريق الكديمى عن ابن المدينى عن القطان أن ليس أباناً،و قال لا أحدث عنه فإن صح هذا فقد كان لا يروى عنه.ثم روى عنه. وتغير اجتهاده.فقد روى عباس الدورى عن يحى بن معين قال: مات يحى بن سعيد، وهو يروى عن أبان بن يزيد) )-

(۷) ميزان الإعتدال(ج۱،ص۱۶).هذا وقد نقل الحافظ ابن حجر قول الذهبى هذا فى تهذيب التهذيب(۱۰۲\۱۱) من غيرعزو إليه ولا إشارة له، وكأنه من كلامه. وقد نبّه على ذالک الدكتور بشار عواد معروف فى تعليقاته على تهذيب الكمال(۲۵\۲) )-

بيا دلته دا وضاحت هم ضروري دې چه امام بخاري رحمه الله ددوی نه دير کم روايتونه نقل کړی دی او هر خائې کښې ئې ددوی روايتونه استشهاداً نقل کړی دی. (۱) البته صرف په يو مقام باندې ددوی يو روايت موصولاً راغلې دې چه په هغې کښې هغوی فرمائي: «قال لنا مسلم بن إبراهيم: حدثنا أبان.....» (۲) والله أعلم.

ددوی وفات د ۱۶۰ هـ نه پس (يعنی په دويمه صدئ کښې د شپيتو او اويا د لسو په مينځ کښې) شوې دې. (۳) رحمه الله تعالى رحمة واسعة_

**فائده** ،،ابان،، منصرف دې او که غير منصرف؟ په دې کښې اختلاف دې:

علامه عيني رحمه الله فرمائي چه ددې وزن ،، فعال،، دې پس دا منصرف دې او د دې په شروع کښې چه کومه همزه ده. هغه اصلي ده. هم دا صحيح او مشهور قول دې. اکثر حضرات هم ددې قائل دی. حالانکه ابن مالك نحوی رحمه الله فرمائي چه دا غيرمنصرف دې خکه چه دا د ،،افعل،، په وزن دې. گويا په دې کښې د غير منصرف دوه سببونه وزن فعل او علميت موجود دی. (۴)

**تنبيه** دې باب سره متعلق ضروری تفصيلات په ،،باب تفاضل أهل الإيمان في الأعمال،، کښې تير شوی دی. ددې باب ،،پنځم بحث،، ته ضرور مراجعت کول پکار دی.

حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ سَمِعَ جَعْفَرَ بْنَ عَوْنٍ حَدَّثَنَا أَبُو الْعُمَيْسِ أَخْبَرَنَا قَيْسُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ (۵) أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْيَهُودِ قَالَ لَهُ يَا أَمِيرَ

---

(۱) هدى السارى(ص۳۸۷) وفتح البارى(ج۵،ص۳) كتاب الحرث والمزارعة باب فضل الزرع والغرس إذا أكل منه.)-

(۲) صحيح بخارى، كتاب الحرث والمزارعة، باب فضل الزرع و الغرس إذا أكل منه.)-

(۳) اوگورئ حاشيه د :الكاشف لسبط ابن العجمى(ج۱،ص۲۰۷)، تقريب التهذيب(ج وخلاصة الخزرجى (ص۱۵)

(۴) عمدة القارى(ج۱،ص۲۶۱)، وقال الزبيدى فى تاج العروس(ج۹،ص۱۱۷ مادة: أبن): و أبان كسحاب، مصروفة، اسم رجل، وهو ،،فعال،، والهمزة أصلية كماجرى عليه المصنف ( أى الفيروز آبادى صاحب القاموس) وحققه الدمليني، و ابن مالك، وجزم به ابن شيب الحرانى فى جامع الفنون،، وأكثر النحاة والمحدثين على منعه من الصرف للعلمية والوزن، وبحث المحققون فى الوزن، لأنه إذا كان ماضياً فلا يكون خاصاً، أو اسم تفضيل فالقياس فى مثله ،،أبين،، وقال بعض ائمة اللغة: من لم يعرف صرف ،،أبان،، فهو أتان، نقله الشهاب رحمه الله فى شرح الشفا))-

(۵) الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى صحيحه فى كتاب المغازى، باب حجة الوداع، رقم(۴۴۰۷)وفى كتاب التفسير، سورة المائدة، باب ﴿اَلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ .... الخ﴾ رقم(۴۶۰۶) وفى فاتحة كتاب الإعتصام بالكتاب والسنة، رقم(۷۲۶۸)و مسلم فى صحيحه(ج۲، ص۴۱۹، ۴۲۰) فواتح كتاب التفسير، والنسائى فى سننه(ج۲،ص۴۳) كتاب مناسک الحج، باب ماذكر فى يوم عرفة، وفى (۲۶۹۱۲) كتاب الإيمان وشرائعه، باب زيادة الإيمان، والترمذى فى جامعه، فى كتاب التفسير، باب ومن سورة المائدة، رقم(۳۰۴۳))-

الْمُؤْمِنِينَ آيَةٌ فِي كِتَابِكُمْ تَقْرَءُونَهَا لَوْ عَلَيْنَا مَعْشَرَ الْيَهُودِ نَزَلَتْ لَاتَّخَذْنَا ذَلِكَ الْيَوْمَ عِيدًا قَالَ أَيُّ آيَةٍ قَالَ ﴿الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا﴾ قَالَ عُمَرُ قَدْ عَرَفْنَا ذَلِكَ الْيَوْمَ وَالْمَكَانَ الَّذِي نَزَلَتْ فِيهِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ قَائِمٌ بِعَرَفَةَ يَوْمَ جُمُعَةٍ [٤٣٥، ٤٣٣٠، ٦٨٣٠]

حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه ته د يهودو يو سړى اووئيل چه اى اميرالمؤمنين! ستاسو په كتاب كښې يو داسې آيت دې.كه هغه په مونږ يهوديانو باندې نازل شوې وې.نو په دغه ورځ به مونږ اختر كولو.حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل.هغه كوم يو آيت دې؟ وې وئيل چه هغه ﴿الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ.....الخ﴾ والا آيت دې.يعنې ما نن ورځ ستاسو دپاره ستاسو دين مكمل كړو.او خپل نعمت مې په تاسو باندې تمام كړو.او ستاسو دپاره ما دين اسلام خوښ كړو.حضرت عمر رضي الله عنه جواب وركړو .چه مونږ ته هغه ورځ هم معلومه ده.او هغه ځائې هم معلوم دې.كوم ځائې چه دا آيت په حضوراكرم ﷺ باندې نازل شوې وو هغوى ﷺ په عرفات كښې ولاړ وو.او هغه د جمعې ورځ وه.

## رجال الحديث

① **الحسن بن الصباح:** دا ابوعلى الحسن بن الصباح ،، بتشديد الباء الموحدة،،[1] بن محمد البزار ،، بزاى بعدها راء[2] الواسطى ثم البغدادى دې.[3]

دا دامام احمد بن حنبل، جعفر بن عون، سفيان بن عيينه، على بن المدينى او وكيع بن الجراح رحمهم الله وغيره د ډيرو لويو محدثينو نه روايت كوى.[4]

ددوى نه په روايت كونكو كښې امام بخارى، امام ابوداؤد، امام ترمذى، ابراهيم حربى، ابويعلى موصلى، او حسن بن سفيان رحمهم الله وغيره ائمه حديث دى.[5]

امام احمد رحمه الله فرمائى.«ثقة، صاحب سنة»[6]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى.«صدوق، وكانت له جلالة عجيبة ببغداد، كان أحمد بن حنبل يرفع من قدره ويجله»[7]

---

[1] عمدة القارى(ج١،ص٢٦٢)-

[2] پورتنۍ حواله-

[3] تهذيب الكمال(١٩١|٦)-

[4] تهذيب الكمال(ج٦،ص١٩٢،١٩١) وسير أعلام النبلاء(١٩٢|١٢)وغيره-

[5] تهذيب الكمال(١٩٢|٦و١٩٣) وسير أعلام النبلاء(١٩٣|١٢) )-

[6] تهذيب الكمال(١٩٣|٦) والكاشف(٣٢٦|١) رقم(١٠٣٨)وسير أعلام النبلاء(١٩٤|١٢) وتهذيب التهذيب(٢٩٠|٢) ميزان الإعتدال (٤٩٩|١) والخلاصة(ص٧٩)-

[7] تهذيب الكمال(١٩٤|٦) ، الكاشف(٣٢٦|١) رقم ١٠٣٨) وتذكرة الحفاظ(٤٧٦|٢) ميزان الإعتدال (٤٩٩|١)

ابن حبان رحمه الله دوى په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې.[1]

دحسن بن الصباح تقريباً ټولو ائمه محدثينو توثيق كړې دې.البته امام نسائى رحمه الله پخپل كتاب الكنى كښې ددې په باره كښې ليكلى دى.،، ليس بالقوى،، حالانكه د خپلو شيوخو نمونه ئې شمار كړى.او فرمائيلى ئې دى.((بغدادى صالح))[2]

حافظ ابن حجر رحمه الله د امام نسائى رحمه الله قول ،، ليس بالقوى،، نقل كړې دې. او فرمائيلى ئې دى.((هذا تليين هين، وقد روى عنه البخارى و أصحاب السنن إلا ابن ماجه، ولم يكثر عنه البخارى))[3]

مطلب دا دې.چه امام نسائى رحمه الله كوم تضعيف كړې دې.دا معمولى تضعيف دې.چه ددې تحمل ( برداشت) كيدې شى.خصوصاً كله چه په استثناء د ابن ماجه، د امام بخارى رحمه الله سره نورو اصحاب سنن ددوى د رواياتو نه استدلال كړې دې.بيا امام بخارى رحمه الله چه ددوى نه كوم روايات اخستې دى.هغه ډير كم دى.

حسن بن الصباح په عبادت او صلاح او تقوى كښې مشهور وو.لكه چه حافظ ابن قريش محمد بن جمعه رحمه الله فرمائى.((وكان أحد الصالحين))[4]

ابو العباس سراج رحمه الله فرمائى.((كان من خيار الناس ببغداد))[5]

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى.((ما يأتى على ابن البزار يوم إلا وهو يعمل فيه خيراً، ولقد كنا نختلف إلى فلان المحدث، وسماه، قال: وكنا نقعد نتذاكر الحديث إلى خروج الشيخ، و ابن البزار قائم يصلى إلى خروج الشيخ، وما يأتى عليه يوم إلا وهو يعمل فيه الخير))[6]

په ۲۴۹ھ كښې ددوى وفات شوې دې.[7] رحمة الله عليه _

④ جعفر بن عون: دا جعفر بن عون عمرو بن حريث قرشى مخزومى كوفى دې.ابو عون ددوى كنيت دې.[8]

---

[1] ) كتاب الثقات(۱۷۶\۸ ) )-
[2] ) تهذيب الكمال(۱۹۴\۶)وتهذيب التهذيب(۲۹۰\۲) ميزان الإعتدال ( ۴۹۹\۱ ) )-
[3] ) هدى السارى(ص۳۹۷) وقال فيه(ص ۴۶۱):..الحسن بن الصباح البزار: تعنت فيه النسائى..)-
[4] ) تهذيب الكمال(۱۹۴\۶) وتهذيب التهذيب(۲۹۰\۲ )-
[5] ) وتهذيب التهذيب(۲۹۰\۲) وسير أعلام النبلاء(۱۹۴\۱۲) و ميزان الإعتدال ( ۴۹۹\۱ )-
[6] ) تهذيب الكمال( ۱۹۳\۶-۱۹۴وتذكرة الحفاظ(۴۷۶\۲وسير أعلام النبلاء(۱۹۳\۱۲)_
[7] ) كتاب الثقات لإبن حبان (۱۷۳\۱)تهذيب الكمال(۱۹۴\۶و ۱۹۵)وتذكرة الحفاظ(۴۷۶\۲) وسير أعلام النبلاء(۱۹۵\۱۲ )-
[8] ) تهذيب الكمال(۷۰\۵و ۷۱) وسيرأعلام النبلاء(۴۳۹\۱و ۴۴۰ )وغيره)-

د امام ابو حنيفه، سفيان ثوري، اعمش، مسعر بن کدام، يحي بن سعيد انصاري او دهشام بن عروه رحمهم الله وغيره نه روايت کوي.[1]

ددوی نه اسحاق بن راهويه، اسحاق کوسج، حسن بن الصباح البزار، ابوخيثمه زهير بن حرب او احمد بن الفرات رحمهم الله وغيره ډيرو د اهل علمو حديثونه روايت کړي دي.[2]

امام احمد رحمه الله فرمائي. «رجل صالح ليس به بأس»[3]

امام يحي بن معين رحمه الله فرمائي. «ثقة»[4]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائي. «صدوق»[5]

ابن حبان[6] او ابن شاهين[7] رحمهما الله دوی لره په «ثقاتو» کښې ذکر کړې دې.

ابن قانع رحمه الله فرمائي. «كان ثقة»[8]

حافظ ذهبي رحمه الله هم دوی لره ‹‹ثقه›› ګرځولې دې.[9]

محمد بن سعد رحمه الله فرمائي. «وكان ثقة كثير الحديث»[10]

دغه شان ابن خلفون او عجلي رحمهما الله هم دوی لره ثقه ګرځولې دې.[11]

په ۲۰۶هـ يا ۲۰۷هـ کښې تقريباً ۹۷ کالو په عمر کښې ددوی وفات اوشو.[12] رحمه الله تعالى رحمة واسعة_

---

[1] تهذيب الكمال(٥/٧١) وسير أعلام النبلاء(١٠/٤٤))-

[2] تهذيب الكمال٥/٧١و٧٢)وسيرأعلام النبلاء(١٩٠٤٤)_

[3] تهذيب الكمال(٥/٧٢) وسيرأعلام النبلاء(١٠/٤٤) وتهذيب التهذيب(١٢/١٠)_

[4] تهذيب الكمال(٥/٧٣) وتهذيب التهذيب(١٢/١٠) وخلاصة الخزرجي(٤٦٣)_

[5] تهذيب الكمال(٥/٧٣) وسيرأعلام النبلاء(١٠/٤٤) وتهذيب التهذيب(١٢/١٠)_

[6] كتاب الثقات(٦/١٤١)_

[7] وتهذيب التهذيب(تهذيب التهذيب(١٢/١٠)_

[8] پورتنئ حواله.)-

[9] الكاشف للذهبي(١/٢٩٥)رقم(٧٩٦))-

[10] طبقات إبن سعد (٦/٣٩٦)-

[11] تعليقات على تهذيب الكمال(٥/٧٣)_

[12] تهذيب الكمال(٥/٧٣) وسير أعلام النبلاء(١٠/٤٤، ٤٤١) وتهذيب التهذيب(١٢/١٠) والكاشف للذهبي(١/٢٩٥)كتاب الثقات لابن حبان (٦/١٤١) تقريب التهذيب(ص١٤١) رقم(٩٤٨) والخلاصة(ص٦٣))-

③ ابوالعميس: دا ابوالعميس عتبه بن عبدالله بن عتبه بن عبدالله بن مسعود الهذلي المسعودي الكوفي دي.(1)

د امام عامر بن شراحيل شعبي، عبدالله بن عبدالله بن جبر انصاري، ابن ابی مليکه، قيس بن مسلم جدلي او د ابو اسحاق سبيعي رحمهم الله وغيره نه ئې حديث حاصل کړو.(2)

ددوی نه جعفر بن عون، حفص بن غياث، ابو اسامه، سفيان بن عيينه، شعبه، ابو نعيم او وکيع بن الجراح رحمهم الله روايت کړې دې.(3)

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی: «ثقة».(4)

امام يحي بن معين رحمه الله هم دوی لره ،، ثقه،، ګرځولې دې.(5)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی: «صالح الحديث».(6)

ابن سعد رحمه الله فرمائی: «وكان ثقة».(7)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: «ثقة».(8)

امام عجلي رحمه الله فرمائی: «كوفي ثقة».(9)

ابن حبان رحمه الله هم دوی لره په ،، كتاب الثقات،، کښې ذکر کړې دې.(10)

حافظ ذهبي رحمه الله په ،، تهذيب،، کښې ليکلی دی: «موته قريب من موت الأعمش» او د امام اعمش رحمه الله وفات په ۱۴۸ه کښې شوې دې. او علامه سراج الدين ابن الملقن رحمه الله فرمائيلی دی چه ددوی وفات په ۱۲۰ه کښې شوې دې.(11) والله أعلم، رحمه الله تعالى رحمة واسعة_

④ قيس بن مسلم: دا ابو عمرو قيس بن مسلم جدلي(12) عدواني کوفي دې.(13)

---

(1) تهذيب الكمال(۳۰۹\۱۹)_

(2) تهذيب الكمال(۳۰۹\۱۹و۳۱۰) سير أعلام النبلاء(۲۰۱\۷)_

(3) تهذيب الكمال(۳۱۰\۱۹) سير أعلام النبلاء(۲۰۱\۷)_

(4) تهذيب الكمال(۳۱۰\۱۹) سير أعلام النبلاء(۲۰۱\۷)_

(5) پورتنۍ حواله.)-

(6) پورتنۍ حواله. )-

(7) الطبقات لابن سعد( ۳۶۶\۶)-

(8) تقريب التهذيب( ص.۳۸۱) رقم ۴۴۳۲)_

(9) تعليقات على تهذيب الكمال( ۳۱۰\۱۹)_

(10) كتاب الثقات(۲۶۹\۷))-

(11) اوګورئ حاشيه دالکاشف لسبط ابن العجمي رحمه الله (۱۱ \ ۶۹۶)رقم(۳۶۶۴))-

(12) دا جديله قبيلې طرف ته نسبت دې. اوګورئ: الأنساب للسمعاني(۳۰\۱۲، ۳۱))-

(13) تهذيب الكمال( ۸۱\۲۴))-

دا د حضرت طارق بن شهاب رضي الله عنه نه علاوه د سعيد بن جبير، مجاهد، عبدالرحمن بن ابى ليلى، حسن بن محمد الحنفيه او د ابراهيم بن جرير بن عبدالله بجلى رحمهم الله نه د حديثو روايت كوى (١)

ددوى نه په احاديثو اوريدونكو كښې سفيان ثورى، امام ابوحنيفه، مسعر بن كدام، ابوالعميس، امام اعمش او ابراهيم بن محمد بن المنتشر رحمهم الله وغيره دى (٢)

امام احمد رحمه الله فرمائى «ثقة في الحديث» (٣)

امام يحيى بن معين او ابو حاتم رحمهما الله فرمائيلى دى، «ثقة»، (٤)

امام نسائى رحمه الله فرمائى «ثقة وكان يرى الارجاء» (٥)

امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائى «وكان ثقة ثبتا له حديث صالح» (٦)

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى «ثبت» (٧)

ابن حبان رحمه الله دوى لره په ،، كتاب الثقات ،، كښې ذكر كړې دې (٨)

امام عجلى رحمه الله فرمائى «كوفي ثقة» (٩)

امام يعقوب بن سفيان رحمه الله فرمائى «ثقة ثقة وكان مرجئاً» (١٠)

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائى «كان مرجئاً» (١١)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى «ثقة رمي بالإرجاء» (١٢)

ددوى وفات په ١٢٠ هـ كښې اوشو (١٣) رحمه الله تعالى رحمة واسعةً ـ

---

(١) تهذيب الكمال (٢٤\٨٢) )-

(٢) پورتنئ حوالې.)-

(٣) تهذيب المكمال (٢٤\٨٢) وتهذيب التهذيب (٨\٤٠٣) ـ

(٤) تهذيب الكمال (٢٤\٨٣) وتهذيب التهذيب (٨\٤٠٤))-

(٥) پورتنئ حواله.)-

(٦) طبقات إبن سعد (ج٦\٣١٧) )-

(٧) الكاشف (١٢\١٤١) رقم (٤٦١٦))-

(٨) كتاب الثقات لإبن حبان (ج٧\٣٢٦) )-

(٩) وتهذيب التهذيب (ج٨\٤٠٤) )-

(١٠) پورتنئ حواله.)-

(١١) تهذيب الكمال (٢٤\٨٢) وتهذيب التهذيب (٨\٤٠٤) وسير أعلام النبلاء (٥\١٦٥))-

(١٢) تقريب التهذيب (٤٥٨) رقم (٥٥٩١))-

(١٣) الطبقات لإبن سعد (٦\٣١٧) وكتاب الثقات لإبن حبان (٧\٣٢٦) و تهذيب الكمال (٢٤\٨٣) وغيره )-

تنبيه دا خبره په ذهن كښې كينول پكار دى.چه د صاحب بدعت روايت هغه مردود وى.كله چه هغه داعي وى.دلته د قيس بن مسلم په باره كښې تقريباً دټولو ائمه رجال اتفاق دې.چه هغه ثقه وو.البته بعضو حضراتو دوى براه راست ،، مرجى،، ګرځولې دې.او بعضو حضراتو د ،، رمى بالإرجاء،، تعبير اختيار كړې دې.خو يوكس هم دوى لره په ((دعاة الى البدعة)) كښې نه دې شمار كړې.والله اعلم.

⑤ **طارق بن شهاب:** دا حضرت طارق بن شهاب بن عبد شمس كوفى بجلى احمسى رضي الله عنه دې.ابو عبدالله ددوى كنيت دې.(١)

دوى د خلفاءِ اربعه نه علاوه د حضرت بلال، حضرت حذيفه، حضرت خالد بن الوليد، حضرت رافع بن عمرو طائي، حضرت سعد بن ابى وقاص، حضرت سلمان فارسى، حضرت كعب بن عجره، حضرت مقداد بن الاسود، حضرت ابو سعيد خدرى، او د حضرت ابو موسى اشعرى رضي الله عنهم نه روايت حديث كړې دې.(٢)

ددوى نه روايت كونكوكښې ابراهيم بن مهاجر، اسماعيل بن ابى خالد، سليمان احول، سماك بن حرب او قيس بن مسلم جدلى رحمهم الله وغيره حضرات تابعين دى.(٣)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى.((ليست له صحبة))(٤)

حالانكه حقيقت دا دې.چه دوى د جاهليت زمانه هم موندلې ده.او د اسلام زمانه هم. د حضوراكرم صلى الله عليه وسلم زيارت ئې كړې دې.خو د هغوى(صلى الله عليه وسلم) نه هيڅ حديث نه دې اوريدلې.نو كوم روايتونه چه ددوى د حضوراكرم صلى الله عليه وسلم نه براه راست رانقل دى.هغه د صحابو د مراسيلو د قبيل ځنې دې.(٥)چه دا بالاتفاق مقبول دى.(كما مر غير مرة)

پخپله فرمائى.((رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم وغزوت فى خلافة أبى بكر فى السرايا وغيرها))(٦)

په يو بل طريق كښې دى.((وغزوت فى خلافة أبى بكر وعمر، بضعاً و أربعين، بين غزوة وسرية))(٧)

دغه شان ددوى نه نقل دى.((قدم وفد بجيلة على النبى صلى الله عليه وسلم فقال: ابدأ بالأحمسيين، ودعالهم))(٨)

---

١) تهذيب الكمال(٣٤١\١٣)وغيره)-

٢) تهذيب الكمال(٣٤٢\١٣) وتهذيب الأسماء واللغات للنوى(١\ ٢٥١) طبقات إبن سعد (٦\٦٦))-

٣) تهذيب الكمال(٣٤٢\١٣) وتهذيب التهذيب(٥\٣))-

٤) الاصابة(٢٠٢٢٠١) وتهذيب التهذيب(٥\٤))-

٥) اوګورئ: تهذيب الكمال(٣٤١\١٣) والإصابة(ج٢.ص٢٢٠) وتهذيب التهذيب(٥\٤)وتهذيب الأسماء واللغات(١٢٥١\١) وخلاصة الخزرجى(ص١٧٨))-

٦) مسند أبى داؤد الطيالسى(ص١٨٠)رقم(١٢٨٠) )-

٧) طبقات إبن سعد (ج٦\٦٦) )-

٨) مسند أبى داؤد الطيالسى(ص١٨١) )-

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائي: «قد رأى النبي ﷺ ولم يسمع منه شيئاً»[1]
امام يحيٰ بن معين او عجلي رحمهما الله دوی ،، ثقه،، گرځولي دي.[2]
ددوی وفات په ۸۲هـ یا ۸۳هـ یا ۸۴هـ کښې شوې دې.بعضو حضراتو ۱۲۳هـ سن وفات نقل کړې دې.چه دا صحیح نه دې.[3]
تنبیه دا وضاحت ضروری دې.چه کوم سړی ته د صحابی کیدو شرف حاصل شی. هغه ته دچا دتعدیل ضرورت نه وی.ځکه چه الله تعالی پخپله هغه عادل گرځولي دې.[4]
ولته د ابن معین او عجلی رحمهما الله قول د هغه مفروضې په صورت کښې نقل کړې شوې دې.کوم چه ابو حاتم رحمه الله فرمائي.چه دوی ته د ،، صحبت،، شرف حاصل نه دې.اگرچه حقیقت دا دې.چه پخپله ابوحاتم رحمه الله دا خبره منی.چه د حضرت طارق بن شهاب رضي الله عنه نه صراحت سره نقل دی.چه دوی د حضوراکرم ﷺ زیارت کړې دې.[5] والله أعلم.

⑥ عمر بن الخطاب: دا حضرت عمر بن الخطاب بن نفیل بن عبدالعزی عدوی دې.
ابوحفص ددوی کنیت دې.
دوی په فقهاو صحابو کښې یو فقیه، ثانی الخلفاء الراشدین، او د عشره مبشره ځنې دې.په خلفاو کښې دټولو نه مخکښې دوی ته د ،، امیرالمؤمنین،، لقب ورکړې شو.
دوی د څلویښتو کسانو نه روستو په اسلام مشرف شو.[6] ددوی په اسلام راوړلو سره اسلام او اهل اسلام ته تقویت حاصل شو.د بدر نه واخله په ټولو غزواتو او مشاهدو کښې شریک پاتې شوې دې.د حضرت ابوبکر رضي الله عنه نه پس دوی خلیفه منتخب شو.ددوی په عهد ( زمانه خلافت) کښې ډیر ملکونه فتح شو.
د ذوالحجه ۲۳هـ په آخر آخر کښې دوی باندې ابولؤلؤه مجوسی وار اوکړو.چه ددې په نتیجه کښې دوی شهید شو.او په محرم ۲۴هـ کښې ددوی تدفین په حجره مبارکه کښې د حضوراکرم ﷺ او د خپل پیشوا حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په اړخ کښې عمل کښې راغې.

---

[1] تهذيب الكمال(١٣/٣٤٢)وتهذيب التهذيب(ج٥/٤) والإصابة(ج٢.ص٢٢٠))-
[2] تهذيب الكمال(١١/٣٤٢)وتهذيب التهذيب(ج٥/٤) )-
[3] اوگورئ: الثقات لابن حبان (ج٣/٢٠١) تهذيب الكمال(٣٤٣/١٣)وتهذيب التهذيب(ج٥/٤) تقريب التهذيب(ص٢٨١) وخلاصة الخزرجي(ص١٧٨) وعمدة القاري(ج١ص٢٦٢))-
[4] انظر الفصل الثالث في بيان حال الصحابة من العدالة. من مقدمة الإصابة(ج١.ص٩. ١٢))-
[5] اوگورئ: الإصابة (ج٢.ص٢٢٠) تهذيب الكمال(٥/٤) )-
[6] كذا في خلاصة الخزرجي(ص٢٨٢)و قيل: بعد أربعين رجلاً وعشر نسوة. وقيل بعد خمسة وأربعين رجلاً و إحدى عشرة إمرأة. كذا في صفة الصفوة لابن الجوزي(ج١.ص٧٢٣. ٢٧٤))-

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائي «كان إسلام عمر فتحاً، وكانت هجرته نصراً، وكانت إمارته رحمة»[1]

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه چه د تدفين نه فارغ شو نو وې فرمائيل «ذهب اليوم بتسعة أعشار العلم» يعنې حضرت عمر رضي الله عنه د علم په لسو حصو کښې نهه حصې خپل ځان سره يوړلې ددوی نه تقريباً پنځه سوه او يوکم ځلويښت حديثونه نقل دی چه په دې کښې لس متفق عليه دی بيا په نهه حديثونو کښې امام بخاری رحمه الله متفرد دې او په پنځلسو احاديثو کښې امام مسلم رحمه الله متفرد دې (۲)

ددوی فضائل او مناقب بې شماره ده (۳) رضی الله عنه وأرضاه_

**سَمِعَ جَعْفَرَ بْنَ عَوْنٍ:** دا هم دغه شان يعنی ،، سمع جعفر بن عون،، ليکلې کيږی خو په وئيلو کښې ،،أنه سمع.....،، وئيلې کيږی د محدثينو عادت دې چه په داسې موقعه باندې کتابتاً ،،أنه،، حذف کوی البته نطقاً او قراءة (په وئيلو کښې) دا بنکاره کوی لکه څنګه چه عام طور د ،،حدثنا،، او ،،أخبرنا،، نه وړاندې ،،قال،، کتابتاً حذف کوی خو نطقاً ددې قراءت ضرور کوی. (۴)

**أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْيَهُودِ قَالَ لَهُ:** يعنی په يهودو کښې يو سړی حضرت عمر رضي الله عنه ته اووئيل

مسدد رحمه الله پخپل مسند کښې. امام طبرانی رحمه الله په معجم اوسط کښې او ابن جرير طبری رحمه الله پخپل تفسير (۵) کښې دا روايت نقل کړې دې ددوی په طريق کښې ددې سړی د نوم تصريح موجود ده چه دا کعب احبار وو. (۶)

خو بيا اشکال کيږی چه امام بخاری رحمه الله هم دا روايت په کتاب المغازی کښې نقل کړې دې په هغې کښې ذکر دی «أن أناساً من اليهود....» (۷) دغه شان دوی چه په کتاب التفسير کښې کوم روايت نقل کړې دې هغې کښې ،،قالت اليهود،، الفاظ دی. (۸) نو د حديث باب او د

---

[1]) طبقات إبن سعد (ج۳\۲۷۰) )-

[2]) دا ټول تفصيلات د خلاصة الخزرجی (ج۱.ص۲۸۲) نه ماخوذ دی )-

[3]) ددوی تفصيلی حالاتو دپاره اوګورئ: طبقات إبن سعد (ج۳\۲۶۵-۳۷۶) وحلية الأولياء (۱\۳۸-۵۵) وصفة الصفوة (۱\۲۶۸-۲۹۳) و تهذيب الأسماء واللغات (ج۲.ص۳-۱۵) تهذيب الكمال (۲۱\۳۱۶-۳۲۶) وتهذيب التهذيب (ج۷\۴۳۸-۴۴۱) وخلاصة الخزرجی (ص۲۸۲))-

[4]) فتح الباری (۱\۱۰۵) و عمدة القاری (۱\۲۶۳) )-

[5]) جامع البيان فی تفسير القرآن (۶\۵۳-۵۴)

[6]) فتح الباری (۱\۱۰۵) و عمدة القاری (۱\۲۹۳) ) _

[7]) صحيح البخاری. كتاب المغازی. باب حجة الوداع: رقم (۴۴۰۷))_

[8]) صحيح البخاری. كتاب التفسير. سورة المائدة. باب «الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ ..... الخ» رقم: (۴۶۰۹) )-

مغازي او تفسير روايت په مينځ كښې تعارض راځي.

نو جواب دا دې چه ددې روايتونو په مينځ كښې هيڅ تعارض نشته.ځكه چه تطبيق ممكن دې.ددې صورت دا دې.چه سوال كونكې خو په حقيقت كښې كعب احبار وو.البته ددې سوال كولو په وخت دغه وخت د يهودو يو جماعت وو.چه د هغوى په نمائندګۍ كولو سره دوى دا خبره كړې وه.په حديث كښې چه «أن رجلا من اليهود» ونيلې شوى دى.په دې كښې حقيقي نسبت قائل طرف ته دې.او په باقي دواړو روايتونو كښې چه د قول نسبت ،، يهودو،، طرف ته كوم شوې دې.هغه په دې وجه چه هم دغه خلقو خبره كول غوښتل.او دهغوى نمائندګي كعب احبار كوله.[1] والله أعلم۔

**قوله** يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ آيَةٌ فِي كِتَابِكُمْ تَقْرَءُونَهَا لَوْ عَلَيْنَا مَعْشَرَ الْيَهُودِ نَزَلَتْ لَاتَّخَذْنَا ذَلِكَ الْيَوْمَ عِيدًا قَالَ أَيُّ آيَةٍ قَالَ ﴿الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا﴾: يعنى اې اميرالمؤمنين! ستاسو په كتاب ( قرآن كريم) كښې يو داسې ايت دې.كه دا ايت په مونږه يهودو باندې نازل شوې وې.نو دغه ورځ به مونږه اختر جوړ كړې وو.حضرت عمر رضي الله عنه تپوس اوكړو.هغه كوم يو آيت دې؟ نو وې ونيل. ﴿الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ.....﴾

مطلب دا دې.چه په دې آيت كښې الله جل جلاله دې امت ته ډير لوئې اعزاز وركړو.او په ده باندې ئې د خپل خاص انعام ذكر اوفرمائيلو.يو خو دا چه ستاسو دين ئې مكمل كړو.په دې طريقه ئې د دين اسلام د كمال زيرې وركړو.دويم ئې د نعمت د اتمام ذكر اوكړو.چه په تاسو باندې مونږه خپل نعمت مكمل كړو.او بيا ئې دټولو نه آخر كښې دا اوفرمائيل. ﴿وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا﴾ يعنى ستا په دين اسلام سره زه راضي يم.دا زما خوښ دين دې.ګويا په ټولو آسماني دينونو كښې د ين اسلامي الله تعالى منتخب كړې دې.دا ډومره لوئې بشارت چه په كومه ورځ ملاو شوې دې.كه مونږ ته داسې بشارت ملاو شوې وې.نو مونږه به د دغه ورځې دومره تعظيم كولو.چه ددې ورځې نه به مو اختر جوړ كړې وې.

**قوله**: قَالَ عُمَرُ قَدْ عَرَفْنَا ذَلِكَ الْيَوْمَ وَالْمَكَانَ الَّذِي نَزَلَتْ فِيهِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ قَائِمٌ بِعَرَفَةَ يَوْمَ جُمُعَةٍ: حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل.مونږ د دغه ورځې او دغه مقام نه ښه خبر يو.چه په كومه ورځ او په كوم مقام باندې به نبى كريم صلى الله عليه وسلم باندې دا آيت نازل شو.په دغه وخت هغوى په عرفات كښې ولاړ وو.او د جمعې ورځ وه.

ايا د حضرت عمر رضي الله عنه جواب، سوال سره مطابقت لرى په ښكاره د حضرت عمر رضي الله عنه جواب د سائل سوال سره مطابقت نه لرى.ځكه چه سائل پخپل سوال كښې ونيلي وو.چه مونږ به دا ورځ اختر جوړه كړې وه.حالانكه حضرت عمر رضي الله عنه په جواب كښې د زمان او مكان

---

[1] فتح الباري ... (عمدة القاري(٢٦٣/١))۔

معلوميدو خبره.ذكر كړې ده.په جواب كښې دا وئيل پكار وو.چه مونږ ته هغه وخت او هغه مقام معلوم دې.او زمونږ دپاره هغه ورځ د اختر ورځ ده؟
ددې جواب دا دې.چه په اصل كښې د حضرت عمر رضي الله عنه د جواب مطلب دا دې.چه دجمعې ورځ او د عرفې ورځ زمونږ په نيز اختر شمارلې كيږي.په دې وجه مونږ هم په دې آيت باندې د خوشحالۍ اظهار كوو.په حديث باب كښې چه د حضرت عمر رضي الله عنه كوم جواب منقول دې. هغه مختصر دې.حالانكه د ،،إسحق عن قبيصه،، په طريق سره چه كوم روايت منقول دې.هغې كښې تفصيلى جواب موجود دې.چه حضرت عمر رضي الله عنه جواب وركړو.«قد علمت اليوم الذى انزلت فيه ، والمكان الذى انزلت فيه يوم جمعة ويوم عرفة بحمد الله لنا عيد» [1] دغه شان په دې طريق كښې حافظ ابن حجر رحمه الله د طبرى او طبرانى په حوالې سره الفاظ نقل كړى دى.«وهمالنا عيدان» [2] دغه شان امام ترمذى رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت نقل كړې دې.«قرأ ابن عباس: ﴿اليوم أكملت لكم دينكم وأتممت عليكم نعمتي ورضيت لكم الإسلام دينا﴾ وعنده يهودى فقال:لو أنزلت هذه الآية علينا لاتخذنا يومها عيداً، فقال ابن عباس: فإنها نزلت فى يوم عيدين: فى يوم الجمعة ويوم عرفة» [3] يعنى حضرت ابن عباس رضي الله عنهما جواب وركړو.چه دا آيت خو په هغه ورځ نازل شوې دى.چه زمونږ يو خو څه چه دوه اخترونه وو. جمعه هم وه.او عرفه هم وه.چه دا تفصيلى روايات مخې ته وى.نو په سوال او جواب كښې د عدم مطابقت اشكال ختميږى.

**ورځ د عرفې ئې څنګه اختر اوګرځوله؟** بيا دلته اشكال كيږى.چه ورځ د جمعې اختر ګرځول صحيح دى.ځكه چه دا د هفتې په ورځو كښې د اختر ورځ ده.خو ورځ دعرفې خو د اختر ورځ نه ده.بلكه د اختر ورځ خو يوم النحر ( د قربانۍ ورځ) ده؟
ددې جواب دا دې.چه د عرفې د ورځې نه پس چه كومه ورځ راځى.هغې نه پس متصلاً ورځ د قربانۍ راځى.نو ورځ د قربانۍ د عرفې ورځې سره متصل او ملاو ده.او څه څيز سره چه نزدې او متصل كوم څيز وى.هغې ته هم ددغه څيز حكم وركولې شى.لكه څنګه چه حديث كښې وارد شوى دى.« شهرا عيد لا ينقصان: رمضان و ذوالحجة» [4] ذوالحجه خو ،،مياشت د اختر،، ده.خو رمضان خو، مياشت د اختر، نه ده.د ،،اختر مياشت،، خو د شوال مياشت

---

[1]) تفسير طبرى(٥٣١٦ و ٥٤)

[2]) فتح البارى(١٠٥١١)

[3])جامع ترمذى(١٣٤١٢)، كتاب التفسير،باب ومن سورة المائدة،رقم(٣٠٤٤)

[4]) صحيح البخارى،كتاب الصوم باب: شهرا عيد لاينقصان،رقم(١٩١٢)والصحيح لمسلم(٣٤٩١١) كتاب الصيام، باب معنى قوله ﷺ شهراعيد لا ينقصان، وسنن ابوداؤد، كتاب الصوم، باب الشهر يكون تسعاً وعشرين، رقم(٢٣٢٣)، وجامع الترمذى، كتاب الصوم، باب ماجاء: شهرا عيد لا ينقصان،رقم(٦٩٢) و سنن ابن ماجه، كتاب الصيام، باب ماجاء فى شهرى العيد، رقم(١٦٥٩)

ده په دې حدیث کښې نبی کریم ﷺ رمضان ،، داختر میاشت ،، ځکه ګرځولې ده.ځکه چه اختر ددې سره متصل دې دغه شان ورځ د عرفې چونکه ورځ د نحر سره متصل ده. نو هم دا ورځ د اختر ګرځولې شوې ده. (١)

بیا چونکه د آیت نزول د صحیح روایت مطابق د مازیګر نه پس شوې وو.په دې وجه پخپله ورځ د عرفې اختر جوړه نکړې شوه.ځکه چه د اختر تحقق د اول د ورځې نه کیږی.د آخر د ورځې نه نه کیږی.په دې وجه فقهاء وائی چه «رؤیة الهلال بالنهار للیلة المستقبلة» یعنی د اختر په ورځ ( د زوال نه روستو) که د سپوږمۍ رؤیت متحقق شی.نو دا به د راروانې ورځې سپوږمۍ ګڼړلې شی. (٢)

د عرفې ورځ .د اختر ورځ ګرځولو وجه دا هم کیدې شی.چه ورځ د قربانۍ ورځ د اختر ده.خو د عرفې ورځ هم د خلقو دپاره خصوصاً د حاجیانو دپاره ورځ د اختر ده.ځکه چه په دې ورځ د حج اصل رکن ،، وقوف عرفه،، اداکیږی.د حاجیانو د دعاګانو په برکت سره د خلقو ګناهونه معاف کیږی.د حاجیانو مراتب او درجې اوچتیږی.په دې وجه دا ورځ هم په حقیقت کښې د اختر ورځ ده.(٣)والله اعلم.

# ٣٣ = باب الزكاة من الإسلام

وَقَوْلُهُ عَزَّوَجَلَّ ﴿وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ حُنَفَاءَ وَيُقِيمُوا الصَّلَاةَ وَيُؤْتُوا الزَّكَاةَ وَذَلِكَ دِينُ الْقَيِّمَةِ﴾ البينه:د)

**تیرو شوو بابونو سره ربط** لکه څنګه چه امام بخاری رحمه الله په مخکښو نورو ایمانی شعبو باندې مستقل تراجم قائم کړی دی.او د «الصلاة من الإیمان» او د «الجهاد من الإیمان» تراجم ئې راوړلی دی.هم دغه شان ئې دا ترجمه هم قائم کړې ده. (٤)

ددې نه وړاندې ئې بدنی عبادات ذکرکړی وو.او اوس مالی عبادات ذکر کوی. (٥) بیا د مذکوره ترجمې نه وړاندې امام بخاری رحمه الله «الصلاة من الإیمان» ذکر کړو.او،، صلاة ،، سره متعلق ابواب ئې ذکرکړی دی.او ددې نه پس اوس «الزكاة من الإسلام» ذکرکوی.ځکه چه ،،صلاة وزكاة،، توامین دی.او په قران او حدیث کښې ددې ذکرعام طورباندې یوځائې کیږی. بیا خاص طور باندې ددې باب ما قبل باب«زیادة الإیمان ونقصانه» سره خاص مناسبت دې.

---

(١) فتح الباری(١٠٥|١)

(٢) أنظر عمدة القاری(٢٦٤|١)

(٣) أنظرشرح النووی علی صحیح مسلم(٤٢٠|١٢) کتاب التفسیر . وعمدة القاری(١٢٦٤)

(٤) اوګورئ: فتح الباری(١٠٦|١)

(٥) فضل الباری(٤٩٨|١)، ایضاح البخاری(٣٨١|٤) _

چه وړاندې ښودلی شوی وو چه اعمالو سره ایمان کښې زیادت متحقق کیږی او د اعمالو ترک سره نقصان لازمیږی اوس په مذکوره باب کښې دا بیان کړې شوی دی چه زکاة ادا کول د اسلام جزء دې نوکله چه زکاة اداکیږی نو اسلام به کامل وی او که ددې ادائیګی نه کیږی نو ناقص به وی (۱) والله اعلم

**د ترجمة الباب مقصود** د مذکوره ترجمة الباب مقصود هم اعمال د ایمان جزء ګرځول او د ایمان ترکیب ثابتول دی ګویا امام بخاری رحمه الله په ،،الزکاة من الإسلام،، ونیلو سره دا ښودلې ده چه زکاة په اسلام کښې داخل دې او اسلام او ایمان یو دې نو زکاة په ایمان کښې داخل او ددې شعبه شوه (۲)

دغه شان د مرجئه تردید هم مقصود کیدې شی چه هغوی اعمالو ته هیڅ وقعت او حیثیت نه ورکوی امام بخاری رحمه الله ثابته کړله چه اعمال د دین شعبې او اجزاء دی ددې نه بغیر دین او ایمان ناقص کیږی (۳) والله أعلم

**قوله** ﴿وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ حُنَفَاءَ وَيُقِيمُوا الصَّلَاةَ وَيُؤْتُوا الزَّكَاةَ وَذَٰلِكَ دِينُ الْقَيِّمَةِ﴾: دوی ته دا حکم ورکړې شوې وو چه دوی یکسوئی او اخلاص سره صرف د الله تعالی عبادت اوکړی او د مونځ پابندی اوکړی او زکاة ادا کړی هم دا سیدها او مستحکم دین دې.

﴿وَذَٰلِكَ دِينُ الْقَيِّمَةِ﴾ کښې ﴿الْقَيِّمَةِ﴾ د ،،المستقیمة،، په معنی کښې دې (۴) او دا د ،،الملة،، صفت دې ،،أی دین الملة المستقیمة،، (۵) او د ،،ذالك،، اشاره عبادت خالص د الله دپاره اقامت صلاة او زکاة ورکولو طرف ته ده (۶) معلومه شوه چه دا ټول څیزونه په دین اسلام کښې داخل دی نو د مصنف ترجمه ثابته شوه.

بیا چونکه امام بخاری رحمه الله وړاندې د صلاة مسئله ذکرکړې وه په دې وجه ئې دې آیت کښې صرف ،،زکاة،، باندې ترجمه قائم کړې ده (۷) والله أعلم

---

(۱) عمدة القاری (۱۱/۲۶۴)

(۲) اوګورئ ایضاح البخاری (۳۸۱/٤) و تقریر بخاری شریف (۱٤٧/۱)

(۳) فضل الباری (۱/٤٩٨) و إیضاح البخاری (۳۸۱/٤)

(۴) فتح الباری (۱/۱۰۶) وعمدة القاری (۱/۲۶٤)

(۵) عمدة القاری (۱/۲۶٤)

(۶) پورتنئ حواله

(۷) فتح الباری (۱/۱۰۶) وعمدة القاری (۱/۲۶٤)

۔ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ عَنْ عَمِّهِ أَبِي سُهَيْلِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ سَمِعَ طَلْحَةَ بْنَ عُبَيْدِ اللَّهِ (¹) يَقُولُ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَهْلِ نَجْدٍ ثَائِرَ الرَّأْسِ يُسْمَعُ دَوِيُّ صَوْتِهِ وَلَا يُفْقَهُ مَا يَقُولُ حَتَّى دَنَا فَإِذَا هُوَ يَسْأَلُ عَنْ الْإِسْلَامِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسُ صَلَوَاتٍ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ فَقَالَ هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهَا قَالَ لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصِيَامُ رَمَضَانَ قَالَ هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهُ قَالَ لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ قَالَ وَذَكَرَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الزَّكَاةَ قَالَ هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهَا قَالَ لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ قَالَ فَأَدْبَرَ الرَّجُلُ وَهُوَ يَقُولُ وَاللَّهِ لَا أَزِيدُ عَلَى هَذَا وَلَا أَنْقُصُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْلَحَ إِنْ صَدَقَ [illegible]

## رجال الحديث

① **اسماعيل:** دا ابوعبدالله اسمعيل بن ابی اویس عبدالله بن عبدالله بن اویس بن مالك بن ابی عامر اصبحی مدنی دې.دا د امام مالك رحمه الله خورئي دې ددوی حالات وړاندې د ،، **باب تفاضل أهل الإيمان في الأعمال** ،، لاندې تیر شوی دی.

② **مالك بن انس:** دا امام دارالهجرة مالك ابن انس بن مالك بن ابی عامر بن عمرو اصبحی مدنی دې. ددوی حالات ،، **باب من الدين الفرار من الفتن** ،، لاندې تیر شوی دی.

③ **ابوسهيل بن مالك:** دا ابوسهيل نافع بن مالك بن ابی عامر اصبحی تیمی مدنی دې.د امام مالك رحمه الله تره دې.ددوی حالات هم وړاندې د ،، **باب علامة المنافق** ،، لاندې تیر شوی دی.

④ **ابيه ،،:** دا ابو انس او ابو محمد مالك بن ابی عامر بن عمرو اصبحی مدنی دې. دا د امام مالك رحمه الله نیکه ( د پلار پلار) دې.ددوی حالات هم د ،، **باب علامة المنافق** ،، لاندې تیر شوی دی.

---

(¹) الحديث اخرجه البخاری ايضاً فی فاتحة كتاب الصوم. باب وجوب صوم رمضان. رقم(١٨٩١) وفی كتاب الشهادات. باب كيف يستخلف؟ رقم(٢٦٧٨) وفی كتاب الحيل. باب فی الزكاة و أن لا يفرق بين مجتمع ولا يجمع بين متفرق خشية الصدقة. رقم(٦٩٥٦) و مسلم فی صحيحه (١١/٣٠) فی كتاب الإيمان باب بيان الصلوات التی هی أحد أركان الإسلام. رقم(١٠٩ ، ١١٠) و النسائی فی سننه (١١/٧٩) فی كتاب الصلاة باب كم فرضت فی اليوم والليلة (١١/٢٩٧) و فی كتاب الصيام. باب وجوب الصيام. (١٢/٢٧١) فی كتاب الإيمان وشرائعه. باب الزكاة و أبوداؤد فی سننه. فی كتاب الصلاة باب فرض الصلاة. رقم(٣٩١، ٣٩٢) ـ

⑤ **طلحه بن عبيدالله:** دا مشهور صحابى حضرت طلحه بن عبيدالله بن عثمان بن عمرو بن كعب بن سعد بن تيم بن مره بن كعب بن لوئ بن غالب قرشى تيمى مدنى دې.ابومحمد ددوى كنيت دې.(١)

دوى د هغه لسو خوش نصيبو صحابه كرامو ﷺ څخه دې.كومو ته چه نبى كريم ﷺ د جنت خوشخبرى وركړې وه.د هغه اتو حضراتو څخه دې.چاته چه په اسلام كښې د وړاندې والى سعادت ملاو دې.په هغه پنځو كسانو كښې دې.چاچه د حضرت ابوبكر صديق ﷺ په لاسونو اسلام قبول كړې دې.او د شورى په هغه شپږو كسانو كښې دې.دچا نه چه د رضامندئ په حالت كښې حضوراكرم ﷺ ددې دنيا نه رخصت شو.(٢)

دوى د حضوراكرم ﷺ نه علاوه د حضرت ابوبكر صديق او د حضرت عمر بن الخطاب ﷺ نه روايت كوى.(٣)

ددوى نه په روايت كونكو كښې ددوى د خامنو يحى، موسى، او عيسى نه علاوه سائب بن يزيد، مالك بن اوس بن الحدثان، ابوعثمان نهدى، قيس بن ابى حازم، مالك بن ابى عامر اصبحى، عامر بن شراحيل شعبى، احنف بن قيس. ابو سلمه بن عبدالرحمن بن عوف ﷺ وغيره حضرات دى.(٤)

دوى په غزوهٔ بدر كښې عملاً نه وو شريك شوى.خو حضوراكرم ﷺ دوى ته هم په غنيمت كښې حصه وركړې وه.او د اجر خوشخبرى ئې هم وركړې وه.او د غزوهٔ احد نه واخله په باقى ټولو غزواتو او مشاهدو كښې شريك شوې دې.(٥)

د غزوهٔ احد چه به كله هم ذكر راتلو.نو حضرت ابوبكرصديق ﷺ به ددوى جان نثارئ او قربانيانې يادولې.او فرمائيل به ئې چه((ذاك كله يوم طلحة))(٦)

سخاوت ددوى فطرت جوړ شوې وو.حضوراكرم ﷺ دوى په ،،طلحة الخير، طلحة الجود،، او ،،طلحة الفياض،، نوم سره ياد كړى دى.(٧)

---

(١) تهذيب الأسماء واللغات(١\٢٥١، ٢٥٢) وتهذيب الكمال(١٣، ٤١٢) وغيره_
(٢) حواله بالا._
(٣) تهذيب الكمال(١٣\٤١٣) _
(٤) تهذيب الكمال(١٣\٤١٣) و تهذيب الأسماء واللغات(١\٢٥٢) و سيرأعلام النبلاء(١\٢٤) _
(٥) تهذيب الأسماء واللغات(١\٢٥٢) _
(٦) مسند أبى داؤد الطيالسى(ص٣) أحاديث أبى بكر الصديق ﷺ)_
(٧) عن موسى بن طلحة عن أبيه قال:لما كان يوم أحد سماه النبى ﷺ طلحة الخير. وفى غزوة ذى العشيرة، طلحة الفياض. ويوم خيبر: طلحة الجود. سيرأعلام النبلاء(ص٣٠) _

قبیصه بن جابر رحمه الله فرمائي «صحبت طلحة، فما رأيت أعطى لجزيل مال من غير مسألة منه»(١) يعنى زه د حضرت طلحه رضي الله عنه په صحبت کښې پاتې شوی یم ما بغیر د سوال نه ددوی نه زیات خوب ورکونکې نه دی کتلې.

حضور کریم ﷺ فرمائیلې دی «أوجب طلحة»(٢) او هم دوی فرمائیلی دی «طلحة ممن قضى نحبه»(٣)

یو ځل حضور اکرم ﷺ حضرت ابوبکر، حضرت عمر، حضرت عثمان، حضرت علی، حضرت طلحه او حضرت زبیر رضي الله عنهم په حراء غر باندې اوختل هلته یو ګټ حرکت شروع کړو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل «اهدأ، إنما عليك نبي أو صديق أو شهيد»(٤)

د حضرت طلحه بن عبیدالله رضي الله عنه نه اته دیرش حدیثونه نقل دی چه په دې کښې دوه حدیثونه متفق علیه دی او په دوو حدیثونو کښې امام بخاری رحمه الله متفرد دې او په دریو حدیثونو کښې امام مسلم رحمه الله متفرد دې (٥)

د جمل واقعې په موقعه باندې په لسم د جمادی الاولی ۳۶ھ کښې دوی شهید شو (٦)

ددوی د تدفین نه څه دیرش کاله پس ددوی لور خپل پلار په خوب کښې اوکتلو چه هغه د زمکې د لوندوالی شکایت کوی دغه وخت قبر اوکنستلې شو او د هغه ځائې نه بل ځائې ته منتقل کړې شو او دفن کړې شو ددوی د سر د ویختو هغه حصه کومې سره چه د زمکې لوندوالې لګیدلې وو معمولی شان متاثر شوې وه باقی هیڅ قسمه تغیر ئې په پوره بدن کښې نه وو راغلې (٧) رضی الله عنه وأرضاه ـ

**قوله جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَهْلِ نَجْدٍ ثَائِرَ الرَّأْسِ يُسْمَعُ دَوِيُّ صَوْتِهِ وَلَا يُفْقَهُ مَا يَقُولُ حَتَّى دَنَا فَإِذَا هُوَ يَسْأَلُ عَنِ الْإِسْلَامِ:** د اهل نجد نه یو سړې ګډ وډ ویختو والا د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو ددوی د اواز بنبناهټ خو اوریدې شو خو دغه سړی څه وئیل هیڅ پوهه کښې نه راتلل تردې چه هغه نزدې شو نو هغه د اسلام په باره کښې د نبی کریم ﷺ نه څه تپوس کولو

---

(١) سیر أعلام النبلاء (٣٠/١) ـ

(٢) جامع ترمذی، کتاب المناقب، باب مناقب طلحة بن عبیدالله رضي الله عنه رقم (٣٧٣٨) ـ

(٣) جامع ترمذی، کتاب المناقب، باب مناقب طلحة بن عبیدالله رضي الله عنه رقم (٣٧٤٠) ـ

(٤) جامع ترمذی، کتاب المناقب، باب مناقب عثمان بن عفان رضي الله عنه رقم (٣٦٩٦) ـ

(٥) تهذيب الأسماء واللغات (٢٥٢/١) وخلاصة الخزرجي (ص ١٨٠) ـ

(٦) تهذيب الأسماء (٢٥٢/١) خلاصة الخزرجي (ص ١٨٠) ـ

(٧) تهذيب الأسماء (٢٥٢/١) و قيل إن الذى رأى فى المنام رجل أتى ابنته عائشة. و أخبرها بما رأى. والله أعلم. انظر تهذيب الكمال (٤٢٣/١٣) ـ

د ،،رجل،، نه څوک مراد دي؟ په حدیث باب کښې چه د کوم ،، رجل مبهم،، ذکر راغلې دې د هغه په باره کښې ابن عبدالبر، ابن بطال، قاضي عیاض، ابن العربي او منذري رحمهم الله فرمائي چه دا ضمام بن ثعلبه دې (۱). علامه سهیلي رحمه الله هم ددې تصریح کړې ده.(۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه ددې حضراتو د قول بنیاد په دې خبره دې چه امام مسلم رحمه الله د حضرت طلحه رضي الله عنه د مذکوره حدیث نه فورا پس د حضرت انس رضي الله عنه حدیث نقل کړې دې چه په دې کښې د ضمام بن ثعلبه قصه مذکور ده.په دواړو حدیثونو کښې یو څو څیزونه مشترك دي.دواړو ځایونو کښې سائل بانديچي دې.دغه شان په آخر کښې «لا أزید علی هذا ولا أنقص» هم دواړو ځایونو کښې وارد شوې دې.(۳)

خو امام قرطبي، شیخ الاسلام سراج الدین بلقیني، امام نووي، حافظ ابن حجر، او علامه عیني رحمهم الله وغیره شارحینو په نیز دا دواړه واقعې جدا جدا دي. د دوی وینا دا ده چه د دواړوحدیثونو سیاق هم مختلف دې.او د دواړو سائلینو سوالات هم متباین دي. (۴)والله أعلم

**قوله: مِنْ أَهْلِ نَجْدٍ:** ،، نجد،، اوچتې زمکې ته وائي.د نجد په مقابله کښې ،،غور،، دې.ښکته زمکې ته وائي.دې ته ،،تهامه،، وائي.دلته د نجد نه د حجاز او عراق په مینځ کښې اوچته حصه مراد ده.(۵)

**قوله: ثَائِرَ الرَّأْسِ:** د ،،ثائر،، لفظ مرفوع هم وئیلې شي.او منصوب هم. که مرفوع وي.نو د ،،رجل،، صفت به ګرځولې شي.ځکه چه اضافت لفظیه دې.په دې وجه دا نکره دې او د ،،رجل،، صفت جوړیدو کښې هیڅ مانع نشته.اوکه منصوب وي.نو دا به د ،،رجل،، نه حال ګرځولې شي.ځکه چه ذوالحال نکره مخصصه ده.په دې وجه دا حال جوړول صحیح دي (۶)

بیا په ،، ثائر الراس،، کښې د ،،راس،، نه یا خو د مبالغې په طور ،،شعر،، مراددې او یا ،،محل،، وئیلو سره حال مراد اخستې شوې دې.ځکه چه ،،راس،، د ویختو راختلو محل دې.(۷)

---

(۱) اوګورئ شرح الزرقاني علی مؤطا الإمام مالك(۳۵۷/۱) جامع الترغیب في الصلاة.و هدی الساري (ص۲۵۰) و أوجز المسالك(۳۲٤/۳) ـ

(۲) الروض الأنف(۳۳۹/۲) قدوم ضمام بن ثعلبة وافدا عن بني سعد بن بکر) ـ

(۳) فتح الباري(۱۰٦/۱) ـ

(٤) اوګورئ: هدی الساري(ص۲۵۰) وشرح الزرقاني (۳۵۷/۱) و أوجزالمسالك(۳۲٤/۳ و۳۲۵) وفتح الباري(۱۰٦/۱) وعمدة القاري(۲٦۷/۱) ـ

(۵) عمدة القاري(۲٦٦/۱) ـ

(٦) عمدة القاري(۲٦٦/۱و۲٦۷) وفتح الباري(۱۰٦/۱) ـ

(۷) فتح الباري(۱۰٦/۱) ـ

**قوله** يُسْمَعُ دَوِيُّ صَوْتِهِ وَلَا يُفْقَهُ مَا يَقُولُ: ..يسمع.. او.. يفقه.. کښې دوه روايتونه دي يو په واحد مذکر غائب مجهول صيغې سره. په دې صورت کښې د..يسمع.. نائب فاعل..دوى صوته.. وى او د..يفقه..نائب فاعل به..مايقول.. وى.دويم روايت د جمع متكلم معروف صيغې سره دې په دې صورت کښې به ،،دوى صوته،، د ،،نسمع،، مفعول وى او ،،مايقول،،به د ،،نفقه،، مفعول وى په دې دواړو روايتونو کښې د جمع متکلم روايت زيات مشهور دې (١)

،،دَوِيّ،،(بفتح الدال، وكسر الواو، وتشديد الياء التحتانية) ضبط کړې شوې دې البته بعضو حضراتو په ضمې د دال سره هم ضبط کړې دې (٢)

علامه خطابی رحمه الله د ...دوى.. تشريح کولو کښې فرمائى.((صوت مرتفع متكرر لا يفهم)) (٣) يعنى دا ،،دوى،، هغه اوچت آواز دې.چه هغې کښې تکرار وى او په پوهه کښې نه راځى

**قوله** وَلَا يُفْقَهُ مَا يَقُولُ: يعنى بنبناهټ خو اوريدې شو خو هغه څه وائى.هغه خبره په پوهه کښې نه راتلله.دا بانديچې سرې وو.د خپل قوم د طرفه نمائنده جوړ شوې وو او راغلې وو.په ظاهر کښې دا سړې د مخصوصو سوالونو تپوسونو دپاره رالیږلې شوې وو چه ددې زړه (ګوته) ئې لګولې.او راروان وو.چه کوم يو سوال هيرنشى چه د کومو تپوس کول پکار دې.د هغې ټولو تپوس اوکړى.

**قوله** حَتَّى دَنَا: تردې چه هغه نزدې راغې.دا د ،،لايفقه،، غايت دې.يعنى دده خبره په پوهه کښې نه راتله.تردې چه هغه نزدې راغې.نو دده خبره په پوهه کښې راغله.

**قوله** فَإِذَا هُوَ يَسْأَلُ عَنِ الْإِسْلَامِ: نوهغه د اسلام متعلق سوال کولو.

علامه کرمانى رحمه الله فرمائى.چه د اسلام نه مراد شرائع او احکام داسلام دى.نو د ،،شهادتين،، ذکر ئې ځکه اونکړو چه هغوى ته معلومه وه.چه دا سړې د شرائع اسلام په باره کښې تپوس کول غوښتل.(٤)

او فرمائى.دا احتمال هم شته.چه ددې سړى سوال حقيقت داسلام سره متعلق وى.په دې صورت کښې د..شهادتين.. ذکرکول پکار وو.نو ددې تاويل دا کيدې شى.چه ممکن ده.د ..شهادتينو.. دوى ذکر کړې وى.خو حضرت طلحه رضى الله عنه چونکه لرې وو.ځکه ئې اوريدلې نه

---

١) فتح البارى(١/١٠٦). وعمدة القارى(١/٢٦٧) ـ
٢) عمدة القارى(١/٢٦٦)وفتح البارى(١/١٠٦) ـ
٣) عمدة القارى(١/٢٦٦)وفتح البارى(١/١٠٦)-
٤) شرح الكرمانى(١/١٨١) ـ

وی حالانکه دا هم ممکن ده چه د .. شهادتینو.. د شهرت په وجه ئې د نقل کولو ضرورت نه وی گڼړلې (١)

خو علامه عینی رحمه الله په دې باندې اشکال کړې دې او فرمائیلی ئې دی که د حقیقت داسلام په باره کښې سوال وې نو د .. شهادتینو.. ذکر به خامخا وو. ترکومې پورې چه د حضرت طلحه رضی الله عنه ددې جزء د نه اوریدو یا د ضروری نه گڼړلو تعلق دې نو دا ډیره لرې (خبره) ده او د رسول الله ﷺ یو صحابی طرف ته بې دخه وجې د تقصیر (کوتاهئ) نسبت کول دی.حالانکه دوی ټولو حضراتو دا معلومه ده چه د رسول کریم ﷺ د حدیث رسولو څومره اهمیت دې او په څومره قدرې په دې باندې اجر و ثواب مرتب کیږی (٢)

حقیقت دا دې چه علامه کرمانی رحمه الله کوم احتمال ذکر کړې دی.ددې امکان ضرور شته خو اقرب هغه خبره ده.کومه چه علامه عینی رحمه الله فرمائی چه اصل سوال د اسلام د شرائعو او احکامو متعلق وه والله اعلم

**قوله فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسُ صَلَوَاتٍ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ:** نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو.چه په شپه او ورځ کښې پنځه مونځونه د شرائع اسلام ځنې دی.

علامه عینی رحمه الله فرمائی.چه په ،، خمس صلوات،، باندې رفع، نصب، جر درې واړه اعراب ونیلې کیدې شی.

رفع ځکه چه دا د مبتداء محذوف دپاره خبر واقع دې.یعنی ،،هی خمس صلوات،، یا ،،شرائع الإسلام خمس صلوات،، دا هم ممکن ده.چه دخبر مخذوف دپاره مبتداء اوگرځولې شی یعنی ،،من شرائع الإسلام خمس صلوات،،.

دنصب ونیلو وجه دا کیدې شی.چه د ،،خذ،، یا ،،هاك،، یا ددې پشان د یو فعل دپاره مفعول اوگرځولې شی

او دجر ونیلو صورت به دا وی چه په ،، فإذا هو يسأل عن الإسلام،، کښې کوم ،،الإسلام،، دې ددې نه بدل اوگرځولې شی.هسې هم دلته د ،،خمس صلوات،، نه وړاندې د ،،إقامة،، لفظ محذوف دې.چه ددې په وجه حقیقت کښې ټولو صورتونو کښې ،، خمس صلوات،، د مضاف الیه کیدو په وجه حالت جری کښې دې (٣)

---

١) پورتنۍ حواله.-

٢) عمدة القاری(١١/٢٦٧) -

٣) عمدة القاری(١١/٢٦٧) -

خو د بدل جوړولو صورت صحيح نه معلوميږى ځكه چه ملا على قارى رحمه الله فرمائى چه ① رومبى خو روايت سره ددې تائيد نه كيږى لكه څومره چه هم تصحيح شده نسخې دى په هغې كښې يوه كښې هم د جر روايت نشته ② دويمه خبره دا ده چه بدل او مبدل منه دواړه د يو سړى په كلام كښې وى په جدا جدا كلام كښې نه وى حالانكه دلته ،، فإذا هو يسأل عن الإسلام،، د راوى كلام دې او ،، خمس صلوات،، د نبى كريم ﷺ كلام دې. () والله اعلم.

**قوله فَقَالَ هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهَا قَالَ لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ:** دغه سړى اووئيل چه ما باندې ددې پنځو مونځو نه علاوه نور هم څه فرض شته؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل نشته خو كه ته نفل كول غواړې نو كولې شى.

دلته به د دوو مسئلو تحقيق كيږى. يو دا چه وتر واجب دى او كه نه؟ دويمه مسئله دا ده چه د نفل مونځ شروع كولو نه پس ددې پوره كول واجب دى او كه نه؟

**د وتر د وجوب بحث** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى د حديث باب نه معلوميږى چه په شپه ورځ كښې صرف پنځه مونځونه فرض دى. نو دا حديث د هغه حضراتو خلاف دې څوك چه وتر. يا د فجر دوه ركعتونه يا صلاة الضحى يا د اختر مونځ يا د ماښام نه روستو دوو ركعتونو ته واجب وائى. ()

احناف د وتر د وجوب قائل دى.

د شوافعو استدلال د حديث باب نه دې چه په دې كښې صرف پنځه مونځونه فرض ګرځولى شوى دى. كه وتر ته واجب اووئيلې شى نو شپږ مونځونه به شى.

احناف ددې جواب وركوى. چه ① ممكن ده. چه دا حديث د وتر د وجوب د حكم نه وړاندې وى. نو ددې نه په عدم وجوب باندې استدلال صحيح نه دې. ()

هم دا وجه ده. چه علامه شوكانى رحمه الله فرمائى. چه (( وفي جعل هذا الحديث دليلاً على عدم وجوب ما ذكر، نظر عندي، لأن ما وقع في مبادئ التعليم لا يصح التعلق به في صرف ما ورد بعده، وإلا لزم قصر واجبات الشريعة بأسرها على الخمس المذكورة، وإنه خرق للإجماع، وإبطال لجمهور الشريعة، فالحق أنه يؤخذ بالدليل المتأخر إذا ورد مورداً صحيحاً، ويعمل بما يقتضيه من وجوب أو ندب أو نحوهما)) ()

يعنى ددې حديث نه د ذكر شوو مونځونو په عدم وجوب باندې استدلال كول زما په نيز محل نظر (او قابل اعتراض) دى. ځكه چه دا حديث ابتدائى حكم سره متعلق دې. او د روستو واردېدونكو احاديثو په مقابله كښې د ابتدائى حكم والا حديث نه استدلال صحيح

---

() اوګورئ: مرقاة المفاتيح (١/٨٦) _

() فتح البارى (١/١٠٧) _

() مرقاة المفاتيح (١/٨٦) _

() نيل الأوطار (١/٣٣٦) كتاب الصلاة. باب افتراضها ومتى كان؟

نه دي ګڼې پوره شریعت به په دې پنځو مونځونو کښې منحصر کول لازمي شي بلکه ده چه دا خرق اجماع ده او د اکثرو شریعتونو باطلونکي خبره ده حقه دا ده چه کله صحیح طور باندې یو دلیل وارد شوې وی نو هغه اختیارول پکار دی او ددې نه چه د وجوب یا ندب یا کوم حکم هم مستفاد شی هغې باندې عمل کول پکار دی

④ دا هم ممکن ده چه په حدیث باب کښې د وتر ذکر په دې وجه اونکړې شو چه دا د ماسخوتن د توابعو څخې دی لکه څنګه چه ملا علی قاری رحمه الله تصریح کړې ده (). څکه چه ددې دپاره مستقل وخت نشته بلکه د ماسخوتن وخت ددې دپاره وخت دې ددې دپاره اذان او اقامت هم نشته بلکه د ماسخوتن اذان او اقامت ددې دپاره کافی کیږی

③ یو جواب دا هم ورکیدې شی چه حدیث باب د حنفیانو خلاف نه دې څکه چه حنفیان وتر شپږم فرض نه ګرځوی بلکه ددې د وجوب قائل دی که دا ئې فرض ګرځولې نو په ‹‹خمس صلوات....›› سره اعتراض کیدې شو او په فرض او واجب کښې ډیر فرق دې ()

**د وتر د وجوب متعلق په امام اعظم رحمه الله باندې اعتراض او د هغې جواب** امام محمد بن نصر مروزی رحمه الله پخپل کتاب ‹‹**قیام اللیل**›› کښې یو حکایت نقل کړې دې چه یو سړې د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله په خدمت کښې حاضر شو او تپوس ئې اوکړو چه په شپه او ورځ کښې څومره مونځونه فرض دی؟ نو دوی جواب ورکړو چه پنځه مونځونه فرض دی بیا ئې تپوس اوکړو چه د وترو په باره کښې ستاسو څه رائې ده؟ آیا دا فرض دی او که نه دی؟ وې فرمائیل فرض دی (یعنی عملاً فرض دی) بیا ئې تپوس اوکړو چه د فرض مونځونو تعداد څومره دې دوی اوفرمائیل پنځه دی وې ونیل چه په شمار ئې راته اوښایئ دوی په شمار وراوخودل چه سحر، ماسپښین، مازیګر، ماښام، ماسخوتن، تپوس ئې اوکړو وتر فرض دی او که سنت دی؟ وې فرمائیل چه فرض دی بیا ئې تپوس اوکړو چه څومره مونځونه فرض دی وې فرمائیل پنځه دی هغه آخر کښې عاجزه شو او وې ونیل ‹‹**فانت لاتحسن الحساب**›› یعنی تا له ښه حساب نه درځي دا ئې اوونیل او لاړلو ()

په اصل کښې دا مسکین د امام اعظم رحمه الله په خبره پوهه نشو دوی په اصل کښې دا ښودل غوښتل چه وتر د ماسخوتن د توابعو څخې دې او ضروری دې دوی فرمائیل چه د فرضو دوه قسمونه دی یو اعتقادی او دویم عملی، کوم ځائې چه امام اعظم رحمه الله پنځه فرض اوښودل ددې مقصد اعتقادی وو او کوم ځائې ئې چه شپږ اوفرمائیل د هغې مراد عملی وو

**د یوسف بن خالد سمتی رحمه الله واقعه** هم داسې قسم واقعه د یوسف بن خالد سمتی (د امام ابوحنیفه رحمه الله شاګرد) هم ده دا هم د امام ابوحنیفه رحمه الله شاګرد نه وو جوړ شوې چه د امام

---

() اوګورئ: مرقاة المفاتیح (١/٨٦)

() اوګورئ: أوجز المسالک (٢/٣٤٦) ـ

() اوګورئ: فتح الملهم (١/٥٠٠) کتاب الإیمان، باب الصلوات التی هی احد أرکان الإسلام۔

ابوحنيفه رحمه الله نه ئې د وتر په باره کښې تپوس اوکړو دوی اوفرمائیل واجب دی. یوسف بن خالد سمتی اووئیل ،، کفرت یا أبی حنیفة،، اې ابوحنیفه! تا کفر اوکړو. هغه دا اوګڼړله چه امام ابوحنیفه رحمه الله وتر فرض ګڼړی. او ګویا چه د فرائضو د پنځو نه د زیات کیدو دعوه کوی.

خو امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی. «أیهولنی إکفارك إیای، وأنا أعرف الفرق بین الواجب والفرض، کفرق ما بین السماء والأرض» یعنی ته زما تکفیر کوې. ما یرول غواړې؟ حالانکه ماته د فرض او واجب په مینځ کښې داسې فرق معلوم دې. لکه څنګه چه په د آسمان او زمکې په مینځ کښې فرق دی. ددې نه پس امام ابوحنیفه رحمه الله فرق بیان کړو او هغه مطمئن شو. روستو هغه د امام ابوحنیفه رحمه الله د شاګردانو په حلقه کښې شامل شو. او د بصرې په اعیان فقهاو کښې دده شمار اوشو.(١)

په ظاهره به امام ابوحنیفه رحمه الله دا فرق بیان کړې وی. چه شرعی دلائل څلور قسمه دی.

① قطعی الثبوت. قطعی الدلالة ② ظنی الثبوت ظنی الدلالة ③ قطعی الثبوت. ظنی الدلالة ④ ظنی الثبوت قطعی الدلالة

کوم ځائې چه دواړو طرفو ته قطعیت وی. د هغې نه به د امر په طرف کښې ،،فرضیت،، او د نهی په طرف کښې ،،حرمت،، لازم وی. او کوم ځائې چه دواړو طرفو ته ظنیت وی. هلته به ددینه استحباب او سنیت ثابتیږی. او چرته چه یو طرف کښې قطعیت او دویم طرف کښې ظنیت وی. نو هلته په طرف د امر کښې د وجوب یا د سنت مؤکده ثبوت کیږی او په طرف د نهی کښې د کراهت تحریمی ثبوت کیږی.

غالباً امام ابوحنیفه رحمه الله به دا فرق بیان کړې وی. چه د وترو ثبوت دلیل ظنی سره دې په دې وجه دا واجب دې. او ددې درجه د فرض نه کمه ده. والله اعلم.

④ دا هم ممکن ده. چه نبی کریم ﷺ دلته د هغه مونځونو ذکر کړې وی. کوم چه قطعی الثبوت دلیلونو سره ثابت دی. یعنی د مطلقه کامله مونځونو ذکر ئې کړې دې. د وترو ذکر ئې ځکه اونکړو. ځکه چه ددې ثبوت ظنی دلائلو سره دې. چونکه دا په مطلقه مونځونو کښې داخل نه دې. او ددې دلائل قطعی نه دی. په دې وجه نبی کریم ﷺ ددې ذکر اونکړو.

⑤ بیا دلته دا خبره هم د غور قابله ده. چه د وتر د وجوب په قول کښې صرف امام ابوحنیفه رحمه الله متفرد نه دې. بلکه نور امامان هم ددې قائل دی. البته دومره فرق دې. چه امام اعظم رحمه الله په ،،وجوب،، سره تعبیر کړو. حالانکه بعضو حضراتو هم د ،،وجوب،، تعبیر اختیار کړې دې. او څه نورو حضراتو ددې د مؤکد کیدو په بل یو عنوان سره ذکر کړل.

لکه چه د حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت حذیفه رحمهماالله، ابراهیم نخعی، یوسف بن خالد سمتی (شیخ الشافعی). امام مجاهد، سحنون، اصبغ بن الفرج. او قاضی ابوبکر بن العربی ﷺ نه د ،،وجوب،، قول نقل دې.(٢)

(١) اوګورئ: بدائع الصنائع فی ترتیب الشرائع (٢٧١/١) کتاب الصلاة. فصل فی الصلاة الواجبة.

(٢) عمدة القاری (١١١/٧) کتاب الوتر. باب لیجعل آخرصلاته وتراً.

دغه شان د سعيد بن المسيب، ابو عبيده بن عبدالله بن مسعود. او ضحاك رحمهم الله نه هم د وجوب قول منقول دې.[1]

د امام مالك رحمه الله نه منقول دى چه «من تركه أدب وكانت جرحة في شهادته»[2]

امام احمد رحمه الله فرمائى. «من ترك الوتر عمداً فهو رجل سوء ولا ينبغي أن تقبل له شهادة»[3]

امام شافعي رحمه الله د سحر د سنتو او د وترو په باره كښې فرمائى. «ولا أرخص لمسلم في ترك واحدة منهما وإن لم أوجبهما»[4]

معلومه شوه چه وتر ضروري گرځولو كښې ټول حضرات د امام ابوحنيفه رحمه الله سره شريك دى نوكه حديث باب سره د وترو د وجوب او ضروري كيدو نفى كيږى نو د ټولو په ذمه ددې جواب لازم دې.

⑨ بيا روستو په دې حديث كښې د زكاة په سلسله كښې صرف د ..زكاة.. ذكر دې د صدقة الفطر ذكر نشته. حالانكه صدقة الفطر امام شافعي رحمه الله فرض گرځوى.[5] بيا به په دې حديث كښې د تاويل كولو ضرورت راپيښيږى. چه دا د زكاة د توابعو ځنې دې.

حالانكه د غور كولو خبره ده. چه وتر د ماسخوتن د مونځ تابع گرځول بالكل واضح دى. حالانكه صدقة الفطر د زكاة د توابعو ځنې گرځول بالكل د تبادر او اصولو خلاف دې. بيا څه وجه ده. چه وتر د ماسخوتن د توابعو ځنې نشى گرځولې كيدې او صدقة الفطر د زكاة د توابعو ځنې گرځيدې شى؟

اوكه داسې اووئيلى شى. چه د صدقة الفطر فرضيت روستو شوې دې. نو بعينه هم دا جواب مونږ د وترو د وجوب په باره كښې هم وركولې شو. چه ددې وجوب روستو شوې دې.

پاتې شو د وترو د وجوب د دلائلو وغيره تعلق، نو ددې ذكر به انشاءالله مونږه د .. وترو.. په بحث كښې كوو.

**د نفل عبادت شروع كولو نه پس ددې پوره كول واجب دى اوكه نه؟ او كه فاسد ئې كړى نو قضاء به لازم وى اوكه نه؟** دې مقام سره متعلق دويمه اهمه مسئله دا ده. چه د يو نفل عبادت شروع كولو نه پس ددې ماتول جائز دى. اوكه ددې پوره كول لازم او ضروري دى. بيا د فاسد كولو په صورت كښې به دده په ذمه ددې عبادت قضاء لازم وى اوكه نه؟

د امام مالك رحمه الله رائې دا ده. چه د نفل عبادت شروع كولو نه پس. د عذر نه بغير ددې ماتول جائز نه دى. كه څوك ئې عمداً فاسد كړى نو دده په ذمه به قضاء لازم وى. البته كه د څه عذر

---

[1]) پورتنۍ حواله. _

[2]) حواله بالا. _

[3]) اوگورئ: المغنى لابن قدامة (٤٥٢/١) حكم صلاة الوتر ووقتها. _

[4]) كتاب الأم (١٤٢/١) باب فى الوتر. _

[5]) اوگورئ: فتح البارى (٣٦٧/١ و٣٦٨) _

په وجه مجبوره شي نو ددې نفل عبادت ماتول هم اجازت شته او ددې قضاء لازم ده.[1]
د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د عذر نه بغير د ماتولو اجازت نشته البته که دعذر په وجه وى. او که بغير د عذر نه. که مات ئې کړې نو په دواړو صورتونو کښې به قضاء لازم وى.[2]
د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله په نيز د نفل عبادت شروع کولو نه پس ددې پوره کول لازم نه دى. د ماتولو نه پس بيا ددې قضاء لازم نه ده.[3]
البته دامام احمد رحمه الله په نيز د عالمانو د اختلاف نه د وتلو دپاره قضاء راوړل مسنون دى.[4]
تنبيه دلته ددې خبرې لحاظ پکار دې چه د نفلى حج او نفلى عمرې په باره کښې دټولو اتفاق دې چه د شروع کولو نه پس ددې پوره کول لازميږى. او د فساد په صورت کښې ددې قضاء هم د ټولو په نيز لازميږى.[5]
تنبيه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دلته د مسئلې مدار د ،،لا إلا أن تطوع،، د استثناء په نوعيت کښې دې. که دا مستثنى متصل اوګرځولې شى نو دا د حنفيانو دليل دې او که مستثنى منقطع اوګرځولې شى. نو د حنفيانو دليل نه جوړيږى. د شوافعو رائې هم دا ده چه دلته استثناء متصل نه ده. بلکه منقطع ده. په دې صورت کښې به مطلب دا وى. چه «لايجب عليك شيء إلا إن أردت أن تطوع، فذالك لك» يعنى ددې پنځو مونځونو نه علاوه بل هيڅ څيز واجب نه دې. البته که ته تطوع کول غواړې نو ددې تاته اختيار دې.
معلومه شوه چه ددې حديث نه د نفل پوره کول واجبيدل. يا د فاسد کولو په صورت کښې ددې قضاء لازميدل نه ثابتيږى. نو ددې دپاره د مستقل دلائلو ضرورت دې چه هغه دا دى. په سنن نسائى کښې دى. «أن النبى ﷺ كان أحياناً ينوى صوم التطوع، ثم يفطر»[6]

---

[1]) اوګورئ: أوجز المسالک (٣٢٧\٣). جامع الترغيب فى الصلاة. و مؤطا امام مالک (١\٣٠٦ و٣٠٧) كتاب الصيام. باب الصيام التطوع. _
[2]) أوجز المسالک (٣٢٧\٣) _
[3]) حواله سابقه. _
[4]) حواله بالا. _
[5]) پورتنى حواله. _
[6]) الحديث لم أجده بهذا اللفظ فى سنن النسائي. ولعل الحافظ ذكر معنى الحديث الذى فى سننه. (١\٣١٩) فى كتاب الصيام. باب النية فى الصيام. والإختلاف على طلحة بن يحى بن طلحة. فى خبر عائشة فيه :...عن عائشة قالت: دخل علىّ رسول الله ﷺ يوماً. فقال: هل عندكم من شئ؟ فقلت لا. قال: فإنى صائم. ثم مر بى بعد ذالک اليوم. وقد أهدى الىّ حيس. فخبأت له منه. وكان يحب الحيس. قالت: يا رسول الله. إنه أهدى لنا حيس. فخبأت لک منه. قال: أدنيه. أما إنى قد أصبحت و أنا صائم. فأكل منه.. وفيه طريق أخرى لهذا الحديث. ولكن ليس فى ظاهره ما يستدل به الشافعية فإن قوله ﷺ.. إنى قد أصبحت و أنا صائم..... معناه: إنى قد أصبحت و أنا أريد الصوم. ولم يشرع فى الصوم. ويستأنس على ذالک بقوله ﷺ.. فإنى صائم.. لما لم يجد عندها شيئاً يتناوله. والله اعلم. _

دغه شان په بخاری کښې دی چه حضرت جویریه بنت الحارث رضي الله عنها ته نبی کریم ﷺ د روژې ماتولو حکم فرمائیلې وو حالانکه هغې د جمعې په ورځ روژه شروع کړې وه.(١)معلومه شوه چه د نفل عبادت شروع کولو سره ددې اتمام نه لازمیږی.دا خبره خو د روژو په باره کښې د نص نه معلومه شوه او په باقی نفلی عباداتو کښې به دا حکم قیاس سره ثابتولې شی (٢)والله اعلم

خو د حافظ رحمه الله استدلال ډیر زیات کمزورې دې:① خکه چه دوی ددې مسئلې مدار د استثناء په نوعیت باندې ګرخولې دې حالانکه د مسئلې مدار په دې استثناء باندې نه دې بلکه په نورو دلائلو باندې دې.چه ددې ذکر به ان شاء الله مونږه ډیر زر اوکړو.البته دا استثناء د یو تائید حیثیت لری.

② حافظ رحمه الله چه کوم دوه روایتونه ذکرکړی دی.په هغې کښې د قضاء راوړلو نفی نشته بلکه سکوت دې.د هغوی دا خبره د دلیل په طور پیش کول چه .. قضاء نه لازمیږی.. صحیح نه ده.

③ په دې دواړو روایتونو کښې ړومبی روایت کښې خو دومره تصریح هم نشته.چه هغوی به روژه نیولو نه پس ماتوله.بلکه د «كان أحياناً ينوى صوم التطوع ثم يفطر» ظاهری الفاظو په لحاظ سره ددې معنی قوی امکان شته.چه دوی به د روژې نیولو اراده کوله.خو بیا به ئې نه شروع کوله.

④ په دې روایاتو کښې که دا اومنلې شی.چه دوی به روژه ماتوله.او حضرت جویریه رضي الله عنها ته ئې د روژې ماتولو حکم ورکړې وو.نو په دې سره دا نه لازمیږی.چه دا عمل د عذر نه بغیر شوې وی.

خکه چه علامه عینی او علامه زرقانی رحمهما الله لیکلی دی.چه عین ممکن ده. چه ددوی روژه ماتول د څه عذر په وجه وی.(٣)دغه شان ئې چه حضرت جویریه رضي الله عنها ته د روژې ماتولو کوم حکم ورکړې وو.هغه په دې وجه وی.چه هغوی د نبی کریم ﷺ د اجازت نه بغیر روژه نیولې وی او نبی کریم ﷺ د خپل څه ضرورت په وجه هغوی ته د روژې ماتولو حکم ورکړې وی.(٤)او دا هم ممکن ده.چه نبی کریم ﷺ چونکه د جمعې په ورځ د منفرداً روژې ساتلو نه منع فرمائیلې وه.او هغوی دغه شان د جمعې په ورځ روژه ساتلې وه.چه نه ئې خو ددې نه

---

(١) عن جويرة بنت الحارث رضي الله عنها أن النبي ﷺ دخل عليها يوم الجمعة. وهي صائمة فقال: أصمت أمس؟ قالت لا. قال:تريدين أن تصومي غداً؟ قالت لا. قال:فأفطري. أخرجه البخاري في كتاب الصوم. باب صوم يوم الجمعة. و إذا أصبح صائماً يوم الجمعة فعليه أن يفطر.

(٢) اوګورئ:فتح البارى(١٠٧١١)

(٣) عمدة القارى(٢٦٨١١). شرح الزرقانى على الموطا(٣٥٨١١). جامع الترغيب فى الصلاة.

(٤) شرح الزرقانى(٣٥٨١١)

مخکښې يعنې د زيارت په ورځ روژه ساتلې وه او نه ئې ددې نه روستو د خالی په ورځ د روژې نيولو اراده وه په دې وجه نبی کريم ﷺ حکم ورکړو چه روژه ماته کړه (١)

⑤ علامه زرقانی رحمه الله فرمائی چه دا دواړه واقعې کومې چه حافظ رحمه الله ذکرکړی دی جزئی واقعات دی چه ددې نه عمومی حکم نه مستنبط کيږی حالانکه ددې په خلاف هغه دلائل هم موجوددی دکومونه چه کلی قوانين مستنبط کيږی (٢)لکه څنګه چه به اوس مونږه ذکر کوو.

د شوافعو يو دليل د حضرت ام هانی رضی الله عنها حديث دې چه په هغې کښې دوی د نبی کريم ﷺ څخکلو شوو اوبو څکلو دپاره روژه ماته کړې وه.روستو چه کله نبی کريم ﷺ ته اطلاع اوشوه نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل.((الصائم المتطوع أمير نفسه،إن شاء صام،وإن شاء أفطر))(٣)

خودا حديث قابل د استدلال نه دې.لکه چه صاحب د ،،الجواهر النقی،، ثابت کړی دی چه دا حديث اسناداً او متناً مضطرب دې.(٤) حافظ زيلعی رحمه الله فرمائی.((وفی سنده إختلاف وفی لفظه إختلاف،))(٥)دغه شان امام نسائی رحمه الله په سنن کبری کښې په دې باندې تفصيل سره کلام کړې دې.او ثابت کړې ئې دی.چه ددې حديث نه استدلال صحيح نه دې (٦)وکه بالفرض دا حديث صحيح هم وی.نو ددې مطلب دا دې.چه نفلی روژې نيونکی ته اختيار وی چه روژه نيسی اوکه نه نيسی.ترکومې پورې چه د روژې نيولو او د عذر نه بغير د ماتولو خبره ده نو ددې نه دا خبره نه ثابتيږی.او نه په دې حديث کښې د قضاء نفی شته.(٧)والله اعلم.

**د حنفيانو دلائل:** ① په قرآن کريم کښې د الله تعالی ارشاد دې. ﴿وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ﴾ (٨)

---

١) كما ورد في حديث البخاري الذي سبق تخريجه قريباً. ـ

٢) أنظرشرح الزرقاني(٣٥٨\١). ـ

٣) أخرجه الترمذي في سننه. في كتاب الصوم. باب ماجاء في إفطار الصائم المتطوع.رقم(٧٣١و ٧٣٢) و أبوداؤد في سننه. في كتاب الصوم. باب في الرخصة في ذالک.رقم(٢٤٥٦). وأبوداؤد الطيالسي في مسنده(ص٢٢٥) رقم(١٦١٨)و أحمدفي مسنده٣٤٣) والحاكم في المستدرک(٤٣٩\١) صوم التطوع. والبيهقي في سننه الكبرى(٢٧٦\٤) كتاب الصيام. باب صيام التطوع والخروج منه قبل تمامه و النسائي في سننه الكبرى (٢٤٩\٢و ٢٥٢)كتاب الصيام. باب الرخصة للصائم المتطوع أن يفطر. وذكر اختلاف الناقلين لحديث أم هاني في ذالک)رقم(٣٣٠٢، ٣٣٠٩)

٤) حاشية نصب الرايه(٤٦٩\٢) أحاديث الفطر في التطوع) ـ

٥) نصب الرايه(٤٦٩\٢)ـ

٦) اوګورئ:السنن الكبرى للنسائي(٢٥١\٢و ٢٥٢) ـ

٧) ددې حديث سره متعلق زياتی تفصيل دپاره اوګورئ:إعلاء السنن(١٤١\١و١٤٢) كتاب الصوم. باب وجوب قضاء صوم التطوع إذا أفسده) ـ

٨

ددې مطلب دا دې چه کوم عمل تا شروع کړې دې هغه مه باطلوه.دلته د يو نفل عبادت شروع کولو نه د وړاندې حکم بيان نکړې شو بلکه ددې د شروع کولو نه د روستو حکم دې. چه هرکله دې شروع کړو نو اوس ئې مه باطلوه.نوکه يو سړې نفل شروع کړی.نو ددې د باطلولو ممانعت دې.او ددې پوره کول واجب دی.که باطل ئې کړی.نو د وجوب ترک کولو په وجه به ددې قضاء لازم وی.(١)

② صاحب د بدائع د ملك العلماء علامه کاساني رحمه الله د نفل عبادت شروع کولو نه پس ددې حيثيت بيان کړې دې.چه دا د نذر پشان دې.گويا چه د نذر دوه قسمونه دی.يو نذر قولی . او بل نذر فعلی يو کس ژبې سره وائی ،،لله علیّ کذا،، نو د الله تعالی د حرمت قائم ساتلو دپاره ئې چه کوم نفل عبادت پخپل ځان باندې لازم کړلو هغه به واجب وی.هغه فرمائی.چه لکه څنګه ددې قولی نذر په وجه نفلی عبادت لازميږی.دغه شان که يو کس عملاً او فعلاً يو نفلی عبادت شروع کړو.نو دا نفل شروع کول هم د الله تعالی دپاره دی.نو د الله تعالی دنوم حرمت به دلته هم باقی ساتل ضروری وی.او ددې عبادت پوره کول به واجب وی.او د فاسد کولو په صورت کښې به قضاء لازم وی.(٢) حضرت علامه انورشاه کشميری رحمه الله د صاحب بدائع استدلال د ټولو نه غوره گرځولې دې.(٣)

③ د حنفيانو د مسلك تائيد ددې خبرې نه هم کيږی.چه د ټولو امامانو اجماع ده.چه د نفلی حج او نفلی عمرې شروع کولو نه پس ددې پوره کول لازميږی.او د فاسدکولو په صورت کښې قضاء لازميږی.نو د مونځ او روژې شروع کولو نه پس به هم پوره کول واجب وی.او د فاسد کولو په صورت کښې به قضاء راوړل لازم گرځولې شی.(٤)

حافظ ابن حجر رحمه الله په دې باندې اعتراض کړې دې.چه په حج باندې قياس کول صحيح نه دی.ځکه چه د حج دا خصوصيت دې.چه که دا فاسد شی.نو باقی اعمال او مناسك نشی پريخودې.بلکه دا پوره کوی.حالانکه د نورو عبادتونو د فاسد کيدو په صورت کښې ددې د مکمل کولو حکم نشته.او نفلی حج په دې اعتبار سره هم ممتاز دې.چه د فرض حج پشان په دې کښې هم کفاره لازميږی.(٥)

خو حقيقت دا دې.چه د فاسد حج باقی اعمال ادا کولو باندې چونکه نص وارد دې.(٦)په دې وجه ددې په پوره کولو او بيا په قضاء راوړلو باندې خو اجماع ده.خو د نورو عبادتونو په

---

(١) بدائع الصنائع (٢٩٠١١) فصل فی صلاة التطوع ) _

(٢) المصدرالسابق ) _

(٣) فيض الباری(١٣٨١١ وأنوار الباری(١٥٢١٢) _

(٤) عمدة القاری(٢٦٨١١) _

(٥) فتح الباری (١٠٧١١) _

(٦) نصب الرأية (١٢٥١٣ . ١٢٧) کتاب الحج باب الجنايات فصل فی حکم من جامع قبل الوقوف) _

دې باندې قياس كولو نه هيڅ مانع موجود نه دې .ځكه چه ددې حج د تطوع او نفل كيدو په وجه نور عبادات په دې باندې قياس كيدې شي خصوصاً ځكه چه د نورو دلائلو په رڼړا كښې د نفلي عبادتونو د پوره كولو وجوب معلوميږي او د فساد په صورت كښې د قضاء لزوم هم معلوميږي. البته د فاسد حج پوره كول چه لازم دى باقى عبادات په دې باندې ځكه نشى قياس كيدې.ځكه چه ددې د پوره كولو وجوب نص سره ثابت شوې دې او دا غير مدرك بالقياس دې په دې وجه د باقى عبادتونو فاسد كيدو په صورت كښې ددې پوره كول مونږ لازم نه ګرځوو .صرف قضاء ضروري ګرځوو والله اعلم

④ امام احمد، امام مالك، ابوداؤد، ترمذى، نسائى او ابن حبان رحمهم الله د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت نقل كړې دې .«أن عائشة وحفصة زوجى النبى ﷺ أصبحتا صائمتين متطوعتين، فأهدى لهما طعام، فأفطرتا عليه، فدخل عليهما رسول الله ﷺ قالت عائشة: فقالت حفصة، و بدرتنى بالكلام، وكانت بنت أبيها، يا رسول الله إنى أصبحت أنا وعائشة صائمتين متطوعتين، فأهدى إلينا طعام، فأفطرنا عليه، فقال رسول الله ﷺ، اقضيا مكانه يوماً آخر» (١) اللفظ لمالك رحمه الله

⑤ دغه شان دارقطنى د حضرت ام سلمه رضي الله عنها په باره كښې نقل كړى دى .«أنها صامت يوماً تطوعاً، فأفطرت، فأمرها رسول الله ﷺ أن يقضى يوماً مكانه» (٢)

خو ابن الجوزى رحمه الله دا حديث ذكركړې دې او نا قابل احتجاج ئې ګرځولې دې .(٣)

⑥ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى .«يقضى يوماً مكانه» (٤)

⑦ د حضرت انس بن سيرين رحمه الله نه نقل دى .«أنه صام يوم عرفة فعطش عطشاً شديداً، فأفطر فسأل عدة من أصحاب النبى ﷺ فأمروه أن يقضى يوماً مكانه» (٥)

---

(١) الموطا للمالك (٣٠٦/١) كتاب الصيام باب قضاء التطوع وأبوداود فى سننه فى كتاب الصوم با من رأى عليه القضاء رقم ٢٤٥٧ والترمذي فى جامعه فى كتاب الصوم باب ما جاء فى إيجاب القضاء عليه رقم ٧٣٥ والنسائي فى سننه الكبرى (٢٤٧/٢، ٢٤٩) رقم ٣٢٩٠، ٣٣٠١) والإحسان بترتيب صحيح ابن حبان (٢١١/٦) كتاب الصوم باب ذكر الأمر بالقضاء لمن نوى صيام التطوع ثم أفطر رقم ٣٥٠٨) وموردالظمآن (٢٣٦) كتاب الصيام باب فى الصائم المتطوع يفطر رقم (٥١) _

(٢) ذكره الزيلعى رحمه الله فى نصب الرأية (٤٦٧/٢) كتاب الصوم أحاديث الفطر فى التطوع ولم أجد فى سنن الدارقطنى رغم بحثى الطويل والله أعلم) _

(٣) انظر العلل المتناهية فى الأحاديث الواهية (٥٤٤/٢) كتاب الصيام باب حديث فيمن أفطر من تطوع رقم(٨٩٤)_

(٤) رواه ابن أبى شيبة (٢٩/٣) كتاب الصيام باب فى الرجل يصوم تطوعاً ثم يفطرقال الماردينى رحمه الله فى الجوهر النقى (٢٧٧/٤) وهذا سند صحيح ) _

(٥) أخرجه ابن ابى شيبة فى مصنفه (٢٩/٣) قال الماردينى فى الجهر (٢٧٧/٤) وهذا سند على شرط الشيخين ما خلا التيمى فإنه أخرج له أصحاب الأربعة ووثقه أبن سعد وابن سفيان والدارقطنى) _

⑧ په حديث باب كښې د ،،إلا أن تطوع،، الفاظو نه هم د حنفيانو تائيد كيږي.

علامه قرطبى رحمه الله فرمائى چه په دې جمله كښې د ،، ماتطوع به،، نه علاوه د بل څه څيز د وجوب نفى شوې ده او د نفى نه استثناء د اثبات فائده وركوى نو چونكه د شروع فى التطوع د وجوب څوك هم قائل نه دى نو دلته دا متعين ده چه ددې نه مراد «إلا أن تشرع فى التطوع» وى او دا معلوميږى چه كوم سړى نفل شروع كړى وى د هغه په ذمه لازم دى چه دا مكمل كړى (¹)

علامه طيبى رحمه الله د علامه قرطبى رحمه الله دا استدلال رد كړې دې او فرمائيلى ئې دى «هذا مغالطة لأن هذا الإستثناء من وادى قول الله تعالى ﴿وَلَا تَنْكِحُوا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُمْ مِنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ﴾ وقوله تعالى: ﴿لَا يَذُوقُونَ فِيهَا الْمَوْتَ إِلَّا الْمَوْتَةَ الْأُولَىٰ﴾

يعنى دلته استثناء منقطع ده او مطلب دا دې چه «لا يجب عليك شئ قط إلا أن تطوع، وقد علم أن التطوع ليس بواجب، فيلزم أن لا يجب عليه شئ قط» (²)

د حنفيانو د استدلال حاصل دا دې چه دوى ،،إلا أن تطوع،، كښې استثناء متصل ګرځوى او فرمائى چه تطوع اګرچه ابتداء كښې واجب نه دى خو د شروع كولو نه پس ددې پوره كول واجبيږى. حالانكه شافعيه دا استثناء منقطع ګرځوى. اوفرمائى چه تطوع نه ابتداء واجبيږى او نه بقاء واجبيږى.

خو حقيقت دادې چه د علامه طيبى رحمه الله اعتراض صحيح نه دې ځكه چه دا خبره د مسلماتو څخه ده چه په استثناء كښې اصل اتصال دې انقطاع اصل نه ده. (³) تركومې پورې چه دا په استثناء باندې محمول كيدې شى انقطاع باندې به محمول كول صحيح نه وى ددې داصل كيدو اقرار حافظ ابن حجر رحمه الله پخپله فرمائى لكه چه هغوى ليكى «فمن قال: إنه متصل، تمسك بالأصل» (⁴)

البته حافظ ابن حجر رحمه الله ددې د متصل منلو په صورت كښې دا اعتراض كړې دې چه ددې متصل ګرځول ځكه صحيح نه دى چه مستثنى د متصل كيدو په صورت كښې، مستثنى په مستثنى منه كښې داخليږى. او ددې د جنس څخه كيږى. حالانكه دلته داسې نه ده. ځكه چه مستثنى منه خو فرائض دى. او مستثنى منه واجب دى. د دواړو جنس يو نه دې نو د

(¹) فتح البارى (١٠٧/١)۔
(²) الكاشف عن حقائق السنن (١٣٦/١) كتاب الإيمان) _
(³) أصول البزدوى مع شرح كشف الأسرار(١٣١/٣) باب بيان التغير) _
(⁴) فتح البارى(١٠٧/١) _

واجبو استثناء به د فرض نه منقطعه گرځولي شی متصل به نه وی (۱)
ددې جواب ملا علی قاری رحمه الله ورکړې دې چه په اصل کښې دواړه فرض دی البته په دې کښې یو فرض عملی کیدو سره سره اعتقادی هم دې او دویم فرض اعتقادی نه دې بلکه صرف عملی دې نو د فرض کیدو په اعتبار سره د دواړو جنس یو شو په دې وجه دلته استثناء متصل منل پکار دی (۲)
حافظ ابن حجر رحمه الله په دې مقام باندې یو اعتراض بل کړې دې هغه دا چه د حنفیانو استدلال په ،،إلا أن تطوع،، سره صحیح نه دې ځکه چه دا استدلال هغه وخت صحیح کیدې شی کله چه دا اومنلې شی چه د استثناء من النفی نه د اثبات فائده حاصلیږی حالانکه د حنفیانو په نیز د استثناء من النفی نه د اثبات فائده نه حاصلیږی بلکه د مستثنی حکم مسکوت عنه وی (۳)
شیخ الاسلام علامه شبیر احمد عثمانی رحمه الله فرمائی چه د استثناء من النفی نه د اثبات فائده نه حاصلیدل، دا د بعضو حنفیانو مسلك ضرور دې خو د جمهور حنفیانو په نیز چه په دوی کښې امام فخرالاسلام بزدوی رحمه الله او ددوی متبعین دی چه د ،،إلا،، نه روستو کښې د نقیض حکم لګی که اثباتاً وی او که نفیاً وی هم دا رائې زیاته قوی او معقوله ده علامه ابن الهمام رحمه الله ددې خبرې تصریح هم کړې ده او ددې دلائل ئې هم ښه بیان کړی دی (۴)
بیا ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی که اومنلې شی چه د استثناء من النفی نه د اثبات فائده نه حاصلیږی او دا چه دلته استثناء منقطع ده بیا هم د حنفیانو استدلال په دې جمله باندې موقوف نه دې ځکه چه ددوی استدلال خو اصل د آیت او بیا د اجماع نه دې چه حدیث باب ئې د آیت او اجماع مطابق معنی باندې محمول کړې دې او د استثناء من النفی نه چه د اثبات دفائدې حاصلیدو کومه خبره ده هغه خو مخالفینو ته د الزام ورکولو دپاره ده چه اوګورئ! ستاسو په نیز خو د استثناء من النفی نه د اثبات فائده حاصلیږی بیا ولې تاسو دا مستثنی متصل نه ګرځوئ؟ (۵)
**یو سوال او د هغې جواب** دلته یو سوال دا کیدې شی چه که دلته ،،إلا أن تطوع،، مستثنی متصل اوګرځولې شی نو بیا روستو د زکاة د بیان نه پس کوم ،،لا إلا أن تطوع،، راروان دې هغې کښې هم متصل ګرځول پکار دی حالانکه هلته بالاتفاق منقطع دې؟

---

۱) المصدر السابق) _
۲) مرقاة المفاتیح (۱\۸۷)-
۳) فتح الباری (۱\۱۰۷) _
۴) فتح الملهم (۱\۵۰۲، ۵۰۳) کتاب الإیمان باب بیان الصلوات التی هی أحد أرکان الإسلام بحث إتمام العبادة بعد الشروع فیها ولو کانت نفلاً) _
۵) مرقاة المفاتیح (۱\۸۷)

ددې جواب دا دې چه مونځ او روژه په زکاة باندې قياس کول صحيح نه دى. ځکه چه په زکاة کښې د ابتداء او انتهاء هيڅ صورت نشته ترکومې پورې چه زکاة مستحق پورې اونه رسولې شى نه ادا کيږى کله چه اورسيږى نو ادا کيږى په دې کښې چونکه امتداد نشته په دې وجه د زکاة په معامله کښې مستثنى متصل کيدې نشى. ددې مجبورئ په وجه مستثنى منقطع منلې شوې ده. ځکه چه دا مجاز دې چه دا د ضرورت په وخت منلې کيږى او په مونځ روژه کښې هيڅ مجبورى نه وى په دې وجه به هلته مستثنى متصل منلې کيږى بيا دويمه خبره داده چه په زکاة کښې هيڅ نظم او ترتيب نه وى بلکه ورکونکى ته اختيار وى چه څه نن ورکړى او څه صباله ورکړى. په خلاف د مونځ او روژې. چه په دې کښې اختيار نه وى چه نن يو رکعت اوکړې شى او صباله دويم رکعت ادا کړې شى يا نن د نيمې ورځې روژه اونيولې شى او صباله د نيمې ورځې. نو په مونځ او روژه کښې چونکه اتصال او ترتيب دې په دې وجه به په دې کښې مستثنى متصل منلې کيږى. او په زکاة کښې انفصال کيدې شى. په دې وجه به په دې کښې مستثنى منقطع ګرځولې کيږى.[1]

**د حنفيانو دمذهب وجوه ترجيح** علامه عينى رحمه الله فرمائى: «ولو وقع التعارض بين الأخبار فالترجيح معنا لثلاثة أوجه: أحدها اجماع الصحابة، والثانى أن أحاديثنا مثبتة وأحاديثهم نافية، والمثبت مقدم، والثالث أنه احتياط فى العبادة فافهم»[2]

يعنى د حنفيانو د مسلك د تعارض منلو په صورت کښې درې وجوه ترجيح دى. ① رومبئ خبره د صحابو رضى الله عنهم اجماع ده. ② دويمه خبره دا ده. چه زمونږ مستدل روايات مثبت دى. او دهغوى روايات يا خو نافى دى. يا ساکت دى. او مثبت ته په نافى او ساکت باندې ترجيح حاصل وى. ③ دريمه خبره دا ده. چه دا دعبادت معامله ده. او په دې کښې په قضاء راوړلو کښې احتياط دې. والله اعلم.

**قوله**: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصِيَامُ رَمَضَانَ قَالَ هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهُ؟ قَالَ لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ: نبى کريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل. د رمضان المبارک روژې هم په فرائضو کښې داخل دى. دغه سړى تپوس اوکړو چه آيا په ما باندې ددې روژو نه علاوه هم څه فرض دى؟ وې فرمائيل چه نه. خو که دا نفلى ساتل غواړې. نو ساتلې شې. ابتداء کښې اختيار دې. خو په شروع کولو سره به دا واجب کيږى.

**ايا د ،،رمضان،، لفظ سره د ،،شهر،، لفظ استعمالول ضرورى دې؟** په حديث باب کښې ،،رمضان،، سره لفظ د ،،شهر،، استعمال نکړې شو. ددې نه دا خبره معلومه شوه. چه دا د ،،شهر،، لفظ استعمالولونه بغير جائز دې.[3]

---

[1] إمدادالبارى (٦٦٩/٤) ـ

[2] عمدة القارى (٢٦٨/١) ـ

[3] عمدة القارى (٢٦٩/١) ـ

اصل کښې په دې کښې د عالمانو درې اقواله دی.

① د جمهورو محققینو په نیز ,, رمضان،، د ,, شهر،، لفظ نه بغیر استعمالول بغیر د کراهته جائز دی (۱) هم دا د اکثرو حنفیانو رائې ده.(۲)

② مالکیان د کراهت قائل دی.هم دا د امام مجاهد او حسن رحمهما الله نه ضعیف سند سره او د امام عطاء نه نقل دی.(۳)

③ د قاضی ابوبکربن الطیب باقلانی او د ډیرو شوافعو مذهب دا دې که دې لفظ سره څه قرینه داسې وی چه دهغې نه دامعلومه شی چه ,,رمضان،، وئیلو سره میاشت مراد اخستلې شوې ده بیاخو لفظ د ,,رمضان،، بغیر د کراهت نه د ,,شهر،، لفظ نه بغیر استعمالولې شی. گنی مکروه دې.(۴)والله اعلم.

**قوله: قَالَ وَذَكَرَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الزَّكَاةَ قَالَ هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهَا قَالَ لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ:** رسول الله ﷺ هغه ته د زکاة ذکر اوفرمائیلو.چه زکاة هم د اسلام د فرائضو څنې دې.نو دغه سړی اووئیل.چه د زکاة نه علاوه هم په ما باندې څه فرض شته؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه نا، سوا ددې نه چه څه نفلی د الله په لاره کښې ورکړې.

دلته د ,,قال،، فاعل ,,الراوی،، دې.بیا د «وذکر له رسول الله ﷺ الزکاة» تعبیر اختیار کړې شوې دې.ددې وجه په ښکاره د راوی احتیاط دې.ځکه ممکن ده.چه راوی ته د نبی کریم ﷺ الفاظ بعینه یاد نه وی پاتې شوې.په دې وجه ئې دې الفاظو سره تعبیر اوکړو.(۵)

امام نووی رحمه الله فرمائی.چه د ,,لا إلا أن تطوع،، الفاظو نه د زکاة نه سوا د هرقسمه مالی حق د وجوب نفی کیږی.(۶)

علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله فرمائی.که دا خبره اومنلې شی.نو د صدقة الفطر د وجوب هم نفی کیږی.حالانکه شوافع ددې د فرضیت قائل دی.نو ددوی دپاره ددې اشکال نه خلاصونکې هم هغه دې..کوم چه حنفیانو د وترو د وجوب په سلسله کښې پیش کړې دې. والله اعلم.(۷)

---

(۱)عمدة القاری(۱۰\۲۶۵) وفتح الباری (۴\۱۱۳) کتاب الصیوم باب هل یقال رمضان أو شهر رمضان ومن رأی کله واسعاً)

(۲)أوجز المسالک (۵\۷) کتاب الصیام باب ما جاء فی رؤیة الهلال للصیام والفطر فی رمضان) _

(۳)فتح الباری(۴\۱۱۳) عمدة القاری ۱۰\۲۶۵) _

(۴)حواله جات بالا) وأجز المسالک (۵\۶، ۷) _

(۵)أوجزالمسالک (۳\۳۲۹) جامع الترغیب فی الصلاة) _

(۶)شرح النووی علی صحیح مسلم (۱\۳۰) کتاب الإیمان باب بیان الصلوات التی هی أحد أرکان الإسلام ) _

(۷)فتح الملهم (۱\۵۰۳)

په دوو حدیثونو کښې تعارض او ددې دفعیه لکه څنګه چه مونږه وړاندې بیان کړې دی.چه امام طحاوی رحمه الله د ،،لا إلا أن تطوع،، نه په دې خبره باندې استدلال کړې دې.چه په مال باندې سوا د زکاة نه بل څه واجب نه دی.هم په دې مفهوم باندې د حضرت فاطمه بنت قیس رضی الله عنها مرفوع حدیث. امام ابن ماجه رحمه الله پخپل سنن کښې نقل کړې دې.«لیس فی المال حق سوی الزکاة»[1]

ددې بالکل په عکس امام ترمذی رحمه الله د حضرت فاطمه بنت قیس رضی الله عنها نه روایت نقل کړې دې.«إن فی المال لحقاً سوی الزکاة»[2]

دحضرت فاطمه بنت قیس رضی الله عنها دا روایت محدثینو په متعارضو احادیثو کښې شمار کړې دې.لکه چه بعضو ددې نه دیو روایت صحت انکار کړې دې.اوبعضوحضراتوتطبیق کړې دې امام بیهقی رحمه الله فرمائی.چه زمونږ اصحاب یعنی شوافعو پخپلو کتابونو کښې تعلیقاً ،، لیس فی المال حق سوی الزکاة،،والا روایت ذکر کړې دې.خو ماته د دې هیڅ سند یاد نه دې.(3) په اصل کښې امام بیهقی رحمه الله د سنن ابن ماجه روایت مطالعه نکړې شو.په دې وجه دوی دهغې د صحت انکار کړې دې.

کومو حضراتو چه دې دواړو روایتونو کښې تطبیق ورکړې دې.هغوی فرمائی.چه په،،لیس فی المال حق سوی الزکاة،، کښې چه د کوم حق انکار دې.د هغې نه دائمی حق مراد دې.او پاتې شو د نورو حقوقو تعلق کوم چه وختی طور باندې واجبیږی.هغه په نورو نصوصو سره ثابتیږی.لکه چه علامه منادی رحمه الله د ،، لیس فی المال حق سوی الزکاة،، په شرح کښې فرمائی:« کفکاك الأسیر، وإطعام المضطر، وسقی الظمآن، وعدم منع الماء و الملح والنار، وإنقاذ محترم أشرف علی الهلاك، ونحو ذالك. قال عبدالحق: فهذه حقوق قام الإجماع علی وجوبها وإجبار الأغنیاء علیها»[4]

مطلب دا دې.چه دا ټول حقوق د زکاة نه علاوه دی.حالانکه ددې په وجوب باندې اجماع ده.خو ښکاره ده.چه دا څیزونه دائمی او متعین نه دی.او زکاة دائمی او متعین څیز دې.نو په دواړو نصوصو کښې تعارض او تدافع نشته.والله اعلم.

**په حدیث باب کښې ئې فریضه د حج ولې ذکر نکړله؟** تاسو ګوری.چه په روایت د باب کښې د ،،حج،، ذکر نشته.حالانکه دا بالاتفاق د ارکان اسلام او د دین د فرائضو ځنې دې؟ ددې مختلف جوابونه ورکړې شوی دی.

---

[1]) سنن ابن ماجه (١٢٨) کتاب الزکاة باب ما أدی زکاته لیس بکنزرقم ١٧٨٩) _

[2]) جامع الترمذی (١٤٣/١) کتاب الزکاة باب ما جآء أن فی المال حقاً سوی الزکاة) _

[3]) السنن الکبری للبیهقی (٨٤/٤) کتاب الزکاة باب الدلیل علی أن من أدی فرض الله فی الزکاة فلیس علیه أکثر منه إلا أن یتطوع سوی ما مضی فی الباب قبله ) _

[4]) فیض القدیرشرح الجامع الصغیر(٤٧٢/٢) _

① يو جواب دا دې. چه په دې طريق كښې اختصار دې.گنى نبى كريم ﷺ د حج ذكر هم فرمائيلې وو ددې دليل دادې چه ددې حديث په دويم طريق كښې راغلى دى.«فأخبره رسول الله ﷺ بشرائع الإسلام»[1]گويانبى كريم ﷺ داسلام دټولو شرائعواو احكام ذكر اوفرمائيلو.[2]

② دويم جواب دا دې.چه دا په اصل كښې د راويانو تصرف دې.بعضو راويانو بعضې څيزونه ذكركړل.او نورو راويانو دا پريخودل.او نور څيزونه ئې ذكركړل گويا كوم كس ته چه كومه حصه ياده شوه.د هغې ذكر ئې اوكړو.او په دې طريقه دې روايت كښې د حج ذكر رانغلو.گنى نبى كريم ﷺ دا هم ذكر فرمائيلې وو.[3]

③ بعضې عالمان حضرات فرمائى.چه داسې بې بنياد طور باندې راويانو طرف ته نسبت كول صحيح نه معلوميږى.بلكه دلته به دا وئيلې شى.چه تر اوسه پورې چونكه حج فرض شوې نه وو.په دې وجه دې روايت كښې د حج ذكر رانغلو.[4]

په دې خبره داسې پوهه شئ.چه نبى كريم ﷺ پخپلو مختلفو ارشاداتو كښې اركان د اسلام بيان كړل.بيا ئې په دې كښې په بعضو ارشاداتو كښې څه اركان ذكركړل.او په بعضو كښې ئې د نورو اركانو، دا اختلاف د راويانو د تصرف او ددوى په حفظ او ضبط كښې د كمى زياتى په بنياد سره نه دې.بلكه پخپله په دې احاديثو كښې دا اختلاف موجود دې.او ددې نه د اركانو د فرضيت په تاريخ باندې دلالت مقصود دې.

مثلاً د ټولو نه وړاندې د كلمې دعوت وركړې شو.بيا په مكه مكرمه كښې د ليلة الاسراء په موقعه باندې مونځونه فرض شو.بيا د هجرت نه روستو زكاة او روژه فرض شوه.بيا په آخر كښې د مشهور قول مطابق ٦ﻫ كښې او د تحقيقى قول مطابق ٩ﻫ كښې د حج فرضيت نازل شو.

اوس چه كله د نبى كريم ﷺ په بعضو ارشاداتو كښې د بعضو اركانو ذكر كولې شى.او د بعضو اركانو ذكر نه كيږى.ددې وجه هم دا وى.چه د ذكر شوو اركانو حكم راغلى دې.او د متروكه اركانو اوسه پورې حكم نه دې نازل شوې.عادت مبارك هم دا وو كه د اركانو بيان مقصود وو.نو د ټولو اركانو ذكر به ئې فرمائيلې وو.كوم چه فرض شوى دى.حج تر اوسه پورې نه وو فرض شوې.په دې وجه دا ذكر نكړې شو.او د دعوت په موقعه به ئې د شهادتينو نه پس د مونځ او زكاة ذكر فرمائيلو.

دلته هم دا صورت دې.چه دې سړى ته ئې د اسلام په اركانو كښې د مونځ او د زكاة او د روژې حكم وركړو.خو د حج فرضيت چونكه تر اوسه پورې نه وو نازل شوې.په دې وجه ئې ددې ذكر اونه فرمائيلو.والله اعلم.

---

[1] صحيح بخارى كتاب الصوم باب وجوب صوم رمضان رقم (١٨٩١) ـ
[2] فتح البارى (١٠٧/١) ـ
[3] شرح النووى على صحيح مسلم (٣٠/١) وعمدة القارى( ٢٦٩/١) ـ
[4] عمدة القارى (٢٦٩/١) وفتح البارى(١٠٧/١) ـ

④ دا هم ممكن ده چه چونكه دغه سړى د خپل خان په باره كښې تپوس كولو او دده دحال نه نبى كريم ﷺ ته علم شوې وو چه په ده باندې حج واجب نه دې په دې وجه نبى كريم ﷺ دسره دحج ذكر اونه فرمائيلو (١)

**قوله** قَالَ فَأَدْبَرَ الرَّجُلُ وَهُوَ يَقُولُ وَاللَّهِ لَا أَزِيدُ عَلَى هَذَا وَلَا أَنْقُصُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْلَحَ إِنْ صَدَقَ: راوى فرمائى چه بيا دغه سړى دا ونيل او شاته شو چه په خدائې قسم! زه به نه په دې باندې اضافه كوم او نه به كمى كوم نبى كريم ﷺ اوفرمائيل كه دې سړى رشتيا ونيلى دى نو دا كامياب دې.

**ايا د مذكوره فرائضو نه علاوه نور واجبات ادا كول ضرورى نه دى؟** دلته يو سوال دا دې چه دې سړى ددې كارونو نه د زياتى د بل كار كولو نه انكار كړې دې او په دې باندې نبى كريم ﷺ د ،، فلاح ،، بشارت وركړې دې نو آيا نور واجبات اداكول فلاح دپاره ضرورى نه دى؟

ددې جواب دا دې چه ممكن ده اوسه پورې بل څه څيز واجب شوې نه وى په دې وجه ئې د بل څه څيز ذكر اونكړو او دا هم ممكن ده چه نبى كريم ﷺ د سائل او د حاضرينو رعايت ساتلې وى. والله اعلم.

**ايا ،،فلاح،، دپاره د منهياتو پريخودل ضرورى نه دى؟** دغه شان يو اشكال دلته دا هم كيږى چه نبى كريم ﷺ دلته د منهياتو نه د بچ كيدو حكم اونه فرمائيلو او دې سړى سوا د مذكوره احكامو نه د نورو كارونو د كولو نه انكار كړې دې. ددې مطلب دا شو چه دده په ذمه د منهياتو نه بچ كيدل هم لازم نه دى. ددې جواب ابن بطال رحمه الله دا وركړې دې چه ممكن ده چه دغه وخت فرائض د نهى نه وى نازل شوې. (٢)

په دې باندې **حافظ ابن حجر** رحمه الله د تعجب اظهار كوى ليكى چه دا څنګه ممكن ده؟ حالانكه ددوى په نيز دا سائل ضمام بن ثعلبه رضي الله عنه دې او ددوى په باره كښې دا فيصله ده چه په **۵ھ** كښې يا ددې نه روستو راغلې وو حالانكه د اكثرو منهياتو احكام ددې نه وړاندې نازل شوى وو. (٣)

حافظ رحمه الله فرمائى صحيح جواب دا دې چه په حقيقت كښې نبى كريم ﷺ د منهياتو ذكر هم فرمائيلې وو چه هغه دلته ذكر نه دې دا اجمالاً د اسماعيل بن جعفر په روايت كښې په «فأخبره رسول الله ﷺ بشرائع الإسلام» (٤) الفاظو سره بيان كړې شوى دى.

---

(١) عمدة القارى (٢٦٩/١)_
(٢) فتح البارى (١٠٨/١) وفت البارى (١٠٨/١)_
(٣) صحيح بخارى كتاب الصوم باب وجوب صوم رمضان)_
(٤) إكمال المعلم شرح صحيح مسلم (٨٠/١)_

خو علامه أبی رحمه الله د حافظ رحمه الله جواب رد کړي دې او فرمائیلي ئې دي چه «فأخبره رسول الله ﷺ بشرائع الإسلام» یو اجمالي روایت دې چه ددې تفصیل هم هغه دې کوم چه د ،، خمس صلوات،، او،، زکاة،، او د ،، صیام،، عنواناتو سره ذکر شوې دې نو د ،، شرائع الإسلام،، نه ټول اوامر او نواهي په دې حدیث کښې مراد اخستل صحیح نه دي (۱) والله اعلم

حافظ رحمه الله چه کوم جواب ورکړې دې هغه پخپل ځائې مناسب دې خو علامه أبی رحمه الله چه په دې کښې کومه خطره ښکاره کړې ده هغه هم لرې نه ده په دې وجه صحیح جواب هم هغه معلومیږي کوم چه ابن بطال رحمه الله ورکړې دې چه دا روایت هغه زمانې سره متعلق دې کله چه د نهی د فرائضو نزول نه وو شوې البته په دې صورت کښې به سائل لره ضمام بن ثعلبه ګرځول صحیح نه وي بلکه بل څوک سړې به وي او دا واقعه به بالکل د شروع وي والله أعلم وعلمه أتم وأحکم۔

**ایا د سنن رواتب پریخودو ګنجائش شته؟** په حدیث باب کښې تاسو ګورئ چه نبی کریم ﷺ صرف په فرائضو باندې د فلاح حکم مرتب کړې دې حالانکه فرائضو سره سره سنن هم مطلوب دي؟

په نورو الفاظو کښې داسې پوهه شئ چه دغه سړي «لا أزید علی هذا ولا أنقص» وئیلي دي چه په دې باندې نبی کریم ﷺ ،، أفلح إن صدق،، اوفرمائیل چه په ،، لا أنقص،، باندې د فلاح ترتب په پوهه کښې راځي خو په ،، لا أزید،، باندې د فلاح مرتب کولو بالکل په پوهه کښې نه راځي بلکه په دې باندې به د فلاح مرتب کولو دا مطلب وي چه د سنتو پریخودو ترغیب ورکولې کیږي؟

① بعضو عالمانو خو ددې جواب ورکړې دې چه د «أفلح إن صدق» تعلق د «لا أنقص» سره دې «لا أزید» سره نه دې (۲) خو د عبارت د سیاق نه ددې جواب تائید نه کیږي.

② امام نووي رحمه الله فرمائي چه نبی کریم ﷺ ددې سړي دپاره په دې وجه د .. فلاح .. حکم مرتب کړې دې چه ده فرائض ادا کړي دي په دې کښې داخبره نشته چه که اضافه اوکړي نو فلاح به نه حاصلیږي ځکه چه دا خبره معلومه ده چه هرکله صرف په واجباتو ادا کولو سره فلاح حاصلیدل یقیني دي نو واجباتو سره سره که څوک په مندوباتو باندې هم عمل اوکړي نو یقیناً په درجه اولی به دده دپاره فلاح ثابتیږي. (۳)

امام نووي رحمه الله فرمائي چه که یو کس صرف فرائض مکمل طور باندې ادا کړي نو هغه

(۱) نقله النووي في شرحه لصحیح مسلم (۳۰/۱) کتاب الإیمان باب بیان الصلوات التی هی أحد أرکان الإسلام)

(۲) شرح نووي علی صحیح مسلم (۳۰/۱) ـ

(۳) المصدر السابق) ـ

دپاره فلاح یقیني ده.د فلاح دپاره د سنتو او مندوباتو پخپله ضرورت نشته.(١) البته انسان چونکه د سرنه تر خپو پورې تولې خامیانې دی.دده نه فرائض کمال درجې سره نشی ادا کیدې.په دې وجه ددې دتکمیل دپاره مخکښې او روستنی سنت مشروع شوی دی.

خلاصه دا چه د نبی کریم ﷺ ددې سړی دپاره صرف په فرائضو او واجباتو ادا کولو باندې د .. فلاح.. خوشخبری ورکول بالکل په حقه وو.کوم سړې چه فرائض او واجبات مکمل طور باندې ادا کوی.د فلاح د حصول دپاره په ده باندې د سنتو او مندوباتو ادا کول لازم نه وی.او د سنتو وغیره د پریخودو په وجه به دې گنهگار نه وی.اګرچه هغه سړې به د زیاتې فلاح مالك وی.ځوك چه ددې سنتواو مستحباتو هم التزام کوی.

علامه أبی رحمه الله فرمائی.چه د امام نووی رحمه الله د جواب نه دا معلومیږی.چه د سنتو د پریخودو باوجود به ده ته فلاح حاصلیږی.ځکه چه د فرائضو پوره کولو په وجه هغه گنهگار پاتې نشو.خو اصل اشکال دا نه دې.بلکه اشکال خو دا دې.چه د فرائضو نه کوم زیاتی سنت او مستحبات دی.د هغې په پریخودو باندې فلاح مرتب کولو سره د سنتو پریخودو ترغیب او تشویق لازمیږی.(٢)

③ علامه قرطبی رحمه الله فرمائی.چه نبی کریم ﷺ ددې سړی دپاره د همیشوالی په طور سنت پریخودل جائز او نه ګرځول.البته چونکه هغه د اسلام زمانې سره ډیر نزدې وو.په دې وجه ئې د واجباتو په بیان او هم په دې باندې د فلاح مرتب کولو باندې اکتفاء کړې ده.او د سنتو او مندوباتو ذکر ئې مؤخر کړې دې.چه هغه مطمئن شی.او په کلاو زړه سره د خیر کارونو طرفته رغبت پیدا شی.بیا به دغه وخت د سنتو او مندوباتو ادا کول دده دپاره آسان شی.(٣)

④ علامه طیبی رحمه الله فرمائی.ممکن ده چه د «لا أزید علی هذا ولا أنقص» نه په تصدیق او قبول کښې غلبه مراد وی.«أی قبلت کلامك قبولاً لا مزید علیه من جهة السؤال، ولا نقصان فیه من جهة القبول» یعنی زه ستا خبره مکمل طور باندې قبلوم.په یو سوال کښې به هم اضافه نه کوم.او نه به په عمل کولو کښې کمی کوم.(٤)

⑤ علامه ابن المنیر رحمه الله فرمائی.ممکن ده.چه د «لا أزید علی هذا ولا أنقص» تعلق تبلیغ سره وی. ځکه چه هغه د یو قوم د طرفه ددې کار دپاره رالیږلې شوې وو.چه د اسلام د شرائعو علم حاصل کړی.او د خپل قوم خلقو ته ئې اوښائی.نو اوس به ددې جملې مطلب دا وی.چه زه به په تبلیغ کښې کمې زیاتې نه کوم.تاسو چه څنګه بیان کړی دی.او څومره دې بیان کړی

---

(١) إکمال المعلم شرح مسلم (٨٠/١) _
(٢) شرح الزرقانی علی المؤطا (٢٥٩/١) _
(٣) شرح الطیبی (١٣٣/١) تحت شرح حدیث أبی هریرة رضي الله عنه رقم ١٤ _
(٤) شرح الطیبی (١٣٢/١) رقم ١٤ وفتح الباری (١٠٨/١) _

دي بغير د څه کمی زياتی نه. دغه شان چه لاړ شم نو خلقوته به ئې بيانوم.(۱)

⑥ بعضو عالمانو فرمائيلی دی چه د «لا أزيد على هذا ولا أنقص» مطلب دا دې چه زه به د فرائضو په صفاتو کښې هيڅ تبديلی نه کوم مثلاً دا چه د ماسپښين په مونځ کښې به د يو رکعت کمی اوکړې شی يا د ماښام په مانځه کښې د يو رکعت کمی اضافه اوکړې شی داسې به نه کوم.(۲)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله مذکوره درې واړه احتمالات رد کړی دی ددې وجه دا ده چه د اسمعيل بن جعفر په روايت کښې د «لا أتطوع شيئاً ولا أنقص مما فرض الله على» الفاظ وارد شوی دی.(۳)

ددې نه معلومه شوه چه نه خو دا د تصديق او قبول نه کنايه ده او نه بغير د کمی زياتی نه د تبليغ او ابلاغ نه کنايه ده او نه ددې فرائضو تعداد زياتول يا کمول مراد دی بلکه ددې صفا معنی دا ده چه زه به صرف په فرائضو باندې اکتفاء کوم نوافل به نه ادا کوم.(۴)

علامه باجی مالکی رحمه الله د امام مالك او اسمعيل بن جعفر رحمهما الله ددې دواړو طرقو په مينځ کښې موازنه کړې ده او د امام مالك رحمه الله طريق ته ئې ترجيح ورکړې ده هغه فرمائی چه د امام مالك رحمه الله روايت اصح دې ځکه چه هغه د اسمعيل په مقابله کښې احفظ دې او نورو راويانو ددوی متابعت هم کړې دې او ممکن ده چه اسمعيل روايت بالمعنی کړې وی.(۵)

خو په دې طريقه ترجيح اختيارول صحيح نه معلوميږی ځکه چه ترجيح هغه ځائې کښې اختيارولې شی کوم ځائې چه جمع او تطبيق ممکن نه وی حالانکه دلته جمع ممکن ده لکه چه علامه باجی رحمه الله پخپله فرمائی «ولو صح احتمل المعنى لا أتطوع بشيء ما ألتزمه واجباً»(۶) يعنی که د اسمعيل روايت ثابت شی نو ددې معنی به دا وی چه زه به د کوم څيز د واجب په طور التزام کوم نو هغه به تطوع نه جوړوم مطلقاً د تطوع نه انکار نه دې.

⑦ دا توجيه هم ممکن ده چه نوافل او مستحبات او سنن رواتب په حقيقت کښې فرائضو دپاره د مکملاتو حيثيت لري دا څه مستقل جدا څيز نه دې نو د «لا أزيد على هذا» سره هيڅ تعارض نه دې ځکه چه نوافل او سنت خو په فرائضو کښې داخل دی څه زياتې څيز نه دې.

---

(۱) فتح البارى (۱۰۸/۱) _

(۲) شرح الطيبى (۱۳۲/۱) رقم الحديث ١٤) وفتح البارى (۱۰۸/۱) _

(۳) صحيح بخارى كتاب الصوم باب وجوب صوم رمضان رقم ۱۸۹۱) _

(۴) فتح البارى (۱۰۸/۱) وأوجز المسالک (۳۳/۱۳)_

(۵) شرح الزرقانى (۳۵۹/۱) وأوجز المسالک (۳۳/۱۳) _

(۶) المصادر السابقة) _

په دې وجه چه كله دې سړى «لا أزيد على هذا ولا أنقص» اووئيل.نو نبى كريم ﷺ نكير اونه فرمائيلو.بلكه اجازت ئې ورکړو.او د فلاح خوشخبرى ئې واوروله.(١)

⑧ امام العصر علامه كشميرى رحمه الله فرمائى.ممكن ده چه نبى كريم ﷺ د ټولو فرائضو او شرائعو په باره كښې هدايت فرمائيلې وو.ددې نه پس سنن موكدات وغيره پاتې كيږى.چه د هغې مقرر كول او متعين كول.د نبى كريم ﷺ د آخرى لمحاتو پورې شوى دى.هم دهغې په باره كښې نبى كريم ﷺ دغه سړې مستثنى اوګرځولو.اودا د شارع ﷺ منصب وو.ددې په ثبوت كښې ډير واقعات ملاويږى:

لكه چه نبى كريم ﷺ د يو سړى دپاره په قربانۍ كښې د يوكال نه د كم عمر چيلۍ اجازت وركړو.او وې فرمائيل.چه ستا نه پس به بل سړى دپاره اجازت نه وى.(٢)

دغه شان يو سړى د رمضان روژه د جماع په وجه ماته كړله.نبى كريم ﷺ د غلام آزادولو، بيا د شپيتو روژو نيولو، بيا شپيتو مسكينانو ته د خوراك خوړلو حكم وركړو.خو هغه به عذر كولو.بيا نبى كريم ﷺ د كفارې كجورې وركړلې.چه دا صدقه كړه.هغه اووئيل.حضور زما نه زيات مسكين په مدينه طيبه كښې نشته.نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.هم ته ئې خرچ كړه.خو دغه شان به بل چا دپاره جائز نه وى.(٣)

غرض دا چه ددې واقعاتو پشان دلته هم دا ممكن ده.چه نبى كريم ﷺ دا سړې د سنتو نه مستثنى ګرځولې وى.(٤)

علامه كشميرى رحمه الله فرمائى.چه ددې توجيه په وجه دا ونه ګنړى.چه نبى كريم ﷺ به په فرائضو او واجباتو كښې هم څوك مستثنى كولى شو.لكه څنګه چه علامه سيوطى رحمه الله ګنړلى دى.

امام ابوداؤد رحمه الله پخپل سنن كښې د حضرت فضاله رضي الله عنه حديث نقل كړې دې.هغه فرمائى

---

(١) أوجزالمسالك (٣٣١\١) _

(٢) قال ابن ابى عدى خطبنا رسول الله ﷺ فقال لا يذبحن أحد قبل أن نصلى فقام إليه خالى وقال يارسول الله هذا يوم اللحم وفيه كثير قال ابن أبى عدى مكروه وإنى ذبحت نسكى قبل ليأكل أهلى وجيرانى وعندى عناق لبن خيرمن شاتى لحم فاذبحها؟ قال نعم ولا تجزىء جذعة عن أحد بعدک وهى خير نسكتک أخرجه أحمد فى مسنده ٢٩٧\٤، ٢٩٨) _ مسند البراء بن عازب رضي الله عنه ) _

(٣) انظر سنن أبى داودكتاب الصوم باب كفارة من أتى أهله فى رمضان (رقم(٢٣٩٠ ، ٢٣٩٥) وزاد الزهرى فى رواية وإنما كان هذا رخصة له خاصة فلو أن رجالاً فعل ذالک اليوم لم يكن له بد من التكفير أخرجها أبوداود فى كتاب الصوم باب كفارة من أتى أهله فى رمضان رقم(٢٣٩١) ، تنبيه: قال الزيلعى رحمه الله فى نصب الراية (٤٥٣\٢) وقوله فى الكتاب (أى فى الهداية) تجزئک لا تجزىء احداً بعدک لم أجده فى شئ من طرق الحديث) _

(٤) فيض البارى (١٣٧\١) وأنوارالبارى (١٥٣\٢) _

«علمنى رسول الله فكان فيما علمنى وحافظ على الصلوات الخمس، قال: قلت إن هذه ساعات، لى فيها أشغال، فمرنى بأمر جامع إذا أنا فعلته أجزأ عنى، فقال: حافظ على العصرين، وما كانت من لغتنا، فقلت وما العصر؟ فقال: صلاة قبل طلوع الشمس وصلاة قبل غروبها»(١)

علامه سيوطى رحمه الله ددې حديث لاندې فرمانيلى دى.چه كيدې شى.سائل دپاره نبى كريم ﷺ د سائل دپاره درې فرض مونځونه معاف كړې وى.او د عام حكم نه ئې مستثنى ګرځولې وو دا خبره صحيح نه ده.ځكه چه نبى كريم ﷺ د خپل خصوصى امتياز په وجه دا كولى شو.چه دچا دپاره د نجات او فلاح مدار صرف ادا كول اوبنائى.او هم دا حديث د فضاله رضي الله عنه محمل دې.خو د فرائضو نه مستثنى كولو اختيار ثابتول مشكل دى.(٢)

لكه چه امام بيهقى رحمه الله ددې تاويل كوى.فرمائى.«كأنه أراد ،، والله أعلم،، حافظ عليهن فى أوائل أوقاتهن، فاعتذر بالأشغال المفضية إلى تاخيرها عن أوائل أوقاتهن، فأمره بالمحافظة على هاتين الصلاتين، بتعجيلهما إلى أوائل وقتيهما، وبالله التوفيق»(٣)

يعنى نبى كريم ﷺ چه كله د ټولو نه مخكښې دوى ته «حافظ على الصلوات الخمس» اوفرمائيل.او د مونځونو د پابندئ حكم ئې وركړو.نو ددې مطلب دا وو. چه ددې مونځونو پخپلو مستحب وختونو كښې په شروع كښې د ادا كولو اهتمام كوه.خو كله چه دوى عذر پيش كړو.چه زما بعضې مصروفيات داسې دى.چه د اول وختونو التزام به زما دپاره مشكل وى.تاسو زما دپاره د خصوصى رعايت صورت راوباسئ.نو نبى كريم ﷺ د ،،عصرين،، يعنى د سحر او د مازيګر په باره كښې هم دا تاكيدپخپل حال اوساتلو.البته د باقى مونځونو په باره كښې ئې رعايت اوفرمائيلو.چه په دې كښې څه تاخير اوشى.نو هيڅ باك نشته.خو مطلقاً معاف نه دى.

① حضرت مولانا محمد ادريس صاحب كاندهلوى رحمه الله فرمائى.چه بعضو عالمانو د «لا أزيد ولا أنقص» مطلب بيان كړې دې.چه «لا أزيد على هذا السؤال، ولم يبق لى فيما سألت: إشكال وشك، حتى أحتاج إلى زيادة السؤال، ولا أنقص منه، أى لا أترك شيئاً مما أمرتنى به، بل آتى بجميعه» (٤) مطلب دا دې.چه زما سوالونه ختم شو.هيڅ شك او شبه پاتې نشوه. په دې وجه به زياتى سوالونه نه كوم.او كوم څه چه تاسو حكم فرمائيلې دې.په هغې به مكمل عمل كوم.د خپل طرفه به هيڅ قسمه تبديلى نه كوم.دا هم دغه شان ده.لكه څنګه چه قرآن كريم كښې ارشاد دې.

---

(١) سنن أبى داود (٦١/١) كتاب الصلاة باب المحافظة على الصلوات رقم ٤٢٨) _

(٢) انظر فيض البارى (٣٨/١) وأنوار البارى (١٥٣/٢) _

(٣) السنن الكبرى للبيهقى (٤٦٦/١) كتاب الصلاة باب من قال هى (الصلاة الوسطى) الصبح) _

(٤) التعليق الصبيح (٣١/١) _

﴿قُلْ مَا يَكُونُ لِيٓ أَنْ أُبَدِّلَهُۥ مِن تِلْقَآءِ نَفْسِيٓ ۖ إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰٓ إِلَيَّ﴾ (۱)

⑩ بعضې حضرات فرمائی چه اصل کښې ددې قول تعلق اعتقاد سره دې چه کوم څیزونه تاسو فرض گرځولی دی هغې دپاره به زه د فرض عقیده ساتم او کوم څیزونه چه تاسو نفل گرځولی دی هغه به عقیدتاً نفل گنړم په دې عقیده کښې به هیڅ تبدیلی، زیاتې یا کمې نه کوم. (۲)

⑪ او حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائی چه کله کله مقصود د یو څیز نفی وی خو ورسره ورسره ددې د ضد نفی هم کولې شی. داسې صرف د کلام د تحسین یا د تاکید او مبالغې دپاره کولې شی. لکه چه د اخستلو او خرڅولو په وخت بائع یو نرخ ښائی نو اخستونکې تپوس کوی چه په دې کښې به څه کمې زیاتې نه کیږی ښکاره ده چه دلته کمې مقصود دې زیاتې مقصود نه دې. دغه شان بائع ددې په جواب کښې وائی کمې او زیاتې هیڅ به نه کیږی. دغه شان د یوڅیز د تللو په وخت اخستونکې بائع ته وائی په ښه شان ئې اوتله چه کمې زیاتې درنه اونشی. دلته هم د کمولو نفی کول مقصود وی. که څه زیاتې ورکړی نو مشتری به ئې هیڅ چرې منع نکړی. دغه شان دلته کښې مقصود ،،لا أنقص،، دې. د ،،لا أزيد،، ذکر صرف د کلام دتحسین یا د ،، لا أنقص،، د تاکید دپاره دې چه پوره پوره به ئې ادا کوم. ذره برابر به هم کمې نه کوم. (۳)

په قرآن کریم کښې د الله تعالی ارشاد دې. ﴿إِذَا جَآءَ أَجَلُهُمْ فَلَا يَسْتَـْٔخِرُونَ سَاعَةً ۖ وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ﴾ (۴) یعنی کله چه ددوی مقرر وخت راشی. نو نه به یو ساعت شاته کیدې شی. او نه به وړاندې کیدې شی.

دلته مشهور اشکال دې چه نیټه راشی. نو دغه وخت ،، استیخار،، خو عقلاً ممکن دې نو ددې نفی کول صحیح ده. او مفید هم ده. مگر ،، استقدام،، خو عقلاً دسره ممکن نه دې. ځکه چه دا محال دې چه یو سړې د نن نه دوه کاله یا څلور کاله وړاندې مړ شی. ددې نفی هیڅ فائده نشته. ځکه چه ددې عقلاً تصور هم نشی کیدې؟

حضرات مفسرینو ددې مختلف جوابونه ورکړی دی. خو د ټولو نه غوره جواب هم دا دې چه اصل مقصود د ﴿فَلَا يَسْتَـْٔخِرُونَ﴾ والا نفی ده. او ﴿وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ﴾ د کلام د تحسین یا تاکید دپاره راوړلې شوې دې. (۵) والله أعلم وعلمه أتم وأحكم

---

۱) يونس:۱۵) _

۲) قاله الباجي ،كذا في شرح الزرقاني على الموطا (۱/۳۵۹) _

۳) فضل الباري (۱/۵۰۵) _

۴) يونس: ۴۹) _

۵) فضل الباري(۱/۵۵) _

ايا د امر خير په پريخودو باندې قسم خوړل صحيح دی؟ دلته يو اشکال دا کيږی چه ده ،،لا أزيد ولا أنقص،، ونيلو سره حلف (قسم) هم قسم خوړلې دې گويا مطلب دا شو چه په خدائې قسم! چه زه به زياتی تطوع وغيره نه کوم سوال دا دې چه مدار د نجات او فلاح اگرچه فرائض دی خو تطوع يود خير امر دې ددې په پريخودو باندې نې ولې قسم او خوړلو؟

ددې جواب دا دې چه د امر خير په پريخودو باندې حلف اوچتول هغه وخت ممنوع دی کله چه د امر خير پريخودل، او ددې نه بچ کيدل د کراهت په وجه، يا د سنت نه بې رغبتئ په وجه سره وی که د فرصت نه کيدو په وجه يا د مشغولتيا په وجه وی نو ممنوع نه دې.(١)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه «ذالك مختلف باختلاف الأحوال والأشخاص» يعنی دا ممانعت مطلقاً نه دې بلکه د مختلف احوالو په اعتبار سره دې دغه شان دمختلفو اشخاصو (او افرادو) په اعتبار سره ددې ممانعت ختميدې هم شي.(٢) والله اعلم

**قوله: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْلَحَ إِنْ صَدَقَ:** نبی کريم ﷺ اوفرمائيل که دا سړې رشتيا وائی نو کامياب دې ددې حديث په بعضو طرقو کښې د ،،أفلح وأبيه إن صدق،، الفاظ راغلی دی.(٣)

**ايا د غير الله قسم خوړل صحيح دی؟** په دې باندې اشکال دا دې چه نبی کريم ﷺ د غير الله د قسم خوړلو نه منع فرمائيلې ده ارشاد ئې فرمائيلې دې چه «ألا إن الله ينهاكم أن تحلفوا بآبائكم، فمن كان حالفاً فليحلف بالله، وإلا فليصمت» دغه شان د نبی کريم ﷺ ارشاد دې «من حلف بغير الله فقد كفر أو أشرك»(٤) نو بيا ئې ،،وأبيه،، څنگه ارشاد اوفرمائيلو؟

عالمانو ددې مختلف جوابونه ورکړی دی: ① بعضې حضرات فرمائی چه دا الفاظ د هغه کلماتو څخې دی د کومو نه چه ظاهری معنی مقصود نه وی لکه چه يوه ښځه تکليف رسونکې يا منحوسه وی نو اهل عرب وائی «،،عقرى،، أى عقرها الله» (الله تعالې دې ددې گونتې (خپې) ماتې کړی) دغه شان «،،حلقى،، أى حلقها الله» (يعنی الله تعالی دې دا گنجې کړی) يا «تربت يمينك» (ستا لاس دې په خاورو کښې ککړ شی) وئيلې شی دلته هم دغه شان د ،،وأبيه،، نه حلف مقصود نه دې.(٥)

---

(١) حواله جات بالا۔
(٢) فتح البارى (١٠٨١١)
(٣) صحيح مسلم (٣٠١١) كتاب الإيمان باب بيان الصلوات التى هى أحد أركان الإسلام)
(٤) صحيح البخارى (٩٨٣١٢) كتاب الأيمان والنذور باب لاتحلفوا بآبائكم)
(٥) فتح البارى (١٠٧١٩١) عمدة القارى (٢٦٩١١)

② بعضې عالمان فرمائي چه دلته مضاف محذوف دې.تقدير د عبارت داسې دې،،ورب أبيه،، نو دا د غيرالله حلف نه دې.(۱)

③ بعضې حضرات فرمائي.چه دا د نبی کریم ﷺ خصوصيت دې.يعنی هغوی دپاره جائز دی.بل چا دپاره اجازت نشته.(۲)

علامه زرقاني رحمه الله فرمائي. چه په پلارانو سره د قسم خوړلو ممانعت د غيرالله د تعظيم د يرې نه شوې دې.او د نبی کریم ﷺ په باره کښې د غيرالله د تعظيم توهم او تصور هم ممکن نه دې.په دې وجه هغوی دپاره د ممانعت حکم پاتې نشو.(۳)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله د خصوصيت والا قول باندې اعتراض کوی. فرمائي.،، ويحتاج إلى دليل،،(۴)يعنی د خصوصيت منلو دپاره د خصوصی دليل ضرورت دې.

④ حافظ ابوالقاسم سهيلي رحمه الله د خپلو بعضو مشائخو رحمهم الله نه نقل کړی دی.چه په ،،و أبيه،، کښې اصل کښې تصحيف دې.په دې طريقه چه په اصل کښې ،،والله،، وو.کاتب د دواړو لامونو سرونه واړه کړل.د نقطو چونکه خاص اهتمام نه وو.په دې وجه دا ،،وأبيه،، اوونيلې شو.(۵)

خو علامه قرطبی رحمه الله دا توجيه منکر ګرځولې ده.فرمائي.چه ((إنه يخرم الثقة بالروايات الصحيحة))(۶)يعنی داسې احتمالات د صحيح رواياتو د ثقاهت دپاره نقصان ده دی.

⑤ علامه قرافي رحمه الله ددې اشکال نه د خلاصی دپاره د ،،وأبيه،، د ورود د سره انکار کړې دې.لکه فرمائي.چه په موطا کښې چونکه دا لفظ نشته.په دې وجه دا لفظ د سره ثابت نه دې.(۷)

خو ددوی قول باطل دې.ځکه چه د يو لفظ په مؤطاکښې نه کيدل، ددې نه د نه ثابتيدو دليل نه دې. حالانکه دا لفظ په معتبر طرقو سره ثابت دې.(۸)

---

۱) فتح الباري( ۱۰۷/۱) وعمدة القاري (۲۷۰/۱) _
۲) المصادرالسابقة) _
۳) شرح الزرقاني(۳۵۹/۱)-
۴) فتح الباري( ۱۰۷/۱) وعمدة القاري( ۲۷۰/۱) _
۵) فتح الباري( ۱۰۸،۱۰۷/۱) _
۶) المصدرالسابق) _
۷) المصدرالسابق) _
۸) المصدر السابق)

④ بعضې حضرات فرمائي چه د داسې قسمه حلف وړاندې ممانعت نه وو.روستو دا حلف منسوخ شو.د نبي كريم ﷺ د حلف واقعه وړاندې ده.د ممانعت نه روستو نه ده.(۱)

خو دا جواب حافظ فضل الله توربشتي رحمه الله رد كړې دې.علامه انورشاه كشميرى رحمه الله ددوى كلام نقل كړې دې.فرمائي چه هغوى فرمائيلى دى.چه بعضو حضراتو دلته د نبي كريم ﷺ او د صحابة كرامو رضي الله عنهم نه كوم قسمونه منقول دى.په دې كښې او د ممانعت والا حديثونو كښې د تطبيق وركولو دپاره د نسخ دعوه كړې ده.خو دا ددې عالمانو خطاء ده.ځكه چه نسخ په داسې څيزونو كښې كيږى.كوم چه په حد د جواز كښې وى.او په روايت كښې حلف د غير الله شرك ګرځولې شوې دې.شرك په هرحالت كښې او هميشه دپاره حرام پاتې شوې دې.او كومې خبرې چه په دين كښې اخلاص پيدا كونكى دى.او توحيد د شرك جلى او خفى د شبهاتو نه لرې كونكى دى.هغه په ټولو دينونو كښې ضرورى او واجب پاتې شوى دى.نو د نسخ والا جواب بالكل صحيح نه دې.(۲)

علامه توربشتي رحمه الله فرمائي.چه ددې بهتر جواب دا دې.چه دا ,, وأبيه،، دسره حلف نه دې.بلكه دوى دا لفظ صرف د كلام د مضبوطوالى دپاره استعمال كړې دې.(۳)

پاتې شوه دا خبره چه نبي كريم ﷺ ته د نورو خلقو په نسبت د نور هم زيات احتياط ضرورت وو.چه د داسې كلماتو تلفظ هم اونه فرمائي.بيا هم دوى څو څو خله داسې كلمات ارشاد فرمائيلى دى.نو ښكاره دا ده.چه دا كلمات به هغوى د ممانعت نه وړاندې فرمائيلى وى.او ددې نه پس به ئې بالكليه ددې نه هم احتراز فرمائيلې وى.چه نور ناخبره خلق ددې نه په څه غلط فهمئ كښې مبتلا نشى.(۴) والله اعلم.

⑤ امام العصر حضرت علامه كشميرى رحمه الله فرمائي.چه دټولو نه غوره جواب د روم فاضل حسن چلپي رحمه الله د مطول په حاشيه كښې وركړې دې.(۵) او علامه ابن عابدين شامى رحمه الله هم دا د ,,رد المحتار،، په شروع كښې نقل كړې دې.(۶)ددې جواب خلاصه دا ده چه:

,,لعمرى،، وغيره پشان د قسم الفاظو نه ممكن ده.چه د قسم صورت مراد وى.او ددې نه صرف د كلام تاكيد مقصود وى.ځكه چه دا صورى قسم د كلام د تاكيد دپاره د ټولو نه زيات موثر دې.او د شرعى قسم د تاكيد په مقابله كښې په دې كښې احتياط هم دې.ځكه

---

۱) فتح البارى(۱/۱۰۷) وعمدة القارى(۱/۲۶۹) _

۲) البدرالسارى إلى فيض البارى(۱/۱۳۹) وأنوارالبارى(۲/۱۵۷) _

۳) المصادرالسابقة) _

۴) أنوارالبارى (۲/۱۵۷) والبدرالسارى حاشيه فيض البارى( ۱/۱۴۰) _

۵) حاشية المطول لحسن الچلپى (۳۶) منشورات الرضى .قم، ايران) _

۶) ردالمحتار على الدرالمحتار.فواتح الكتاب(۱/۱۳. ۱۴) _

چه شرعي قسم پوره كول ضروري او واجب وي.دلته شرعي قسم مراد نه دې.او نه غيرالله ته په عظمت او لوئي شان كښې الله تعالى سره تشبيه وركول مقصود دى.چه د «من حلف بغير الله فقد أشرك» ممانعت، مخالفت لازم شي.

حاصل دا چه په ،،وأبيه،، كښې لغوي او صوري قسم دې.شرعي قسم نه دې.د رومبي نه مقصود كلام ښائسته كول، او مؤكد كول وي.د محلوف به هيڅ تعظيم مقصود نه وي او په دويم قسم سره د كلام تاكيد سره سره د محلوف به تعظيم هم مقصود وي.ممانعت په دې دويم قسم كښې دې.رومبي كښې نه دې.(١)

امام العصر علامه كشميري رحمه الله فرمائي.چه ددې لغوي قسم ممانعت اگرچه نشته.خو زما په نيز ددې نه هم د منع كيدو ضرورت دې.چه خلق په دې معامله كښې د كوتاهئ نه كار وانخلي.(٢)

تر كومه پورې چه ددې خبرې د ثبوت تعلق دې.چه لغوي قسم سره صرف د كلام تاكيد. او ښائست مقصود وي.د محلوف به تعظيم ملحوظ نه وي.نو ددې دليل دا دې.چه د ډيرو شاعرانو په كلام كښې د دشمنانو او مذمومو خلقو دپاره هم ددوى د پلارانو سره د حلف طريقه مستعمل شوې ده.ښكاره ده.چه د چا هجو ( ذم بيانول) مقصود وي.يا د هغوى د بدو ذكر وي.نو په داسې مقام باندې د ،،وأبيه،،يا،،وأبيهم،،پشان الفاظو نه ددوى تعظيم هيڅ كله مقصود نشي كيدې. البته د كلام تزئين ( او ښائست) ملحوظ كيدې شي.لكه چه د ابن مياده شعر دې:

أظنت سفاها من سفاهة رأيها لأهجوها لما هجتني محارب

فلا و أبيها ، إنني بعشيرتي ونفسي عن ذاك المقام لراغب (٣)

( يعني محارب چه كله زما هجو اوكړه.( زما بد ئې اوونيل).نو هغه د خپلې ناپوهتيا او جهالت په وجه باندې دا اوګنړل.چه زه به دهغه هجو كوم.نه نه! زه خپل خان او خپل خاندان ددې حركت نه ډير اوچت ګنړم).

**په قران كريم كښې د وارد شوو قسمونو په باره كښې د قاضي بيضاوي ؒ تحقيق** حضرت علامه كشميري رحمه الله د قاضي بيضاوي رحمه الله نه په قرآن كريم كښې د وارد شوو قسمونو په سلسله كښې يو تحقيق رانقل كړې دې.د هغې حاصل دا دې چه: قرآن كريم كښې الله تعالى خومره قسمونه هم ذكر كړى دى.ښكاره ده.چه په هغې كښې الله تعالى ته د هغې تعظيم مقصود نه دې.بلكه هلته مقصد دغه څيزونه د شهادت په طور پيش كول دى.چه د روسنو

---

(١) البدرالساري (١١\١٣٩) وأنوارالباري(١٢\١٥٧) _

(٢) أنوارالباري( ١٢\١٥٨) _

(٣) البدري الساري(١١\١٤٠) وأنوارالباري(١٢\١٥٨) _

ذکر کیدونکی ځیز ثبوت او وضاحت ددې په رڼرا کښې اوشی.هلته چه د فقهاو په نیز چه د معروف حلف کوم صورت دې.هغه مقصود نه دې.(۱)

حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی.چه د قاضی بیضاوی رحمه الله دا تحقیق ډیر ښه دې.ددې د منلو په صورت کښې به دا منل ضروری وی.چه غلطی د نحویانو نه کیږی.چه هغوی دا ،، واو،، هم د قسم په واو کښې داخل کړې دې.چه په دې سره معهود .. واو.. طرف ته ذهن ګرځیږی.که ددې په ځائې نې دا .. واو.. ..واو د شهادت.. ګرځولې وې نو هیڅ اعتراض به نه کیدو.او نه به داصل حقیقت په پیژندلو کښې هیڅ مشکل راپیښیدو.(۲)،، والله أعلم و علمه أتم وأحکم،،_

# ۳۴ = بَابُ اتِّبَاعُ الْجَنَائِزِ مِنَ الْإِیمَانِ

**د ذکر شوی باب د ماقبل سره مناسبت**:ددې نه وړاندې د،،باب الزکاة من الإسلام،، ذکر وو.ددې نه پس ،،إتباع الجنائز،، ذکر کولو کښې دې طرف ته اشاره کیدې شی.چه لکه څنګه چه زکاة سره د مسلمانانو فقیرانو حقوق ادا کولې شی.دغه شان .. اتباع الجنائز.. سره هم د مسلمانانو حق ادا کولې شی.(۳)

یا دا اووایئ:چه دواړو بابونو کښې دا قدر مشترک دې.چه زکاة هغه مسلمان ته ورکولې شی.چه هغه معذور او مجبور وی.او د احتیاج په وجه د مړی پشان دې.او عام طور باندې مړې هم مجبور او لاچار وی.(۴)

علامه عینی رحمه الله فرمائی.چه په دواړو بابونو کښې مناسبت په دې طریقه دې.چه د انسان دوه حالتونه وی.حالت د ژوند او حالت د مرګ، په مخکنې باب کښې د دین دهغه ارکانو ذکر دې.کوم چه بغېر د واسطې نه په عمل کښې راوستلې شی.او ثواب حاصلولې شی.او په دې باب کښې هغه ثواب ذکر کړې شوې دې.کوم چه په واسطې د مړو ژوندو ته ملاویږی.(۵)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه امام بخاری رحمه الله د ایمانی شعبو ذکر فرمائی.تقریباً د اکثرو تراجمونه فارغ شو.اوس دوی په آخرکښې هم په دې سلسله کښې ،،باب اتباع الجنائز من الإیمان،، قائم کړې دې.څکه چه دا دټولونه آخری عمل دې.کوم چه مومن سره په دنیا کښې راپیښیږی.(۶)

---

(۱) أنوارالباری(۱۵۸\۲) والبدرالساری(۱۴۱\۱) _
(۲) المصار السابقة)
(۳) إمدادالباری(۶۷۹\۴) _
(۴) المصدرالسابق) وفضل الباری(۵۰۸\۱) _
(۵) عمدة القاری(۲۷۰\۱) _
(۶) فتح الباری(۱۰۸\۱)

حافظ رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله ،،باب أداء الخمس من الإيمان،، ددې نه هم موخر كړې دې چه ددې وجه به زه روستو بيان كړم.(١) خو حافظ رحمه الله ددې وجه چرته هم نه ده ذكر كړې شيخ الحديث مولانا محمد يونس صاحب مظاهرى رحمه الله فرمائى چه ددې توجيه زما په ذهن كښې دا راځى چه اصل كښې جهاد كښې غنيمت راځى.او ددې نه خمس اوبنكلې كيږى.او قاعده دا ده چه د جهاد ختميدو نه پس د ټولو نه وړاندې شهيدان دفن كولې شى او ددې نه پس غنيمتونه تقسيميږى.او خمس وغيره اوبنكلې كيږى.چونكه د خمس اداكول په ميدان جهاد كښې د شهيدانو د دفن كولو نه پس كيږى.په دې وجه امام بخارى رحمه الله د ،،اتباع الجنائز،، د ترجمې نه پس د ،،أداء الخمس،، ترجمه قائم كړې ده.والله تعالى اعلم.

٤٧ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَلِيٍّ الْمَنْجُوفِيُّ قَالَ حَدَّثَنَا رَوْحٌ قَالَ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنْ الْحَسَنِ وَمُحَمَّدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ(٢) أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ (مَنْ اتَّبَعَ جَنَازَةَ مُسْلِمٍ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا وَكَانَ مَعَهُ حَتَّى يُصَلَّى عَلَيْهَا وَيَفْرُغَ مِنْ دَفْنِهَا فَإِنَّهُ يَرْجِعُ مِنْ الْأَجْرِ بِقِيرَاطَيْنِ كُلُّ قِيرَاطٍ مِثْلُ أُحُدٍ وَمَنْ صَلَّى عَلَيْهَا ثُمَّ رَجَعَ قَبْلَ أَنْ تُدْفَنَ فَإِنَّهُ يَرْجِعُ بِقِيرَاطٍ تَابَعَهُ عُثْمَانُ الْمُؤَذِّنُ قَالَ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. [١٢٦٠،١٢٦١]

## رجال الحديث

① احمد بن عبدالله بن على المنجوفى: دا ابوبكر احمد بن عبدالله بن على بن سويد بن منجوف سدوسى منجوفى بصرى دې.كله اختصار كولو سره على بن عبدالله بن منجوف هم ونيلې كيږى.(٣)

دوى د روح بن عباده، سعيد بن عامر ضُبعى، ابوداؤد طيالسى، ابو عاصم ضحاك بن

---

١) المصدر السابق) ـ

٢) الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى صحيحه فى كتاب الجنائز. باب فضل إتباع الجنائز رقم ١٣٢٣ وباب من انتظر حتى تدفن رقم ١٣٢٥ ومسلم فى صحيحه (١\٣٠٧) كتاب الجنائز باب فى حصول ثواب القيراط بالصلاة على الميت والقيراطين بالرجوع بعد دفنه والنسائى فى سننه (١\٢٧٥) كتاب الجنائز باب فضل من تبع جنازة وفى (٢\٢٧١) وكتاب الإيمان وشرائعه باب شهود الجنائز وأبوداود فى سننه فى كتاب الجنائز باب فضل الصلاة على الجنائز وتشييعها رقم(٣١٦٨ و٣١٦٩)والترمذى فى جامعه فى كتاب الجنائز باب ما جآءفى فضل الصلاة على الجنازة رقم(١٠٤٠) وابن ماجه فى سننه فى كتاب الجنائز باب ما جاء فى ثواب من صلى على جنازة ومن انتظردفنها رقم ١٥٣٩ ) ـ

٣) تهذيب الكمال(١\٣٦٥) وتهذيب التهذيب(١\٤٨) ـ

مخلد، عبدالرحمن بن مهدی، عبدالملك قريب اصمعی، او يحي بن سعيد القطان ﷺ وغير نه روايت د حديث كوى.[1]

ددوى نه امام بخارى، امام ابوداؤد، امام نسائى، محمد بن اسحاق بن خزيمه، او يحي بن محمد صاعد ﷺ وغيره روايت كوى.[2]

ابن حبان رحمه الله دوى لره په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې.[3]

ابن اسحاق الحبال رحمه الله فرمائى.،،بصرى ثقة،،[4]

امام نسائى رحمه الله فرمائى.،،صالح،،[5]

حافظ ابن حجر رحمه الله ليكى.،،صدوق،،[6]

په ٢٥٢ھ كښې ددوى وفات شوې دې.[7] رحمة الله عليه.

② روح: دا ابومحمد روح (بفتح الراء المهملة) بن عباده (بضم العين المهملة) بن العلاء بن حسان بن عمرو بن مرثد قيسى بصرى دې.[8]

دوى د اسامه بن زيد مدنى، حسين معلم، عوف اعرابى، على بن سويد بن منجوف، سعيد بن ابى عروبه، حجاج الصواف، حماد بن سلمه، حماد بن زيد، سفيان ثورى، سفيان بن عيينه، شعبه بن الحجاج، محمد بن عبدالرحمن بن ابى ذئب، مالك بن انس، امام اوزاعى، او ابن جريج ﷺ وغيره نه حديث حاصل كړى دى.[9]

ددوى نه د مدحدثينو يو لوئې جماعت فيض حاصل كړې دې چه په دې كښې ابراهيم بن دينار، ابراهيم بن سعيد جوهرى، ابراهيم بن يعقوب جوزجانى، احمد بن عبدالله منجوفى، اسحاق بن راهويه، اسحاق بن منصور الكوسج، حسن بن الصباح البزار، حجاج بن الشاعر، حسن بن على الحلوانى، ابو خيثمه زهير بن حرب، عبدالله بن محمد المسندى، ابو قلابه عبدالملك بن محمد الرقاشى، عبد بن حميد، على بن المدينى، او يعقوب بن

---

[1] المصدر السابق) ـ
[2] المصادر السابقة)
[3] الثقات لابن حبان(٣٠١/٨) ـ
[4] تهذيب التهذيب(٤٨/١١) ـ
[5] تهذيب الكمال (٣٦٦/١١) وتهذيب التهذيب (٤٨/١١) والكاشف (١٩٧/١) رقم ٤٩ وخلاصة الخزرجى (ص.٨)
[6] تقريب التهذيب (ص.٨١) رقم ٥٨) ـ
[7] تهذيب الكمال (٣٦٦/١١) وغيره كتب رجال) ـ
[8] تهذيب الكمال(٢٣٨/٩) وغيره)-
[9] تهذيب الكمال(٢٣٩/٩) وسير أعلام النبلاء (٤٠٢/٩، ٤٠٣) ـ

شيبه سدوسى رحمه الله وغيره دى.[1]

محمد بن سعد رحمه الله فرمائى: ،،وكان ثقة إن شاء الله،،[2]

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى: ،،الحافظ الصدوق الإمام.....،،[3]

ذهبى رحمه الله ليكلى دى: ،،ثقة مشهور، حافظ من علماء أهل البصرة،،[4]

ابن حبان رحمه الله دوى لره په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې.[5]

حافظ ا بن حجر رحمه الله فرمائى: ،،ثقة فاضل له تصانيف،،[6]

حافظ خطيب بغدادى رحمه الله فرمائى: «وكان كثير الحديث، وصنف الكتب في السنن والأحكام، وجمع التفسير، وكان ثقة»[7]

امام يحي بن معين رحمه الله فرمائى: «صدوق وليس به بأس، حديثه يدل على صدقه.....»[8] دغه شان دده نه نقل دى: ،،روح بن عبادة صدوق ثقة،،[9]

امام احمد رحمه الله فرمائى: «لم يكن به بأس، لم يكن متهما بشيء من هذا، يعني الكذب»[10]

امام ابن المدينى رحمه الله فرمائى: «من المحدثين قوم لم يزالوا الحديث، لم يشغلوا عنه نشأوا، فطلبوا، ثم صنفوا، ثم حدثوا، منهم: روح بن عبادة»[11]

خلاصه دا چه روح بن عباده رحمه الله د جمهورو محدثينو او د جرح او تعديل امامانو په نيز ثقه او فاضل محدث دې.

البته بعضو حضراتو په دوى باندې كلام كړې دې.خو عام طور باندې محدثينو داسې كلام رد كړې دې.لكه چه د امام يحي القطان رحمه الله په باره كښې ونيلې شى.چه دوى د روح په باره كښې كلام كړې دې.

---

[1]) تهذيب الكمال (١٠، ٢٤٠، ٢٤١) وسير أعلام النبلاء (٩/٤٠٣) _

[2]) طبقات ابن سعد(٧/٢٩٦) _

[3]) سير أعلام النبلاء(٩/٤٠٢) _

[4]) ميزان الإعتدال(٢/٥٨) _

[5]) الثقات لإبن حبان(٨/٢٤٣) _

[6]) تقريب التهذيب(٢١١) رقم ١٩٦٢) _

[7]) تاريخ بغداد(٨/٤٠١) رقم ٤٥٠٣) _

[8]) سير أعلام النبلاء (٩/٤٠٤) وتاريخ بغداد(٨/٤٠٤) _

[9]) تاريخ بغداد(٨/٤٠٦) _

[10]) تاريخ بغداد(٨/٤٠٥) _

[11]) تاريخ بغداد (٨/٤٠٣، ٤٠٤)وتهذيب الكمال(٩/٢٤٢) _

خو يحيى بن معين رحمه الله ددوى ترديد كړى دى.او فرمائيلي ئې دى.«باطل، ما تكلم يحيى القطان فيه بشئ هو صدوق»[1]

دغه شان د عبدالله قواريرى نه منقول دى.چه دوى به د روح بن عباده نه روايت نه كولو.

امام يحيى بن معين رحمه الله ددوى ترديد كوى.فرمائى چه «القواريرى يعنى عبيدالله يحدث من عشرين شيخاً من الكذابين، ثم يقول، لا أحدث من روح بن عبادة»[2]

مطلب دا دې چه د عبيدالله قواريرى دا وئيل جرح نه ده.چه زه د روح بن عباده نه روايت نه كوم خكه چه ددوى مقام داسې نه دې.چه ددوى قول قبول كړې شى.خكه چه دې خو د شلو دروغجنو شيخانو نه روايت كوى.دوى دپاره په روح باندې د جرح كولو څه جواز جوړيږى؟

دغه شان عفان بن مسلم هم په دوى باندې جرح كړې ده.فرمائيلى ئې دى.«هو أحسن حديثاً عندى من خالد بن الحارث، وأحسن حديثاً من يزيد بن زريع، فلم تركناه يعنى كأنه يطعن عليه» مطلب دا دې چه عفان بن مسلم په دوى باندې جرح كولو كښې فرمائيلى دى.چه دوى د خالد بن الحارث او يزد بن زريع نه غوره دى.ددې باوجود مونږ هغه پريخودو.آخر څه خبره خو به وى!!

دا كلام ابو خيثمه رحمه الله رد كړې ده.فرمائيلى ئې دى.«ليس هذا بحجة كل من تركته أنت ينبغى أن يترك؟» يعنى دا خو څه حجت او دليل نه دې.چه كوم كس تاسو پريږدئ.هغه دې نا قابل اعتبار جوړ شى.

يعقوب بن شيبه رحمه الله ددې واقعې نقل كولو نه پس فرمائيلى دى.«وأحسب أن عفان لو كان عنده حجة مما يسقط بها روح بن عبادة لاحتج بها فى ذالك الوقت»[3] يعنى كه په دې موقعه باندې عفان بن مسلم سره څه يقينى او خاص دليل وې.نو ضرور به ئې ذكركړې وې.خو چونكه څه داسې خبره نه وه.په دې وجه ئې پيش نكړې شوه.

بيا دلته دا وضاحت هم ضرورى دې.چه يعقوب بن شيبه د عفان بن مسلم په باره كښې نقل كړې دى.چه دوى روح بن عباده روستو قوى گرخولې دې.[4]

دغه شان د عبدالرحمن بن مهدى رحمه الله نه په يو سند كښې د وهم په بنياد باندې ددوى نه جرح منقول ده.حافظ ذهبى رحمه الله په دې باندې تبصره كولو كښې فرمائى:«وهذا تعنت وقلة إنصاف فى حق حافظ قد روى ألوفاً كثيرة من الحديث، فوهم فى إسناد، فروح لو أعطانى عدة أحاديث فى سعة علمه:

---

[1] تاريخ بغداد (٨/٤٠٤) وتهذيب الكمال(٩/٢٤٢) وسير أعلام النبلاء(٩/٤٠٤) _

[2] تاريخ بغداد(٨/٤٠٣) وتهذيب الكمال(٩/٢٤٣) وسير أعلام النبلاء(٤٠٤، ٤٠٥) وميزان الإعتدال(٢/٥٩)

[3] تاريخ بغداد (٨/٤٠٣) وتهذيب الكمال(٩/٢٤٣، ٢٤٤) وسير أعلام النبلاء (٩/٤٠٥) _

[4] ميزان الإعتدال(٢/٥٩) _

لا تختفر له ذالك، أسوة نظرائه ولسنا نقول: إن رتبة روح في الحفظ والإتقان كرتبة يحيى القطان، بل ما هو بدون عبدالرزاق ولا أبي النضر))[1]

حاصل د مطلب دا دې چه روح بن عباده صرف د يو حديث په سند کښې د وهم په وجه مجروح ګرځول د تشدد انتهاء ده او ددوی په حق کښې سخته نا انصافي ده چه هغه په زرګاو حديثونه نقل کوی ددوی نه صرف په يو کښې نه. که په ګڼړو احاديثو کښې هم غلطي شوې وه نو ددوی په مثل د نورو محدثينو پشان به دا هم قبلولې شو خو زمونږ ددې دفاع مطلب دا نه دې چه دا د يحيي القطان د مرتبې دې بلکه مونږ خو صرف دا وايو چه امام عبدالرزاق او د ابو النضر نه کمتر هم نه دې.

دغه شان ابوحاتم رازی رحمه الله فرمائی: ،،لايحتج به،،[2]

خو ښکاره ده چه دا قول د جرح او تعديل هغه ټولو امامانو په مقابله کښې حجت نشي جوړيدې کومو چه ددوی توثيق او تعديل کړې دې او دا ئې مقبول ګرځولې دې

دغه شان امام نسائی رحمه الله فرمائی: ،، روح ليس بالقوی،،[3]

خو اول خو د نورو محدثينو په مقابله کښې ددې هم څه خاص اهميت نشته. بيا ددې خبرې لحاظ ساتل هم پکار دی چه ممکن ده چه امام نسائی رحمه الله دوی ته ،،ليس بالقوی،، ونيلو سره د قوت او وثاقت اعلى درجه کښې کيدو نه انکار کړې وی او ددې خبرې نه هيڅ څوک انکار نه کوی هم دا وجه ده چه حافظ ذهبی رحمه الله د امام نسائی رحمه الله قول نقل کوی او فرمائی چه ((قلت نعم، عبدالرحمن بن مهدی أقوى منه، وأما هو، فصدوق صاحب حديث))[4]

په آخر کښې مونږ د خلاصې په طور د حافظ ابن حجر رحمه الله کلام نقل کوو چه په دې سره به واضحه شی چه روح بن عباده د محتج به راويانو ځنې دې هغه فرمائی: ((وكان أحد الأئمة وثقه علي بن المديني، ويحيى بن معين، ويعقوب بن شيبة، وأبوعاصم، وابن سعد، والبزار، وأثنى عليه أحمد وغيره وكان عفان يطعن عليه، فرد ذالك عليه ابوخيثمة فسكت عنه، وقال أبو مسعود: طعن عليه إثنا عشر رجلا فلم ينفذ قولهم فيه قلت، القائل ابن حجر، احتج به الأئمة كلهم))[5]

د روح بن عباده رحمه الله وفات په ۲۰۵ﻫ يا ۲۰۷ﻫ کښې اوشو رومبې قول اصح دې.[6] والله اعلم رحمه الله تعالى رحمة واسعة۔

---

[1] سير أعلام النبلاء (۹/۴۰۹) ۔
[2] ميزان الإعتدالا (۲/۵۹) ۔ وسير أعلام النبلاء (۹/۴۰۶)
[3] المصادر السابقة) ۔
[4] ميزان الإعتدال (۲/۵۹) ۔
[5] هدى السارى (ص۴۰۲) ۔
[6] تهذيب اكمال (۲/۲۴۵) وتاريخ بغداد (۸/۴۰۶) وغيره كتب رجال) ۔

۴ **عوف**: دا عوف بن ابی جمیلة العبدی الهجری البصری دې.ابوسهل ددوی کنیت دې.د عوف اعرابی په نوم سره مشهور دې دې د اعرابو څنې نه وو.[۱] ددوی د فصاحت په وجه [۲] يا په اعرابو کښې دتللو په وجه دوی ته اعرابي ونيلې شي.[۳]

ددوی د پلار ابوجمیله نوم بعضو حضراتو رزینه خودلې دې.او بعضو حضراتو بندویه یاد کړې دې.او د بعضو حضراتو وینا ده.چه ددوی د پلار نوم خو رزینه ده.او بندویه ددوی د پلار نوم دې.[۴]

دوی حدیثونه د اسحاق بن سوید عدوی، انس بن سیرین، محمد بن سیرین، حسن بصری، ابو رجاء العطاردی، ابوالعالیه، ابو عثمان نهدی، ابو نضره عبدی، علقمه بن وائل بن حجر او د سعید بن ابی الحسن بصری رحمهم الله وغیره نه اوریدلی دی.[۵]

ددوی نه د حدیثو علم حاصلونکو کښې اسحاق بن یوسف الازرق، اسماعیل بن علیه، بشربن المفضل، روح بن عباده، شعبه بن الحجاج، ابو عاصم ضحاك بن مخلد، عبدالله بن المبارك، عثمان بن الهیثم المؤذن، فضیل بن عیاض، محمد به جعفر بن غندر، محمد بن عبدالله انصاری، معتمر بن سلیمان، نضر بن شمیل، هوذه بن خلیفه، یحي بن سعید القطان، یزید بن زریع، ابوزید انصاری نحوی او ابوسفیان حمیری رحمهم الله وغیره دی.[۶]

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی.،،ثقة صالح الحديث،،[۷]

امام یحي بن معین رحمه الله فرمائی.،،ثقة،،[۸]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی.،،صدوق صالح،،[۹]

امام نسائی رحمه الله فرمائی.،،ثقة ثبت،،[۱۰]

امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائی.،،وكان ثقة كثير الحديث وقال بعضهم يرفع أمره ويقول: إنه ليجئ عن

---

[۱] تهذیب اکمال(۲۲\۴۳۷) _

[۲] فتح الباری(۱\۱۰۹) وعمدة القاری(۱\۲۷۱) _

[۳] قال الإمام برهان الدین سبط ابن العجمی :إنما قیل له الأعرابی لدخوله درب الأعراب قاله ابن دقیق العید حاشیة الکاشف (۲\۱۰۱) _

[۴] تهذیب الکمال(۲۲\۴۳۷، ۴۳۸)

[۵] تهذیب الکمال(۲۲\۴۳۸ والکاشف (۲\۱۰۱) رقم ۴۳۰۹)

[۶] تهذیب الکمال(۲۲\۴۳۹)

[۷] تهذیب اکمال(۲۲\۴۴۰) وتهذیب التهذیب(۸\۱۶۷)

[۸] المصادر السابقة)

[۹] المصادر السابقة)-

[۱۰] المصادر السابقة) والکاشف (۲\۱۰۱) رقم ۴۳۰۹) _

الحسن بشيء ما يجيئ به أحد»(۱)

مروان بن معاویه رحمه الله فرمائی.،، كان يسمى الصدوق،،(۲)

محمد بن عبدالله انصاری رحمه الله فرمائی.،، وكان يقال له: عوف الصدوق»(۳)

امام ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکرکړی دې.(۴)

عوف اعرابی باوجود د ثقه او صالح کیدو قدری وو.او په دوی کښې څه معمولی تشیع هم وه.لکه محمد بن سعد رحمه الله فرمائی.،، وكان يتشيع،،(۵)

محمد بن عبدالله انصاری رحمه الله فرمائی.«رأيت داؤد بن أبي هند يضرب عوفاً الأعرابي ويقول: ويلك يا قدري، ويلك يا قدري»(۶)

بندار رحمه الله فرمائی.«والله لقد كان عوف قدرياً رافضياً شيطاناً»(۷)

د حضرت عبدالله بن المبارک رحمه الله نه نقل دی.«والله ما رضي عوف ببدعة، حتى كانت فيه بدعتان: كان قدرياً وكان شيعياً»(۸)

خو چونکه په دې خپل بدعت کښې غلو کونکې او داعی نه وو.(۹)

او ددوی په صدق و امانت باندې اتفاق وو.په دې وجه اصحابو د اصول سته اونورو محدثینو ددوی روایات قبول کړی دی.او قابل د استدلال او احتجاج ئې شمار کړی دی.

لکه چه امام مسلم رحمه الله د خپل صحیح په مقدمه کښې قول فیصل ذکرکړې دې.هغه فرمائی «إذا وازنت بين الأقران كابن عون و أيوب السختياني، مع عوف بن أبي جميلة و أشعث الحمراني، وهما صاحبا الحسن وابن سيرين، كما أن ابن عون و أيوب صاحباهما، إلا أن البون بينهما و بين هذين بعيد في كمال الفضل و صحة النقل، وإن كان عوف و أشعث غير مدفوعين، عن صدق و أمانة عند أهل العلم...»(۱۰)

---

۱) طبقات ابن سعد(۲۵۸\۷)

۲) تهذيب الكمال(۴۴۰\۲۲) وتهذيب التهذيب(۱۶۷\۸)

۳) المصادر السابقة _

۴) الثقات لإبن حبان (۲۹۶\۷) _

۵) الطبقات لإبن سعد(۲۵۸\۷) _

۶) ميزان الإعتدال(۳۰۵\۳) وتهذيب التهذيب(۱۶۷\۸)

۷) ميزان الإعتدال(۳۰۵\۳) وتهذيب التهذيب(۱۶۷\۸)

۸) ميزان الاعتدال(۳۰۵\۳) وتهذيب التهذيب(۱۶۷\۸)

۹) قال العباس الدوری سمعت رجلاً سأل روح بن عبادة فقال أبا محمد عوف الأعرابى كان يتشيع ؟ فسكت روح هنيهة ثم قال والله لقد كان يذكر فضائل عثمان كثيراً (تاريخ الدورى(۴۶۰\۲) كذا فى تعليقات تهذيب الكمال(۴۴۰\۲۲)

۱۰) مقدمة صحيح مسلم (۴\۱)

دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي ،،إحتج به الجماعة،،.(١)

په ۱۴۶ﻫ يا ۱۴۷ﻫ كښې ددوى وفات اوشو.(٢)

⑤ **الحسن:** دا مشهور تابعي حضرت ابو سعيد الحسن بن ابى الحسن يسار بصرى دې.
ددوى تفصيلي حالات په ،،باب المعاصي من أمر الجاهلية،، كښې تير شوى دى.

⑥ **محمد:** دا مشهور تابعي عالم، امام، شيخ الاسلام ابوبكر محمد بن سيرين انصارى بصرى دې. ددوى پلار سيرين دعين التمر نه قيدى راغلې وو. حضرت انس رضي الله عنه دوى مكاتب جوړ كړل. په بدل كتابت ادا كولو سره دا آزاد شو. د حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه آزادې شوې وينځې سره ددوى نكاح اوشوه.(٣)

ددې نكاح خصوصيت دا وو چه صفيه رخصتئ په وخت دريو ازواج مطهراتو تياره كړله. خوشبو ئې اولګوله. او دعاګانې ورته اوكړې. او په دې كښې نكاح كښې اتلس بدرى صحابه كرام رضي الله عنهم شريك شو. حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه دعا اوكړله. او باقي حضراتو به آمين وئيلې.(٤)

د امام محمد بن سيرين رحمه الله ولادت د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په آخر كښې اوشو. كله چه ددوى د خلافت دوه كاله باقي وو.(٥) او دوى تقريباً د ديرشو صحابه كرامو زيارت كړې دې.(٦)

امام محمد بن سيرين رحمه الله د حضرت انس، حضرت جندب بن عبدالله بجلي، حضرت حذيفه بن اليمان، حضرت حسن بن على بن ابى طالب، حضرت رافع بن خديج، حضرت زيد بن ثابت، حضرت ثمره بن جندب، حضرت عبدالله بن الزبير، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت عدى بن حاتم، حضرت معاويه بن ابى سفيان، حضرت ابوبكره، حضرت ابوهريره، او د حضرت عمران بن حصين رضي الله عنهم نه علاوه په تابعينو كښې د عبيده سلماني، قاضي شريح، عكرمه مولى ابن عباس، علقمه بن قيس نخعي، د خپل رور معبد بن سيرين او د خپلې خور حفصه بنت سيرين رحمهم الله نه حديثونه روايت كړې دى.(٧)

ددوى نه خالد حذاء، اشعث بن سوار، ايوب سختياني، ثابت بناني، جرير بن حازم، دواؤد بن ابى هند، ربيع بن صبيح، سليمان تيمي، عاصم احول، امام شعبي، عبدالله بن شبرمه،

---

١) هدي الساري(٤٣٣)

٢) طبقات ابن سعد(٧\٢٥٨) وتهذيب الكمال(٢٢\٤٤١) وغيره)

٣) تهذيب الأسماء واللغات (١\٨٣) ووفيات الأعيان (٤\١٨١) وطبقات ابن سعد(٧\١٩٣)

٤) المصادر السابقة)

٥) تذكرة الحافظ (١\٧٨) وسير أعلام النبلاء (٤\٦٠٧) وتهذيب الأسماء (١\٨٣) ووفيات الأعيان (٤\١٨٢) والثقات لابن حبان(٥\٣٤٩)

٦) تهذيب الكمال(٢٥\٣٤٨) سير أعلام النبلاء (٤\٦٠٧) وتهذيب الأسماء(١\٨٣)

٧) تهذيب الكمال(٢٥\٣٤٥، ٣٤٧) وسير أعلام النبلاء (٤\٦٠٦) وتذكرة الحفاظ(١\٧٨) وتهذيب الأسماء (١\٨٣)

عبدالله بن عون، امام اوزاعي، عمران القطان، عوف اعرابی، قتاده بن دعامه، مالك بن دينار، هشام بن حسان، يونس بن عبيد، او ابوهلال راسبي رحمهم الله نه علاوه ډير حضراتو علم حديث حاصل کړې دې.(١)

دوی چه د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه کوم روايتونه کوی په هغې کښې عام طور باندې ،، نبئت عن ابن عباس،، وائی.د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه چونکه ددوی سماع نشته.په دې وجه داسې ټول روايتونه غير موصوله دی.او په مينځ کښې د عکرمه مولی ابن عباس واسطه ده.(٢)

بعضو حضراتو ددوی د حضرت عمران بن حصين رضي الله عنهما نه د سماع انکار کړې دې.خو ددوی دا انکار صحيح نه دی.(٣)

د امامحمد بن سيرين رحمه الله په ثقاهت او جلالت او امامت باندې اتفاق دې. دوی د احاديث بالمعنی روايت کولو هم قائل نه وو.بلکه بلفظه به ئې روايت کولو.(٤)

هشام بن حسان رحمه الله به فرمائيل.«حدثني أصدق من أدركت من البشر: محمد بن سيرين»(٥)

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی.«محمد بن سيرين من الثقات»(٦)

امام يحي بن معين رحمه الله فرمائی.،،ثقة،،(٧)

امام عجلی رحمه الله فرمائی.«بصري، تابعي، ثقة وهو من أروى الناس عن شريح وعبيدة»(٨)

امام محمدبن سعد رحمه الله فرمائی.«وكان ثقة، مأموناً، عالياً، رفيعاً، فقيهاً، اماماً، كثير العلم، ورعاً»(٩)

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.«ثقة، حجة كبير العلم، ورع، بعيد الصيت»(١٠)

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.« وكان فقيهاً، اماماً، غزير العلم، ثقة، ثبتاً، علامة في التعبير، رأساً في الورع»(١١)

---

١) المصادر السابقة)
٢) تهذيب الكمال(٢٥\٣٤٩) وتهذيب الأسماء (١\٨٣) وطبقات ابن سعد(٧\١٩٤)
٣) حاشية ابن العجمي وتعليقات الشيخ محمد عوامة على الكاشف للذهبي(١٢\١٧٨، ١٨٠)
٤) طبقات ابن سعد(٧\١٩٤) وتهذيب الكمال(٢٥\٣٤٩، ٣٥٠)
٥)تهذيب الكمال(٢٥\٣٥٠) وسير أعلام النبلاء (٤\٦٠٨)
٦) تهذيب الكمال(١٢\٣٥٠)
٧) المصادر السابقة)
٨) المصادر السابقه)_
٩)طبقات ابن سعد(٧\١٩٣)
١٠)الكاشف (١٢\١٧٨) رقم ٤٨٩٨)
١١) تذكرة الحفاظ (١\٧٨)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمانى «ثقة، ثبت، عابد، كبير القدر، كان لايرى الرواية بالمعنى»[1]
امام محمد بن سيرين رحمه الله چه لكه څنګه په حديث كښې د جبال علم(لويو عالمانو) څخه وو دغه شان په زهد او تقوىٰ. خشيت الهى. خوف آخرت. كثرت عبادت او احتياط فى الدين كښې د لوئې شان مالك وو
امام محمد بن جرير طبرى رحمه الله بالكل صحيح فرمانيلى دى.«كان ابن سيرين فقيهاً، عالماً، ورعاً، أديباً، كثير الحديث، صدوقاً، شهد له أهل العلم، والفضل، بذالك، وهو حجة»[2]
امام ابن سيرين رحمه الله ته الله تعالى د خوبونو د تعبير خاص ملكه وركړې وه په دې سلسله كښې ددوى ډير واقعات مشهور دى.[3] ددوى يو كتاب هم د .. تعبيرمنام.. په موضوع سره چاپ شوى دې.چه ددې نوم ابن النديم .. تعبير الرؤيا .. ليكلې دې.[4] او صاحب د كشف الظنون او صاحب د هدية العارفين په .. جوامع التعبير .. كښې ليكلى دى.[5] دلته ددې وضاحت هم ضرورى دې. چه د خوبونو د تعبير په موضوع باندې ددوى طرف ته منسوب د ،، منتخب الكلام فى تفسير الأحكام،، نوم سره هم يو كتاب چاپ شوې ملاويږى.چه دا په حقيقت كښې ددوى نه دې.[6]
په شوال ١١٠ھ كښې ددوى وفات اوشو.[7] رحمه الله تعالى رحمة واسعة۔
⑥د حضرت ابوهريره رضي الله عنه تفصيلى حالات د ،،باب أمور الإيمان،، لاندې تير شوى دى.[8]

**قوله: حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنِ الْحَسَنِ وَمُحَمَّدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ:** عوف اعرابى د حسن بصرى او محمد بن سيرين نه روايت كوى.او حسن بصرى او محمد بن سيرين دواړه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت كوى.
وړاندې په ،،باب المعاصى من أمر الجاهلية،، كښې د حضرت حسن بصرى رحمه الله د حالاتو لاندې دا خبره تيره شوې ده.چه د حضرت حسن بصرى رحمه الله سماع د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه ثابت نه ده.
البته محمد بن سيرين رحمه الله ته ددوى نه د سماع شرف حاصل دې.دلته د امام بخارى رحمه الله

---

[1]) تقريب التهذيب(٤٨٣) رقم (٥٩٤٧)
[2]) سيرأعلام النبلاء (٤\٦١١)
[3]) د يو څو واقعاتو دپاره اوګورئ سيرأعلام النبلاء (٤\٦١٧، ٦١٨)
[4]) كتاب الفهرست لابن النديم (ص.٣٧٨)
[5]) كشف الظنون (١\٦١١) وهدية العارفين(٦\٢)
[6]) سيرأعلام النبلاء للزركلى (٦\١٥٤)
[7]) وفيات الأعيان (٤\١٨٢) وطبقات ابن سعد(٧\٢٠٦) وغيره كتب رجال)
[8]) كشف البارى( ج١\٦٥٩، ٦٦٣)

اعتماد د محمد بن سیرین رحمه الله په روایت باندې دې.خو چونکه عوف اعرابی رحمه الله په دې روایت نقل کولو کښې د دواړو ذکر کوی.په دې وجه امام بخاری رحمه الله هم دواړه ذکر کړل

**قوله** أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اتَّبَعَ جَنَازَةَ مُسْلِمٍ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا وَكَانَ مَعَهُ حَتَّى يُصَلَّى عَلَيْهَا وَيَفْرُغَ مِنْ دَفْنِهَا فَإِنَّهُ يَرْجِعُ مِنَ الْأَجْرِ بِقِيرَاطَيْنِ: يعنی رسول الله ﷺ اوفرمائیل.چه کوم سړې ایمان او احتساب، یعنی د ثواب په امید او یقین سره د یو مسلمان جنازې پسې شاته لاړ شی.هغه سره د مونځ کولو او دفن نه د فارغ کیدو پورې پاتې شی.نو هغه به دوه قیراطه ثواب اخلی او واپس کیږی به.

"اتباع" په عرف کښې شاته تللو ته وائی.هم ددې نه بعضو عالمانو استدلال کړې دې او فرمائیلی ئې دی.چه په جنازو کښې مړی پسې شاته تلل افضل دی.اوهم دادحنفیانومسلك دې.

**جنازې پسې شاته تلل افضل دی اوکه وړاندې** په دې مسئله کښې اختلاف دې.چه په جنازو کښې مړی پسې شاته تلل افضل دی.اوکه وړاندې تلل افضل دی.① دسفیان ثوری رحمه الله په نیز دواړو صورتونو کښې اختیار دې.هیڅ صورت ته په بل باندې افضلیت حاصل نه دې.امام بخاری رحمه الله هم دې رائې طرف ته مائل دې.② امام احمد او امام مالك رحمهما الله فرمائی.چه پیدل تلونکې به وړاندې ځی.او سور به شاته ځی.③ د امام شافعی رحمه الله په نیز که سور وی او که پیدل وی.مطلقاً وړاندې تلل افضل دی.④ د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز مطلقاً شاته تلل افضل دی.[1]

**د فقهاو دلائل** دامام سفیان ثوری رحمه الله استدلال د حضرت انس رضی الله عنه د اثر نه دې.هغه فرمائی «إنما أنت مشيع، فامش إن شئت أمامها، وإن شئت خلفها، وإن شئت عن يمينها، وإن شئت عن يسارها»[2]

د امام احمد او امام مالك رحمهما الله دليل غالباً د حضرت مغيره بن شعبه رضی الله عنه روایت دې.

«أن النبی ﷺ قال: الراکب يسير خلف الجنازة، والماشی خلفها، وأمامها، وعن يمينها، وعن يسارها قريبا منها.....»[3]

د حضرت امام شافعی رحمه الله او ددوی د اصحابو استدلال د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه روایت نه دې.«رأيت النبی ﷺ وأبابكر وعمر يمشون أمام الجنازة»[4]

---

[1] دمذاهبو د تفصیل دپاره اوګورئ (التعليق الممجد على مؤطاء الإمام حمد (ص.١٦٨) أبواب الجنائز باب المشی بالجنائز ولامشی معها وأوجز السالك (٤\٢٠٨.٢٠٩) المشی أمام الجناة)

[2] مصنف عبدالرزاق (٣\٤٤٥) كتاب الجنائز. باب المشی أمام الجنازة)

[3] سنن أبی داود كتاب الجنائز. باب امشی أمام الجنازة رقم ٣١٨٠)

[4] سنن النسائی (١\٢٧٥) كتاب الجنائز مكان امشای من الجنازة وسن أبی داود كتاب الجنائز باب المشی أمام الجنازة رقم ٣١٧٩) وجامع الترمذی كتاب الجنائز باب ما جاء فی المشی أمام الجنازة رقم ١٠٠٧ (و١٠٠٨، ١٠٠٩) وسنن ابن ماجه كتاب الجنائز باب ما جاء فی المشی أمام الجنازة رقم ١٤٨٢)

حضرات شوافع دا هم فرمائی چه جنازه اورونکی په اصل کښې شفعاء دی.او شفعاء د مشفوع له وړاندې څې.نو د جنازې نه وړاندې تلل به افضل وی.(١)

د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله او ددوی د اصحابو استدلال د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه مرفوع روایت نه دې.((الجنازة متبوعة ولاتتبع وليس منامن تقدمها))(٢)

په يو طريق کښې ددوی الفاظ دا دی.((انما هى متبوعة وليست بتابعة وليس معها من تقدمها))(٣)

دغه شان د طاؤس رحمه الله نه نقل دی.((ما مشى رسول الله ﷺ فى جنازة حتى مات، إلا خلف الجنازة و به ناخذ))(٤)

د حضرت علی رضي الله عنه نه نقل دی.((إن فضل الماشى خلفها على الذى يمشى أمامها كفضل صلاة الجماعة على الفذ.....))(٥)

ترکومې پورې چه د حضرت انس رضي الله عنه د اثر تعلق دې.چه په دې کښې هر طرف ته د تللو اختیار ورکړې شوې دې.نو دا د جواز د بیان دپاره دې.چه ددې تول قائل دی.پاتې شو د افضلیت تعلق نو ددې دپاره چونکه نور روایات وارد شوی دی.په دې وجه به دا روایات فیصل ګرځولې شی.

دغه شان د مغیره بن شعبه رضي الله عنه روایت هم په بیان جواز باندې محمول دې.ددې نه هم د افضلیت ثبوت نه کیږی.

د حضرت امام شافعی رحمه الله مستدل روایت کوم چه د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مرفوعاً نقل دې.په دې باره کښې کلام دې.څکه چه امام ترمذی رحمه الله تصریح کړې ده.چه دا حدیث مرفوع نه دې.بلکه د امام زهری رحمه الله نه مرسلاً نقل دې.او هم دا اصح دې. (٦) او شوافع عام طور باندې مراسیل حجت نه منی.

او که قابل د استدلال اومنلې شی.نو ددې نه د افضلیت اثبات نشی کیدې. بلکه په بیان جواز باندې محمول کیدې شی.دغه شان په دې کښې تاویل هم کیدې شی.چه دڅه عذر په وجه نې داسې کړې وی.لکه څنګه چه د حضرت علی رضي الله عنه نه منقول دی.عبدالرحمن بن ابزاء فرمائی:((كنت مع على فى جنازة قال: وعلى آخذ بيدى، ونحن خلفها، و أبوبكر وعمر يمشيان أمامها، فقال،

---

١) بدائع الصنائع (٣١٠\١١) فصل فى حمله على الجنازة)
٢) جامع الترمذی كتاب الجنائز باب ما جاء في المشي خالف الجنازة رقم(١٠١١)
٣) منصف عبدالرزاق (٤٤٦\٣) باب المشى أمام الجنازة رقم ٦٢٦٥) وسنن أبى داود كتاب الجنائز. باب إسراع الجنازة)وسنن ابن ماجه كتاب الجنائز باب ماجاء فى المشى امام الجنازة رقم(١٤٨٤)
٤) مصنف عبدالرزاق (٤٤٥\٣) باب المشى أمام الجنازة رقم (٦٢٦٢)
٥) مصنف عبدالرزاق (٤٤٦\٣)رقم ٦٢٦٣)
٦) قال الترمذي فى جامعه فى كتاب الجنائزباب ما جاء فى السمى أمام الجنازة وأهل الحديث كلهم يرون أن الحديث المرسل فى ذالك أصح .وقال النسائى تفى سننه (٢٧٥\١١) هذا خطأ والصواب مرسل)

إن فضل الماشي خلفها على الذي يمشي أمامها، كفضل صلاة الجماعة على صلاة الفذ، وإنهما ليعلمان من ذالك ما أعلم، ولكنهما لا يحبان أن يشقا على الناس»(١)

بيا دلته ددې خبرې لحاظ هم ساتل پکار دی.چه حضرات شوافعو جنازې سره تلونکی خلق کوم شفعاء گرځولی دی.دا خبره په پوهه کښې نه راځی.ځکه ددې مطلب خو دا دې چه مړې د مجرم په طور پیش کولې شی.په دې صورت کښې خو مناسب دا وه چه ده لره ئې په زړو شلیدلو کپړو کښې په خراب حالت کښې. خیرن (گنده) ویختنه بوتللې.بیا په مونځ کولو کښې هم ئې ده لره شاته ایخودو.مخې ته ئې نه ایخودو. حالانکه د شریعت حکم دې چه په ښه طریقه اولامبوئ.صفا ستره ئې کړئ.ښائسته او نوې کپړې ورته واغوستوئ.خوشبو ورته اولګوئ.او د کور نه ئې ښه په تعظیم او عزت او احترام سره یوسئ.بیا ئې دمونځ په وخت هم مخې ته ایږدې.او د مغفرت په دعاګانو وغیره کښې هغه سره خپل ځان هم شاملوی.په دې طریقه ئې د آخرت په سفر باندې رخصتوی.د خپلو خلقو نه یو ایمانداره بنده د الله تعالی په دربار کښې خپل ځان دپاره هم د آخرت توښه ګنړی.او وړاندې ئې لیګی.او هغه ته وداع (توښه) وائی.نو ښکاره ده.چه په داسې موقعه باندې شاته کیدل مناسب دی.هغه لره د شاته ایخودو خبره خو قلب موضوع ده!!

ددې نه علاوه د جنازې وړونکو په شاته کیدو کښې د نورو شرعی مصلحتونو هم لحاظ ساتلې کیږی. مثلاً دا چه په داسې صورت کښې به جنازه د خلقو مخې ته وی.چه ددې نه به قدم په قدم عبرت حاصلیږی.چه دې پرون خومره د اختیار خاوند وو.نن دې څنګه مجبوره او لاچاره دې.چه د نورو په سهارا(او مدد) د الله تعالی په دربار کښې حاضریږی.صباله به زمونږه هم دا حال وی.په دې موقعه به د تقوی او د آخرت د یاد حصول زیات نه زیات وی.د قیامت حالات. او په مړی باندې د راتلونکو کیفیاتو تصور به هم کیږی.او دده د سختو منزلونو د آسانتیا او د ګناهونو د معافئ به مسلسل دعاګانې کوی.بیا د شاته تللو په صورت کښې که ضرورت راپیښ شی.نو امداد هم سهولت سره کولې شی.ښکاره خبره ده.چه جنازه شاته کیخودې شی.نو په دې اندازه استحضار. احساس او ددې فوائد نشی حاصلیدی.(٢) والله اعلم.

**د حدیث باب نه په مذکوره مسئلې باندې استدلال احنافو حضراتو پخپل مسلك باندې د حدیث باب د جملې ،،من أتبع،، نه هم استدلال کړې دې.ځکه چه د ،،إتبع،، یوه معنی د شاته تللو هم ده.(٣)**

خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه ددې نه استدلال صحیح نه دې.ځکه چه د ،،تبع،، او د،، اتبع،، یوه معنی خو ،،مشی خلفه،، ده.خو دویمه معنی ئې دده سره تلل دی.که وړاندې ځی.او

---

(١) مصنف عبدالرزاق (٣\٤٤٦) رقم ٦٢٦٣)

(٢) أنوار الباری(٢\١٦١. ١٦٢)

(٣) [illegible] ١١\٢٧٣)

كه روستو څې لكه چه د ،،تبعه،، معنى دا هم بيان كړې شوې ده چه ،، مربه فمشى معه،، معلومه شوه چه ،،تبع،،او ،،اتبع،، د دواړو معانو دپاره مشترك دي.بيا د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما كوم روايت چه ابن حبان رحمه الله تخريج كړې دې په هغې كښې د وړاندې تللو تصريح ده.نو د ،،اتبع،، نه د روستو تلو معنى مراد اخستل. او ددې نه د حنفيانو استدلال كول صحيح نه دى.()

خو دا د حافظ رحمه الله مغالطه ده.حقيقت هم دا دې.چه ،،تبع،،او ،،اتبع،، د دواړو معانو دپاره بالاشتراك مستعمل دې.اوس كه دلته په رومبئ معنى يعنى د شاته تللو په معنى كښې وى نو زمونږ استدلال خو صحيح دې.او كه دويمه معنى وى.نو هغوى دپاره خو حجت نه دې. خو د حنفيانو خلاف هم نه دې.ځكه چه په دې كښې د ورسرې (يو ځائې) تللو معنى ده.او يو ځائې والې شاته تللو سره هم ممكن دې.او وړاندې تللو سره هم. او ورسره ورسره تللو سره هم.نو دا معنى به مونږ په شاته تللو باندې محمول كوو.()خصوصاً د حضرت على رضي الله عنه د صريح قول او مرفوع روايت په وجه.چه په دې كښې شاته تللو ته افضل وئيلى شوى دى

پاتې شو د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما د روايت نه استدلال او ددې په رنړا كښې د ،،اتبع،،معنى ،، وړاندې تللو،، سره كول. نو ددې روايت په باره كښې مونږه وړاندې وئيلى دى.چه اول خو دا روايت مرفوعاً ثابت نه دې.بله دا چه په دې كښې د افضليت تصريح نشته.او دريمه دا چه دا په څه عذر باندې محمول كيدې شى.والله اعلم.

**قوله** : **إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا**:ايمان. الله باندې يقين. د هغه په وعدو باندې يقين. او احتساب يعنى كوم كار چه اوكړې شى.صرف د الله تعالى د رضا دپاره اوكړې شى د ثواب د حصول دپاره اوكړې شى.رياء او ښودنه (نمائش) مقصود نه وى.

د ايمان او احتساب تشريح وړاندې د،،**ومن قام ليلة القدر إيماناً واحتساباً**،، لاندې تيره شوې ده.،،**فارجع إليه إن شئت**،،

**د ترجمة الباب اثبات**.هم ددې نه امام بخارى رحمه الله د ترجمة الباب اثبات كړې دې.په دې طريقه چه : ① اتباع جنائز(جنازې پسې تلل) د ايمان اثر دې.او دا په ايمان باندې مرتب كيږى. په دې وجه به دا ايمان سره ملحق او ددې جزء ګرځولې شى.په دې طريقه به جنازې پسې تلل د ايمان د امورو څنې كيدل ثابتيږى.② يا داسې وئيلې شى.چه ،،**ايماناً**،،مفعول مطلق دې.او تقدير د عبارت داسې دې.((**من اتبع جنازة مسلم اتباعاً ايماناً ....**)) دلته اتباع ايمان

---

() فتح البارى(١٠٩/١)

() عمدة القارى(٢٧٣/١)

سره مصنف كولي شي نو ،،اتباع جنائز،، به د ايمان د امورو او د ايماني شعبو څخه ګرځولي شي والله اعلم.

**قوله** وَكَانَ مَعَهُ حَتَّى يُصَلَّى عَلَيْهَا وَيَفْرُغَ مِنْ دَفْنِهَا: ،،يصلى،، او ،،يفرغ،، معروف هم ونيلى شوى دى او مجهول هم. د معروف ونيلو په صورت كښې به د دواړو افعالو ضميرونه په ،،من اتبع،، كښې ،،من،، طرف ته راجع كيږى. او د مجهول ونيلو په صورت كښې به ،،عليها،، د ،،يصلى،، نائب فاعل او ،،من دفنها،، به د ،،يفرغ،، نائب فاعل وى.(١)

**قوله** فَإِنَّهُ يَرْجِعُ مِنَ الْأَجْرِ بِقِيرَاطَيْنِ كُلُّ قِيرَاطٍ مِثْلُ أُحُدٍ وَمَنْ صَلَّى عَلَيْهَا ثُمَّ رَجَعَ قَبْلَ أَنْ تُدْفَنَ فَإِنَّهُ يَرْجِعُ بِقِيرَاطٍ: دوه اجرونه به په دې طريقه حاصليږى چه يو اجر به د ،،اتباع،، نه واخله تر د ،،صلوة،، پورې وى او دويم اجر به په دفن كښې په شركت كولو باندې وى.(٢)

بعضو حضراتو د يو روايت الفاظو ته اوكتل (٣) او دا ئې اوګڼړل چه په مونځ باندې يو قيراط او په دفن كښې په شركت كولو باندې به مستقل دوه قيراطه ملاويږى. خو حديث باب په دې سلسله كښې صريح دې چه ټول به دوه قيراطه ملاويږى. درې قيراطه به نه ملاويږى.(٤)

**د قيراط تحقيق**: قيراط په اصل كښې ،،قرّاط،، (په تشديد د راء سره) وو. څكه چه ددې جمع ،،قراريط،، راځى. لكه د ،،دينار،، اصل چه ،،دنّار،، (په تشديد د نون سره) دې. په دې وجه ددې جمع دنانير راځى.(٥)

بيا ،،قيراط،، په اكثرو ښارونو كښې د يو دينار شلمې حصې ته ونيلې شى. او په بعضو ښارونو كښې څليريشتمې حصې ته وائى.(٦) خو دلته دا مخصوص مقدار مراد نه دې په دې وجه نبى كريم ﷺ اوفرمائيل. «كل قيراط مثل أحد»(٧)

بيا دلته داوضاحت هم ضرورى دې چه «كل قيراط مثل أحد» ئې چه اوفرمائيل. دا كلام تمثيلى دې. ګنې الله تعالى چه به مؤمنانو ته په قولى او فعلى طاعاتو باندې كوم ثواب وركوى. هغه

---

(١) عمدة القارى(٢٧٢/١)

(٢) شرح النووى على صحيح مسلم (٣٠٧/١)

(٣) أخرجه البخارى فى صحيحه فى كتاب الجنائز باب من انتظر حتى دفن رقم ١٣٢٥ عن أبى هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من شهد الجنازة حتى يصلى فله قيراط ومن شهد حتى تدفن كان له قيراطان )

(٤) شرح النووى(٣٠٧/١) وفتح البارى(١٠٩/١) و(١٩٧/٣) وعمدة القارى(٢٧٣/١)

(٥) عمدة القارى( ٢٧٢/١)

(٦) وفيه أقوال أخرى راجع عمدة القارى(٢٧٢/١)

(٧) شرح النووى (٣٠٧/١)

به ډير زيات وي.لكه په حديث شريف كښې راځي «الطهور شطر الإيمان، والحمد لله تملأ الميزان، وسبحان الله و الحمد لله تملآن أو تملأ ما بين السماوات والأرض»[1] دغه شان په روايت كښې دي «القيراط أعظم من أحد»[2] د مستدرك په يو روايت كښې دي «والذى نفسى بيده، لهما فى الميزان أثقل من أحد»[3]

خلاصه دا چه دلته قيراط د احد برابر ګرځولې شوې دې.دا تمثيلاً دې. تحقيقى مقدار بيانول مقصود نه دې.

دلته دا خبره هم يادول پكار دى.چه د .. قيراط.. ذكر لكه څنګه چه د جنائز په بيان كښې راغلې دې.دغه شان په .. اقتناء كلب..( د سپى ساتلو) په سلسله كښې هم راغلې دې.لكه د نبى كريم ﷺ ارشاد دې.چه «من اقتنى كلباً، إلا كلب صيد، أو ماشية، فإنه ينقص من أجره كل يوم قيراطان»[4] په يو بل روايت كښې د .. يو قيراط.. ذكر دې.[5]

دلته د يادولو خبره دا ده.چه د جنازې په باره كښې كوم .. قيراط.. وارد شوې دې.ددې نه په نص د حديث د ثواب يوه لويه حصه مراد ده.چه ددې ئې د احد غر سره تشبيه وركړې ده. خو د سپى پاللو په سلسله كښې چه د .. قيراط.. كوم ذكر راغلې دې.د هغې نه ډيره كمه درجه مراد ده.ځكه چه د جنازې د روايت تعلق د ثواب باب سره دې.او په ثواب كښې د الله تعالى فضل ملحوظ وى.او د سپى پاللو د روايت تعلق د عقاب باب سره دې.او په ګرفتارولو كښې الله تعالى ډيره زياته كرم او بخښنه وراندې ساتى.او كم نه كم عذاب وركوى. ﴿مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَا ۚ وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزٰٓى اِلَّا مِثْلَهَا﴾[6] بيا كه الله تعالى هم دغه شان بغير د څه ګرفتارئ نه معاف كړى.نو هيڅ څوك تپوس كولو والا نشته.

**قوله: تَابَعَهُ عُثْمَانُ الْمُؤَذِّنُ قَالَ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ:** د ,,تابعه.. ضمير مفعول روح طرف ته واپس كيږى.او مطلب دا دې.چه ددې روايت د عوف نه په نقل كولو كښې عثمان موذن د روح متابعت كړې دې.[7]

---

[1] صحيح مسلم (۱۱۸\۱) فاتحة كتاب الطهارة باب فضل الوضوء )

[2] تاريخ بغداد للخطيب( ۳۸۵\۱۴) ترجمة أبى بكربن مروان الأسيدى رقم ۷۷۹۹)

[3] المستدرك على الصحيحين (۳۱۷\۳) كتاب معرفة الصحابة رضي الله عنهم)

[4] صحيح بخارى كتاب الذبائح والصيد باب من أقتنى كلباً ليس بكل صيد او ماشية رقم ۵۴۸۰، ۵۴۸۲)

[5] صحيح البخارى كتاب الحرث والمزارعة باب إقتناء الكلب للحرث رقم ۲۳۲۳)

[6] الأنعام: ۱۶۰)

[7] عمدة القارى( ۱ \ ۲۷۴) وفتح البارى( ۱\ ۱۰۹)

بيا د عثمان مؤذن رحمه الله نه امام بخاري رحمه الله براه راست هم نقل كړي دي.او په واسطې سره هم. كه امام بخاري رحمه الله د عثمان مؤذن رحمه الله نه په واسطې سره اوريدلې وي.نو دا طريق به يوه اعلى درجه شي.خكه چه د منجوفي طريق خماسي دې.او دا رباعي دې.دلته د عثمان مؤذن د طريق اعلى كيدو باوجود مخكښې د منجوفي د طريق ذكر كولو وجه دا ده.چه منجوفي په ثقاهت او اتقان كښې د مؤذن نه د اوچتې درجې دې.په دې وجه ئې اصلاً ددوى روايت ذكركړو او بيا چونكه د منجوفي په طريق كښې ،،حسن و محمد عن أبي هريرة،، دې. كوم چه په دې طريق كښې حسن بصرى رحمه الله د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت كوى. خو چونكه د حسن بصرى رحمه الله سماع ، راجح دا ده.چه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه نه ده په دې وجه ئې دعثمان مؤذن متابعت ذكر كړو.چه په دې كښې د حسن ذكر نشته.دغه شان امام بخارى رحمه الله دا اوښودل.چه زمونږ اعتماد په دې دويم طريق باندې دې.([1])

بيا دلته په آخر كښې امام بخاري رحمه الله د ،،نحوه،، لفظ ذكركړې دې دغه شان يو لفظ ،، مثله،، هم استعماليږي.خو لكه څنګه چه مونږه وړاندې ذكركړي دي.چه د دواړو په مفهوم كښې معمولي شان فرق دې. ،،مثله،، هغه ځائې كښې استمالوى.چرته چه د حديث په الفاظو كښې هيڅ فرق نه وي.او د ،،نحوه،،لفظ په داسې موقعه باندې استعمالوى چرته چه چه الفاظو كښې څه تفاوت (فرق) وي.

دلته هم د دواړو طريق په الفاظو كښې تفاوت دې.د عثمان مؤذن په طريق كښې چه د ابونعيم په مستخرج كښې ذكركړې دې.چه د ،،وكان معه،، په ځائې ،،فلزمها،، اود ،،حتى يفرغ من دفنها،، په ځائې ،،حتى تدفن،، او د ،،فإنه يرجع بقيراط،، په ځائې ،،فله قيراط،، الفاظ دي ؛ باقى الفاظ هم دغه دى.([2])

**قوله**: عثمان المؤذن: دا عثمان بن الهيثم بن جهم بن عيسى العصرى العبدى البصرى دې.

د بصرې د جامع جمات مؤذن وو.په دې وجه ورته عثمان مؤذن وئيلې شى. ابو عمرو ددوى كنيت دې.([3])

دخپل پلار هيثم بن جهم، جعفر بن الزبير، عبدالملك بن جريج، روبة بن العجاج، مبارك بن فضاله، عوف اعرابى او د محبوب بن هلال مزنى رحمهم الله وغيره نه روايت كوى.([4])

ددوى نه امام بخارى،ابراهيم بن صالح شيرازى، محمد بن يحي ذهلى، ابراهيم بن يعقوب جوزجانى، خليفه بن خياط، محمد بن الاشعث سجستانى، عبدالله بن الصباح العطار، او

---

[1]) عمدة القارى (٢٧٤) وفتح البارى(١/١٠٩)

[2]) المصادر السابقة)

[3]) تهذيب الكمال(١٩/٢.٥.٥٠٣)

د ابراهيم بن مرزوق رحمه الله نه علاوه ډيرو محدثينو د احاديثو سماع کړې ده.[1]

امام ابن حبان رحمه الله دوی په ..کتاب الثقات.. کښې ذکر کړی دی.[2]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی.«كان صدوقاً غير أنه بآخرة كان يتلقن ما يلقن»[3]

امام دارقطنی رحمه الله فرمائی.«كان صدوقاً كثير الخطإ»[4]

امام احمد رحمه الله ددوی نه روايت نه دې کړی.او دا رائې ئې ښکاره کړې ده.چه هغه ثبت نه وو.[5]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.«ثقة تغير فصار يتلقن»[6]

خو حافظ رحمه الله دوی لره ..ثقه.. ګرخولې دې.دا صحيح نه معلوميږی.خکه چه باقی د رجالو امامانو دوی لره زيات نه زيات صدوق ګرخولې دې.البته صرف ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې. ددې نه لازميږی.چه د .. ثقه.. ګرخولو مستحق شی.[7]

پاتې شوه دا خبره چه په صحيح بخاری شريف کښې ددوی روايت منقول دی.نو دا خو يو خو د شمير روايات دی.په دې کښې هم عام طور باندې متابعات موجود دی.[8] والله اعلم.

په ۲۲۰ھ کښې ددوی وفات اوشو.[9].رحمه الله تعالی رحمةً واسعةً۔

# ۳۵=بَاب خَوْفِ الْمُؤْمِنِ مِنْ أَنْ يَحْبَطَ عَمَلُهُ وَهُوَ لَا يَشْعُرُ

وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ التَّيْمِيُّ مَا عَرَضْتُ قَوْلِي عَلَى عَمَلِي إِلَّا خَشِيتُ أَنْ أَكُونَ مُكَذِّبًا وَقَالَ ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ أَدْرَكْتُ ثَلَاثِينَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّهُمْ يَخَافُ النِّفَاقَ عَلَى نَفْسِهِ مَا مِنْهُمْ أَحَدٌ يَقُولُ إِنَّهُ عَلَى إِيمَانِ جِبْرِيلَ وَمِيكَائِيلَ وَيُذْكَرُ عَنْ الْحَسَنِ مَا خَافَهُ إِلَّا مُؤْمِنٌ وَلَا أَمِنَهُ إِلَّا مُنَافِقٌ وَمَا يُحْذَرُ مِنْ الْإِصْرَارِ عَلَى النِّفَاقِ وَالْعِصْيَانِ مِنْ غَيْرِ تَوْبَةٍ لِقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى ﴿وَلَمْ يُصِرُّوا عَلَى مَا فَعَلُوا وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾

---

[1] تهذيب الكمال(۱۹\۵۰۳.۵۰۴)-
[2] الثقات لابن حبان (۸\۴۵۳.۴۵۴)
[3] تهذيب الكمال(۱۹\۵۰۴) وسير أعلام النبلاء (۱۰\۲۱۰)
[4] هدى السارى(۴۲۴) وميزان الإعتدال(۳\۵۹)
[5] هدى السارى(ص.۴۲۴)
[6] تقريب التهذيب (۲.۳۸۷) رقم ۴۵۲۵)
[7] تعليقات الشيخ محمد عوامة على الكاشف للذهبى(۲\۱۴)
[8] هدى السارى(ص.۴۲۴)
[9] تهذيب الكمال(۱۹\۵۰۴)

ددې باب ماقبل باب سره مناسبت امام بخاري رحمه الله ددې باب نه وړاندې ،، باب اتباع الجنائز من الايمان،، منعقد كړې وو. د هغې نه پس ئې دا باب راوړلې دې. ددې د تيرشوى باب سره مناسبت دا دې چه د جنازې اتباع مختلفو اغراضو لاندې كيږي. كله د رشته دارو د رضا لحاظ ساتلې شى. كله د مړى د خپلوانو د رضا خيال ساتلې كيږي. او كله د دوارو خبرو لحاظ ساتلې شى. او په بعضو وختونو كښې صرف د الله تعالى رضا مقصود وى. او هم دا مطلوب دې. لكه څنګه چه حديث كښې په ،، ايماناً او احتساباً،، سره دې طرف ته اشاره كړې شوې ده. خو كله كله داسې كيږي. چه سړې د الله تعالى د رضا دپاره كار كوى. خو بعضې داسې څيزونه او خرابيانې ورسره شاملې شى. چه هغه د انسان عمل بربادوى.
امام بخاري رحمه الله دا مذكوره باب په دې خبره خبردارې وركړې دې. چه سړې كله هم څه عمل كوى. نو د نفس د دهوكې نه دې ځان ساتى. هسې نه چه څه داسې څيز شامل شى. چه هغې سره عمل عبث شى.(١)
امام بخاري رحمه الله چه تر اوسه پورې څومره تراجم منعقد كړل. په هغې كښې ئې مرجئو باندې رد كړې دې. او ددې سره سره ئې په نورو فرقو، مثلاً د خوارجو او معتزله ئې هم ترديد كړې دې. دا باب امام بخاري رحمه الله خاص طور باندې د مرجئيه د ترديد دپاره منعقد كړې دې. هغه خلق دا وائى. چه مؤمن دپاره معصيت مضر نه دې. امام بخاري رحمه الله په رواياتو او آثارو سره ثابتوى. چه معصيت مضر دې. بعضې وختونو كښې د معصيت په وجه د انسان عمل بربادېږي. او ده ته پته هم نه لګى. په دې وجه معصيت باندې اصرار (كلكيدل) سخت مضر دى. او خطره ده چه داسې سړې فلاح او نه مومى.
په ترجمة الباب كښې امام بخاري رحمه الله دوه جزءه ايخودى دى. يو «خَوْفِ الْمُؤْمِنِ مِنْ أَنْ يَحْبَطَ عَمَلُهُ» او دويم جزء دې. «وَمَا يُحْذَرُ مِنَ الْإِصْرَارِ عَلَى النِّفَاقِ وَالْعِصْيَانِ مِنْ غَيْرِ تَوْبَةٍ» د دوارو اجزاو مقصود په مرجئه باندې رد كول دى. په رومبى جزء سره ئې دا اوښودل. چه مؤمن له هميشه يريدل پكار دى. او د مرجئه خلقو دا خيال دې چه بس ،، لا إله إلا الله محمد رسول الله،، وئيلو سره سړې معصوم شو. دا غلطه ده. او په دويم جزء سره ئې دا اوښودل. چه په معاصيو باندې بغير د توبې نه اصرار كول مضر دى. او د مرجئه خلقو دا وينا چه د ايمان موجود كيدو سره ګناهونه مضر نه دي.(٢)

آيا د امام بخاري رحمه الله مقصد د احباطيه تاكيد دې؟

بعضې خلقو دا اوګنړل. چه امام بخاري رحمه الله په دې ترجمة الباب سره د احباطيه يعنى د معتزله تائيد كوى. چه دا وائى. چه معصيت كولو سره د انسان عمل بربادېږي. او د هميشه

---

١) عمدة القارى (١/٢٧٤) وفتح البارى (١/١١٠)
٢) فتح البارى (١/١١٠)

عذاب مستحق جوريږي.څکه چه امام بخاری ﷫ دلته فرمائی.(( خَوْفِ الْمُؤْمِنِ مِنْ أَنْ يَحْبَطَ عَمَلُهُ وَهُوَ لَا يَشْعُرُ)) يعنی سړی له يريدل پکار دی.چه چرته دده عمل برباد شی.او ده ته پته هم اونه لګی.(١)

خو دا خبره صحيح نه ده.امام بخاری ﷫ دلته د مرجئه ترديد کړې دې.د معتزله تائيد ئې نه دې کړې.او دلته ددوی په کلام کښې د ,,احباط،، نه مراد احباط د ثواب دې.کفر نه دې.

لکه قاضی ابن العربی ﷫ فرمائی.چه د ,,احباط،، دوه قسمونه دی.يو ،،احباط ابطال،، دې.

لکه څنګه چه ايمان کفر باطلوی.او کفر ايمان باطلوی.او دويم ،،احباط موازنه،، ده.يعنی کله چه د قيامت په ورځ نيکئ او بدئ تللې کيږی.که د نيکو تله درنه شوه.نو د نيکو خاوند به مفلح وی.اوکه د بدو تله درنه شوه.نو که په دې صورت کښې الله تعالی معاف نکړی.نو دې به په تاوان کښې وی.اوکه معاف کړی.بيا هم د لږ وخت دپاره ،،احباط،، او موندې شو.څکه چه څومره وخت توقف اوشو.تر دومره وخته پورې دې سړی ته د خپل عمل نه هيڅ فائده اونشوه.او که خدائې مکړه معافی اونشوه.بلکه عذاب ورکول مقرر شو.نو تر کوم وخته پورې چه په جهنم کښې پروت وی.تر هغومره ورځو پورې به هغه ته د خپل عمل نه فائده نه رسيږی.خو کله چه راوځی.نو هغه ته به د خپلو نيکو عملونو اجر او ثواب ملاويږی .بهرحال احباط اوموندې شو.لکه څنګه چه د مکمل احباط په صورت کښې انسان ته د خپل عمل هيڅ فائده نه رسيږی.دغه شان دکوم کس په حق کښې چه مکمل احباط وی.هغه ته فی الجملة فائده حاصل نشوه.(٢) والله اعلم.

**ايا په بې علمئ کښې د کفر د کلمې اطلاق موجب د کفر دې؟** امام نووی ﷫ فرمائی.چه دلته د،،احباط،، نه مراد د ايمان نقصان او د بعضو عبادتونو باطليدل دی.کفر مراد نه دې.څکه که په بې علمئ کښې يوکس داسې عمل اوکړی.چه هغه د کفر وی.نو هغه به کافر نه وی(٣)

خو علامه کرمانی ﷫ دا رد کړې دې.او وئيلی ئې دی.چه د جمهورو په نيز که بې علمی کښې څه داسې عمل اوکړی.يا څه داسې خبره اوکړی.چه هغه موجب د کفر وی.نو کافر کيږی.(٤)

صاحب د بحر نقل کړی دی.که يو سړې په قصد سره د کفر کلمه ووائی.چه په مزاح ( توقو) کښې ولې نه وی.نو کافر کيږی.او که په خطاء يا زبردستئ سره اووئيلې شی.نو د هيڅ چا په نيز به کافر نه وی.او که پخپل اختيار سره ئې کلمه د کفر اووئيله.خو هغه ددې خبرې نه

---

(١) فتح البارى(١١٠/١)

(٢) المصدر السابق)

(٣) شرح الكرمانى(١٨٧/١) وعمدة القارى (١٢٤)

(٤) المصادر السابقة)

جاهل دي.چه دا کلمه د کفر ده.نو په دې کښې د مشائخو اختلاف دې چه کافر کيږي به اوکه نه؟(۱)

**د ترجمة الباب ماخذ** دا ترجمه امام بخاری رحمه الله د قرآن کريم د آيت ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ وَلَا تَجْهَرُوا لَهُ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ أَنْ تَحْبَطَ أَعْمَالُكُمْ وَأَنْتُمْ لَا تَشْعُرُونَ﴾ (۲) نه اخذ کړې ده.په دې آيت کښې د ,,رفع صوت فوق صوت النبی،، او د ،،جهر بالقول،، نه منع کړې شوې ده.چه په دې حرکت سره عين ممکن ده.چه ستاسو عملونه برباد شي.هم ددې نه امام بخاری رحمه الله د ((خوف المؤمن أن يحبط عمله وهو لا يشعر)) ترجمه قائم کړله.او دا ئې واضحه کړله.چه ،،د نبی ﷺ په آواز باندې خپل اواز پورته کول،، ښکاره ده.چه يو معصيت دې او معصيت سره د عملونو ضائع کيدو خطره متعلق کيږي.په داسې صورت کښې دا وئيل.چه معصيت ايمان دپاره مضر نه دې.دا به څنګه صحيح وی؟(۳)

**د مذکوره ايت نه د علامه زمخشری غلط استدلال** علامه زمخشری د اعتزال مسلك ته تقويت ورکولو دپاره د مذکوره آيت د ظاهری سطحې نه استدلال کړې دې.وئيلې ئې دی.چه معاصی مطلقاً که هغه کفر ته متعدی وی.او که د کفر نه کم وی.د اعمالو بربادونکی او د ايمان نه خارجونکی دی.(۴) حالانکه د اهل سنت والجماعت په دې خبره اتفاق دې.چه ،،مادون الکفر،، هيڅ يوه ګناه د اعمالو بربادونکی نه ده.

عالمانو د علامه زمخشری د استدلال ډير جوابونه ورکړی دی.خو د ټولو نه غوره جواب علامه احمد بن المنير مالکی اسکندری رحمه الله ورکړې دې.ددوی جواب په دوو مقدماتو باندې مبنی دې.

① يو دا چه رفع د صوت کله کله د ايذا سبب جوړيږی.او دا د مشاهدې نه ثابته ده.لکه د استاد په وړاندې د شاګرد، د مرشد په وړاندې د مريد، او د مشر په موجودګئ کښې د کشر آواز پورته کول او شور شغب کول.او ښکاره ده.چه د استاد، پير، او د لوئې نه د لوئې وجاهت (او مرتبه) هم د نبی کريم ﷺ د وجاهت په وړاندې هيڅ او خاورې دی.

② دويمه دا چه د اهل السنة والجماعة په نيز دا متفق عليه ده.چه نبی کريم ﷺ ته ايذاء ورسول کفر دې.

ددې دواړو مقدماتو ملاوولو نه نتيجه دا راووتله.چه د رفع صوت (آواز پورته کولو) دوه قسمونه دی.يو قسم هغه دې.کوم چه کفر ته متعدی دې.او دا هغه آواز دې.په کوم کښې چه نبی کريم ﷺ ته ايذاء رسول ثابتول.نو دا کفر دې.او کفر بالاتفاق عملونه بربادوی.دويم

---

۱) البحر الرائق (۵/۱۲۵) کتاب السيرباب أحکام المرتدين)
۲) سورة الحجرات:۲)
۳) فضل الباری(۱/۵۱۰)
۴) الکشاف (۴/۳۵۴، ۳۵۵)

قسم هغه دي.کوم چه کفر ته متعدی نه دي. یعني په کوم کښې چه نبی کریم ﷺ ته ایذاء رسول نه ثابتیږی.

**سوال**: دلته دا سوال پيدا کيږی.چه هرکله هر رفع صوت کفر ته متعدی او عملونه بربادونکې نه دي.نو مطلقاً د ﴿لَا تَرْفَعُوٓا﴾ حکم څنګه ورکړې شو؟

**جواب**: ددې دا دې.چه هر رفع صوت اګرچه مفضی الی الکفر او د اعمالو بربادونکې نه دې. خو دا متعین نه ده.چه کوم یو رفع د صوت به ایذاء ورکونکې وی.او کوم یو به نه وی.او که په واقع کښې متميز او متعين کړې شی.بيا هم د بې خيالئ په وجه تميز نه پاتې کيږی.او د حد نه تجاوز کيږی.په دې وجه عين ممکن ده.چه يو صورت مونږه موذی او نه ګنړو.او هغه په واقع کښې موذی شی.او د کفر حده پورې اورسيږی.او د ايذاء ددې صورت نه بچکيدو دپاره نې مطلقاً ﴿لَا تَرْفَعُوٓا﴾ او فرمائيل.او د مطلق رفع صوت نه منع کړې شوې ده.او ددې ممانعت علت بيان کړې شوې دې. ﴿وَأَنتُمْ لَا تَشْعُرُونَ﴾ چه په لا علمئ کښې ستاسو ټول اعمال برباد شی.یعنی په بې خبرئ کښې هغه صورت متحقق شی.په کوم کښې چه ایذاء وی.چه دا کفر دې.او په دې سره به ټول عملونه برباد شی.

هم ددې شبهې په وجه چه کوم یو صورت موذی او محبط دې.ددې پته نه لګی.ددې نه د بچ کيدو دپاره د مظنه ايذاء يعنی د هر رفع صوت نه ممانعت اوکړې شو.چه په بې خيالئ او بې علمئ سره په هغې رفع صوت کښې مبتلا شی. کوم چه کفر او د عملونو بربادونکې دې.دا بعينه هم دغه شان ده.لکه چه په يو بل آيت کښې وئيلی شوی دی.

﴿اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِّنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ﴾ (١) دلته د ,,کثير ظن،، نه د بچکيدو حکم دې.او ددې علت بيان کړې شوې دې.چه ،، بعضې ګمان ګناه وی،، په ظاهره دلته تقريب تام نه دې. ځکه چه هرکله ,,بعضې ګمان،، ګناه ده.نو هم ددې نه د بچ کيدو ضرورت دې.د هغه ګمانونو نه بچکيدل ضروری نه دی.کوم چه ګمانونه نه دی.خو دلته هم دا وئيلې کيږی.چه په کومو بعضو ګمانونو کښې اثم او ګناه ده.چونکه دغه بعض متميز او متعين نه دی.نو ممکن ده.چه څه بعضو لره مونږه ګناه اونه ګنړو.او هغه په واقع کښې ګناه وی.په داسې صورت کښې به بې علمئ کښې ګناه کښې مبتلا کيدل وی.په دې وجه د ،،کثير ظن،، نه د بچکيدو حکم ورکړې شو.چه په دې کښې د واقع کيدو نوبت رانشی.

بيادلته دا خبره هم ه غور قابله ده.چه علامه زمحشری پخپلې باطلې مدعا باندې د استدلال کولو دپاره د آيت کوم مطلب اخلی.چه علی الاطلاق هر رفع د صوت محبط دې.ددې مطلب په بناء د ﴿وَأَنتُمْ لَا تَشْعُرُونَ﴾ لطافت بلکه افاديت هم ختميږی.ځکه چه هرکله هر قسمه رفع صوت محبط شو.نو کله چه يوکس ددې ارتکاب اوکړو.نو دده د عملونو حبط کيدل متعين او معلوم دی.او رفع صوت هم څه مخفی امر نه دې.چه ددې شعور نه کيږی.نو بيا به د ﴿لَا تَشْعُرُونَ﴾ څه مطلب وی؟ او د اهل سنت والجماعة د موقف

---

(١) سورة الحجرات:١٢)

مطابق چه د آيت كوم تقرير اوكړې شو.په دې بنياد باندې د﴿ لَا تَشْعُرُونَ ﴾لطافت ښكاره دې.او د محاورې بالكل موافق دې.([1]) والله اعلم.

**د حافظ ابن القيم رحمه الله په دې مسئله كښې د معتزله تائيد او ددوى رد:** حافظ ابن القيم رحمه الله په دې مسئله كښې د اهل السنة والجماعة سره اختلاف كړې دې.او د معتزله موافقت نې كړې دې.او ډير په كلكو الفاظو سره دوى ليكلى دى.چه دا څه ضروری ده.چه په هره خبره كښې د معتزله خلاف اوكړې شى.كه ددوى يوه مسئله د قرآن او سنت موافق وى.نو هسې بيسه په تاويلاتو پسې كيدل، او ددوى د خلاف كولو ضرورت نشته.

بيا دوى په دې مسئله كښې د معتزله تائيد كولو دپاره لاندينى دليلونه پيش كړى دى:

① آيت د قرآن ﴿لَا تُبْطِلُوا صَدَقَاتِكُمْ بِالْمَنِّ وَالْأَذَىٰ﴾ ([2])يعنى ,,د خپلو صدقاتو په احسان كولو او په ايذاء رسولوسره ابطال مه كوئ،، معلومه شوه.چه په ,,من او اذى،، سره صدقه باطليږى.

② د حضرت بريده رضى الله عنه مرفوع حديث دې.«من ترك صلاة العصر فقد حبط عمله» ([3]) معلومه شوه.چه د مازيګر مونځ پريخودل چه دا يو معصيت دې.ددې په وجه عمل ضائع كيږى.

③ دوى ,,حديث الموازنه،، هم پيش كړې دې.چه په هغې كښې دى.چه د قيامت په ورځ به د نيكئ او ګناه موازنه كيږى.كه نيكى غالب شوه.نو جنت ته به ځى.او كه ګناه غالبه شوه.نو جهنم ته به ځى.([4]) معلومه شوه.چه دده نيكى به ضائع كيږى.ګنى جهنم ته به ولې داخليدو؟

خو حافظ ابن القيم رحمه الله چه كوم دليلونه پيش كړى دى.هغه صحيح نه دى. رومبې دليل ئې د ﴿ لَا تُبْطِلُوا صَدَقَاتِكُمْ...الخ﴾ پيش كړې دې.ددې نه دلته استدلال صحيح نه دې. ځكه چه دلته خبره او بحث په دې كښې دې.چه كومه يوه ګناه على الاطلاق ټول نيك اعمال ضائع كولې شى او كه نه؟ باقى پاتې شو دا صورت چه يو خاص نيك عمل كوم سره چه ددې ګناه تعلق وى.بيا دغه ګناه سره دا هم ښكاره شى.چه دا نيك عمل په اصل كښې حسنه نه وه. بلكه د حسنه يو صورت وو.په دې كښې د حسنه روح او حقيقت نه وو.په داسې صورت كښې ددې ګناه ددې خاص نيكئ دپاره محبط كيدل منو.او ددې آيت نه هم دا صورت ثابتيږى. چه ,,من،، او ,,اذى،،چه كوم خاص حسنه سره متعلق دى.يعنى صدقات، هغه به

---

[1]) الإنتصاف بهامش الكشاف (۳۵۴/۱۴، ۳۵۵)

[2]) سورة البقرة: ۲۶۴)

[3]) صحيح البخارى(۷۸/۱۱) كتاب مواقيت الصلاة باب إثم من ترك صلاة العصروسنن النسائى (۸۳/۱۱) كتاب الصلاة باب من ترك صلاة العصر)

[4]) أخرج ابن أبى حاتم عن ابن عباس رضى الله عنهما قال: يحاسب الناس يوم القيامة فمن كانت حسناته أكثر من سيئاته بواحدة دخل الجنة ومن كانت سيئاته أكثر من حسناته بواحدة دخل النار.. وأخرجه ابوالشيخ عن جابر رضى الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم يوضع الميزان يوم القيامة فيوزن الحسنات والسيئات فمن رجحت حسناته على سيئاته دخل الجنة ومن رجحت سيئاته على حسناته دخل النار(الدرالمنثر (۶۹/۱۳، ۷۰) سورة الأعراف)

دې سره باطل او بربادېږي.او دا حبط او باطليدل بالكل په ځاني دي.ځكه چه ..من او اذى.، اوبنودل.چه دا صدقه په اصل كښې هډو صدقه نه وه.صرف د صدقې يو صورت وو. په دې كښې روح او حقيقت نه وو.
بيا ددوى دحديث الموازنه نه استدلال هم بې فائدې دې.ځكه چه ددې نه دا نه ثابتيږي. چه ټول نيك عملونه به باطليږي.زيات نه زيات دومره خبره ثابتيدې شى.چه د ګناهونو د غلبې په وجه به فى الحال دده نيك عملونه نفع نه رسوى.او په فى الحال نفع نه رسولو سره حبط نه لازميږي.بلكه فى الحال به دا محفوظ ساتلې كيږي.كله چه دې د خپلو ګناهونو سزا اوزغمى.او پاك صفا شى.بيا به هم ددې حسناتو په وجه ده ته جنت او اوچتې مرتبې نصيب كيږي.كه د ګناهونو په وجه ټول نيك عملونه برباد شى.نو بيا به ګناهګارو مؤمنانو ته په جنت كښې مختلفې مرتبې به څنګه ملاويږي؟

تركومې پورې چه د «من ترك صلاة العصر فقد حبط عمله» تعلق دې.نو ددې نه په ظاهره ددوى دموقف تائيد كيږي.خو جمهور دا په زجر او توبيخ او زورنې باندې محمول كوى.
په دې داسې پوهه شئ.چه د ..حبط.، لغوى معنى دا ده.چه څاروى ته بنه چراګاه ( ورشو) ملاوشى.او په هغې كښې هغه بنه اوخريږي.تردې چه هغه هضم نكړې شى.ددې خيټه او كلمې اوپړسيږي.دغه شان د خيټې او كلمو پړسيدو ته ..حبط.، وئيلې شى.(¹)
اوګورئ! په دې غرض سره ګياه كښې څرن كوى.چه ددې ژوند باقى پاتې شى.او صحت او طاقت ئې بحال پاتې شى.اوس د يو عارض او بې قاعدګئ په وجه هغه نفع حاصله نشوه. بلكه ډير كرته خو ددې نه مرګ هم واقع كيږي.او كله كله مره كيږي نه، خو د ګياه خوړلو چه كومه نفع حاصليدل پكار وو.هغه نفع نه حاصليږي.د ..حبط.، اصل معنى خو دا ده.
اوس ددې نه ..حبط د اعمالو.، مراد واخستلې شو.ځكه چه په دې كښې هم دا كيږي.چه د اعمالو نه چه كوم اصلى مقصود دې.يعنى ثواب او اجر او د الله تعالى رضامندى، هغه د څه عارض په وجه نه حاصليږي.په دې كښې هم دوه وجې دى.كله خو داسې عارض راپيښيږي.چه په دې كښې ټول عملونه واقعى بالكل بې كاره او عبث كيږي.لكه مثلاً يوكس د كفر ارتكاب اوكړو.او كله دا صورت كيږي. چه داسې عارض راپيښيږي.چه په دې سره عملونه بالكل برباد او بې كاره كيږي نه، خو ددې نه څه خاص فائده نه حاصليږي.يا كوم بركت چه ددې نه حاصليدل پكار دى.هغه نه حاصليږي.دې ته هم په يوه درجه كښې ..حبط.، وئيلې شى.په عرف كښې هم كله چه د يو سړى په كار كښې خرابى پيدا شى.او ددې په وجه دده خاص نفع ختمه شى.يا په څومره اندازه فائده چه مطلوب وه.هغه حاصله نشى.نو وئيلې شى.چه د .. فلانى ټول كړه اوړه برباد شو.،نو په نصوصو كښې چه كله د يوې ګناه په وجه د .. حبط.، ذكر راشى.هلته هم دا دويم صورت مراد دى.

¹) النهاية فى غريب الحديث(٣٣١/١)

هم په دې بنياد د«من ترك صلاة العصر فقد حبط عمله» مطلب دا دې چه د مازيگر د مونځ پريخودل دومره لوئې جرم دې چه ددې په وجه دده د عملونو کومه مطلوب خاص نفع حاصلول وو. هغه به نه حاصليږي. او ده ته به سخت نقصان رسيږي. لکه څنگه چه دويم روايت کښې دى. «من فاتته صلاة العصر فكأنما وُتر أهله وماله»[1]

بعينه هم دغه شان د﴿لَا تَرْفَعُوٓا أَصْوَاتَكُمْ......إلخ﴾ مطلب دا دې چه د نبى كريم ﷺ په صحبت مبارك کښې چه به صحابه کرامو ﷺ ته کوم خاص برکت حاصليدو. چه په دې سره به په معمولى عمل کښې دوى ته عظيم اجر او کثيره نفع حاصليدله. هغه به فوت کيږي. کوم چه ډير لوئې تاوان او نقصان دې.

په حديث شريف کښې راځى چه ،، که زما يو صحابى نصف مد صدقه اوکړى. نو په تاسو کښې د يوکس د غر برابر سره زر صدقه کول هم ددې برابر نشى کيدې. ،،[2]

وجه ددې هم دا ده. چه د نبى كريم ﷺ د برکته او د صحبت د فيض نه به دوى ته په اکمله درجه اخلاص حاصليدو. کوم چه د عمل روح دې. اوس که څوك سړې داسې څه کار اوکړى کوم چه د دربار رسالت تهذيب او د ادب خلاف وى. نو ډيره ممکن ده. چه ددې نحوست سره ددې فيوضو او برکاتو راتلل بند شى. او دې محروم پاتې شى. نو کوم سړې چه د مذکوره فيوضو او برکاتو نه مستفيض کيدلو. اوس که هغه ددې نه محروم پاتې شى. نو عرفاً ده ته داسې وئيلې شى. چه ،،دده کړه اوړه ټول بې کاره شو،، ځکه چه هرکله هغه فيض او برکت پاتې نشو. نو گويا ده ته هيڅ نفع اونشوه.

ددې تشريح نه دا خبره واضحه شوه. چه په دې مواقعو کښې د ،، حبط،، نه بالکل بيکاره کيدل مراد نه دى. ځکه چه داسې ارتکاب د کفر په وجه کيږي. بلکه د زياتې نفعې او برکاتو حبط کيدل مراد دى. [3] والله اعلم.

**قوله: وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ التَّيْمِيُّ:** ابراهيم تيمى ﷫ اوفرمائيل:

دا ابو اسماء ابراهيم بن يزيد بن شريك تيمى كوفى دې. عابد، زاهد، اود شپې بيدارو او واعظانو بزرگانو کښې وو.[4]

د حضرت انس، حضرت حارث بن سويد، عمرو بن ميمون، عبدالرحمن بن ابى ليلى او يزيد بن شريك ﷫ نه روايت کوى. د حضرت عائشې ﷞ نه هم مرسلاً روايت کوى.[5]

---

[1]) رواه النسائى فى سننه (٨٣١١) كتاب الصلاة باب صلاة العصرفى السفر)

[2]) عن أبى سعيدالخدرى ﷺ قال قال رسول الله ﷺ لاتسبوا أصحابى فلو أن أحدكم أنفق مثل أحد ذهباً ما بلغ مد أحدهم ولا نصيفه أخرجه البخارى فى صحيحه(٥١٨١١) كتاب فضائل اصحاب النبى ﷺ باب بلاترجمة بعد باب قول النبى ﷺ لوكنت متخذاً خليلاً )

[3]) دا ټول بحث د فضل البارى(ج١١ ٥١٢، ٥١٣) نه ماخوذ دې.

[4]) تهذيب الكمال(٢٣٢١٢)

[5]) المصدرالسابق)

ددوی نه په روایت کونکو کښې بیان بن بشر احمسی، حسن بن عبیدالله نخعی، حکم بن عتیبه، زبید بن الحارث الیامی، سالم بن ابی حفصه، سلمه بن کهیل، سلیمان الاعمش او یونس بن عبید رحمهم الله وغیره دی.[1]

امام یحی بن معین رحمه الله فرمائی: ،،ثقة،،[2]

امام ابو زرعه رحمه الله فرمائی: «ثقة مرجئ»[3]

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی: ،،صالح الحدیث،،[4]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: «ثقة إلا أنه يرسل ويدلس»[5]

حجاج بن یوسف دوی لره قید کړې وو. ددوی واقعه هم د ایثار په تاریخ کښې یوه خاص نمونه ده. واقعه دا وه. حجاج بن یوسف د حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله گرفتارولو دپاره پولیس راولیګل. دا پولیس ابراهیم تیمی رحمه الله ته اورسیدل. او وې وئیل چه. ابراهیم مطلوب دې. دوی ددې علم باوجود چه ددوی مطلوب حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله دې. وې وئیل چه هم زه ابراهیم یم. ددوی تقوی او ایثار اجازت ورنکړو چه دوی د ابراهیم نخعی رحمه الله د گرفتارولو په باره کښې معمولی مدد هم اوکړی. نو دوی ئې گرفتار کړل. او د حجاج د زمانې په بدنام جیل کښې ئې واچولو. دا جیل خانه حجاج جوړه کړې وه. چه په دې کښې نه د گرمۍ نه د بچ کیدو څه سامان وو. او نه د یخنۍ د بچ کیدو څه ځائې وو. د کلاؤ اسمان لاندې به ئې دوه سرې په یو یو زنځیر کښې تړلی ګیرول. د ابراهیم تیمی رحمه الله په یو څو ورځو کښې شکل وصورت متغیر شو. ترذې چه ددوی مور ددوی د کتلو دپاره راغلله. نو وې نه پیژندلو. کله چه دوی پخپله خبره اوکړله. نو وې پیژندلو. هم په دې حال کښې ددوی وفات اوشو.

په کومه شپه ئې چه وفات اوشو. حجاج بن یوسف په خوب کښې اوکتل. چه یو سړې وائی چه نن شپه په دې ښار کښې د یو جنتی سړی وفات شوې دې. حجاج چه د سحر پاسیدو. نو تپوس ئې اوکړو. چه آیا نن په واسط ښار کښې دچا وفات شوې دې؟ خلقو اووئیل چه آو! نن په جیل کښې د ابراهیم تیمی رحمه الله وفات شوې دې. حجاج فوراً دا اووئیل چه دا خوب د شیطان په وسوسو کښې یوه وسوسه ده. او خبره ئې ټال کړله. ددې نه پس دده په حکم سره دوی په ډیران کښې اوغورځولی شو.[6]

---

[1] المصدرالسابق)
[2] المصدرالسابق) وخلاصة الخزرجی(ص۲۳۰)
[3] المصادرالسابقة)
[4] تهذیب الکمال(۲۳۳/۲)
[5] تقریب التهذیب رقم ۲۶۹) (ص۹۵)۔
[6] طبقات ابن سعد(۲۸۵/۶)

په ۹۲هـ کښې ددوی وفات اوشو.ددوی د عمر د څلویښتو کالو هم پوره شوې نه وو.(۱) رحمه الله رحمة واسعة۔

**قوله**: مَا عَرَضْتُ قَوْلِي عَلَى عَمَلِي إِلَّا خَشِيتُ أَنْ أَكُونَ مُكَذِّبًا: چه کله هم ما خپل قول پخپل عمل باندې پيش کړو.يعنی د دواړو موازنه مې اوکړله.نو ماته دا يره شوه.چه هسې نه دروغژن اوګڼړلې شم.

**ابراهيم تيمی رحمه الله د قول تخريج**.د ابراهيم تيمی رحمه الله دا اثر ابن سعد رحمه الله په ،،طبقات،، کښې (۲)امام احمد رحمه الله په ،،کتاب الزهد،، کښې (۳) ابونعيم رحمه الله پخپل ،،تاريخ،، کښې (۴) ابن ابی شيبه رحمه الله پخپل ،،مصنف،،کښې (۵)ابوالقاسم لالکائی رحمه الله پخپل ،،سنن،،کښې (۶)او امام بخاری رحمه الله پخپل ،،تاريخ کبير،،کښې (۷) موصولاً نقل کړې دي.

**ددې قول مطلب**: د ابراهيم تيمی رحمه الله په دې قول کښې ،،مکذِّباً،، په صيغې د اسم فاعل او په صيغې د اسم مفعول دواړه شان نقل کړې شوې دي.(۸)
که د اسم فاعل صيغه واخستلې شي.نو مطلب به دا وی.چه کله هم د خپل قول او فعل موازنه کوم.نو زه يريږم.چه زه پخپله خپل عمل سره د خپل قول تکذيب کونکې جوړ نشم.
علامه شبير احمد عثمانی رحمه الله فرمائی.دا داسې ده.لکه څنګه چه امام غزالی رحمه الله يو مثال بيان کړې دې.چه يو سړې د لوخې نه حلوه اوچتوی.او مزې سره ئې خوری.او خلقو ته وائی.چه ګوری! دا مه خورئ.دې کښې زهر ملاو شوی دی.نو ښکاره ده.چه خلق به ددې تکذيب کوی.او دې پخپله هم خپل عمل سره د خپل ځان تکذيب کوی.لکه حافظ شيرازی رحمه الله فرمائی:

واعظاں کیں جلوه بر محراب و منبر می کنند
چوں بخلوت می روند آں کار دیگر می کنند
مشکلے دارم ز دانشمند مجلس باز پرس

---

(۱) الکشاف(۱/۲۲۷) رقم ۲۲۰)
(۲) طبقات ابن سعد(۶/۲۸۵)
(۳) فتح الباری(۱/۱۱۰) وعمدة القاری(۱/۲۷۵)
(۴) المصادر السابقة)
(۵) تغليق التعليق(۲/۵۲)
(۶) عمدة القاری(۱/۲۷۵)
(۷) تاريخ کبير(۱/۳۳۵) رقم ۱۰۵۳)
(۸) ... اری(۱/۱۱۰)

توبه فرمايان چرا توبه كمتر مى كنند
گوئيا باور نمى دارند روز داورى
كاين همه قلب و دغل دركار داور مى كنند

يعنى دا واعظان خلق كوم چه په محراب او منبر باندې كينى وعظ كوى او د زهد او دنيا نه د بې رغبتى خبرې كوى. كله چه په خلوت كښې شى نو ددوى عمل څه بل شان وى ماته خو اشكال دې لره شان د مجلس د هوښيارانو نه تپوس اوكړه چه د توبې تلقين كونكى پخپله توبه ولې كمه اوباسى؟ گويا دوى ته په ورځ د جزاء باندې يقين نشته چه سره د دليلونو او د حجتونو د الله ﷻ د عدل په كارونو كښې گوتې وهى او د دخل اندازئ كوشش كوى.

ابراهيم تيمى رحمه الله ډير زيات متقى او ډير محتاط انسان وو خو د يرې او خشيت او تواضع نه ،،خشيت ان اكون مكذبا،، وائى. معلومه شوه چه د كامل ايمان باوجود يريدل او ويريدل پكار دى. ددوى اشاره دې آيت طرف ته ده. ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ ۝ كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللَّهِ أَنْ تَقُولُوا مَا لَا تَفْعَلُونَ ۝﴾ (١) يعنى پخپلې خولې د قانون د اطاعت اعلان كول. او بيا عمل نه كول. په دې سره د الله تعالى غضب په جوش كښې راځى.

،،مكذبا،، د اسم فاعل په صيغې سره د وئيلو په صورت كښې دا معنى هم كيدې شى چه د عمل په اعتبار سره د دين تكذيب كونكو سره د مشابهت په وجه زما شمير هم د شريعت په دروغژن كونكو كښې اوشى. ځكه چه په كافرانو كښې د منافقانو په ژبه كښې خو ډير زيات طاقت وى. خو د عمل په ميدان كښې هغوى صفر وى.

او كه ،،مكذبا،، اسم مفعول اووئيلې شى. نو مطلب به دا وى چه زه يريږم د الله تعالى نه. چه هغه زما تكذيب اونكړى. ځكه چه هركله عمل د قول مخالف دې نو عمل كتلو سره به خلق دروغژن وائى. ابراهيم تيمى رحمه الله چونكه ډير عابد، زاهد او متقى وو وعظ به ئې كولو. ددوى مقصد دا دې چه هركله زه د خپلو اقوالو په رڼرا كښې د خپل عمل جائزه اخلم نو ماته يره كيږى چه زما تكذيب اونكړې شى. (٢) والله اعلم

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ: او ابن ابى مليكه اووئيل

دا ابوبكر عبدالله بن عبيدالله بن ابى مليكه زهير بن عبدالله بن جدعان تيمى قرشى دې ابومحمد هم ددوى كنيت دې. (٣)

دحضرت عائشې، حضرت عبدالله بن عباس، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت عبدالله بن

---

(١) سورة الصف: ٢، ٣)

(٢) فضل البارى (١/٥١٣، ٥١٤) وعمدة القارى (١/٢٧٥) وفتح البارى (١/١١٠)

(٣) تهذيب الكمال (١٥/٢٥٦) وتقريب التهذيب (ص ٣١٢) اويه طبقات ابن سعد (٥/٤٧٢) كښې ددوى نسب نامه لږه غوندې مختلف ده حالانكه په عامو مراجعو كښې هم هغه شان ده لكه څنگه چه په تهذيب الكمال كښې ...

عمرو بن العاص، حضرت عبدالله بن الزهیر، حضرت ابو محذوره، حضرت ام سلمه او د حضرت اسماء بنت ابی بکر صدیق رضی الله عنهم نه روایت کوی (۱)

ددوی نه علاوه نې ډیر حضرات کتلی دی خو دهغوی نه نې روایت نه دې کړې. مثلاً علی بن ابی طالب او حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنهما نې کتلی دې. خو ددوی نه نې روایت نه دې کړې.

ددوی نه ایوب سختیانی، جریر بن حازم، حمید الطویل، عبدالعزیز بن جریج، عبدالملک بن عبدالعزیز بن جریج، عطاء ابن رباح، لیث بن سعد، لیث بن ابی سلیم او یزید بن ابراهیم تستری رحمهم الله وغیره روایت د حدیث کوی. (۲)

امام ابوزرعه او امام ابوحاتم رحمهما الله فرمائی.،،ثقة،، (۳)

ابن سعد رحمه الله فرمائی.،،وکان ثقة کثیر الحدیث،، (۴)

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.،،وکان عالماً مفتیاً صاحب حدیث وإتقان، معدود فی طبقة عطاء، وقد ولی القضاء لابن الزبیر، والأذان أیضاً،، (۵)

ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې. (۶)

امام عجلی رحمه الله فرمائی.،،تابعی ثقة،، (۷)

ابن خلفون رحمه الله فرمائی.،،رجل صالح جلیل ثقة،، (۸)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.،،ثقة فقیه،، (۹)

په ۱۱۷ھ کښې ددوی وفات اوشو. (۱۰)

**قوله**: أَدْرَكْتُ ثَلَاثِينَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: زه د نبی کریم ﷺ په اصحابو کښې دیرشو حضراتو سره ملاو شوې یم.

**د ابن ابی ملیکه رحمه الله ددې اثر تخریج**: دابن ابی ملیکه رحمه الله دا اثر ابوخیثمه رحمه الله پخپل ،،تاریخ،، کښې (۱۱) محمد بن نصر مروزی رحمه الله پخپل ،،کتاب الایمان،، کښې (۱۲)، ابو زرعه

---

(۱) تهذیب الکمال (۱۵/۲۵۶)
(۲) المرجع السابق)
(۳) تهذیب الکمال (۱۵/۲۵۸)
(۴) طبقات ابن سعد (۵/۴۷۳)
(۵) سیر أعلام النبلاء (۵/۸۹)
(۶) الثقات لابن حبان (۵/۲)
(۷) تعلیقات تهذیب الکمال (۱۵/۲۵۹)
(۸) المرجع السابق)
(۹) تقریب التهذیب (ص. ۳۱۲) رقم ۳۴۵۴)
(۱۰) سیر أعلام النبلاء (۵/۹۰)
(۱۱) فتح الباری (۱/۱۱۰) وعمدة القاری (۱/۲۷۵)
(۱۲) المرجع السابق)

دمشقي رحمه الله پخپل ..تاريخ.. كښې.(١) او امام بخاري رحمه الله پخپل ..تاريخ كبير.. كښې (٢) موصولاً نقل كړې دې.

په دې طرق كښې په يو طريق كښې هم ددې اصحابو كرامو رضي الله عنهم نوم نه دې اخستلې شوې.د كومو په باره كښې چه دلته ذكر دې البته ابن ابى ملكيه چه كومو صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم سره زيات ملاقات كړې دې.هغوى كښې حضرت عائشه، حضرت اسماء، عبادله اربعهٔ، حضرت ابوهريره، حضرت عقبه بن الحارث، او حضرت مسور بن مخرمه رضي الله عنهم دى.او ددوى نه ئې روايت هم كړې دې.(٣)

**قوله: كُلُّهُمْ يَخَافُ النِّفَاقَ عَلَى نَفْسِهِ:** دوى ټول به د خپل ځان په باره كښې د نفاق نه يريدل. ددې يرې منشاء زياته ورع (تقوى) وه.ځكه چه دا حضرات ډير زيات متقى او پرهيزګاران وو.په دې وجه به هر څيز كښې دوى ته خطره كيدله.يريدل به چه چرته ددوى يو قول او عمل د منافقانو د قول او عمل مشابه نشى.حضرت عمر رضي الله عنه سره ددې چه ډيره لويه مرتبه ئې وه.د رسول الله صلى الله عليه وسلم رازدار حضرت حذيفه رضي الله عنه له به ورتلو او ونيل به يې:چه په ما كښې خو څه د نفاق عمل نشته؟(٤)

علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى.چه په اصل كښې حضرات صحابهٔ كرام رضي الله عنهم او د عمر موندلې دې.او خپل مخې ته په شريعت كښې د تغير مشاهده كړې ده.خو د قدرت نه كيدو په وجه ئې انكار نه دې كړې.په دې وجه به دوى ته دا خطره وه.چه چرته دا خاموشي په مداهنت (يعنى د حق پټولو) كښې داخل نه وى.او ددوى په دې طريقه خاموش پاتې كيدل د نفاق څه څيز نه وى.(٥)

**قوله: مَا مِنْهُمْ أَحَدٌ يَقُولُ إِنَّهُ عَلَى إِيمَانِ جِبْرِيلَ وَمِيكَائِيلَ:** په دوى كښې به چا هم نه ونيل.چه دده ايمان د جبرئيل او ميكائيل عليهما السلام د ايمان په شان دې. يعنى لكه څنګه چه د جبرئيل او ميكائيل عليهما السلام ايمان مكمل دې.ځكه چه ددوى ايمان شهودى دې.په دوى كښې به يو سړى هم د ځان په باره كښې داسې ګمان نه كولو.بلكه هر يو ته به دا ويره وه.چه دده په ايمان كښې چرته د يو طرفه كمى نه وى راغلې.دده د نفاق څه عمل نه وى صادر شوې.د نفاق څه خبره ئې د ژبې نه نه وى وتلې.

---

(١) فتح الباري (١١٠١١) وتغليق التعليق (٥٢١٢)

(٢) التاريخ الكبير(١٣٧١٥) رقم الترجمة (٤١٢)

(٣) فتح الباري (١١٠١١، ١١١)

(٤) عن زيد بن وهب قال مات رجل من المنافقين فلم يصل عليه حذيفة فقال له عمرأمن القوم هذا ؟ قال نعم،قال بالله أمنهم أنا؟ قال لا ولن أخبربه بعدك أحداً (رواه ستة فى الإيمان) كذا فى كنزالعمال (٣٤٤١١٣) رقم ٣٦٩٦٢ ورقم ٣٦٩٦١)

(٥) عمدة القاري(٢٧٥١١) وفتح الباري(١١١١١)-

بعضې حضرات ارشاد فرمائی چه د امام بخاری رحمه الله مقصود ددې جملې نقل کولو سره امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله باندې تعريض دې.ځکه د امام ابوحنيفه رحمه الله نه منقول دی. ,,ايماني كإيمان جبرئيل،، خو دا خبره په مشهورو شارحينو نووی، کرمانی،عينی، عسقلانی، قسطلانی وغيره کښې چا هم نه ده ذکرکړې.نو دا وئيل چه په دې سره امام ابوحنيفه رحمه الله باندې تعريض مقصود دې.صحيح نه معلوميږی.([1])

ددې يوه قرينه دا هم د ه.چه دلته د امام بخاری رحمه الله الفاظ دی.,,......على إيمان جبرئيل و ميكائيل،، حالانکه دامام ابوحنيفه رحمه الله نه چرته هم د ،، ميکائيل،، لفظ منقول نه دې. په دې وجه څه لرې نه ده.چه د امام بخاری رحمه الله مقصود د خپل يو معاصر ترديد وی.چه هغه مرجی صاحبِ بدعت وی.چه د هغه نه دا قول منقول وی.([2])

**ايا ,,ايماني كايمان جبرئيل،، جمله د امام ابوحنيفه رحمه الله نه ثابت ده؟** دلته دا خبره هم قابل غور ده.چه دا جمله د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله نه ثابته هم ده اوکه نه؟

ملا على قاری رحمه الله په ,,شرح الفقه الاکبر،، کښې او علامه ابن عابدين شامی رحمه الله په ,,ردالمختار،، کښې د ,,خلاصة،، په حوالې سره،د امام محمد رحمه الله په طريق سره د امام ابوحنيفه رحمه الله قول نقل کړې دې.«أكره أن يقول الرجل: إيماني كإيماني جبرئيل، ولكن يقول: آمنت بما آمن به جبريل»([3])

دغه شان حافظ ذهبی رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله قول نقل کړې دې.«من قال إيماني كإيمان جبريل فهو صاحب بدعة»([4])

نو هرکله چه د امام اعظم رحمه الله نه صاحبين رحمهما الله ( چه دوی د هغوی د علومو حافظان او ناشر دی) نقل کوی.چه ،،إيماني كإيمان جبريل،، وئيل خوبن نه دی. نو امام صاحب رحمه الله به دا څنګه خوښولو؟

ملا على قاری رحمه الله فرمائی.«وكذا لا يجوز أن يقول أحد: إيماني كإيمان الأنبياء عليهم السلام، بل ولا ينبغي أن يقول: إيماني كإيمان أبي بكر وعمر رضي الله عنهما وأمثالهما»([5])

او که اومنلې شی.چه د امام اعظم رحمه الله نه دا جمله منقول ده.نو دا تفصيل پيژندل پکار دی.چه د امام صاحب رحمه الله نه په دې مقام درې قسمه جملې نقل کړې شوی دی.

---

[1]) انظر تعليقات لامع الدراری(۱۱/۵۹۹)-

[2]) امدادالباری(۶۹۹/۱٤)-

[3]) شرح الفقه الأكبرعلى القاری (ص.۸۷، ۸۸) وردالمحتار(٤٨٥/۱۲)-

[4]) تذکرة الحفاظ (۲۹۳/۱) ترجمة القاضي أبي يوسف الإمام العلامة)

[5]) شرح الفقه الأكبر للقاری(ص.۸۸)

① یو لفظ صاحب د بحر نقل کړی دی «ایمانی کایمان جبریل، ولا أقول: ایمانی مثل ایمان جبریل صلوات الله علیه وسلامه»(۱)

② دویم لفظ صاحب د خلاصې نقل کړی دی «أکره أن یقول الرجل ایمانی کایمان جبریل، ولکن یقول: آمنت بما آمن به جبریل»(۲)

③ دریم لفظ په ،، کتاب العالم والمتعلم،، کښې منقول دی «إن ایماننا مثل ایمان الملائکة، لأنا آمنا بوحدانیة الله تعالى وقدرته وما جاء من عند الله عزوجل بمثل ما أقرت به الملائکة وصدقت به الأنبیاء والرسل، فمن ههنا ایماننا مثل ایمانهم، لأنا آمنا، بکل شئ آمنت به الملائکة مما عاینته من عجائب الله تعالى ولم نعاینه نحن، ولهم بعد ذالك علینا فضائل، فی الثواب على الایمان وجمیع العبادات.....»(۳)

اوس دلته درې عبارتونه شول او په دریو واړو کښې په ظاهره تعارض دی علامه ابن کمال پاشا رحمه الله یوه مستقله رساله کښې دا مسئله ښه واضحه کړې ده او د ټولو عبارتونو محملونه (مقامات) ئې متعین کړی دی. علامه شامی رحمه الله ددې خلاصه رانقل کړې ده چه د هغې حاصل دا دی چه په دې کښې رومبی عبارت د عالمانو په حق کښې دی چه دوی په ،،کاف،، او ،،مثل،، کښې فرق کوی ځکه چه ،،کاف،، خو مطلق دتشبیه دپاره راځی یا داسې اووایې چه د تشبیه فی الذات دپاره استعمالیږی او ،،مثل،، د تشبیه فی الذات سره سره د تشبیه فی الصفات دپاره هم راځی نو ګویا په رومبی عبارت کښې امام ابوحنیفه رحمه الله د تشبیه فی الذات اجازت ورکړې دی خو تشبیه فی الصفات ئې مکروه ګرځولې دې او ددې اجازت ئې نه دې ورکړې ځکه دا ډیره لرې ده چه د انسانانو ایمان د ملائکو د ایمان من کل الوجوه په ټولو صفاتو کښې مشابه شی ځکه چه ملائکو ته خو حضور او شهود حاصل دې او انسان ته دا خبره حاصل نه ده.

دویم عبارت دعوامو په اعتبار سره دې چه په دې کښې د ،کاف، استعمالولو نه هم منع کړې شوې ده. ځکه چه دوی په ،،کاف،، او ،،مثل،، کښې د فرق نه ناخبره وی.

دریم عبارت په کوم کښې چه د ،،مثل،، استعمال دې په دې کښې دا واضحه کړې شوې ده چه د جبریل او ملائکو ایمان سره د مشابهت او تشبیه څه وجه ده او هغه وجه دا ده چه د دواړو مؤمن به یو دې په کومو څیزونو چه ملائك ایمان لری .هم هغه څیزونو باندې انسانان او پیریان هم ایمان ساتی چونکه وجه د تشبیه ذکرکړې شوې ده په دې وجه من کل الوجوه مشابهت کیدل نه لازمیږی په دې وجه ئې ددې تصریح هم اوکړله چه «ولهم بعد ذالك علینا فضائل فی الثواب....» یعنی ددوی او زمونږه ایمان برابر نشی کیدې هغوی ته فضیلت زیات

---

(۱) البحرالرائق (۲۸۷\۳) باب الطلاق فصل فی إضافة الطلاق إلی الزمان)

(۲) ردالمحتار (۴۸۵\۲)

(۳) ...

حاصل دې ځکه چه د دوی ايمان شهودی او حضوری دې. (١) والله اعلم.

حضرت ګنګوهی رحمه الله په ،،لامع،، کښې په دې سلسله کښې ډير جوابونه ورکړی دی.،،من شاء التفصيل فليراجع إليه،،(٢)

**قوله** وَيُذْكَرُ عَنِ الْحَسَنِ مَا خَافَهُ إِلَّا مُؤْمِنٌ وَلَا أَمِنَهُ إِلَّا مُنَافِقٌ: د حضرت حسن بصری رحمه الله نه منقول دی چه د نفاق نه مؤمن يريږی او منافق خودې نه هروخت مطمئن اوسيږی.

،،خافه،، او ،،أمنه،، کښې ضمير مرفوع کوم طرف ته راجع دې؟ امام نووی رحمه الله فرمائی چه دا ضمير لفظ الجلاله ،،الله،، طرف ته راګرځی او مطلب دا دې چه د الله تعالی نه خو مؤمن يريږی او منافق بې يرې وی. د ابن التين رحمه الله او د متاخرينو د يو جماعت رائې هم دا ده.(٣) ، علامه کرمانی رحمه الله هم دا راجح ګرځولې ده. فرمائيلی ئې دی چه د ،،ما خافه إلا مؤمن،، مطلب دې چه ،،ما خاف من الله إلا مؤمن،، ګويا په دې کښې حرف جار ،،من،، حذف کړې شوې دې او فعل ئې مفعول سره ملاو شوې دې. يعنی هم دا تفصيل په ،،امنه،، کښې هم دې.(٤)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه مطلب په دې صورت کښې اګرچه صحيح دې خو دا نه د حضرت حسن بصری رحمه الله مقصود دې او نه د امام بخاری رحمه الله مراد دې ځکه چه دلته کښې اختصار دې چه د دې په وجه غلط فهمی کيږی ګنی کومو حضراتو چه دا اثر موصولاً نقل کړې دې د دوی ټولو چه د دې اثر کوم الفاظ نقل کړی دی د هغې نه معلوميږی چه دا ضمير لفظ ،،الله،، طرف ته نه راجع کيږی بلکه نفاق طرف ته راګرځی.(٥) لکه چه روستو به مونږ د دې الفاظ ذکرکړو.

د حضرت حسن بصری رحمه الله د فرمان مطلب دا دې چه مؤمن ته د نفاق يره وی چه چرې د ده په عمل کښې نفاق نه وی داخل شوې. البته منافق د نفاق نه بې يرې وی.

**د حضرت حسن بصری رحمه الله د اثر تخريج** د حضرت حسن بصری رحمه الله دا اثر امام جعفر بن محمد فريابی رحمه الله پخپل کتاب ،،صفة المنافق،، موصولاً تخريج کړې دې. معلی بن زياد رحمه الله فرمائی: ((سمعت الحسن يحلف فی هذا المسجد: بالله الذی لا إله إلا هو، ما مضی مؤمن قط ولا بقی، إلا وهو

---

١) ردالمحتار علی الدر المختار (٢/٤٨٥) کتاب الطلاق مطلب فی قول الإمام إيمانی کإيمان جبريل عليه السلام)

٢) لامع الدراری (١/٦٠٠، ٦٠٥)

٣) فتح الباری (١/١١١)

٤) شرح کرمانی (١/١٨٨) علامه عينی رحمه الله د علامه کرمانی رحمه الله خبره رد کړې ده. اوليکلی ئې دی.((إذا كان الفعل متعديا بنفسه فلا يحتاج إلى تقدير حرف يوصل به الفعل إلا فی موضع يحتاج فيه إلى تضمين معنى فعل بمعنى فعل آخر وههنا ليس كذلک عمدة القاری (١/٢٧٦)

٥) فتح الباری (١/١١١)

من النفاق مشفق، ولا مضى منافق قط ولا بقى إلا وهو من النفاق آمن» دغه شان دا الفاظ هم منقول دى.«من لم يخف النفاق على نفسه فهو منافق»[1]

دغه شان جعفر فريابى رحمه الله پخپل سند سره د حضرت حسن بصرى رحمه الله نه نقل كرى دى.«لا والله ما أصبح ولا أمسى مؤمن إلا وهو يخاف النفاق على نفسه»[2]

امام احمد رحمه الله پخپل ،،كتاب الايمان،، كښې د حضرت حسن رحمه الله نه نقل كرى دى.«والله ما مضى مؤمن ولا بقى، إلا يخاف النفاق، وما أمنه إلا منافق»[3]

علامه عينى رحمه الله په دې سلسله كښې ددوى نه نور الفاظ هم نقل كرى دى.[4]
په دې ټولو طرقو كښې د ،،نفاق،، صراحت ذكر دې.امام بخارى رحمه الله چه كوم الفاظ ذكر كرى دى.هغې كښې روايت بالمعنى دې.او اختصار دې.نو ضمير ،، نفاق،،طرف ته ګرځول پكار دى.ددې نه وړاندې د ابن ابى مليكه رحمه الله قول تيرشوې دې.«كلهم يخاف النفاق على نفسه» ددې سره به هم مطابقت هغه وخت وى .كله چه ضمير ،،نفاق،، طرف ته اوګرځولې شى.دغه شان د «خوف المؤمن أن يحبط عمله وهو لا يشعر» سره به هم مطابقت هغه وخت وى.كله چه نفاق طرف ته ضمير اوګرځولې شى.والله اعلم.

**د حضرت حسن بصرى رحمه الله قول ئې په صيغې د تمريض سره ولې ذكر كړې دې؟** دلته يو اشكال دا دې.چه دا خبره مشهوره ده.چه امام بخارى رحمه الله كله صيغه د معروف استعمالوى. او په الفاظو د جزم سره يو روايت ذكر كوى.نو دا د دې د ،،صحت،، دليل وى.[5]
دلته چه كله امام بخارى رحمه الله د ابراهيم تيمى او د ابن ابى مليكه رحمهما الله آثار نقل كړل.نو د ،،قال،، صيغه ئې استعمال كړله.چه دا د جزم دپاره ده.په دې سره ددې د ،،اثارو،، صحيح كيدو طرف ته اشاره اوشوه.خو كله ئې چه د حضرت حسن بصرى رحمه الله اثر نقل كړې دې. نو دا ئې په صيغې د تمريض ،،يذكر،، سره نقل كړې دې.ددې څه وجه ده؟

ددې جواب حافظ ابن حجر رحمه الله په ،، تغليق التعليق،، كښې دا وركړې دې.چه ددې په سند كښې جعفر بن سليمان دې.دا چونكه مضبوط راوى نه دې.په دې وجه ئې د جزم صيغه استعمال نكړله.[6]

---

[1] فتح البارى(۱۱۱|۱) وعمدة القارى(۲۷۶|۱) وتغليق التعليق(۵۳|۲)
[2] عمدة القارى(۲۷۶|۱) وتغليق التعليق(۵٤|۲)
[3] فتح البارى(۱۱۱|۱) وعمدة القارى(۲۷۶|۱) وتغليق التعليق(۵٤|۲)
[4] عمدة القارى (۲۷۶|۱)
[5] تقريب النواوى بشرح تدريب الراوى(۱۱۷|۱، ۱۱۸)
[6] تغليق التعليق(۵۳|۲)-

حافظ رحمه الله فرمائي كه جعفر بن سليمان زيات مضبوط نه وى.نو بيا به هم ددې اثر په صحت بانديځه نقصان نه راځي څكه چه دا متفرد نه دې (١)

ددې نه هم ښه جواب حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح البارى كښې وركړې دې. هغه فرمائي چه لكه څنګه د امام بخارى رحمه الله د جزم او د تمريض صيغې استعمالولو معمول. د ضعف او قوت په بنياد باندې دې.دغه شان كله كله دا صيغې د بلې قاعدې لاندې هم استعماليږي.لكه چه حافظ د خپل استاد حافظ ابوالفضل بن الحسين عراقى رحمه الله په حواله سره قاعده ليكلې ده.((إن البخاري لايخص صيغة التمريض بضعف الإسناد، بل إذا ذكر المتن بالمعنى أو اختصره، أتى بها أيضاً، كما علم من الخلاف في ذالك فهنا كذالك))(٢) يعنى امام بخارى رحمه الله صيغه دتمريض صرف د اسناد د ضعف په موقعه باندې نه استعمالوى.بلكه په دې موقعه ئې هم راولى.كله ئې چه روايت بلفظه نه وى راوړلې.بالمعنى ئې راوړلې وى.يا ئې اختصار سره د روايت ذكركړې وى.نو دلته هم بالمعنى او اختصار سره دا اثر ذكركړې شوې دې.په دې وجه ئې ،،يذكر،، د مجهول صيغه استعمال كړې ده.والله اعلم.

**قوله:** وَمَا يُحْذَرُ مِنَ الْإِصْرَارِ عَلَى التَّقَاتُلِ وَالْعِصْيَانِ مِنْ غَيْرِ تَوْبَةٍ لِقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى وَلَمْ يُصِرُّوا عَلَى مَا فَعَلُوا وَهُمْ يَعْلَمُونَ :او د هغه څيزونو بيان د كوم نه چه مؤمن له بچ كيدل پكار دى.مثلاً خپل مينځ كښې جنګ جګړې. او په ګناهونو باندې د توبې نه بغير اصرار (او هميشوالې) كول. د الله ﷻ ارشاد دې.چه ( د مؤمنانو شان دا دې.چه دا خلق په قصد سره ګناهونو باندې هميشوالې نه كوى.

دا د ،،ترجمې،، دويم جزء دې.په دې كښې ،،يحذر،، مجهول صيغه ده.او ذال بالتشديد او بالتخفيف دواړه شان ونيلې شى.(٣) په اكثرو رواياتو كښې دلته ،،التقاتل،، دې.حديث باب سره هم دا مناسب دې.حالانكه په بعضو رواياتو كښې د ،،التقاتل،، په ځائې د ،،النفاق،، لفظ دې.حافظ رحمه الله فرمائي.چه دلته د ،،النفاق،، لفظ اګرچه رواية ثابت نه دې.خو معنىً صحيح دې.(٤)

ددې ترجمې د اثبات دپاره امام بخارى رحمه الله ﴿وَلَمْ يُصِرُّوا عَلَى مَا فَعَلُوا وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾ آيت نقل كړې دې.چه په دې كښې ګناهونو باندې د اصرار نه كونكو مدح ( تعريف) فرمائيلې شوې دې.

---

(١) المصدرالسابق. دا خبره دې ياده وى چه جعفربن سليمان اګرچه فى نفسه ثقه وو.هم ددې وجې امام مسلم او اصحاب سنن اربعه ددوى روايات نقل كړى دى.خودوى شيعه وو ددې وجې حافظ ذهبى رحمه الله ليكلى دى.ثقة فيه شئ مع كثرة علمه قيل كان أميا وهو من زهاد الشيعة) وګورئ الكاشف (١/٢٩٤) رقم ٧٩٢) دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله دوى لره صدوق ګرځولى دى.تقريب التهذيب (ص. ١٤٠ ) رقم ٩٤٢)

(٢) فتح البارى(١/١١١)

(٣) فتح البارى(١/١١١) وعمدة القارى(١/٢٧٧)

(٤) فتح البارى(١/١١٢) وعمدة القارى(١/٢٧٧)

**په ګناهونو باندې د اصرار نقصانات** په ګناهونو باندې اصرار ډير خطرناك څيز دې.كه په ګناه صغيره باندې اصرار كيږي.نو دا كبيره جوړيږي.او كه په ګناه كبيره باندې اصرار كيږي.نو ډير خله كفر پورې نوبت رسيږي. په دې اصرار سره زړه كښې ظلمت راځي.او په ده كښې د نيكئ قبلولو استعداد (او طاقت) باقي نه پاتې كيږي.او طاعاتو طرف ته د دوباره رجوع كولو اميد ختميږي. الله د بني اسرائيلو متعلق فرمائيلي دي. ﴿فَلَمَّا زَاغُوا أَزَاغَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ﴾ (۱) يعني كله چه دوى په كوږ چال تلل.او په معاصيو باندې ددوى اصرار باقي پاتې شو.نو الله ددوى زړونه كاږه كړل.

دغه شان ارشاد دې. ﴿وَنُقَلِّبُ أَفْئِدَتَهُمْ وَأَبْصَارَهُمْ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوا بِهِ أَوَّلَ مَرَّةٍ﴾ (۲) په زړه او نظر كښې داسې انقلاب راځي.لكه چه ګويا وړاندې د ايمان د سره توفيق نه وو ملاو شوې.

د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما مرفوع حديث دې.«ويل للمصرين الذين يصرون على ما فعلوا وهم يعلمون» (۳)

او كله چه يو سړې ګناه كوى.خو په دې باندې اصرار نه كوى.بلكه توبه اوباسى.نو دده دغه شان خراب حالت نه وى.د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه نه مرفوعاً نقل دى.«ما أصر من استغفر وإن عاد في اليوم سبعين مرة» (۴) يعنى كه يو سړې يوه ګناه په ورځ كښې اويا خله كوى.او د اويا خله كولو باوجود په مينځ كښې توبه اوباسى.نو هغه لره به معصيت باندې اصرار كونكې نشى وئيلې.

**د ترجمې مقصود سره انطباق:** وړاندې مونږ بيان كړې دى.چه د ترجمة الباب دواړو اجزاو سره د مرجئه ترديد مقصود دې.په دې جزء سره د مرجئه ترديد په دې طريقه كيږي.چه هغه وائى. چه معصيت مضر نه دې.او دلته په معصيت باندې د اصرار نه يره وركولې شى.هركله چه يو څيز مضر نه دې.نو كه په هغې باندې هر څنګه اصرار وى.په هغې كښې د يريدو هيڅ خبره نشته.خو دلته يره وركړې شوې ده.معلومه شوه.چه معصيت مضر وى.(۵) والله اعلم بالصواب.

---

(۱) سورة الصف:۵)

(۲) سورة الأنعام:۱۱۰)

(۳) مسند أحمد (۲\۱۶۵. ۲۱۹) مسند عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما)

(۴) السنن لأبى داود كتاب الصلاة باب فى الإستغفار رقم ۱۵۱۴ والجامع للترمذى كتاب الدعوات باب رقم ۱۰۷ رقم ۳۵۵۹ )

(۵) عمدة القارى (۱\۲۷۷)

٣٨- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ زُبَيْدٍ قَالَ سَأَلْتُ أَبَا وَائِلٍ عَنِ الْمُرْجِئَةِ فَقَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ[١] أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سِبَابُ الْمُسْلِمِ فُسُوقٌ وَقِتَالُهُ كُفْرٌ [٦٠٤٤، ٧٠٧٦]

## رجال الحديث

① **محمد بن عرعرة:** دا محمد بن عرعره (بالعين و الراء المهملتين فى كلا الموضعين، على وزن فعللة) بن البرند (بكسر الباء الموحدة والراء المكسورة ويقال بفتحهما، و سكون النون وفى آخره دال مهملة) القرشي السامي (بالسين المهملة) البصرى دې. ددوى كنيت ابو عبدالله. يا ابو ابراهيم. يا ابو عمرو دې.[٢]

دا اسماعيل بن مسلم عبدى، جرير بن حازم، عبدالله بن عون، عمر بن ابى زائده، او مبارك بن فضاله رحمهم الله وغيره نه روايت كوى.[٣]

ددوى نه په روايت كونكو كښې امام بخارى، محمد بن بشار بندار، محمد بن المثنى، ابراهيم بن عبدالله كَجى او پخپله ددوى خوئې ابراهيم بن محمد بن عرعره رحمهم الله وغيره حضرات دى.[٤]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى. ،،ثقة صدوق،،[٥]

امام نسائى رحمه الله فرمائى. ،،ليس به بأس،،[٦]

ابن حبان رحمه الله دوى لره په ،، كتاب الثقات،، كښې ذكركړې دې.[٧]

---

[١] الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى كتاب الأدب باب ما ينهى عن السباب واللعن رقم ٦٠٤٤ وفى كتاب الفتن باب قول النبى ﷺ لا ترجعوا بعدى كفاراً يضرب بعضكم رقاب بعض رقم ٧٠٧٦) وأخرجه مسلم فى صحيحه (١\٥٨) كتاب الإيمان باب بيان قول النبى ﷺ سباب المسلم فسوق وقتاله كفر والنسائى فى سننه (٢\١٧٤)كتاب المحاربة،باب قتل المسلم_ والترمذى فى جامعه فى كتاب البروالصلة باب (بدون ترجمة بعد باب ما جاء فى الشتم) رقم ١٩٨٣ وفى كتاب الإيمان باب ما جاء سباب المؤمن فسوق رقم(٢٦٣٤، ٢٦٣٥) وابن ماجه فى سننه فى المقدمة باب فى الإيمان رقم ٦٩ وفى كتاب الفتن باب سباب المسلم فسوق وقتاله كفر رقم (٣٩٣٩)

[٢] تهذيب الكمال(٢٦\١٠٨، ١٠٩) وعمدة القارى(١\٢٧٧)

[٣] تهذيب الكمال(٢٦\١٠٩)

[٤] تهذيب الكمال(٢٦\١٠٩)

[٥] المصدرالسابق)-

[٦] المصدرالسابق)-

[٧] الثقات لابن حبان (٩\٦٩)

امام حاکم او ابن قانع رحمه الله فرمائی ،،ثقة،،(١)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ،،ثقة،،(٢)

په ۲۱۳ هـ کښې ددوی وفات اوشو.(٣) رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

④ **شعبه:** دا اميرالمؤمنين في الحديث شعبه بن الحجاج بن الورد عتكي بصرى دې.ددوى مختصر حالات د ،،باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده،، لاندې تير شوى دى.(٤)

⑤ **زبيد:** دا زبيد (بالباء الموحدة مصغراً) بن الحارث بن عبدالكريم بن عمرو بن كعب اليامي (بالياء المثناة من تحت) الكوفي دې.ددوى كنيت ابو عبدالرحمن يا ابو عبدالله دې.

ددوى په نسبت کښې د ،،يامي،، په ځاني ،،ايامي،، هم ونيلې كيږي.(٥)

دا د ابراهيم بن سويد نخعي، ابراهيم بن يزيد نخعي، ابراهيم تيمي، سعيد بن جبير، ابو وائل شقيق بن سلمه، امام شعبي، عبدالرحمن بن ابى ليلى او مجاهد بن جبر رحمهم الله وغيره نه روايت كوى.(٦)

ددوى نه په روايت کونکو کښې جرير بن حازم، حسن بن عبيدالله، زهير بن معاويه، سفيان ثورى، سليمان الاعمش، مالك بن مغول، مسعر بن كدام، او منصور بن المعتمر رحمهم الله وغيره حضرات دى.(٧)

امام يحيى بن سعيد القطان رحمه الله فرمائی ،،ثبت،،(٨)

امم يحيى بن معين، ابوحاتم او امام نسائی رحمهم الله فرمائی ،،ثقة،،(٩)

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائی ((حجة قانت لله))(١٠)

حافظ بن حجر رحمه الله فرمائی ،،ثقة ثبت عابد،،(١١)

---

(١) تهذيب التهذيب (٩\٣٤٣)
(٢) تقريب التهذيب (ص.٤٩٦) رقم (٦١٣٧)
(٣) طبقات ابن سعد(٧\٣٠٥) والثقات لابن حبان (٩\٦٩) والكاشف (٢\٢٠١) رقم ٥٠٤٧)
(٤) كشف البارى(١\٦٧٨)
(٥) تقريب التهذيب (٢١٣) رقم ١٩٨٩) وتهذيب الكمال(٩\٢٨٩، ٢٩٠)
(٦) تهذيب الكمال(٩\٢٩٠)
(٧) تهذيب الكمال(٩\٢٩١)-
(٨) تهذيب الكمال(٩\٢٩٢) وسير أعلام النبلاء(٥\٢٩٧)-
(٩) المصادر السابقة)
(١٠) الكاشف للذهبي(١\٤٠١) رقم ١٦١٤)_
(١١) تقريب التهذيب(ص.٢١٣) رقم ١٩٨٩)_

امام مجاهد رحمه الله فرمائي. «أعجب أهل الكوفة إلى أربعة: محمد بن عبد الرحمن بن يزيد، وأبو هبيرة يحيى بن عباد، وطلحة، وزبيد»(۱)
دوی خپله شپه په دريو حصو كښې تقسيم كړې وه.په دې طريقه چه ټوله شپه عبادت اوكړې شي چه په يوه حصه كښې به ئې پخپله عبادت كولو.په دويمه حصه كښې به ددوی خوئي عبدالرحمن پاسيدو.او په دريمه حصه كښې به ددوی دويم خوئي پاسيدو. بيا ډير كرته به داسې كيدل.چه دوی به خپله حصه مكمل كړله.او خپل خوئي عبدالرحمن به ئې پاسولو.نو هغه به څه سستي كوله.نو د هغوی په ځائې به پخپله عبادت كښې مشغوليدو.او بيا به ئې عبدالرحمن پاسولو.كه هغه به هم سستي كوله.نو ددوی په ځائې به هم پخپله عبادت كښې لګيا كيدو.دغه شان به كله كله ټوله شپه په ولاړه تيريدله.(۲)
په ۱۲۲ه يا ۱۲۴ه كښې ددوی وفات شوې دې.(۳) رحمه الله تعالى رحمة واسعة،
④ **ابووائل**:دا مشهور مخضرم تابعي حضرت ابو وائل شقيق بن سلمه اسدي كوفي دې. دوی د نبی كريم ﷺ زمانه موندلې ده.خو ددوی د زيارت سعادت (او شرف) نه دې حاصل شوې.(۴)
دا د حضرت ابوبكر صديق رضی الله عنه نه روايت كوی.خو دا روايات مرسل دی.او دوی ته د حضرت عمر، حضرت عثمان، حضرت علی، حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت عمار بن ياسر، حضرت خباب بن الارت، حضرت سعد بن ابی وقاص، حضرت ابو موسی اشعری، حضرت اسامه بن زيد، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت عبدالله بن عباس،حضرت عبدالله بن الزبير، حضرت ابو الدرداء، حضرت ابو مسعود بدری، حضرت براء بن عازب،حضرت مغيره بن شعبه، حضرت جرير بن عبدالله بجلی، حضرت كعب بن عجره، حضرت ابوهريره، حضرت عائشه، حضرت ام سلمه، حضرت معاذ بن جبل، او حضرت ابو سعيد خدری رضی الله عنهم نه علاوه نورو صحابه كرامو رضی الله عنهم نه هم د حديث اوريدو سعادت حاصل شوې دې.(۵)
ددوی نه په روايت كونكو كښې د جامع بن ابی راشد، حبيب بن ابی ثابت، حماد بن ابی سليمان الفقيه، زبيد اليامی، سعيد بن مسروق ثوری، سليمان الاعمش، سلمة بن كهيل، عاصم بن بهدله، عامر بن شراحيل شعبی، منصور بن المعتمر، ابو اسحاق سبيعی، او مغيره بن مقسم ضبی رحمهم الله پشان ډير عالمان او اساطين حديث رحمهم الله دی.(۶)

---

۱) تهذيب الكمال(۹/۲۹۱) وسير أعلام النبلاء(۵/۲۹۶)_
۲) تهذيب الكمال(۹/۲۹۲)وسير أعلام النبلاء(۵/۲۹۶)_
۳) تهذيب الكمال (۹/۲۹۲)_
۴) تهذيب الكمال (۱۲/۵۴۸) وتهذيب النووی (۱/۲۴۷) وسير أعلام النبلاء (۴/۱۶۱)
۵) المصادر السابقة)
۶) المصادر السابقة)-

امام وكيع بن الجراح رحمه الله فرمائى. ،،كان ثقة،،(١)
امام يحي بن معين رحمه الله فرمائى. ،،ثقة لا يسأل عن مثله،،(٢)
امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائى. ،،كان ثقة كثير الحديث،،(٣)
عمرو بن مره رحمه الله فرمائى. «قلت لأبي عبيدة، من أعلم أهل الكوفة بحديث عبدالله؟ قال: ابو وائل»(٤)
ابراهيم نخعى رحمه الله فرمائى. «عليك بشقيق، فإنى أدركت الناس وهم متوافرون، وإنهم ليعدونه من خيارهم»(٥)
دوى د ډيرو اوچتو شريفانه اخلاقو مالك وو. عاصم بن بهدله رحمه الله فرمائى. «ما سمعت أبا وائل سب إنساناً قط ولا بهيمة»(٦)
ددوى د زرينو اقوالو ځنى دا دي چه «نعم الرب ربنا، لوأطعناه ما عصانا»(٧)
دغه شان ددوى ارشاد دي. «مافي أمرائنا هؤلاء، واحدة من اثنتين ما فيهم تقوى أهل الإسلام، ولا عقول أهل الجاهلية»(٨)
په ٨٢هـ كښې ددوى وفات اوشو.(٩)، رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،
⑤ عبدالله: دا مشهور صحابى حضرت عبدالله بن مسعود هذلى رضي الله عنه دي. ددوى حالت وراندې په ،،باب ظلم دون ظلم،، كښې تير شوى دى.

**قوله:** سَأَلْتُ أَبَا وَائِلٍ عَنْ الْمُرْجِئَةِ: زبيد وائى چه ما د ابو وائل نه د ،، مرجئه،، په باره كښې تپوس اوكړو. مطلب دا دې چه د مرجئه چه كوم دا خيال دې چه د ايمان په موجودګئ كښې معاصى كول، او عمل پريخودل مضر نه دي. صحيح دي او كه نه؟ نو ابو وائل رحمه الله په ځانې ددې چه د خپل طرفه ئې څه جواب ورکړې وې. د حضرت عبدالله بن

---

(١) تهذيب الكمال (٥٥٣\١٢)
(٢) تهذيب الكمال (٥٥٣\١٢) وسير أعلام النبلاء (١٦٤\٤)
(٣) طبقات ابن سعد(١٠٢\٦)
(٤) تهذيب الكمال (٥٥٢\١٢) وسير أعلام النبلاء (١٦٣\٤) وتهذيب النووى(٢٤٧\١)
(٥) تهذيب النووى (٢٤٧\١) وتهذيب الكمال(٥٥٢\١٢) وسير أعلام النبلاء(١٦٣\٤) وطبقات ابن سعد(٩٩\٦)
(٦) تهذيب الكمال(٥٥٢\١٢)
(٧) تهذيب الكمال(٥٥٣\١٢) وسير أعلام النبلاء (١٦٤\٤)
(٨) المصادر السابقة)-
(٩) تهذيب الكمال(٥٥٤\١٢) والكاشف (٤٨٩\١) رقم ٢٣٠٣)٥

مسعود رضی الله عنه په حوالې سره نې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم یو حدیث نقل کړو چه دا په یو وخت کښې دعوه هم ده او دلیل هم دې یعنی د مرجئه مذهب باطل دې خکه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ،، سباب،، فسق او ،، قتال،، کفر ګرځوی.

**د ارجاء نه څه مراد دې؟** د ،،ارجاء،، معنی په لغت کښې د مؤخر کولو راخی او په اصطلاح کښې ،، ارجاء،، د اعمالو مؤخر کولو ته وائی. مرجئه دا وائی چه د ایمان حقیقت صرف تصدیق دې او په دوی کښې بعضې د تصدیق او اقرار مجموعې ته ایمان وائی. خو عمل تول د ایمان نه خارج ګرځوی. د مطلق ارجاء نه هم دا ،،إرجاء في الإيمان،، مراد اخلی.

**ضروری تنبیه** بعضې حضراتو نقل کړی دی چه د تولو نه وړاندې د ارجاء قول اختیارونکې حسن بن محمد بن الحنفیه وو. لکه ابن سعد رحمه الله لیکلی دی چه ((وهو أول من تكلم في الإرجاء))[1] دغه شان ایوب سختیانی رحمه الله نه نقل دی. ((إن أول من تكلم في الإرجاء رجل من أهل المدينة يقال له: الحسن بن محمد))[2]

د مغیره رحمه الله نه منقول دی. ((أول من تكلم في الإرجاء الحسن بن محمد بن الحنفية))[3]

دغه شان حافظ ذهبی رحمه الله لیکلی دی.،،وهو أول المرجئة،،[4]

خو حقیقت دا دې چه دوی د ،،مرجئه،، بانی مقررول بالکل صحیح نه دی. خکه چه دوی د ،،ارجاء في الإيمان،، قول نه دې اختیار کړې بلکه دوی لره په ،،مرجئه،، کښې د شمارلو وجه دا وه چه دوی دا رائې ښکاره کړې وه چه مونږ د حضرت ابوبکر صدیق او حضرت عمر رضی الله عنهما سره محبت لرو. خکه چه ددوی په وجه امت کښې د قتال نوبت رانغې او ددوی په باره کښې هیڅ چاته کله هم شك نه وو. حالانکه ددوی نه روستو چه کوم حضرات راغلی دی. د هغوی په زمانه کښې د مسلمانانو په مینځ کښې قتال اوشو او فتنې پیدا شوې په دې وجه مونږ ددوی معامله ،،مؤخر،، کوو او الله تعالی ته نې حواله کوو. نه دوی سره د دوستۍ اظهار کوو او نه اعلان د برائت کوو.

حافظ مزی رحمه الله د عثمان بن ابراهیم بن محمد بن حاطب نه نقل کړی دی. ((أول من تكلم في الإرجاء الأول الحسن بن محمد بن الحنفية، كنت حاضرا يوم تكلم و كنت في حلقته مع عمي، وكان في الحلقة جحدب و قوم معه، فتكلموا في علي و عثمان و طلحة و الزبير فأكثروا و الحسن ساكت، ثم تكلم، فقال، قد سمعت مقالتكم، ولم أر شيئا أمثل من أن يرجأ علي، وعثمان، وطلحة والزبير فلا يتولوا ولا يتبرأ منهم...))[5]

---

١) طبقات ابن سعد(٣٢٨/٥)-
٢) تهذیب الکمال(٣٢١/٦)
٣) المصدر السابق)
٤) الکاشف (٣٣٠/١) رقم ١٠٦٥)
٥) تهذیب الکمال(٣٢١/٦)

دغه شان دوى چه كومه رساله ليكلې ده د هغې په آخر كښې دى «وتولى أبابكر وعمر رضي الله عنهما وجاهد فيهما، ولأنهما لم تقتتل عليهما الأمة، ولم تشك فى أمرهما، وترجئ من بعدهما ممن دخل فى الفتنة، فنكل أمرهم إلى الله.....»[١]
تردې چه كله ددوى دا خبره حضرت محمد بن الحنفيه رحمه الله ته اورسيدله. نو هغه ئې ملامته كړو او زخمى ئې كړو. او وې ونيل. ،،لا تتولى أباك عليا؟،، (آيا ته خپل نيكه حضرت على رضي الله عنه سره محبت نه كوې؟ ددې نه پس دوى دغه رساله اوليكله. چه په دې كښې دوى خپلې رائې ښكاره كړله.
محمد بن سعد رحمه الله نقل كړى دى. چه دوى ته پخپل دې تصنيف باندې افسوس وو. او كله چه زاذان او ميسره دوى ته راغلل. او دوى ئې په ذكر شوې رائې باندې ملامته كړل. نو وې ونيل: «لوددت أنى كنت مت ولم أكتبه»[٢]
خلاصه دا چه حسن بن الحنفيه لره مرجئه په معنى د ،، الإرجاء فى الإيمان،، باندې ګرځول صحيح نه دى. لكه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى. «المراد بالإرجاء الذى تكلم الحسن بن محمد فيه غير الإرجاء الذى يعيبه أهل السنة المتعلق بالإيمان....» وروستو ليكلى «فمعنى الذى تكلم فيه الحسن أنه كان يرى عدم القطع على إحدى الطائفتين المقتتلتين فى الفتنة بكونه مخطئاً أو مصيباً، وكان يرى أنه يرجئ الأمر فيهما، وأما الإرجاء الذى يتعلق بالإيمان، فلم يعرج عليه، فلا يلحقه بذلك عاب، والله اعلم»[٣]
دغه شان حافظ ذهبى رحمه الله ليكلى دى. «الإرجاء الذى تكلم به معناه أنه يرجئ أمر عثمان وعلى إلى الله فيفعل فيهم ما يشاء»[٤] والله أعلم وعلمه أتم وأحكم،،

**قوله: فَقَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سِبَابُ الْمُسْلِمِ فُسُوقٌ وَقِتَالُهُ كُفْرٌ:** ابو وائل رحمه الله وائى. چه ماته حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حديث واورولو. چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: مسلمان ته كنځلې كول (بدې ردې ويل) فسق دې. او جنګ جګړې كول كفر دې.
سباب: دا خو يا د ،، سب يسب،، نه اسم مصدر دې. يا د باب مفاعله نه مصدر دې. چه دا مشاركت غواړى.[٥]

---

[١]) تهذيب التهذيب (٣٢١/٢)
[٢]) تهذيب الكمال (٣٢٢/٦)
[٣]) طبقات ابن سعد (٣٢٨/٥)
[٤]) تهذيب التهذيب (٣٢١/٢)-
[٥]) حاشية تهذيب الكمال (٣٢٣/٦) نقلاً عن تاريخ الإسلام للذهبى)
[٦]) عمدة القارى (٢٧٨/١)

د ،،سبّ،، معنى په لغت كښې د ،،قطع،، يعنى د ،،كټ كولو،، راځى.او كنځلې كول چونكه د تعلق كټ كولو سبب جوړيږى.په دې وجه دې ته ،، سب ،، وائى.[1]
بعضو عالمانو ونيلى دى.چه دا د ،،سبة،، نه ماخوذ دې.چه ددې معنى ،،حلقة الدبر،، ده چونكه كنځلې كونكې د مسبوب (چاته چه كنځلې كوى دهغه) عورات ( پټ اندامونه) او عيبونه ښكاره كوى.په دې وجه دې ته ،،سب،، وائى.[2]
،،المسلم،، په اكثرو رواياتو كښې دلته د ،،المسلم،، لفظ دې.البته امام احمد رحمه الله د ،،غندر من شعبة،، په طريق يو روايت نقل كړې دې.چه په هغې كښې ،، المؤمن،، راغلې دې.په ظاهره درست روايت د ،، المسلم،، دې.چه دا د اكثرو راويانو روايت دې.او د ،،المؤمن،، روايت بالمعنى نقل كړې شوې دې.[3] والله اعلم.
،،فسوق،،دفسق معنى په لغت كښې،،خروج،، راځى.او د شريعت په اصطلاح كښې د ،،خروج عن الطاعة،، په معنى كښې راځى.گويا نافرمان سړې د شريعت د حدودو نه بهر اووتلو. [4]
د فسق درجه د ،،عصيان،، نه اوچته ده.قال الله تعالى: ﴿وَكَرَّهَ إِلَيْكُمُ الْكُفْرَ وَالْفُسُوقَ وَالْعِصْيَانَ﴾[5] فسوق ئې د كفر او عصيان په مينځ كښې ذكر كړو. يعنى ددې درجه د كفر نه روستو ده. او د عصيان نه وړاندې ده.[6]
،، وقتاله كفر،، او مسلمانانو سره قتال كول د كفر عمل دې.دلته حقيقتاً قتال هم ممكن دې.او دا امكان هم شته.چه د قتال نه ،، مخاصمت،، مراد وى.[7]
**د مرجئه ترديد:** دې حديث سره د مرجئه ترديد اوشو.په دې طريقه چه كنځلې كول گناه ده.چه دا ،،فسوق،، سره تعبير كړې شوې دې.او ،،فسوق،، مضر دې.دغه شان ،، قتال ،،هم يوه گناه ده.چه دا د ،،سباب،، نه زياته ده.او دا نبى كريم ﷺ ،كفر،سره تعبير كړې ده.او كفر هم مضر دې.معلومه شوه.چه معاصى د ايمان دپاره مضر دى. نو د مرجئه دا وينا چه ايمان سره معاصى مضر نه دى.غلط او بې اصل دى.

---

[1] تاج العروس (١١/٢٩٢) وعمدة القارى(١١/٢٧٨)
[2] تاج العروس (١١/٢٩٢) وعمدة القارى( ١١/٢٧٨)-
[3] فتح البارى(١١/١١٢)
[4] فتح البار(١١/١١٢) وعمدة القارى(١١/٢٧٨)
[5] سورة الحجرات:٧)
[6] فتح البارى(١١/١١٢)
[7] عمدة القارى(١١/٢٧٨)-

**ايا دې حديث سره د خوارجو تائيد كيږى؟** ددې حديث د ظاهر نه خوارجو استدلال كړې دې چه د گناه كبيره يعنى د ،، قتال مسلم ،، په ارتكاب باندې حديث كښې د ،، كفر ،، اطلاق كړې شوې دې.نو معلومه شوه.چه د گناه كبيره په ارتكاب سره سړې د ايمان نه خارجيږى.او په كفر كښې داخليږى.

**د خوارجو د استدلال الزامى جواب:** خو مونږه الزاماً دوى ته وايو.چه كه د كبيره گناه ارتكاب موجب د تكفير دې.نو نبى كريم ﷺ په دې حديث كښې،،سباب المسلم فسوق،،ولې اوفرمائيل؟ حالانكه ،،سب د مسلم،، هم گناه كبيره ده.دې ته نې كفر ولې اونه فرمائيل؟ حالانكه ستاسو د قانون مطابق دواړو باندې د كفر اطلاق كيدل پكار دى.

**تحقيقى جواب:** د ،،وقتاله كفر،، جواب دا دې.چه دا پخپل ظاهر باندې محمول نه دې.نو په دې كښې به تاويل كولې شى.

① د ټولو نه غوره تاويل دا دې.چه داسې اووئيلې شى.چه ددې نه كفر اصلى يعنى داسې كفر مراد نه دې.چه د دين نه خارجونكې وى.بلكه كفر فرعى عملى مراد دې.(١)

په دې داسې پوهه شئ.چه د ايمان يو اصل دى.چه هغه تصديق قلبى دې.او اعمال ددې فرع دى.دغه شان د كفر هم يو اصل دې.چه هغه كفر بالله دې.او اعمال كفريه او معاصى ددې فرع دى.سړې به په كفر كښې هغه وخت داخليږى.كله چه كفر اصلى اوموندې شى.لكه څنگه چه په ايمان كښې به هغه وخت داخليږى.كله چه تصديق قلبى اوموندې شى.كه د فرعى امورو نه څه څيز اوموندې شو.خو د اصلى ايمان وجود نشته.نو دا به مؤمن نه وى.مثلاً يو سړې په الله تعالى باندې ايمان نه لرى.خو په ده كښې د توكل صفت شته.يا په ده كښې جود او سخاوت دې.حيا، حلم او بردبارى ده.دا ټول ايمانى اعمال په ده كښې موجود دى.چونكه دا ټول فرع دى.اصل ايمان نه دې.په دې وجه به دې اوصافو والا سړى ته ،،مؤمن،، نه وئيلې كيږى.

دغه شان كه د يو ايمان او تصديق والا انسان كښې داسې اوصاف اوموندې شى.كوم چه ايمانى اوصاف نه دى.بلكه د كافرانو اوصاف دى.لكه كنځل، مؤمن سره قتال، په نسبونو كښې طعن لگول، او نوحه كول (په مړو كښې په چغو ژړل) وغيره.ددې اوصافو د موجود كيدو په وجه به مؤمن د ايمان نه نه خارجيږى.دې به د دين د دائرې نه خارج نشى گرځولې.بلكه مؤمن به وى.البته داسې به وئيلې شى .چه په ده كښې بعضې اوصاف د كافرانو راغلى دى.

اوس په دې حديث پاك پوهه شئ.چه دلته د كفر نه، كفر فرعى مراد دې.يعنى د كفر عمل او د معصيت كفر مراد دې.او معاصى د كافرانو د اعمالو څخې دى. هم دا توجيه به په هغه ټولو مواقعو كښې چليږى.كوم ځائې چه يو عمل ته شارع ﷺ كفر وئيلې دې.امام بخارى رحمه الله وړاندې په ،،باب كفران العشير و كفر دون كفر،، كښې هم دا بيان فرمائيلې دې.

---

١) فتح البارى(١١٢/١) وعمدة القارى(٢٧٩/١)

④ بعضې عالمانو ونيلي دي چه ،،قتال،، لره د ،،كفر،، ګرځولو وجه دا ده چه دا عمل د ،،كفر،، مشابه دې ځكه چه مؤمن سره قتال كول د كافر كار نه دې.[1] ددې تاويل حاصل هم د رومبى تاويل پشان دې.

③ بعضې عالمان فرمائى چه دلته د كفر نه، كفر لغوى مراد دې په لغت كښې د ،كفر، معنى ،ستر، راځى. كافر ته كافر ځكه ونيلې شى چه دې د الله تعالى ربوبيت مستور كوى (پټوى) د هغه وحدانيت، رزاقيت، خالقيت، او مخصوص صفات مستور كوى او د غيرو خلقو دپاره ئې ثابتوى.
دلته مسلمان سره قتال كولو ته كفر ونيلې شوې دې دا ځكه چه دا سړې نعمت د اسلام مستور كوى اسلام خو د ،،سلم،، نه ماخوذ دې چه ددې معنى صلح ،امن او سلامتيا ده د اسلام تقاضه خودا وه چه مسلمانانو سره مصالحت او سلامتيا سره اوسيدو دا نه چه ددوى په مقابله كښې توره راوباسى ګويا قتال كولوسره ده دمسلمان اوداسلام حق مستور كړو.[2]

④ علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه ،،إنه يؤول إلى الكفر لشؤمه،، يعنى قتال د خپل نحوست په وجه بالآخر كفر ته رسوى.[3]

⑤ امام خطابى رحمه الله دا په استحلال (حلال ګنړلو) باندې محمول كړې دې يعنى مطلب دا دې چه مسلمان سره قتال كول كفر دې او قتال كونكې به كافر كيږى په دې شرط چه دده عقيده دا وى چه مسلمان مباح الدم دې او دا خبره نه منى چه اسلام دده وينه معصوم ګرځولې ده او دده وينه بهيول حرام دى.[4]
خوپه دې باندې اشكال كيږى چه بيا په دې كښې د يو معصيت تخصيص ولې دې؟ لكه څنګه چه قتال د استحلال په وجه د تكفير سبب دې دغه شان كنځلې (بدې ردې) هم د استحلال په وجه باعث د تكفير دې حالانكه شارع ﷺ ،،سباب،، فسق او ،،قتال،، كفر ګرځوى معلومه شوه چه شارع ﷺ د استحلال صورت مراد نه دې اخستې.[5]

**يو اشكال او د هغې جواب** دلته دا اشكال كيږى چه هركله په دې حديث كښې په ،،وقتاله كفر،، كښې د ،،كفر،، نه مراد كفر فرعى دې اصلى كفر مراد نه دې او د اهل السنة والجماعة په نيز د كبيره معصيت ارتكاب سره انسان د ايمان نه، نه خارجيږى نو بيا چه لكه څنګه رسول الله ﷺ د ،،سباب،، دپاره د ،،كفر،، عنوان اختيار او نه فرمائيلو .نو قتال دپاره به هم نبى كريم ﷺ د ،،كفر،، عنوان نه اختيارولو نبى كريم ﷺ د كفر عنوان ولې تجويز كړو؟

---

[1] المصادر السابقة)
[2] فتح البارى(١١٢/١) وعمدة القارى(٢٧٩/١)
[3] شرح الكرمانى(١٩٠/١)
[4] أعالم الحديث للخطابى(١٧٨/١) وفتح البارى(١١٢/١) وعمدة القارى(٢٧٩/١)
[5] فتح البارى(ج١١٣/١)_

ددې جواب دا دې چه چونكه ..قتال..د ..سباب..په مقابله كښې ..اغلظ.. دې يا چونكه دا د كافرانو د اعمالو سره زيات مشابه دې په دې وجه دې باندې نبى كريم ﷺ د كفر ظلاق اوفرمائيلو او د ..سباب.. درجه چونكه ددې نه كم تر ده. په دې وجه ئې ددې دپاره د ..فسوق.. عنوان اختيار كړو (١)

په دې داسې پوهه شئ چه قاعده ده.چه كله دوه څيزونه د يو نوع وى.خو ددې په مراتبو كښې فرق وى د يو مرتبه كمه وى او د بل مرتبه زياته وى.نو هلته بلغاء په عنوان كښې فرق كوى چه ددې متفاوتو درجو طرف ته اشاره اوكړې شى.

دلته هم چونكه ..قتال.. او ..سباب.. په حيثيت د معصيت د دواړو يوه نوع ده.خو په دې كښې د قتال حيثيت د سباب په مقابله كښې اشد دې.ددې د متفاوت درجو طرف ته اشاره كولو دپاره رسول الله ﷺ يو دپاره د سپك يعنى د .. فسوق..عنوان اختيار اوفرمائيلو او دويم دپاره ئې سخت يعنى د..كفر.. عنوان اختيار كړو.اګرچه دواړه د ..كفر دون كفر.. د قبيل څخې دى.(٢) والله اعلم_

**د مرجئه دوه مغالطې او د هغې ازاله** مرجئه چه دا وائى.چه دنجات دپاره صرف ايمان كافى دې.د خپلې دې فاسد عقيدې ښكاره كولو دپاره دوه جملې پيش كوى.چه دا په ظاهره ډيرې اثرناكې دى:① يوه دا چه لكه څنګه طاعت كفر سره نافع نه دى.دغه شان ايمان سره معصيت هم مضر كيدل پكار نه دى.په ظاهره دا جمله د غور قابله ښكارى.خو په حقيقت كښې دا يوه دهوكه ده.مرجئه د ايمان او كفر په حقيقت نه دى پوهه شوى.

علامه شبير احمد عثمانى رحمه الله په يو مثال سره د ايمان او كفر حقيقت بيان كړې دې چه په دې سره ددوى دا مغالطه لرې كيږى.هغه فرمائى.چه .. ژوند او مرګ دوه بالمقابل څيزونه دى.په ژوند كښې هر قسمه نقصانات او امراض موجود كيږى.چه ددې په اعتبار سره ژوند كښې بې شميره مراتب او درجې دى.د يو پهلوان پښان صحت مند كس ته هم ژوندې انسان ونيلې شى.او يو بوډا كوم چه د مودو راسې په بيمارئ كښې مبتلا دې.او په دې انتظار كښې دې.چه يو وخت به روح اوځى.هغه ته هم ژوندې ونيلې شى.خو په دواړو كښې بالكل واضح فرق دې.د دواړو ژوند د يوې درجې نه دې.او هركله چه د يوې درجې ژوند هم باقى وى.كه هغه د سترګو د رپ په اندازه ولې نه وى.هغه دپاره تدبيرونه كولې شى.او ډير خله دا تدبيرونه نافع هم وى.هيڅ يو عاقل دا نشى ونيلې.چه په ژوند كښې چه كوم عوارض او امراض راپيښيږى.هيڅ تدبير هغې دپاره نافع نه وى.بوله دنيا دا منى.چه تركومې پورې ژوند باقى دې.كه په هره درجه كښې وى.تدابير نافع كيدې شى خو د مرګ راتلو نه روستو هيڅ علاج نافع نشى كيدې.كه په اوچته پيمانه باندې تدبير ولې نه وى.

هركله چه دا خبره په دماغو كښې راغله.نو په دې پوهه شئ.چه په اصطلاح د قرآن كښې

---

(١) شرح الكرمانى(١١٩٠١) وعمدة القارى(٢٧٩١١)_
(٢) فضل البارى(٥٢١١١)

كفر او ايمان مرګ او ژوند سره تعبير كړې شوې دې.كله د الله تعالى ارشاد دې. ﴿أَوَمَن كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ﴾[1] يعنى كوم چه د جهالت او ضلالت په مرګ مړ شوې وو.بيا مونږه هغه لره د ايمان او عرفان روح سره ژوندې كړو.په يو بل مقام باندې ارشاد دې.﴿ إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ﴾[2] يعنى لكه څنګه چه يو مړى ته خطاب كول، دده په حق كښې فائده مند نه دى.هم دا حال د هغه چا دې.چه زړونه ئې مړه شوى دى.ددوى په حق كښې هيڅ نصيحت فائده مند او نافع نه دې

د مرجئه مذكوره قول هم داسې دې.لكه چه يوكس اووائى.چه لكه څنګه چه مرګ سره هيڅ تدبير او علاج نافع نه دې.دغه شان ژوند سره هم هيڅ بد پرهيزى مضر نشى كيدې.دا خبره سوا د مجنون (او ليونى) نه بل څوك وئيلې شى؟ د مرجئه دا خبره يقيناً چه غلطه ده.

② دويمه خبره چه په هغې سره دوى خلق په مغالطه كښې اچوى.هغه دا ده.چه لكه څنګه چه كفر له د يوې لمحې دپاره جنت ته تلل نشته.دغه شان ايمان له هم د يوې لمحې دپاره په دوزخ كښې تلل پكار نه دى.اوس كه عصاة مؤمنين په دوزخ كښې اوغورځولې شى.نو ددې سره سره به د ايمان هم په دوزخ كښې تلل لازمى وى؟

ددې جواب صوفيه حضراتو دا وركړې دې.چه د عصاة مؤمنينو په دوزخ كښې د غورځولو په وخت به ددوى ايمان جدا ايخودې شى.لكه څنګه قيدى لره په جيل كښې د داخلولو په وخت دده لباس وغيره اوښكلې شى.او جدا ايخودې شى.او قيديان په وردئ كښې په جيل كښې ساتلې شى.بيا چه كله د سزا موده ختمه شى.نو د ايمان لباس به اچولې شى.او په جنت كښې به داخلولې شى.

اعراض به د خپل محل نه څنګه جدا كيږى؟ باقى پاتې شو دا اشكال چه ايمان او ايمانيات خو اعراض دى.دا د خپل محل نه څنګه جدا كيدې شى؟ خو ددې اشكال د سره نشته.څكه چه په كور د آخرت كښې به اعراضو نه جواهر جوړ شى.د نبى كريم ﷺ احاديث په دې خبره باندې دلالت كوى.چه ددې مادى دنيا نه علاوه يو بل داسې عالم موجود دې.چه په دې كښې به معنوى او مخفى څيزونه مثلاً صفات انسانى وغيره د خپل صفت مناسب په جسم كښې ښكاره كيږى.لكه نبى كريم ﷺ ارشاد فرمائيلې دې.«اقرءوا القرآن فإنه يأتى يوم القيامة شفيعاً لأصحابه، اقرءوا الزهراوين، البقرة وسورة آل عمران، فإنهما تأتيان يوم القيامة كأنهما غمامتان، أو كأنهما غيايتان، أو كأنهما فرقان من طير صواف، تحاجان عن أصحابهما.....»[3] په دې حديث كښې د سورة بقره او سورة آل عمران په باره كښې نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى چه دا دواړه سورتونه

---

[1] ) الأنعام: ١٢٢)

[2] ) النمل: ٨٠)

[3] ) صحيح مسلم (١١٠٧٢) كتاب فضائل القرآن باب فضل قراءة القرآن وسورة البقرة)

به د قيامت په ورځ د دوو وريځو، يا د دوو چترو، يا د صف په شكل كښې د مارغانو د دوو ډلو په صورت كښې راځى

دغه شان د نبى كريم ﷺ ارشاد دى ((إن الله يبعث الأيام يوم القيامة على هيأتها و يبعث الجمعة زهراء منيرة، أهلها يحفون بها كالعروس، تهدى إلى كريمها، تضيئ لهم، يمشون فى ضوئها، ألوانهم كالثلج بياضاً، و ريحهم يسطع كالمسك، يخوضون فى جبال الكافور، ينظر إليهم الثقلان، لا يطرقون إلا تعجبا حتى يدخلون الجنة، لا يخالطهم إلا المؤذنون المحتسبون)) [1]

په دې حديث شريف كښې د جمعې د ورځې په باره كښې راغلى دى چه الله تعالى به دا ځمكدار او روښانه ښكاره كوى.

دغه شان د نبى كريم ﷺ ارشاد دى ((يؤتى بالموت كهيأة كبش أملح....)) [2]

ددې علاوه نور هم ډير احاديث دى چه دهغې نه ثابتيږى چه ددې عالم عنصرى نه علاوه نور هم ډير داسې څيزونه دى چه دهغې د عامو خلقو په نيز جسم نشته خو هغه د خپلو صفاتو مناسب جسم لرى لكه مثلاً چه اعمال به تللې كيږى. [3] او تسبيح وغيره به د اشجارو (وونو) په صورت كښې وى. [4]

حضرت شيخ الاسلام علامه شبير احمد عثمانى رحمه الله فرمائى چه ..عصاة مؤمنين.. لره سره د ايمان نه په دوزخ كښې غورځولو كښې څه شبه ده؟ لكه څنګه چه سره زر په بهټۍ كښې اچولې شى خو اصلى سره زر نه سوځى بلكه نور خيرې وغيره فنا كيږى او خالص سره زر صفا ځمكدار راوځى دغه شانْ دهوبى زياتې خيرنې كپړې په بهټۍ باندې ايږدى خيرې ختميږى اوكپړه پاكه صفا راوځى دغه شان مؤمن لره په اور كښې غورځولو سره به دده زړه محفوظ وى چه دا د ايمان محل دى په دې باندې به هيڅ اثر نه پريوځى دده زړه به داسې د اور د اثر نه محفوظ ساتلې كيږى لكه څنګه چه حضرت خليل الله عليه السلام د خپل جسد مبارك سره په اور كښې محفوظ پاتې شوې وو. [5] والله اعلم وعلمه أتم وأحكم.

---

[1] المستدرک للحاكم (٢٧٧/١) كتاب الجمعة فضائل يوم الجمعة وكذلک رواه ابن خزيمه فى صحيحه كذا قال الألبانى فى سلسلة الأحاديث الصحيحة (٢/٣٠، ٣٣١) رقم ٧٠٦)

[2] صحيح البخارى (٦٩١/٢) كتاب التفسير سورة مريم باب قوله تعالى ﴿وأنذرهم يوم الحسرة..﴾

[3] قال تعالى: ﴿والوزن يومئذالحق فمن ثقلت موازينه فأولئک هم المفلحون ومن خفت موازينه فأولئک الذين خسروا أنفسهم بما كانوا بآياتنا يظلمون (الأعراف:٨، ٩) وغيرها من الآيات)

[4] عن ابن مسعود رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ لقيت إبراهيم ليلة أسرى بى فقال يا محمد أقرئ أمتک منى السلام وأخبرهم أن الجنة طيبة التربة عذبة الماء وأنها قيعان وأن غراسها سبحان الله والحمد لله ولاإله إلا الله والله أكبر.. الجماع للإمام الترمذى كتاب الدعوات باب (بلاترجمة بعد باب ما جآء فى فضل التسبيح والتكبير والتهليل والتحميد) رقم ٣٤٦٢)

[5] دمرجئو دمغالطې اود دې دازالې دپاره تول مباحث د فضل البارى نه ماخوذ دى. (٥١٨/١- ٥٢١)

٤٩- أَخْبَرَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ حَدَّثَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ(١) أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يُخْبِرُ بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ فَتَلَاحَى رَجُلَانِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ فَقَالَ إِنِّي خَرَجْتُ لِأُخْبِرَكُمْ بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ وَإِنَّهُ تَلَاحَى فُلَانٌ وَفُلَانٌ فَرُفِعَتْ وَعَسَى أَنْ يَكُونَ خَيْرًا لَكُمْ الْتَمِسُوهَا فِي السَّبْعِ وَالتِّسْعِ وَالْخَمْسِ

## رجال الحديث

① قتيبه بن سعيد: ددوى حالات وړاندې د ،، باب إفشاء السلام من الإسلام،، لاندې تير شوى دى.

② اسماعيل بن جعفر: ددوى حالات هم وړاندې د ،،باب علامة المنافق،، لاندې تير شوى دى.

③ حميد: دا ابو عبيده حميد( بالتصغير) بن ابى حميد الطويل. الخزاعى. البصرى دې.(٢) ددوى د پلار ابوحميد په نوم كښې تقريباً لس اقوال دى.(٣)

**دوى ته طويل ولې وئيلې كياى؟** په دې سلسله كښې يو قول دا دې.چه دا پخپله د وړوكى قد وو.خو ددوى دواړه لاسونه اوګده وو.لكه وئيلې شى.چه دې به كله مړى سره اودريدو او دواړه لاسونه به ئې اوږده كړل.نو يو لاس به ئې د هغه سر ته رسيدل.او دويم لاس به ئې دهغه پښو سره لګيدل.

يو قول دا هم دې.چه دې خو پخپله څه دومره اوګد نه وو.البته ددوى په ګاونډ كښې دده په نوم يوكس اوسيدو.چه هغه به د ،، حميد قصير،، په نوم سره پيژندلې كيدو.نو دوى ته د فرق دپاره ،، حميد الطويل،، اووئيلى شو.(٤)

دوى د حضرت انس ﷺ نه علاوه د تابعينو يو لوئې جماعت نه حديثونه اوريدلى دى.چه په دوى كښې حضرت ثابت بنانى، حسن بصرى، رجاء بن حيوه، عكرمه مولى ابن عباس، او نافع مولى ابن عمر ﷺ خاص طور باندې قابل ذكر دى.(٥)

ددوى نه روايات كونكى هم ډير اهل علم دى.چه په هغوى كښې ابو اسحاق ابراهيم بن محمد الفزارى، اسماعيل بن جعفر، اسماعيل بن عليه، حماد بن زيد، حماد بن سلمه،

---

١) الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى صحيحه فى كتاب فضل ليلة القدر باب معرفة ليلة القدر لتلاحى الناس رقم ٢٠٢٣) وفى كتاب الأدب باب ما ينهى عن السباب واللعن رقم ٦٠٤٩) والنسائى فى سننه الكبرى (٢٧٠١٢، ٢٧١) كتاب الإعتكاف باب التماس ليلة القدر فى التسع والسبع والخمس (٣٥٥\٧)

٢) تهذيب الكمال(٣٥٥\٧)

٣) تقريب التهذيب (١٨١) رقم ١٥٤٤)

٤) د دې تولو اقوالو دپاره اوګورئ تهذيب الأسماء واللغات (١٧٠١١) وتهذيب الكمال(٣٥٨\٧، ٣٥٩)

٥) تهذيب الأسماء (١٧٠١١) وتهذيب الكمال(٣٥٥\٧)

ربيع بن صبيح، زهير بن معاويه، سفيان بن سعيد ثوری، سفيان بن عيينه، شعبه بن الحجاج، عبدالعزيز دراوردی، عمران القطان، معاذ بن معاذ ،معتمر بن سليمان، يحي بن سعيد انصاری، يحيي بن سعيد القطان او يزيد بن هارون رحمهم الله پشان اساطين (لويې عالمان) د حديث شامل دی.[1]

ددوی په ثقاهت او جلالت باندې اتفاق دې.[2]

لکه امام يحيي بن معين رحمه الله فرمائی.،،ثقة،،[3]

امام عجلی رحمه الله فرمائی.،،بصری تابعی ثقة،،[4]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی.،،ثقة لا بأس به،،[5]

عبدالرحمن بن يوسف بن خراش رحمه الله فرمائی.،،ثقة صدوق،،[6]

په حميد الطويل باندې بعضو حضراتو کلام کړې دې.په دې سلسله کښې يوه خبره خو دا ونيلې شوې ده. چه ده به تدليس کولو.لکه ابن سعد رحمه الله فرمائی. «كان ثقة كثير الحديث، إلا أنه ربما دلس»[7]

دغه شان ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکرکړې دې.او فرمائيلی ئې دی.،،و كان يدلس،،[8]

ابن خراش رحمه الله فرمائی.«في حديث شيء يقال: إن عامة حديثه عن أنس إنما سمعه من ثابت»[9]

دغه شان د شعبه رحمه الله نه نقل دی.«كل شيء سمع حميد عن أنس خمسة أحاديث»[10]

او هم ددوی نه منقول دی.«لم يسمع حميد من أنس إلا أربعة وعشرين حديثاً، والباقي سمعها من ثابت، أو ثبته فيها ثابت»[11]

---

[1]) تهذيب الأسماء (۱۱/۱۷۰) وتهذيب الكمال(۱۷/۳۵۶، ۳۵۸)
[2])قال الحافظ في هدى الساری(ص.۳۹۹) مشهور من الثقات المتفق على الإحتجاج بهم..)_
[3]) تهذيب الكمال(۱۷/۳۵۹)
[4]) المصدرالسابق)_
[5]) المصدرالسابق_
[6])المصدرالسابق)_
[7]) طبقات ابن سعد(۷/۲۵۲)
[8]) الثات لابن حبان(۱۴/۱۴۸)
[9])تهذيب الكمال(۱۷/۳۵۹)
[10]) تهذيب الكمال(۱۷/۳۶۰)
[11]) تهذيب الكمال(۱۷/۳۶۰)

ابوبكر د يحيى رحمه الله فرمائي «وأما أحاديث حميد فلا يحتج منه إلا بما قال: حدثنا أنس»[1]
يوه خبره دا هم ونيلې شوې ده چه ذوى ته په هغه حديثونو كښې تميز نه وو. كوم چه دوى براه راست د حضرت انس رضي الله عنه نه اوريدلى دى او كوم حديثونه چه دوى د ..ثابت عن انس.. او .. قتادة عن انس.. په طريق سره اوريدلى دى.[2]

امام يحيى بن سعيد رحمه الله فرمائي «كان حميد الطويل إذا ذهبت تثقفه على بعض حديث أنس يشك فيه»[3]
دغه شان امام شعبه رحمه الله فرمائي چه حميدطويل ته به په بعضې احاديثو كښې شك كيدو[4] دريمه خبره دا ونيلې شوې ده چه زائده د حميد الطويل حديثونه پريخودى وو[5]
خو حقيقت دا دې چه دا ثقه راوى دې او په دوى باندې چه كوم كلام شوې دې د هغې په وجه به ددوى حديثونه نشي رد كولې

تركومې پورې چه ددوى د تدليس تعلق دې نو دا تدليس مضر نه دې خكه چه په دې كښې واسطه متعين ده او دې ثقه دې لكه حافظ ابوسعيد علائى رحمه الله فرمائي «فعلى تقدير أن يكون أحاديث حميد مدلسة، فقد تبين الواسطة فيها، وهو ثقة صحيح»[6]
تركومې پورې چه ددوى د حضرت انس رضي الله عنه نه صرف د پنخو حديثونو اوريدو تعلق دې نو دا روايت صحيح نه دې لكه چه حافظ ابن حجر رحمه الله دهغې روايت په باره كښې ( كوم چه د عيسى بن عامر په واسطې سره منقول دې) فرمائي «ورواية عيسى بن عامر المتقدمة، أن حميدا إنما سمع من أنس خمسة أحاديث، قول باطل، فقد صرح حميد بسماعه من أنس بشيء كثير وفي صحيح البخاري من ذلك جملة وعيسى بن عامر ما عرفته»[7]

دغه شان دوى د عسى بن عامر په باره كښې تصريح كړې ده چه دا غيرمعتمد راوى دې[8]
حافظ ابن عدى رحمه الله فرمائي «وحميد له حديث كثير مستقيم، فلغنى لكثرة حديثه أن أذكر له شيئاً من حديثه، وقد حدث عنه الأئمة، وأما ما ذكر عنه أنه لم يسمع من أنس إلا مقدار ما ذكر، وسمع الباقي من ثابت عنه، فإن تلك الأحاديث يميزها من كان يتهمه أنها عن ثابت عنه، لأنه قد روى عن أنس، وقد روى عن

---

[1] تهذيب التهذيب(٣/ ٤٠)
[2] تهذيب الكمال(٧/ ٣٦٢) وتهذيب التهذيب(٣/ ٣٩)
[3] تهذيب الكمال(٧/ ٣٦١)-
[4] تهذيب الكمال(٧/ ٣٦٠، ٣٦١)
[5] تهذيب الكمال(٧/ ٣٦٢) -
[6] تهذيب التهذيب(٣/ ٤٠) وحاشية سبط ابن العجمي على الكاشف(١/ ٣٥٢)
[7] تهذيب التهذيب (٣/ ٤٠)
[8] هدى السارى(٣٩٩)

ثابت من أنس أحاديث، فأكثر ما فى بابه أن الذى رواه من أنس البعض مما يدلسه من أنس، وقد سمعه من ثابت، وقد دلس جماعة من الرواة عن مشايخ قد رأوهم))(١)

ترکومې پورې چه ددوی د حضرت انس رضی الله عنه په احادیثو کښې د تمیز نه کولو تعلق دې.نو دا هم خاص مضر نه دې.څکه چه کوم حضرات دا بحث کوی.هغوی ورسره ورسره دا هم وائی. چه په دې کښې که څه واسطه شته.نو حضرت ثابت بنانی یا حضرت قتاده رحمهما الله دی.د واسطو متعین کیدو نه پس خو په دې اعتراض کښې هیڅ قوت نه پاتې کیږی.

امام یحي بن سعد رحمه الله هم د حضرت انس رضی الله عنه دحدیثونو په باره کښې چه کوم دا فرمائیلی دی.چه دوی ته به شك کیدو.دا هم په دې باندې محمول دې.چه دوی به باقاعده د حضرت انس رضی الله عنه نه براه راست اوریدلې احادیثو او ددوی په واسطې سره اوریدلې احادیثو کښې تمیز کولو سره روایت نه کولو.یا به ئې فرق نه کولو.ترکومې پورې چه په حدیث کښې د غلطئ کولو تعلق دې.نو دا خبره هیڅ چا نه ده کړې.

د امام شعبه رحمه الله خبره هم په دې باندې محمول ده.بلکه ممکن ده.چه امام شعبه رحمه الله ته غلط فهمی شوی وی.څکه چه حافظ مزی رحمه الله د معاذ بن معاذ نه نقل کړی دی.چه مونږ د حمید طویل سره ناست وو.چه شعبه راغلو.او تپوس ئې اوکړو.چه ابوعبیده! په فلانی فلانی حدیث کښې تاسو ته شك دې؟ حمید جواب ورکړو. چه آو! بعضې وختونو کښې ماته شك کیږی.کله چه شعبه لاړو.نو حمید اووئیل.چه ماته په هیڅ حدیث کښې هم شك نشته.خو چونکه دا لوئی کونکې او ډیرې نکتې راوبنکونکې هلك دې.په دې وجه ما اوغوبنتل.چه لږه شان په ده باندې سختی اوکړم.(٢)

ددې واقعې نه معلومیږی.چه امام شعبه رحمه الله چه د شك کیدو کومه خبره کړې ده.هغه په دې واقعې باندې مبنی ده.حالانکه حمید خپل ځان ته د شك لاحق کیدو نه بنکاره انکار کوی.

ددې نه علاوه د حمید د حضرت انس رضی الله عنه نه براه راست اوریدلی شوی احادیث اود ،،ثابت من أنس،، او ،،قتادة عن أنس،، په طریق سره اوریدلی شوی احادیثو کښې د اختلاط قول د شویب بصری په طریق سره منقول دې.چه دوی په ،، درست،، نوم سره هم یادیږی.چه دا قابل اعتناء (او قابل توجه) نه دې.

لکه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.((وحكاية سفيان عن درست ليست بشيء، فإن درست هالك))(٣)

ترکومې پورې چه د زائده بن قدامه رحمه الله ددوی د حدیثونو پریخودو تعلق دې.نو دا څه په داسې بنیاد باندې نه دې.چه ددوی په حدیثونو کښې څه عیب دې.بلکه ددې وجه دا ده.چه

---

(١) الكامل فى ضعفاء الرجال (٢٦٨/٢) بتنويب التحريفات والأخطاء فى العبارة من سيرأعلام النبلاء (١٦٦/٦، ١٦٧) وتهذيب الكمال(٣٦٢/٧)

(٢) تهذيب الكمال(٣١٦/٧)

(٣) تهذيب التهذيب (٤٠/٣)

دوى د سركارى افسرانو (پوليس) لباس او ددوى شكل اختيار كړې وو. په دې وجه د هغوى دده حديثونه پرېخودي وو

لكه چه حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى «إنما طرحه للبسه سواد الخلفاء، وزى أعوانهم، فعن مكى بن إبراهيم قال: مررت بحميد وعليه ثياب سود، فقال لى أخى ألا تسمع منه؟ فقلت أأسمع من الشرطي؟»[1]

بيا دلته هم وضاحت ضرورى دې چه امام بخارى رحمه الله د حميد صرف دهغه حديثونو تخريج پخپل صحيح كښې كړې دې په كومو كښې چه د سماع تصريح موجود ده او داسې حديثونه هم دوى متابعة او تعليقاً نقل كړى دى.[2] والله اعلم

په ۱۴۲هـ كښې ددوى وفات اوشو.[3] رحمه الله تعالى رحمة واسعة.

④ انس: دا حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دې. ددوى حالات وړاندې د ،،باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه،، لاندې تير شوى دى.

⑤ عبادة بن الصامت: دې هم مشهور صحابى ابو الوليد حضرت عبادة بن الصامت انصارى خزرجى رضي الله عنه دې. ددوى حالات هم وړاندې د ،،باب علامة الإيمان حب الأنصار،، نه روستو د ،،باب بلاترجمه،، لاندې تير شوى دى.

**قوله: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يُخْبِرُ بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ فَتَلَاحَى رَجُلَانِ مِنْ الْمُسْلِمِينَ:** رسول الله صلى الله عليه وسلم د ليلة القدر په باره كښې د ښودلو دپاره راووتلو. په مسلمانانو كښې دوه سړى په جګړه شو.

،،تلاحى،، منازعت او مخاصمت ته وائى. د حديث مطلب دا دې چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم په متعين طور باندې دليلة القدر د ښودلو دپاره تشريف راوړلو. نو وې كتل چه دوه سړى په زوره زوره لګيا دى. ددوى په مينځ كښې په څه خبره باندې جګړه شروع وه.

د ابن دحيه رحمه الله د قول مطابق دا دواړه حضرات كعب بن مالك او عبدالله بن ابى حدرد رضي الله عنهما وو. د حضرت كعب بن مالك رضي الله عنه قرض د حضرت عبدالله رضي الله عنه په ذمه وو. په دې سلسله كښې په دواړو كښې جګړه اوشوه. او په جمات كښې ددوى آوازونه اوچت شوى وو.[4]

**قوله: فَقَالَ إِنِّي خَرَجْتُ لِأُخْبِرَكُمْ بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ وَإِنَّهُ تَلَاحَى فُلَانٌ وَفُلَانٌ فَرُفِعَتْ وَعَسَى أَنْ يَكُونَ خَيْرًا لَكُمْ:** نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه زه تاسو ته د ليلة القدر دتعين

---

[1] ميزان الإعتدال (۱۱۰/۱ ۶)

[2] هدى السارى (۳۹۹)

[3] سير أعلام النبلاء (۱۶۸/۶) وغيره

[4] فتح البارى (۱۱۳/۱) وعمدة القارى (۲۸۱/۱)

په باره كښې د خودنې دپاره راوتلې ووم. خو فلانې فلانې په جګړه وو نو د ليلة القدر تعين اوچت كړې شو. شايد هم په دې كښې ستاسو دپاره خير وى
د روافضو وينا دا ده. چه د ليلة القدر ذات اوچت كړې شو اوس د ليلة القدر هيڅ وجود نشته. (١)
دا خبره بيخى غلطه ده. كه د ليلة القدر ذات اوچت كړې شوې وې نو دلته سوال پيدا كيږى. چه نبى كريم ﷺ ،،عسى أن يكون خيراً لكم،، ولې اوفرمائيل؟ او د ،،التمسوها فى السبع والتسع والخمس،، څه مطلب دې؟(٢)
قاضى عياض رحمه الله فرمائى. چه ددې حديث نه معلومه شوه چه مخاصمت (جګړه كول) مذموم دى. او دا د معنوى عقوبت يعنى د حرمان سبب جوړيږى او دا هم معلومه شوه. چه كوم ځائې كښې شيطان حاضر وى. د هغه ځائې نه بركت او خير اوچتولې شى (٣) ځكه چه امام مسلم رحمه الله د حضرت ابوسعيد رضي الله عنه نه كوم روايت نقل كړې دې. د هغې الفاظ دى: «فجاء رجلان يحتقان معهما الشيطان»(٤) يعنى دوه سړى په دې شان راغلل. چه دوى دواړو خپل ځان په حق باندې ثابتولو. دوى سره شيطان لګيدلې وو.
خودلته سوال پيدا كيږى. چه دا مخاصمت تاسو مذموم، د محروميدو باعث او د خير او بركت اوچتيدو سبب څنګه ګرځولې شئ: حالانكه نبى كريم ﷺ فرمائى. «عسى أن يكون خيراً لكم» ددې نه معلوميږى. چه دا جګړه كول د خير سبب جوړ شو؟
په دې دواړو خبرو كښې حقيقت كښې هيڅ تعارض نشته. د جګړې بې بركته او د حرمان سبب كيدل په يو اعتبار سره دى. او د نبى كريم ﷺ ارشاد په بل جهت سره دې.
قاضى عياض رحمه الله فرمائى. چه دا جګړه د رحمت د تعين ختميد باعث جوړ شو. اوكه دا تعين معلوم وې. نو ډيرو كمزورو ته به فائده رسيدلې وه. هغه به په دغه شپه ويخ پاتې كيدو. او د يو زر مياشتو نه د زيات عبادت فضيلت به ئې حاصلولو. په دې اعتبار سره دا جګړه د خير پورته كيدو سبب جوړ شو.
او نبى كريم ﷺ ،،اوچتيدل،، د خير په دې لحاظ سره ګرځولى دى. كه ټولو خلقو ته ليلة القدر په تعين سره معلوم شوې وې. نو صرف هم په دې شپه كښې به ئې عبادت كولو. په باقى شپو كښې به اطمينان سره كيناستلو. او په نوافلو وغيره كښې به نه مشغوليدلو. او

(١) فتح البارى (٢٦٣/٤) كتاب فضل ليلة القدر باب تحرى ليلة القدر فى الوتر من العشر الأواخر)
(٢) عن عبدالله بن يحنس قال قلت لأبى هريرة رضي الله عنه زعموا أن ليلة القدر قد رفعت قال كذب من قال ذلك قال قلت فهى فى كل رضمان أستقبله؟ قال نعم المصنف لعبدالرزاق (٢٥٥/٤) كتاب الصيام باب ليلة القدرو أرجع إليه لروايات وآثار اخر فى هذا الصدد)
(٣) فتح البارى (١١٣/١)-
(٤) صحيح مسلم (٣٧٠/١١) كتاب الصيام باب فضل ليلة القدر والحث على طلبها)

اوس چونکه تعين اوچت کړې شو.او دا اوښودلې شو. چه ليلة القدر په آخرى عشره کښې دننه ده.نو خلق د يوې شپې په ځائې په ډيرو شپو کښې عبادت کوى.او د يوې شپې دعبادت ثواب حاصلولو په ځائې به دوی ته د ډيرو شپو دعبادت ثواب ملاويږى.

ددې نه علاوه په دې رفع ( اوچتيدو) کښې د ،،خير،، نور وجوهات هم شته.انشاءالله د ،،ليلة القدر،، په مباحثو کښې به هغه ذکر کولې شى.

**ايا حق طلب کول مذموم دى؟**: وړاندې مونږ ذکرکړى دى.چه دا دواړه حضرات کومو چه جګړه کوله.د خپل دين (قرض) په باره کښې ئې کوله.ګويا چه د ،،حق،، مطالبه کيدله.هم دا د مسلم په روايت کښې د ،،**فجاء رجلان يحتقان**....،،(١)الفاظو سره بيان کړې شوې دې.نو د دين او حق مطالبه کول، آيا قابل مذمت او باعث د محروميدو دى؟

ددې جواب دا دې.چه مطلب حق طلب کول قابل مذمت څيز نه دې.البته په دې واقعه کښې مذموم صورت پيدا شوې دې.ځکه چه اول خو دا واقعه په جمات کښې پيښه شوه.چه دا د ذکر او عبادت ځائې دې.او بيا په مسجد نبوى کښې، چه ددې مرتبه د عامو جماتونو په مقابله کښې زياته ده.بيا زمانه هم د رمضان شريف ده. چه دا صرف او صرف د عبادت زمانه ده.بيا دا چه د نبى کريم ﷺ په موجودګئ کښې دا واقعه راپيښيږى.چه په دې کښې آواز اوچتيدل ثابتيږى.او د نبى کريم ﷺ په موجودګئ کښې آواز پورته کول د قرآن د نص په موجب، د اعمالو بربادېدو سبب دې.ددې ټولو وجوهاتو په وجه مخاصمت مذموم ګرځولې شوې دې.په دې وجه نه، چه مطلق دين او حق طلب کول مذموم دى.(٢) والله اعلم.

**قوله**: اَلْتَمِسُوهَا فِي السَّبْعِ وَالتِّسْعِ وَالْخَمْسِ :دا شپه تاسو په اوومه، نهمه او پنځمه شپه کښې تلاش کړئ.

ددې جملې نه په ظاهره دا معلوميږى.چه شپ قدر په اوومه، نهمه، او پنځمه شپه کښې تلاش کړې شى.خو دا مراد نه دې.بلکه ددې نه د آخرى عشرې اوومه، نهمه او پنځمه شپه مراد ده.(٣)

د ،،شب قدر،، په باره کښې چه څومره اختلافات دى.هغه به انشاءالله تفصيل سره پخپل مقام باندې راځى.البته دلته صرف په دومره خبره باندې پوهه شئ.چه په دې کښې اختلاف دې.چه دا پنځمه، اوومه، او نهمه شپه د تيرو شوو اعتبار سره مراد دى.اوکه د باقى شپو په اعتبار سره؟ يعنى د آخرى عشرې شپې به د شروع نه شمارلې شى.اوکه د آخر طرفه؟(٤)

---

١) قد سبق تخريجه آنفاً

٢)اوګورئ: فتح البارى(١١٣١١) دغه شان اوګورئ عمدة القارى(٢٨١١١) فقد قال العينى فيه: طلب الحق غيرمذموم لا فى المسجد ولا فى الوقت المخصص وانما المذمة فيها ليست راجعة إلى مجردالخصومة فى الحق وإنما هى راجعة إلى زيادة منازعة حصلت بينهما عن القدرالمحتاج اليه وتلك الزيادة هى اللغو والمسجد ليس بمحل للغو مع ما كان فيها مع رفع الصوت بحضرة النبى ﷺ فافهم )

٣) عمدة القارى(٢٨١١١)_

٤) فتح البارى(١١٤١١)_

بعضې حضرات خو دا وائي چه د تيرو شوو شپو په اعتبار سره به شمارلې كيږي. يعنى دا شپې به د اول نه شروع كولې شي. په دې صورت كښې به د پنځمې نه پنځيشتمه شپه، د اوومې نه اوويشتمه شپه، او د نهمې نه نهيشتمه شپه مراد وي.
او نور عالمان فرمائي چه د باقي ورځو اعتبار به كولې شي. يعنى د آخر طرفه به دا شپې شمارلې كيږي.
په دې صورت كښې بيا بعضې عالمان فرمائي چه مياشت به د ديرشو اخستلې شي. او بعضې فرمائي چه مياشت به د يوكم ديرشو اخستلې شي.
كه د ديرشو مياشت واخستلې شي نو چونكه شمار به د آخر نه كيږي او ترتيب به داسې وي. ۳۰، ۲۹، ۲۸، ۲۷، ۲۶، ۲۵، ۲۴، ۲۳، ۲۲، ۲۱، په دې اعتبار سره د اوويشتمې نه څليرشتمه شپه، پنځمې نه شپږيشتمه شپه او د نهمې نه دوه ويشتمه شپه مراد وي او كه د يوكم ديرشو مياشت واخستلې شي نو د نهمې مصداق به يويشتمه شپه، د اوومې مصداق به دريشتمه شپه، او د پنځمې مصداق به پنځيشتمه شپه وي. والله اعلم

بيا دلته په دې هم پوهه شئ چه په اكثرو رواياتو كښې ترتيب هم دا دې،،

سبع، تسع، خمس،، په دې كښې دې خبرې طرف ته اشاره ده. چه په اوومه شپه كښې د ليلة القدر كيدل اقوى دى. اګرچه ابو نعيم رحمه الله په ،،مستخرج،، كښې كوم روايت نقل كړې دې په هغې كښې ترتيب نزولي دې. يعنى ،،تسع، سبع، خمس،،(۱) والله اعلم۔
**د احاديثو او آثارو ترجمة الباب سره انطباق:** وړاندې مونږه بيان كړي دى چه دلته امام بخاري رحمه الله دوه ترجمې قائمې كړې دى. ① يو ،،خوف المؤمن من أن يحبط عمله وهو لا يشعر،، او دويمه ترجمه ده ،،ومايحذر من الإصرار على التقاتل والعصيان من غير توبة،، ددې دواړو ترجمو لاندې امام بخاري رحمه الله درې آثاره، يو آيت كريمه، او دوه حديثونه ذكر كړې دى.
د عامو شارحينو مطابق په دې كښې د دريو واړو آثارو تعلق رومبۍ ترجمې سره دې. او ددې مناسبت هم ترجمې سره واضح دې. ځكه چه ترجمه كښې د ،،خوف مؤمن،، ذكر دې. او د ابراهيم تيمى رحمه الله په اثر كښې ،،خشيت أن أكون مكذباً،، كښې هم دا مفهوم دې. د ابن ابى مليكه رحمه الله په اثر كښې د ،،خوف من النفاق،، ذكر دې. دغه شان د حضرت حسن بصرى رحمه الله په اثر كښې هم دا معنى ده.
چونكه ددې آثارو تعلق رومبۍ ترجمې سره دې. په دې وجه ئې دا د ،،ترجمې،، نه سمدستى روستو ذكركړل. ددې نه پس د آيت تعلق دويمې ترجمې سره دې. او دغه شان په دوو حديثونو كښې رومبې حديث يعنى د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د حديث ،،سباب المسلم فسوق......،، تعلق هم دې ترجمې سره دې.

---

(۱) فتح البارى (۱۱۴/۱) وعمدة القارى (۲۸۱/۱)۔

ددې حدیث وجه د مطابقت دا بیان کړې شوې ده.چه په دې حدیث کښې د مرجئه د قول ابطال دې.چه دوی مرتکبین د ګناه کبیره لره فاسق نه ګرځوی.او نه په مرتکبینو د قتال باندې د کفر او کفران حکم لګوی.ګویا چه ,,سباب،، او ,,قتال،، باندې اصرار (همیشوالې) د توبې نه بغیر مضرنه ګنړی.په دې وجه امام بخاری رحمه الله ترجمه قائمه کړله.چه «ومایحذر من الإصرار علی التقاتل والعصیان من غیر توبة» حالانکه دویم حدیث کوم چه د حضرت عباده بن الصامت رضی الله عنه حدیث دې.د هغې تعلق مخکښې ترجمې سره دې.

ددې حدیث د ترجمة الباب رومبی جزء سره مطابقت داسې دې.چه په دې کښې د ,,تلاحی،، مذمت بیان کړې شوې دې.ځکه چه ,,متلاحی،،.د ډیرو نیکو اعمالو نه محروم پاتې کیږی.خصوصاً کله چه په جمات کښې وی.او بیا که دا ,,تلاحی،، د نبی کریم ﷺ په موجودګۍ کښې وی.نو د عمل د باطلیدو بنیاد هم جوړیږی.([1])

حضرت علامه کشمیری رحمه الله فرمائی.ددې حدیث نه معلومه شوه.چه د تلاحی په وجه د لیلة القدر قطعی تعین اوچت کړې شو.دغه شان معصیت هم کله کله د عمل بربادیدو سبب جوړیږی.([2])

دا خو دعامو شارحینو خبره وه.چه ددوی په نیز د دریو آثارو تعلق رومبۍ ترجمې سره دې.او د آیت او رومبی حدیث تعلق دویمې ترجمې سره دې.او د دویم حدیث تعلق رومبۍ ترجمې سره دې.ګویا چه ددوی په نیز لف و نشر غیر مرتب دې.

حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائی.چه په دې باب کښې دوه ترجمې دی.د رومبۍ د اثبات دپاره د ابراهیم تیمی رحمه الله وغیره تابعینو اقوال مذکور دی.او دویمې ترجمې سره ئې قرآنی آیت راوړلې دې.ددې نه پس ئې دوه روایتونه ذکرکړی دی.چه ددې صریح تعلق دویمې ترجمې سره معلومیږی.

غالباً د رومبۍ ترجمې نه دا غرض دې.چه مؤمن له د نفاق نه ویریدل پکار دی.او د دویمې ترجمې نه صریح مقصود د معاصی نه ویریدل دی.حاصل دا چه د ضروریاتو او مکملاتو نه فارغ شو.نو د ایمان مفسدات او مضرات خودل مقصود دې.چه دا دوه څیزونه دی:

① رومبې نفاق دې.② دویم معاصی دی سره د اصرار او توبې نه بغیر،_اصرار د توبې نه بغیر چونکه د باب په روایاتو کښې مذکور نه وو.نو ددې د اثبات دپاره ئې ترجمې سره آیت بیان کړو.([3])،،والله أعلم وعلمه أتم وأحکم،،_

---

[1]) اوګورئ: عمدة القاری(۱/۲۷۵-۲۷۹) وفتح الباری(۱/۱۱۱)_

[2]) فیض الباری(۱/۱۴۶)_

[3]) الأبواب والتراجم لصیحح البخاری أز شیخ الحدیث مولانا زکریا صاحب قدس سره (ص۳۸)

# ۳۶- بَاب سُؤَالِ جِبْرِيلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ الْإِيمَانِ وَالْإِسْلَامِ وَالْإِحْسَانِ وَعِلْمِ السَّاعَةِ

وَبَيَانِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَهُ ثُمَّ قَالَ جَاءَ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَام يُعَلِّمُكُمْ دِينَكُمْ فَجَعَلَ ذَلِكَ كُلَّهُ دِينًا وَمَا بَيَّنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِوَفْدِ عَبْدِ الْقَيْسِ مِنْ الْإِيمَانِ [ر:۵۳] وَقَوْلِهِ تَعَالَى وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ (آل عمران:۸۵)

په دې ترجمه کښې ،،سؤال،، مصدر دې چه دا فاعل طرف ته مضاف دې.او ،،النبي ﷺ،، مفعول واقع دې. ،،عن الإيمان....إلخ،، د،،سؤال،، سره متعلق دې.د ،،وعلم الساعة،، عطف په ،،الإيمان،، باندې دې.او د ،،ووقت علم الساعة،، په تقدير کښې دې.ځکه چه د ،،ايمان،، او،،اسلام،، او ،،احسان،، په باره کښې خو سوال کړې شوې دې.د ،،ما الإيمان،، او ،،ما الإسلام،، او،،ما الإحسان،، عنوان سره. او د ،،الساعة،، په باره کښې په ،،ومتى الساعة،، ونيلو سره تپوس کړې شوې دې.او ،،متى،، وخت سره مخصوص دې.(۱)

**قوله**: وَبَيَانِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَهُ: ددې عطف په ،،السؤال،، باندې دې.(۲)
،،له،، ضمير کوم طرف ته ګرځي؟ علامه کرماني رحمه الله فرمائي.چه دا ضمير د ،،ايمان، اسلام، احسان، او علم الساعة،، مجموعې طرف ته راګرځي.(۳)

په دې باندې اشکال کيږي.چه نبي کريم ﷺ خو د ،،متى الساعة،، جواب ورنکړو .نو بياد ،،له،،ضمير دې ټولو څيزونو طرف ته څنګه ګرځيدې شي؟ علامه کرماني رحمه الله فرمائي.
چه نبي کريم ﷺ چونکه د اکثر مسئول عنه جواب ورکړې دې.نو د ،، للأكثر حكم الكل،، قاعدې مطابق ګويا د ټولو جواب ئې ورکړو.په دې وجه دې طرف ته د ضمير ګرځيدل صحيح دی.
يا ضمير ګرځيدل ځکه صحيح دی.چه نبي کريم ﷺ د ،،متى الساعة،، په جواب کښې ،،ما المسئول عنها بأعلم من السائل،، فرمائيلو سره چه څنګه د لاعلمئ اظهار اوفرمائيلو.دغه شان ئې ګويا چه الله تعالى ته حواله کړو.د الله تعالى د علم حواله کول دا هم ،،بيان،، دې.نو ضمير د ټولو مجموعې طرف ته ګرځول صحيح شو.(۴)

---

(۱) عمدة القاري(۱\۲۸۱. ۲۸۲)
(۲) عمدة القاري(۱\۲۸۲) وفتح الباري(۱\۱۱۵) وشرح الكرماني(۱\۱۹۲)
(۳) شرح الكرماني(۱\۱۹۲)-
(۴) كرماني(۱\۱۶۲)

بعينه هم دا خبره حافظ رحمه الله د كرماني رحمه الله د حوالې نه بغير نقل كړې ده.[1]
د لامه عينى رحمه الله فرمائي چه هسې بيسه په دې تكلف كښې د پريوتلو ضرورت نشته.
«له» ضمير «جبرئيل» طرف ته واپس كيږي.[2] اوس مطلب ښكاره دې چه دا باب د حضرت جبرئيل عليه السلام د نبى كريم ﷺ نه د ايمان، اسلام، احسان او د قيامت په باره كښې د سوال، اودنبى كريم ﷺ دحضرت جبرئيل عليه السلام په وړاندې دبيانولوپه باره كښې دې. والله اعلم.

**د ترجمة الباب ما قبل سره مناسبت** په تير شوى باب كښې د «خوف المؤمن أن يحبط عمله» ذكر وو. يعنى مؤمن له د اعمالو برباديدو نه يريدل پكار دى. او په دې باب كښې ددې خبرې بيان دې چه سړې به مؤمن څنګه جوړيږى. او د شريعت په نظر كښې مؤمن څوك دې؟ نو په دواړو بابونو كښې مناسبت ښكاره شو.[3]

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخارى رحمه الله د وړاندې نه په مختلفو عنواناتو سره په دې ښودلو راروان دې چه اعمال د ايمان جزء دې. خو په عنوان كښې كله «ايمان» ذكر كوى. كله «اسلام» او كله «دين». مثلاً فرمائى. «حب الرسول من الإيمان»، «من الدين الفرار من الفتن»، «إفشاء السلام من الإسلام» _ اشكال كيږى. چه تاسو خو ددې قائل ئې چه اعمال د ايمان جزء دې. نو بيا د «من الإسلام» يا د «من الدين» عنوان څنګه صحيح كيدې شى؟
ددې جواب امام بخارى رحمه الله په دې ترجمې منعقد كولو سره وركوى. چه «اسلام، ايمان، او دين» درې واړه متحد دى. نو كه اعمالو ته د اسلام جزء اووئيلې شى. او كه د دين جزء اوګرځولې شى. او كه د ايمان جزء اوګرځولې شى. خبره يوه ده.
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى. چه مخكښې دا خبره تيره شوې ده. چه د امام بخارى رحمه الله په نيز ايمان او اسلام متحد دى. ځكه چه د حضرت جبرئيل عليه السلام د سوال نه، او بيا د نبى كريم ﷺ د جواب نه ښكاره دا معلوميږى. چه په دې دواړو كښې تغاير دې. په دې وجه امام بخارى رحمه الله په دې باب قائمولو سره دا ثابتول غواړى. چه په اسلام او ايمان كښې تغاير نشته. بلكه اتحاد دې.[4]
حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائى. چه امام بخارى رحمه الله دلته په «ترجمه» كښې درې اجزاء ذكر كړى دى. ① جبرئيل عليه السلام د نبى كريم ﷺ نه د ايمان، اسلام، احسان او د قيامت دعلم سوال اوكړو. نبى كريم ﷺ د هغوى په وړاندې دا بيان كړل. بيا ئې اوفرمائيل. «جاء يعلم الناس دينهم» يعنى جبرئيل عليه السلام خلقو ته ددوى د «دين» ښودلو دپاره راغلې وو. ګويا نبى

---

[1] فتح البارى (١١٥/١)
[2] عمدة القارى (٢٨٢/١)
[3] عمدة القارى (٢٨٢/١)
[4] فتح البارى (١١٤/١)

كريم ﷺ اسلام، ايمان او احسان وغيره ټول، ،دين، ، اوګرځول.معلومه شوه.چه دا ټول يو دي.د ترجمې ددې رومبى جزء نه د امام بخارى رحمه الله مقصد هم دا دې.چه ټول اصول او فروع، عقائد او اعمال، ايمان او اسلام، او اخلاص او صدق ټول په ، ،دين، ، كښې شامل دي. هم دا دوى ، ،فجعل ذالك كله ديناً، ، ونيلو سره واضح كړې ده.

② په دويم جزء كښې دوى حديث د وفد عبدالقيس(١) حواله وركړې ده.چه په دې كښې نبى كريم ﷺ د ، ،ايمان، ، په شرح فرمانيلو كښې هم دا څيزونه ذكركړى دى.كوم چه په حديث د جبرئيل كښې د ، ،اسلام، ، په شرح كښې مذكور دى.ددې نه هم دا معلومه شوه.چه ايمان او اسلام دواړه يو دى. ③ دريم جزء په دې ، ،ترجمه، ، كښې آيت كريمه دې.﴿وَمَنْ يَّبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِيْنًا فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْهُ﴾(٢)

په دې آيت كښې اسلام ته دين ونيلې شوې دې.ددې نه معلوميږى.چه اسلام او دين يو دې. ددې ټولو نصوصو نه معلومه شوه.چه په اسلام ،ايمان، او دين كښې د هر يو اطلاق په دويم باندې كيدې شى.او د سلفو په نيز نصوصو كښې هم وارد شوى اطلاقات خوښ دى.نو هركله چه ددى دريو وارو استعمال او اطلاق په نصوصو كښې د يو بل په ځائې باندې شوې دې.نو دا هم دغه شان عموم او اطلاق سره ساتل پكار دى.هغوى د متاخرينو كلامى مباحث نه خوښوى.ځكه چه ددوى په نيز په دين، ايمان او اسلام كښې د هر يو جدا جدا تعريف كولې شى.په دې طريقه په دې كښې هيڅ يو د بل په معنى كښې استعمالول ممكن نه پاتې كيږى.حالانكه د نصوصو كښې نه دې كښې هر يو د بل په ځائې د استعمالولو اجازت معلوميږى. په اصل كښې د متاخرينو په نيز د عقلى مباحثو او په منطقى طريقه د استدلال د غلبې په وجه دا څيز غالب دې.چه دوى د هر يو څيز په ماهيت او كنهٔ پسې شوى دى.ددې دپاره د جامع مانع تعريف كولو كوشش كوى.كلام الله او كلام رسول په دې عقلى اصطلاحاتو باندې كلى طور باندې نه واردېږى.بلكه په نورو معانيو باندې هم واردېږى.په دې وجه دوى په داسې مقاماتو كښې د تجوزقائل كيږى.او دوى هلته د تكلف نه كاراخلى.او متقدمين او سلف حضرات ددې حادثو اصطلاحاتو پابندى نه كوى.او نه هغوى د يونان د منطقيانو تحقيقاتو سره څه دلچسپى (او شوق) ساتى.په دې وجه هغوى الفاظ شرعيه لره د اصطلاحات حادثه په محدود جامه كښې د محدود ساتلو په ځائې نصوص لټوى.او هغه په اطلاقاتو باندې محمول ساتى.

ددې نه دا خبره هم معلومه شوه.چه وړاندې په كومو بابونو كښې كوم مختلف عنوانات اختيار كړې شوى دى.چه چرته، ، من الدين كذا، ، وئيلى شوى دى.او چرته ، ، من الاسلام كذا، ، او چرته كښې، ، من الايمان كذا، ، دا ټول اطلاقات صحيح دى. (٣)، ، والله تعالىٰ اعلم، ، _

---

(١) حديث وفد عبدالقيس نزدې په ((باب أداء الخمس من الإيمان)) كښې راځى.
(٢) آل عمران:٨٥)
(٣) الأبواب والتراجم لصحيح البخارى از شيخ الحديث صاحب رحمه الله (ص.٣٨، ٣٩)

**ايا د امام بخارى رحمه الله په دې دلائلو سره د حنفيه په مسلک باندې څه فرق پريوځي؟** په دې مجموعي دلائلو سره د امام بخارى رحمه الله مقصد ښه واضح شو.خو دلته په دې خبره پوهه شئ چه ددوی په دې دلائلو سره د حنفيانو په مسلك باندې هيڅ فرق نه پريوځي.ځکه چه په اطلاقاتو او استعمالاتو کښې توسع (او فراخى) وى.د توسع او مجاز په لحاظ سره د يو په بل باندې اطلاق کول، يا په تفسير کښې د يو څيز په بل کښې ذکر کول په دې کښې هيڅ بنديز او باك نشته.(١)

ترکومې پورې چه د ايمان او د اسلام د حقيقت تعلق دې.نو دا بالکل جدا جدا دى.بلکه د حافظ ابن حجر رحمه الله تشريح سره خبره بالکل واضح کيږى.حافظ رحمه الله فرمائى چه په ټولو دليلونو باندې د نظر کولو نه روستو، چه کوم څه واضح شو.هغه دا دى.چه د ايمان او اسلام دواړو جدا جدا شرعي حقيقت دې.لکه څنګه چه ددوى دواړو جدا جدا لغوى حقيقت هم دى.خو هر يو دواړو ته مستلزم دې.په دې لحاظ سره چه د يو بل د تکميل باعث دى.نو لکه څنګه چه يو عامل بغير د صحيح عقائدو كامل مسلمان نشى كيدې دغه شان د يو ښه عقيدې خاوند بغير د عمل نه كامل مؤمن نشى كيدې.او په كوم كوم ځائې كښې چه د اسلام په ځائې د ايمان، او د ايمان په ځائې د اسلام اطلاق راځى.يا په يو ونيلو سره د دواړو مجموعه مراد اخستې شى.دا په طريقه د مجاز دى.او موقعه او محل سره د مراد تعين کيږى.مثلاً كه دواړه په يو ځائې د سوال په مقام كښې جمع شى.نو د دواړو حقيقى معنى به مراد وى.او كه دواړه په يو ځائې نه وى.يا د سوال موقع نه وى.نو دمقامى قرائنو په لحاظ او اعتبار سره به په حقيقت يا مجاز باندې محمول كولې شى.

محمد بن نصر رحمه الله د اكثرو عالمانو نه نقل کړى دى.چه اسلام او ايمان دواړه مساوى او مترادف دى.ابن عبدالبر رحمه الله هم ددوى اتباع كړې ده.او لالكائى او ابن السمعانى رحمهما الله د اهل السنة والجماعة نه نقل کړى دى.چه ددى دواړو په مينځ كښې فرق دې محدث اسماعيلى رحمه الله د اهل السنة والجماعة نه نقل کړى دى.چه د ايمان او اسلام دواړو مدلول او مصداق په يو ځائې كښې د ذكر كيدو په صورت كښې مختلف او جدا جدا وى.اوكه جدا جدا ذكرشوې وى.نو د يو بل په ضمن كښې شامليږى.هم ددې تفصيل په رڼا كښې د محمد بن نصر رحمه الله د كلام محمل د حديث عبدالقيس مدلول پيژندل پكار دى په كوم چه نبى كريم ﷺ د ايمان تشريح په هغه څيزونو سره فرمائيلې ده كوم چه په حديث د جبرئيل كښې د اسلام لاندې مذكور دى.چه ددې نه د دواړو په مينځ كښې برابرى معلوميږى. حالانكه دلالكائى او ابن السمعانى رحمهما الله د كلام محمل د حديث جبرئيل مدلول ګرځول پكاردى.چه په دې كښې دايمان اواسلام مصداق جدا جدا ګرځولې شوې دې.والله الموفق(٢)

تنبيه وړاندې د كتاب الايمان په شروع مباحثو كښې د اسلام او ايمان په مينځ كښې د

---

(١) فضل البارى(١١/٥٢٥)_

(٢) فتح البارى(ج١١١٥)_

نسبت تفصیل ذکر شوې دې.،،فارجع إليه إن شئت،،(۱)

**قوله وَمَا بَيَّنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِوَفْدِ عَبْدِ الْقَيْسِ مِنَ الْإِيمَانِ:** په دې کښې ..واو.. د مصاحبت دپاره دې او د ..مع.. په معنی کښې دې. اود ..من الایمان.. مطلب دې ،،من تفصيل الإيمان،، دغه شان وړیسې په ،،وقوله تعالى....،،کښې هم ،،واو،،د معیت دپاره دې (۲)

۵۰-حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا أَبُو حَيَّانَ التَّيْمِيُّ عَنْ أَبِي زُرْعَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ(۳) قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَارِزًا يَوْمًا لِلنَّاسِ فَأَتَاهُ جِبْرِيلُ فَقَالَ مَا الْإِيمَانُ قَالَ الْإِيمَانُ أَنْ تُؤْمِنَ بِاللّٰهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَبِلِقَائِهِ وَرُسُلِهِ وَتُؤْمِنَ بِالْبَعْثِ قَالَ مَا الْإِسْلَامُ قَالَ الْإِسْلَامُ أَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَتُقِيمَ الصَّلَاةَ وَتُؤَدِّيَ الزَّكَاةَ الْمَفْرُوضَةَ وَتَصُومَ رَمَضَانَ قَالَ مَا الْإِحْسَانُ قَالَ أَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَإِنَّهُ يَرَاكَ قَالَ مَتَى السَّاعَةُ قَالَ مَا الْمَسْئُولُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ وَسَأُخْبِرُكَ عَنْ أَشْرَاطِهَا إِذَا وَلَدَتِ الْأَمَةُ رَبَّهَا وَإِذَا تَطَاوَلَ رُعَاةُ الْإِبِلِ الْبُهْمُ فِي الْبُنْيَانِ فِي خَمْسٍ لَا يَعْلَمُهُنَّ إِلَّا اللّٰهُ ثُمَّ تَلَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ الْآيَةَ ثُمَّ أَدْبَرَ فَقَالَ رُدُّوهُ فَلَمْ يَرَوْا شَيْئًا فَقَالَ هَذَا جِبْرِيلُ جَاءَ يُعَلِّمُ النَّاسَ دِينَهُمْ قَالَ أَبُو عَبْد اللّٰهِ جَعَلَ ذَلِكَ كُلَّهُ مِنَ الْإِيمَانِ [۴۴۹۹]

## رجال الحديث

① **مسدد:** دا مشهور محدث مسدد بن مسرهد رحمه الله دې. ددوی حالات د ،،باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه،، لاندې تیر شوی دی.

② **اسماعیل بن ابراهیم:** دا مشهور محدث اسماعیل بن ابراهیم بن مقسم رحمه الله دې.چه

---

(۱) کشف الباری(۶۰۸،۶۰۶/۱) د زیات تفصیل دپاره اوګورئ إحياء علوم الدين مع شرح إتحاف السادة المتقين (۲۴۰-۲۳۳/۲) الفصل الرابع فى الإيمان والإسلام وما بينهما من الإتصال والإنفصال – وعمدة القارى (۱۱۰،۱۰۹/۱) كتاب الإيمان )

(۲) شرح كرمانى (۱۹۳/۱) وعمدة القارى(۲۸۲/۱) وفتح لبارى(۱۱۴/۱)

(۳) الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه فى كتاب التفسير سورة لقمان باب ﴿ إن الله عنده علم الساعة﴾ رقم ۴۷۷۷ ومسلم فى صحيحه (۲۹/۱) كتاب الإيمان رقم ۱۰۶) والنسائى فى سننه فى كتاب الإيمان وشرائعه باب صفة الإيمان والإسلام رقم ۴۹۹۴ وأبوداود فى سننه فى كتاب السنة باب فى القدر (۴۶۹۸) وابن ماجه فى سننه فى المقدمة باب فى الايمان رقم ۶۴)

دا ،،ابن علیه،، په نوم مشهور دي ددوی حالات هم د ،،باب حب الرسول ﷺ من الایمان،، لاندې ذکر شوی دی وړاندې په مذکوره باب کښې چه کله امام بخاری رحمه الله ددوی د طریق روایت نقل کړې وو .هغې کښې ئې فرمائیلی وو ،،حدثنا ابن علیه،، او دلته فرمائی ،،حدثنا اسماعیل بن ابراهیم،، علامه کرمانی رحمه الله فرمائی.((وهذا دلیل علی کمال ضبط البخاری وأمانته، حیث نقل لفظ الشیوخ بعینه وأداه کما سمعه، رحمه الله تعالی))([1])

② **ابوحیان التیمی**: دا یحیی بن سعید بن حیان تیمی کوفی دې.([2])

دې دخپل پلار سعید بن حیان، ضحاك بن المنذر، امام شعبی، عکرمه مولی ابن عباس.

یزید بن حیان تیمی، او د ابو زرعه رحمهم الله نه روایت کوی.([3])

ددوی نه ابراهیم بن عیینه، اسماعیل بن علیه، ایوب سختیانی، جریر بن عبدالحمید. حماد بن سلمه، سفیان ثوری، اعمش، شعبه، عبدالله بن المبارك، هشیم بن بشیر، او یحیی بن سعید القطان رحمهم الله وغیره روایت د حدیث کوی.([4])

عبدالله بن داؤد خریبی رحمه الله فرمائی.چه سفیان ثوری به ددوی تعظیم او توثیق کولو.([5])

محمد بن فضیل رحمه الله فرمائی.،،حدثنا ابوحیان التیمی وکان صدوقاً،،([6])

امام یحیی بن معین رحمه الله فرمائی.،،ثقة،،([7])

امام عجلی رحمه الله فرمائی.،،ثقة، صالح، مبرز، صاحب سنة،،([8])

امام ابو حاتم رحمه الله فرمائی.،،صالح،،([9])

ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکر کړی دی.او فرمائیلي ئې دی.،،وکان من المتهجدین باللیل الطویل،،([10])

---

[1]) شرح الکرمانی(۱۱۹۳)۔
[2]) تهذیب الکمال(۳۱\۳۲۳)
[3]) تهذیب الکمال(۳۱\۳۲۳)-
[4])تهذیب الکمال(۳۱\۳۲۳، ۳۲٤)_
[5]) تهذیب الکمال (۳۱\۳۲٤) وتهذیب التهذیب (۱۱\۲۱۵)
[6]) المصادر السابقة)
[7]) تهذیب الکمال(۳۱\۳۲۵) وتهذیب التهذیب (۱۱\۲۱۵)
[8]) المصادر السابقة)
[9]) المصادر السابقة)
[10]) [illegible]

ابن سعد رحمه الله فرمائی: "وكان ثقة وله أحاديث صالحة" [1]

امام ترمذی رحمه الله فرمائی: "ثقة" [2]

یعقوب بن سفیان رحمه الله فرمائی: "روى عنه أئمة الكوفة وهو ثقة مأمون كوفي" [3]

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی: "من خيار عباد الله" [4]

امام مسلم رحمه الله فرمائی: "كوفي من خيار الناس" [5]

امام نسائی رحمه الله فرمائی: "ثقة ثبت" [6]

فلاس رحمه الله فرمائی: "ثقة" [7]

حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی: "إمام ثبت" [8]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: "ثقة عابد" [9]

په ۱۴۵ هـ کښې د دوی وفات اوشو. [10] "رحمه الله تعالى رحمة واسعة"۔

④ **ابوزرعه:** دا ابو زرعه بن عمرو بن جریر بجلی رحمه الله دې. د دوی حالات د "باب الجهاد من الإيمان" لاندې تیر شوی دی.

⑤ **ابوهریره رضي الله عنه:** د دوی حالات تفصیل سره د "باب أمور الإيمان" لاندې ذکر شوی دی. [11]

**حدیث جبرئیل او د دې اهمیت:** حدیث باب د "حدیث جبریل" په نوم سره مشهور دې. دا حدیث ډیر عظیم الشان دې. په دې کښې د قواعد او اصولو ډیر انواع، او ډیرې اهمې فائدې بیان کړې شوی دی. لکه چه علامه قرطبی رحمه الله فرمائیلی دی: «هذا الحديث يصلح أن يقال له: أم السنة، لما تضمنه من جمل علم السنة» [12] یعنی دا حدیث د دې قابل دې چه دې ته

---

[1] الطبقات (۳۵۳/۶)

[2] جامع الترمذي كتاب المناقب باب مناقب علي بن أبي طالب رضي الله عنه رقم ۳۷۱۴)۔

[3] حاشية تهذيب الكمال (۳۲۵/۳۱) نقلاً عن المعرفة (۹۴/۳) وانظر تهذيب التهذيب (۲۱۵/۱۱)۔

[4] حاشية تهذيب الكمال (۳۲۵/۳۱) نقلاً عن المعرفة (۱۹۶/۲)۔

[5] تهذيب التهذيب (۲۱۵/۱۱)

[6] المصدر السابق)

[7] المصدر السابق)۔

[8] الكاشف (۳۶۶/۲) رقم ۶۱۷۳) وميزان الإعتدال (۳۸۰/۱۴) رقم ۹۵۲۱)

[9] تقريب التهذيب (ص. ۵۹۰) رقم ۷۵۵۵)

[10] الثقات لابن حبان (۵۹۲/۷)

[11] كشف الباري (۶۵۹/۱، ۶۶۳)۔

[12] فتح الباري (۱۲۵/۱)

((امر السنة)) لقب ور کړې شی.ځکه چه دپوره سنت اجمالی علم په دې کښې راجمع کړې شوې دې.
علامه طیبی رحمه الله فرمائی.((ولما اشتمل هذا الحديث على هذه المطالب العزيزة، والمقاصد السنية، التي هي أمهات أصول الدين، أودعه محي السنة في مستهل بابَيْ كتابيه ،،شرح السنة،، و ،،المصابيح،، تأسياً بالله عزوجل في تقديم الفاتحة التي هي أم القرآن المشتملة على ما بعدها إجمالاً براعة للإستهلال، والله أعلم بالأسرار))(١) مطلب دا دې.چه دا حديث چونکه ډير قابل قدر او اعلى مطالبو او مقاصدو، يعنى په اهمو اصولو د دين باندې مشتمل دې.په دې وجه محى السنة بغوى رحمه الله د خپلو دواړو کتابونو ،،شرح السنة،،او ،،المصابيح،، آغاز ددې حديث نه کړې دې.ګويا لکه څنګه چه د الله تعالى د کتاب افتتاح د سورة فاتحه نه کيږى.او په دې کښې د پوره قرآن اجمالى بيان دې.دغه شان حديث جبريل ذکر کولو سره ئې د کتاب الله اتباع کړې ده.ځکه چه په دې کښې د پوره سنت خلاصه او نچوړ دې.
قاضى عياض رحمه الله فرمائيلى دى.چه ټول وظائف ظاهرى او باطنى عبادات هم په دې کښې دى.او اعمال د جوارحو هم، او د نيتونو اخلاص او سرائر (خوبيانې) هم په دې کښې دى او د اعمالو د آفتونو نه حفاظت هم په دې کښې دې. تردې چه د شريعت ټول علمونه ددې نه راوتلى بناخونه دى.او دې طرف ته راجع دى.(٢)

**قوله**: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَارِزًا يَوْمًا لِلنَّاسِ:نبى کريم ﷺ يوه ورځ د خلقو په وړاندې ښکاره ( مخامخ) تشريف فرما وو.
په شروع کښې به داسې کيدل،چه نبى کريم ﷺ به دعبديت د غلبې او د تواضع د تعليم دپاره صحابه کرامو رضي الله عنهم سره يوشان يوځائې کيناستلو.تردې چه نوى راتلونکو ته به د نبى کريم ﷺ په پيژندلو کښې مشقت وو.او تپوس به ئې کولو.نو صحابه کرامو درخواست اوکړو. چه اې د الله رسوله ﷺ ! تاسو دپاره ولې يو ښکاره جدا ځائې جوړ نکړو.چه په دې باندې تاسو تشريف فرما يئ.نو راتلونکو خلقو ته به تکليف نه وى.نبى کريم ﷺ دا منظور کړله.حضرات صحابه کرامو د نبى کريم ﷺ دپاره د خاورو يوه ډبه (موړه) جوړه کړله.په دې باندې به دوى ﷺ کيناستل.او حضرات صحابه کرام رضي الله عنهم به ددوى دواړو اړخو ته کيناستل.(٣)

---

١) الكاشف عن حقائق السنن المعروف بشرح الطيبى(١١٠١١، ١١١)
٢) فتح البارى(١٢٥١١)
٣) د سنن ابى داوُد (كتاب السنة باب فى القدر.رقم ٤٦٩٨) په روايت کښې دى.((كان رسول الله ﷺ يجلس بين ظهرى أصحابه فيجئ الغريب فلا يدرى أيهم هو حتى يسأل فطلبنا إلى رسول الله ﷺ أن نجعل له مجلساً يعرفه الغريب إذا أتاه قال فبنينا له دكاناً من طين. فجلس عليه وكنا نجلس بجنبتيه . دغه شان اوګورئ سنن نسائى (٢٦٥١٢) كتاب الإيمان وشرائعه باب صفة الإيمان والإسلام)

علامه قرطبي رحمه الله ددې نه دا حکم مستنبط کړې دې. که ضرورت وي نو عالم ته په اوچت ځائې باندې کيناستل پکار دی.(١) نبی کريم ﷺ د عبديت غالب کيدو باوجود. دا خبره قبوله کړله او په دې ښکاره او اوچت ځائې کيناستلو نو معلومه شوه چه د ضرورت په موقعه کښې دا بالکل صحيح ده.

**قوله فَأَتَاهُ رَجلٌ**: نو يو سړې نبی کريم ﷺ ته راغې.

په دې روايت کښې د ،،رجل،، هيڅ صفت ذکر نه دې حالانکه د نسائي په روايت کښې «إنا لجلوس و رسوله ﷺ في مجلسه، إذ أقبل رجل أحسن الناس وجهاً، و أطيب الناس ريحاً، كأن ثيابه لم يمسها دنس»(٢) وارد شوې دې.

په صحيح مسلم کښې د حضرت عمر رضی الله عنه د روايت الفاظ دی «بينما نحن ذات يوم عند رسول الله ﷺ، إذ طلع علينا رجل شديد بياض الثياب شديد سواد الشعر»(٣)

دابن حبان رحمه الله په روايت کښې دی «شديد سواد اللحية، لا يرى عليه أثر السفر، ولا يعرفه منا أحد، حتى جلس إلى النبي ﷺ، وأسند ركبتيه إلى ركبتيه ووضع كفيه على فخذيه»(٤)

د سليمان تيمی په روايت کښې دی «ليس عليه سحناء سفر، وليس من البلد، فتخطى حتى برك بين يدي النبي ﷺ كما يجلس أحدنا في الصلاة، ثم وضع يده على ركبتي النبي ﷺ»(٥)

ددې ،،رجل،، نه مراد حضرت جبرئيل عليه السلام دې. دې د انسان په شکل کښې راغلې وو. په دې وجه راوی د اول حال اعتبار کړې دې. او ،،رجل،، سره ئې تعبير کړې دې.

**د طلب علم اداب**: د روايت ددې مختلفو الفاظو نه د طلب علم بعضې آداب معلوميږی: ① يو ادب دا معلوم شو. چه د ځوانئ په زمانه کښې علم حاصلول پکار دی. ځکه چه دغه وخت د انسان قوت پوره په زور کښې وی. ددې مطلب دا نه دې چه سړې دې په ماشوم توب کښې علم نه حاصلوی. بلکه مطلب دا دې چه اصل کښې داسې زمانه کښې علم حاصلول پکار دی. کله چه په انسان کښې قوت مدرکه عاقله پوره محفوظ وی. دا زمانه د علم د طلب دپاره ډيره مناسب او موزون ده. او د ماشوم والی زمانه ددې علم حاصلولو په قواعدو کښې تيرکړې شی. لکه تعليم د قراءت، او کتابت، او د قرآن کريم د حفظ او ناظرې تعليم.

---

(١) فتح الباری (١١٦/١) وعمدة القاری (٢٨٤/١)

(٢) سنن النسائی (٢٦٥/٢) کتاب الإيمان وشرائعه باب صفة الإيمان والإسلام)

(٣) صحيح مسلم (٢٧/١) کتاب الإيمان)

(٤) حکاه الحافظ فی الفتح (١١٦/١) والعينی فی العمدة.(٢٨٤/١) ولم أجده فی الإحسان بهذا اللفظ وإنما فيه إذ جاء رجل شديد سواد اللحية شديدبياض الثياب فوضع ركبته على ركبة النبی ﷺ ..أنظر(٣٣٦/١) رقم ١٦٨)

(٥) انظرفتح الباری(١١٦/١) وعمدة القاری(٢٨٤/١)

② دويم ادب دا معلوم شو چه طالب علم له صفائى اختيارول پكار دى ،،أطيب الناس ريحاً، كأن ثيابه لم يمسها دنس،، نه هم دا خبره معلوميږى خو د صفائى مطلب دا نه دې چه جامه قيمتى وى بلكه ارزانه او معمولى جامه هم صفا كيدې شى كه دا د خيرن والى نه محفوظ اوساتلې شى ③ دريم ادب دا معلوم شو چه طالب علم په داسې طريقه كينى چه د استاذ خبره په ښه غور سره واورى او پوهه شى ،،وأسند ركبتيه إلى ركبتيه ووضع كفيه على فخذيه،، نه دا ادب معلوميږى

د ،،فخذيه،، ضمير كوم طرف ته راجع دې؟ بيا د ،،فخذيه،، د ضمير په باره كښې دوه احتماله دى ① يو دا چه دا ضمير پخپله ،،رجل،، يعنى جبرئيل ﷺ طرف ته راگرځى ② او دويم احتمال دا دې چه نبى كريم ﷺ طرف ته راوګرځى

امام نووى او علام توربشتى رحمهما الله راجح هم دا ګرځولې دې چه دا ضمير پخپله حضرت جبرئيل ﷺ طرف ته راګرځى ځكه چه ددې نه وړاندې د ،،كفيه،، ضمير هم حضرت جبرئيل ﷺ طرف ته راګرځى او د ادب تقاضه هم دا ده چه لاسونه پخپلو كنډو باندې كيخودې شى داسې نه چه د نبى كريم ﷺ په كونډو باندې كيخودې شى.[1]

او د امام بغوى، اسماعيل تيمى، او علامه طيبى ﷺ وغيره رجحان دې طرف ته دې چه دا ضمير نبى كريم ﷺ طرف ته راګرځى ځكه چه د سليمان تيمى په روايت كښې تصريح ده چه ،،ثم وضع يديه على ركبتي النبي ﷺ،،[2]

ددې روايت نه خو دا مسئله ښكاره كيږى چه ضمير نبى كريم ﷺ طرف ته راګرځى البته دا اشكال كيږى چه په ظاهره دا صورت د ادب خلاف معلوميږى؟

ددې اشكال د ختمولو ① يو صورت دا دې چه په دې روايت كښې د يو راوى تصرف اومنلې شى او اووئيلې شى چه د ،،ركبتيه،، وئيلو په ځائې كوم يو راوى د خپلې پوهې مطابق ،،ركبتي النبي ﷺ،، وئيلې وى په دې صورت كښې به ضمير حضرت جبرئيل طرف ته ګرځول متعين وى او د خلاف ادب كيدو اشكال به نه كيږى

② دويم صورت دا دې چه ضمير خو نبى كريم ﷺ طرف ته راګرځى لكه څنګه چه مذكوره روايت كښې تصريح اوشوه البته تركومې پورې چه د خلاف ادب كيدو تعلق دې نو بعضو عالمانو فرمائيلى دى چه اصل كښې طالب علم دپاره ضرورى ده چه هغه استاذ طرف ته پوره متوجه وى او دا صورت په مكمل توجه باندې دلالت كوى.[3]

دا توجيه زړه ته ډيره ښه نه لګى ددې نه غوره توجيه هغه ده كومه چه د بعضو عالمانو ده.

---

[1] فتح البارى(١١٦/١) وعمدة القارى(٢٨٧/١) وشرح الطيبى(٩٥/١)
[2] فتح البارى(١١٦/١) وعمدة القارى(٢٨٧/١) دغه شان اوګوره شرح طيبى(٩٥/١)
[3] فتح البارى(١١٦/١)-

چه دې راتلونکي د ، ،تعمیه، ، نه کار اخستې وي.یعنی هغه دا غوښتل.چه دده حال بالکل مستور (پرده کښې) پاتې شي.چاته هیڅ پته اونه لګی. خلق اوګڼری.چه څوك عامی او باندیچی سړې دې.چه دې د ادابو نه بالکل ناخبره دې.په دې غرض سره دا سړې د خلقو په څټونو (او اوګو) باندې راواوختو.او د نبی کریم ﷺ مخې ته کیناستو.(۱)او په دې وجه دوی خپل لاسونه د نبی کریم ﷺ په کونډو باندې کیخودل.یا دا اوونیلې شی.چه د زیات احتیاج ښکاره کولو دپاره، اوددوی توجیه مکمل طور باندې خپل طرف ته راګرځولو دپاره دوی داسې اوکړل. والله اعلم.

**د حضرت جبرئیل ؑ راتلل کله شوی وو؟** د حضرت جبرئیل ؑ د انسان په شکل دا راتلل کله شوی وو؟ په دې سلسله کښې د ابن منده په روایت کښې دی.((أن رجلاً فی آخر عمر النبی ﷺ جاء إلی رسول الله ﷺ......))(۲)ددې روایت نه معلومه شوه.چه د نبی کریم ﷺ دا راتلل د نبی کریم ﷺ په آخری عمر کښې شوی وو.

د امام ابوحاتم ابن حبان بستی ﷫ رائې داده.چه دا قصه د حجة الوداع نه وړاندې راپیښه شوې وه.(۳)هم دا د علامه توربشتی ﷫ رائې هم ده.(۴)

او د حافظ ابن حجر ﷫ رجحان دې طرف ته دې.چه دا واقعه د حجة الوداع نه پس راپیښه شوې ده.ځکه چه هم دا((آخر عمر النبی ﷺ)) دې.حضرت جبرئیل ؑ په آخر عمرکښې ددې ټولو احکامو،مسائلو او د معتقداتو د خلاصې بیانولو دپاره تشریف راوړلې وو.چه دا په متفرق طور باندې درې ویشتو کالوکښې نازل کړې شوی وو.ګویا چه د حجة الوداع نه پس،چه نبی کریم ﷺ درې میاشتې هم نه وو پاتې شوې.د شریعت د استقرار نه پس ددې خلاصه او نچوړ د حضرت جبرئیل ؑ سوالونه او د نبی کریم ﷺ جوابونه د صحابه کرامو ﷡ په وړاندې راوستل مقصود وو.(۵)

**قوله: فَقَالَ مَا الإِیمَانُ؟**: ده تپوس اوکړو.چه ایمان څه څیز دې؟

**د سلام نه کولو اشکال او د هغې جواب:** دلته اشکال کیږی.چه جبریل امین د کلام نه وړاندې سلام ولې اونکړو؟ دا خو د اسلامی آدابو خلاف دې؟

ددې ① جواب دا ورکړې شوې دې.چه جبریل امین د حال د اخفاء په غرض سره دا صورت

---

۱) عمدة القاری(۲۸۷/۱)

۲) فتح الباری(۱۱۹/۱) وعمدة القاری(۲۹۲/۱، ۲۹۳)

۳) هغوی دحضرت جبرئیل ؑ د راتلو ددې واقعه ذکرکولونه پس فرمائی.((ثم إن النبی ﷺ أراد أن یحج حجة الوداع )) اوګورئ: الثقات لابن حبان(۱۲۳/۲، ۱۲۴)

۴) فقال هذه الأسئلة والأجوبة صدرت قبیل حجة الوداع فی السنة العاشرة من الهجرة، قریب انقطاع الوحی و إستقرار الشرع.أنظرشرح الطیبی(۱۱/۱)_

۵) فتح الباری(۱۱۹/۱)_

اختيار كړې وو. (١) ② دويم جواب دا ورکړې شوې دې چه جبريل په دې وجه سلام اونکړو چه معلومه شي چه سلام واجب نه دې. (٢)
خو دا دواړه جوابونه ضعيف دی خکه چه په نورو رواياتو کښې تصريح شته چه حضرت جبريل ﷺ سلام کړې وو. لکه د نسائي روايت دې «حتى سلم في طرف البساط، فقال: السلام عليك يا محمد فرد عليه السلام....» (٣) دغه شان د ابو داؤد په روايت کښې دی «حتى سلم من طرف البساط فقال: السلام عليك يا محمد، قال: فرد عليه النبي ﷺ» (٤)
په مسند امام اعظم کښې د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په روايت کښې دی «إذ أقبل شاب جميل أبيض حسن اللمة، طيب الريح، عليه ثياب بيض، فقال: السلام عليك يا رسول الله، السلام عليكم، قال: فرد عليه رسول الله ﷺ و رددنا معه» (١)
دغه شان د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په روايت کښې هم دی «جاء جبريل إلى النبي ﷺ في صورة شاب عليه ثياب بياض، فقال: السلام عليك يا رسول الله.......» (٢)
ددې نصوصو نه معلومه شوه چه جبريل امين سلام کړې وو. خو ددې نه بعضو راويانو سکوت کړې دې. علامه عيني رحمه الله فرمائی «وطريق التوفيق أن رواية من قال: سلم، مقدمة على من سكت» (٣)
**په طريقه د خطاب کښې تعارض او ددې ازاله:** دلته تاسو گورئ چه د نسائي او ابوداؤد په روايت کښې د «السلام عليك يا محمد» الفاظ دی. حالانکه په مسند امام اعظم کښې د حضرت عبدالله بن عمر او حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنهم دواړو حضراتو په رواياتو کښې د «السلام عليك يا رسول الله» الفاظ دی. اوس په دې کښې تعارض شو.
ددې جواب دا دې چه ممکن ده جبريل امين دواړه قسمه جملې استعمال کړې وی. وړاندې ئې «السلام عليك يا محمد» وئيلې وی. او ددې نه مقصود هم دا تعميه او د حال د اخفاء (پټولو) کوشش دې چه دوی داسې طرز اختيار کړو. لکه څنګه چه د عامو کلو خلق کوی. بيا ئې روستو «السلام عليك يا رسول الله» وئيلې وی. (٤) والله اعلم.
**د خطاب د طريقې اشکال او ددې جواب:** دلته که د ،،السلام عليك يا محمد،، الفاظ ثابت اومنلې شي. نو يو اشکال دا کيږی چه په قرآن کريم کښې نبی کريم ﷺ سره د عامو خلقو پشان د

---

(١) فتح الباري (١١٧/١) وعمدة القاري (٢٩٢/١)_
(٢) المصادر السابقة)
(٣) سنن نسائي (٢٦٥/٢) كتاب الإيمان وشرائعه باب صفة الإيمان والإسلام)_
(٤) سنن أبي داود كتاب السنة باب في القدر رقم ٤٦٩٨)-

خطاب كولو نه منع كړې شوې ده.د الله تعالى ارشاد دې. ﴿لَا تَجْعَلُوا دُعَاءَ الرَّسُولِ بَيْنَكُمْ كَدُعَاءِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا﴾ (٥)بيا حضرت جبريل عليه السلام په ،،يا محمد،، ونيلو سره څنګه خطاب اوکړو؟

① ددې جواب بعضو حضراتو دا ورکړې دې.چه ممکن ده.دا د ممانعت نه د وړاندې واقعه وی. (٦)

خو دا جواب صحيح نه دې.ځکه چه وړاندې هم د ابن منده په حواله سره روايت ذکر کړې شوې دې.چه دا واقعه د نبى کريم ﷺ په آخرى عمر کښې راپيښه شوې وه.ښکاره ده.چه دا آيت ددې نه وړاندې نازل شوې وو.البته د بعضو صحابهٔ کرامو نه چه کوم داسې قسمه خطاب منقول دې.هغه د ممانعت نه په وړاندې باندې محمول دې.يا د ممانعت د علم نه کېدو په وجه دې.(٧)

② دويم جواب دا ورکړې شوې دې.چه دا ممانعت ددوى دې امت سره مخصوص دې.ځکه چه په آيت کريمه کښې خطاب سړوته دې.فرښتو ته نه دې.او حضرت جبريل عليه السلام نه صرف مقرب ترينه فرښته ده.بلکه ،،معلمه فرښته،، هم ده.(٨)

③ دريم جواب دا ورکړې شوې دې.چه دلته علم مقصود نه دې.بلکه وصفى معنى مراد ده. چونکه دمکې مکرمې مشرکانو به نبى کريم ﷺ ته دضد او عناد اوعداوت په وجه ،،مذمم،، وئيلو.په دې وجه جبريل امين د هغوى د ترديد دپاره د وصفى معنى په لحاظ سره د تعريف په طور ،،يا محمد،، اووئيل. ددې مطلب دا دې.چه هغه ذات کوم چه د ښائسته صفاتو او د هرقسمه قابل تعريف او د حميده خصلتونو او صفاتو جامع دې.(٩)

خو دا دواړه جوابونه هم د تکلف نه خالى نه دی.ځکه چه اګرچه په آيت کريمه کښې خطاب انسانانو ته دې.او فرښتې ددې مکلف نه دی.خو په دې وخت حضرت جبريل عليه السلام په انسانى شکل کښې راغلې وو.ټولو صحابهٔ کرامو ترديد چه نبى کريم ﷺ پورې ټولو انسانو ده لره انسان ګڼړلو.په داسې موقعه باندې خطاب د عدم احترام موهوم ضرور دې.

دغه شان د معنى وصفى لحاظ او اعتبار متبادر الى الذهن (او خلاف عقل) نه دې. خصوصاً چه دا واقعه هم د آخرى عمر ده.او دنبى کريم ﷺ نوم مبارک په اوچت آواز سره د

---

(١) مسند الإمام الأعظم (ص.٤) فاتحة كتاب الإيمان والإسلام والقدر والشفاعة)_

(٢) مسند الإمام الأعظم (ص.٥)_

(٣) عمدة القارى(١١/٢٩٢) وكذالک قاله ابن حجر فى فتح البارى(١١/١١٧)_

(٤) المصادرالسابقة وكذا مرقاة المفاتيح (١/٥١) والتعليق الصبيح(١/١٥)_

(٥) سورة النور:٦٣)_

(٦) مرقاة المفاتيح (١/٥١)_

(٧) مرقاة (١/٥١) وإمداد البارى(١٤/٧٢٩)_

(٨) مرقاة المفاتيح (١/٥١) والتعليق الصبيح (١/١٥) وإمدد البارى(١٤/٧٢٩)_

(٩) المصادرالسابقة)_

اخستلو واقعه د اسلام د ابتداء ده.
نو صحيح جواب هم دا معلومېږي.چه جبرئيلﷺ د تعميه په طور باندې د حال د اخفاء په غرض سره داسې كړى وو.څكه چه ټولو ته پته ده.چه داسې قسمه خطاب انبېره(او جټ) د كلو خلق كوي.(١)

**د سوالونو مختلف ترتيب او ددې حكمت**:په دې روايت كښې رومبې د ،،ايمان،، په باره كښې سوال دې.بيا د ،،اسلام،، په باره كښې او په آخر كښې د ،،احسان،، په باره كښې دې.
دمسلم شريف په يو روايت كښې بعينه هم دا ترتيب دې.حالانكه د مسلم په يو روايت كښې كوم چه د حضرت ابوهريرهؓ نه نقل دې.هغې كښې وړاندې د اسلام بيا د ايمان او بيا د احسان متعلق سوال مذكور دې.هم دا ترتيب د حضرت عمرؓ په روايت كښې هم دې.
كه سائل وړاندې د ايمان متعلق سوال كړې وى.بيا خو د ترتيب وجه دا ده.چه ايمان اصل دې.او ،،اسلام،،د ايمان مظهر دې.او په آخر كښې د ،، احسان،، نمبر دې.څكه چه ددې د دواړو سره تعلق دې.(٢)

علامه طيبى رحمه الله د حضرت عمرؓ د حديث شرح كولو كښې، ددې ترتيب ( اسلام،ايمان، احسان) وړاندې ايخودې دې.او دا تقرير ئې فرمائيلې دې.چه چونكه په ايمان يعنى تصديق باندې د اسلام بنياد وى.او د ايمان نه بغير د اعمالو اعتبار نه وى.په دې حيثيت سره ايمان مقدم كول پكار وو.خو چونكه دا يو باطنى امر دې.او اسلام ظاهرى څيز دې.د دين د شعائرو اظهار هم په دې سره كيږي.په دې وجه ترتيب د ،،أهم فالأهم،، كيدل پكار دى.چه په دې كښې د ادنى نه اعلى طرف ته ترقى وى.نو وړاندې ئې د اسلام متعلق سوال اوكړو.څكه چه ددې تعلق ظاهرى عمل سره دې.او بيا ئې ترقى اوكړله.او د ايمان متعلق ئې سوال اوكړو.څكه چه ددې تعلق باطن سره دې.او بيا ئې نوره هم ترقى اوكړله.او د احسان متعلق ئې سوال اوكړو.(٣)

خو دا ټول نكات بعد الوقوع دى.او په ظاهره دا ترتيب د رواتو خپل تعبير دې.څكه چه د مطر الوراق په يو روايت كښې ترتيب د ،،اسلام، احسان،، او بيا د ،،ايمان،، هم دې.(٤) معلومه شوه.چه ترتيب واقعى به په دې كښې يو وى.خو دا تقديم او تاخير د رواتو تصرف دې.والله اعلم.

**قوله**: قَالَ الْإِيمَانُ أَنْ تُؤْمِنَ بِاللَّهِ:نبى كريمﷺ اوفرمائيل.،،ايمان،، دا دې.چه ته ايمان راوړې په الله باندې....

نبى كريمﷺ د ،،ما الايمان،، په جواب كښې،،الإيمان أن تؤمن بالله.....الخ،، فرمائيلى دى.

---

(١) المصادر السابقة)-
(٢) فتح البارى(١١٧/١) وعمدة القارى(٢٩٢/١)_
(٣) شرح الطيبى(٩٨/١)_
(٤) فتح البارى(١١٧/١) وعمدة القارى(٢٩٢/١)_

چونکه د ،،ما،، په ذريعه د څه څيز دحقيقت په باره کښې سوال کولې شي په دې وجه په ظاهر د ،،**ما الإيمان**،، په جواب کښې دومره ونيل کافي وو چه ،،**الإيمان هو التصديق**،، خو چونکه دا مجمع د عربو د خلقو وه او هغوی ته پته وه چه د ،،ايمان،، معنی تصديق ده په دې وجه د سائل مقصد صرف دومره نشي کيدې بلکه د سائل منشا دا وه چه د ايمان تعلق کومو څيزونو سره وی؟ په دې وجه نبی کريم ﷺ په جواب کښې هغه څيزونه بيان کړل کومو سره چه تصديق متعلق کيږي په دې روايت کښې چرته هم د ،،**ما الإيمان**،، په جواب کښې د اعمالو ذکرنشته په دې وجه ونيلې شي چه اعمال دايمان دحقيقت نه خارج دی.(۱) والله اعلم

**يو اشکال او د هغې جواب** دلته په ،،**الإيمان أن تؤمن بالله......**،، باندې اشکال کيږي چه د ،،ايمان،، تعريف کولې شي په ،،**أن تؤمن....**،، ونيلو سره ،،**أن**،، مصدريه دې نو اوس مطلب دا شو چه«**الإيمان هو الإيمان....**»اودا ،،تعريف الشئ بنفسه،، دې يا داسې اووايئ چه په دې کښې ،،**أخذ المحدود فى الحد**،، لازميږي او دا صحيح نه ده؟

ددې جواب دا دې چه ،،**الإيمان**،، کوم چه محدود دې ددې نه شرعی او اصطلاحی ايمان مراد دې او د ،،**أن تؤمن......**،، نه ايمان لغوی مراد دې يعنی «**الإيمان الشرعى الإصطلاحى أن تصدق......**»(۲) اوس به هيڅ اشکال نه وارديږي.

علامه طيبی رحمه الله ددې جواب دا ورکړې دې چه ،،**أن تؤمن**،، د ،،**أن تعترف**،، په معنی کښې دې څکه چه روستو په صله کښې باء راځی.(۳)

خو ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چه د ،،باء،، د راتلو په وجه ،،**تؤمن**،، د ،،**تعترف**،، په معنی کښې د اخستلو ضرورت نشته څکه چه د ،،**تؤمن**،، په صله کښې هم ،،**باء**،، استعماليږي لکه په قاموس کښې دی.«**آمن به إيماناً: أى صدقه**» البته که په ،،**تؤمن**،، کښې دننه د ،،**اعتراف**،، معنی تضمين اومنلې شی نو دا بهتره ده په دې صورت کښې به تقدير داوی «**أن تصدق معترفا......**»(۴) والله اعلم.

**قوله**: **وَمَلَائِكَتِهِ**: او ( ايمان راوړه) په فرښتو باندې

---

(۱) إمداد البارى(۱۴/۳۰۷)-

(۲) شرح الكرمانى(۱/۱۹۴) وقال الحافظ فى الفتح (۱/۱۱۷) والذى يظهرأنه إنما أعاد لفظ ،،الإيمان،، للإعتناء بشانه تفخيماً لأمره)_

(۳) شرح الطيبى(۱/۹۷، ۹۸)_

(۴) مرقاة المفاتيح(۱/۵۵)_

ملائکه د ،،ملك،، جمع ده.فرښتو ته وائى.

د ،،ملك،،يا ،،فرښتې،، تعريف د ،،بدء الوحى،، د دويم حديث لاندې مونږ ذکرکړې دې.(١) چه «الملائكة هم أجسام علوية لطيفة تتشكل أى شكل أرادوا.....»(٢)

فرښتې د الله تعالى يو مستقل مخلوق دې.چه دا دنور نه پيدا کړې شوى دى.دوى د الله تعالى نافرمانى نه کوى.او په کومو کارونو باندې چه الله تعالى دوى مقرر کړى دى.په هغې کښې لګيا وى.دوى د الله تعالى معزز بنده ګان دى.د الله تعالى د حکم د خلاف ورزى کولو څه معنى ده؟ کوم حکم چه دوى ته ورکولې شى.د هغې په کولو کښې ذره برابر سستى هم نه کوى.د ډير زيات معزز او مقرب کيدو باوجود ئې د ادب او اطاعت دا حال دې.چه ترکومې پورې د الله تعالى مرضى او اجازت اونه مونډې شى.د هغه په وړاندې پخپله شونډې نه خوزوى.او نه يو کار.د هغه د حکم نه بغير کولې شى.ګويا کمال عبوديت ددوى امتياز دې.(٣)

د فرښتو په باره کښې دا عقيده ساتل ضرورى دى.چه فرښتې موجود دى. د دوى تعداد د الله تعالى نه سوا بل هيڅ چاته معلوم نه دې.په دوى کښې چه دکومو فرښتو ذکر په قرآن کريم يا احاديثو کښې راغلې دې.په هغوى باندې تفصيلى او په باقى فرښتو باندې اجمالى طور باندې ايمان راوړل ضرورى دى.(٤)

په دې فرښتو کښې څلور فرښتې ډيرې زياتې مقربې او مشهورې دى.حضرت جبرئيل، حضرت ميکائيل، حضرت اسرافيل او حضرت عزرائيل عليهم السلام (٥)

**قوله**: وَكُتُبِهِ: او (ايمان راوړه) د هغه په کتابونو باندې.

دلته د (وَكُتُبِهِ) لفظ زمونږ په نسخو کښې موجود نه دې.صرف د اصيلى په نسخه کښې دې. حالانکه په کتاب التفسير کښې دا لفظ په اتفاق د ټولو رواتو مذکور دې.(٦)

د الله تعالى په کتابونو باندې د ايمان راوړو مطلب دا دې.چه ددې خبرې تصديق اوکړې شى. چه دا د الله تعالى کلام دې.او دا چه څه الله تعالى فرمائيلى دى.هغه بالکل په حقه دى.(٧)

الله تعالى پخپلو نبيانو او رسولانو باندې واړه او غټ ډير کتابونه نازل کړى دى.په هغې

---

(١) کشف البارى(٣٠٩١١)_

(٢) فتح البارى(٢١١١)_

(٣) إمدد البارى(٧٣١١١)_

(٤) مرقاة المفاتيح (٥٦١١١)_

(٥) المصدر السابق)-

(٦) فتح البارى(١١٧١١)-

(٧) فتح البارى(١١٧١١، ١١٨)_

كبنې ورو كتابونو ته ،،صحيفې،، وائي او لويو كتابونو ته ،،كتاب،، وائي.(١)
ا كتابونه او صحيفې څومره دى؟ په دې باره كښې هيڅ صحيح روايت ثابت نه دې. البته ابن حبان رحمه الله پخپل ،،صحيح،، (٢) كښې، او ابونعيم رحمه الله په ،،حلية الاولياء،، (٣) كښې، د حضرت ابو ذر رضي الله عنه نه يو اوږد روايت نقل كړې دې. په هغې كښې دى ((يا رسول الله، كم كتاباً أنزله؟ قال مائة كتاب وأربعة كتب، أنزل على شيث خمسون صحيفة، وأنزل على أخنوخ ثلاثون صحيفة، وأنزل على إبراهيم عشر صحائف، و أنزل على موسى قبل التوراة عشر صحائف، و أنزل التوراة، والإنجيل، والزبور، والفرقان))(٤)
ددې نه معلوميږي چه د كتابونو تعداد يو سل او څلور[١٠٤] دې. دا روايت اګرچه ابن حبان پخپل ،،صحيح،، كښې ذكر كړې دې. خو په دې كښې يو راوى ،،ابراهيم بن هشام بن يحي بن يحي الغساني،، دې. چه ده لره ابن حبان اګرچه ثقه ګرځولې دې.(٥) خو د جمهورو په نيز دې قابل اعتماد نه دې.(٦)
نو صحيح دا ده. چه په كتابونو باندې د ايمان راوړلو په سلسله كښې هيڅ يو تعداد ملحوظ او نه ساتلې شي. بلكه د كومو كتابونو په باره كښې چه قطعي طور باندې علم دې. هغې باندې تفصيلاً، يعني نوم په نوم، او د كومو په باره كښې چه علم نشته. هغې باندې اجمالاً ايمان راوړل كافي دى.(٧)

**قوله: وَبِلِقَائِهِ:** او (ايمان راوړه) هغه سره ملاويد باندې.
دا لفظ دلته كښې د ،،كتب،، او ،،رسل،، په مينځ كښې واقع دې. هم دا صورت په مسلم كښې هم دې. حالانكه په باقى هيڅ يو روايت كښې دا لفظ موجود نه دې.(٨)

---

(١) إمداد البارى(٧٣٢/٤)_
(٢) مواردالظمآن إلى زوائد ابن حبان (ص،٥٢، ٥٤) كتاب العلم باب السوال للفائدة)-
(٣) حلية الأولياء (١٦٦/١ - ١٦٨) ترجمة سيدنا أبى ذرالغفارى رضي الله عنه_
(٤) وقال على القارى فى المرقاة (٥٧/١) قيل الكتب المنزلة مائة وأربعة كتب : منها عشر صحائف نزلت على آدم وخمسون على شيث وثلاثون على إدريس وعشر على إبراهيم والأربعة السابقة..)_
(٥) كتاب الثقات (٧٩/٨) وقال الطبرانى (لم يرو هذا عن يحى إلا ولده وهم ثقات أنظر ميزان الإعتدال (٧٣/١) ولسان الميزان (١٢٢/١)_
(٦) ابوحاتم رحمه الله فرمائى.((أظنه لم يطلب العلم وهو كذاب. على بن الحسين بن الجنيد فرمائى.((ينبغى أن لا يحدث عنه .. امام ابوزرعه رحمه الله فرمائى.((كذاب)) ميزان الإعتدال(٧٣/١) ابوالطاهرمقدسى رحمه الله فرمائى. ((دمشقى ضعيف)) دغه شان حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.((إن إبراهيم هذا متروک )) لسان الميزان (١٢٣/١)
(٧) مرقاة المفاتيح (٥٧/١)_
(٨) فتح البارى (١١٨/١)-

بعضې حضرات فرمائي چه دا لفظ زائد او مکرر دې.ځکه چه ددې مفهوم په ،، ايمان بالبعث،،کښې داخل دې.کوم چه روستو راروان دې.

حافظ رحمه الله فرمائي.حقه خبره دا ده.چه دا تکرار ګرځول پکار نه دی.[1]د دواړو په مفهوم کښې د فرق کولو دپاره بعضې حضراتو اوفرمائيل.چه د ،،بعث،، نه مراد،،قيام من القبور،،دې.يعنې د قبرونو نه ژوندې پاسيدل.حالانکه ،،لقاء،، د ،،بعث،، نه روستو د حساب کتاب مرحلې ته وائي.[2]

بعضې نور حضرات فرمائي.چه د ،،لقاء،، نه مراد ،،الانتقال من دار الدنيا،، يعنې مرګ دې.او د ،،بعث،، مرحله ددې نه روستو ده.[3]ددې قول تائيد د مطر الوراق روايت نه هم کيږي.په هغې کښې دي.((وبالموت وبالبعث بعد الموت))[4]

بيا امام خطابي رحمه الله د ،،لقاء،، معنی د الله تعالی د رؤيت کړې ده.[5]

حالانکه امام نووي رحمه الله په دې باندې ګرفت کړې دې.چه د ،،لقاء،، تفسير ،،رؤيت،، سره کول، ځکه صحيح نه دی.چه يو سړې قطعي طور باندې دا نشي وئيلې.چه ده ته به د الله تعالی رؤيت حاصليږي.ځکه چه د الله تعالی د رؤيت نه مشرف کيدو دپاره ايمان باندې خاتمه کيدل ضروري دی.او هيڅ يو سړی قطعي طور باندې نشي وئيلې.چه دده خاتمه به ضرور په ايمان باندې کيږي.نو دا د ايمان د شرط ګرځول، څنګه صحيح کيدې شي. [6]

خو په ظاهره دامام نووي رحمه الله خبره صحيح نه معلوميږي.ځکه چه د ،، لقاء،، معنی چه ،،رؤيت،، کړې شوې ده.ددې دا مطلب نه دې.چه هر سړې په دې باندې ايمان راوړی.چه ده ته يا يو خاص سړی ته به ،،رؤيت،، حاصليږي.بلکه ددې مطلب دا دې.چه دا سړې په دې خبره باندې ايمان راوړلو باندې مکلف دې.چه په آخرت کښې د ايمان خاوندانو ته رؤيت حاصليږي.دا هم دغه شان ده.لکه څنګه چه هر سړې په جنت او دوزخ باندې ايمان راوړلو باندې مکلف جوړولې شي.حالانکه د هر سړی جنت يا دوزخ ته تلل لازمي نه دی.نو د لقاء تفسير ،،رؤيت،، سره کول، او دا معنی اخستل بالکل صحيح دی.چه ،،د الله تعالی رؤيت حق دې.چه دا به په آخرت کښې مؤمنانو ته حاصليږي،،والله اعلم.

---

[1] المصدرالسابق)-
[2] شرح النووی علی صحيح مسلم (٢٩١١) کتاب الإيمان)_
[3] المصدرالسابق)-
[4] فتح الباری(١١٨١١)_
[5] دوی فرمائي.وقوله: (أن تؤمن بلقائه فيه إثبات رؤية الله عزوجل فی الآخرة أعلام الحديث (١٨٢١١)
[6] شرح النووی علی صحيح مسلم (٢٩١١)-

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی. ((لا دخل لقطعه لنفسه، بل اللازم أن يعلم بأنه حق في نفس الأمر))[1] يعنى په دې روايت باندې قطعيت سره د رؤيت حكم لګول مقصود نه دې. بلكه دا مقصود دې. چه د رؤيت په نفس الامر كښې حق كيدو باندې ايمان راوړلې شى. هم دا علامه عينى او حافظ ابن حجر رحمهما الله اختيار كړې دې.[2] بلكه حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى. ((وهذا من الأدلة القوية لأهل السنة في إثبات رؤية الله تعالى في الآخرة، إذ جعلت من قواعد الإيمان))[3]
حاصل دا دې. چه د. الله تعالى په لقاء باندې ايمان راوړل ضرورى دى. او ددې مطلب دا دې. چه د الله تعالى د رؤيت تصديق اوكړى. او ددې خبرې اعتقاد ساتى. اودا منى. چه په آخرت كښې به د الله تعالى ديدار بنده ګانو ته د الله تعالى ديدار حاصليږى. والله اعلم.
**د الله تعالى د رؤيت مسئله** د رؤيت مسئلې په باره كښې اهل السنة والجماعة په دې خبره متفق دى. چه په دنيا كښې د الله تعالى رؤيت ممكن دې. خو نه واقع كيږى. او په آخرت كښې د الله تعالى رؤيت ممكن هم دې. او د الله تعالى مخصوص بنده ګانو ته به حاصليږى هم. حالانكه د معتزله، خوارجو، او په مرجئه كښې د بعضو خلقو دا وينا ده. چه د الله تعالى رؤيت په دنيا او آخرت هر ځائې كښې نا ممكن او محال دې.[4]
امام نووى رحمه الله فرمائى. ((وهذا الذى قالوه خطأ صريح، وجهل قبيح، وقد تظاهرت أدلة الكتاب، والسنة، وإجماع الصحابة فمن بعدهم من سلف الأمة على إثبات رؤية الله تعالى في الآخرة للمؤمنين، ورواها نحو من عشرين صحابيا عن رسول الله ﷺ وآيات القرآن فيها مشهورة))[5]
د رؤيت د مثبتينو دليلونه هغه حديثونه دى. كوم چه د نبى كريم ﷺ نه نقل كولې شى. امام دارقطنى رحمه الله په ،،كتاب الرؤية،، كښې د امام يحي بن معين نه نقل كړى دى. ((عندى سبعة عشر حديثا في الرؤية صحاح))[6]
امام دارقطنى رحمه الله ،،رؤيت،، سره متعلق د حديث طرق جمع كړى دى. چه د هغې تعداد د شلو نه زيات دې.[7]
حكيم ترمذى رحمه الله په دې سلسله كښې يوه رساله ليكلې ده. او يوويشت روايتونه ئې راجمع

---

[1] شرح الكرمانى(١٩٤\١)_
[2] عمدة القارى(٢٨٨\١) وفتح البارى(١١٨\١)_
[3] فتح البارى(١١٨\١)_
[4] شرح النووى على صحيح مسلم (٩٩\١) كتاب الإيمان باب إثبات رؤية المؤمنين فى الآخرة ربهم سبحانه وتعالى)_
[5] المصدر السابق)_
[6] فتح البارى(٤٣٤\١٣) كتاب التوحيد باب قول الله تعالى:( وجوه يومئذ ناضرة إلى ربها ناظرة)_
[7] المصدر السابق)-

كړي دي.ابن جرير طبري رحمه الله درې ويشت روايتونه ذكركړي دي.علامه قاسم بن قطلوبغا رحمه الله دحكيم ترمذي رحمه الله په رواياتو باندې د اووه رواياتو اضافه كړې ده.دغه شان ټول اته ويشت روايتونه شو.حافظ ابن القيم رحمه الله په ،،حادي الارواح الى بلاد الافراح،، كښې د رويت د احاديثو تعداد ديرشو ته رسولې دې.(۱)

ددې نه علاوه د اهل السنة والجماعة استدلال په آيت كريمه ﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ﴾(۲) باندې دې.

د،،نظر،،لفظ مشترك طور باندې د،،رويت،تفكر،انتظار،شفقت او مهربانۍ،، په معانيو كښې استعماليږي.(۳)په دې څلور معانيوكښې رومبۍ معنى مراد ده.

دلته ،،نظر،، د ،،تفكر،، په معنى كښې نشي كيدې.ځكه چه اول خو دلته د ،،تفكر او اعتبار،، مقام نه دې.دويمه دا كه چرې د ،،تفكر،، په معنى كښې شي.نو عام طور باندې د ،،فى،، په صله سره راځي.(۴) حالانكه دلته د ،،الى،، په صله سره ده.

،،نظر،په معنى د،،انتظار،،هم دلته صحيح نه دې.ځكه چه دلته د ،،امتنان،، اظهار دې.او د ،،نضارت،،(تر وتازګۍ) خوشخبرى وركولې شى.په مقام د بشارت كښې د انتظار څه مناسبت دې.په دې كښې خو نوره هم سختى ده.،،الانتظار أشد من القتل،، بيا ،،نظر،، په معنى د ،،انتظار،،د ،،الى،، په صلة سره نه استعماليږي.بلكه د صلة نه بغير متعدى بنفسه وى.لكه وئيلې شى.چه ،،نظرت فلاناً،،،أى انتظرته،،(۵)

دغه شان دلته د ،،شفقت او رافت (مهربانۍ)،، په معنى كښې هم نشى كيدې.ځكه چه بنده په الله باندې شفقت نشى كولې.او ددې په صله كښې هم عام طور باندې ،،لام،، استعماليږي.لكه وائى.،،نظرله،،،أى رثى له وأعانه،،(۶)

هركله چه درې واړه معانې منتفى شوې.نو د ،،رويت،، معنى متعين شوه.(۷)

دغه شان د الله تعالى ارشاد ﴿ فَمَن كَانَ يَرْجُو لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا ﴾ (۸)هم د رويت دليل دې.

---

۱) فتح البارى(۱۳\۴۳۴)_
۲) سورة القيامة (۲۲\۲۳)_
۳) تاج العروس (۱۳\۵۷۳، ۵۷۴)_
۴) قال الزبيدى .. ونظرت فى كذا تاملته تاج العروس (۱۳\۵۷۳)_
۵) تاج العروس (۱۳\۵۷۳)_
۶) المصدرالسابق)-
۷) فتح البارى(۱۳\۴۲۵) كتاب التوحيد باب قول الله تعالى ﴿ وجوه يومئذ ناضرة..)_
۸) سورة الكهف: ۱۱۰)-

د الله تعالى په ارشاد ﴿ لِّلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَىٰ وَزِيَادَةٌ ﴾ [1] کښې د ,,زيادة،، تفسير د نبي کريم ﷺ نه په ,,رؤيت،، او ,,ديدار،، سره منقول دې.[2]

دغه شان حديث کښې ﴿ لَهُم مَّا يَشَاءُونَ فِيهَا وَلَدَيْنَا مَزِيدٌ ﴾ [3] د ,,مزيد،، تفسير په ,,رؤيت د باری تعالى سره منقول دې.[4]

د رؤيت مانعين آيت کريمه ﴿ لَّا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ..... ﴾ [5] د دليل په طور پيش کړې دې. خو مذکوره آيت د عدم رؤيت د دليل په طور باندې پيش کول بالکل صحيح نه دی. ځکه چه:

① په آيت کريمه کښې د ,,ادراك،، نفی کړې شوې ده.او,,ادراك،،صرف رؤيت ته نه وائی. بلکه ,,على سبيل الاحاطه،، رؤيت ته وائی.[6]نو دآيت مطلب دا دې.چه د الله تعالى رؤيت ,,على سبيل الاحاطه،، د هيڅ چا په اختيار کښې نه دې.تر کومې پورې چه د مطلق رؤيت تعلق دې.نو د هغې نفی نه ده.[7]

② په آيت مبارك کښې چه دکوم ,,ادراك،، نفی کړې شوې ده.هغه دنيوی ادراك دې.د آخرت د رؤيت نفی نه ده.[8]

③ حضرت شاه عبدالقادر صاحب رحمه الله فرمائی.ددې مطلب دا دې.چه په سترګه کښې دا قوت نشته.چه هغه اووينی.البته که هغه د لطف و کرم په طور خپل ځان چا ته خودل اوغواړی.نو په سترګو کښې به دغه شان قوت پيدا کړی.مثلاً آخرت کښې به د مراتبو موافق رؤيت وی.لکه څنګه چه د کتاب او سنت د نصوصو نه ثابته ده.[9]

④ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائيلی وو.,,رأى محمد ﷺ ربه،، په دې باندې د دوی شاګرد عکرمه اووئيل.((أليس الله يقول:﴿ لَّا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ ﴾ نوحضرت ا بن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل.((ويحك! ذاك إذا تجلى بنوره الذی هونوره)) [10]يعنی د نظرونو عدم ادراك به هغه وخت وی.کله چه الله ﷻ يو خاص نور سره تجلی اوفرمائی.

---

[1] يونس:۲۶)_
[2] صحيح مسلم (۱۰۰\۱) کتاب الإيمان باب إثبات رؤية المؤمنين فی الآخرة ربهم سبحانه وتعالى)_
[3] سورة ق:۳۵)_
[4] تفسير ابن کثير (۲۲۸\۴)_
[5] الأنعام:۱۰۳)_
[6] لاتدرکه الأبصار لا تحيط بحقيقته انظر مجمع بحار الأنوار(۱۶۹\۲)_
[7] تفسير عثمانی(۱۸۸) آيت ﴿لاتدرکه الأبصار﴾ وفتح الباری(۶۰۷\۸) کتاب التفسير سورة النجم)_
[8] فتح الباری(۴۲۶\۱۳) کتاب التوحيد باب قول الله تعالى:﴿ وجوه يومئذ ناضرة إلى ربها ناظرة)_
[9] تفسير عثمانی۱۸۸)_
[10] جامع الترمذی کتاب تفسير القرآن باب ومن سورة والنجم رقم ۳۲۷۹)-

معلومه شوه.چه د الله ﷻ تجليات متفاوت دى.بعض ،،قاهره للبصر،، دى.او بعضې داسې نه دى.

⑤ علامه قرطبى رحمه الله فرمائى.چه په ﴿لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ﴾ كښې د ،،ابصار،، نه د كافرانو ابصار مراد دى.د مؤمنانو ابصار مراد نه دى.څكه د مؤمنانو په باره كښې راغلى دى.چه ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ﴾ (١)او د كافرانو په باره كښې د الله ﷻ ارشاد دې. ﴿كَلَّا إِنَّهُمْ عَن رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوبُونَ﴾ (٢)

⑥ امام مالك رحمه الله فرمائى.چه د الله تعالى ذات باقى دې.او باقى پاتې كيدونكې دې. حالانكه په دې دنيا كښې انسان پخپله هم فانى دې.او دده سترګې هم فانى دى.نو په دې فانى دنيا كښې فانى سترګو سره د ،،باقى،، رؤيت نه كيږى.البته په آخرت كښې چه كله ،،باقى،، سترګې وركړې شى.نو د ،،باقى،، رؤيت،، به كيدې شى.(٣)

مانعينو د رؤيت د الله تعالى د ارشاد﴿لَن نُّؤْمِنَ لَكَ حَتَّىٰ نَرَى اللَّهَ جَهْرَةً..﴾(٤)نه هم استدلال كړې دې.لكه دوى وائى چه كله د موسى عليه السلام قوم د رؤيت سوال اوكړو.نو په دوى باندې ،،صاعقه،، نازل شوه.د رؤيت په سوال باندې صاعقه نازليدل، ددې خبرې دليل دې.چه رؤيت محال دې.د محال څيز سوال كول حرام دې.په دې وجه دوى باندې د صاعقه عذاب راغې.خو ددې نه استدلال كول هم صحيح نه دې.څكه چه مونږ دا نه منو.چه د نفس رؤيت په سوال باندې صاعقه نازل شوې وه.بلكه ددوى د ضد او عناد په وجه باندې نازل شوې وه.لكه چه په آيت كښې د ﴿لَن نُّؤْمِنَ لَكَ﴾ جمله ښكاره دلالت كوى.بيا نبى عليه السلام ته دا وئيل چه ﴿لَن نُّؤْمِنَ لَكَ﴾ پخپله بې ادبى ده.

كه مطلقاً د رؤيت په سوال باندې ،،صاعقه،، نازل شوې وې.نو په موسى عليه السلام باندې هم نازليدل پكار وو.څكه چه دوى هم د رؤيت سوال كړې وو.لكه څنګه چه قرآن كريم كښې الله تعالى ددوى قول بيان كړې دې. ﴿رَبِّ أَرِنِي أَنظُرْ إِلَيْكَ﴾ (٥) كله چه په حضرت موسى عليه السلام باندې صاعقه نازل نه شوه.نومعلومه شوه.چه د نفس رؤيت په سوال باندې صاعقه نه وه نازل شوې.

بيا د حضرت موسى عليه السلام په دې سوال ﴿رَبِّ أَرِنِي أَنظُرْ إِلَيْكَ﴾ او بيا د الله ﷻ په جواب ﴿قَالَ لَن تَرَانِي وَلَٰكِنِ انظُرْ إِلَى الْجَبَلِ فَإِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهُ فَسَوْفَ تَرَانِي﴾ كښې د الله تعالى د رؤيت د امكان دليل موجود دې.په دې طريقه چه حضرت موسى عليه السلام دالله تعالى نه درخواست كړې دې. ﴿رَبِّ أَرِنِي

---

(١) سورة القيامة:٢٢، ٢٣)_

(٢) سورة التطفيف :١٥ وفتح البارى(٦٠٧٨)كتاب التفسير،سورة النجم)_

(٣) الجامع لأحكام القرآن للقرطبى(٥٦١٧) سورة الأنعام)_

(٤) سورة البقرة:٥٥)_

(٥) سورة الأعراف:١٤٣.

﴿أَنظُرْ إِلَيْكَ﴾ ددې نه معلوميږي.چه روئيت د الله تعالى ممكن دې.ځكه چه د ناممكن او محال سوال كول حرام دى.او چونكه حضرات انبياءكرام معصوم وى.په دې وجه د هيڅ نبى نه د حرام صدور نشى كيدې.

بيا وروستو الله تعالى ﴿وَلَكِنِ انظُرْ إِلَى الْجَبَلِ فَإِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهُ فَسَوْفَ تَرَانِي﴾ فرمائيلى دى.په دې كښې ئې د الله تعالى روئيت د جبل استقرار سره معلق كړې دې. چونكه استقرار د جبل د ممكناتو څخه دې.او قاعده ده.چه كوم څيز په ممكن باندې معلق كيږى.هغه پخپله ممكن وى.نو معلومه شوه.چه روئيت د الله تعالى ممكن دې. (١)

تركومې پورې چه د الله تعالى د ارشاد ﴿لَن تَرَانِي﴾ تعلق دې.نو په دې كښې دا بيان نه دې شوې. چه ته ما كتلې هم نشې.بلكه دا وئيلى شوى دى.چه ته به ما اونه ګورې.

مانعينو د روئيت يو عقلى دليل دا هم پيش كړې دې.چه قاعده ده.چه په رائى اومرئى كښې يو خاص مخصوص قسم تقابل ضرورى دې.او چونكه الله تعالى سره تقابل نشى كيدې. ځكه چه الله ﷻ متمكن فى المكان او متحيز نه دې.په دې وجه روئيت محال دې.

خو دا استدلال هم صحيح نه دې.ځكه چه دا واجب په ممكن باندې قياس كول دى.،،وقياس الغائب على الشاهد فاسد،،(٢)بيا دنن صبا سائنسى ترقو دا ښكاره كړله.چه مخصوص تقابل هم شرط نه دې.بيا چه هركله د قرآن او حديث او اجماع نه د الله تعالى د روئيت د امكان ثبوت كيږى.نو ددې په مقابله كښې هيڅ عقلى دليل پيش كول صحيح نه دى.ځكه چه قياس خو هغه ځائې كيږى.كوم ځائې چه نص نه وى.(٣)،،والله أعلم بالصواب،،_

**قوله**: وَرُسُلِهِ: او (ايمان راوړه) د هغه په رسولانو باندې.

د اصلى په نسخه كښې د ،،وبرسله،، لفظ دې.(٤)

،،رسول ،، او ،،نبى،، څه ته وائى؟ ددې په مينځ كښې څه فرق دې؟ دا مونږ تفصيل سره وړاندې ذكركړى دى.(٥)

دلته د ،،ايمان بالرسل،، په مطلب باندې پوهه شئ:هغه دا چه ددې خبرې تصديق كول، چه څومره حضرات الله تعالى نبيان او رسولان جوړ كړې دى.او دخلقو دهدايت دپاره ئې راليګلى دى.هغوى ټول رشتونې دى.(٦)

(١) انظرشرح العقائد النسفية بشرح النبراس (٢٥٢و ٢٥٣)-
(٢) المصدرالسابق)_
(٣) إمداد البارى(٣٧/١٤)_
(٤) فتح البارى(١١٨/١)-
(٥) كشف البارى (٢٢٢/١-٢٢٥)_
(٦) فتح البارى (١١٨/١)

**د انبياو او رسولانو تعداد:** د الله تعالى د طرفه څومره رسولانو او نبيانو تشريف راوړلې دې؟ ددوى صحيح تعداد الله تعالى ته معلوم دې.لکه چه د الله تعالى ارشاد دې. ﴿ مِنْهُم مَّن قَصَصْنَا عَلَيْكَ وَمِنْهُم مَّن لَّمْ نَقْصُصْ عَلَيْكَ ﴾ (۱)

البته په بعضې احاديثو کښې د انبياءکرامو او رسولانو متعين تعداد هم وارد شوې دې. لکه چه په يو روايت کښې د انبياو تعداد يو لاکه څليريشت زره وارد شوې دې.چه په دوى کښې درې سوه او ديارلس رسولان وو.(۲)

په يو روايت کښې د انبياو تعداد هم دغه نقل دې.کوم چه ذکر شو.البته د رسولانو تعداد درې سوه او پنځلس منقول دې.(۳)

دغه نور قسمه روايات هم منقول دى.خو دا ټول روايات د کلام نه خالى نه دى.(۴)په دې وجه ددې رواياتو په بنياد باندې د انبياو او رسولانو تعداد متعين کول صحيح نه دى.ځکه چه مسئله د اعتقادياتو ده.او په دې کښې د قطعى نص ضرورت وى.

په دې وجه به دلته هم هغه شان ايمان راوړلې شى.لکه څنګه چه کتابونو باندې دايمان راوړلو په سلسله کښې ذکر شو.چه د کومو نوم معلوم دې.هغوى باندې تفصيلاً او د کومو نوم چه معلوم نه دې.هغوى باندې اجمالاً ايمان راوړلې شى.(۵) ،،والله اعلم،،.

**قوله:** وَتُؤْمِنَ بِالْبَعْثِ: او ايمان راوړه.د مرګ نه روستو په دوباره ژوندى کيدو باندې.

د کتاب التفسير په روايت کښې د ،،وتؤمن بالبعث الآخر،، الفاظ دى.(۶)د مسلم په روايت کښې د حضرت عمر رضي الله عنه په روايت کښې د،،واليوم الآخر،، الفاظ دى.(۷)

حافظ رحمه الله فرمائى.چه،،بعث،، سره د ،،آخر،، قيد يا خو د تاکيد دپاره دې.لکه وئيلې شى چه ،،أمس الذاهب،، يا په دې وجه دې.چه بعث دوه ځله واقع شوې ذې.يو ځل ،،إخراج من العدم إلى الوجود،، يا ((إخراج من بطون الأمهات بعد النطفة والعلقة إلى الحياة الدنيا)) دې.او دويم ځل ،، بعث من بطون القبور إلى محل الإستقرار،، دې.(۸)

---

(۱) سورة المؤمنين :۷۸_

(۲) رواه أحمد وابن مردويه وابن حبان عن ابى ذر رضي الله عنه كما فى تفسير ابن كثير (۵۸۵/۱، ۵۸۶)_

(۳) رواه ابن ابى حاتم (المصدرالسابق)-

(۴) ددې رواياتو تفصيلات او په دې باندې د کلام دپاره اوګورئ تفسير ابن کثير(۵۸۵/۱، ۵۸۶) آيت ﴿ ورسلاً قصصناهم عليک من قبل و رسلاً لم نقصصهم عليک ﴾ سورة النساء : ۱۶۴)_

(۵) تفسير عثمانى (۶۳۲)_

(۶) كتاب التفسير سورة لقمان باب ﴿ إن الله عنده علم الساعة ﴾ رقم ۴۷۷۷ وفى صحيح مسلم كذالک﴿ وتؤمن بالبعث الآخر﴾ (۲۹/۱) فواتح الإيمان)_

(۷) صحيح مسلم (۲۷/۱) كتاب الإيمان)-

(۸) فتح البارى (۱۱۸/۱)

د ،،اليوم الآخر،،ونيلو وجه يا خو داده چه دا ددنيا د ورځو آخرۍ ده.يا ،،آخر الأزمنة المحدودة،، ده.(١)

په ورځ د آخرت يا بعث بعد الموت باندې د ايمان راوړلو مطلب يا دا دې چه د قيامت د ورځې واقع کيدو. او په دې کښې چه په کوم څه څيزونه وى.مثلاً حساب کتاب، ميزان، جنت، جهنم ددې ټولو تصديق اوکړې شى.(٢)

بيا دا خبره هم قابل غور ده.چه دلته ئې،،والبعث،،اوئيلو. په ما قبل الفاظو باندې د عطف کولو په ځائې ،،وتؤمن بالبعث،،ونيلې شوې دى.

ددې يوه وجه خو دا بيان کړې شوې ده.چه د ،،بعث،، وقوع به په آخرت کښې کيږى.او باقى څيزونه اوس هم موجود دى.په دې وجه ،،بعث،، سره مستقل د ،،تؤمن،، اضافه کړې شوې ده.(٣)

خو په دې جواب باندې اشکال کيږى چه وړاندې د ،،لقاء،، ذکر هم راغلې دې.او ددې تفسير(لکه څنګه چه وړاندې تير شوې دې) په ،،بعث بعد الموت،، سره کړې شوې دې.چه دا فى الحال موجود نه دې.بلکه په آخرت کښې به کيږى.

نو غوره جواب دا دې.چه چونکه د ،،بعث بعد الموت،، مسئله د آسمانى مذهبونو او د آسمانى کتابونو د خصوصياتو څنې ده.په غير سماوى دينونو کښې ددې تصور نشته.او په دې مسئله کښې به د عربو مشرکانو ته ډير زيات تعجب کيدو.په دې وجه ددې د اهميت په لحاظ سره دلته د ،،تؤمن،،لفظ مستقل دوباره راوړلې شوې دې.(٤) والله اعلم.

**فائده**:د بخارى شريف په روايت کښې د ،،ما الإيمان؟،، په جواب کښې صرف هم دا څيزونه دى.کوم چه مذکور شو.حالانکه امام اسماعيلى رحمه الله پخپل ،،مستخرج،، کښې ددې نه پس د ،،و تؤمن بالقدر،، اضافه هم نقل کړې ده.د ابو فروه په روايت کښې هم دا جمله شته. د کهمس او سليمان تيمى په رواياتو کښې ،،وتؤمن بالقدر خيره وشره،، وارد شوې دې.هم دا د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دى.د ،،عطاء عن ابن عمر،، په طريق سره منقول يو روايت کښې د ،،وحلوه ومره من الله،،اضافه هم شته.په مسلم شريف کښې د عماره بن القعقاع په روايت کښې د ،،وتؤمن بالقدر،، الفاظ راغلى دى.(۵)

**قدر يا تقدير** د قدر يا تقدير معنى په لغت کښې د اندازه کولو ده.الله تعالى پخپل ازلى

---

(١) المصدر السابق)-

(٢) المصدر السابق)-

(٣)المصادر السابق)

(٤) فتح البارى(١١٨/١) إمداد البای(٧٣٧/١٤)_

(۵) فتح البارى(١١٨/١) وعمدة القارى(٢٨٤/١)-

علم کښې د عالم (دنيا) د ټولو څيزونو. ددې د ايجاد او پيدا کولو نه وړاندې اندازه کړې وه چه دا څيزونه به فلانى وخت کښې په دې طريقه پيدا کولې شى.او دا څيز به داسې پيدا کولې شى.د الله تعالى ارشاد دې ﴿قَدْ جَعَلَ اللّٰهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا﴾ (١)﴿وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ فَقَدَّرَهُ تَقْدِيرًا﴾ (٢)

نو د پيدا کيدو د وخت نه واخله تر د قيامته پورې د واقع کيدونکو څيزونو دپاره د الله تعالى د حد او اندازې مقرر کولو او ددې د ليکلو نوم تقدير دې.او بيا ددې اندازې مطابق د عالم څيزونه په تدريج سره (د پرله پسې) پيدا کولو نوم قضاء ده.اول تقدير دې.او بيا قضاء ده.

اوس د ..ايمان بالقدر..معنى دا شوه.چه بنده په دې خبره باندې يقين اوکړى. چه په عالم کښې کوم څه خير او شر او ايمان او کفر واقع کيږى.الله تعالى ته د مخکښې نه د ټولو علم وو. او د ايجاد نه وړاندې الله تعالى دا پخپل تقدير سره مقرر فرمائيلى وو.چه په فلانى وخت او په فلانى کور کښې به دا ښه يا بد څيز پيدا کيږى.هيڅ يو څيز د هغه د تقدير نه خارج نه دې.

چونکه د قضاء او قدر تعلق د الله تعالى علم او قدرت سره دې.په دې وجه په دې کښې د غلطئ او خطاء امکان نشته.

د اهل حق مذهب دا دې.چه بنده کوم څه کوى.که نيک وى او که بد وى.ايمان وى اوکه کفر وى. طاعت وى اوکه معصيت وى.ټول د الله تعالى په تقدير سره دى.او هم هغه ددې خالق دې.په عالم کښې چه کوم څه کيږى. دا ټول هم دده په مشيت او ارادې سره کيږى. (٣)

**فرقه قدريه** د حضرات صحابه کرامو رضي الله عنهم په آخره زمانه کښې يوه فرقه قدريه ښکاره شوه. چه دا د قضاء او قدر منکر دى. ددوى عقيده دا ده.چه قضاء او قدر هيڅ نه دى. بنده مختار مطلق دې.او د خپلو افعالو پخپله خالق دې.د وړاندې نه هيڅ څيز مقدر نه دې.

بيا په دوى کښې يو فريق خو تردې پورې غلو کوى.چه الله تعالى ته د وړاندې نه د بنده د افعالو علم هم نه وى.د بنده د کولو نه پس حق تعالى ته علم کيږى. معبد، جهنى، غيلان دمشقى او جعد بن درهم ددې مسلك حمايت کونکى او پيشوا وو.متاخرين صحابه کرامو رضي الله عنهم (د چا په زمانه کښې چه دا خلق ښکاره شو) ددوى نه براءت او بيزارى ښکاره کړله. لکه عبدالله بن عمر، جابر بن عبدالله، ابوهريره، ابن عباس، انس بن مالك، عبدالله بن ابى اوفى او عقبه بن عامر رضي الله عنهم به خپلو اصحابو ته وصيت کولو.چه نه قدريه ته سلام کوئ. او نه ددوى د جنازې مونځ کوئ.او نه ددوى د مريض عيادت کوئ.

---

(١) سورة الطلاق :٣)_

(٢) سورة الفرقان :٢)-

(٣) عقائدالاسلام از حضرت مولانا محمد ادريس کاندهلویؒ (١١\٢٢-٢٦) و(١٢\٤٦، ٤٩) وفتح البارى (١١\١١٨، ١١٩)_ .

دويمه ډله ( د قدريه) د الله تعالى د علم منكر خو نه ده البته د بنده د مختار مطلق كيدو او د خپلو افعالو د خالق كيدو په عقيده كښې رومبئ ډلې سره شريك ده په دوئ كښې رومبئ ډله كوم چه د سره د الله تعالى دعلم منكر ده هغه خو د اسلام نه خارج ده البته كومه ډله چه بنده لره مختار مطلق او د خپلو افعالو خالق ګڼړى هغه د اسلام دائرې نه خارج خو نه ده البته مبتدع ضرور ده.(١)

**قوله قَالَ مَا الْإِسْلَامُ:** سائل تپوس اوكړو چه اسلام څه څيز دې؟

د مسند امام اعظم په روايتونو كښې د ,,فأخبرني عن شرائع الإسلام،، او د ,,فما شرائع الإسلام،، الفاظ دى.(٢)

**قوله الْإِسْلَامُ أَنْ تَعْبُدَ اللَّهَ وَلَا تُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا:** اسلام دا دې چه ته د الله تعالى عبادت اوكړې او دده هيڅ څيز سره شريك جوړ نكړې

امام نووى رحمه الله فرمائى چه ① ممكن ده چه د ,,عبادت،، نه دلته ,,د الله تعالى معرفت،، مراد وى په دې صورت كښې به د ,,صلاة،، وغيره عطف په ,,ان تعبدالله،، باندې او ,,معرفت،، په ,,اسلام،، كښې داخل ګرځولو دپاره وى.

② اودا هم ممكن ده چه د ,, عبادت،، نه مطلق طاعت مراد وى په داسې صورت كښې د ,,صلاة،، وغيره عطف د ,,عطف الخاص على العام،، د قبيل څخې وى.(٣)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه رومبې احتمال بعيد دې ځكه چه ,,معرفت،، د ايمان د متعلقاتو څخې دې حالانكه اسلام د قولى او بدنى اعمالو نوم دې نو ,,عبادت،، دويم احتمال يعنى مطلق طاعت مراد دې.(٤)

خو پخپله حافظ رحمه الله دويم احتمال هم رد كړې دې او فرمائيلى ئې دى صحيح خبره دا ده چه ,,أن تعبدالله،، د ,,أن توحدالله،، په معنى كښې دې خو چونكه دا معنى په ,,أن تعبدالله،، سره پوهه كښې نه راځى په دې وجه ئې ورپسې ,,ولا تشرك،، اوونيل ددې تائيد ددې خبرې نه كيږى چه د حضرت عمر رضي الله عنه په روايت كښې دلته ((أن تشهد أن لا إله إلا الله وأن محمداً رسول الله)) راغلى دى(٥) معلومه شوه چه په دې حديث كښې د ,,عبادت،، نه ,,نطق بالشهادتين،، مراد دې.(٦) والله اعلم.

---

(١) تكمله عقائد الاسلام (١١٠-١٧٠، ١٧١) وفتح البارى (١١٩/١)_

(٢) مسندالإمام الأعظم (ص٥، ٧) كتاب الإيمان والإسلام والقدر والشفاعة)_

(٣) فتح البارى (١١٩/١)_

(٤) المصدر السابق )_

(٥) صحيح مسلم (٢٧/١) فاتحة كتاب الإيمان)-

(٦) فتح البارى (١١٩/١)_

**قوله**: وَتُقِيمَ الصَّلَاةَ: او (اسلام دا دي چه) تاسو مونځ قائم کړئ.

د صحيح مسلم په روايت کښي د ،،المكتوبة،، قيد هم شته.[1] چه دا د ،،المفروضة،، په معنى کښي دي ددې نه پس د((و تؤدى الزكاة المفروضة)) [2] الفاظ دى. اګرچه ..مکتوبه.. او ..مفروضه.. دواړه په يو معنى کښي دى خو د تفنن دپاره جدا جدا الفاظ ذکر شوى دى.[3] دا هم ممکن ده چه چونکه په قرآن کريم کښي ..صلاة.. سره د ..مکتوبة.. کيدو صفت مذکور دې ﴿إِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا﴾[4] په دې وجه دلته کښي ..صلاة.. سره د ..مکتوبة.. تخصيص شوې دې.[5] والله اعلم.

په ..مکتوبه.. قيد سره د ..نافله.. نه احتراز مقصود دې نوافل اګرچه د اسلام د اعمالو خنې دې خو دا د ارکانو خنې نه دى. او چونکه دلته د اسلام د ارکانو بيان دې په دې وجه به مطلق په مقيد باندې محمول کولې شى.[6]

**قوله**: وَتُؤَدِّيَ الزَّكَاةَ الْمَفْرُوضَةَ: (او اسلام دا دې چه) ته فرض زکاة ادا کړې.

**قوله**: وَتَصُومَ رَمَضَانَ: او (داسلام د ارکانو خنې دا دى چه) ته د رمضان روژې اونيسې.

ددې نه معلومه شوه چه د ..رمضان.. استعمال د لفظ ..شهر.. نه بغير جائز دې لکه څنګه چه وړاندې تفصيل سره تير شو.[7] د اسلام په ارکانو باندې بحث وړاندې د ،،باب قول النبى ﷺ بنى الإسلام على خمس،، لاندې تير شوې دې.[8] البته دلته تاسو ګورئ چه د ..حج.. ذکر نه دې راغلې. ددې څه وجه ده؟

بعضې حضراتو دا وئيلى دى چه دغه وخت حج فرض شوې نه وو.[9] خو دا خبره بالکل کمزورې ده. وړاندې مونږ وئيلى دى چه د حضرت جبرئيل عليه السلام راتلل يا خو د حجة الوداع نه لږ شان وړاندې وو. يا د حجة الوداع نه هم روستو وو. بهرحال دا واقعه ددوى د آخرى عمر ده. او دغه وخته پورې حج فرض شوې وو.

---

[1] صحيح مسلم (۲۹/۱)_
[2] حديث باب او صحيح مسلم (۲۹/۱_۹)
[3] فتح البارى (۱۲۰/۱۹)-
[4] سورة النساء: ۱۰۳)_
[5] فتح البارى (۱۲۰/۱۹)-
[6] عمدة القارى (۲۸۸/۱)_
[7] كشف البارى (۶۳۹/۱، ۶۴۰)_
[8] كشف البارى (۶۳۸/۱، ۶۳۹)-
[9] فتح البارى (۱۱۹/۱)-

لکه چه د حدیث جبرئیل په بعضې طرقو کښې د حج ذکر هم راغلې دې. ترکومې پورې چه په دې روایت کښې د ..حج.. نه ذکرکولو تعلق دې نو دا د رواتو د نسیان او هیرې په وجه دې. د کهمس په روایت کښې دی.((وتحج البیت إن استطعت إلیه سبیلاً)) د حضرت انس رضي الله عنه په حدیث کښې هم دغه شان دی.د عطاء خراسانی په روایت کښې د ..صوم.. ذکر نشته.د ابو عامر په حدیث کښې صرف د صلاة او زکاة ذکر دې.د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په حدیث کښې صرف په شهادتینو باندې اکتفاء شوې ده.او سلیمان تیمی نه صرف دا چه ټول ئې جمع کړی دی.بلکه د ،،وتحج البیت،، نه پس د ،،وتعتمر، وتغتسل من الجنابة و تتم الوضوء،، اضافه ئې هم کړې ده.(١)

معلومه شوه چه په حدیث باب کښې د حج ذکر د راوی د عدم ضبط (او عدم حفظ) په وجه دې.والله اعلم.

**قوله: قَالَ مَا الْإِحْسَانُ**:سائل تپوس اوکړو ..احسان.. څه څیز دې؟

**د ،،احسان،، لغوی معنی او ددې قسمونه** احسان متعدی بنفسه هم وی.او متعدی بحرف الجر هم وی.کله چه متعدی بنفسه وی.نو ددې معنی په لغت کښې د ..اتقان او احکام.. راځی.یعنی یو کار په ښه طریقه سره پوره کول.او که د ..الی.. په صله کښې راشی.نو ددې معنی ،،إیصال النفع إلی الغیر،، راځی.(٢)

دلته رومبۍ معنی مراد ده.ځکه چه د ..احسان.. مقصد دلته کښې ،، اتقان فی العبادة،، دې.اګرچه د دویمې معنی احتمال هم موجود دې.په دې طریقه چه کوم سړې محسن یعنی مخلص وی.هغه به پخپل اخلاص سره خپل ځان ته نفع رسونکې هم وی.( )

بیا د ،،احسان فی العبادة،،دوه قسمونه دی.① احسان ظاهری، ② احسان معنوی. بیا د احسان ظاهری دوه درجې دی.رومبۍ درجه ئې فرض ده.او دا ددې ارکان، فرائض او واجبات ادا کول دی.او دویمه درجه ئې مسنون او مستحب ده.او دا عبادت لره ددې د ادابو او مستحباتو سره ادا کول دی.

احسان معنوی دا دې.چه سړې په ډیر خشوع خضوع سره دالله تعالی عبادت اوکړی.په دې طریقه چه اندامونه او جوارح ،او روح او زړه ټول الله تعالی طرف ته متوجه وی.

**مقام مشاهده او مقام مراقبه** بیا ددې هم دوه قسمونه دی.① یو مقام مشاهده ده.په دې مقام کښې عبادت ګزار په نور د بصیرت سره د الله تعالی مشاهده کوی.او په ده باندې دا حال غلبه کوی.چه الله تعالی مخامخ دې.او دې هغه لره د خپل زړه په سترګو سره وینی.② دویم مقام د مراقبة دې.په دې کښې بنده دا خیال کوی.چه الله تعالی ده لره ګوری. اودده دټولو

---

(١) ددې ټولوروایاتو دتفصیل دپاره اوګورئ فتح الباری(١١٩/١، ١٢٠) وعمدة القاری(٢٩٢/١و ٢٩٣)_

(٢) فتح الباری(١٢٠/١)_

(٣) المصدرالسابق)-

حركاتو او سكناتو. او ظاهر او باطن نه پوره واقف دې.دا دويم مقام د رومبي مقام پورې ده.سړي په دې مراقبې سره مونځ كوي يا بل څه عبادت كوي نو په مزه مزه دې رومبي مقام يعنې مقام د مشاهدې ته رسيږي.

**قوله** قَالَ أَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَإِنَّهُ يَرَاكَ: نبى كريم ﷺ اوفرمائيل (احسان دا دې چه) ته د الله تعالى عبادت په دې طريقه اوكړې چه ته هغه لره وينې ځكه چه ته اګرچه هغه نشې ليدلې.نو هغه خو تا وينى.

**د ،،احسان،، دوه مختلف تشريح** نبى كريم ﷺ چه د احسان كوم تعريف كړې دې.ددې په توجيه كښې د شارحينو دوه ډلې دى.① حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه دې جملې سره نبى كريم ﷺ هغه دوو مقاماتو او احوالو طرف ته اشاره كړې ده.د كوم ذكر چه اوس وړاندې تير شو. چه يو مقام ،،مقام مشاهده،، دې او دويم مقام ،،مقام مراقبه،، دې.

په دې كښې رومبې مقام اعلى او ارفع دې.چه په دې كښې بنده پخپل زړه سره د حق مشاهده په دې طريقه كوى.ګويا چه هغه لره خپلو سترګو سره وينى.او دويم حالت ددې نه كمتر دې.چه دده په زړه باندې د حق د مشاهدې غلبه خو نه كيږى.خو دده په زړه كښې دومره صلاحيت پيدا كيږى.چه هغه ددې امر استحضار كوى. چه الله تعالى دده هر حال نه خبردار دې.

ګويا نبى كريم ﷺ چه كوم ،،أن تعبدالله.....،، فرمائيلى دى.ددې مطلب دا دې.كه رومبې حالت چاته حاصل نه وى.نو دويم كم درجې والا خو ضرور حاصليدل پكار دى.

په دې كښې رومبئ مرتبه په دې وجه ارفع او اعلى ده.چه دا د كمال مستغرق كيدو صورت دې.او دنفس صفت دې.او دحال درجه ده.او دويم صرف د علمى درجې څيز دې.چه ددې مرتبه د حال نه كمه ده.ځكه چه د علم كيفيت راسخ كيدو( او مضبوطيدو) نه پس د نفس صفت جوړيدو باندې حال جوړيږى.(¹)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه دا دواړه حالتونه په معرفت خداوندى او د حق تعالى په خوف او خشيت سره پيدا كيږى.د عماره بن القعقاع په روايت كښې هم دغه شان د حضرت انس رضي الله عنه په حديث كښې ،،أن تخشى الله كأنك تراه.....،، وارد شوې دې.(²)

② خو امام نووى. علامه سندهى او نورو محققينو ددې يوه بله تشريح كړې ده.او هم دا راجح ده.ددې حضراتو د تقرير حاصل دا دې.چه نبى كريم ﷺ د ،،احسان،، تعريف كولو سره دوه جدا جدا مقامات نه دى بيان كړى.بلكه په دواړو جملو كښې ئې يو مقصد بيان كړې دې. په رومبئ جمله كښې خو د اصل مقصود ذكر دې.په دې كښې چونكه يوه شبه راپيښيدله. په دې وجه ئې دا په دويمه جمله كښې لرې كړله.

---

(¹) فتح البارى(١٢٠/١)_

(²) فتح البارى(١٢٠/١)_

په دې يو مثال سره پوهه شئ: فرض کړئ، چه څه خلق په شاهي دربار کښې حاضر دی.هر سړې ښه اندازه لګولې شی چه دا خلق به د شاهي دربار د حقوقو څومره لحاظ ساتی.
اوس دلته دوه څیزونه دی.یو دا چه بادشاه دوی ته ګورې.دویمه دا چه دا خلق بادشاه ته ګورې.اوس قابل غور خبره دا ده.چه دا خلق چه د ادابو او حقوقو پوره رعایت او لحاظ ساتی.ددې علت څه دې؟ د بادشاه دوی ته کتل. اوکه ددې خلقو بادشاه ته کتل؟ که لږشان غور اوکړې شی.نو ښه واضح کیږی.چه علت او موثر د بادشاه دوی ته کتل دی.ځکه چه فرض کړئ.که په دې خلقو کښې يوکس نابينا وی.چه هغه بادشاه نشی کتلې.هغه به د نورو خلقو په نسبت د ادابو او حقوقو په رعایت او لحاظ کښې څه قسمه کوتاهی او کمی کوی؟ هيڅ چرې به نه کوی.بلکه هغه به د نورو خلقو نه زيات محتاط اوسيږی.چه چرته د بادشاه په وړاندې څه نا معقوله حرکت او نشی.که ددې خلقو بادشاه ته کتل علت او موثر وې.نو دې نابينا ته به د رعایت او لحاظ حاجت نه وو.ځکه چه هغه خو بادشاه نه ګورې.معلومه شوه.چه د تعظیم او ادب رعایت او د ویرې او خشیت علت د بادشاه دوی ته کتل دی.ددې خلقو بادشاه ته کتل علت نه دې.چونکه حاضرینو ته دا ښه پته ده.چه بادشاه مونږ ته ګورې.په دې وجه هر بينا او نا بينا لرې او نزدې پوره رعایت او لحاظ کوی.او آداب او حقوق پوره کوی.
په دې وجه امام نووی او علامه سندهی رحمهماالله وغیره حضرات فرمائی.چه نبی کریم ﷺ د دواړو جملو په مجموعه کښې يو مقصد بيانوی.چه د عبوديت وظائف په داسې طريقه ادا کړه.چه ګويا ته الله تعالى ته ګورې.او ښکاره ده.که بنده د عبادت په وخت واقعی الله تعالى ښکاره کتلې.نو د امکان حده پورې به ئې د آدابو او حقوقو په کمال رعایت او خشوع ، خضوع کښې ذره برابر کمې نه کولې.لکه څنګه چه د شاهي دربار حاضرین دی.نبی کریم ﷺ فرمائی.چه تاسو هر وخت دغه شان د کمال رعایت او انتهائی درجې خشوع خضوع سره وظائف د عبوديت ادا کوئ.
که تاسو ته شبهه وی.چه مونږ خو الله تعالى نه وينو.او نه ئې کتلې شو.نو بيا د يو غير واقعی څيز رعایت څنګه ممکن دې؟ نو دا خو خالص توهم او غلط فهمی ده.اګرچه ته خو الله تعالى کتلې نشې.بيا هم بعینه دغه شان د رعایت او لحاظ نه کار واخله.ځکه چه ستا د کتلو په صورت کښې چه کوم کمال رعایت او انتهائی درجه خشوع خضوع کوې.د هغې علت ستا کتل نه دی.بلکه د بادشاه کتل دی.لکه څنګه چه په مثال کښې واضح کړې شوه.او د بادشاه کتل هر وخت متحقق دی.ځکه د الله تعالى شان دا دې.چه هغه هر وخت په هر څيز باندې خبردار دې.او هرکله چه اصلی علت او موثر يعنی د هغه کتل هر وخت متحقق دی.نو معلول يعنی کمال رعایت او انتهائی خشوع خضوع هم هر وخت پوره کول پکار دی.ګه ته ئې وينې او که نه وينې.ځکه چه اصل کښې ستا کتلو ته دخل نشته.بلکه د هغه کتلو ته دخل دې.او هغه موجود دې.
خلاصه دا چه اصل مقصد خو ئې په رومبئ جمله کښې بيان کړو.چه وظائف د عبوديت په داسې طريقه اداکړئ.چه ګويا ته الله تعالى ګورې.يعنی د ادابو او حقوقو کمال رعایت او

انتهائي درجه خشوع خضوع سره ئې پوره کړه.په دويمه جمله کښې ئې د شبهې ازاله اوفرمائيله.او حقيقت ئې واضح کړو.او اصل منشاء ئې بيان کړله.(۱)

**نحوي اعتبار سره د دواړو تقريرونو په مينځ کښې تفريق** په دواړو تقريرونو کښې چه د لفظ او معنی په لحاظ سره کوم فرق دې.هغه خو دې تفصيلي تقرير سره واضح شو.ددې نه علاوه په دې کښې لفظي او نحوي فرق هم شته.د حافظ ابن حجر رحمه الله د رائې او ددوی د تقرير مطابق په ،،فإن لم تكن تراه فإنه يراك،، کښې ،،إن،، شرطيه دې.او په ،،فإنه يراك،، کښې ،،فإنه،، جزائيه ده.

او د نووي او سندهي رحمهما الله د تقرير مطابق ،،إن،، وصليه دې.او ،،فاء،، تعليليه ده.

ددې په تفصيل داسې پوهه شئ.چه د حافظ ابن حجر رحمه الله د رائې مطابق به د ،،فإن لم تكن تراه فإنه يراك،، ترجمه دا وی.. .نو که تاسو هغه نه وينئ.نو هغه تاسو وينی..

دلته دويمه درجه يعني مقام مراقبه مذکور ده.او په ،،أن تعبد الله كأنك تراه،، کښې د مقام مشاهده ذکر وو.نو که هغه حاصل نه وی.نو ددې دويمې درجې يعنی د مراقبې اهتمام دې اوکړې شی.او ددې استحضار دې وی چه هغه مونږ او زمونږ عبادت ته ګوری.کله چه ددې عادت جوړ شی.نو پخپله به مشاهدې طرف ته ترقی اوشی.او ړومبئ درجه به حاصله شی.

اوکله چه د امام نووي او سندهي رحمهما الله د رائې مطابق ،،فاء،، تعليليه شی.او ،إن،، وصليه وی.نو ترجمه به دا وی.چونکه اګرچه تاسو هغه نشې ليدلئ. خو هغه خو تاسو وينی.په دې وجه عبادت کښې د ادب رعايت او خشوع خضوع موجود کيدل پکار دی.ځکه چه په دې امورو کښې ستاسو کتلو ته دخل نشته. بلکه د الله تعالی کتلو ته دخل دې.دلته د مشاهدې او مراقبې کيفيت حاصلولو طرف ته اشاره نه ده.بلکه په عبادت کښې خشوع خضوع، اخلاص او د ادب رعايت طرف ته توجه ورکول مقصود دی.او ددې دپاره دواړه جملې برابر دی.(۲)

---

۱) شرح نووي على صحيح مسلم (۲۸/۱) وفتح البارى(۱۲۰/۱) وعمدة القارى (۲۸۹/۱، ۲۸۸) وحاشية السندى على البخارى (۳۳/۱، ۳۴) وفتح الملهم (۴۸۲/۱و ۴۸۳) وفضل البارى(۵۳۳/۱، ۵۳۴)_

۲) د حافظ ابن حجر.نووي سندهي اونورو محققينو رحمهم الله رائې پورته په وضاحت سره تيره شوه. خو((فإن لم تكن تراه فإنه يراك)) که وصليه اوګرځولې شی.نوپه دې کښې نظر دې.نو په څو وجوهو سره د((إن شرطيه)) ګرځول مناسب دی.

① يوددې وجې چه د..ان.. وصليه تصريح صرف علامه سندهي کړې ده.بل هيڅ چا نه ده کړې.

② داامام نووي رحمه الله دکلام نه معلوميږی.چه هغوی دا ان شرطيه ګرځوی.علامه عيني رحمه الله په صراحت سره بيان کړې دې.چه ((إن )) شرطيه دې او جزاء محذوف ده.اوتقديرعبارت دا دې((فإن لكم تكن تراه فأحسن العبادة فإنه يراک)) نومعلومه شوه.چه ..ان.. شرطيه دې((إن لم تكن تراه)) شرط دې، ((فأحسن العبادة)) جزاء ده.او((فإنه يراک)) جمله تعليليه ده.اوپه دې [بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

فائده دا وضاحت ضروري دی چه د مشاهدې او مراقبې درجې خواصو دپاره دی.عوامو دپاره ددې حاصلول مشکل دی په دې وجه د مونځ صحت په دې باندې موقوف نه دې.بلکه د احسان يوه درجه دا ده.(د کوم ذکر چه مونږ وړاندې کړې دې) چه مونځ ددې د ارکانو او شرائطو رعايت سره ادا کړې شي.نو هغه به صحيح وي.او ذمه به بری شي.(١) والله اعلم.

**د صوفيه په نيز د،،فان لم تکن تراه فانه يراک،، تشريح** بعضې حضرات صوفيه ددې جملې نه په مقام د محو او فناء باندې استدلال کوی او ددې ئې يوه بله تشريح کړې ده.لکه فرمائی چه په ،،فإن لم تكن تراه،، کښې ،،كان،، تامه دې.او معنی دا ده.چه که ته فنا شې.نو الله به اووينې.(٢)

**د صوفيه حضراتو په تشريح باندې اعتراضات** محققينو عالمانو په دې باندې درې قسمه اعتراضات کړی دی.او دا ئې رد کړې دې.

① يو دا که چرې ،،لم تكن،،شرط وی.نو په دې صورت کښې به ،،تراه،، ددې جزاء وی.نو دا مجزوم کيدل پکار دی.او دا ،،تره،، وئيل پکار دی.

په بعضو اشعارو وغيره کښې که په داسې صورت کښې جزم نه راځی.نو هغه په ضرورت شعری باندې محمول دې.

② دويم اشکال دا دې.چه هم ددې روايت په بعضې نورو طرقو کښې نفی براه راست ،،رؤيت،، باندې مسلط ده.په ،،کون،، باندې نه ده.لکه چه د سليمان تيمی او کهمس په روايت کښې ،،فإنك إن لا تراه فإنه يراك،، الفاظ دی.او د ابو فروه په روايت کښې او دغه شان د حضرت انس او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په احاديثو کښې ،،فإن لم تره فإنه يراك،، الفاظ دی.نو ،،لم تكن،، چه کوم ،،لم تصِر،، معنی باندې حمل کړې شوې دې.او په مقام د فناء باندې

---

...دتيرمخ بقيه حاشيه] باندې فاء دتعليل دپاره ده.دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله صاحب هم ددوی د کلام تشريح کوی.اوتقديرراوباسی.((فإن لم تكن تراه فاستمر على إحسان العبادة فإنه يراك)) عمدة القاری (١١/٢٨٥، ٢٨٧، ٢٨٨، ٢٨٩) وفتح الباری ١١/١٢٠)

③ چونکه په ان کښې اصل دا دې.چه دا د شرطيت دپاره وی.دوصليت دپاره نه وی.حالاتکه چه شرطيه اومنلې شی.نوپه دې صورت کښې دعلامه سندهی اونووی په رائې او تقريرکښې څه فرق هم نه راځی.ددې وجې پکارده.چه هم شرطيه اوګرځولې شی.

④ ددې نه علاوه د ان وصليه په اول کښې د واو دخول خو منلې شوې او مسلم دې اوبه ان وصليه دفاء دخول هم وی.دا منقول نه دی.نومعلومه شوه.چه دلته شرطيه ګرځول غوره دی.والله أعلم.

بيا علامه سندهی رحمه الله چه د وصليه تصريح کړې ده.ددې تاويل هم ممکن دې.اګرچه دا ان په نحوی اعتبارسره شرطيه دې خوکه دمعنی په اعتبار سره غوراوکړې شی.نود وصليه پشان دې.والله أعلم وعلمه أتم وأحكم

(١) ارشاد الساری(١١/١٤٠)_

(٢) فتح الباری(١١/١٢٠) وعمدة القاری(١١/٢٩١)_

استدلال كړې شوې دې .دا صحيح نه دې .ځكه چه په دې دويم روايت كښې د ..كون،، لفظ نه دې راغلې ۞ دريم اشكال دا دې .كه ،،لم تكن،، شرط وى او ،،تراه،، جزاء وى .نو ورپسې به ،،فإنه يراك،، زائد او بې فائدې وى.(۱)

**د مذكوره اعتراضاتو جوابونه** ددې دريو واړو اعتراضاتو جوابونه وركړې شوى دى .علامه ابراهيم كورانى رحمه الله د رومبى اعتراض جواب وركولو كښې فرمائيلى دى .چه د ،،تراه،، الف كوم چه باقى ساتلې شوې دې .دا ،،من باب إجراء المعتل مجرى الصحيح،، دې .بعضې وختونو كښې ..معتل،، سره د ..صحيح،، معامله كولې شى .لكه اوګورئ .د ..قنبل،، قراءت دې .،،إنه من يتقى ويصبر.....،،(۲) دلته د ..يتقى،، ..ياء،، ځكه باقى ساتلې شوې ده .چه دا كلمه معتل ده .او معتل ته د صحيح حكم وركړې شو. لكه د بخارى شريف په روايت كښې دى .،،قوموا فلأصلى لكم،،(۳) په دې كښې يو روايت ،،فلأصل،، جزم سره او دويم روايت ،،فلأصلى،، نصب سره دې .حالانكه دريم روايت ،،فلأصلى،، د ،،ياء،، سكون سره دې .چه ددې يو تاويل حافظ ابن حجر رحمه الله هم دا كړې دې .چه دلته ..اجراء المعتل مجرى الصحيح.. دې .او بيا ئې د ..قنبل،، روايت په دليل كښې پيش كړې دې .(۴)

او هغه فرمائى .چه د سليمان تيمى او كهمس په روايتونو كښې ،،فإن لاتراه.....،، واقع شوې دې .چه په دې كښې د ،،تراه،، الف باقى ساتلې شوې دې .حالانكه دا شرط دې .او قاعده دا ده .چه مضارع كله شرط وى .نو په دې كښې جزم واجب وى .اوس چه په شرط كښې تاسو د الف د بقاء كوم جواب وركوئ .هم هغه به مونږ په جزاء كښې د الف د بقاء جواب وركوو .كه دا وايئ .چه تقدير د كلام ،،فإنك إن لا تكن تراه.....،، دې .لكه ځنګه چه د مسلم په يو روايت كښې هم دغه شان دى .(۵) نو بيا به خبره هم دلته راواپس كيږى .چه مقصود د نفى ..كون،، دې .نفى د رؤيت مقصود نه دې .

په دې سره د دويم اشكال جواب هم اوشو .چه په كومو روايتونو كښې ..كون،، موجود نه دې .هغه هم د ..كون،، په تقدير باندې محمول دى .

دريم اشكال دا شوې وو .چه ،،فإنه يراك،، به زائد او بې فائدې وى .ددې به هيڅ معنى( او مطلب) نه وى؟

---

(۱) دتفصيل دپاره اوګورئ .فتح البارى(۱۲۰/۱) وعمدة القارى (۲۹۱/۱)_

(۲) سورة يوسف:۹۰)_

(۳) صحيح البخارى(۵۵/۱) كتاب الصلاة باب الصلاة على الحصير)_

(۴) فتح البارى(۴۹۰/۱) كتاب الصلاة (باب الصلاة على الحصير)-

(۵) صحيح مسلم (۲۹/۱) من حديث ابى هريرة رضى الله عنه)_

ددې جواب نې دا ورکړو چه ددې ډيره ښه او نفيس (او باريك) معنى ده. د ،،فإنه يراك،، مطلب دا دې چه کله نبى کريم ﷺ دا اوفرمائيل چه کله ته فناء شې نو الله تعالى به اوګورې نو سوال پيدا شو چه د فناء کيدو نه روستو څنګه يو سړې الله تعالى ليدلې شى؟ نو ،،فإنه يراك،، سره ددې جواب طرف ته اشاره کړې شوې ده چه کله ته فناء شې نو تا ته به د الله تعالى په ذريعه بقاء حاصله شى او د ،،به يبصر،، حالت به پيدا شى (١) ستا اندامونه او جوارح به د الله تعالى تابع جوړ شى هم ددې په ذريعه به ستا ګرځيدل، وښيل او کتل شى (٢)

**تبصره او محاکمه** حقيقت دا دې چه هيڅ يو اشکال داسې نشته چه د هغې نه څه نا څه جواب ورنکړې شى او د يو کلام يو نه يو توجيه او تاويل اونکړې شى خو د يو کلام او عبارت معنى معلومولو آسانه لاره دا ده چه کوم خلق د اختلافاتو نه نا خبره دى د هغوى په وړاندې عبارت کيخودې شى کومه معنى چه متداول (او عام) طور باندې ددوى په پوهه (او عقل) کښې راشى هم دغه ددې صحيح معنى ده که يو سړې ددې اختلافاتو نه نا خبره وى او د صوفيه د استنباطاتو نه نا واقفه وى او هغه دا جمله اووائى نو د څه تامل (او سوچ) نه بغير به هم دا معنى په عقل کښې راځى کومه چه حضرات محدثين بيانوى په دې وجه صحيح معنى هم هغه ده کومه چه حضرات محدثينو بيان کړې ده.

ترکومې پورې چه د صوفيانه استنباط تعلق دې د حديث باب د تشريح لحاظ کولو نه بغير دا يو مستقل حقيقت دې داسې فنائيت او محويت چه انسان ته د هيڅ خبرې خيال نه وى که د شريعت د حدودو نه نه اوباسى او په اعمالو د شريعت کښې ددې په وجه خشوع خضوع پيدا کيږى نو جائز دې او په دې کښې هيڅ باك نشته والله اعلم.

**په قرآن کريم کښې د ايمان، اسلام او احسان ذکر** لکه څنګه چه په حديث باب کښې د ايمان، اسلام او احسان ذکر راغلې دې دغه شان قرآن کريم کښې هم په يو مقام باندې ددې دريو وارو ذکر راغلې دې چه په هغې کښې دا اشاره هم موجود ده چه د ،،احسان،، ډير زيات مراتب دى. لکه الله تعالى فرمائيلى دى. ﴿لَيْسَ بِأَمَانِيِّكُمْ وَلَآ أَمَانِيِّ أَهْلِ الْكِتٰبِ ۗ مَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا يُّجْزَ بِهٖ ۙ وَلَا يَجِدْ لَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ۝ وَمَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ

---

(١) كما ورد فى حديث أبى هريرة رضي الله عنه قال قال رسل الله ﷺ إن الله قال من عادى لى ولياً فقد آذنته بالحرب وما تقرب إلى عبدى بشئ أحب إلى مما إفترضت عليه ولا يزال عبدى يتقرب إلى بالنوافل حتى احببته فكنت سمعه الذى يسمع به وبصره الذى يبصربه ويده التى يبطش بها ورجله التى يمشى بها .. صحيح البخارى (٩٦٣/٢) كتاب الرقاق باب التواضع)_

(٢) د پوره تفصيل دپاره اوګورئ: (الأمم لإيقاظ الهمم للعلامة إبراهيم بن حسن الكردى الكورانى رحمه الله المتوفى ١١٠٢ (١١٥، ١١٨) تحت سياق سند .منازل السائرين لشيخ الإسلام عبدالله الأنصارى مطبوعه مجلس دائرة المعارف النظامية حيدر آباد دكن ١٣٢٨هـ)-

وَلَا يُظْلَمُونَ نَقِيرًا ۝ وَمَنْ أَحْسَنُ دِينًا مِّمَّنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ لِلَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ وَاتَّبَعَ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا ۗ وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا ۝﴾ (١)

په ړومبي دواړو آيتونو کښې د اسلام او ايمان دواړو ذکر راغلي دې.په دې کښې ښودلې شوې دی چه ثواب او عذاب او نجات او ګرفت د چا په اميد او آرزو باندې موقوف نه دی ځوک چه بد کوی ګرفتارولې به شی.او ځوک چه نيك عمل کوی.په دې شرط چه ايمان هم لرې.هغه به جنت ته ځی.او دخپلو اعمالو ثواب به مومی.په دريم آيت کښې د ،،احسان،، ذکر راغلې.چه په دې کښې ئې دا اشاره هم اوکړله.چه د ،،احسان،، مراتب بې شميره دی.او ،،خلة،، د احسان د ټولو نه اعلی درجه ده.

**د سوال په جواب باندې د جبرئيل امين تصديق او د صحابه کرامو تعجب** په صحيح مسلم کښې د عماره بن القعقاع په روايت کښې د دريو واړو د جواب په آخر کښې د ،،صدقت،، لفظ راغلې دې.د ابو فروه په روايت کښې دی.«فلما سمعنا قول الرجل: صدقت، أنكرناه» د کهمس په روايت کښې دی.«فعجبنا له يسأله ويصدقه» په د مطرق په روايت کښې دی.«أنظروا إليه كيف يسأله، وأنظروا إليه كيف يصدقه» د حضرت انس رضي الله عنه په حديث کښې دی.«أنظروا وهو يسأله وهو يصدقه كأنه أعلم منه» د سليمان بن بريده په روايت کښې دی.«قال القوم: ما رأينا رجلا مثل هذا، كأنه يعلّم رسول الله ﷺ، يقول له: صدقت صدقت» (٢)

حضرت جبرئيل عليه السلام چه د نبی کريم ﷺ کوم تصديق او تصويب کړې دې.د **هغې مطلب** په حقيقت کښې دا دې.چه د نبی کريم ﷺ جوابات د الله تعالى د منشاء مطابق دی. ﴿وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ ۝ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ ۝﴾ (٣) البته صحابه کرامو رضي الله عنهم ته تعجب په دې خبره باندې کيدو.چه دا سړې نبی کريم ﷺ سره د وړاندې نه په ملاويدونکو. او د نبی کريم ﷺ د ارشاداتو نه مستفيض کيدونکو خلقو ځنې هم نه دې.او يو طرف ته سوال کوی.او د خپل ځان د نا واقف کيدو اظهار کوی.او بل طرف ته ،،تصديق،، کوی.او د خپل ځان دعالم او عارف کيدو اثبات کوی.حالانکه سوال داسې امورو سره متعلق وو.چه ددې ماخذ د نبی کريم ﷺ نه سوا بل ځوک نشې کيدې.(٤) والله اعلم.

**قوله**: قَالَ مَتَى السَّاعَةُ: جبرئيل امين تپوس اوکړو.چه قيامت به کله راځی؟

**قيامت سره د متعلق سوال، د ماقبل سره ربط** دلته دا سوال پيدا کيږی.چه تير شوی درې واړه سوالونه خو پخپل مينځ کښې مربوط دی.چه هلته کښې هم د يو حقيقت يعنی د دين د

---

١) سوة النساء:١٢٣، ١٢٥)_

٢) فتح البارى(١/١٢٠، ١٢١)_

٣) سورة النجم:٣و ٤)_

٤) فتح البارى(١/١٢١)_

شعبو او مراتبو بيان وو.او په دې دريو وارو كښې هريو په ترتيب سره پرله پسې د يو بل نه وقوع كښې راځى. ،،ايمان،، چه ترقى اوكړى.نو ،،اسلام،، جوړيږى.او ،،اسلام،،چه ترقى اوكړى.نو ،،احسان،، جوړيږى.په دې كښې خو ډير ښه مناسبت او ارتباط (تعلق) شته.خو د ،،ساعة،، سوال په ظاهره غير مربوط معلوميږى.

ددې سوال اجمالاً جواب دا دې.چه د ايمان، اسلام، او احسان مجموعه دين دې.اوهم دادين د كائناتو د تخليق مقصد دې.كله چه ددې دين او ددې د مقتضياتو تكميل اوشى.نو د كائناتو ټول انتظام به هم خپلې انتهاء ته اورسيږى.او هم ددې نوم ،،ساعة،، يا ،،قيامت،، دې.نو د ايمان، اسلام، او احسان نه پس د ،،ساعة،، سوال بالكل مربوط او صحيح مرتب دې.

ددې تفصيل دا دې.چه فرض كړئ.يو ځائې كښې د يوې جلسې انتظام اوكړې شو.او په جلسه ګاه كښې هرقسمه ساز وسامان پوره كړې شو.كه څوك نوې سړې دلته راشى چاته چه ددې انتظاماتو اطلاع نه وى.نو هغه چه راشى.رومبې سوال به دا كوى.چه دلته به څه كيږى؟ دا انتظام چا دپاره كيږى؟ د جلسې د مقصد متعلق سوالاتو ختميدو نه پس كه هغه دا تپوس هم اوكړى.چه دا جلسه به كله ختميږى؟ او دا تمبوان او پنډال وغيره به كله راغونډولې شى.نو دده دا سوال به بالكل مناسب او د طبعى ترتيب عين مطابق وى.

هركله چه په دې خبره تاسو پوهه شوئ.نو اوس دلته تاسو په يوه بله خبره پوهه شئ.چه د تخليق د عالم چه دا يو عالى شان انتظام دې.ددې نه مقصد څه دې؟ د غور كولو نه معلوميږى.چه ټول هرڅه د انسان دپاره پيدا كړې شوى دى.لكه د رب كائنات ارشاد دې.

﴿أَلَمْ تَرَوْا أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُمْ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَأَسْبَغَ عَلَيْكُمْ نِعَمَهُ ظَاهِرَةً وَبَاطِنَةً﴾[1]او بيا ئې د انسان د تخليق مقصد بيان كړې دې. ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ﴾[2]او په يو مقام باندې الله ﷻ سلسله د نعمت او سلسله د عبادت دواړه جمع كړل.او وې فرمائيل: ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ وَالَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ۝ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فِرَاشًا وَالسَّمَاءَ بِنَاءً وَأَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَكُمْ فَلَا تَجْعَلُوا لِلَّهِ أَنْدَادًا وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ﴾[3]

حاصل دا شو چه تخليق د عالم او ددې ټول عالى شان انتظام اصلى مقصد عبادت دې.كله چه دا مقصد مكمل شى.نو ټول آسمانونه او زمكه به راټوله كړې شى.او ټول انتظامات به درهم برهم كولې شى.او دا د ،،قيامت،، او ،،ساعت،، معنى ده.ځكه چه اوس د انتظام ضرورت پاتې نشو.مقصد مكمل طور باندې حاصل شو.هم په دې وجه نبى كريم ﷺ

---

[1]) سورة لقمان: ٢٠)۔

[2]) سورة الذاريات :٥٦)۔

[3]) سورة البقرة:٢١، ٢٢)

فرمائي: «بعث أنا والساعة كهاتين»(١) يعني د نبي كريم ﷺ د ظهور نه روستو قيامت نزدې دې د عالم انتظام د باقي ساتلو هيڅ ضرورت نه پاتې كيږي خكه چه د عبادت اعلى، اكمله او پوره مرتبه په دوى باندې ختمه شوه ددوى نه وړاندې نه ددوى پشان څوك عابد پيدا شوې وو او نه به ددوى نه روستو داسې څوك پيدا شي.نو هركله چه ددوى ذات مبارك سره د عبادت تكميل اوشو.كوم چه د عالم د تخليق مقصد وو.نو بيا دا انتظام ولې باقي ساتلې شي؟ په دې وجه نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه زما بعثت او ظهور د قيامت د نزدې كيدو علامت دې

ګويا د عالم دتخليق نه مقصد عبادت دې.ددې د تكميل متعلق حضرت جبرئيل عليه السلام سوال كړې دې خكه چه د احسان معنى دعبادت تكميل ده.اوس هم دا سوال باقي پاتې كيږي.چه د عبادت ددې اعلى او اكملې مرتبې حاصلولو نه پس چه دې ته ..احسان.. ونيلې شي دا عالم به كله اوچتولې شي؟ او قيامت به كله راځي؟ نو د جبرئيل امين دا سوال مرتبط او د طبعي ترتيب عين مطابق دې.(٢)والله اعلم.

**يوه شبه او د هغې جواب** دلته يوه شبه دا پيداكيږي.چه هركله د نبي كريم ﷺ ذات ګرامي سره د عبادت تكميل شوې وو.كوم چه د عالم د تخليق اصل مقصد دې.نو بيا ددوى نه پس دا عالم باقي ولې اوساتلې شو؟ پكار خو دا وه.چه هم دغه وخت دوى سره سره دا (عالم) هم اخستلې شوې وې.

ددې جواب حجة الاسلام حضرت مولانا محمد قاسم صاحب نانوتوى قدس الله روحه وركړې دې.دوى فرمائي.چه عبادت په دوو طريقو سره كيږي:① يو تكميل خو د عابدانو د كثرت په اعتبار سره كماً او عدداً دې.② او دويم تكميل د عبوديت د وظائفو اداكولو په اعتبار سره كيفاً او حالاً دې.د كيفيت په اعتبار سره خو نبي كريم ﷺ تكميل اوكړو.خكه چه د پيغمبر دوه ركعتونه د امت د ټولو مونځونو په نسبت، د كيف په اعتبار سره ډير زيات دى.بيا د ..كيف.. مدار په معرفت باندې دې.د نبي كريم ﷺ معرفت سره د نورو خلقو د معرفت څه نسبت كيدې شي؟

پاتې شو د كم او عدد په اعتبارسره د عبادت د تكميل معامله، نو تر اوسه پورې ددې وقوع نه ده شوې البته دا به روستو كيږي.كله چه د دنيا هركور د اسلام په رڼرا روښانه شي او كله چه كماً د عبادت تكميل اوشي.نو دا دنيا به راټولولې شي.لكه څنګه چه

---

(١) أخرجه البخاري في صحيحه (٩٦٣١٢) كتاب الرقاق) باب قول النبي ﷺ بعثت أنا والساعة كهاتين من حديث أنس بن مالك وأبي هريرة رضي الله عنهما ومسلم في صحيحه (٤٠۶١٢) كتاب الفتن باب قرب الساعة والنسائي في سننه (٢٣٤١١) كتاب العيدين باب كيف الخطبة من حديث جابر بن عبدالله رضي الله عنه والترمذي في جامعه في كتاب الفتن باب ماجاء في قول النبي ﷺ بعثت أنا والساعة كهاتين رقم ٢٢١٤ وأبوداود الطيالسي في مسنده (٢۶۶)رقم(١٩٨٠) و(ص.٢٨٠) رقم ٢٠٨٩)_

(٢) دتفصيل دپاره اوګورئ فضل البارى(٥٣٧١١) وفتح الملهم (٤٨٤١١، ٤٨٥)_

دوی (ﷺ) پخپله فرمانيلی دی: «لايبقى على ظهر الأرض بيت مدر ولا وبر إلا أدخله الله كلمة الإسلام بعز عزيز أو ذل ذليل، إما يعزهم الله عزّوجل، فيجعلهم من أهلها أو يذلهم فيدينون لها»(١) او دا به د حضرت عيسى ﷺ د نزول نه پس کيږی کله چه دا تکميل اوشی نو بيا به دا انتظام اوچتولې شی. (٢)والله اعلم.

**قوله** قَالَ مَا الْمَسْئُولُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ: وې فرمانيل چه د قيامت په باره کښې دچا نه تپوس کړې شوې دې. هغه د تپوس کونکی نه زيات نه پوهيږی يعنی څومره چه سائل ناخبره دې. هغومره مسئول ناخبره دې

امام حميدی ﷫ په ،،نوادر،، کښې هم دا سوال او جواب د حضرت جبرئيل او حضرت عيسى ﷺ په مينځ کښې نقل کړې دې. او هم دا امام شعبی ﷫ مرسلاً روايت کړې دې. البته په دې کښې سائل حضرت عيسى ﷺ وو. او مسئول حضرت جبرئيل ﷺ وو هغوی په جواب کښې بعينه هم دا جمله فرمائيلې وه. چه «مال المسئول عنها بأعلم من السائل»(٣)

دلته نبی کريم ﷺ په جواب ورکولو کښې ،،لاأدری،، يا ،،لاأعلم،، يا ،،ما أنا بأعلم منك،، هم فرمائيلی شو. خو ددې تعبيراتو په ځائې ئې د «مال المسئول عنها بأعلم من السائل» تعبير اختيار کړې دې. ددې وجه په اصل کښې اشاره کول دی. هغه حقيقت طرف ته. چه په دې جواب کښې زما او ستا تخصيص نشته. بلکه په دنيا کښې هر سائل او مسئول عنه ددې په جواب کښې په يوه سطح باندې دی. هيڅ يوکس ته ددې علم نه دې ورکړې شوې. (٤)

بيا په دې جمله کښې ،،ما،، مشابه بليس ده. ،،المسئول عنها،، ددې اسم دې په ،،بأعلم،، کښې باء زائده د نفی دتاکيد دپاره ده. ،،أعلم،، خبر دې. (٥)

دلته به د ،،اعلم،، اسم تفضيل کيدو په وجه دا نتيجه نشی اخذ کولی چه زه ستانه زيات پوهه نه يم. او په نفس علم کښې مونږه دواړه برابر يو. دا نتيجه اخستل غلط دی. د نفی د تاکيد مطلب دا دې. چه د نفس علم نفی مراد ده.

خلاصه دا چه ددې جملې نه اګرچه په علم کښې تساوی معلوميږی. خو په حقيقت کښې تساوی په عدم علم کښې مقصود ده. چه ما او تا ته ددې د وخت په باره کښې هيڅ علم هم نشته. خکه چه ددې علم الله تعالى سره خاص دې. لکه څنګه چه روستو ذکر دی. «في خمس لا يعلمهن إلا الله»(٦)

---

(١) مسند أحمد (٤/٦) من حديث المقداد بن الأسود ﷛_

(٢) فتح الملهم (٤٨٦/١) وفضل البارى(٥٣٦/١)_

(٣) فتح البارى(١٢١/١) وإرشاد السارى(٥٤٠/١)_

(٤) فتح البارى(١٢١/١)

(٥) المصدر السابق)_

(٦) المصدر السابق)_

امام نووى رحمه الله ددې جملې نه استنباط كوى فرمائى چه كله د يو عالم نه څه داسې سوال اوكړې شى دكوم چه ده ته علم نه وى نو هغه له صراحت سره ونيل پكار دى چه ماته علم نشته په دې كښې دده په مرتبه او مقام كښې هيڅ نقص نه لازميږى بلكه دا دده د ورع او تقوى دليل دې (١)

امام قرطبى رحمه الله فرمائى چه ددې سوال نه اصل مقصود دا دې چه خلقو به د قيامت واقع كيدو د وخت په باره كښې ډير زيات سوالونه كول په دې وجه ددې سوال په ذريعه ټول خلق منع كړې شو چه دا سوال اونكړې شى خكه چه هركله جواب «مال المسئول عنها بأعلم من السائل» وركړې شو نو د ټولو اميدونه منقطع شول خو كله به قيامت قائميږى حالانكه ددې نه د مخكنو سوالونو مقصود اوريدونكو ته جواب ښودل وو ګويا ددې سوالونو په ذريعه خلق خبرول مقصود دى چه څنګه قسم سوالونه كولې شى او څنګه قسمه سوالونه نشى كولې (٢) والله اعلم.

**قوله: وَسَأُخْبِرُكَ عَنْ أَشْرَاطِهَا:** زه به تاته د قيامت علامات اوښايم.

دكتاب التفسير په روايت كښې د «ولكن سأحدثك» الفاظ دى (٣) او د ابو فروه په روايت كښې د «ولكن لها علامات تعرف بها» (٤) الفاظ دى ددې رواياتو نه معلوميږى چه دوى پخپله دا علامات ذكركړى وو حالانكه د كهمس په روايت كښې دا الفاظ دى «قال: فأخبرني عن أمارتها، فأخبره بها.....» (٥) ددې نه معلوميږى چه حضرت جبرئيل عليه السلام دعلاماتو بيانولو مطالبه كړې وه چه په دې باندې دوى دا علامات بيان كړى وو.

د دواړو په مينځ كښې به د تطبيق صورت دا وى چه رومبى نبى كريم صلى الله عليه وسلم فرمائيلى وو چه زه به تاته علامتونه اوښايم په دې باندې هغوى مطالبه اوكړله. ددې تائيد دسليمان تيمى د روايت په الفاظو سره كيږى هغې كښې دى «ولكن إن شئت نبأتك عن أشراطها، قال أجل» داسې قسمه الفاظ دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دحديث هم دى په هغې كښې د «حدثني» اضافه هم شته (٦)

«أشراط» د «شرط» (بفتحتين) جمع ده ددې معنى د علامت ده (٧)

---

(١) المصدر السابق_
(٢) المصدر السابق_
(٣) صحيح بخارى (٢/٧٠٤) تفسير سورة لقمان )_
(٤) فتح البارى (١/١٢١)_
(٥) المصدر السابق_
(٦) المصدر السابق_
(٧) النهاية لابن الأثير (٢/٤٦٠)_

امام قرطبي رحمه الله فرمائي چه د قيامت علامات دوه قسمه دي. ① يو هغه علامتونه دي چه معتاد دي. ② او بل هغه علامتونه دي كوم چه غير معتاد دي. دلته معتاد علامتونه مراد دي كوم چه د غير معتاد علامتونو مثلاً د مغرب نه د نمر راختلو وغيره نه مقدم وي.([1])
والله اعلم.

بيا دلته دا اشكال شوي دې چه اشراط د جمع صيغه ده. او په جمع كښې على الاقل درې افراد وي. حالانكه دلته صرف دوه علامتونه ذكر دي؟

ددې ① يو جواب خو دا وركړې شوي دې چه اقل د جمع دوه دي. ② او دويم جواب، او هم دا اصح دې. دا دې چه اصل كښې دې روايت كښې اختصار دې دلته كښې ،،أن تلد الأمة ربها،، او د ،،إذا تطاول رعاة الإبل البهم،، ذكر دې حالانكه په كتاب الفسير كښې ،،ولادة،، او د ،،إذا كان الحفاة العراة رؤوس الناس،،([2]) تذكره ده. او د ابن خزيمه په روايت كښې د دريو وارو علامتونو ذكر دي. امام مسلم رحمه الله ددې روايت سند د ،،محمد بن بشير،، په طريق سره ذكر كړې دې. دغه شان اسماعيلي په مستخرج كښې د ابن عليه په طريق سره نقل كړې دي. عماره بن القعقاع هم درې واړه علامتونه ذكر كړي دي. او د حضرت عمر رضي الله عنه په حديث كښې هم د دريو واړو ذكر دې.([3]) والله اعلم.

**قوله: إِذَا وَلَدَتْ الْأَمَةُ رَبَّهَا:** كله چه وينځه خپل آقا اوزيګوي.

د كتاب التفسير په روايت كښې د ،،ربتها،، لفظ دې. د حضرت عمر رضي الله عنه په حديث كښې هم دغه شان دې. د عماره او بن القعقاع او ابو فروه په روايتونو كښې د ،،إذا رأيت المرأة تلد ربها،، الفاظ دي. حالانكه د عثمان بن غياث په روايت كښې دا جمله د جمع په الفاظو سره ،،الإماء أربابهن،، راغلې ده. د مسلم شريف په يو روايت كښې ،،أن تلد الأمة بعلها،، الفاظ راغلي دي.([4])

د ،،رب،، نه مراد دلته كښې ،،سيد،، او ،،مالك،، دې. كه ،،ربة،، وي. نو ددې معنى به ،،سيده،، وي. يا به د ،،نسمة،، په تاويل كښې ګرځولې شي. او مذكر او مونث دواړه به مراد اخستلې شي. د ،،بعل،، نه مراد هم ،،رب،، ،،سيد،، او ،،مالك،، دې. لكه څنګه چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما او نورو مفسرينو د ﴿أَتَدْعُونَ بَعْلًا﴾ (الصافات: ۱۲۵) تفسير په ،،رب،،

---

[1] فتح البارى (۱۲۱/۱)_
[2] دا دريم علامت دې)_
[3] فتح البارى (۱۲۱/۱، ۱۲۲)
[4] فتح البارى (۱۲۲/۱) وعمدة القارى (۲۸۴/۱)_

سره كړې دې بعضې حضرات وائى چه د ،،بعل،، نه دلته كنبې ،، زوج،، مراد دې.(١)
د مذكوره جملې مطلبونه ددې جملې څه مطلب دې؟ په دې كنبې اختلاف دې.علامه ابن التين رحمه الله فرمائى چه ددې جملې اووه مطلبونه بيان كړې شوى دى.هغوى دا اووه مطلبونه ذكركړى دى (٢)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا اووه مطلبونه اكثر متداخل دى.د خلاصې په طور څلور مطلبونه راوخى:

① د ټولو نه رومبې مطلب كوم چه زيات مشهور دې.كوم چه امام خطابى رحمه الله ذكركړې دې.(٣) او امام نووى رحمه الله دا د اكثرو عالمانو قول ګرځولې دې.(٤) دا دې.چه په آخره زمانه كنبې كله اسلام ښه خور شى.ملكونه او علاقې فتح كړې شى.د هغوى بچى او ښځې به قيديانې كړې شى.د هغوى نه چه كوم اولاد اوشى.هغه به د پلارانو قائم مقام وى.او د اولاد به هغه حيثيت وى.كوم چه د پلارانو وى.او د پلارانو نه پس به د هغوى د املاكو وارثان وى.په دوى كنبې به د هغوى ميندې هم وى.

خويه دې باندې اشكال دا دې.چه د وينځو او قيديانو كثرت او د اسلامى حدونو وسعت خو د صحابو رضي الله عنهم په زمانه كنبې اوشو.حالانكه دلته سياق د كلام ددې تقاضا كوى.چه دلته د قيامت نزدې هغه علامات بيانول مقصود دى.كوم چه تر اوسه پورې نه دى واقع شوى؟

امام وكيع رحمه الله د ابن ماجه په روايت كنبې ددې جملې تفسير كولو كنبې فرمائى.،،تلد العجم العرب،،(٥) چه عرب به عجم زيګوى.مطلب دا دې.چه د عرب خلق به عجم ختم كړى.د هغوى ښځې به قبضه كنبې راشى.د هغوى نه به اولاد پيداكيږى.او هغوى به د خپلو پلارانو د مرګ نه پس د هغوى وارثان وى.

ابراهيم حربى رحمه الله دا په يو مخصوص صورت كنبې پيش كړې دې.فرمائيلى ئې دى.((ان الإماء يلدن الملوك فتصير الأم من جملة الرعية، والملك سيد رعيته)) بيا ئې د دې معنى د نزدې كولو يو صورت دا بيان كړې دې.چه په مخكنبې زمانه كنبې به خلقو د حرائرو( آزادو ښځو) عزت كولو.او د وينځو نه به ئې ددوى د استفراش (صحبت) او دوى سره د نكاح كولو نه به ئې ځان ساتلو.خو روستو معامله الټه شوه.خصوصاً د بنو عباس په زمانه كنبې.
خويه دې باندې هم اشكال وارديږى.چه دا ټول واقعات خو ډير وړاندې اوشو.او په حديث كنبې چه كوم علامتونه بيانولې شى.په ظاهره دا قيامت ته نزدې علامات دى.

---

(١) فتح البارى(١٢٢/١)وعمدة القارى(٢٨٩/١)_
(٢) فتح البارى(١٢٢/١)_
(٣) أعلام الحديث للخطابى(١٨٢/١)_
(٤) شرح النووى على صحيح مسلم(٢٨/١)_
(٥) سنن ابن ماجه ،المقدمة باب فى الإيمان رقم ٦٣)_

دويم مطلب ئې دا بيان کړې شوې دې چه قيامت ته نزدې به انقلاب حال وی. خلق به د مسئلو نه ناخبره وی خلق به د خپل اولاد ميانډې خرڅوی بيا په يو بل خرڅولو. خرڅولو سره به دا د خوی په قبضه کښې راشی کيدې شی چه د جهالت په وجه دوی سره د خادمانو پشان معامله اوکړی يا هغې لره خپله مستفرشه (موطوءه) جوړه کړی.
په دې باندې اشکال کړې شوې دې چه د ام ولد د بيع مسئله خو مختلف فيها ده دا دلته ذکر کول ئې بې معنی دی دلته خو علامات د قيامت ذکر کولې شی هم دا وجه ده.چه ددې حديث نه بعضې عالمانو د ام ولد د بيع په جواز باندې استلال کړې دې.او بعضو په حرمت باندې. نو په دوی باندې نورو عالمانو نکير کړې دې.چه دا خو د قيامت علامات دی.ددې حلت او حرمت سره څه تعلق دې؟ يعنی ددې نه په حلت او حرمت باندې استدلال کول صحيح نه دې.
ددې جواب دا دې.چه دلته مطلقاً د امهات اؤلاد د بيع کثرت خودل مقصود دی.او هم دا د قيامت د نزدې کيدو علامت دې.ددې دجواز او عدم جواز او د حلت او حرمت نه بحث او مناقشه مقصود نه ده.څکه چه د قيامت د علاماتو دپاره دا ضروری نه ده.چه دا مباح وی يا غير مباح وی.دا خو محض علامات دی.
بعضو عالمانو ددې يو دريم صورت دا بيان کړې دې.چه دلته مسئله د ام ولد اخستلو سره متعلق نه ده.بلکه دې صورت سره متعلق ده.چه يوه وينځه ده.او ددې سره يوکس وطی بالشبهه اوکړله.چه ددې نه يو آزاد پيدا شو.يا د وينځې نکاح يو کس سره اوشوه.او د هغه نه ئې اولاد اوشو.چه غلام دې.يا دې وينځې سره يو کس زنا اوکړله.چه د هغې نه اولاد اوشو.بيا دا وينځه خرڅه کړې شوه.او دا مسلسل خرڅيدله.تردې چه دا خپل څوی يا لور واخستله.
بعضې عالمان فرمائی.چه اصل کښې د زمانې انقلاب مقصود دې.چه اولاد به خپلو ميانډو سره د بې مروتۍ او نافرمانۍ معامله کوی.ددوی د فرمانبردارۍ په ځائې به دوی سره حاکمانه انداز اختياروی.دحافظ ابن حجر رحمه الله رجحان هم دې طرف ته دې [1] والله اعلم.

**قوله**: وَإِذَا تَطَاوَلَ رُعَاةُ الْإِبِلِ الْبُهْمُ فِي الْبُنْيَانِ: او کله چه د تورو اوښانو څرونکی د کورونو په جوړولو کښې خپل مينځ کښې فخر شروع کړی.

د ,,تطاول،، معنی ,,تفاخر،، ده.[2] ,,رعاة،، د ,,راع،، جمع ده.لکه څنګه چه ,,قضاة،، د ,,قاض،، جمع ده.[3]

,,البهم،، دا د باء موحده په ضمې، او د ,,هاء،، په سکون، سره دې.د ,,بهيم،، جمع ده.

---

[1] دپوره تفصيل دپاره اوګورئ . فتح البارى (۱۲۲/۱و ۱۲۳) وعمدة القارى(۲۸۹/۱)_
[2] عمدة القارى(۲۸۵/۱) وفتح البارى(۱۲۳/۱)_
[3] المصادر السابقة)-

ددې معنی ،،اسود،، ده.(۱)دا مجرور دې خکه چه د ،،الابل،، صفت دې.(۲)تور اوښ په عربو کښې حقیر مال ګنړلې کیږی. (۳)مطلب دا دې چه کوم خلق حقیر او کم تر وی.هغوی سره مالونه وی لوئې لوئې بلډنګونه او لوئې لوئې محلونه جوړ کړی.او تفاخر شروع کړی.

د یو بل روایت مطابق ،،البهم،، مرفوع دې.(۴)په دې صورت کښې به ،،رعاة،، صفت وی.(۵)

او ددې معنی به یا دا وی.چه دا څرونکی به توررنګې (حبشیان) وی.(۶)یا دا مطلب دې.چه دا به مجهول الانساب وی.(۷) یعنی اوچت نسب والا به نه وی.خکه چه اوچت نسب والا سرې مشهور وی.والله اعلم.

حاصل ددې جملې دا دې.چه د قیامت د علاماتو نه یو علامت دا دې.چه حالات به بالکل بدل شی.څرونکی به د علم نه بالکل بې خبره وی.او د ښکته درجې خلق به په ښارونو باندې قابض شی.دوی سره به د مالونو کثرت وی.او ټول همت او پوره فکر به عمارتونو جوړولو او په دې باندې فخر کولو کښې صرف کیږی.،،والله أعلم بالصواب،،_

ګویا د قیامت په دې دواړو علامتونو کښې رومبې علامت ،،إذا ولدت الأمة ربها،، کښې تدبیر منزل کښې، فساد طرف ته اشاره ده.چه خانه داری نظام به خراب شی.واړه به دغتو خبره منل پریږدی.او دوی به نافرمانه جوړ شی.او په دویمه جمله ،،إذا تطاول.....،، کښې اشاره ده.مدنی سیاست کښې د احوالو انقلاب طرف ته چه په انتظام د مملکت کښې به تباهی ښکاره شی.کوم خلق چه نا اهله وی.هغوی به مشران جوړشی.په یو حدیث کښې راغلی دی.،،إذا وسد الأمر إلى غير أهله فانتظر الساعة،،(۸) دغه شان په یو بل حدیث کښې دی.،،لا تقوم الساعة حتى يكون أسعد الناس بالدنيا لكع بن لكع،،(۹)

کوم علامتونه چه نبی کریم ﷺ بیان کړی دی.دا ټول په ټول علامتونه چه نن په څومره تیزئ

---

(۱) أعلام الحديث للخطابی(۱۸۲/۱)_

(۲) فتح الباری(۱۲۳/۱) وعمدة القاری(۲۸۶/۱و ۲۸۷)_

(۳) فتح الباری(۱۲۳/۱)_

(۴) عمدة القاری(۲۸۷/۱) وفتح الباری (۱۲۲/۱)_

(۵) أعلام الحديث للخطابی (۱۸۲/۱)_

(۶) شرح النووی علی صحيح مسلم (۲۹/۱) وفتح الباری(۱۲۳/۱) وعمدة القاری(۲۸۷/۱)-

(۷) أعلام الحديث (۱۸۲/۱) والمصادر السابقة)-

(۸) صحيح بخاری(۱٤/۱) كتاب العلم باب من سئل علماً وهو مشتغل فی حديثه فأتم الحديث ثم أجاب السائل رقم ۵۹ و(۹۶۱/۲) كتاب الرقاق باب رفع الأمانة رقم ۶٤۹۶)_

(۹) جامع الترمذی كتاب الفتن باب منه (أی مما جاء من أشراط الساعة )رقم الباب (۳۷) رقم الحديث (۲۲۰۹)_

سره بنکاره کیږي دا د هیڅ چا نه پټ نه دي.

**قوله في خمس لا يعلمهن إلا الله ثم تلا النبي صلى الله عليه وسلم إن الله عنده علم الساعة الآية:** (د قیامت علم) په دې پنځو څیزونو کښې دې چه دهغې علم د الله تعالى نه سوا هيڅ چا سره نشته بيا نبی کريم ﷺ ﴿إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ﴾ تلاوت کړو.

دا ،،في خمس،، دمبتدا محذوف خبر دې او ددې متعلق هم محذوف دې تقدير به داسې وی.

«علم وقوم الساعة داخل في خمس......» د جار مجرور متعلق محذوف کول جائز دی لکه څنګه چه په آيت کريمه ﴿وَأَدْخِلْ يَدَكَ فِي جَيْبِكَ تَخْرُجْ بَيْضَاءَ مِنْ غَيْرِ سُوءٍ فِي تِسْعِ آيَاتٍ إِلَى فِرْعَوْنَ وَقَوْمِهِ﴾ (۱)

کښې د ،،في تسع آيات،، متعلق محذوف دې او تقدير ئې داسې دې «اذهب إلى فرعون بهذه الآية في جملة تسع آيات» (۲)

هغه پنځه څیزونه د کومو ذکر چه د قرآن کریم په دې آیت کښې شوې دې دا دی.

① ﴿إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ﴾ ② ﴿وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ﴾ ③ ﴿وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ﴾

④ ﴿وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا﴾ ⑤ ﴿وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ﴾ (۳)

**ايا مغيبات په پنځو امورو کښې منحصر دی؟** دلته سوال کیږی چه آیا د الله تعالى علم هم دې پنځو څیزونو سره خاص دې؟ حالانکه علم د الله تعالى غير متناهي دې او دده د علم په وړاندې چه د ټول مخلوق علوم یوځائې شي بیا به هم متناهي وی او قاعده ده چه د غيرمتناهي نه متناهي اوخکلې شي نو بيا هم هغه غیر متناهي وی نو بیا پنځو سره د تخصیص څه وجه ده؟

ددې جواب دا دې چه علامه سیوطی رحمه الله په ،،الدر المنثور،، کښې روایت نقل کړې دې په هغې کښې راغلی دی چه دا آیت د یو سړی د سوال په جواب کښې نازل شوې وو چه هغه ددې پنځو سوالونو په باره کښې سوال کړې وو. (۴) نو په جواب کښې هم دا پنځه ذکرکړې شوی دی تخصیص مقصود نه دی. (۵)

بعضې حضرات فرمائی چه عام طور باندې انسان هم ددې پنځو څیزونو په باره کښې سوال کوی هم ددې شوق لری او هم دې طرف ته توجه ورکوی په دې وجه ددې تخصیص اوکړې شو.

بعضې حضرات فرمائی ،،ذکر عدد لاینفی غیره،، که دلته د بعضو تخصیص اوکړې شو نو د

---

(۱) سورة النمل:۱۲)۔

(۲) فتح الباری(۱/۱۲۳) وعمدة القاری(۱/۲۸۷)۔

(۳) سورة لقمان:۳۴)۔

(۴) تفسير درالمنثور(۵/۱۶۹)۔

(۵) عمدة القاری(۱/۲۹۳)۔

باقي نفي نه لازميږي
شيخ الاسلام شبير احمد عثماني رحمه الله فرمائي.په دې آيت کښې د پنځو څيزونو ذکر شوې دې احاديثو کښې دې ته ،،مفاتيح الغيب،، فرمائيلې شوې دي.[1] چه ددې کلي علم سوال دالله تعالى نه هيڅ چاته نشته.په حقيقت کښې په دې پنځو څيزونو کښې د ټولو غيبيه اکوانو، انواعو طرف ته اشاره ده.چه په هغې کښې ټول غير متناهي مغيبات شامل دي.
مغيبات اولاً په دوه قسمه دي:① د کومو تعلق چه جنس احکامو سره وي.② يا جنس اکوان سره وي.
کوم مغيبات چه جنس احکام دي.د هغې علم کلي او اصولي د ضرورت په اندازه نبي کريم ﷺ او تيرو شوو انبياء کرامو عليهم السلام ته ورکړې شوې وو.د امت اذکياو ددې تفصيل او تبويب اوکړو.ددې نه خو دلته کښې بحث نه دې.ځکه چه دا الله تعالى سره کلياً مختص پاتې نشو.
دلته بحث مغيبات اکوان سره دې.ځکه چه ددې کليات او اصول خو الله تعالى کليةً خپل ځان سره مختص ساتلي دي.البته په جزئيات منتشره باندې ئې ډيرو حضراتو ته د استعداد مطابق اطلاع ورکړله.او نبي کريم ﷺ ته ددې نه هم دومره عظيم الشانه او زياته حصه ملاو شوه.چه دهغې هيڅ اندازه نشي کيدې.او دا مغيبات اکوان غير متناهي دي.خو ددې پنځه انواع دي.① مکاني، ② زماني ،او د زماني بيا درې انواع دي:① هغه کوم چه ماضي سره متعلق دي..② هغه کوم چه حال سره متعلق دي.③ هغه کوم چه مستقبل سره متعلق دي.مجموعي طور باندې دا څلور انواع دي.
بيا د قيامت د وخت علم اګرچه په دې څلورو کښې داخل وو.ځکه چه دا اکوان مستقبليه څنې دې.البته دا ئې جدا ذکرکړو.ځکه چه دا يوه ډيره لويه حادثه ده.چه داسې قسمه حادثه کله هم دنيا ته راپيښه نشوه.او نه به بيا راپيښه شي.هيڅ يو مخلوق ته ددې د وخت علم ورنکړې شو.په دې وجه ئې خصوصيت سره دا مستقلاً ذکرکړو.
ددې پنځو څيزونو نه ﴿بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ﴾ مغيبات مکانيه طرف ته اشاره ده. او﴿وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ﴾ مغيبات زمانيه حاليه طرف ته اشاره ده. ځکه چه آثار د حمل في الحال ښکاره دي. ﴿مَاذَا تَكْسِبُ غَدًا﴾ سره مغيبات زمانيه مستقبليه طرف ته اشاره ده.
اوس يو ﴿وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ﴾ پاتې شو.غالباً په دې کښې مغيبات زمانيه ماضيه طرف ته اشاره ده.يعني باران چه راځي.نو معلوميږي.خو دا چاته معلومه نه ده.چه د مخکښې کوم داسې اسباب ښکاره شوي وو.چه ټيک هم په دې وخت ، په دې ځائې به ، په دومره اندازه باران کيږي.
حاصل دا چه ددې پنځو څيزونو ذکر سره د ټول اکوان غيبيه علم کلي طرف ته اشاره کول مقصود دي.حصر مقصود نه دې.[2]

---

[1] صحيح بخاري(٢/٦٦٦) کتاب التفسير.سورة الأنعام باب قوله: ﴿وعنده مفاتح الغيب لا يعلمها إلا هو﴾_
[2] تفسير عثماني (٥٥٢) حاشية وفضل الباري(١١/٥٤٠و ٥٤١)_

آیا په کوائن غیبیه باندې اطلاع حاصلیدل ممکن نه دي؟ ددې بحث په رو سره دا سې کیږي چه
وو چه ددې پنځو څیزونو نه د هیڅ یو جزئي خبرې علم هم چانه حاصل نشي حالانکه مونږ
په سوونو واقعات ددې په خلاف ګورو د اولیاء کرامو رحمهم الله کرامتونه کثرت سره منقول
دي چه هغه ددې اختصاص په خلاف باندې دلالت کوي حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه ته د رحم
دننه معلوم شوې وو او دوی د وفات نه وړاندې د خپلې حاملې ښځې متعلق فرمائیلي
وو چه ددې به لور کیږي په دې وجه دوی وصیت اوفرمائیلو چه دا حمل دې جینۍ ومنلې
شي او ترکه دې تقسیم کړې شي(۱) . دغه شان په پنجاب کښې یو بزرګ وو عبد الله شاه.
دا د حضرت میان جي نور محمد جهنجهانوي رحمه الله پیرېهائي وو او د حضرت شاه
عبدالرحیم ولایتي خلیفه مجاز وو دوی چه به د ماشوم پیدا کیدو د درد تعویذ ورکولو نو
ورسره به ئې دا هم فرمائیل چه هلك به کیږي او که جینۍ.دا د دوی مشهور کرامت وو دغه
شان به منجمین او کاهنان پیشنګویانې کوي چه دا کله کله د واقع مطابق ښکاره
کیږي دغه شان نن صبا د جدیدو آلاتو په ذریعه دا معلوموي چه په رحم کښې دننه د بچي
جنس څه دې؟ د محکمه موسمیات ماهرین د باران کیدو یا نه کیدو په باره کښې وړاندې
خبر ورکوي .ددوی دا پیش ګوئي ډیر خل (اکثر) صحیح کیږي.

ددې اشکال د جواب نه وړاندې یوه مقدمه باندې پوهه شئ.که د یو څیز څه اصول وي او
څه فروع وي.نو اصلي علم به هغه وخت وي کله چه ددې د اصولو علم وي.فرض کړئ.یو
سړې د سل دوو سوو. یا د دوه څلور زرو مرضونو او ددې نسخې ګوته (او رټ یادې)
کړي.نو آیا ده ته به طبیب وئیلې شي؟ بلکه طبیب به هغه کس ګڼړلې کیږي.کوم چه د طب
د اصولو او ددې د فن نه خبر وي.اګرچه مرضونه او نسخې ئې نه وي ګوته (یاد) کړې.دغه
شان به عالم هغه کس وي.کوم چه د علم د اصولو نه خبر وي.فقیه هغه نه دې.چاته چه صرف
جزئیات د فقهې یاد وي.بلکه فقیه به هغه کس وي.کوم چه په اصول او ماخذ باندې عالم
وي.اګرچه جزئیات ورته یاد وي.

خلاصه د کلام دا ده.چه حقیقي علم هغه دې.چه ددې د اصولو نه واقف وي.نو د یو څیز
عالم ته به هغه وخت وئیلې شي.کله چه ددې د اصولو نه خبردار وي.

په دې مقدمه د پوهیدو نه پس په دې پوهه شئ.چه د غیب جزئیات هم شته.او کلیات هم
شته.لکه څنګه چه د طب جزئیاتو یادولو والا ته د طب عالم او طبیب نه وئیلې کیږي.دغه
شان په غیبي جزئیاتو باندې پوهیدونکي ته عالم غیب نشي وئیلې.

د کلیاتو د علم مطلب دا دې.چه قاعده اوښودلې شي.چه مثلاً فلانۍ قاعدې سره
اوپیژندلې شي.چه فلانۍ ځائې کښې به په فلانۍ وخت دومره انچه باران کیږي.او بیا هم
هغومره باران هغه وخت کښې اوشي.د کوم چه تعین شوې وي.په دې کښې تاخیر نه وي.نو
څوك چه ددې قاعدې علم لري.هغه ته به عالم غیب وئیلې شي.او چاته چه ددې قاعدې علم
نه وي.هغه ته عالم غیب نشي وئیلې کیدې.

---

(۱) صفة الصفوة لابن الجوزي(۱\۲۶۶) ذکر مرض أبي بكر ووفاته رضي الله عنه_

اوس مونږ وايو چه دنيا كښې هيڅ يوكس ته عالم غيب نشي ونيلې كيدې. خكه چه هيڅ يوكس ته هم د كليات تكوينيه علم نشي كيدې صرف يو ذات دې. او هغه د الله تعالى ذات دې چه هغه ته د تكوينياتو علم محيط حاصل دې البته د بعضو امورو انكشاف كيږي خو دې ته علم نشو ونيلې. كه په يوه طريقه مونږ ته معلومه شي چه ددې په خيټه كښې هلك دې خو كه څوك تپوس اوكړي چه هلك ولې دې؟ نو يقيناً چه مونږ سره به ددې جواب نه وي نو د قاعدو او د غيب د اصولو علم هيڅ يو نبي. هيڅ ولى ته نشي كيدې دا علم د الله تعالى قدرت سره مخصوص دې كه د يوې قاعدې علم وي نو دا مفتاح جوړيږي د ډيرو د جزنياتو د علم، پخپله الله تعالى فرمائيلى دى: ﴿وَعِندَهُۥ مَفَاتِحُ ٱلْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَآ إِلَّا هُوَ﴾
ددې نه معلومه شوه چه د غيب د قواعدو او ضوابطو علم، او په تكوينياتوكښې د غيب د كلياتو علم سوا د الله تعالى نه بل چا ته نشته البته د بعضو جزئيات خبر كيدې شي البته د تشريعاتو په ميدان كښې د كلياتو علم غيب انبياء عليهم السلام ته شته خكه كه دا علم دوى ته ورنكړې شي نو ددوى په كار كښې به فرق راشي البته دا په دومره اندازه ملاويږي څومره چه الله تعالى د خپل حكمت موافق وركړي.
خلاصه داچه په حوادثو د زمانې باندې څوك خبريدې نشي او د جزنياتو عالم ته عالم غيب نشي ونيلې كيدې پاتې شو د يو جزئي علم چا باندې منكشف كيدل، نو دا بله خبره ده او دا انبياء عليهم السلام او اولياءكرامو ﷺ دواړو ته كيږي البته په دې دواړو كشفونو كښې فرق وى او هغه فرق دا دې كوم چه په سورت جن كښې فرمائيلې شوې دې. ﴿عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلَىٰ غَيْبِهِۦٓ أَحَدًا إِلَّا مَنِ ٱرْتَضَىٰ مِن رَّسُولٍ فَإِنَّهُۥ يَسْلُكُ مِنۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِۦ رَصَدًا﴾ (١) يعنى هغه عالم غيب دې او په غيب باندې څوك حاوى او مسلط كوى نه، البته انبياء او رسولانو ته چه د تشريعاتو او تكوينياتو څنې چه څومره باندې غواړى خبروى. په دې طريقه چه هيڅ يو څيز په دې كښې نه خلل انداز كيږي نه نفس ته څه خلل وى نه شيطان ته، نه څه قسمه شك او شبهې ته څه خلل وى، ،غرض دا چه د هر څيز نه محفوظ وى خكه چه ددې نه وړاندې روستو پهره دار وى ددې نه معلومه شوه چه نبي ته كوم كشف كيږي يا وحى راځي هغې سره پهره داران وى په دې وجه دې كښې د غلطئ احتمال نشي كيدې په خلاف د ولى د كشف چه په دې كښې دغلطئ احتمال هم شته اود شبهې گنجائش هم وى په دې وجه دواړه برابر نشي كيدې اوس دوه فرقونه شو د نبي علم قطعي دې او د ولى علم ظني دې. هلته د الله تعالى ذمه دارى شته او دلته نشته او دا ټول د علم جزنيات دى دكلياتوعلم دالله تعالى سره مختص دې داعلوم نه نبي ته حاصل دى اونه ولى ته دوى ته چه څومره حاصليږي. كه هر څومره زيات وى ټول جزئيات دى په دې وجه ورته عالم غيب نشي ونيلې كيدې.
بيا دلته ددې وضاحت هم ضرورى دې چه د ،،غيب،، معنى ده «ما لا يقع تحت الحواس، ولا تقتضيه بداهة العقل» او كوم غيب سره چه الله تعالى منفرد دې په هغې كښې دومره قيد نور

(١) سورة الجن ٢٦، ٢٧-

هم دي. ''ولم ينصب عليه دليل،،(١) يعني په نظر او فكر او دليل عقلي سره هم معلومه نشي. گني بيا به غيب نه وي.
پاتې شو نجوميانو ته علم كيدل، او پيشنگوياني وغيره كول.يا د كسوف او خسوف متعلق څه ښودل، نو دا په اصل كښې علم غيب نه دې.ځكه علم غيب هغه دې.كوم چه د عقل په ذريعه حاصل نشي.او دا نجوميان چه كوم څه وائي.دا ټول حسابي څيزونه دي.چه دا هر سړې حاصلولې شي.ځوك چه دا فن د عقل په ذريعه زده كړي.او په دې كښې د غلطئ هم هميشه احتمال وي.كه حساب صحيح شو.نو نتيجه به صحيح راوځي.كه حساب غلط شو. نو نتيجه به غلطه راوځي.
دغه شان مون سون (بادونه) كتل، او دا وئيل چه فلاني ځائې كښې به باران كيږي.او دآلاتو په ذريعه د مون سون مقدار معلومول، او دا حكم وركول چه دومره ډكري باران به كيږي.دا علم غيب نه دې.دا خو به علاماتو سره د ذي علاماتو علم حاصلول دي.لكه ځنگه چه نبض كتلو سره تبه معلوموي.او د تهرماميټر آلې په ذريعه د حرارت مقدار ښائي.
بيا په مون سون سره چه د باران كوم خبر وركولې شي.هغه محض تخميني (اټكل) وي.دا ډير ځل مشاهدې او تجربې سره غلط ثابتيږي.نو دا علم چرته شو؟ صرف يوه تخمينه شوه. البته يقين سره پوره تعين اوكړي.چه فلاني وخت به، په فلانئ خاص رقبه او په محدود خطه كښې خاص دومره مقدار باران كيږي.كه ټوله دنيا ملاو شي.نو بيا هم دا نشي ښودلې.
دغه شان كه بالفرض د آلاتو په ذريعه يو ډاكټر نن صبا ايكسرې اوباسي.او ''مافي الارحام،، اوښائي.چه هلك دې او كه جينئ ده.دې ته به هم علم غيب نشي وئيلې.ځكه چه دا خو حاسه سره علم حاصلول دي.غيب چرته پاتې شو. (٢)والله سبحانه أعلم۔
**مسئله د علم غيب** د قرآن او حديث د نصوصو په رڼا كښې د علم غيب په مسئله كښې د اهل حق اهل السنة والجماعة مسلك بالكل ښكاره او بې غباره دې.
علامه شبيراحمد عثماني رحمه الله فرمائي: د كل مغيباتو علم سوا د الله تعالى نه هيڅ چاته حاصل نه دې.نه د يو غيب علم يوكس ته بالذات د الله تعالى د عطاء نه بغير كيدې شي.او نه مفاتيح غيب ( د غيب هغه كنجياني د كوم ذكر چه سورة انعام كښې تيرشو) الله تعالى يو مخلوق ته وركړې دې.البته بعض بنده گان ئې په بعضو غيبونو باندې پخپل اختيار سره خبر كړي دي.ددې وجه وئيلى شو.چه فلاني سړي ته الله تعالى په غيبو باندې خبر وركړې دې.يا ئې د غيبو خبر وركړو .خو د دومره خبرې په وجه قرآن او سنت په هيڅ يو ځائې كښې يو سړي باندې د ''عالم الغيب،، يا د ''فلان يعلم الغيب،، اطلاق نه دې كړې.بلكه احاديثو كښې په دې باندې انكار كړې شوې دې.ځكه چه په ښكاره دا الفاظ د الله تعالى د ذات سره دعلم غيب د اختصاص خلاف پيدا كوي.په دې وجه محققين عالمان اجازت نه وركوي.

---

(١) تفسير روح المعاني(١١٤/١) تفسير قوله تعالى:(الذين يؤمنون بالغيب)۔
(٢) ددې ټولو تفصيلاتو دپاره اوګورئ:فضل البارى (٥٣٨/١، ٥٤١) درس بخارى(٢٩١/١، ٢٩٣)۔

چه د داسې قسمه الفاظو په يو بنده باندې اطلاق اوکړې شی اګرچه لغتاً صحيح وی.

لکه د يوکس دا وينا چه ،،إن الله لايعلم الغيب،،( الله تعالى ته علم غيب نشته)سخت ناروا او بې ادبی ده. اګرچه دهغه مراد دا وی.چه د الله تعالى په اعتبار سره هيڅ يو څيز دسره غيب نه دې يا د يو کس د ،،حق،، نه مرګ، او د ،،فتنې،، نه اولاد ، او د ،،رحمت،، نه باران مراد اخستل، او دا الفاظ وئيل. چه ،،إنى اكره الحق، وأحب الفتنة وأفر من الرحمة،، سخت مکروه او قبيح دی اګرچه د نيت او مراد په اعتبار سره قبيح نه دی.دغه شان ،،فلان عالم الغيب،، وغيره الفاظو اوګنړه.

او يوهه شئ:چه علم غيب نه زمونږ مراد صرف ظنون او تخمينات نه دی.او نه هغه علوم مراد دی.کوم چه قرائنو او دلائلو سره حاصل کړې شی.بلکه دکوم دپاره چه څه دليل او قرينه موجود نه وی.هغه مراد دې.(١)

**د اهل سنت والجماعت د عقيدې خلاصه** د اهل سنت د عقيدې خلاصه دا ده.چه علم ذاتی محيط تفصيلی کوم چه بلا استثناء ټولو معلوماتو باندې حاوی وی.دا د الله تعالى دخواصو څنې دې.په دې کښې نه څوک رسول شريك دې.نه غير رسول.

بيا د الله تعالى په عطاء سره په ذريعه د وحی يا الهام د عالم شهادت پشان دعالم غيب هم ډير څيزونه د الله تعالى مقرب بندګانو ته معلومېږی.او په دې کښې دانبياء او ملائکو عليهم السلام حصه د ټولو نه زياته ده.او په ډله د انبياو کښې هم خاص کر د سيدالانبياء والمرسلين خاتم النبيين ﷺ درجه په دې کمال کښې دټولو نه زياته اوچته ده.او دوی د الله تعالى نه پس د ټولو نه زيات عالم دې.

خو ددې باوجود دا وئيل صحيح نه دی.چه نبی کريم ﷺ ته دټولو ممکناتو حاضره او غائبه علم عطاء کړې شوې دې.او دا عقيده هم صحيح نه ده.چه نبی کريم ﷺ ته د ،،ماكان وما يكون إلى يوم القيامة،، علم حاصل وو.او د عالم پيدا کولو د ابتداء نه واخله، جنت او دوزخ ته داخليدو پورې هيڅ ذره د نبی کريم ﷺ دعلم نه بهر نه ده.ځکه چه د بعضو ،،ماكان وما يكون،، علم نبی کريم ﷺ ته نه کيدل د کتاب او سنت د نصوصو نه ثابت دې.ددې نه اختلاف کول محبت نه دې.بلکه بغاوت او ضلالت دې.

**د مولوی احمد رضاخان بريلوی او دده د متبعينو عقيده** مولوی احمد رضاخان بريلوی چه په مختلفو کتابونو کښې کوم څه ليکلی دی.د هغې په رڼرا کښې ددوی مسلك دا دې.چه د عالم د پيدا کولو د ابتداء نه واخله تر دمحشر د هنګامې ( د حساب اوکتاب وغيره) ختميدو. يا په نورو الفاظو کښې داسې چه جنت او دوزخ ته داخليدو پورې ټول واقعات جزئيه اوکليه.دينيه اودنيويه علم تفصيلی محيط، نبی کريم ﷺ ته عطاء کړې شوې دې.(٢)

---

(١) تفسيرعثمانی(ص٥١٠)_

(٢) أنباء المصطفى (ص٣٠) والكلمة العليا(ص٢٣)_

دلته د يوڅيز تحقيق ضروري دي.هغه دا چه دا حضرات ددې علم حصول نبي كريم ﷺ
دپاره د كوم وخت نه مني؟ په دې كښې دې خلقو عجيبه خبط (او خلط) كړې دې.يوصاحب
فرمائي.چه نبي كريم ﷺ كوم وخت دمور په خيټه كښې وو.هغه وخت دوى ته دا د،، ماكان و
مايكون،، علم حاصل شوې وو.لكه قاضي فضل احمد صاحب لدهيانوى پخپل كتاب ،،انور
آفتاب صداقت،، كښې يو روايت دا نقل كړې دې.چه نبي كريم ﷺ اوفرمائيل.چه ،،لوح
محفوظ باندې قلم چليدو.او ما اوريدو.حالانكه زه د مور په خيټه كښې ووم.....او بيا ئې
ددې نه دا نتيجه راوښكلې ده.چه ،،ددې نه ښكاره معلوميږى چه نبي كريم ﷺ ته د
مخلوق د ابتداء نه علم غيب حاصل دې.لوح محفوظ ددوى په وړاندې اوليكلې شو د مور
په خيټه كښې علم غيب حاصل وو.([1])
دويم قول دا دې.چه دا علم دوى ته په شب معراج كښې حاصل شو.هم دا قاضي فضل احمد
صاحب لدهيانوى په مذكوره كتاب كښې يو څو عبارتونو نقل كولو نه پس ليكى ،،ددې
عبارتونو حاصل دا دې.چه نبي كريم ﷺ اوفرمائيل.چه په شب معراج كښې زما په حلق
كښې يوه قطره (څاڅكې) واچولې شو.چه ددې په فيضان سره ماته د ،، ماكان وسيكون،، علم
حاصل شو.([2])
چونكه دا دواړه قولونه د ډيرو قطعي نصوصو خلاف دى.په دې وجه مولوى احمد رضاخان
بريلوى دا دواړه اقوال اختيار نكړل.بلكه ددوى په نيز نبي كريم ﷺ ته دا علم د ،،ماكان وما
يكون،،د ټول قرآن نازليدو نه پس حاصل شو.لكه چه مولوى احمد رضاخان بريلوى ليكى.،،
او دا علم د قرآن عظيم ،،تبياناً لكل شئ،، كيدو وركړو.او بيا ښكاره ده.چه دا وصف د پوره
كلام مجيد دې.د هر آيت يا سورت نه دې.نو د جميع قرآن د نزول نه وړاندې كه د بعضو
انبياء عليهم السلام نسبت ارشاد وى.﴿ لَمْ نَقْصُصْ عَلَيْكَ ﴾ د منافقينو په باب كښې اوفرمائيلى
شى.﴿لاتعلمهم﴾هيڅ كله ددې آيتونو نفى او احاط د نبي كريم ﷺ د علم نافى نه دى.([3])
**د بريلوى حضراتو دلائل او دهغې جوابونه** مولوى احمد رضاخان بريلوى او ددوى متبعينو د
قرآن كريم د بعضې آيتونو او يو څو حديثونو نه ددې غلط تاويلاتو كولو سره استدلال كړې
دې.مونږ دلته مختصر ددوى د اهم دليلونو جائزه اخلو.
① ددې حضراتو يو دليل د الله تعالى دا ارشاد دې.﴿ وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ تِبْيَانًا لِّكُلِّ شَيْءٍ وَّهُدًى
وَّرَحْمَةً وَّبُشْرٰى لِلْمُسْلِمِيْنَ ﴾([4])او د الله تعالى ارشاد دې.﴿ مَا كَانَ حَدِيْثًا يُّفْتَرٰى وَلٰكِنْ تَصْدِيْقَ الَّذِيْ بَيْنَ

---

[1]) انوارآفتات صداقت از قاضي فضل احمد لدهيانوى(ص.١٣٧)-
[2]) انوارآفتاب صداقت از قاضي فضل احمد لدهيانوى(ص.١٣٧)-
[3]) أنباء المصطفى(ص.٤)_
[4]) سورة النحل :٨٩/

يَدَيْهِ وَتَفْصِيلَ كُلِّ شَيْءٍ....﴾ (۱) دغه شان د الله تعالى فرمان دې ﴿مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتَابِ مِنْ شَيْءٍ﴾ (۲) خان صاحب ليکی، چه ،،نکره په حيزدنفی کښې مفيده د عموم ده.او لفظ د ،،کل،،خو داسې عام دې.چه هيڅ کله هم خاص نه مستعمليږی.او عام په افاده د استغراق کښې قطعی ده.او نصوص به هميشه په ظاهر باندې محمول کيږی.د دليل شرعی نه بغير د تخصيص او تاويل اجازت نشته.گنی شريعت نه به امان اوچت شی،،.(۳)

هم ددې نصوصو په لحاظ سره خان صاحب بريلوی او ددوی د متبعينو په نيز ،، بې شکه الله تعالى خپل حبيب اکرم ﷺ ته د اولين او آخرين ټولو علم ورکړو .مشرق نه تر مغربه پورې، عرش نه تر فرش پورې، ټول هر څه ئې دوی ته اوښودل د ملکوت السموات والارض شاهد ئې جوړ کړو.د ازل د ورځې نه واخله تر د آخرت د ورځې پورې ئې ټول ماکان و ما يکون دوی ته اوښودل.د مذکوره څيزونو نه هيڅ يوه ذره د حضور اکرم ﷺ د علم نه بهر پاتې نشوه.علم عظيم د حبيب کريم ﷺ دې ټولو ته محيط شو نه صرف اجمالاً بلکه هر صغير وکبير، هر رطب ويابس، کومه پاڼړه چه غورځيږی.د زمکې په تيرو کښې چه کومه دانه هر چرته غورځيږی.ټول ئې جدا جدا تفصيلاً اوپيژندل......(۴)

خو ددې حضراتو ددې آيتونو نه د نبی کريم ﷺ دپاره د کلی علم غيب دعوه کول بالکل باطل او مردود ده.

① رومبئ وجه دا ده.چه دا درې واړه آياتونه مکی دی.[بيا دريم آيت کښې د ،،الکتاب،، نه د بعضو حضرات مفسرينو په نيز لوح محفوظ مراد دې.قرآن کريم مراد نه دې (۵)که ددې مکی آيتونو نه نبی اکرم ﷺ دپاره د ذرې ذرې او پاڼړې پاڼړې علم ثابت شی او ددې په وجه دوی عالم غيب وی.نو ددې نه پس نبی کريم ﷺ باندې وحی نازلول پکار نه وو.ځکه چه کل غيب خو دوی ﷺ ته په دې آيتونو سره عطاء کړې شوې وو.حالانکه ددې نه پس نور احکام خو پخپل ځائې دی.قرآن کريم به هم باقاعده نازليدو آيا دا حضرات دا حصه په ،،ماکان وما يکون،، کښې داخل نه گڼړی؟

② دويمه خبره دا ده.که په ﴿تِبْيَانًا لِّكُلِّ شَيْءٍ﴾ آيت سره دهر هر ذرې او هر هر رطب ويابس علم ثابتيږی.او ددوی دا دعوه ده.چه په قرآن کريم کښې دهر يو هرڅيز علم شته.او بيا صرف بيان نه. بلکه روښن بيان. او صرف مجمل نه. بلکه مفصل. نو بيا به ددې حضراتو نه دا سوال بالکل برمحل (مناسب) وی چه په قرآن کريم کښې د مونځ د رکعتونو تعداد، او د

---

(۱) سورة يوسف:(۱۱۱)-
(۲) سورة الأنعام:(۳۸)_
(۳) أنباء المصطفى (ص.٤۰)-
(٤) جاء الحق (ص.۵۲) ومقياس حنفيت (ص.۲۹٤)-
(۵) تفسير البغوي (معالم التنزيل) (۹۵\۲) وتفسير كبير (۲۱۵\۱۲)_

زکاة د نصاب تفصیلات وغیره چرته دی؟

③ دریمه خبره دا ده چه دې حضراتو بنیادی طور باندې دلته د لفظ ..کل.. نه استدلال کړې دې چه دا په عموم کښې نص قطعي ګڼړلې دې حالانکه حقیقت دا دې چه لفظ د ..کل.. اګرچه د خپل لغوی مفهوم په لحاظ سره عام دې خو د استعمال په لحاظ سره کل او بعض د عموم او خصوص دواړو دپاره برابر راځي. که دا د عموم او استغراق دپاره هم مستعمل وی بیا هم دموقع او محل او داخلي او خارجي قرائنو محتاج وی قرآن کریم، احادیث مبارك. او د لغت او اصولو امامانو شواهد په دې باندې موجود دی (۱) او پخپله خان صاحب بریلوی په فتاوی رضیه کښې رقمطراز دې چه ..کله کله. د کل نه اکثر مراد وی..(۲)

④ څلورمه خبره دا ده چه ددې آیاتونو په تفسیر کښې د جمهورو عالمانو مفسرینو کلام نه معلومیږی چه دلته کل په عموم او استغراق باندې محمول نه دې او په ﴿تِبْيَانًا لِّكُلِّ شَيْءٍ﴾ کښې ،،کل شئ،، نه مراد ..امور دین.. دی ..ماکان و مایکون..مراد نه دی (۳)

④ دخان صاحب بریلوی او ددوی د متبعینو یو استدلال ددې آیت نه دې ﴿وَعَلَّمَ آدَمَ الْأَسْمَاءَ كُلَّهَا﴾ (البقره: ۳۱) چه حضرت آدم علیه السلام ته الله تعالی د ټولو څیزونو نومونه ښودلی وو او دا یو منلې شوې حقیقت دې چه د نبی کریم ﷺ درجه د حضرت آدم علیه السلام سره د ټولو انبیاء کرامو علیهم السلام نه اوچته ده نو نبی کریم ﷺ ته به په طریق اولی ددې ټولو څیزونو نومونه او علوم حاصل وی خو په څو وجوه سره ددې نه استدلال باطل دې:

① ړومبئ وجه دا ده چه دلته استدلال د قیاس نه دې او د عقائدو په باب کښې دلیل قطعی الثبوت والدلالة کیدل ضروری دی.

② دویمه وجه دا ده چه دلته هم ددې حضراتو د استدلال مدار د لفظ د ..کل.. په عموم کښې د نص قعطی کیدو باندې دې او ددې نفی وړاندې تیره شوه

③ دریمه وجه دا ده که حضرت آدم علیه السلام ته په تعلیم د ..اسماء.. سره ددوی عالم الغیب او د ..ما کان و ما یکون.. عالم کیدل لازمیږی نو بیا ابلیس ملعون دوی ته څنګه دهوکه ورکړله او په دروغه قسمونو خوړلو سره ئې څنګه اوخوئیلو معلومه شوه چه حضرت آدم علیه السلام ته علم غیب حاصل نه وو نو په آدم علیه السلام باندې قیاس کولو سره د نبی اکرم ﷺ د عالم الغیب کیدو قائل کیدل هم باطل. او ..بناء الفاسد علی الفاسد..ده.

---

(۱) آیات قرآنی ﴿ ثم اجعل علی کل جبل منهن جزء﴾ البقرة:۲۶۰) ﴿فتحنا علیهم أبواب کل شئ﴾ الأنعام:۴۴) ﴿وأوتیت من کل شئ﴾ النمل:۲۳) دغه شان په حدیث شریف کښې دی ..حصّت کل شئ.. (صحیح بخاری(۱۳۷۱۱) أبواب الإستسقاء وخروج النبی ﷺ (وتاج العروس (۱۰۰۱۸) ونورالانوار(ص،۷۷)

(۲) فتاوی رضویه(۷۳۷۱۱)_

(۳) تفسیربغوی(۱۷۰۱۲) و روح المعانی(۲۱۴۱۱۴)_

④ څلورمه وجه دا ده چه د ﴿وَعَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَآءَ كُلَّهَا﴾ دا تفسير چه حضرت آدم ﷺ ته د ټولو څيزونو او ددې ټول علوم عطاء کړې شوى وو.چه ددوى علم ,,ماکان و ما يکون،، ته محيط شي دټولو مفسرينو نه خلاف بل طرف ته شاذ لاره اختيارول دى.څکه چه مفسرينو په دې مقام باندې مختلف اقوال ذکرکړى دى.خو په دې ټولو کښې قدر مشترك دا دې.چه حضرت آدم ﷺ ته الله تعالى د هغه څيزونو نومونه اوښودل.دکومو چه دوى ته ضرورت او حاجت راپيښيدو او د فرښتو حال سره ددې څيزونو هيڅ مناسبت نه وو.[1]

بيا د بعضې مفسرينو د تصريح مطابق الله تعالى حضرت آدم ﷺ ته ددې څيزونو د اجناسو علم ورکړې وو.[2] پاتې شو ددې جنس ټول افراد، او د افرادو ټول جزئى حالات.نو ددوى په دې کښې هيڅ ذکرنشته.او که د هر هر انسان او حيوان نوم ئې هم ورته ښودلې وى.نو ددې تفصيلى حالات به بيا هم جدا وى.

③ د بريلوى حضراتو دريم استدلال د الله تعالى ددې ارشاد نه دې. ﴿عٰلِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلٰى غَيْبِهٖٓ اَحَدًا ۙ اِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ فَاِنَّهٗ يَسْلُكُ مِنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ رَصَدًا ۙ﴾ [3] چه په دې کښې د استثناء ذکر دې.او ددې مطلب ددوى په قول دا دې.چه ،،د الله تعالى خاص علم غيب تردې چه د قيامت علم هم حضور ﷺ ته عطاء کړې شو.اوس کوم څيز دې.چه د مصطفى ﷺ د علم نه باقى پاتې شوې وى.[4]

خو ددې نه استدلال هم بالکل صحيح نه دې.① ړومبئ وجه دا ده.چه دا د سورة جن آيت دې.چه مکى دې.ددې نه پس د قرآن کريم ډيره حصه نازله شوه.که ددې آيت نه د علم غيب په حاصلولو باندې استدلال اوکړې شى.نو سوال کيږى.چه آيا ددې حضراتو په نيز د قرآن کريم باقى حصه په ،،علم غيب،، او په ،،ماکان وما يکون،، کښې داخل نه ده؟

② دويمه وجه دا ده.چه ددې استثناء نه کلى علم غيب مراد دې.اوکه بعض علم غيب؟په دويم صورت کښې ددوى مدعى نه ثابتيږى.اوکه ړومبې صورت مراد وى .نو دې آيت سره چه په متصل آيت کښې کوم ارشاد دې. ﴿قُلْ اِنْ اَدْرِيْٓ اَقَرِيْبٌ مَّا تُوْعَدُوْنَ اَمْ يَجْعَلُ لَهٗ رَبِّيْٓ اَمَدًا ۝﴾ [5] په دې سره ددوى د کلى علم غيب د دعوې ترديد کيږى.څکه چه ,, مَا تُوْعَدُوْنَ ،، سره د بعضې حضراتو په نيز ،،عذاب،،[6] او د بعضو په نيز ،،قيامت،، مراد دې.[7] که هريو مراد

---

[1]) تفسير ابن کثير(٧٣/١) وتفسير معالم التنزيل للبغوى(٦١/١) وغيره)_
[2]) التفسير الكبير للرازى (١٧٦/٣)-
[3]) الجن:٢٦. ٢٧)_
[4]) جاء الحق (٥٥/١. ٥٦) وخالص الإعتقاد(ص. ٢٤)_
[5]) الجن:٢٥)_
[6]) تفسير الجلالين(سورة الجن:٢٥)_
[7]) تفسير البغوى(٤٠٥/٤)_

وی څه ځیز په ،،ماکان وما یکون،، کښې داسې ضرور دې چه د هغې په باره کښې الله تعالی نبی کریم ﷺ ته دا اعلان کوی چه تاسو اوفرمایئ چه ماته ددې علم نشته.بیا به دا څنګه منلې شی چه بالکل متصل هم دا حکم وی چه الله تعالی نبی کریم ﷺ په ټول غیب باندې خبردار کړې وو چه په هغې کښې ،،عذاب، او قیامت،، هم داخل دې.

③ دریمه وجه دا ده چه ددې آیت نه ټولو مفسرینو بعض علم غیب مراد اخستې دې.(۱)نو ددې نه په کلی علم غیب باندې استدلال شذوذ، او د جمهورو مفسرینو، او د قطعی دلیلونو مخالفت دې.

④ ددې حضراتو یو استدلال د قرآن آیت ﴿وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ بِضَنِيْنٍ﴾ (۲) نه دې. لکه خان صاحب بریلوی لیکی: ،،زما محبوب په غیب باندې بخیل نه دې.په کوم کښې چه استعداد بیامومی.هغه بیانوی.او ښکاره ده چه بخیل هغه کس دې چه هغه سره مال وی.او خرچ کوی ئې نه،او چا سره چه مال نه وی.هغه ته به څه بخیل اوونیلې شی؟ او دلته د بخیل نفی شوې ده.نو ترکومې پورې ئې چه څه ځیز خرچ کړې نه وی.څه فائده به وی.نو معلومه شوه.چه حضور ﷺ په غیب باندې خبردار دې.او خپلو غلامانو ته په دې باندې اطلاع ورکوی.(۳)

ددې آیت نه هم ددې حضراتو استدلال قطعاً باطل او مردود دې: ① رومبئ وجه دا ده.چه دا د سورهٔ تکویر آیت دې.او دا سورت د امام سیوطی رحمه الله د تصریح مطابق شپږم سورت دې.(۴) او دا سورت په اتفاق سره مکی دې.که ددوی ددې آیت نه ټول علم غیب او د جمیع ماکان وما یکون علم مراد دې.نو بیا ددې نه پس یو سل اته سورتونه ولې نازل شو.او بیا په دې سورتونو کښې بعضو کښې صراحت سره د علم غیب نفی ولې راغلې ده؟

② دویمه وجه دا ده.چه په ﴿وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ بِضَنِيْنٍ﴾ کښې د ،،هو،، مرجع په باره کښې اختلاف دې.اکثرو مفسرینو نبی کریم ﷺ مرجع ګرځولې دې.(۵)حالانکه بعضو مفسرینو ددې مرجع ،،قرآن کریم،، ګرځولې دې.(۶) نو قطعی او یقینی طور باندې ددې نه نبی کریم ﷺ دپاره علم غیب ثابتول ممکن نه دی.

③ دریمه وجه دا ده.چه د ،،الغیب،، نه څه مراد دې؟ په دې کښې هم دمفسرینو اختلاف دې.البته دومره خبره متعین ده.چه په دې آیت کښې د ،،الغیب،، نه وحی، قصص، اخبار او انباء وغیره داسې امور مراد دی.کوم چه د نبوت منصب سره تعلق ساتی.باقی پاتې شو هغه

---

۱) روح المعانی(۲۹\۶۹) وغیره)-
۲) التکویر: ۲٤)-
۳) ملفوظات (۳۰۱\۱)_
٤) الإتقان فی علوم القرآن (۱۰\۱)_
۵) معالم التنزیل(۱٤\٤٥٤) وتفسیرابن کثیر(٤۸۰\۱٤) وغیره)_
۶) تفسیر عزیزی پاره .عم.(ص.۹۰) وتفسیرحقانی(۵٤۱)_

امور دکوم چه د نبوت منصب او تبلیغ او تعلیم سره هیڅ تعلق نشته.نو دا آیت هیڅ کله هم هغه نه ثابتوی.(١)

③ څلورمه وجه دا ده.چه په دې آیت کښې دوه قراءتونه دی.یو ،،بضنین،، ضاد سره. او دویم قراءت ،،بظنین،، ظاء سره دې.دواړه قراءتونه بالکل صحیح او متواتردی.(٢)د،، بضنین،،(بالضاد) معنی بخیل ده.او د ،،ظنین،،(بالظاء) معنی متهم ده.د دویم قراءت مطابق ددې معنی دا راځی.چه هرکله په معمولی معمولی خبرو کښې تاسو خلق په نبی کریم ﷺ باندې د غلط بیان او دروغو تهمت نه لګوئ.نو په دومره لویه معامله کښې هغه څنګه دروغ وئیلې شی؟
افسوس دې.چه بریلوی حضراتو دا قراءت هسې هم ذکر نکړو.ځکه چه په دې سره ددوی باطل موقف نه ثابتیږی.

⑤ ددې حضراتو پنځم استدلال ددې آیت نه دې. ﴿وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَجْتَبِيْ مِنْ رُّسُلِهٖ مَنْ يَّشَآءُ﴾(٣)چه په دې کښې دا مذکور دی.چه الله تعالی څوك منتخب کوی.هغه ته د ،،غیب،، علم عطاء کوی.
خو ددې نه هم استدلال بالکل باطل دې.① یوه وجه دا ده.چه دا د سورت آل عمران آیت دې.او د غزوهٔ احد په موقع باندې نازل شوې وو.چه دا په شوال ٣ھ کښې راپیښ شوې وو.ددې نه پس د قرآن کریم شپاړس سورتونه نازل شو.که ددې آیت نه دوی ﷺ ته د ،،ما کان وما یکون،، علم حاصل شوې وو.نو ددې نه پس دا پکار وو.چه په دوی باندې هیڅ یو سورت یا آیت نه وې نازل شوې.

② دویمه وجه دا ده.چه ټولو مفسرینو ددې آیت نه بعضې علم غیب مراد اخستې دې.(٤) ټول علم غیب او جمیع ماکان و ما یکون د هیڅ چا په نیز مراد نه دې.نو په دې مقام باندې ،،جمیع علم غیب،، مراد اخستل، باطل او مردود دی.

⑥ ددې حضراتو استدلال د ﴿وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ﴾(٥)نه هم دې.دا حضرات وائی چه ،،ددې آیت او ددې تفسیرونو نه معلومه شوه.چه حضور ﷺ ته د ټولو زاړوانو او تیرو شوو واقعاتو خبر ورکړې شوې وو.کلمه د ،،ما،، په عربئ ژبه کښې ،،عموم،، دپاره ده.نو د آیت نه دا معلومه شوه.چه د شریعت احکام، د دنیا ټول واقعات، د خلقو ایمانی حالات وغیره هرڅه چه ددوی په علم کښې وو.ټول هرڅه ئې اوښودل.په دې کښې دا قید لګول، که ددې نه مراد

(١) تفسیر الجلالین (٤٩٢/٢) وتفسیر البغوی(٤٥٤/٤) وتفسیرابن کثیر(٤٨٠/٤)۔
(٢)تفسیر ابن کثیر(٤٨٠/٤) وتفسیرالقرطبی(٢٤٢/١٩)_
(٣) آل عمران:١٧٩)_
(٤) تفسیرالبیضاوی (٦٩٠/١١) مع شیخ زاده وتفسیر البغوی(٣٧٨/١) وغیره)۔
(٥) النساء:١١٣)۔

صرف احكام دى. دخپل طرفه قيد دې.او دا د قرآن او حديث او د امت د عقيدې خلاف دې....(١)

خوددې آيت نه هم کلي علم غيب باندې استدلال باطل دې.

① ددې يوه وجه دا ده.چه دا د سورهٔ نساء آيت دې.او دا د ۴هـ په شروع کښې نازل شوې وو.ددې نه پس ډير سورتونه نازل شو.چه په هغې کښې سورهٔ توبه خاص طور باندې قابل ذکر ده.که ټول هرڅه غيب ددې آيت نه ثابتيدو.نو ددې نه پس د هيڅ حکم، او هيڅ يو سورت نازليدو مطلقاً ضرورت نه وو.

② دويمه وجه دا ده.چه دا استدلال په دې خبره مبنى دې.چه کلمه د ,,ما،، دعموم او استغراق حقيقى دپاره ده.حالانکه دا په هر مقام او هرځائې کښې استغراق حقيقى دپاره نه وى.د الله تعالى ارشاد دې.﴿وَيُعَلِّمُكُمْ مَّا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ﴾ (٢)دغه شان ارشاد دې ﴿وَعُلِّمْتُمْ مَّا لَمْ تَعْلَمُوا أَنتُمْ وَلَا آبَاؤُكُمْ﴾ (٣) که په دې آيتونو کښې کلمه د ,,ما،، استغراق حقيقى دپاره اومنلې شى.نو د جناب رسول الله ﷺ پشان د حضرات صحابه کرامو ﷺ دپاره بغير دڅه واسطې نه، او د ټول امت دپاره بالواسطه ټول علم غيب کلى منل لازميږى.

③ دريمه وجه دا ده.چه تقريباً ټولو معتبرو او مستندو مفسرينو دلته د ,,ما،، مصداق احکام او امور دين ګرځولى دى.(٤) بعضو کتاب او سنت ګرځولې دې.(٥)البته کومو حضراتو چه علم غيب، خفيات الامور، او د ضمائرالقلوب ذکرکړې دې.نو هغه هم پخپل مقام باندې صحيح دى.ځکه چه ددې خبرې نه هيڅ کله د هيڅ چا انکار نشته.چه نبى کريم ﷺ ته الله تعالى د بعضو غيبى امورو او خفيات الامور باندې اطلاع ورکړې وه.

④ ددې حضراتو يو استدلال د﴿فَأَوْحَىٰ إِلَىٰ عَبْدِهِ مَا أَوْحَىٰ﴾ (٦) نه هم دې. خو ددې نه استدلال ځکه بې فائدې دې.چه دلته هم استدلال په دې مبنى دې.چه کلمه د ,,ما،، عموم او استغراق حقيقى دپاره ده. حالانکه مونږه وړاندې ذکرکړې دى.چه په دې کښې هر مقام باندې استغراق حقيقى موجود کيدل ضرورى نه دى. بيا دا آيت معراج سره متعلق دې. حالانکه ددې نه پس د هجرت واقعه راپيښه شوه.ډير سورتونه نازل شو.د حلال او حرام ګومره ډير احکام نازل شو.نو ددې آيت نه د کلى علم غيب ثابتيدو په صورت کښې د باقى سورتونو نازليدو، او دغه شان د حلال او حرام د احکامو نازليدو څه ضرورت پاتې کيږى؟

(١)جاء الحق (٤٩، ٥٠)_

(٢) البقرة:١٥١)-

(٣) الأنعام :٩٢)-

(٤) تفسير البغوى (١١\٤٧٩) وغيره)-

(٥) التفسير الكبير(١١\٣٩، ٤٠)_

(٦) النجم:١٠)-

⑧ یواستدلال ددې فریق د قرآن دا آیت دې ﴿خَلَقَ الْإِنْسَانَ ۝ عَلَّمَهُ الْبَيَانَ ۝﴾ (۱) خو ددې نه هم په دیرو وجو سره استدلال صحیح نه دې ① یوه وجه دا ده چه دا د سورة رحمن آیتونه دی او سورة رحمن مکی سورت دې ② دویمه وجه دا ده چه دلته په علم غیب کلی باندې استدلال په دې خبره باندې مبنی دې چه د ،،الانسان،، نه نبی کریم ﷺ مراد وی حالانکه اکثر حضرات مفسرین ددې نه جنس انسان مراد اخلی (۲) او قرین قیاس هم دا دې. خکه چه لفظ ،،البیان،، نبی کریم ﷺ سره مخصوص نه دې او که ددې نه نبی کریم ﷺ مراد وی بیا هم ددې نه ددوی استدلال صحیح نه دې خکه چه ،،البیان،، د جمیع علم غیب او د ،،ماکان ومایکون،، تقاضا نه کوی. والله اعلم.

بریلوی حضرات یو څو حدیثونه هم د خپل باطل مسلك په تائید کښې د دلیلونو په طور پیش کوی. دلته مونږ سرسری طور باندې د هغې هم جائزه اخلو

① ددې حضراتو رومبې دلیل د حضرت حذیفه رضی الله عنه حدیث دې ((قام فینا رسول الله ﷺ مقاماً، ماترك شیئاً یکون فی مقامه ذالك إلی قیام الساعة إلا حدّث به، حفظه من حفظه ونسیه من نسیه)) (۳)

② دویم دلیل د حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه حدیث دې ((قام فینا النبی ﷺ مقاماً فأخبرنا من بدء الخلق حتی دخل أهل الجنة منازلهم، وأهل النار منازلهم، حفظ ذالك من حفظه ونسیه من نسیه)) (۴)

③ دریم دلیل د حضرت عمرو بن اخطب انصاری رضی الله عنه حدیث دې ((صلی بنا رسول الله ﷺ الفجر، وصعد المنبر، فخطبنا حتی حضرت الظهر، فنزل فصلی ثم صعد المنبر، فخطبنا حتی حضرت العصر، ثم نزل فصلی ثم صعد المنبر، فخطبنا حتی غربت الشمس، فأخبرنا بما کان، وبما هو کائن، فأعلمنا أحفظنا)) (۵)

④ څلورم دلیل د حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه حدیث دې ((صلی بنا رسول الله ﷺ یوماً صلاة العصر بنهار، ثم قام خطیباً، فلم یدع شیئاً یکون إلی قیام الساعة، إلا أخبرنا به، حفظه من حفظه ونسیه من نسیه)) (۶)

خو حقیقت دا دې چه ددې روایاتو او احادیثو نه ددې حضراتو پخپل باطل مسلك باندې استدلال کول. او کلی علم غیب ثابتول بالکل مردود دی خکه چه د حضرت حذیفه رضی الله عنه حدیث چه کله ددوی د نورو تفصیلی روایاتو په وړاندې کیخودې شی نو ددې حدیث مطلب

---

(۱) الرحمن: ۳و ۴)_
(۲) تفسیر البغوی (۲۶۶/۴) وتفسیر البیضاوی مع حاشیة الشیخ زاده (۴۲۷/۴) وغیره)-
(۳) صحیح مسلم (۳۹۰/۲) کتاب الفتن وأشراط الساعة)-
(۴) صحیح البخاری (۴۵۳/۱) کتاب بدء الخلق باب ما جاء فی قول الله تعالی ﴿هوالذی یبدو الخلق..﴾-
(۵) صحیح مسلم (۳۹۰/۲) کتاب الفتن وأشراط الساعة)_
(۶) جامع الترمذی (۴۲/۲) وانظر المستدرک للحاکم (۵۰۵/۴) کتاب الفتن والملاحم)_

دا راوخي.چه نبي كريم ﷺ څه بيان فرمائيلى دى.هغه ټول د فتن. او اشراطو د قيامت، او د قيامت د علاماتو په باره كښې دى.د هرهر داسې څيز په باره كښې نه دې.دكوم تعلق چه ددوى د نبوت منصب سره هم نه وو

لكه چه حضرت حذيفه رضي الله عنه پخپله فرمائى.((والله ما ترك رسول الله ﷺ من قائد فتنة إلى أن تنقضى الدنيا يبلغ من معه ثلاث مائة فصاعداً، إلا قد سماه لنا باسمه واسم أبيه واسم قبيلته))[1]

دغه شان دوى فرمائى.((والله إنى لأعلم بكل فتنة هى كائنة فيما بينى وبين الساعة.....))[2]

هم ددوى نه منقول دى.((أخبرنى رسول الله ﷺ بما هو كائن إلى أن تقوم الساعة، فما منه شئ إلا قد سألته، إلا أنى لم أسأله ما يخرج أهل المدينة من المدينة))[3]

ددې رواياتو نه معلومه شوه.چه نبى كريم ﷺ پخپلو جوامع كلماتو كښې اګرچه ډير زيات واقعات بيان كړل.خو دا د فتن او د قيامت د اشراطو(علاماتو) په باره كښې وو

تركومې پورې چه د حضرت عمر رضي الله عنه د روايت تعلق دې.نو دا هم په كلى علم غيب باندې نص قطعى نه دې.څكه چه د حضرت عمر رضي الله عنه نه نقل دى.((أن رسول الله ﷺ قبض ولم يفسرها لنا))[4] يعنى رسول الله ﷺ ددنيا نه وفات شو.خو نبى كريم ﷺ د سود تفصيلات مونږ ته ښكاره بيان نكړل.

دغه شان په يو روايت كښې دى.((ثلاث لأن يكون النبى ﷺ بينهم لنا، أحب إلى من الدنيا وما فيها، الخلافة، والكلالة، والربا))[5]

معلومه شوه.چه د حضرت عمر رضي الله عنه په حديث كښې جميع علم غيب. او په ټولو جزئياتو باندې اطلاع وركول مقصود نه دى.بيا دلته دا خبره هم د غور قابله ده.كه د الله تعالى په ټولو غيوبو او په جزئياتو دغيب باندې اطلاع وركولو سره نبى اكرم ﷺ ته عالم الغيب ونيلې كيدې شى.نو بيا د نبى كريم ﷺ حضرات صحابه كرامو رضي الله عنهم په وړاندې ددې ټولو امورو بيانولو سره ددې ټولو صحابه كرامو رضي الله عنهم عالم الغيب كيدل هم لازميږى.بيا د نبى كريم ﷺ تخصيص ولې دې؟

تركومې پورې چه د حضرت عمرو بن اخطب انصارى او د حضرت ابو سعيد خدرى رضي الله عنهما د حديثونو تعلق دې.نو دا به هم فتنو سره متعلق ګرځولې شى. لكه چه علامه بن خلدون رحمه الله دداسې قسمه احاديثو نقل كولو نه پس ليكلى دى ((وهذه الأحاديث كلها محمولة على ما ثبت فى

---

[1] السنن لأبى داود (٢٢٦\٢) كتاب الفتن باب ذكر الفتن ودلائلها)_

[2] صحيح مسلم (٣٩٠\٢) كتاب الفتن وأشراط الساعة)-

[3] المصدر السابق)-

[4] سنن ابن ماجه (ص.١٦٤) كتاب التجارات باب التغليظ فى الرباء)-

[5] المستدرك للحاكم(٣٠٤\٢) كتاب التفسير سورة النساء والمسند لأبى داود الطيالسى (ص.١٢)_

الصحيحين من أحاديث الفتن والأشراط، لا غير، لأنه المعهود من الشارع صلوات الله و سلامه عليه في أمثال هذه العمومات»[1]

ددې حضراتو يو استدلال د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه روايت نه دې .هغې كښې دى.«...فإذا أنا بربي تبارك و تعالى في أحسن صورة، فقال يا محمد! قلت لبيك رب، قال: فيم يختصم الملأ الأعلى؟ قلت، لا أدرى قالها ثلاثاً، قال فرأيته وضع كفه بين كتفي حتى وجدت برد أنامله بين ثديي، فتجلى لى كل شئ وعرفت....»[2]

ددې حديث امام ترمذى رحمه الله پخپله هم تصحيح او تحسين كړې دې.او د امام بخارى رحمه الله نه هم تصحيح او تحسين نقل كړې دې.[3]

خو ددې حديث نه استدلال په يو څو وجو سره مردود دې: ① رومبې په دې وجه چه دلته امام ترمذى رحمه الله دامام بخارى رحمه الله نه ددې تصحيح او تحسين نقل كړې دې.حالانكه امام بخارى رحمه الله پخپله ددې حديث د يو راوى ،،عبدالرحمن بن عائش الحضرمى،،[4] په باره كښې فرمائى.«له حديث واحد، إلا أنهم يضطربون فيه»[5] او مضطرب حديث د محدثينو په نيز ضعيف وى.نو د امام بخارى رحمه الله تصحيح او تحسين او بيا ددوى دا حديث مضطرب ګرځول دواړو خبرو كښې تعارض دې.او دا د تساقط تقاضه كوى.[6] بيا اګرچه ددې حديث متعدد طرق دى.خو امام بيهقى رحمه الله فرمائى.«قد روى من طرق كلها ضعاف، وفى ثبوته نظر»[7] نو د داسې مضطرب يا متكلم فيه حديث په ذريعه د اعتقاد په باب كښې استدلال صحيح نه دې.ځكه چه په باب د اعتقاد كښې د دلائلو قطعى كيدل ضرورى دى.

② دويم دا كه مونږ اومنو.چه دا حديث صحيح دې.بيا هم ددې نه علم د ماكان او مايكون. اود علم غيب كلى ثبوت محال دې.ځكه چه په دې طريق كښې د ،،فتجلى لى كل شئ،، الفاظ

---

[1]) مقدمة ابن خلدون (ص.٣٣٣) الفصل الثالث والخمسون فى إبتداء الدول والأمم فى الكلام على الملاحم والكشف عن مسمى الجفر)_

[2]) جامع ترمذى (١٥٩/٢) كتاب التفسير تفسيرسورة ،ص، رقم ٣٢٣٥)-

[3]) المصدرالسابق)-

[4]) عبدالرحمن بن عائش شامى مختلف فى صحبته إنظر الكاشف للذهبى(٦٣/٢١١) وقال ابوحاتم الرازى هو تابعى وأخطا من قال له صحبة وقال ابوزرعة الرازى ليس بمعروف كذا فى تهذيب الكمال(٢٠٣/١٧)

[5]) تهذيب الكمال(٢٠٢/١٧) ترجمة عبدالرحمن بن عائش الحضرمى)-

[6]) اګرچه محدثينو رحمهم الله ددې حديث په طرقو كښې اضطراب ذكركړې دى.اودحضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه حديث نې راجح كړې دې.(الإستيعاب (٤١٧/٢) خو د اعتقاد په باب كښې داسې احاديث هرګز داحتجاج قابل نه وى.كوم چه په طريق آحاد مروى وى.اوبيا لاپاتې چه هغه كښې د اضطراب اختلاف هم موجود دې.

[7]) كتاب الأسماء والصفات للبيهقى(ص.٢٢٠)-

دى.حالانكه د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه په نقل شوى يو طريق كښې «فعلمت ما فى السموات و ما فى الأرض» (١) الفاظ دى.او هم ددوى په نقل شوى دويم طريق كښې «فعلمت ما بين المشرق و المغرب» (٢) الفاظ وارد شوى دى.او په لفظ د ،،كل،، او په لفظ د ،،ما،، كښې يو لفظ هم د استغراق حقيقى دپاره نص قطعى نه دې،،كما سبق،، لكه حضرت شاه ولى الله رحمه الله چه فرمائى.«إن استدل بقوله ﷺ: فتجلى لى كل شئ قلنا: هو بمنزلة قوله تعالى فى التوراة: ﴿ وَتَفْصِيلًا لِكُلِّ شَيْءٍ ﴾ والأصل فى العمومات التخصيص بما يناسب المقام.....» (٣) والله اعلم.

دا حضرات د حضرت ابوذر رضي الله عنه حديث هم د دليل په طور پيش كوى.«لقد تركنا رسول الله ﷺ وما يحرك طائر جناحيه فى السماء إلا ذكر لنا منه علماً» (٤) دا حديث د حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه نه هم نقل دې.(٥)

ددې حديث نه هم ددوى پخپلې مدعا باندې استدلال باطل دې.ځكه چه په دې روايت كښې اجمال دې.تفصيلى روايت په معجم طبرانى كښې دې.«فقال النبى ﷺ ما بقى شئ يقرب من الجنة و يباعد من النار إلا وقد بين لكم» (٦) ګويا چه په دې حديث كښې چه كوم دا اوښودلې شو.چه په آسمان كښې كوم مارغان په هوا كښې حركت كوى.د هغې علم هم نبى كريم ﷺ زمونږ په وړاندې بيان كړو.ددې نه مطلق علم يعنى بجميع جزئيات احوال الطير مراد نه دې.بلكه ددې نه مراد د مارغانو څه داسې حالات ( مثلاً حرام او حلال سره متعلق ) دى.چه په هغې باندې عمل كولو سره جنت حاصليدې شى.او دجهنم نه لرې كيدې شى.

لكه علامه ابن الاثير جزرى رحمه الله ددې حديث په تشريح كښې ليكلى دى. «يعنى أنه استوفى بيان الشريعة وما يحتاج إليه فى الدين، حتى لم يبق مشكل، فضرب ذالك مثلاً، وقيل: أراد أنه لم يترك شيئاً إلا بينه حتى بين لهم أحكام الطير وما يحل منه وما يحرم، وكيف يذبح، وما الذى يفدى منه المحرم إذا أصابه، وأشباه ذالك، ولم يرد أن فى الطير علماً سوى ذالك علمهم إياه، أو رخص لهم أن يتعاطوا زجر الطير كما كان يفعله أهل الجاهلية» (٧)

---

(١) جامع ترمذى (١٥٩/٢) رقم ٣٢٣٣)-
(٢) جامع الترمذى (١٥٩/٢) رقم ٣٢٣٤)_
(٣) التفهيمات الإلهية (٢٤/١، ٢٥)-
(٤) رواه أحمد والطبرانى كذا فى مجمع الزوائد (ج٢٦٣/٨) كتاب علامات النبوة باب فيما أوتى من العلم
(٥) رواه الطبرانى كما فى مجمع الزوائد (٢٦٤/٨)
(٦) مجمع الزوائد (٢٦٣/٨، ٢٦٤)-
(٧) النهاية لابن الأثير (١٥٠/٣) مادة طير وانظر مجمع بحار الأنوار (٤٧٩/٣)_

ددې عبارت نه ښکاره معلومه شوه.چه د مارغانو سره متعلق نبی کریم ﷺ هغه احکام بیان اوفرمائیل. کوم چه حلال او حرام وغیره احکامو سره تعلق ساتی.او د کومو چه په شریعت کښې بیان کول ضروری دي.ښکاره ده چه دا شرعی احکام د رسالت د منصب عین مطابق دی.والله اعلم

ددې مستدلاتو نه علاوه یو څو نور دلیلونه هم دا حضرات پیش کوی.خو حقیقت دا دې.چه په دې کښې یو دلیل هم یا خو پخپله مدعی باندې منطق نه دې.او یا صحیح نه دې.

**داهل السنت والجماعت دلیلونه** وړاندې مونږ د اهل السنة والجماعة مسلك ذکر کړې دې.اوس دلته اختصار سره څه دلیلونه ذکرکولې شی.چه دې سره به ثابته شی.چه علم غیب الله تعالی سره خاص دې.په دې صفت کښې دده سره هیڅ څوك شریك نه دې. د الله تعالی ارشاد دې.① ﴿وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَآ اِلَّا هُوَ﴾([1]) ② ﴿اِنَّمَا الْغَيْبُ لِلّٰهِ﴾([2]) ③ ﴿وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِيْ خَزَآئِنُ اللّٰهِ وَلَآ اَعْلَمُ الْغَيْبَ﴾ ([3]) ④ ﴿وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ ([4]) ⑤ ﴿قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الْغَيْبَ اِلَّا اللّٰهُ﴾([5]) ⑥ ﴿اِنَّ اللّٰهَ عٰلِمُ غَيْبِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ ([6]) ⑦ ﴿عٰلِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلٰى غَيْبِهٖٓ اَحَدًا اِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ فَاِنَّهٗ يَسْلُكُ مِنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ رَصَدًا﴾ ([7])

ددې نه علاوه ډیر احادیث په دې باندې دلالت کوی.چه الله تعالی عالم الغیب دې.نبی کریم ﷺ ته کلی علم غیب حاصل نه وو.① د حدیث باب جملې «ما المسئول عنها بأعلم من السائل» او «فی خمس لا یعلمهن إلا الله» صفا دلالت کوی.چه نبی کریم ﷺ عالم الغیب نه دې.ډیر داسې څیزونه شته.چه دهغې علم سوا د الله تعالی نه هیڅ چاته نشته.② د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دې:«سمعت النبی ﷺ یقول قبل أن یموت بشهر: تسألونی عن الساعة وإنما علمها عندالله»([8])

③ دحضرت حذیفه رضی الله عنه نه نقل دی:«سئل رسول الله ﷺ عن الساعة قال: علمها عند ربی لا یجلیها لوقتها إلا هو....»([9])هم دا مفهوم د حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه نه هم نقل دې. ([10])

---

[1]) الأنعام:۵۹)_
[2]) یونس:۲۰)-
[3]) هود :۳۱)-
[4]) هود :۱۲۳)-
[5]) النمل:۶۵)-
[6])فاطر:۳۸)-
[7])الجن:۲۶، ۲۷)_
[8]) صحیح مسلم (۳۱۰/۲) کتاب الفضائل باب بیان معنی قوله ﷺ علی رأس مائة سنة لا یبقی نفس منفوسة ممن هو موجود الآن)_
[9]) مسند أحمد(۳۸۹/۵)_
[10]) أخرجه الطبرانی وابن مردویه کذا فی الدر المنثور(۱۵۰/۳)-

④ حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ د نبى كريم ﷺ نه د اسراء او مغراج واقعه ذكركولو كښې د حضرت عيسى ﷺ قول نقل كړى. ((أما وجبتها فلا يعلمها أحد إلا الله..))(١)

⑤ په مقام حنين باندې د هوازن قبيلې قيديانو ازادولو دپاره نبى كريم ﷺ خطبه وركړې وه. او فرمائيلى ئې وو چه د هوازن قبيلې د قيديانو آزادولو زه سفارش كوم. او پخپله هم د ټولو نه وړاندې اعلان كوم. چه د بنوهاشم په حصه كښې كوم قيديان راغلى دى. زه دا هغوى ته حواله كوم. نو په تاسو كښې چه كوم خلق د معاوضې نه بغير پخپله خوښه داسې كولې شى. نو غوره ده. ګنى زمونږ وعده ده. چه په ړومبى موقعه باندې به دوى ته ددې بدله وركړې شى. هم دغه وخت د مجمعې نه آواز پورته شو. چه مونږ پخپله خوښه آزادولو ته تيار يو. چونكه دا اواز د عام مجمعې وو. او په دې طريقه معين طور باندې د هر سړى مرضى معلوميدې نشوه. په دې وجه نبى كريم ﷺ اوفرمائيل. ((إنى لا أدرى من أذن منكم ممن لم يأذن، فارجعوا حتى يرفع إلينا عرفاؤكم أمركم.....))(٢)

ددې نه صفا معلومه شوه. چه نبى كريم ﷺ ته علم غيب كلى حاصل نه وو. ګنى د صحابه كرامو ﷺ د زړه خبره به دوى ته ضرور معلومه شوې وه. د يو يوكس د تحقيق كولو ضرورت به ئې نه محسوسولو.

⑥ د حضرت جابر ﷺ د حجة الوداع واقعه رانقل ده. په هغې كښې دنبى كريم ﷺ قول نقل كړى. ((لتأخذ أمتى منسكها فإنى لا أدرى لعلى لا ألقاهم بعد عامهم هذا))(٣)

⑦ دحضرت عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ نه مرفوعاً نقل دى. ((إنى وجدت تمرة ساقطة فأكلتها، ثم تذكرت تمرا كان عندنا من تمر الصدقة، فلا أدرى أمن ذالك كانت التمرة أو من تمر أهلى))(٤)

⑧ د حضرت عائشه ﷺ نه نقل دى. چه كله نبى كريم ﷺ د غزوه خندق نه فارغ شو. نو اسلحه ئې پرانستله. او دوى ﷺ غسل اوفرمائيلو. حضرت جبرئيل ﷺ راغې. اوې وئيل چه تاسو اسلحه پرانستله. حالانكه مونږه (فرښتو) تر اوسه پورې نه ده پرانستې. ((أخرج إليهم، قال: فإلى أين؟ قال: ههنا، وأشار إلى بنى قريظة))(٥)

نو آيا نبى كريم ﷺ ته به دا معلومه نه وه. چه د غزوه خندق نه د فارغ كيدو نه فوراً پس بنى قريظه طرف ته تلل دى؟ بيا نبى كه نبى كريم ﷺ ته د جميع ماكان و ما يكون علم وې.

(١) مسند أحمد (٣٧٥/١) ومستدرك للحاكم (٤٨٨/٤) كتاب الفتن والملاحم مذاكرة الأنبياء فى أمر الساعة)
(٢) صحيح البخارى (٤٤٢/١) كتاب الجهاد باب إذا بعث الإمام رسولا فى حاجة)۔
(٣) مسند أحمد (٣٣٢/٣)-
(٤) المستدرك للحاكم (١٤/٢) كتاب البيوع)-
(٥) صحيح البخارى (٥٩٠/٢) كتاب المغازى باب مرجع النبى ﷺ من الأحزاب ومخرجه إلى بنى قريظة ومحاصرته إياهم وصحيح مسلم (٩٥/٢) كتاب الجهاد والسير باب جواز قتال من نقض العهد)۔

كريم ﷺ اسلحه ولې لرې كړله.چه حضرت جبرئيل ﷺ ورته اووئيل.او بيا ددې باوجود دوى ﷺ ته دا علم نه وو.چه كوم طرف ته تلل دى.تردې چه سوال ئې اوكړو.او ددې علم ئې حاصل كړو.

⑨ هم ددې غزوهٔ بنى قريظه په موقعه.باندې كله چه ددوى په باره كښې فيصله اوشوه.چه ښځې او ماشومان گرفتار كړې شى.او جنگيدونكى سړى دې قتل كړې شى.نو په دې قيديانو كښې حضرت عطيه القرظى ﷺ هم وو.ددوى په باره كښې شك شو.چه بالغ شوې دې اوكه نه؟ په دې باندې نبى كريم ﷺ حكم وركړې وو.چه دده د نامه نه لاندې وېخته اوگورئ.او د بلوغ يا د عدم بلوغ فيصله اوكړئ.نو د كتلو نه پس چه كله ثابته شوه.چه دې نابالغ دې.نو دې په قيديانو كښې شامل كړې شو.([1])

كه نبى كريم ﷺ ته د ټولو جزئياتو او كلياتو غيب علم حاصل وو.نو بيا ددې كاروايئ ضرورت ولې پيدا شوې وو؟

⑩ نبى كريم ﷺ چه كله خيبر فتح كړې وو.نو يوې يهودى ښځې دعوت اوكړو.او هغې د چيلئ په غوښه كښې زهر گډ كړى وو.نبى كريم ﷺ چه كله ړومبئ نمړئ واخستله.نو معلومه شوه.بلكه د غوښې ټكړې اووئيل.چه ما مه خوره.ما كښې زهر دى.په دې واقعه كښې حضرت بشر بن براء بن معرور ﷺ جوړشو.په نبى كريم ﷺ باندې اگرچه ددې فورى اثر اونشو.خو په آخرى عمر كښې ددې اثر ښكاره شو.([2])كه نبى كريم ﷺ ته د ماكان وما يكون علم وې.نو نبى كريم ﷺ زهر ولې خوړل؟ او نور صحابه كرام ﷺ ئې خوراك ته ولې پريخودل؟

⑪ په يوه غزوه كښې د حضرت عائشې ﷺ هار اورك شوې وو.نبى كريم ﷺ او ددوى سره صحابه كرام ﷺ ددې د تلاش دپاره ايسار شو.په دې دوران كښې خلق ډير زيات پريشانه شو.ځكه چه دوى سره اوبه هم نه وې.او نه دا خلق اوبو ته نزدې وو.په آخر كښې د ډير زيات تلاش نه پس كله چه د هار ملاويدو نه نا اميده شو.او دا خلق لاړل.نو سوزلئ ئې اوچته كړله.هم ددې لاندې دا هار پروت وو.([3])

كه نبى كريم ﷺ ته د جميع ما كان وما يكون علم وې.نو دومره پريشانى به ولې پيدا كيده؟ دوى ﷺ به پخپله هار تلاش كولو دپاره ولې قيام كولو؟ او نور خلق به قيام دپاره ولې مجبوره كيدل؟ دوى د وړاندې نه ولې اونه فرمائيل.چه هار خو د اوښ لاندې پروت دې.دا راوچت كړئ؟

⑫ په حديث كښې راځى.چه د قيامت په ورځ كله بعضې خلق جهنم طرف ته بوتلې شى.دغه وخت به نبى كريم ﷺ فرمائى.چه اې زما پروردگارا دا زما ملگرى دى.الله تعالى به

---

[1] المستدرک للحاكم (١٢٣/٢) كتاب الجهاد)-

[2] سنن أبى داود (٢٦٤/٢) كتاب الديات باب فيمن سقى رجلاً سماً أو أطعمه فمات أيقاد منه)_

[3] صحيح البخارى(٤٨/١) كتاب التيمم باب قول الله عزوجل فلم تجدوا ماء فتيمموا)_

جواب ورکوی.((لا علم لك بما أحدثوا بعدك))[١] معلومه شوه.چه نبی کریم ﷺ ته د جمیع ما کان وما یکون علم نه دې ورکړې شوې.

دا یو څو حدیثونه دلته پیش کړې شوی دی.حالانکه په دې موضوع باندې ددې نه علاوه نور هم ډیر احادیث شته.چه د هغې نه دجمیع ما کان وما یکون علم نفی کیږی.

**یو اهم تنبیه** دلته یوه اهمه خبره د یاد ساتلو دا ده.چه نصوص قطعیه مثلاً په ﴿وَلَآ أَعۡلَمُ ٱلۡغَيۡبَ﴾ وغیره آیتونو کښې چونکه صراحت سره د علم غیب نفی ذکر ده.په دې وجه داسې موقعه باندې منحرف خلق د ذاتی او عطائی بې ځایه تاویل کوی.او وائی.چه کوم ځائې کښې د نبی کریم ﷺ د ذات نه د علم غیب نفی راغلې ده.د هغې نه د ذاتی علم نفی مراد ده.دوی ته چه کوم د.ماکان وما یکون علم حاصل وو.هغه عطائی وو.ذاتی نه وو.او ددې نفی نه ده.

خو ددې خلقو دا وینا بې ځایه او باطل ده:① رومبې په دې وجه چه وړاندې اشاره تیره شوې ده.چه هغه علم غیب کوم سره چه الله تعالی منفرد دې.هغه دا دې((ما لا یقع تحت الحواس، ولا تقتضیه بداهة العقل، ولم ینصب علیه دلیل))حالانکه مخلوقاتو ته چه څومره علم هم د الله تعالی د طرفه عطاء کیږی.هغې باندې هډو د ،،غیب،،تعریف نه صادقیږی.دچا په ښودلو او خبر ورکولو سره چه کوم علم حاصلیږی.هغې ته خو،،اخبار الغیب،، او ،،انباءالغیب،، وئیلې شی.خو علم غیب نشی وئیلې کیدې.په دواړو کښې ډیر زیات فرق دې.[٢]،،والله سبحانه و تعالی أعلم وعلمه أتم وأحکم،،

**قوله**: ثُمَّ أَدۡبَرَ فَقَالَ رُدُّوهُ فَلَمۡ يَرَوۡا شَيۡئًا فَقَالَ هَذَا جِبۡرِيلُ: بیا دې سړی شا اوګرځوله.او لاړو.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.دې واپس راولئ.نو صحابو ﷺ هلته هیڅ څوک اونه مونده.بیا نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.دا جبرئیل ﷺ وو.

د ابوعامر په طریق کښې دا الفاظ دی.((ثم ولی فلما لم نر طریقه قال النبی ﷺ سبحان الله،هذا جبریل جاء لیعلم الناس دینهم،والذی نفس محمد بیده،ما جاءنی قط إلا وأنا أعرفه،إلا أن تکون هذه المرة))[٣]

د سلیمان تیمی په روایت کښې دی.((ثم نهض فولی فقال رسول الله ﷺ علی بالرجل، فطلبناه کل مطلب،فلم نقدر علیه، فقال: هل تدرون من هذا؟ هذا جبریل أتاکم لیعلمکم دینکم، خذوا عنه، والذی

---

[١] صحیح البخاری (١٢/٩٧٤) کتاب الحوض باب قول الله تعالی:(إنا أعطینک الکوثر)-

[٢] دعلم غیب دمکمل بحث دپاره اوګورئ ((بوارق الغیب)) مصنفه حضرت مولانا محمد منظورنعمانی او ((إزالة الریب عن عقیدة علم الغیب)) مصنفه محقق فاضل حضرت مولانا سرفراز خان صاحب صفدر مدظلهم مونږ په خپل دې بحث کښې د موخر الذکر کتاب نه استفاده کړې ده.

[٣] فتح الباری (١/١٢٤)

نفسي بيده، ماشبه علي منذ أتاني قبل مرتي هذه، وما عرفته حتى ولى»[١]

ابن حبان رحمه الله فرمائي چه د ،،عنوا عنه،، په جمله كښې سليمان تيمي منفرد دې.[٢] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه ددوى تفرد مضر نه دې.ځكه چه دوى د ثقات اثبات ځنې دې.ددې نه علاوه ددوى تفرد صرف د ،،عنوا عنه،، په تصريح كښې دې.ګنې هم دې طرف ته اشاره په دويم طريق كښې «جاء ليعلم الناس دينهم» كښې موجود ده.[٣]

ددې رواياتو نه معلوميږي.چه نبي كريم ﷺ صحابه كرامو رضي الله عنهم ته د حضرت جبرئيل عليه السلام په باره كښې هغه وخت خبر وركړو.كله چه هغوى جبرئيل عليه السلام تلاش كولو كښې ناكامه شول. حالانكه د.كهمس په روايت كښې د حضرت عمر رضي الله عنه نه منقول دى.«قال عمر: فلبثت ملياً، ثم قال: يا عمر، أتدري من السائل؟ قلت: الله و رسوله أعلم، قال: فإنه جبريل»[٤]

ددې نه معلوميږي.چه نبي كريم ﷺ د حضرت جبرئيل عليه السلام په باره كښې روستو په يو مجلس كښې وئيلى وو.

بعضې شارحينو په دې دواړو كښې تطبيق په دې طريقه كړې دې.چه د ،،فلبثت ملياً،، معنى ده. ،،فلبثت زماناً بعد انصرافه،، ګويا د حضرت جبرئيل عليه السلام د تللو نه لږ وخت پس ئې خبر وركړې دې.اودا خبر په بل يو مجلس كښې نه دې.هم په دې مجلس كښې ئې وركړې دې.[٥] خو په دې تطبيق باندې دا اشكال دې.چه دنسائي او ترمذي په روايت كښې د ،،ملياً،، په ځائې د ثلاثاً تصريح ده.[٦] نوپه دې صورت كښې دمجلس داتحاد قول صحيح نشي كيدې. ددې اشكال لرې كولو دپاره بعضو حضراتو وئيلى دى.چه د ،،ثلاثاً،، لفظ مصحف دې.په اصل كښې ،،ملياً،،وو.چه دا د،،ثلثا،،( د لام نه پس الف نه بغير) مشابه كيدو په وجه چا ،،ثلاثاً،، روايت كړو.[٧]

خو د تصحيف دعوه صحيح نه ده.ځكه چه د ابوعوانه په روايت كښې د «فلبثنا ليالي، فلقيني رسول الله ﷺ بعد ثلاث» الفاظ دى.[٨]

---

[١] الإحسان بترتيب صحيح ابن حبّان (٣٤٢/١) رقم ١٧٣)-

[٢] الإحسان (٣٤٣/١)-

[٣] فتح البارى(١٢٤/١)_

[٤] صحيح مسلم (٢٧/١) فاتحة كتاب الإيمان)-

[٥] فتح البارى(١٢٤/١)-

[٦] سنن نسائي (٢٦٥/٢) كتاب الإيمان وشرائعه باب نعت الإسلام وجامع الترمذي كتاب الإيمان باب ما جاء في وصف جبرئيل للنبي ﷺ الإيمان والإسلام رقم ٢٦١٠ وفيه ..فلقيني النبي ﷺ بعد ذلك بثلاث)_

[٧] نقله الحافظ في الفتح (١٢٤/١)-

[٨] فتح البارى(١٢٤/١، ١٢٥)_

د ابن حبان رحمه الله په روایت کښې د ،،بعد ثالثة،، لفظ دي.[1] او د ابن منده په روایت کښې ،،بعد ثلاثة أيام،، الفاظ دي.[2] نو د تصحيف قول ددې روایاتو په لحاظ سره باطليږي.

امام نووي رحمه الله په دواړو خبرو کښې په دې طريقه تطبيق کړې دې چه نبی کريم ﷺ کوم وخت دا اوفرمائيل چه ،،دا جبرئيل علیه السلام وو چه دې خلقو ته د دين ښودلو دپاره راغلې وو،، دغه وخت نور خلق خو دهغه د تلاش نه پس راغلي وو حضرت عمر رضی الله عنه ددې مجلس نه د حضرت جبرئيل علیه السلام د تلاش کولو، يا د خپل څه کار دپاره پاسيدلې وو نو دې وخته پورې واپس نه وو راغلې بيا درې ورځې پس حضرت عمر رضی الله عنه ته دوی هم دا خبره دوباره اوښودله. ددې دريو ورځو په دوران کښې د حضرت عمر رضی الله عنه ملاقات نبی کريم ﷺ سره نه وو شوې.[3] لکه هغه فرمائي چه ((فلقيني رسول الله ﷺ بعد ثلاث))[4] دغه شان يوه قرينه دا هم ده چه دلته نبی کريم ﷺ حضرت عمر رضی الله عنه ته خاص خطاب کړې وو او فرمائيلي ئې وو. ((فقال لي يا عمر! أتدري من السائل))[5] د تطبيق دا صورت ټولو کښې بهتر دې.[6]

**فائده** ددې حديث مختلف طرقو نه (لکه څنګه چه وړاندې مونږ ذکر هم کړل) معلوميږي چه حضرت جبرئيل علیه السلام د يو ښائسته سړي په شکل کښې راغلې وو خو دا شکل ټولو دپاره اجنبي وو چا هم دا سړې نه پيژندلو خو د نسائي په يو روايت کښې راغلي دي ((وإنه لجبريل نزل في صورة دحية الكلبي))[7] ددې نه ښکاره معلومه شوه چه هغه د حضرت دحيه کلبي رضی الله عنه په شکل کښې راغلې وو.

د حديث عالمانو دنسائي دا روايت ،،وهم،، ګرځولې دې.[8] څکه چه حضرت دحيه رضی الله عنه مشهور وو هغه ټولو پيژندلو حالانکه حضرت عمر رضی الله عنه دلته فرمائي. ،،لايعرفه منا أحد،،[9] بعضو حضراتو د نسائي روايت صحيح ګرځولو دپاره دا تاويل کړې دې چه چونکه حضرت دحيه رضی الله عنه د مخکښې نه په مجلس کښې موجود وو هم په دې مجلس کښې چه کله ددوی يو هم شکل حاضر شو نو ټولو ته ددې خبرې يقين اوشو چه دا حضرت دحيه نه دې نو د حضرت عمر رضی الله عنه دا فرمان هم صحيح شو چه ،،لايعرفه منا أحد،،۔

---

[1] الإحسان بترتيب صحيح ابن حبان(١١/٣٣٦) رقم ١٦٨)-
[2] فتح الباري(١/١٢٥)-
[3] شرح النووي على صحيح مسلم (١/٢٨)-
[4] كما عند الترمذي وأبي عوانة)-
[5] صحيح مسلم (١/٢٧)-
[6] فتح الباري(١/١٢٥)-
[7] سنن النسائي (٢/٢٦٦) كتاب الإيمان وشرائعه باب صفة الإيمان والإسلام )-
[8] فتح الباري(١/١٢٥)-
[9] صحيح مسلم (١/٢٧)-

خو دا تاويل صحيح نه دې.ددې وجه ښكاره ده.چه هركله دوی ته دا يقين دې. چه دا حضرت دحيه نه دې.او هم ددوی په شكل كښې حضرت جبرئيل امين تشريف راوړی.نو يقينی طور به ددوی ذهن دې خبرې طرف ته منتقل كيدو.چه دا حضرت جبرئيل عليه السلام دی.دې عام طور باندې د حضرت دحيه په شكل كښې راتلو.اوس هم ددوی په شكل كښې راغلې دې.په داسې صورت كښې به د حضرت عمر رضی الله عنه دا فرمان څنګه صحيح وی.چه ،،لايعرفه منا أحد،،؟ حالانكه په موجوده صورت كښې ټولو دپاره دده پيژندل لازميږی.حالانكه واقعه دا ده.چه يوائې دا نه چه چا دې او نه پيژندلو.بلكه نبی كريم صلی الله عليه وسلم هم هغه اونه پيژوندلو.د هغوی د تلو نه پس نبی كريم صلی الله عليه وسلم پوهه شو.او بيا صحابه كرام رضی الله عنهم خبر شو.نو د نسائی روايت ،، وانه لجبريل نزل فی صورة دحية الكلبی،، د صحيح منلو په صورت كښې ددې د حضرت عمر رضی الله عنه حديث ،،لايعرفه منا أحد،،سره تعارض لازميږی.

علامه سندهی رحمه الله فرمائی.چه ددې روايت د ،،وهم،، ګرځولو هيڅ ضرورت نشته.د حضرت جبرئيل عليه السلام د حضرت دحيه كلبی په صورت او شكل كښې راتلو سره دا څنګه لازميږی.چه هغوی ته دوی سره په څه څيز كښې امتياز هم نه وو. خصوصاً خارجی قرائنو سره، بلكه عين ممكن ده.چه داخلی خفيه قرائنو سره دوی ته يقين شوې وی.چه دا دحيه نه دې.(۱)

خو تقريباً د ټولو رواياتو او طرق نه ښكاره دا معلوميږی.چه دا جمله ،،نزل فی صورة دحية الكلبی،، د نسائی په روايت كښې ،،وهم،، دې.ځكه چه دا د باقی ټولو رواياتو او طرقو مخالف دې.ددې نه علاوه محمد بن نصر مروزی رحمه الله پخپل ،،كتاب الايمان،، كښې د نسائی په طريق سره روايت نقل كړې دې.او دهغې په آخر كښې دی.،،فانه جبريل جاء ليعلمكم دينكم،،(۲) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی. چه هم دا روايت ،،محفوظ،، دې.ځكه چه باقی رواياتو سره موافق دې.(۳) والله اعلم.

**قوله**: جَاءَ يُعَلِّمُ النَّاسَ دِينَهُمْ: دا( حضرت جبرئيل عليه السلام) خلقو ته ددوی د دين ښودلو دپاره راغلې وو.

حضرت جبرئيل عليه السلام راغې.اوددين متعلق سوالونه ئې اوكړل.نبی كريم صلی الله عليه وسلم جوابونه وركړل.د حضرت جبرئيل عليه السلام سوالونو ته نبی كريم صلی الله عليه وسلم د دين تعليم اوونيل. معلومه شوه.چه ښه سوال علم دې.لكه نقل دی.چه ((حسن السؤال نصف العلم))(۴) چه ښه سوال نصف علم دې.دا هم

---

(۱) حاشية السندی علی سنن النسائی (۲۶۶/۲)-
(۲) فتح الباری(۱۲۵/۱)-
(۳) المصدرالسابق)-
(۴) علامه عجلونی رحمه الله ددې روايت ډيرشواهد ذكركړې دی.اوبه آخركښې ليكی.(فهذه الشواهد [illegible] تمامه، اوګورئ: (۱۵۸/۱۱، ۱۵۹) رقم ۴۷۶)-

ونيلي شي.چه د جبرئيل امين د سوالونو په جواب كښې نبى كريمﷺ علوم بيان كړل.نو د سوال كولو په وجه هغه د علوم بيانولو سبب جوړ شوې دې.په دې وجه مجازاً هغه طرف ته د تعليم نسبت شوې دې.

**قوله: أَبُو عَبْدِ اللَّهِ جَعَلَ ذَلِكَ كُلَّهُ مِنَ الْإِيمَانِ:** ابوعبدالله (يعنى امام بخارى رحمه الله) فرمائى.چه نبى كريمﷺ دې ټولو ته ايمان ونيلې دې.

د امام بخارى رحمه الله ددې قول مطلب دا دې.چه د نبى كريمﷺ نه حضرت جبرئيل عليه السلام د ايمان، اسلام، احسان او دعلم الساعة متعلق سوال اوكړو.نبى كريمﷺ د ټولو جوابات وركړل.او د قيامت علامات او اشراط ئې اوښودل.او بيا ئې اوفرمائيل «هذا جبريل جاء يعلم الناس دينهم» نبى كريمﷺ ټولو دين اوګرځول.او ،،دين،، او ،،اسلام،، يو دې.ځكه ارشاد دې.چه ﴿إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ﴾ (١) او ﴿وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ.....﴾ (٢) او بيا ،،اسلام،، او ،،ايمان،، هم يو دې.ځكه چه په حديث د جبرئيل عليه السلام كښې كوم څيزونه داسلام تفصيل ګرځولى شوى دى.بعينه هم دا امور په حديث د وفد عبدالقيس كښې د ايمان شرح ښودلى شوې ده.نومعلومه شوه.چه ټول په ايمان كښې داخل دى.،،والله أعلم بالصواب،،

## باب (بلا ترجمه)

دلته د كريمه او ابوالوقت په روايتونو كښې صرف لفظ د ،،باب،، دې.او دې سره هيڅ ترجمه نشته.حالانكه د ابوذر او اصيلى وغيره رواياتو كښې د سره د ،،باب،، لفظ هم نشته.(٣)

امام نووى رحمه الله رومبئ نسخه يعنى د ،،باب،،نسخه راجح ګرځولې ده.ددې وجه دا ده.كه چرې دلته لفظ ،،باب،، نه وې.نو د حديث هرقل دا تكړه به د تير شوى بابه،، باب سؤال جبريل.....،، لاندې وى.حالانكه ددې تكړې دغه ترجمې سره هيڅ تعلق نشته.(٤)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه دلته كه د ،،باب،،لفظ مذكور اونه منلې شى.بيا خو د تعلق او مناسبت كيدل ضرورى دى.اوكه د ،،باب،، لفظ مذكور اونه منلې شى.بيا هم تعلق ضرورى دې.ځكه چه په دې صورت كښې به دا ،،بلا ترجمه باب،، د تيرشوى باب د فصل پشان وى.او په دې كښې مناسبت وى.(٥)

---

(١) آل عمران:١٩)_
(٢) آل عمران :٨٥)-
(٣) فتح البارى(١\١٢٥) وعمدة القارى(١\٢٩٤)-
(٤) المصادر السابقة)-
(٥) فتح البارى(١\١٢٥)-

د باب بلا ترجمه ډير توجيهات کولې شي ددې تفصيل مونږ په مقدمة الكتاب كښې (١)او ددې جلد په شروع كښې د ،،باب علامة الإيمان حب الأنصار،، نه پس چه امام بخارى رحمه الله كوم ،،باب بلا ترجمه،، منعقد کړې دې دهغې لاندې بيان کړې شوې دې.،،فارجع إليه إن شئت،،

علامه كرمانى رحمه الله فرمانى چه په حديث باب او تيره شوې ترجمه كښې مناسبت موجود دې په دې طريقه چه په ترجمه كښې ..ايمان.. لره ..دين.. ګرځول مقصود وو لكه چه په حديث دجبرئيل عليه السلام كښې نبى كريم صلى الله عليه وسلم په ايمان. اسلام او احسان باندې د ..دين.. اطلاق کړې دې او په حديث د هرقل كښې هرقل په دين باندې د ايمان اطلاق کړې دې.او هغه وئيلى وو ((سألتك هل يرتد أحد سخطة لدينه بعد أن يدخل فيه ؟ فزعمت أن لا ، وكذالك الإيمان حين تخالط بشاشته القلوب لا يسخطه أحد)) معلومه شوه چه ..دين.. او ..ايمان.. يو دې.(٢)

دلته اشكال كيږى چه دا د هرقل مقوله ده.ددې نه استدلال څنګه صحيح كيدې شى؟

امام نووى رحمه الله ددې دا جواب ورکړې دې چه د صحابه کرامو رضي الله عنهم په مينځ كښې دا حديث متداول (او مسلسل) پاتې شوې دې.او هغوى پخپل مينځ كښې د هرقل دا كلام نقل کړې دې په دې باندې هغوى هيڅ اعتراض نه دې کړې.ددې نه معلومه شوه.چه د صحابو رضي الله عنهم په مينځ كښې صورت حال هم دا وو.چه دين او ايمان يو دې.ګنى كه دا څيز اشكال وې.نو هغوى ته به ضرور اعتراض وو.چه دده په دين باندې د ايمان اطلاق كول صحيح نه دى.(٣)

علامه كرمانى رحمه الله يو جواب دا ورکړې دې.چه اصل كښې هرقل د اهل كتابو څخې وو او هغه د آسمانى كتابونو عالم وو.د هغوى په شريعت كښې ..ايمان.. او ..دين.. يو دى.ښكاره هم دا ده.چه هغه څه وئيلى وو.د آسمانى كتابونو په اتباع كښې ئې وئيلى وو او ،،شرع من قبلنا،، كه بغير دڅه نكير نه زمونږ په شريعت كښې وارده وى.نوحجت دې.(٤)

علامه كرمانى رحمه الله دويم جواب دا ورکړې دې.چه د هرقل په ايمان كښې اختلاف دې يعنى كه دده اسلام ثابت شى.نو دده قول به حجت وى.(٥)

خو دا جواب صحيح نه دې.ځكه چه اول خو د هرقل اسلام ثابت نه دې.لكه څنګه چه مونږه وړاندې ذكركړى دى.(٦) اوكه بالفرض دده اسلام ثابت هم شى.نوهغه به زيات نه زيات تابعى وى.او د تابعى قول حجت نه دې

علامه كرمانى رحمه الله يو دريم جواب دا ورکړې دې.چه دا څه د امرشرعى بيان نه دې.بلكه د

---

(١) كشف البارى(١١/١٧٧، ١٧٩)-

(٢) شرح الكرمانى(١/١١٠٢)-

(٣) شرح الكرمانى(١/١١٠٢)-

(٤) المصدرالسابق)-

(٥) المصدرالسابق)-

(٦) كشف البارى.(١١/٥١٧، ٥١٨)

محاورې خبره ده.او ددوى محاوره په صحيح معتبر عرف باندې مبنى ده.نو ددې نه استدلال صحيح دې.[1]

خودا هم څه ضرورى نه ده.چه كوم څيز په محاوره كښې مستعمل وى.هغه من وعن (هم دغه شان) په شريعت كښې هم معتبر وى.نو د امام نووى رحمه الله جواب او د علامه كرمانى رومبى جواب صحيح دې.

**د حضرت شيخ الهند رحمه الله تقرير** حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائى.① ممكن ده چه دا باب د تيرشوى باب نه د فصل په مرتبه كښې وى.او په دواړو كښې مناسبت دا وى.چه د ..باب بلا ترجمه.. لاندې كوم د هرقل حديث مذكور دې.په هغې كښې دوو ځايونو كښې ,,وكذالك الإيمان،، ذكر دې.لكه ده اووئيل.((سألتك هل يزيدون أم ينقصون، فزعمت أنهم يزيدون، وكذالك الإيمان حتى يتم، و سألتك هل يرتدّ أحد سخطة لدينه بعد أن يدخل فيه، فزعمت أن لا، وكذالك الإيمان حين تخالط بشاشته القلوب، لايسخطه أحد)) په دې كښې رومبى مقام باندې ..ايمان.. د ..دين.. په معنى كښې دې.او په دويم مقام باندې د ..تصديق قلبى.. په معنى كښې استعمال شوې دې.ګويا چه په تير شوى باب كښې امام بخارى رحمه الله كومه خبره په حديث د جبرئيل سره ثابته كړې وه. هم هغه دلته كښې د هرقل د قول نه ثابتيږى.[2]

② دا هم ممكن ده.چه نزدې كوم ,,باب خوف المؤمن من أن يحبط عمله،، تير شوې دې.د هغه باب په ذريعه امام بخارى رحمه الله تنبيه وركړې ده.چه د نفاق او حبط اعمال نه ويريدل پكار دى.او دا چه د ايمان په سلسله كښې خپل ځان مامون ګنړل. د نفاق د علاماتو څخې ده.اوس په دې باب سره امام بخارى رحمه الله تسلى وركول غواړى.او اشارة وائى.چه د نفاق وغيره خطره هر سړى دپاره نه وى.دچا په زړه كښې چه ايمان ښه مضبوط شى.د هغه په زړه كښې ايمان ښه خور شى.هغه د ايمان د دائرې نه نه خارجيږى.او د الله تعالى په حكم هغه د ارتداد نه محفوظ كيږى.

خو امام بخارى رحمه الله احتياط كړې دې.او د ذريعې بندولو دپاره ئې ددې تصريح نه ده كړې.بلكه اشاره باندې ئې اكتفاء كړې ده.[3]

③ دا هم ممكن ده.چه دلته د ..باب.. بلا ترجمه راوړلو مقصد تشحيذ اذهان وى .يعنى تمرين دپاره ئې ترجمه حذف كړې وى.نو ممكن ده.چونكه دلته د ايمان بشاشت (او تر وتازګى) پيداكيدو باندې د ايمان قائم او دائم اوسيدو بشارت او تسلى مقصود ده.په دې وجه جديد ترجمه قائمولې شى.,,باب قوله تعالى ﴿فَمَن يُرِدِ اللهُ أَن يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ﴾ يا

---

[1] شرح الكرمانى (٢٠١١١)_

[2] الأبواب والتراجم لصحيح البخارى لشيخ الحديث محمد زكريا الكاندهلوى رحمه الله (ص٣٩٠)_

[3] المصدر السابق)-

باب قول الله تعالى ﴿وَمَنْ يُضْلِلِ اللهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ﴾ (١)

دغه شان دلته كښې د جديد باب قائمولو دپاره دا مناسبت هم شته.چه امام بخارى رحمه الله وړاندې د ايمان، كفر، نفاق او ظلم وغيره مختلف مراتب بيان كړى دى.په حديث د هرقل كښې هم د مختلفو مراتبو او په دې كښې د زيادت ذكر دې. بيا دا زيادت عين ممكن ده.چه د مؤمنانو د عددي زيادت په وجه وى.يا ددوى د كيفى زيادت په اعتبار سره وى. خكه چه په دې حديث كښې ،،هل يزيدون أم ينقصون،، سره د ،،وكذالك الإيمان حتى يتم،، ذكر دې.او په دې كښې كماً او عدداً زيادت مذكور دې.دغه شان په دې كښې د «سألتك هل يرتد أحد سخطة لدينه بعد أن يدخل فيه، فزعمت أن لا» نه پس «وكذالك الإيمان حين تخالط بشاشته القلوب، لايسخطه أحد» مذكور دې.دلته د ايمان په كيفيت كښې زيادت مراد دې.نو كماً د ايمان د زيادت په لحاظ سره ترجمه قائمولې شى.چه ،،باب الزيادة فى الإيمان بزيادة المؤمنين،، يا ونيلې شى.چه ،،الإيمان يتم بزيادة أهل الإيمان،، دغه شان د كيفاً زيادت په لحاظ سره باب قائمولې شى.چه ،،باب قوله تعالى ﴿فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا فَزَادَتْهُمْ إِيمَانًا وَهُمْ يَسْتَبْشِرُونَ﴾ يا داسې هم ونيلې كيدې شى چه ،،باب: الإيمان يزيد حين تخالط بشاشته القلوب،،

④ حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائى.چه دا هم څه لرې نه ده.چه د امام بخارى رحمه الله په نظر كښې دا ټولې فائدې وى.نو هغوى يوې ترجمې قائمولو سره دا ټولې فائدې نشوې حاصليدې.په دې وجه نې تكثيراً للفوائد ،،باب،، د ترجمې نه بغير پريخودو.(٢) ،،والله أعلم بالصواب،،_

٥-حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَمْزَةَ قَالَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ (٣) أَخْبَرَهُ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو سُفْيَانَ بْنُ حَرْبٍ أَنَّ هِرَقْلَ قَالَ لَهُ سَأَلْتُكَ هَلْ يَزِيدُونَ أَمْ يَنْقُصُونَ فَزَعَمْتَ أَنَّهُمْ يَزِيدُونَ وَكَذَلِكَ الْإِيمَانُ حَتَّى يَتِمَّ وَسَأَلْتُكَ هَلْ يَرْتَدُّ أَحَدٌ سَخْطَةً لِدِينِهِ بَعْدَ أَنْ يَدْخُلَ فِيهِ فَزَعَمْتَ أَنْ لَا وَكَذَلِكَ الْإِيمَانُ حِينَ تُخَالِطُ بَشَاشَتُهُ الْقُلُوبَ لَا يَسْخَطُهُ أَحَدٌ [ر:٧]

## رجال الحديث

① ابراهيم بن حمزة: دا ابراهيم بن حمزه بن محمد بن حمزه بن مصعب بن عبدالله بن الزبير قرشى اسدى زبيرى مدنى دې.ددوى كنيت ابو اسحاق دې.(٤).

---

(١) المصدر السابق)-

(٢) الأبواب والتراجم لصحيح البخارى(ص،٣٩)-

(٣) قد سبق تخريج هذا الحديث انظر كشف البارى(٤٧٧/١) الحديث السادس)_

(٤) تهذيب الكمال(٧٦/٢)-

دوی د ابراهیم بن جعفر بن محمود، ابراهیم بن سعد زهری، اسامه بن حفص مدنی، ابوضمره، عبدالعزیز بن ابی حازم، عبدالعزیز بن محمد الدراوردي او يوسف بن يعقوب الماجشون رحمهم الله نه روايت د حديث کوی.[1]

حالانکه ددوی نه امام بخاري، امام ابوداؤد، محمد بن يحي ذهلي، ابوزرعه عبيدالله بن عبدالکریم رازی، ابو حاتم محمد بن ادریس رازی، محمدبن نصر الصائغ بغدادی او ددوی خوئي مصعب بن ابراهیم بن حمزه زبیری روایت د حدیث کوی.[2]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی.،،صدوق،،[3]

امام نسائی رحمه الله فرمائی.،،ليس به بأس،،[4]

امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائی.،،ثقة صدوق في الحديث،،[5]

ابن حبان رحمه الله دوی لره پخپل ،،کتاب الثقات،، کښې ذکر کړې دې.[6]
مسلمه بن قاسم اندلسی رحمه الله هم ددوی توثيق کړې دې.[7]

ددوی وفات په مدينه منوره کښې ۲۳۰ھ کښې اوشو.[8]،،رحمه الله تعالی رحمة واسعة،،_

④ ابراهیم بن سعد: دا ابو اسحاق ابراهیم بن سعد بن ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف زهري مدني دې.ددوی حالات وړاندې د،،باب تفاضل أهل الإيمان في الأعمال،، لاندې تير شوی دی.

⑤ صالح: دا ابومحمد يا ابوالحارث صالح بن کیسان مدنی دې.ددوی حالات هم وړاندې ،،باب تفاضل أهل الإيمان في الأعمال،، کښې تيرشوې دې.

⑥ ابن شهاب: دا مشهور محدث محمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهري دې.ددوی حالات د ،،بدء الوحي،، دريم حديث لاندې تير شوی دی.[9]

---

[1] تهذيب الكمال(۷۷/۲)-
[2] المصدرالسابق)-
[3] المصدرالسابق وتهذيب التهذيب (۱۱۷/۱) وفي تهذيب التهذيب ((وسئل أبوحاتم عنه وعن إبراهيم بن المنذر فقال كانا متقاربين ولم يكن لهما تلك المعرفة بالحديث)_
[4] تهذيب الكمال(۷۸/۲)-
[5] الطبقات الكبرى لابن سعد(۴۴۲/۵)-
[6] كتاب الثقات (۷۲/۱)-
[7] تعليقات تهذيب الكمال(۷۸/۲) بحوالة كتاب الصلة لابن قاسم الأندلسي)-
[8] التاريخ الكبير للبخاري (۲۸۳/۱، رقم ۹۱۲ وتهذيب الكمال(۷۸/۲)-
[9] كشف الباري(۳۲۶/۱)_

⑤ **عبيدالله بن عبدالله**: دې په فقهاء سبعه کښې مشهور فقيه عبيدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود دې.ددوی مختصر حالات هم د ،،بدء الوحی،، پنځم حديث لاندې ذکر شوی دی.(١)

⑥ **عبدالله بن عباس**: د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما حالات د ،،بدء الوحی،، څلورم حديث کښې تير شوی دی.(٢)او دوی سره متعلق څه حالات وړاندې د ،،**باب کفران العشير و کفر دون کفر**،، لاندې ذکر شوی دی.

⑦ **ابوسفيان**: دحضرت ابوسفيان صخر بن حرب رضی الله عنه حالات د ،،بدء الوحی،، شپږم حديث لاندې ذکر شوی دی.(٣)

**قوله أَنَّ هِرَقْلَ قَالَ لَهُ**: هرقل دوی ته (يعنی حضرت ابو سفيان رضی الله عنه) ته اووئيل چه ما ستا نه تپوس اوکړو.چه دا خلق ( د نبی کريم صلی الله عليه وسلم پيروکار) کميږی او که زياتيږی؟ نو تا اووئيل چه هغوی زياتيږی.هم دا حالات د ايمان وی.تردې پورې چه دا مکمل شی.او ما ستا نه تپوس اوکړو.چه آيا په دوی کښې څوك ددې دين قبلولو نه پس بيا دده نه ناراضه (او نا خوښه) شوې دې.او دا ئې پريخودې هم دې؟ تا اووئيل چه نه. او هم دا کيفيت د ايمان وی کله چه ددې بشاشت (تر و تازګی) زړونو کښې ښکته شی. نو بيا ددې نه څوك نه خفه کيږی.

**خرم فی الحديث** دا د هرقل د حديث يوه ټکړه ده.اصل حديث ډير اوګد دې.کوم چه د ،،بدء الوحی،،په آخر کښې تاسو وئيلې دې.د اوګد حديث نه په يوې ټکړې باندې اکتفاء کولو ته ،،**اختصار فی الحديث**،، او ،،**خرم فی الحديث**،، وئيلې شی.(٤)

د اختصار يا خرم فی الحديث په باره کښې اختلاف دې:

① بعض حضرات ددې نه مطلقاً منع کوی.او اختصار ته ناجائز وائی.لکه څنګه چه ددې حضراتو په نيز ،،روايت بالمعنی،، مطلقا ممنوع دې.

② بعض حضرات اختصار فی الحديث ته هغه صورت کښې ناجائز وائی.چه کله دې راوی پخپله يا بل يوکس دا روايت وړاندې مکمل نه وی روايت کړې.که پخپله ده يا بل يو راوی دا مکمل روايت کړې وی.نو دوباره د اختصار کولو اجازت دې.

③ بعض حضرات بغير دڅه تفصيل نه مطلقاً د اختصار فی الحديث د جواز قائل دی.که هغوی ته دا پته وی.چه د الفاظو او د بيان اسلوب بدلولو سره معنی کښې څه فرق راځی.يا هغوی په دې خبره نه پوهيږی.

---

(١) کشف الباری(١١\٣٢٦)_
(٢) کشف الباری(١١\٣٢٥)_
(٣) کشف الباری(١١\٤٨٠)-
(٤) عمدة القاری(١١\٢٩٤)-

خو په دې صورت کښې دا هم ونیلی شوی دی چه د اختصار فی الحدیث جواز په دې اندازه اطلاق سره نه دې بلکه هغه څیز سره مقید کول پکار دی چه د محذوف جزء مذکور سره داسې تعلق نه وی کوم چه مخل بالمعنی وی لکه استثناء. شرط او غایت وغیره شو چه ددې په حذف کولو سره یقیناً په وړاندې معنی کښې خلل پیدا کیږی په دې وجه مطلقاً د جواز قائلینو ته هم دا قید منل پکار دی وجه دا ده چه صفی هندی رحمه الله په داسې صورت کښې د اختصار فی الحدیث ممنوع کیدو باندې اتفاق نقل کړې دې

④ څلورم قول: او هم دا صحیح قول دې دا دې چه د اختصار فی الحدیث جواز یا عدم جواز کښې تفصیل دې که اختصار او خرم کونکې عالم وی او هغه په داسې طریقه خرم کوی چه د محذوف معنوی تعلق مذکوره سره نه پاتې کیږی نه په بیان کښې خلل پیدا کیږی او نه په دلالت کښې څه اثر راځی نو د داسې عالم ..اختصار.. او..خرم.. جائز دې که روایت بالمعنی صحیح وی اوکه نه وی که ددې نه وړاندې ئې بالتمام پخپله یا بل چا روایت کړې وی او که نه وی کړې په دواړو صورتونو کښې جائز دې ځکه چه دا د دوو جدا جدا روایتونو په حکم کښې دی او که تصرف کونکې داسې عالم نه وی نو هغه ته د ..اختصار.. او ..خرم.. کولو اجازت نشته.

خودلته یوه خبره یاد ساتل پکار دی که هغه صحیح تصرف کونکې عالم وی نو هغه دپاره هم د اختصار فی الحدیث اجازت په دې صورت کښې دې کله چه دده مقام د ..تهمت.. نه بالاتر او اوچت وی که داسې نه وی مثلاً یو خل ده مکمل روایت نقل کړو او بیا ئې چه کله دوباره مختصراً حدیث نقل کړو نو هغه ته ویره شوه چه زه به متهم کړې شم یا به دا وئیلې شی چه ړومبی خل ئې کوم روایت نقل کړې دی هغې کښې اضافه کړې ده یا به داسې وئیلې شی چه په دویم خل ئې کوم ناقص روایت کړې دې دا د نسیان یا د ضبط (حفظ) د قلت په وجه دې که د داسې تهمت یره وی نو د داسې عالم دپاره نه ابتداء ..اختصار.. جائز دې او نه ثانیاً. (¹)هم ددې قبیلې څنې دا هم دی چه مصنف په مختلفو بابونو کښې حدیث تقطیعاً ذکرکوی. ،،وهوإلی الجواز أقرب ومن المنع أبعد،،(²)

امام بخاری رحمه الله هم دلته د ..خرم.. یا ..تقطیع.. نه کار اخستې دې او هغه چه چرته هم دحدیث یوه ټکړه جدا بیانوی هغه د جواز په حد کښې وی.(³)،،والله اعلم،،_

**په حدیث باب کښې خرم دچا د طرفه واقع شوې دې؟** دلته یو بحث دا دې چه په دې حدیث کښې ..خرم.. د امام بخاری رحمه الله د طرفه دې اوکه د بل چا د طرفه دې؟ علامه کرمانی او قسطلانی رحمهما الله فرمائی چه دا په ظاهره دامام بخاری رحمه الله د طرفه نه دې بلکه د امام

---

¹) قال السيوطي في التدريب (۱۰۴\۲) قال سليم فإن رواه ناقصاً ثم أراد روايته تاماً وكان ممن يتهم بالزيادة كان ذلك عذرا له في تركها وكتمانها)_

²) تدريب الراوي (۱۰۳\۲، ۱۰۵) النوع السادس والعشرو صفة رواية الحديث الفرع السادس)-

³) أنوار الباري(۱۹۲\۲) وفضل الباري(۵۴۳\۱)-

زهرى رحمه الله نه شوي دي. خكه چه دواړو خايونو كښې د امام بخارى رحمه الله شيوخ مختلف دى. د بدء الوحى په روايت كښې د امام بخارى رحمه الله شيخ ابواليمان دې. او په روايت د باب كښې ابراهيم بن حمزه دې. ابراهيم بن حمزه سره د امام زهرى رحمه الله صرف د ..خرم.. روايت وو. او د ابواليمان طريق تفصيلى دې غالباً ابراهيم بن حمزه به د ..ايمان.په.دين.. كيدو باندې استدلال كولو سره په دې تكړې باندې اكتفاء كړې وى (١)

خو علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دا رائې صحيح نه ده خكه چه امام بخارى رحمه الله بعينه په دې سند سره هم دا حديث مكمل طور باندې په ,,كتاب الجهاد،، كښې ,,باب دعاء النبى ﷺ الى الإسلام والنبوة،، كښې ذكر كړې دې (٢) كه خرم د امام زهرى رحمه الله د طرفه وې نو ابراهيم بن حمزه به هلته كښې هم ناقص روايت كړې وې په دې وجه ..خرم.. د امام بخارى رحمه الله د طرفه دې (٣) ,,والله أعلم،،

## (٣٧) بَاب فَضْلِ مَنْ اسْتَبْرَأَ لِدِينِهِ

دا باب دهغه سړى د فضيلت په بيان كښې دې. خوك چه د خپل دين دپاره د شكوك او شبهاتو نه براءت حاصل كړى.

**ماقبل سره مناسبت:** علامه عينى رحمه الله فرمائى چه د دې باب ماقبل باب سره مناسبت دا دې چه په وړاندې باب كښې د ايمان، اسلام، او احسان بيان وو. او دا چه ټول په دين كښې داخل دى. حالانكه په دې باب كښې د ,,استبراء للدين،، ذكر دې چه دا ايمان او احسان وغيره ته شامل دې. او په دې كښې هيڅ شك نشته. چه ,,استبراء للدين،، هم دين دې (٤)

**د ترجمة الباب مقصد** ① حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله د ايمان امور ذكركوى. په ذكر شوې ترجمة الباب قائمولو سره امام بخارى رحمه الله دې خبرې طرف ته اشاره كړې ده. چه ..ورع.. او ,,اتقاء عن الشبهات،، د ايمان د مكملاتو څخه دى (٥)

② حضرت شيخ الهند قدس روحه فرمائى چه وړاندې امام بخارى رحمه الله د اصرار على المعاصى نه ويره وركړې وه. اوس په دې باندې ترقى كوى. او دا ښودل غواړى چه د دين د حفاظت او صفائى دپاره د مشتبه امورو نه بچ كيدل ضرورى دى او لطيفه اشاره دې خبرې طرف ته هم معلوميږى. چه توبه باندې اعتماد كولو سره معصيت كول پكار نه دى. خكه چه معاصى او اصرار على المعاصى د توفيق سلب كولو سبب جوړيږى. چه بيا به د توبې توفيق

---

(١) شرح الكرمانى (٢٠٢/١) وإرشاد السارى (١٤٢/١)-

(٢) صحيح البخارى (٤١٢/١)-

(٣) عمدة القارى (٢٩٤/١)-

(٤) عمدة القارى (٢٩٥/١)-

(٥) فتح البارى (١٢٦/١)-

هم نه وي.نو مسلمان ته د ابتداء نه خپل دين او عرض (ايمان) د گناهونو.او مشتبه امورو نه بچ ساتل پكار دى.(1)

④ حضرت گنگوهى رحمه الله فرمائى.چه امام بخارى رحمه الله دلته ايمان كښې تفاوت بيانول غواړي.په دې طريقه چه په دې باب كښې د استبراء للدين بيان دې.او په استبراء كښې تفاوت وي.نو په دې سره ايمان كښې هم تفاوت ثابت شو.(2)

④ حضرت شيخ الهند صاحب رحمه الله فرمائى.چه ددې نه وړاندې باب تير شوې دې.،،باب خوف المؤمن أن يحبط عمله،، په دې كښې مؤمن د عمل د احباط نه ويرولې شوې وو.اوس په دې باب كښې امام بخارى رحمه الله داسې طريقه او لاره ښودل غواړي.چه ددې په اختيارولو سره سړې د حبط عمل نه بچ كيږي.او هغه دا لاره ده.چه خپل دين دپاره استبراء اوكړې شي.او د شبهات نه بچ شي.(3)

⑤ حضرت شيخ الحديث صاحب رحمه الله فرمائى.دا احتمال هم شته.چه دا باب د تيرشوى باب دپاره په منزله د تكملې وى.ځكه چه په حديث د جبرئيل كښې د احسان بيان وو.او ددې باب نه د احسان دلارې تعليم مقصود دې.يعنې دا ښودل غواړي.چه د احسان د حصول طريقه دا ده.چه د دين د اتباع په نيت سره د قلب د احوالو مراعات اوساتلې شي.او د شبهاتو نه اجتناب اوكړې شي.(4)

ددين د اتباع د نيت قيد ددې دپاره اولګولې شو.كه دين نه وي.نو د قلب د احوالود مراعاتو، اودشبهاتو نه د بچ كيدوهيڅ فائده نشته.لكه ډير زيات جوګيان (منجوران فقيران) ښه ډير رياضتونه كوى.او د ډيرو څيزونو نه پرهيز كوى.خو چونكه د دين اتباع نه وى.په دې وجه د احسان طريقه حاصلول هم ممكن نه وى.(5)

⑥ دا هم ممكن ده.چه په دې سره دمرجئه ترديد وى.هغوى وائى.چه ،،لا تضر مع الإيمان معصية،، نو په دې باب سره ددوى ترديد كولې شى.چه تاسو معصيت ته غير مضر وائى. حالانكه د حديث نه ښكاره ده.چه د مشتبهاتو نه نه بچ كيدل هم مضر دى.(6)

**يو اشكال او د هغې جواب:** امام بخارى رحمه الله دلته د حديث په الفاظو باب قائم كړې دې.فرمائيلى ئې دى.،،...استبرأ لدينه،، حالانكه حديث كښې دى.،،...استبرأ لدينه وعرضه،، سوال دا دې.چه ،،وعرضه،، ئې ولې پريخودو؟

---

(1) الأبواب والتراجم لصحيح البخارى لشيخ الحديث الكاندهلوى (ص.۳۹)_

(2) لامع الدرارى (۶۰/۱)-

(3) تقرير بخارى شريف (۱۵۳/۱)_

(4) الأبواب والتراجم (۳۹)-

(5) المصدرالسابق)-

(6) إمداد البارى(۷۷۲/٤)-

ددې جواب دا دې چه استبراء للدين. استبراء للعرض ته مستلزم دې يعنى كوم سړې چه د خپل دين حفاظت كوى.هغه به د داغدار كيدو نه بچ كوى.په دې سره به د عزت حفاظت پخپله كيږى.په دې وجه ئې استبراء للعرض په مستقله ترجمه كښې د راوړلو ضرورت اونه ګڼړلو.(١) والله اعلم.

٥٢- حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ عَنْ عَامِرٍ قَالَ سَمِعْتُ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيرٍ (٢) يَقُولُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الْحَلاَلُ بَيِّنٌ وَالْحَرَامُ بَيِّنٌ وَبَيْنَهُمَا مُشَبَّهَاتٌ لاَ يَعْلَمُهَا كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ فَمَنِ اتَّقَى الْمُشَبَّهَاتِ اسْتَبْرَأَ لِدِينِهِ وَعِرْضِهِ وَمَنْ وَقَعَ فِي الشُّبُهَاتِ كَرَاعٍ يَرْعَى حَوْلَ الْحِمَى يُوشِكُ أَنْ يُوَاقِعَهُ أَلاَ وَإِنَّ لِكُلِّ مَلِكٍ حِمًى أَلاَ إِنَّ حِمَى اللَّهِ فِي أَرْضِهِ مَحَارِمُهُ أَلاَ وَإِنَّ فِي الْجَسَدِ مُضْغَةً إِذَا صَلَحَتْ صَلَحَ الْجَسَدُ كُلُّهُ وَإِذَا فَسَدَتْ فَسَدَ الْجَسَدُ كُلُّهُ أَلاَ وَهِيَ الْقَلْبُ [١٩٤٦]

## رجال الحديث

① **ابونعيم:** دامشهور محدث ابو نعيم الفضل بن دكين الملائى الكوفى الاحول دې. دكين ددوى د پلار لقب دې.د.وى نوم عمرو بن حماد دې.(٣)

دوى د امام اعمش. زكريا بن ابى زائده. جعفر بن برقان. عمر بن ذر. مالك بن مغول. مسعر بن كدام. سفيان الثورى. شعبه.اسرائيل. جرير بن حازم. امام ابوحنيفه. او ابن ابى ليلى رحمهم الله وغيره نه حديثونه اوريدلى دى.(٤)

ددوى نه امام بخارى رحمه الله ډير حديثونه روايت كړى دى.ددوى نه علاوه امام احمد بن حنبل. اسحاق بن راهويه. يحي بن معين. ابوخيثمه ابوبكر بن ابى شيبه.عثمان بن ابى شيبه. امام ذهلى. امام دارمى. عبد بن حميد. عباس دورى. ابو زرعه رازى. ابوزرعه دمشقى. ابوحاتم. ابن الفرات.او ابراهيم حربى رحمهم الله وغيره ډيرو حضراتو حديثونه روايت كړى دى.(٥)

---

١) عمدة القارى(١١/٢٩٥)-

٢) الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى كتاب البيوع باب الحلال بين رقم ٢٠٥١ ومسلم فى صحيحه (٢٨/١٢) كتاب البيوع والمساقاة والمزارعة باب أخذ الحلال وترك الشبهات والنسائى فى سننه (٢١٠/١٢) كتاب البيوع باب إجتناب الشبهات فى الكسب وأبوداو فى سننه فى كتاب البيوع باب فى إجتناب الشبهات رقم ٣٣٢٩ و ٣٣٣٠) والترمذى فى جامعه فى كتاب البيوع باب ما جاء فى ترك الشبهات رقم ١٢٠٥ وابن ماجه فى سننه فى كتاب الفتن باب الوقوف عند جامعه الشبهات رقم ٣٩٨٤)-

٣) تهذيب الكمال(٢٣/١٩٧) وسير أعلام النبلاء (١٠/١٤٢)_

٤) سير أعلام النبلاء ١٠/١٤٤، ١٤٥) وتهذيب الكمال(٢٣/١٩٧، ٢٠٢)-

٥) سير أعلام النبلاء (١٠/١٤٥، ١٤٦) وتهذيب الكمال(٢٣/٢٠٢، ٢٠٤)-

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی «أبونعیم أعلم بالشیوخ وأنسابهم وبالرجال....»[1]

یعقوب بن شیبه رحمه الله فرمائی «أبونعیم ثقة، ثبت، صدوق»[2]

امام احمد رحمه الله فرمائی ،،أبونعیم یقظان فی الحدیث،،[3]

هم دا امام احمد رحمه الله فرمائی ،،کان أبونعیم ثبتاً،،[4]

محمد بن عبدالله بن عمار موصلی رحمه الله فرمائی «أبو نعیم متقن، حافظ، إذا روی عن الثقات فحدیثه حجة أحج مایکون»[5]

احمد بن صالح رحمه الله فرمائی «ما رأیت محدثاً أصدق من أبی نعیم»[6]

د علی بن المدینی رحمه الله نه تپوس اوشو چه ،،من أوثق أصحاب الثوری؟،، نو دوی د ابو نعیم نوم هم واخستلو.[7]

امام عجلی رحمه الله فرمائی ،،ثقة ثبت فی الحدیث،،[8]

یعقوب بن سفیان فارسی رحمه الله فرمائی «أجمع أصحابنا أن أبا نعیم کان غایة فی الإتقان»[9]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائی «ثقة کان یحفظ حدیث الثوری ومسعر حفظاً....کان یأتی بحدیث الثوری علی لفظ واحد لایغیره، ولا یلقن، وکان حافظاً متقناً»[10]

ابو نعیم رحمه الله پخپله فرمائی «نظر ابن المبارک فی کتبی، فقال: ما رأیت أصح من کتابتك،،[11]

ابن سعد رحمه الله فرمائی ،،کان ثقة مأموناً کثیر الحدیث، حجة،،[12]

ابن حبان رحمه الله دوی لره په ..کتاب الثقات.. کښې ذکر کړی دی.او فرمائی ،،کان أتقن أهل زمانه،،[13]

---

[1]) تهذیب الکمال(۲۳\۲۰۶) وسیر أعلام النبلاء (۱۰\۱۴۷)-
[2]) تاریخ بغداد (۱۲\۳۵۲) وتهذیب الکمال(۲۳\۲۰۶)-
[3]) تاریخ بغداد (۱۲\۳۵۳) وتهذیب الکمال (۲۳\۲۰۷)-
[4]) المصادر السابقة)-
[5]) تاریخ بغداد (۱۲\۳۵۴) وتهذیب الکمال(۲۳\۲۱۱)_
[6]) المصادر السابقة) وسیر أعلام النبلاء (۱۰\۱۴۷)_
[7]) تهذیب الکمال(۲۳\۲۱۲)-
[8]) المصدر السابق)-
[9]) المصدر السابق) وسیر أعلام النبلاء (۱۰\۱۴۷)-
[10]) تهذیب الکمال(۲۳\۲۱۲. ۲۱۳)-
[11]) تاریخ بغداد (۱۲\۳۴۸) وتهذیب الکمال(۲۳\۲۱۳)
[12]) طبقات ابن سعد(۶\۴۰۰)_
[13]) الثقات لابن حبان (۷\۳۱۹)-

خطيب بغدادي رحمه الله فرمائي. «كان أبو نعيم مزاحاً ذا دعابة مع تدينه وثقته وأمانته»[1]

امام نسائي رحمه الله فرمائي. ،،أبو نعيم ثقة مأمون،،[2]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي. ،،ثقة ثبت،،[3]

البته په امام ابونعيم رحمه الله باندې د ،،تشيع،، الزام وو.لكه حافظ ذهبي رحمه الله فرمائي.،،حافظ حجة، إلا أنه يتشيع من غير غلو ولا سب،،[4]

دغه شان امام يحي بن معين رحمه الله فرمائي. «كان أبو نعيم إذا ذكر إنساناً فقال: هو جيد، وأثنى عليه، فهو شيعي، وإذا قال: فلان كان مرجئاً فاعلم أنه صاحب سنة، لا بأس به»[5]

خو ددوی تشيع ډير خفيف (معمولی) وو.نه به ده د بدعت مؤيد روايات نقل كول.او نه داعي الى البدعت وو.په دې وجه ټولو دده حديثونه قبول كړی دی.[6] پخپله فرمائي.،،ما كتبت علىّ الحفظة أني سببت معاوية،،[7]

د امام ابونعيم رحمه الله طبيعت كښې د مزاح ماده وه:

① يو ځلې يو سړی ددوی دروازه اوټكوله.ابو نعيم رحمه الله تپوس اوكړو.څوك يې؟ په جواب كښې هغه اووئيل.،،أنا،، دوی جواب وركړو.،،من أنا؟،،نو دې سړی اووئيل. ،،رجل من ولد آدم،، ابو نعيم په جلتئ ور اووتلو. او ورجخت شو.او بنكل ئې كړو.او ،،مرحباً وأهلاً،، ئې اووئيل.او وې وئيل.چه زما د سره خيال نه وو.چه د حضرت آدم عليه السلام په نسل كښې به اوس هم څوك باقي پاتې شوې وی.[8]

② يوځلې ابو نعيم د خپل شيخ سفيان نه څه تپوس اوكړو.نو هغوی مزاحاً اووئيل.،،أنت لا تبصر النجوم بالنهار،، نو دوی فوراً اووئيل.،، وأنت لا تبصرها كلها بالليل،، په دې باندې هغه بې اختياره په خندا شو.[9]

---

[1] تاريخ بغداد (٣٤٧\١٢) وتهذيب التهذيب (٢٧٦\١)-

[2] تهذيب التهذيب(٢٧٦\١)-

[3] تقريب التهذيب (ص.٤٤٦) رقم ٥٤٠١)-

[4] ميزان الإعتدال (٣٥٠\١٣) رقم ٦٧٢٠)-

[5] المصدر السابق)-

[6] هدى السارى(٤٣٤)-

[7] سير أعلام النبلاء (١٥١\١٠)-

[8] تهذيب الكمال(٢١٦\٢٣)-

[9] تاريخ بغداد (٣٤٧\١٢) وتهذيب الكمال(٢٠٦\٢٣)-

④ دابو نعيم رحمه الله ثقاهت او قوت حفظ او د محدثينو په احتياط باندې دلالت دپاره دا واقعه هم د ذكر قابله ده.احمد بن منصور رمادى نقل كوى.چه زه احمد بن حنبل او يحيي بن معين سره د خادم په طور د امام عبدالرزاق رحمه الله نه حديثونو اوريدو دپاره لاړم.په واپسئ چه كله مونږ كوفې ته راورسيدو.نو يحيي بن معين امام احمد ته اووئيل.چه زه د ابو نعيم امتحان اخستل غواړم.امام احمد منع كړو. او وې فرمائيل.چه هغه ثقه دې.امام يحيي بن معين اونه منل.په يو كاغذ كښې ئې د ابو نعيم ديرش حديثونه اوليكل.او د هرلسو حديثونو نه پس ئې د يو بل محدث د حديث اضافه اوكړله.دا درې واړه ابو نعيم ته اورسيدل.دروازه ئې اوټكوله.نو هغه راووتلو.او د خپل كور دروازې مخې ته يو ډېره (موړه) باندې كيناستل.ښى طرف ته ئې احمد بن حنبل كينولو.ګس طرف ته ئې يحيي بن معين، او احمد بن منصور رمادى ددوى مخې ته لاندې كيناستلو.يحيي بن معين كاغذ راوبنكلو.او لوستل ئې شروع كړل.ابو نعيم خاموشئ سره اوريدل.كله ئې چه لس حديثونه واورول.يوولسم حديث ئې اولوستلو.نو هغوى تنبيه وركړله.چه دا حديث وران كړه.دا زما روايت نه دې.بيا ئې لس حديثونه اووئيل.ددې نه پس ئې اضافه شوې حديث واورولو.نو دوى بيا تنبيه اوفرمائيله.او دا ئې كټ كړو.بيا د لسو حديثونو نه پس چه كله هم دا صورت راپيښ شو.نو ددوى مخ متغير شو.د امام احمد مټ ئې اونيولو.او يحيي بن معين ته مخاطب شو.او وې وئيل.،،أما هذا فأورع أن يفعل مثل هذا،،چه دې خو د داسې قسمه حركت نه دير اوچت او برتر دې.دې داسې نشى كولې.بيا ئې د احمد بن منصور رمادى په باره كښې اووئيل.چه دده داسې جرات نشى كيدې.اوس پاتې شوې ته، نو ،،هذا من فعلك يا فاعل،،ئې اووئيل.او دوى يحيي بن معين ته زور دراره لته وركړله.چه هغه د موړې نه لاندې پريوتلو.او پاسيدو، كور ته لاړو.

امام احمد، يحيي بن معين ته اووئيل.چه ما خو ته منع كړې وې.چه دا سړې ثقه دې.هسې بيسه داسې حركت كولو سره مه اينځله.امام يحيي بن معين رحمه الله اوفرمائيل.،،والله لرفسته أحب إلي من سفرتي،، چه په خدائې قسم! ما ته د خپل ټول سفر په مقابله كښې دا لته زياته خوښه ده. چه ماته ددې سړى د تثبت او ثقاهت علم اوشو.(١)

⑤ امام ابونعيم رحمه الله كثيرالعيال وو.حديثونه به ئې اورول.او د حاكمانو امراء نه به ئې د معاوضې په طور څه اخستل.(٢) خلقو ده لره ملامته كړو.نو دوى اووئيل. ،،تلوموني على الأخذ، ولي بيتي ثلاثة عشر، وما في بيتي رغيف،،(٣)

---

(١) تاريخ بغداد (١٢\٣٥٤، ٣٥٤) وتهذيب الكمال(٢٣\١٠٠٢١٠، ٢١١) وسير أعلام النبلاء (١٠\١٤٨، ١٤٩)

(٢) سير أعلام النبلاء (١٠\١٥٢)-

(٣) تهذيب الكمال(٢٣\٢١٨) وسير أعلام النبلاء (١٠\١٥٢)-

يو سړی دوی د مرګ نه پس په خوب کښې اوکتل.چه په حديث باندې معاوضه اخستلو باندې الله تعالى تاسو سره څه معامله اوکړله.دوی جواب ورکړو. ((نظر القاضي في أمري، فوجدني ذا عيال فعفاعني))[1]

په ۲۱۹هـ کښې ددوی وفات اوشو.[2] ،،رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

۲ زکريا: دوی زکريا بن ابی زائده کوفی دې.[3] د ابو زائده په نوم کښې اختلاف دې.امام بخاری رحمه الله خالد بن ميمون راجح ګرځولې دې.[4] د زکريا بن ابی زائده شمار صغار تابعينو کښې دې.البته د هيڅ يو صحابی نه ددوی روايت کول ثابت نه دی.[5]

دوی دخالد بن سلمه، سعد بن ابراهيم، سماك بن حرب، عامر شعبی، عبدالملك بن عمير، عطية العوفی او ابو اسحاق سبيعی رحمهم الله وغيره نه حديث روايت کړی دی.[6]

ددوی نه روايت کونکو کښې سفيان ثوری، سفيان بن عيينه شعبه بن الحجاج.عبدالله بن المبارك. عبيدالله بن موسی، ابو نعيم او يحي بن سعيد القطان رحمهم الله وغيره حضرات دی.[7]

امام يحي بن معين رحمه الله فرمائی.،،صالح،،[8]

امام ابوداؤد رحمه الله دوی لره ،،ثقه،، ګرځولې دې.[9]

امام يحي بن سعيد القطان رحمه الله فرمائی.،،ليس به بأس،،[10]

امام ابو زرعه رحمه الله فرمائی.،،صويلح،،[11]

امام نسائی رحمه الله فرمائی.،،ثقة حلو الحديث،،[12]

امام احمد رحمه الله فرمائی.((ثقة حلو الحديث))[13]

---

[1]) المصادر السابقة)-
[2]) المصادر السابقة)-
[3]) تهذيب الكمال(۹\۳۵۹)_
[4]) التاريخ الكبير(۳\۴۲۱) رقم ۱۳۹۶)-
[5]) سير أعلام النبلاء(۶\۲۰۲)-
[6]) تهذيب الكمال(۹\۳۵۹، ۳۶۰)-
[7]) المصدر السابق)-
[8]) تهذيب الكمال(۱\۳۶۱) وميزا الإعتدال(۲\۷۳) رقم ۲۸۷۵)-
[9]) تهذيب الكمال(۱\۳۶۲) وتهذيب التهذيب (۳\۳۰)-
[10]) التاريخ الكبير(۳\۴۲۱) رقم ۱۳۹۶)-
[11]) سير أعلام النبلاء (۶\۲۰۳)-
[12]) تهذيب الكمال(۱\۳۶۲)-
[13]) تهذيب الكمال(۱\۳۶۱) وميزان الإعتدال(۲\۷۳) رقم ۲۸۷۵)-

يعقوب بن سفيان او ابوبكر البزار رحمهما الله هم دوى ته ، ،ثقه، ، ونيلى دى. (١)

ابن سعد رحمه الله فرمائى. ، ،كان ثقة كثير الحديث، ، (٢)

ابن حبان رحمه الله دوى لره په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې. (٣)

خو كوم ځائې چه دحديث عالمانو نه ددوى په باره كښې تعديل منقول دى.هلته ددوى په باره كښې دا تصريح هم شته.چه ده به تدليس كولو.

حافظ ابن حجر رحمه الله دوى ته مطلقاً مدلس ونيلى دى.لكه چه ليكى، ،ثقة كان يدلس، ، (٤)

خو حقيقت دا دې.چه دوى لره چه ابوحاتم، ابوزرعه، او ابوداؤد مدلس ګرځولى دى.تولو قيد لګولې دې.چه دوى به صرف هغه رواياتو كښې تدليس كولو.كوم چه ددوى دشيخ شعبى نه منقول دى. (٥) لكه حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى. ، ،ثقة يدلس من شيخه الشعبى، ، (٦)

خو ددوى د تدليس باوجود دوى لره د حديث امامانو قبول كړې دې.ددې ښكاره وجه دا ده. چه محذوف راوى به مجهول نه وو.بلكه معلوم به وو.لكه ابوحاتم رحمه الله فرمائى. ((أن المسائل التى يرويها زكريا عن الشعبى لم يسمعها منه، إنما أخذها عن أبى حريز)) (٧)

دغه شان يحي بن زكريا رحمه الله فرمائى ((لوشئت لسميت لك من بين أبى وبين الشعبى)) (٨)

البته دلته دا ياد ساتئ.چه ددوى هغه روايتونه كوم چه د ابواسحاق سبيعى نه منقول دى.هغې كښې څه حده پورې ضعف دې.ځكه چه ابو اسحاق نه ددوى سماع آخرى عمر كښې شوې وه. (٩) او دې دغه وخت كښې مختلط شوې وو. (١٠)

ددوى وفات په ١٤٧ھ يا ١٤٨ھ يا ١٤٩ھ كښې شوې وو. (١١)، ، رحمه الله تعالى رحمة واسعة، ، _

④ عامر: دا مشهور تابعى محدث ابوعمر عامر بن شراحيل شعبى كوفى رحمه الله دې.ددوى مختصرحالات دكتاب الايمان"باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده"لاندې تيرشوى دى (١٢)

---

(١) تهذيب التهذيب (٣٣٠١٣)_
(٢) الطبقات (٣٥٥١٦)-
(٣) الثقات (٣٣٤١٦)-
(٤) تقريب التهذيب (٢١٦) رقم ٢٠٢٢)-
(٥) تعليقات الكاشف (٤٠٥١١) رقم ١٦٤٣)-
(٦) الكاشف(٤٠٥١١) رقم ١٦٤٣)-
(٧) تهذيب الكمال(٣٦٢١٩)-
(٨) المصدر السابق)-
(٩) تهذيب الكمال(٣٦١١٩)-
(١٠) تقريب التهذيب(ص.٤٢٣) رقم٥٠٦٥)-
(١١) تهذيب الكمال(٣٦٢١٩. ٣٦٣)-
(١٢) كشف البارى(٦٧٩١١)-

④ **النعمان بن بشير:** دا مشهور صحابى حضرت ابو عبدالله نعمان بن بشير(بفتح الباء الموحده وكسر الشين المعجمة) بن سعد ثعلبه بن جلاس ( بضم الجيم و تخفيف اللام) (ويقال: خلاس: بفتح الخاء المعجمة و تشديد اللام)بن زيد بن مالك بن ثعلبه بن كعب بن الخزرج انصارى مدنى دې.[1]

ددوى پلار حضرت بشير بن سعد رضی الله عنه په بيعت عقبهٔ ثانيه كښې شريك وو.دا بدرى صحابى دې.د بدر نه علاوه په نورو ټولو غزواتو كښې هم شريك پاتې شوې دې.او ددوى مور د مشهور صحابى حضرت عبدالله بن رواحه رضی الله عنه خور ده.دا هم صحابيه ده.[2]

حضرت نعمان بن بشير رضی الله عنه د هجرت په دويم كال پيدا شو.دا د هجرت نه پس انصارو كښې ،،أول مولود فى الإسلام،، دې.لكه څنګه چه حضرت عبدالله بن الزبير رضی الله عنه په مهاجرينو كښې ،،أول مولود فى الإسلام،، وو.حضرت نعمان بن بشير د حضرت عبدالله بن الزبير نه شپږ مياشتې مشر وو.[3]

حضرت نعمان بن بشير رضی الله عنه بالاتفاق صغار صحابو كښې وو.[4]په دې وجه دې خبره كښې اختلاف دې.چه دوى د نبى كريم صلی الله علیه وسلم نه سماع كړې وه اوكه نه؟ نو د مدينې خلق د سماع انكار كوى.او د عراق خلق اثبات كوى.[5]

امام يحيي بن معين رحمه الله فرمائى.چه حضرت نعمان بن بشير رضی الله عنه نه ،،سمعت النبى صلی الله علیه وسلم،، الفاظو سره صرف يو حديث (حديث باب) منقول دې.باقى په هيڅ يو روايت كښې براه راست سماع نشته. [6]

بهرحال دوى د نبى كريم صلی الله علیه وسلم نه علاوه د خپل ماما حضرت عبدالله بن رواحه، حضرت عمر بن الخطاب، او د حضرت عائشه رضی الله عنها نه روايات نقل كړى دى.[7]

ددوى نه حسن بصرى، سماك بن حرب، عامر شعبى، عروه بن الزبير، ابو اسحاق سبيعى او ابو قلابه جرمى رحمهم الله وغيره ډيرو تابعينو حديثونه حاصل كړى دى.[8]

---

[1]) تهذيب الأسماء واللغات (۱۲۹\۲) وتهذيب الكمال(۴۱۱\۲۹)-
[2]) تهذيب الأسماء واللغات(۱۲۹\۲)_
[3]) الإصابة(۵۵۹\۳)-
[4]) سير أعلام النبلاء(۴۱۱\۳)_
[5]) تهذيب الكمال(۴۱۲\۲۹)_
[6]) المصدر السابق خودا خبره تيك نه معلوميږى.څكه د بخارى په (۹۶۹\۲) كتاب الرقاق اب صفة الجنة والنار رقم ۶۵۶۱ و۶۵۶۲) كښې اود صحيح مسلم په ((۱۱۵\۱) كتاب الإيمان باب شفاعة النبى صلی الله علیه وسلم لأبى طالب والتخفيف عنه بسببه ) كښې دحضرت نعمان بن بشير رضی الله عنه نه نقل دى.دوى فرمائى.((سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم فتنبه)_
[7]) تهذيب الكمال(۴۱۲\۲۹)-
[8]) تهذيب الكمال (۲۹\۴۱۶)

دې شاعر هم وو.ډير زيات كريم او سخي وو.[1]

د حضرت معاويه رضي الله عنه په زمانه كښې د حمص او كوفې گورنر پاتې شوې وو.د حضرت معاويه رضي الله عنه نه پس د يزيد بن معاويه په زمانه كښې هم ددې دواړو علاقو حاكم وو.څه موده پورې ئې په دمشق كښې د قضاء فرائض هم پوره كول.[2]

ددوى نه تول يوسل خوارلس روايتونه نقل دى.په دې كښې پنځه حديثونه متفق عليه دى.او په يو حديث كښې امام بخارى رحمه الله او په څلورو حديثونو كښې امام مسلم رحمه الله متفرد دې.[3]

كله چه دې په ٢هـ كښې پيدا شو.نو دده پلار حضرت بشير بن سعد رضي الله عنه دوى نبى كريم ﷺ له راوستل.او د دعا درخواست ئې اوكړو.نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.«أما ترضى أن يبلغ ما بلغت، ثم يأتي الشام، فيقتله منافق من أهل الشام»[4]نو هم دغه شان اوشوه.چه دوى د حضرت عبدالله بن الزبير رضي الله عنهما په زمانه كښې اووتل.په لاره كښې خالد بن خلى كلاعى نومې يو بدبخت دوى شهيد كړو.دا د ٦٤هـ واقعه ده.[5]،،رضي الله عنه وأرضاه،،_

**دحديث باب اهميت** د حديث باب په عظمت شان باندې د عالمانو اجماع ده.اودا د هغه حديثونو نه يو حديث دې.په كومو چه د اسلام مدار دې.بعضې حضرات وائى.چه دا ثلث الاسلام دې.ځكه چه ،،اسلام،، په دريو حديثونو كښې دائر دې.① يو حديث باب ،،الحلال بين....،، ② دويم حديث ،،الأعمال بالنيات...،،③ او دريم حديث ،،من حسن اسلام المرء تركه مالايعنيه....،،[6]

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائى.چه ما د رسول الله ﷺ نه پنځه لاكهه حديثونه ليكلى دى.د هغې نه مې انتخاب كړې دې.او په ،،كتاب السنن،، كښې مې څلور زره او اته سوه حديثونه جمع كړى دى.چه په دې كښې صحيح هم شته.او د صحيح مشابه او مقارب هم. حالانكه د انسان د خپل دين دپاره څلور حديثونه كافى دى:

---

[1] تهذيب الأسماء (١٣٠\١٢)-

[2] تهذيب الكمال(٤١٤\٢٩) وسير أعلام النبلاء(٤١٢\٣)_

[3] سير أعلام النبلاء (٤١١\٣) وتهذيب الأسماء (١٢٩\٢) وعمدة القارى(٢٩٦\١) وفى خلاصة الخزرجى (٤٠٢) له مائة وأربعة وعشرون حديثاً ولعله خطأ والصواب ما ذكرناه مائة وأربعة عشر حديثاً كما فى المصادر المذكورة والله أعلم)-

[4] تهذيب الكمال(٤١٦\٢٩)-

[5] سير أعلام النبلاء(٤١٢\٣) وتهذيب الكمال(٤١٦\٢٩، ٤١٧)_

[6] قاله العينى رحمه الله فى العمدة (٢٩٩\١) والطيبى فى الكاشف عن حقائق السنن (٦\٩) فى كتاب البيوع باب الكسب وطلب الحلال والكرمانى فى شرحه (٢٠٣\١) والنووى فى شرحه لمسلم (٢٨\٢) كتاب البيوع باب أخذ الحلال وترك الشبهات)_ وقال أحمد أصول ا لإسلام ثلاثة أحاديث :هذا (أى الأعمال بالنيات..) والحلال بين ..إلخ ووممن أحدث فى أمرنا هذا ما ليس منه فهو رد ) كذا فى الفتوحات الربانية)(٦٥\١)-

① يو ،،الأعمال بالنيات.....،، ② دويم ،،من حسن اسلام المرء ترکه مالا يعنيه.....،، ③ دريم ،،لايكون المؤمن مؤمناً حتى يرضى لأخيه مايرضى لنفسه،، ④ څلورم «ألحلال بيّن والحرام بيّن.....»(١)

بعضې حضراتو د دريم حديث «لا يكون المؤمن مؤمناً.....» په ځائې «ازهد في الدنيا يحبك الله.....» ذكر كړې دې (٢)

عالمانو د حديث باب دعظمت سبب دا بيان كړې دې چه په دې حديث كښې نبی كريم ﷺ د خوراك. څکاك. او لباس وغيره په اصلاح او بهتروالی باندې تنبيه فرمائيلې ده چه ددې څيزونو حلال كيدل ضرورى دى او نبی كريم ﷺ د حلال پيژندلو لاره ښودلې ده.او د مشتبهاتو پريخودو حكم ئې وركړې دې.ځكه چه هم په دې سره سړې د خپل دين او عزت حفاظت كولې شى.دا ټولې خبرې نبی كريم ﷺ د يو مثال په ذريعه بيان كړې.او بيا په آخر كښې د ټولو نه زيات اهم كار يعنى د زړه د احوالو مراعات او نګرانی په باره كښې ئې تاكيد فرمائيلې دې.(٣)

**قوله**: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: ما د نبی كريم ﷺ نه واوريدل.چه دوى فرمائيل...

په دې تصريح سره د هغه حضراتو ترديد اوشو.څوك چه دا وائى.چه دوى ته براه راست د نبی كريم ﷺ نه سماع حاصل نه ده.(٤)ځكه چه دا د صغار صحابو ځنې وو.د نبی كريم ﷺ د وفات په وخت ددوى عمر اته كاله وو.(٥)

ددې تصريح نه يو خو دا معلومه شوه.چه دوى ته سماع براه راست حاصل ده. دويمه خبره دا معلومه شوه.چه د صبى مميز تحمل معتبر دې.(٦)لكه چه دلته كښې حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه په ماشوموالی كښې تحمل كړې وو.او دا ئې د بلوغ نه پس ادا كړې وو.

دلته دا خبره هم ذهن كښې كينول پكار دى.چه بعضې حضراتو ددوى سماع صرف په حديث باب كښې منلې ده.باقى په يو حديث كښې ئې هم نه ده منلې.لكه ځنګه چه اوس وړاندې

---

(١) انظرتاريخ بغداد (٥٧١٥) وتهذيب الكمال(٣٦٤١١١) وسيرأعلام النبلاء(٢١٠١١٣) وشرح النووى على صحيح مسلم (٢٨١٢)_

(٢) الفتوحات الربانية (٦٤١١) وشرح النووى(٢٨١٢)_

(٣) شرح النووى(٢٨١٢) كتاب البيوع باب أخذ ا لحلال وترك الشبهات وشرح الكرمانى(٢٠٣١١) والكاشف(٩١٦) وعمدة القارى(٢٩٩١١)_

(٤) قال الحافظ: وفى هذا رد القول الواقدى ومن تبعه أن النعمان لا يصح سماعه من رسول الله... فتح البارى(١٢٦١١)

(٥) كما سبق بيان ذلك فى ترجمته آنفاً)-

(٦) فتح البارى(١٢٦١١)-

ددوى په حالاتو كښې د امام يحي بن معين رحمه الله په حوالې سره مونږ ذكر كړل.خو دا خبره هم صحيح نه ده.ځكه چه ددې حديث نه علاوه نورو حديثونو كښې هم د نبى كريم ﷺ نه براه راست د سماع دوى تصريح كړې ده. (١)

**قوله: الْحَلَالُ بَيِّنٌ وَالْحَرَامُ بَيِّنٌ وَبَيْنَهُمَا مُشَبَّهَاتٌ لَا يَعْلَمُهَا كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ:**

حلال هم واضح دى او حرام هم ښكاره دى.او ددې دواړو په مينځ كښې څه مشتبه څيزونه دى چه دا ډير خلق نه پيژنى.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.((الحلال بين والحرام بيّن فى عينهما و وصفهما بأدلتهما الظاهرة)) يعنى حلال او حرام د خپلو واضحو دليلونو په وجه د خپل ذات او وصف هر اعتبار سره بالكل ښكاره او واضح دى. (٢)

مطلب دا دې چه يو څيز به يا خو د طلب تنصيص او تصريح مع الترك په وعيد سره كولې شى يا به ددې د پريخودو په تنصيص او تصريح مع الوعيد على الفعل كولې شى.رومبې

،،حلال بيّن،، دې.دويم ،،حرام بيّن،، دې.اوكه دا صورت نه وى.نود مشتبهاتو د قبيل څخې دې.او ددې نه هم بچ كيدل پكار دى.ځكه د حرامو د جنس څخې دې.نوسړې به د حرامو نه محفوظ وى.اوكه د حرامو د جنس څخې نه دې.بلكه د مباح د قسم څخې دې.نو بيا هم ددې حسن نيت په وجه به ده ته اجر او ثواب ملاويږى.چه دې د حرامو د ويرې نه دا پريږدى.

علامه ابوالحسن سندهى رحمه الله دلته مفصل كلام كړې دې.د هغې خلاصه دا ده.چه په دې جمله كښې يو څو احتماله كيدې شى.

(١) يو دا چه ((كل ما هو حلال عندالله تعالى فهو بيّن بوصف الحل، يعرفه كل أحد بأنه حلال)) :غه شان

((الحرام كل ما هو حرام عند الله تعالى فهو بيّن بوصف الحرمة، يعرفه كل أحد بأنه حرام)) يعنى كوم څيز چه په واقع كښې يعنى د الله تعالى په نيز حلال دې.هغه بالكل واضح دې.او ټولو خلقو ته معلوم دې.او كوم څيز چه فى الواقع يعنى د الله تعالى په نيز حرام دې.

هغه هم بالكل واضح دې.او ټولو خلقو ته معلوم دې.

علامه سندهى رحمه الله فرمائى.دا احتمال صحيح نه دې.ځكه په څيزونو كښې كه غور اوكړې شى.نو په هغې كښې فى الواقع او د الله تعالى په نيز هيڅ قسمه اشتباه نشته.نو په واقع كښې د څيزونو دوه قسمونه جوړيږى: حلال او حرام، حالانكه په حديث باب كښې درې قسمونه بيان كړې شوى دى.(١) حلال (٢) حرام (٣) مشتبهات.

(٢) دويم احتمال دا دې.چه ددې معنى ده.((الحلال بيّن حكماً، وهو أنه لا يضر تناوله، وكذا الحرام بيّن، من حيث أنه يضر تناوله، أى هما يعرف الناس حكمهما، لكن ينبغى للناس أن يعرفوا حكم المحتمل

---

(١) قدمنا أمثلته سابقاً تحت ترجمته تعليقاً فارجع إليه إن شئت)_

(٢) فتح البارى(١/١٢٧)-

المتردد بين كونه حلالاً أو حراماً...» مطلب دا دې چه د حلال حکم هم ښکاره دې چه ددې استعمال مضر نه دې او د حرامو حکم هم ښکاره دې چه ددې استعمال مضر دې کوم څیز چه د تحقیق قابل دې هغهٔ د مشتبهاتو په حکم کښې دې چه ددې په حلال او حرام کیدو کښې اشتباه ده ښکاره نه حلت معلوم دې او نه حرمت معلوم دې نبی کریم ﷺ ددې حکم بیان کړې دې چه ددې نه اجتناب کونی علامه سندهی رحمه الله فرمائی چه ددې جملې صحیح مطلب هم دا دې.

③ دریم احتمال دوی دا بیان کړې دې چه «الحلال الخالص بیّن، والحرام الخالص بیّن، یعلمهما کل أحد، لکن المشتبه غیر معلوم، لکثیر من الناس» علامه سندهی رحمه الله فرمائی چه دا احتمال هم صحیح نه دې څکه که ددې جملې هم دامعنی واخستلې شی نو په دې کښې دوه احتمالات دی.

① یو احتمال دا دې چه د ,,الحلال الخالص،، نه مراد ,,الحلال الخالص المعلوم عند الناس،، وی او د ,,الحرام الخالص،، نه مراد ,,الحرام الخالص المعلوم عند الناس،، وی. یعنی ,,الحلال بیّن،، او ,,الحرام بیّن،، کښې چه کوم ,,الحلال،، او ,,الحرام،، واقع دی. دا حلال فی علم الناس او حرام فی علم الناس اوګرځولې شی نو مطلب به دا شی. چه «الحلال الخالص المعلوم عند الناس بیّن و معلوم لدیهم، والحرام الخالص المعلوم عند الناس بیّن و معلوم لدیهم» په دې صورت کښې جمله بالکل بې معنی کیږی څکه چه هرکله حلال هم هغه مراد دې کوم چه خلقو ته ښکاره دې او حرام هم هغه مراد دې کوم چه خلقو ته ښکاره دې نو بیا د ,,بیّن،، وئیلوحکم لګول بې معنی دې په دې وجه علامه سندهی رحمه الله فرمائی چه د ,,الحلال بیّن،، معنی ,,الحلال الخالص بیّن،، ګرځول، دغه شان د ,,الحرام بیّن،، معنی ,,الحرام الخالص بیّن،، ګرځول، داسې دی لکه چه داسې اوونیلې شی چه ,,المعلوم بالحل معلوم بالحل،، او ,,المعلوم بالحرمة معلوم بالحرمة،، چه ددې هیڅ فائده نشته.

② ددې جملې دویم احتمال دا دې چه د ,,الحلال بیّن،، نه مراد ,,الحلال الخالص،، وی او د ,,الحرام بیّن،، نه مراد ,,الحرام الخالص،، وی البته د رومبی احتمال پشان ددې حلال خالص او حرام خالص تعلق د خلقو علم سره نه وی یعنی ,,الحلال الخالص المعلوم عند الناس،، او ,,الحرام الخالص المعلوم عند الناس،، مراد نه وی بلکه ,,الحلال الخالص عند الله وفی نفس الأمر،، او ,,الحرام الخالص عند الله وفی نفس الأمر،، مراد وی ددې تاویل او احتمال په صورت کښې به دا معنی د هغه معنی پشان راجح وی کومه معنی چه رومبی احتمال کښې داسې بیان شوې وه چه «کل ما هو حلال عند الله تعالی فهو بیّن بوصف الحل، یعرفه کل أحد بأنه حلال» او «الحرام کل ما هو حرام عند الله تعالی فهو بیّن بوصف الحرمة، یعرفه کل أحد بأنه حرام» ددې حاصل دا راوځی چه

عندالله او فی الواقع د څیزونو دوه قسمونه دی: ① حلال ② حرام۔

د دریم قسم، ,مشتبهاتو،، هیڅ ګنجائش نشته.نو دا احتمال دلته مراد اخستل په دې وجه صحیح نه دی.چه د حدیث باب په دې جمله کښې د حرام او حلال نه علاوه دریم قسم ,,مشتبهات،، هم ذکر دی.(۱)

خو په غور کولو سره راجح هم دا دریم احتمال معلومیږی.خو د ..خالص،، نه هغه معنی مراد نه ده.کومه چه علامه سندهی رحمه الله بیانئی.بلکه مراد ،،حلال محض،،او ،،حرام محض،، دې.او د حدیث مطلب دا دې.چه کوم څیز حلال محض دې.هغه خو ښکاره دې.خلق پوهیږی.چه د غنمو روټئ او وریژې خوړل حلال دی.دغه شان خلقو ته هم پته ده.چه د خنزیر غوښه او شراب حرام دی.البته د غور څیزونه مشتبهات دی.چه ددې په حلت او حرمت کښې اشتباه ده. (اوپه اول نظر ئې حلت او حرمت نه معلومیږی)

امام نووی رحمه الله دحدیث هم دا تشریح فرمائیلې ده.لکه هغوی فرمائی. «فمعناه أن الأشياء على ثلاثة أقسام، حلال بيّن واضح، لايخفى حله كالخبز، والفواكه، والزيت، والعسل، والسمن، ولبن مأكول اللحم، وبيضته، وغير ذالك من المطعومات، وكذلك الكلام والنظر والمشى وغير ذالك من التصرفات فيها، حلال بيّن واضح، لاشك فى حلّه، وأما الحرام البيّن فكالخمر، والخنزير، والميتة، والبول، والدم المسفوح، وكذالك الزنا، والكذب، والغيبة، والنميمة، والنظر إلى الأجنبية، وأشباه ذالك، وأما المشتبهات، فمعناه أنها ليست بواضحة الحل والحرمة....»(۲)

په دې دریم صورت او چه کوم دریم صورت ته علامه سندهی رحمه الله ترجیح ورکړې ده.دې دوارو کښې فرق دا دې.چه دوی ،،بین،، کیدل د څیزونو دحلت او حرمت حکم سره متعلق کړې دې.چه د حلال څیزونو حکم واضح دې.او د حرام څیزونو حکم هم واضح دې.البته د مشتبهاتو د حکم تحقیق او بیا ددې نه داجتناب ضرورت دې.او په دې دریم صورت کښې پخپله د یوڅیز حلت او حرمت ،،بیّن،، کیدل بیان شوی دی.چه حلال محض څیزونه هم معلوم دی.او حرام محض څیزونه هم معلوم دی.البته د مشتبهاتو په باره کښې چونکه شبه ده.په دې وجه د هغې نه بچ کیدل پکار دی.او دا مطلب د حدیث جملې «الحلال بيّن والحرام بيّن وبينهما مشتبهات» نه دځه قسم تاویل کولو، او تکلف نه بغیر پوهه کښې راځی.په دې وجه به هم دا معنی راجح وی.،،والله سبحانه وتعالى أعلم،،۔

د,,مشتبهات،، تحقیق په ،،مشتبهات کښې پنځه روایتونه دی: ① ,,مشتبهات،،د باب افتعال نه د اسم فاعل جمع مونث صیغه ده.په دې صورت کښې به ددې وجه تسمیه دا

---

(۱) حاشية السندى على صحيح البخارى(۱/۲۵، ۳۷)۔
(۲) شرح النووی على صحيح مسلم (۲۸/۱۲) كتاب البيوع باب أخذ الحلال وترك الشبهات

وى چه چونكه په دوى كښې طرفين متخالفين كښې هريو سره مشابهت موجود وى په بعضې وختونو كښې يوطرف سره مشابهت وى او په بعضو وختونو كښې مخالف طرف سره. نو په دې طريقه دې كښې اشتباه پيدا كيږى

② مشتبهات: دا د باب تفعل نه د اسم فاعل صيغه ده. په دې كښې او ړومبى معنى كښې هيڅ فرق نشته سواء ددې نه چه په باب تفعل كښې د تكلف معنى وى.

③ مشبهات: د باب تفعيل نه د اسم مفعول صيغې سره. په دې صورت كښې به د دې معنى وى. «إنها مشتبهات بغيرها مما لم يتيقن فيه حكمها على التعيين» يعنى ددې امورو داسې څيزونو سره تشبيه وركړې شوې ده. چه هغې كښې متعين حكم يقينى نه دې. يو قول دا هم دې چه ددې معنى ده. ,,مشتبهات بالحلال،، ددې امورو حلالو څيزونو سره تشبيه وركړې شوې ده.

④ مشبهات: د باب تفعيل نه په صيغې د اسم فاعل سره. ددې معنى ده. ,,إنما تشبه أنفسها بالحلال،،_

⑤ مشبهات: د باب افعال نه په صيغې د اسم فاعل سره. ددې هم هغه معنى ده. كومه چه د څلورم معنى ده. (١)

بيا په دې خبره كښې اختلاف دې چه دلته د ..مشتبهات.. نه څه مراد دې؟

① علامه خطابى رحمه الله فرمائى. دا امور داسې دى چه دا په بعضې خلقو باندې خو مشتبه وى او په بعضو باندې نه وى. دا مطلب نه دې چه دا امور د خپل ذات په اعتبار سره مشتبه دى او په اصولو د شريعت كښې ددې هيڅ بيان نشته. ځكه چه الله تعالى دهر څيز حكم بيان كړې دې او دليل ئې هم قائم كړې دې. خو چونكه بيان كله كله بالكل ښكاره وى او تول خلق پرې پوهيږى. او كله خفى وى. خاص خاص عالمان پرې پوهيږى. چه په اصول فقه كښې مهارت لرونكى وى. د نصوصو د معانيو صحيح ادراك كونكى وى. قياس. استنباط او يو څيز دهغې په نظير او مثل باندې رد كولې شى. په دې وجه دې امورو كښې اشتباه پيدا كيږى. (٢)

خطابى رحمه الله فرمائى. ددې خبرې دليل چه دا امور د خپل ذات په اعتبار سره مشتبه نه دى. دا دې چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم فرمائى. ,,لايعرفها كثير من الناس،، ددې مفهوم هم دا دې چه بعضې خلق پوهيږى. اګرچه ډير كم دى. نو هركله چه د بعضو په نيز باندې دا امر معلوم دې. نو دا څيز فى نفسه مشتبه نه دې.

خطابى رحمه الله فرمائى. كوم كس ته چه داسې قسمه اشتباه راپيښه شى. هغه ته د شك لرې كولو پورې توقف كول پكار دى. او د انشراح نه بغير دې اقدام نه كوى. ځكه كه د احتياط نه

---

(١) عمدة القارى (٢٩٧/١)-

(٢) معالم السنن (٦/٥) كتاب البيوع باب فى إجتناب الشبهات)-

بغير اقدام اوكړې شي نو ممكن ده چه دې په حرامو كښې راګيرشي.هم دا د ..حمى.. نه د بچ كيدو مطلب دې د كوم چه دلته كښې مثال ورکړې شوې دې.
د امام خطابي رحمه الله د كلام حاصل دا دې.چه ددې امورو مشتبه كيدل اضافي دى.يعنى دهغې خلقو په نسبت سره دا مشتبه دى.څوك چه د حكم نه ناخبره دى.او د دوى په نيز د شبهاتو نه د بچ كيدو مطلب دا دې چه ناخبره كس د بصيرت او انشراح نه بغير اقدام اونه كړى كه بصيرت موجود وى.نو هغه اقدام كولې شى.
② دامام نووى رحمه الله د كلام نه معلوميږى.چه د ..مشبهات.. نه هغه امور مراد دى.په كوم كښې چه د حلت او حرمت دليلونه متعارض وى.تردې كه چرې مجتهد اجتهاد اوكړى.او د يو دليل په بنياد باندې حلت طرف ته ترجيح وركړى.بيا به هم دا امر مشتبه وى.په دې كښې ورع (احتياط) دا دې.چه ددې امر ارتكاب بالكل اونكړې شى.څكه ممكن ده.چه اجتهاد كښې خطاء واقع شى.([1])
حاصل ددې قول دا دې.چه د ..مشتبهات.. نه مراد هغه اجتهادى امور دى .په كوم كښې چه نص يا اجماع موجود نه وى.او د ..ترك الشبهات.. نه مراد احتياط او ورع د تقوى په اعتبار سره اختيارول دى.د فتوى په طور اختيارول مراد نه دى.
③ علامه مازرى رحمه الله فرمائى.چه په حديث كښې د ..مشتبهات.. نه مكروه امور مراد دى.او مقصود دلته ددې مكروهاتو د ارتكاب نه بچ كيدو باندې آماده كول دى.څكه چه ډيرخلق د مكروهاتو ارتكاب كوى.او ګڼرى.چه دا حرام نه دى.حالانكه دده دا عمل محرماتو ته رسولې شى.([2])
④ بعضې عالمان فرمائى.چه د ..مشتبهات.. نه دلته هغه مباح امور مراد دى. چه د هغې نه بچ كيدل او احتياط كول غوره دى.([3])هم دا وجه ده.چه نبى كريم ﷺ اوددوى نه پس ددوى خلفاء او اكثر صحابه كرام رضي الله عنهم د مباحاتو نه هم په ډډه اوسيدل.لكه چه هغوى به د ښه خوراكونو. د ښه لباس. او د ښه كورونو نه هم ځان ساتلو.او د ساده ژوند تيرولو عادت ئې جوړكړې وو.
په دې اقوالو كښې آخرى دواړه قولونه ضعيف دى.د مكروه او مباح په ..مشتبهات.. كښې دخل نشته البته ړومبى دواړه صورتونه په .. مشتبهات .. كښې داخل دى.بلكه داسې معلوميږى.چه د اشتباه څومره صورتونه دى هغه ټول په ..مشتبهات.. كښې داخل دى.د هغې ټولو نه اجتناب كول پكار دى.([4])مثلاً : ① كله به دا اشتباه د دليلونو د تعارض په وجه وى.چه يو دليل په حرمت باندې دلالت كوى.او بل دليل په حلت باندې، اوس

---

[1]) شرح النووى على صحيح مسلم (٢٨\١٢) كتاب البيوع باب أخذ الحلال وترك المشبهات)_
[2]) عمدة القارى(١\٣٠٠)_
[3]) فتح البارى(١\١٢٧)-
[4]) [illegible] (١١\٦٢٣)-

مجتهد ته په ترجيح ورکولو کښې مشکلات وی.لکه څنګه چه د مشکوك اوبو مسئله ده.نو ددې نه بچ کيدل غوره دی.

④ کله دا اشتباه په تحقيق مناط کښې د اختلاف په وجه وی.مثلاً د دارالحرب احکام يوشان دی.او د دارالاسلام احکام ددې نه جدا بل شان دی.اوس د يو ملك په باره کښې اختلاف شو چه آيا دا دارالحرب اوګرځولې شی.اوکه دارالحرب اونه ګرځولې شی.دلته چه دارالحرب کيدل کوم چه مناط حکم دی.په دې کښې اختلاف شو.په دې وجه به احکامو کښې اشتباه راپيښيږی.په داسې صورت کښې احتياط هم په دې صورت کښې دې چه کوم څيز د دارالحرب ګرځولو په صورت کښې جائزکيدو.د هغې نه اجتناب اوکړې شی.ځکه احتمال شته.چه دا دارالحرب نه وی.

⑤ کله اشتباه په دې بنياد باندې راپيښيږی چه يوڅيز من وجه د شريعت په نيز حلال وی.او هم دا څيز من وجه ددې په نظير کښې حرام هم وی.مثلاً حديث کښې ښځې د قبرونو د زيارت نه منع کړې شوی دی.(١)خو ورسره په يو حديث کښې دی.،،ولم يعزم علينا،،(٢) يعنی قبرستان ته نه تلل په مونږ باندې نه دی واجب کړې شوې.ددې په وجه اشتباه پيدا شوه.نو اوس به احتياط هم په دې کښې وی.چه دا پريخودې شی.

⑥ بعضې وخت اشتباه په دې طريقه پيدا کيږی.چه يو څيز د شريعت په نظر کښې حلال دې.خو په دې کښې دننه دحرمت هم څه قرينه موجود ده.يا حرمت دپاره حجت ناقصه موجود دې.لکه مثلاً د حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه او د عبد بن زمعه په مينځ کښې د زمعه د وينځې د خوی په باره کښې اختلاف پيدا شو.د عبد بن زمعه دعوه وه.چه دا زما ورور دې.،،ولد على فراش أبي،، او دحضرت سعد وينا دا وه.چه زما ورور عتبه بن ابی وقاص وصيت کړې وو.چه د زمعه د وينځې خوئې زما دې.ددوی دعوه دا وه.چه دا ماته ملاويدل پکار دی.

نبی کريم صلی الله عليه وسلم ددوی په مينځ کښې فيصله کړې وه.،،الولد للفراش وللعاهر الحجر،، بچې به د صاحب فراش وی.او زانی دپاره حرمان دې.نو دوی دا بچې زمعه ته ورکړو.ګويا چه د شريعت په نظرکښې دا بچې د عبد بن زمعه ورور شو.او هم په دې نسبت سره د ام المؤمنين

---

(١) كما روى أبوهريرة رضی الله عنه أن رسول الله صلی الله عليه وسلم لعن زوارات القبور.. أخرجه الترمذى فى جامعه فى كتاب الجنائز. باب ما جاء فى كراهية زيارة القبور للنساء رقم (١٠٥٦) وابن ماجه فى سننه فى كتاب الجنائز باب ما جاء فى النهى عن زيارة النساء القبور رقم ١٥٧٦) وعن ابن عباس رضی الله عنهما قال لعن رسول الله زائرات القبور .. وأخرجه النسائى فى سننه (٢٨٧\١١) فى كتاب الجنائز باب التغليظ فى إتخاذ السرج على القبور ولبوداود فى سننه فى كتاب الجنائز باب فى زيارة النساء القبوررقم ٣٢٣٦)-

(٢) عن أم عطية رضى الله عنها قالت: نهينا عن إتباع الجنائز. ولم يعزم علينا (رواه البخارى فى صحيحه فى كتاب الجنائز باب إتباع النساء الجنائز. رقم (١٢٧٨)ومثله عند مسلم (٣٠٤\١١) كتاب الجنائز باب فى نهى النساء عن إتباع الجنائز. من غير عزيمة)_

حضرت سوده بنت زمعه رضي الله عنها هم ورور شو. خو دوى خپلې پاکې بى بى حضرت سوده رضي الله عنها ته حكم وركړو. ،،إحتجبي منه يا سودة،، ددې وجه هم دا ده. چه يو طرف ته د شريعت په نظر كښې دده نه پرده نشته. بل طرف ته د حرمت قرينه هم موجود ده. چه دا بچې په شكل اوشباهت كښې دعتبه بن ابى وقاص مشابه وو. اګرچه شرعاً دا معتبر نه دې. خو چونكه يوه قرينه ضرورده. په دې وجه نبى كريم ﷺ حضرت سوده رضي الله عنها ته دده نه د پردې حكم وركړو. (١)

دغه شان حضرت عقبه بن حارث رضي الله عنه د يوې ښځې سره نكاح كړې وه. د نكاح نه پس يوه ښځه راغله. او وې وئيل. چه ما خو عقبه او ددې ښځې دواړو ته پئ وركړى وو. دا دواړه رضاعى ورور اوخور دى. نو ددوى په مينځ كښې به نكاح څنګه كيږى؟ حضرت عقبه خو اووئيل. «ما أعلم أنك قد أرضعتنى، ولا أخبرتنى» دغه شان دده سخرګنئ هم اووئيل. ،،ما علمنا أرضعت صاحبتنا،، بيا دا مقدمه نبى كريم ﷺ ته پيش كړې شوه. دلته حجت تامه نشته. چه دوه سړى وى. يا يو سړى او دوه ښځې وى. بلكه حجت ناقصه دې. يعنى صرف يوه ښځه ده. خو ددې باوجود نبى كريم ﷺ هغوى ته د جداكيدو دپاره اوفرمائيل. (٢) دا حكم په دې وجه وركړې شو. چه د مشتبهاتو نه اجتناب كول پكار دى.

⑤ بعضې وختونو كښې اشتباه په دې طريقه راپيښيږى. چه يو څيز بيخى حلال دې. هيڅ قسمه اشتباه نشته. خو خلقو ته غلط فهمى پيداكيږى. لكه څنګه چه د تهمت په موقعو كښې عام طور باندې داسې كيږى. چه تاسو يو صحيح او جائز كاركوئ. خو چونكه د تهمت ځائې دې. په دې وجه نوروخلقوته مغالطه كيږى. په دې صورت كښې هم احتياط كول پكار دې. اوګورئ! نبى كريم ﷺ اعتكاف كښې وو. د شپې وخت وو. حضرت صفيه رضي الله عنها دوى له راغله. كله چه هغه لاړله. نو نبى كريم ﷺ د هغې رسولو دپاره د جمات دروازې پورې تشريف راوړلو. هلته دوه انصارى صحابه تيريدل. نبى كريم ﷺ دا خيال اوكړو. چه چرته شيطان ددوى په زړونو كښې څه وسوسه وانه چوى. وې فرمائيل. ،،هذه صفية،، ګويا نبى كريم ﷺ يوه غلط فهمى لرې كړله. كومه چه پيداكيدې شوه. (٣)

حاصل دا دې. چه څومره څيزونه د اشتباه دى. د هغې تولو نه بچ كيدل او احتياط كول پكار دې. البته دا اجتناب به كله واجب وى. او كله به مستحب وى. د دې تفصيل دا دې. چه اشتباه به يا يو عام كس ته راپيښيږى. او يا به مجتهد ته راپيښيږى. عامى ته د راپيښيدو په صورت كښې به ددې وجه يا خو دا وى. چه هغه عارف بالحكم نه دې. او نه د يو مجتهد او مفتى نه ده تپوس كړې دې. په دې صورت كښې اجتناب او ځان ساتل واجب دى. او يا به ددې وجه دا وى. چه د مجتهدينو او مفتيانو حضراتو اختلاف وى. او د علم او ورع په اعتبار

---

(١) د تفصيلى واقعه دپاره اوګورئ. صحيح البخارى (٢٧٦\١) كتاب البيوع باب تفسير المشبهات)_

(٢) مشكاة المصابيح (٢٧٣\٢و ٢٧٤) كتاب النكاح باب المحرمات الفصل الأول وانظرصحيح البخارى (٢٧٦\١) كتاب البيوع باب تفسير المشبهات (٢\٧٦٤. ٧٦٥) كتاب النكاح باب شهادة المرضعة)_

(٣) صحيح بخارى (٢٧٣\١) كتاب الصوم باب زيارة المرأة زوجها فى إعتكافه)_

سره يو مفتي ته په بل مفتي باندې ترجيح ورکول مشکل وي په داسې صورت کښې به د اجتناب او احتياط حکم استحباباً وي

اوکه اشتباه مجتهد ته راپيښه شوې وي.نو ددې وجه به يا دا وي چه ده خاص ددې مسئلې په حکم باندې غور او فکر او اجتهاد نه دې کړې په دې صورت کښې دا مجتهد د ..عامي.. په حکم کښې دې.او که اشتباه ده ته د دلائلو د تعارض په وجه. او د ترجيح نه ورکولو په وجه راپيښه شوې وي.نو احتياط او تورع واجب دې خکه چه محرم ته په مبيح باندې ترجيح حاصل وي.خوکه د دلائلو تعارض وي.او اباحت ته په تحريم باندې ترجيح هم ورکړې شوې وي نو په داسې صورت کښې بچ کيدل مستحب دی [١] والله اعلم

**تنبيه** يوه خبره دلته د يادولو دا ده.چه يو څيز دې ..مشتبهات.. او بل يو څيز دې ..وساوس..دواړو کښې فرق دې.امام بخاري رحمه الله هم فرق کړې دې.لکه يو باب ئې قائم کړې دې ،،باب من يتنزه من الشبهات،،[٢] دلته تلقين دې چه د ..مشتبهات نه بچ کيدل پکار دی.او يوه ترجمه ئې قائم کړې دې،،باب من لم يرالوساوس ونحوها من الشبهات،،[٣] يعنې وساوس په شبهات. او مشتبه څيزونو کښې داخل نه دی.نو د مشتبهاتو نه د بچ کيدو حکم د ې.خو د وساوسو پرواه کول پکار نه دی.

ددې صورت دا کيدې شي.چه يو سړې په يو څيز کښې يو داسې احتمال پيش کړی کوم چه ..نا شئ من دليل صحيح.. نه وی.مثلاً د مسلمان مذبوحه خاروې دې په دې کښې خوك احتمال راوباسي.چه ممکن ده.ده تسميه وئيلو سره ذبح نه وی کړې.نو ددې خوراك جائز نه دې! دا وسوسه ده.ددې اعتبار به نه کيږی.يا مثلاً يوکس سره څه اوبه دی او هيڅ يو علامت داسې نشته.چه د هغې په وجه دې اوبو ته ناپاکې اووئيلې شي.خو هغه احتمال بنکاره کوی چه ممکن ده.چه د کومو نلکو نه دا اوبه راوخي په هغې کښې پليتې اوبه ملاو شوی وی د داسې وسوسې

اعتبار به نه کيږی.والله اعلم.

**قوله** فَمَنِ اتَّقَى الْمُشَبَّهَاتِ اسْتَبْرَأَ لِدِينِهِ وَعِرْضِهِ: يعنې چه کوم کس د شبهې دڅيزونو نه بچ کيږی.هغه خپل دين اوعزت بچ کوی

ددې حديث په ړومبئ حصه ،،الحلال بيّن.....،، کښې احکام او مسئلو طرف ته اشاره ده.چه حلال اوحرام ټول شريعت واضح کړی دی.اواوس په دې دويمه حصه ،،فمن اتقى المشبهات....،، کښې حوادث او واقعاتو طرف ته اشاره ده.ددې دپاره يوه عرفي ضابطه ذکر کړې شوې ده.چه په عملی ژوند کښې راپيښيدونکو کوم واقعاتو سره د انسان واسطه راځی.هغه

---

[١] تکملة فتح الملهم (٦٢٣/١)_

[٢] کتاب البيوع (٢٧٦/١)_

واقعات او حوادث كه د مشبهاتو د قبيل ځنې وي.نو ددې نه عرفاً هم اجتناب كول پكار دي.ځكه چه په دې سره د سړي دين او دده آبرو محفوظ كيږي.
حاصل دادې چه كوم سړې د مشتبهاتو نه بچ كيږي.هغه باندې به شرعي حيثيت سره هيڅ نكته چيني نه كيږي.يو سړې دواني په دې شبهې سره نه ځكې چه په دې كنبې ..الكحل.. دي.نو دده په دين باندې هم نكته چيني نه كيږي او دده د آبرو حفاظت هم كيږي.او كه يو سړې احتياط نه كوي.نوخلق به كم ازكم داخو واني چه دې په دې سلسله كنبې احتياط نه كوي.
ددې ځاني نه دا هم معلومه شوه.چه په مشتبهاتو كنبې پريوتلو سره دنيوي نقصان هم دې.چه خلق بدې ردې واني.او طعن او ملامتيا واني.چه په دې سره بې عزتي كيږي.او په دې كنبې ديني نقصان هم دې.چه دين بالكل پاك نه پاتې كيږي. خطره وي.چه وړاندې تلو سره به د شيطان په دهوكو. محرمات محضه كنبې واقع شي.كه دې د مشتبهاتو نه بچ كيږي.نو دده عزت به هم د خلقو د عيب لګولو او د ملامته كولو نه محفوظ وي.او دين به هم د شيطان د دهوكو نه په امن كنبې وي.(١)

**قوله وَمَنْ وَقَعَ فِي الشُّبُهَاتِ كَرَاعٍ يَرْعَى حَوْلَ الْحِمَى يُوشِكُ أَنْ يُوَاقِعَهُ:** او څوك چه د شبهاتو په دې څيزونو كنبې اخته شو.(نوهغه په حرامو كنبې پريوتلو)دده مثال د هغه څرونكي (شپونكي) دې.كوم چه د (شاهي) چراګاه (ورشو) ګير چاپيره څرن كوي.نزدې ده.چه هغه څاروي هغې كنبې داخل كړي.
د بخارى شريف په ټولو رواياتو كنبې دا جمله داسې ده:،،من وقع فى الشبهات كراع.....،،(٢)كه په دې كنبې ..من.. شرطيه اومنلې شي.نو جزاء به محذوف وي.،،وقع فى الحرام،، لكه څنګه چه د مسلم شريف په روايت كنبې جزاء هم دا مذكور ده.(٣) په دې صورت كنبې به ،،كراع يرعى.....،، جمله مستانفه وي.ددې مقصود مثال پيش كولو سره ..تنبيه بالشاهد على الغائب.. ده.(٤)
دويم صورت دا هم ممكن دې.چه ..من.. شرطيه نه وي.بلكه موصوله وي.په دې صورت كنبې به څه.هم محذوف نه وي.او مطلب به دا وي ،،الذى وقع فى الشبهات مثل راع يرعى.....،،(٥) خو اولى او راجح هم دا رومبې صورت دې ځكه چه دارمي د امام بخاري د شيخ ابونعيم په طريق سره د روايت تخريج كړې دې.چه هغې كنبې،،وقع فى الحرام،،مذكور دې.(٦)دغه شان په

---

(١) فضل البارى(١١\٥٤٦)-
(٢) فضل البارى(١١\١٢٨)_
(٣) صحيح مسلم (٢٨\٢) كتاب البيوع باب أخذ الحلال وترك الشبهات)_
(٤) فتح البارى(١١\١٢٨)_
(٥) المصدرالسابق)_
(٦) سنن الدارمي(٣١٩\٢) فاتحة كتاب البيوع باب فى الحلال بين والحرام بين رقم ٢٥٣١)-

صحيح مسلم كښې هم د زکريا بن ابى زائده رحمه الله په طريق سره نقل دي.(لکه څنګه چه دلته کښې هم ددوى په طرقه سره دي).په هغې کښې هم د ،،وقعفى الحرام،، تصريح موجود ده.(١)

**قوله**: ،،**الحمى**،،: حمى محفوظ ځائې ته وئيلې شى.پخوا زمانه کښې دستور وو.چه د ملك بادشاهانو او سردارانو به د زمکې څه حصه خپل ځان دپاره محصور او محفوظ کوله.(٢) په دې کښې چه به کومه ګياه او شينکۍ وه.په دې کښې به هم ددوى څاروى څريدل.که بل چا به هلته کښې څرول.هغوى ته به سزا ورکولې شوه.بيا د څاروى خاصه دا ده.چه کله دې څرن کوى.او په څرن څرن کښې داسې ځائې ته اورسيږى.چرته چه پټى (فصل) مخې ته وى.او دننه پکښې ښه ګيا وى. هغه موقعه ګورى.او فوراً هغې ته ور داخليږى. شپونکې ئې منع کوى.خو هغه نه منع کيږى.په دې وجه هوښيار شپونکى (څرونکى) خپل څاروى ايسارووى.چه پريشانى نه وى.

ددې مثال مطلب واضح دې.چه انسان خو پخپله راعى (شپونکې) دې.او دده نفس دغه څاروې دې.چه دې دا څروى.که انسان دا څاروې ،،حمى الله،، يعنى د الله تعالى چراګاه کښې د ورداخليدو نه منع نکړو.نو څرونکې او څريدونکې دواړه به مجرمان وى.د الله تعالى چراګاه محرمات دى.او ددې ماحول مشتبهات دى.چاچه خپل نفس مشتبهاتو ته آزاد پريخودو.هغه يقيناً محرماتو کښې هم ورتلې شى. څکه چه محرمات سرکارى چراګاه ده.شاهى چراګاه ډيره زياته ښائسته او نظر دهوکه کونکى وى.خو ددې نه بچ کيدل ضرورى وى.ددې خوشنما او دلفريب محرماتو نه بچ کيدو دپاره ضرورى ده.چه سړې د مشتبهاتو نه بچ شى.څکه چه دا د حلال او حرام په مينځ مينځ کښې دې.څوك چه ددې نه بچ شى.هغه به دحرام نه په طريقة اولى بچ کيږى.څکه چه د حرامو کنده (لاره) ددې نه پس ده.بلکه کوم سړې چه په مباحاتو کښې غلو کوى.هغه مکروهاتو ته رسيږى.او څوك چه په مکروهاتو کښې احتياط نه کوى.هغه حرامو ته رسيږى.(٣)

علامه ناصرالدين ابن المنير رحمه الله د خپل شيخ، د اسکندريه زاهد ابوالقاسم منصور(يا ابوالقاسم بن منصور) قبارى رحمه الله (٤) نه نقل کړې دې.هغه به فرمائيل. چه ((المکروه عقبة بين

---

١) صحيح مسلم (٢٨\١٢)_

٢) النهاية لابن الأثير(٤٤٧\١) وفتح البارى(٤٤\٥) کتاب المساقاة باب لا حمى إلا لله ولرسوله ...)_

٣) فضل البارى(٥٤٦\١، ٥٤٧)_

٤) ددوى نوم صاحب د قاموس ،،ابوالقاسم منصور،، ليکلې دې.علامه زبيدى ليکلى دى.((ويقال أبوالقاسم بن منصور کما فى التبصير للحافظ)) تاج العروس (٤٧٨\٣) اوحافظ ابن کثير رحمه الله د دوى پوره نوم محمد بن منصور بن يحيى ابوالقاسم قبارى ليکلې دې.
ددوى په حالاتوکښې هغوى ليکلى دى.چه دوى په خپل باغ کښې اوسيدل.هم دغه باغ ددوى د آمدن ذريعه وه.ډيرمتورع وو.خلقوياندې به ئې دهغې دميوې نه خوراك کولو.امربالمعروف اونهى عن المنکرئې کولو.حکمرانان ئې په موثره طريقه د ظلم نه منع کولو....[باقى حاشيه په بل مخ...

العبد والحرام، فمن استكثر من المكروه تطرق إلى الحرام، والمباح عقبة بينه وبين المكروه، فمن استكثر منه تطرق إلى المكروه))[1] يعنى مكروه د بنده او حرام په مينځ كښې يوه كنده ده.څوك چه د مكروهاتو زيات ارتكاب كوى.هغه به حرام ته رسيږى.او دغه شان مباح هم د بنده او مكروه په مينځ كښې يوه كنده (لاره) ده.كوم كس چه مباحاتو كښې غلو كوى.هغه به مكروهاتو ته ضرور رسيږى

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.([2]) چه دا مفهوم اصل كښې د يو حديث نه اخستې شوې دې.

كوم چه ابن حبان رحمه الله نقل كړې دې.((اجعلوا بينكم وبين الحرام سترة من الحلال، من فعل ذلك استبرأ لدينه وعرضه، ومن أرتع فيه كان كالمرتع إلى جنب الحمى))[3]

**قوله: أَلَا وَإِنَّ لِكُلِّ مَلِكٍ حِمًى أَلَا إِنَّ حِمَى اللَّهِ فِي أَرْضِهِ مَحَارِمُهُ:** واورئ! د هر بادشاه يو مخصوص چراګاه وى.دهغې يو مخصوصه زمكه وى. چه په هغې كښې هيڅ چاته د داخليدو يا د څرولو اجازت نه وى.او د الله تعالى ،،حمى،، دهغه په زمكه كښې محارم دى.

يعنى الله تعالى چه كوم څيزونه حرام كړى دى.هغې ته د نزدې ورتلو اجازت نشته.او كه څوك ورخى.نو د سزا مستحق كيږى.دغه شان كه د الله تعالى په ،،حمى،، كښې څوك داخليږى.نو دسزا مستحق به وى.

دلته ددې خبرې وضاحت ضرورى دې.چه ،،حمى،، يا چراګاه مختص كول زمونږ په نيز جائز نه دى.البته كه د شرعى مصلحتونو په وجه ضرورت راپيښ شى.نو بله خبره ده.([4])لكه چه دنبى كريم صلى الله عليه وسلم نه د ،،نقيع،، نه ،،حمى،، جوړول، او د حضرت عمر رضى الله عنه نه د ،،شرف،،

---

...د تيرمخ بقيه حاشيه] حكمرانانو به هم ددوى خبرې اوريدلې اومنلې.ددوى دزيارت دپاره به راتلل.دوى به په كركۍ كښې اوكتل. اوهغوى سره به ئې خبرې كولې.خلق به په دې باندې هم ډيرخوشحاله كيدل.دوى يوه عجيبه واقعه ډيره مشهوره ده.چه دوى خپل يوڅاروى په چا باندې خرڅ كړې وو.څو ورځې پس هغه كس هغه څاروى واپس راوستل.او وې وئيل.چه ستا څاروى مونږ سره څه نه خورى.ده دهغه نه تپوس اوكړو.چه ستا څه شغل دې.هغه اووئيل.چه زه د والى دربار دم يم.شيخ هغه طرف ته اوكتل.او وې وئيل.زمونږ څناور حرام نه خورى.ددې نه پس ئې هغه ته روپۍ واپس كړې.چونكه دراهم ګډې ودې شوې وې.اود جدا كولو څه صورت ورته په نظر نه راتلو.ددې وجې دهغې روپونه سوا نورې روپۍ ورته هم وركړې.خلقوتبرك اوګڼل.اويوه يوه روپۍ ئې په درې درې روپو باندې واخستې.په ٦٦٢هـ كښې دوى وفات شوى وو.ددوى تول دپنځوسو روپوسامان پريخودې وو.خلقودغه سامان په پنځويشت زره روپۍ باندې واخستل.البداية والنهاية (٢٤٣/١٣، ٢٤٤)

[1]) فتح البارى(١٢٧/١)_

[2]) فتح البارى(١٢٧/١)_

[3]) موارد الظمآن إلى زوائد ابن حبان(ص،٦٣٣) كتاب الزهد باب فى الورع رقم (٢٥٥١)_

[4]) عمدة القارى(٢١٣/١٢) —كتاب المساقاة باب لاحمى إلا لله ولرسوله صلى الله عليه وسلم)_

نه چراګاه جوړول ثابت دی (١) او دا د دينی مصلحت په وجه وو (٢)
دلته د تشبيه نه دې څوك دا نه ګنړی چه د ..حمی.. اختصاص جائز دې. ځکه چه تشبيه سره د يوې خبرې پوهول مقصود وی.د تشبيهاتو نه مسائل نه ثابتيږی.او نه ددې نه د احکامو استنباط کيږی.نو دلته چه کومه تشبيه ده.دا تشبيه المحمود بالمذموم ده (٣)والله اعلم.
**فائده** ابو عمرو دانی رحمه الله د بعضو عالمانو نه نقل کړی دی چه دا تمثيل د شعبی رحمه الله د طرفه ادراج دې د حديث جزء نه دې علامه عينی او حافظ ابن حجر رحمهما الله ددې خبرې ترديد کړې دې او تحقيق سره ئې ثابته کړې ده.چه دا تمثيل مُدرج نه دې بلکه د نبی کريم ﷺ د ارشاد جزء دې (٤)

**قوله** أَلَا وَإِنَّ فِي الْجَسَدِ مُضْغَةً إِذَا صَلَحَتْ صَلَحَ الْجَسَدُ كُلُّهُ وَإِذَا فَسَدَتْ فَسَدَ الْجَسَدُ كُلُّهُ أَلَا وَهِيَ الْقَلْبُ: واورئ! په بدن کښې دننه يوه ټکړه ده.کله چه دا صحيح شی.نو ټول بدن صحيح کيږی.او کله چه دا خرابه شی.نو ټول بدن خرابيږی.واورئ! دغه ټکړه ..زړه.. دې.
..**مضغه**.. د غوښې ټکړې ته وائی.(٥) . ..**صلح**.. او ..**فسد**.. دواړه د باب نصر نه مستعمل دی.البته ..**صلح**..د باب کرم نه هم مستعمليږی. (٦)
..**قلب**.. زړه ته وائی.کله کله ..عقل.. باندې هم د ..قلب.. اطلاق کولې شی.لکه چه قرآء د الله تعالی په ارشاد ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ لِمَن كَانَ لَهُ قَلْبٌ﴾ (٧)کښې د ..قلب.. تفسير ..عقل.. سره کړې دې.(٨) د بعضو حضراتو په نيز ..قلب.. فؤاد دپاره خاص دې.حالانکه بعضې حضرات د دواړو د اتحاد او هم معنی کيدو قائل دی.(٩)
د ..قلب.. وجه تسميه يا خو ددې ..**متقلب فی الامور**.. کيدل دی.او دا په دې وجه چه دا اصل البدن اوخلاصة البدن دې.او خلاصة الشیء ته ..قلب الشیء.. ونيلې شی.(١٠) يا ددې په بدن

---

١) صحيح البخاری کتاب المساقاة باب لاحمی إلا لله ولرسوله)_
٢) العمدة (٢١٣\١٢) والفتح (٤٤\٥)_
٣) فيض الباری(١٥٤\١) وأنوارالباری(١٩٨\٢)_
٤) عمدة القاری(٣٠٢\١. وفتح الباری(١٢٨\١)-
٥) فتح الباری(١٢٨\١) وعمدة القاری(٢٩٨\١)_
٦) عمدة القاری(٢٩٨\١)-
٧) سورة ق:٣٧)_
٨) عمدة القاری(٢٩٨\١)_
٩) عمدة القاری(٢٩٨\١)
١٠) فتح الباری(١٢٨\١)وعمدة القاری(٢٨٩\١)_

كښې د ..مقلوب.. ايخودو په وجه دې ته ..قلب.. ونيلې شى.(١)

يا چونكه ..قلب.. د ډيرو خطراتو او وارداتو د ورود ځائې وى.او ددې كيفيت يوحالت كښې نه وى په دې وجه دې ته د ..قلب.. نوم وركړې شو.لكه چه شاعر هم دې معنى طرف ته اشاره كړې ده.

ما سمى القلب الا من تقلبه فاحذر على القلب من قلب وتحويل(٢)

خو دلته دا وضاحت ضرورى دې چه ..قلب..اصل كښې دهغه صنوبرى (د غوښې دمخصوص) ټكړې نوم نه دې.كوم چه د انسان په بدن كښې دې.بلكه ..قلب..د يوې لطيفه نوم دې.كوم چه په دې بدن كښې دننه دې.لكه څنګه چه دماغو كښې ټول باطنى حواس شته.حالانكه په بدن كښې هغه په نظر نه راځى. بلكه د دماغو تشريح كوى.ونيلې كيږى.چه په فلانى حصه كښې حس مشترك دې په فلانى حصه كښې حافظه ده.حالانكه كه دماغ راخستلې شى او اوكتلې شى.نو سواء د دماغى بدن نه بل هيڅ هم نشته.دغه شان ..قلب.. دې.لكه څنګه چه د ټول بدنى نظام حيات طبعى حيثيت سره اصل منبع ..قلب.. دې.د قلب حركت بنديدو سره ټول نظام ختميږى دغه شان روحانى او شرعى حيثيت سره هم د ټولو اعمالو او جوارحو صحيح كيدو مدار د قلب د لطيفې په سلامتيا او صحيح كيدو باندې دې كه قلبى احوال او روحانى ملكات صحيح نه وى.نو د ظاهرى افعالو او اعمالو ټول نظام به خراب (او ګډ وډ) وى.(٣)

په ظاهره ددې جملې ماقبل سره هيڅ تعلق او ارتباط نشته.خو حقيقت دا دې.چه دا جمله ډيره حكيمانه او پرمغز ده.او ددې ماقبل سره ډير لطيف ارتباط او تعلق دې.دا ارتباط په دې طريقه دې.چه امام بخارى رحمه الله وړاندې د مشتبهاتو نه د پرهيزكولواوبچ كيدو ترغيب او تاكيد اوفرمائيلو.اوس بيانوى.چه ددې مشتبهاتو نه د بچ كيدو څه طريقه ده؟ په كومه ذريعه دا حاصليدې شى؟ نو وې فرمائيل.چه قلب كوم چه د ټولو جواهرو او كمالاتو منبع او مخزن دې.دا صحيح كړئ.بيا به د هرقسمه مشتبهاتو نه بچ شئ.يعنى كه قلب صالح او صحيح وى.په دې كښې د الله تعالى ويره. او خشيت الهى وى.نو بيا د مشتبهاتو نه بچ كيدل آسان دى.ستا هر اندام به متقى او پرهيزګار جوړ شى.اوكه د قلب حال خراب شو.په دې كښې دالله تعالى ويره پاتې نشوه.نو بيا به هرڅه خراب وى.ستا هر اندام به تا ګناه او معاصى طرف ته راكاږى.اصل مشين يا انجن قلب دې.دا صحيح كړه.چه دا كوم طرف ته ځى.د اندامونو ټولې ډلې به ددې سره هم هغه طرف ته ځى. (٤)

بيهقى په شعب الايمان كښې يو اوږد روايت نقل كړې دې.په هغې كښې دى.((القلب ملك،

---

(١) فتح البارى (١٢٨/١)-

(٢) عمدة القارى (٢٩٨/١)_

(٣) فضل البارى (٥٤٧/١)-

(٤) فضل البارى (٥٤٧/١، ٥٤٧)_

وله جنود، فإذا صلح الملك صلحت جنوده، وإذا فسد الملك، فسدت جنوده.....))[1]

خلاصه دا ده.چه قلب د جسماني حيات او د اندامونو او جوارحو صلاح دپاره د منبع (مرکز) حيثيت لري.چه په دې کښې د اختلال (او خرابۍ) په وجه په ټول بدن کښې اختلال پيدا کيږي.دغه شان د قلب په لطيفه باندې دټولو روحاني کمالاتو مداز دې.د ټولو اعمالو او افعالو شرعاً سلامتيا هم د قلب ددې لطيفې په صحيح کيدو باندې موقوف ده.د قلب په صلاح باندې د روحانيت اصلاح او ترقي، خشيت خداوندي، او د حميده اخلاقو اهتمام موقوف دې.او هم دا دنجات مدار دې.والله سبحانه اعلم.

**محل عقل** ابن بطال رحمه الله د حديث باب نه په دې خبره باندې استدلال کړې دې.چه محل د عقل ،،قلب،، دې.[2] حافظ ابن حجر رحمه الله دا استدلال د استحسان په طور نقل کړې دې.[3] او امام نووی رحمه الله فرمائي.چه ددې حديث نه په هيڅ شان سره هم استدلال صحيح نه دې.[4] اصل کښې په دې مسئله کښې اختلاف دې.د امام شافعي رحمه الله او متکلمينو په نيز د عقل محل قلب دې.او د امام ابوحنيفه رحمه الله او اطباؤ په نيز د عقل محل دماغ دې.[5]

د قرآن کريم د ظاهر نه د امام شافعي رحمه الله د مذهب تائيد کيږي.په دې کښې دي. ﴿فَتَكُونَ لَهُمْ قُلُوبٌ يَعْقِلُونَ بِهَا﴾[6] او امام ابوحنيفه رحمه الله او دده هم مذهب اطباء ددې نه استدلال کوي.چه اوګورئ، د دماغو په فاسد کيدو او خرابيدو سره عقل خرابيږي. معلومه شوه.چه محل د عقل دماغ دې.[7]

حضرت شاه صاحب کشميری رحمه الله فرمائي.چه په حقيقت کښې د عقل اصل منبع ،،قلب،، دې.[8] خو چونکه په قلب او دماغوکښې اتصال وي.په دې وجه عقل ته چه کوم ادراک کيږي.د هغې تصوير په دماغو کښې منقش کيږي.او دا بالکل داسې ده.لکه د بجلۍ بلب او بټن، کله چه د بجلۍ بټن يو ځائې کښې اووهلې شي.نو بلب بل ځائې کښې روښانه کيږي.دغه شان دلته کښې هم په قلب کښې چه کوم جنبش (او حرکت) پيدا کيږي.نو هلته د دماغو د ادراکاتو باتۍ روښانه کيږي.نو حاصل دا شو.چه د عقل محل په حقيقت کښې زړه

---

[1]) رواه البيهقي عن أبي هريرة رضي الله عنه مرفوعاً وموقوفاً بطرق مختلفة كما رواه عن أبي سعيد مرفوعاً أيضاً انظر شعب الإيمان للبيهقي(١٣٢/١، ١٣٤)باب في الإيمان بالله عزوجل فصل في حدوث العالم رقم١٠٩) و(١١٠)

[2]) فتح البارى(١٢٩/١)_

[3]) المصدر السابق)-

[4]) عمدة القارى(٣٠٢/١)_

[5]) عمدة القارى(٣٠٢/١)_

[6]) الحج:٤٦)-

[7]) عمدة القارى(٣٠٢/١)-

[8]) ... درس بخاری(٣٠٠/١)-

دي.او دا هم يو حقيقت دي.چه ددې عقل په محل بعنى قلب كښې د ادراكاتو انتقاش نه كيږي.بلكه دا انتقاش دماغوكښې كيږي.لكه چه د قرآنى نصوصو نه هم دا معلوميږي.
﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ لِمَن كَانَ لَهُ قَلْبٌ أَوْ أَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيدٌ﴾ [1] ﴿أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَتَكُونَ لَهُمْ قُلُوبٌ يَعْقِلُونَ بِهَا﴾ [2] ﴿أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ الْقُرْآنَ أَمْ عَلَىٰ قُلُوبٍ أَقْفَالُهَا﴾ [3].ددې نه معلوميږي.چه محل د عقل په حقيقت كښې قلب دې. اگرچه قلب او دماغو كښې دومره قوى اتصال دې.چه په دماغو باندې د عقل د محل كيدو گمان كيږي.هم ددې قوت اتصال په وجه د دماغو په فاسد كيدو قلب باندې اثر پريوځي.او عقل خرابيږي.،،والله سبحانه وتعالى أعلم،،_

## (۲۸) بَابُ أَدَاءُ الْخُمُسِ مِنَ الْإِيمَانِ

**د امام بخارى رحمه الله مقصد** خمس [بضم الخاء والميم ويإسكانها] [4] دغنيمت پنځمه حصه مراد ده.امام بخارى رحمه الله دا باب قائم كړې دې.چه د خمس اداكول د ايمان د شعبو څخې دې. د دې نه د امام بخارى رحمه الله مقصد واضح دې.چه هغه د ايمان امور شمارى.

**يو اشكال او د هغې جواب:** ددې نه وړاندې دايمان د امورو په باره كښې ،،باب اتباع الجنائز من الإيمان،، تير شوې دې.په مينځ كښې يو څو بابونو نه پس ئې دا باب قائم كړو.سوال دا دې. چه دا باب ئې هم هلته ،،اتباع الجنائز،، سره ولې ذكر نكړو؟ په مينځ كښې ئې نور بابونه ولې ذكر كړل؟
ددې جواب دا دې.چه امام بخارى رحمه الله د يوې لطيفې خبرې لحاظ كړې دې. هغه دا چه دوى وړاندې كوم اعمال ايمان يا اسلام سره متعلق گرځولي وو.هغه خو روزمره اعمال وو.او د خمس اداكول د غنيمت د مال نه كولې شي.او مال دغنيمت په جهاد كښې ملاويږي.او جهاد په ژوند كښې كله كله او بعضو بعضو ته نصيب كيږي.په سوونو.زرگونو سړى داسې هم دى.چه هغوى ته هډو جهاد نه نصيب كيږي.په دې وجه امام بخارى ،،أداء الخمس من الإيمان،، هم جدا بيان كړې دې.[5]
امام بخارى رحمه الله دا باب د اتباع الجنائز د باب نه پس ځكه لگولې دې.چه ډيرځله چه په جهاد كښې خلق شهيدان كيږي.نو مخكښې شهيدان دفن كولې شي.دهغې نه پس غنيمت تقسيمولې شي.او ددې نه خمس اوبنكلې كيږي.[6] والله اعلم.

---

[1] سورة ق: ۳۷)-
[2] الحج:۴۶)-
[3] محمد: ۲۴)-
[4] لسان العرب (۷۰\۶) مادة ،،خمس،، )-
[5] إيضاح البخارى(۴۲۶\۴)-
[6] تقرير بخارى شريف (۱۵۴\۱)-

**ماقبل باب سره ربط او مناسبت** ددې باب ماقبل باب سره مناسبت دا دې چه په ماقبل كښې د حلال او حرام ذكر دې حلال مامور به دې او حرام منهى عنه دې په مذكوره باب كښې هم دا دواړه څيزونه دى مامور به هم او منهى عنه هم. مامور به مثلاً ايمان بالله، ايمان بالرسول، اقامت صلاة، ايتاء زكاة، صيام رمضان، او اداكول د خمس، او منهى عنه مثلاً حنتم وغيره ظروف (لوخى) استعمالول.[1]

بيا دلته امام بخارى رحمه الله د ،،اداء الخمس من الايمان،، باب منعقد كړې دې. حالانكه د كتاب الجهاد په آخر كښې ئې د ،،أداء الخمس من الدين،، باب قائم كړې دې.[2] دلته ئې د مسائلو په حيثيت سره ذكر كړې دې او هلته ئې د غنيمت د بيان په حيثيت سره ذكر كړې دې. والله اعلم

**تنبيه** وړاندې مونږ وئيلى وو چه دا لفظ د ،،خُمس،، (بضم الخاء) دې او ددې نه مراد د مال غنيمت پنځمه حصه ده. خو بعضې عالمان فرمائى چه دا لفظ د ،،خَمس،، (بفتح الخاء) دې او ددې نه مراد اركان خمسه دى او امام بخارى رحمه الله دا ښودل غواړى چه د اركان خمسه اداكول د ايمان د شعبو څنې دى.

خو دا خبره په دريو وجوه سره صحيح نه ده:

① ړومبۍ په دې وجه چه امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې كوم حديث ذكر كړې دې په هغې كښې صرف د ..اركان خمسه.. ذكر نه دې بلكه د ..خُمس.. ذكر هم دې نو ..خُمس.. پريخودل . او باقى اركان خمسه د ايمان شعبه ګرځول په عقل كښې نه راځى.

② دويمه دا چه په حديث باب كښې د حج ذكر نشته.

③ دريمه دا چه په اركان خمسه كښې په صلاة او زكاة وغيره باندې وړاندې مستقل تراجم ذكر شوى دى.[3] والله اعلم.

....

[1] عمدة القارى (۱/۳۰۲)_

[2] كتاب فرض الخمس باب أداء الخمس من الدين رقم ۳۰۹۶)-

[3] فتح البارى (۱/۲۲۹) وعمدة القارى (۱/۳۰۳)-

٥٠- حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي جَمْرَةَ قَالَ كُنْتُ أَقْعُدُ مَعَ ابْنِ عَبَّاسٍ ( ) يُجْلِسُنِي عَلَى سَرِيرِهِ فَقَالَ أَقِمْ عِنْدِي حَتَّى أَجْعَلَ لَكَ سَهْمًا مِنْ مَالِي فَأَقَمْتُ مَعَهُ شَهْرَيْنِ ثُمَّ قَالَ إِنَّ وَفْدَ عَبْدِ الْقَيْسِ لَمَّا أَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنِ الْقَوْمُ أَوْ مَنِ الْوَفْدُ قَالُوا رَبِيعَةُ قَالَ مَرْحَبًا بِالْقَوْمِ أَوْ بِالْوَفْدِ غَيْرَ خَزَايَا وَلَا نَدَامَى فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا لَا نَسْتَطِيعُ أَنْ نَأْتِيكَ إِلَّا فِي الشَّهْرِ الْحَرَامِ وَبَيْنَنَا وَبَيْنَكَ هَذَا الْحَيُّ مِنْ كُفَّارِ مُضَرَ فَمُرْنَا بِأَمْرٍ فَصْلٍ نُخْبِرْ بِهِ مَنْ وَرَاءَنَا وَنَدْخُلْ بِهِ الْجَنَّةَ وَسَأَلُوهُ عَنِ الْأَشْرِبَةِ فَأَمَرَهُمْ بِأَرْبَعٍ وَنَهَاهُمْ عَنْ أَرْبَعٍ أَمَرَهُمْ بِالْإِيمَانِ بِاللَّهِ وَحْدَهُ قَالَ أَتَدْرُونَ مَا الْإِيمَانُ بِاللَّهِ وَحْدَهُ قَالُوا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ شَهَادَةُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ وَإِقَامُ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءُ الزَّكَاةِ وَصِيَامُ رَمَضَانَ وَأَنْ تُعْطُوا مِنَ الْمَغْنَمِ الْخُمُسَ وَنَهَاهُمْ عَنْ أَرْبَعٍ عَنِ الْحَنْتَمِ وَالدُّبَّاءِ وَالنَّقِيرِ وَالْمُزَفَّتِ وَرُبَّمَا قَالَ الْمُقَيَّرِ وَقَالَ احْفَظُوهُنَّ وَأَخْبِرُوا بِهِنَّ مَنْ وَرَاءَكُمْ

[٨٧، ٥٠٠، ١٣٣٤، ٢٩٢٨، ٣٣١٩، ٤١١٠، ٤١١١، ٥٨٢٢، ٦٨٣٨، ٧١١٧]

## رجال الحديث

① علي بن الجعد: دوى ابوالحسن على بن الجعد بن عبيد جوهرى بغدادى دي.( ) د ابراهيم بن سعد. اسرائيل بن يونس. اسماعيل بن عياش. حماد بن سلمه. حماد بن زيد. ربيع بن صبيح. سفيان ثورى. سفيان بن عيينه. شعبه. مبارك بن فضاله. او ابو اسحاق فزارى رحمهم الله وغيره نه حديث روايت كوى.( )

---

( ) الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه فى كتاب العلم باب تحريض النبى ﷺ وفد عبدالقيس على أن يحفظو الإيمان والعلم ويخبروا من وراءهم رقم ٨٧) وفى كتاب مواقيت اصلاة باب منيبين إليه واتقوه.. رقم ٥٢٣ وفى كتاب الزكاة باب وجوب الزكاة رقم ١٣٩٨ وفى كتاب فرض الخمس باب أداء الخمس من الدين رقم(٣٠٩٥) وفى كتاب المناقب باب (بدون ترجمة بعد باب نسبة اليمن إلى إسماعيل رقم(٣٥١١٠) وفى كتاب المغازى باب وفد عبد القيس رقم ٤٣٦٨ ) وفى كتاب الأدب باب قول الرجل مرحباً رقم ٦١٧٦ وفى كتاب أخبارالآحاد باب وصاة النبى ﷺ وفود العرب أن يبلغوا من وراءهم رقم ٧٢٦٦ وفى كتاب التوحيد باب قول الله تعالى: والله خلقكم وما تعملون رقم(٧٥٥٦) ومسلم فى صحيحه فى كتاب الإيمان باب الأمر بالإيمان بالله تعالى رقم ١٢٤ و١٢٥ و١٢٦ والنسائى فى سننه (٢٧١\١٢) فى كتاب الإيمان وشرائعه باب أداء الخمس رقم٥٠٣٤ وأبوداد فى سننه فى كتاب الأشربة باب فى الأوعية رقم ٣٦٩٢) و٣٦٩٤ و٣٦٩٦ والترمذى فى جامعه فى كتاب الإيمان باب فى إضافة الفرائض إلى الإيمان رقم ٢٦١١ وابن ماجه فى سننه فى كتاب الزهد باب الحلم رقم ٤١٨٦)-

( ) تهذيب الكمال(٢٠\٣٤١، ٣٤٢)-

( ) تهذيب الكمال(٢٠\٣٤٢)_

ددوى نه امام بخارى، امام ابوداؤد، ابراهيم حربى، ابو يعلى موصلى، احمد بن حنبل، ابوزرعه عبيدالله بن عبدالكريم رازى، ابوبكر بن ابى شيبه، يحي بن معين او يعقوب بن شيبه رحمهم الله وغيره د حديثو علم حاصل كړي دي.(١) په ١٣٣هـ كښې پيدا شوي دي.(٢)

محمد بن حماد رحمه الله فرمائى.«سألت يحى بن معين عن على بن الجعد، فقال: ثقة صدوق، ثقة صدوق»(٣) دغه شان عبدالخالق بن منصور هم د امام يحي بن معين نه ددوى ،،ثقه،، كيدل نقل كړى دى.(٤)

يحي بن معين رحمه الله فرمائى.،،على بن الجعد أثبت البغداديين فى شعبة،،(٥) هم ددوى نه نقل دى.،،ربانى العلم،،(٦)

امام ابوزرعه رحمه الله فرمائى.،،كان صدوقاً فى الحديث،،(٧)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى.«كان متقناً صدوقاً، ولم أرمن المحدثين من يحفظ ويأتى بالحديث على لفظ واحد، لا يغيّره، سوى قبيصة و أبى نعيم فى حديث الثورى، و يحى الحِمّانى فى حديث شريك، وعلى بن الجعد فى حديثه،،(٨)

صالح بن محمد اسدى رحمه الله فرمائى.،،ثقة،،(٩)

امام نسائى رحمه الله فرمائى.،،صدوق،،(١٠)

امام دارقطنى رحمه الله فرمائى.،،ثقة مامون،،(١١)

ابن قانع رحمه الله فرمائى.،،ثقة ثبت،،(١٢)

مطين رحمه الله فرمائى.،،ثقة،،(١٣)

---

١) تهذيب الكمال(٢٠\٣٤٣)-

٢) وقيل سنة أربع وثلاثين ومائة وقيل سنة ست وثلاثين ومائة انظر سير أعلام النبلاء(١٠\٤٦٠)-

٣) تهذيب الكمال(٢٠\٣٤٨) وسير أعلام النبلاء(١٠\٤٦٦)_

٤) تهذيب الكمال(٢٠\٣٤٨)-

٥) تهذيب الكمال(٢٠\٣٤٩)_

٦) المصدر السابق)-

٧) تهذيب الكمال(٢٠\٣٥٠)_

٨) تهذيب الكمال(٢٠\٣٥٠)_

٩) المصدر السابق)-

١٠) المصدر السابق)-

١١) تهذيب التهذيب(٧\٢٩٢)_

١٢) المصدر السابق)-

حافظ ذهبي رحمه الله دوى په ،،الحافظ الثبت،، (١) او ،،الإمام الحافظ الحجة مُسنِدُ بغداد،، (٢) القابو سره ياد كړي دي.
البته ددوى په باره كښې د حديث د رجالو نه دوه طعنه منقول دى.
① يو داچه دا جهمي وو او قرآن ته به ئې مخلوق ونيلو لكه چه امام مسلم رحمه الله فرمائي. ،،ثقة لكنه جهمي،، (٣) او هم په دې بنياد باندې امام احمد بن حنبل رحمه الله خپل دواړه خامن ددوى د سماع نه منع كړى وو.
خو حقيقت دا دې چه ددوى جهمي (٤) كيدل ثابت نه دى.او نه دې د خلق قرآن قائل وو. (٥) بلكه ددوى نه صرف دومره منقول دى.چه ،،من قال: القرآن مخلوق لم أعنفه،، (٦)
حافظ ذهبي رحمه الله ددې ،،تجهم،، طعن نقل كولو نه پس فرمائي.((وقد كان طائفة من المحدثين يتنطعون في من له هفوة صغيرة تخالف السنة، وإلا فعلي: امام كبير حجة)) (٧)
دويم الزام په دوى باندې د تشيع دې.لكه چه ابوغسان دورى نقل كړى دى. چه زه على بن الجعد سره ووم.په دې مجلس كښې د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه حديث ((كنا نفاضل على عهد النبي صلى الله عليه وسلم فنقول: خير هذه الأمة بعد النبي صلى الله عليه وسلم أبوبكر، وعمر، وعثمان، فيبلغ النبي صلى الله عليه وسلم فلا ينكره)) ذكر راغې.نو على بن الجعد اووئيل.((أنظروا إلى هذا الصبي، هو لم يحسن أن يطلق إمرأته، يقول كنا نفاضل)) (٨) دغه شان چه كله ددوى په وړاندې د نبى كريم صلى الله عليه وسلم حديث ،،إن ابني هذا سيد،، (٩) ذكر كړې شو.نو وې وئيل.،،ما جعله الله سيداً،، (١٠)
تركومې پورې چه حضرت ابن عمر رضي الله عنه باندې د طعن تعلق دې.نو د على بن الجعد نه ددې انكار منقول دې.لكه چه احمد بن ابراهيم دورقى وائي.

---

(١) ميزان الإعتدال(٣\١١٦) رقم ٧٥٩٨)-
(٢) سير أعلام النبلاء(١٠\٤٥٩)-
(٣) ميزان الإعتدال(٣\١١٦) وسير أعلام النبلاء(١٠\٤٦٦)-
(٤) الجهمية :من ينفى صفات الله تعالى:التى أثبتها الكتاب والسنة ويقول: إن القرآن مخلوق مقدمة الفتح (٤٥٩)_
(٥) تعليقات الكاشف(٢\٣٦) رقم ٣٨٨٨)-
(٦) ميزان الاعتدال(٣\١١٦) وسير أعلام النبلاء(١٠\٤٦٥)-
(٧) سير أعلام النبلاء(١٠\٤٦٦)-
(٨) سير أعلام النبلاء(١٠\٤٦٦) وتهذيب الكمال(٢٠\٣٤٧)-
(٩) انظر صحيح البخارى(١١\٥٣٠) كتاب المناقب باب مناقب الحسن والحسين)_
(١٠) سير أعلام النبلاء(٢٠\٤٦٦) وتهذيب الكمال(٢٠\٣٤٧)-

«قلت لعلى بن الجعد: بلغنى أنك قلت: إبن عمر ذاك الصبى! قال: لم أقل....»[١]

دغه شان د حضرت حسن رضي الله عنه د منقبت د حديث «إن ابني هذا سيد»، چه كوم انكار منقول دې ددې په باره كښې حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى چه دا روايت د ابوغسان دورى نه منقول دې او دا سړې مجهول دې او كه روايت صحيح اومنلې شى نو وئيلې شى چه على بن الجعد به ددې قبيح قول نه توبه اوبنكلې وى. «بل جعله سيداً على رغم كل جاهل، فإن من أمر على مثل هذا من الرد على سيد البشر يكفر بلامثنوية (أى بلا إستثناء)....» روستو حافظ ذهبى رحمه الله د حضرت حسن رضي الله عنه سيادت او سوډد بيان كړې دې.[٢]

البته د على بن الجعد نه د حضرت معاويه رضي الله عنه (و ارضاه) په باره كښې دا قول منقول دې. «ولكن معاوية ما أكره أن يعذبه الله»[٣] دغه شان د حضرت عثمان رضي الله عنه په باره كښې هم دا قول منقول دې چه «أخذ من بيت المال مأة ألف درهم بغير حق»[٤] لكه چه امام ابوداؤد رحمه الله فرمائى. «علق وُسم بميسم سوء، قال: مايسوؤنى أن يعذب معاوية»[٥]

په دې بنياد باندې امام احمد رحمه الله خپل ځامن دوى ته د تلو نه منع كول. لكه چه عبدالله بن احمد رحمه الله فرمائى. «نهانى أبى أن أذهب إليه، وكان يبلغه عنه أنه يتناول الصحابة»[٦]

ددې تولو طعنونو حاصل دا دې چه ده به د حضرات صحابه كرامو رضي الله عنهم په شان كښې بې باكئ سره كلام كولو. نو يا خو به د حافظ ذهبى رحمه الله د قول مطابق د دوى په باره كښې داسې وئيلې شى چه دوى به توبه اوبنكلې وى. ګنې زيات نه زيات به دې مبتدع وى. او د مبتدع روايت كه د خپل مذهب په تائيد كښې نه وى. او هغه داعى الى بدعته هم نه وى. نو هغه قبلولې شى.

حالانكه د على بن الجعد په روايت حديث كښې چه كوم مقام دې؟ ددې ذكر تاسو په تيرو شوو اقوالو كښې كتلې دې. او ابن عدى رحمه الله فرمائى. «ومع هذا كله على بن الجعد ما أرى بحديثه بأساً، ولم أرفى رواياته إذا حدث عن ثقة حديثاً منكراً فيما ذكره، والبخارى مع شدة استقصائه يروى عنه فى صحاحه»[٧]

---

[١] تهذيب الكمال(٣٤٧\٢٠) وسير أعلام النبلاء(٤٦٤\١٠)_
[٢] سير أعلام النبلاء(٤٦٤\١٠)_
[٣] سير أعلام النبلاء(٤٦٤\١٠) وتهذيب الكمال(٣٤٧\٢٠)-
[٤] المصادر السابقة)-
[٥] المصادر السابقة)-
[٦] سير أعلام النبلاء(٤٦٥\١٠)_
[٧] الكامل فى ضعفاء الرجال(٢١٤\٥)_

دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی ((روی عنه البخاری من حدیثه عن شعبة فقط، أحادیث یسیرة....))[1]

معلومه شوه چه ددوی د متشیع کیدو او د بعضو صحابه کرامو رضی الله عنهم په باره کښې د بې ادبئ خبرو کولو باوجود د محدثینو په نیز دې ثقه، ثبت او متقن دې خاص طور باندې چه امام بخاری رحمه الله کوم حدیثونه اخستی دی.هغه نې صرف د امام شعبه نه نقل شوی حدیثونه اخستی دی او دې د خپل استاد امام شعبه په حدیثونو کښې ،،اثبت البغدادیین،، دې.،،کما مرّسابقاً،، په ۲۳۰ھ کښې ددوی وفات اوشو.[2]،،سلمه الله تعالیٰ وغفرله،،_

۲ **شعبه:** دوی امیرالمؤمنین فی الحدیث شعبه بن الحجاج العتکی البصری الواسطی دې.ددوی مختصر حالات د ،،باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده،، لاندې تیر شوی دی.[3]

۳ **ابو جمرة:** دا ابو جمره نصر بن عمران بن عصام/ عاصم بن واسع ضُبعی بصري دې.[4] بعضې حضراتو دده د نیکه نوم نوح بن مخالد یا مخلد هم لیکلې دې.[5]

ضبعی. بنوضبیعه طرف ته نسبت دې.چه دا د عبدالقیس یو شاخ ده.،،کما جزم به الرّشاطی،، د بخاری بعضې شارحینو دوی د ،،بکر بن وائل،، شاخ طرف ته منسوب گرخولې دې.دا

---

[1] هدی الساری(۴۳۰) وفی هامش الزهرة بخط ابن الطاهر:روی عنه البخاری ثلاثة عشر حدیثاً کذا فی تهذیب التهذیب(۲۹۲/۷، ۲۹۳)_

[2] سیرأعلام النبلاء(۴۶۷/۱۰) وغیره)_

[3] کشف الباری(۶۷۸/۱)_

[4] تهذیب الکمال(۲۶۲/۲۹، ۳۶۳) وسیرأعلام النبلاء(۲۴۳/۵) وغیره)-

[5] حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری(۱۳۰/۱) کښې د دوی نسب ذکرکړې دې ((نصربن عمران بن نوح بن مخلد الضبعی.. )) حالانکه په تهذیب الکمال(۳۶۲/۲۹) تهذیب التهذیب (۴۳۱/۱۰) او تقریب التهذیب(۵۶۱) رقم ۷۱۲۲) وغیره تولوکتب رجال کښې نصربن عمران بن عصام یا عاصم مذکور دې.البته علامه عینی رحمه الله په عمدة القاری (۳۰۳/۱و ۳۰۴) کښې نسب خود عامو کتب رجال پشان دې.خود دوی د حالاتو لاندې نې لیکلی دی.((فقد روی الطبرانی وابن منده فی ترجمة نوح بن مخلد جد أبی جمرة .. ) دغه شان حافظ په الإصابة) (۵۷۶/۳) رقم ۸۸۲۴) کښې لیکلی دی.((نوح بن مخلد ویقال ابن مخالد جد أبی جمرة نصربن عمران..) دغه شان حافظ په (الإصابة، ۲۷/۳ رقم ۶۰۱۱) کښې د ابوجمره دپلار په ترجمه کښې لیکلی دی.((عمران بن عصام الضبعی والد أبی جمرة بالجیم نصربن عمران کذا سمی أباه ابن عبدالبر والمعروف أن إسمه نوح بن مخالد أومخلد..))

البته دلته ابوبشر دولابی ددوی کنیت ذکرکړې دې اولیکلی نې دی.((أبوجمرة نصربن عمران بن نصربن ابن عباس رضی الله عنهما) لکه چه د ابو جمره نیکهٔ نوم هم نصر دې.اودا خبره یقیناً تیک نه ده.والله أعلم.

صحيح نه ده.ځكه چه طبرانی او ابن منده ددوی د نيكه نوح بن مخلد د حالاتو لاندې نقل كړی د ی.((أنه قدم على رسول الله ﷺ فقال له، ممن أنت؟ قال: من ضبيعة ربيعة، فقال: خير ربيعة عبدالقيس، ثم الحى الذى أنت منهم))[1]

دوی د حضرت انس بن مالك، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت عبدالله بن عباس ﷺ زهدم جرمی، او عائذ بن عمرو مزنی وغيره مختلفو حضراتو نه حديث روايت كړې دې.([2])

ددوی نه ايوب سختيانی، معمر، شعبه، حماد بن سلمه، حماد بن زيد، ابراهيم بن طهمان، او عباد بن عباد مهلبی ﷺ وغيره روايتونه اخستی دی.([3])

امام احمد بن حنبل، يحي بن معين او ابوزرعه ﷺ دوی لره ،،ثقه،، ګرځولې دې.([4])

ابن حبان ﷺ دوی لره په كتاب الثقات كښې ذكر كړې دې.([5])

امام ابن سعد ﷺ فرمائی.،،كان ثقة،،([6])

ابو حاتم رازی ﷺ فرمائی.،،ثقة،،([7])

ابن عبدالبر ﷺ فرمائی.،،أجمعوا على أنه ثقة،،([8])

حافظ ابن حجر ﷺ فرمائی.،،ثقة ثبت،،([9])

حافظ ذهبی ﷺ فرمائی.،،أحد الأئمة الثقات،،([10])

ياد ساتئ:چه په اصول سته او په مؤطا كښې د ،،ابوجمره،، په كنيت بل څوك راوی ددوی نه سوا نشته.باقی ټول ،،ابو حمزه،،(بالحاء المهملة بعدها ميم) دی.بلكه بعضو حفاظو د حديث دا قاعده ذكر كړې ده.چه امام شعبی د اووه داسې راويانو نه روايت كوی.چه هغه د حضرت ابن عباس شاګردان دی.

ټول په ټوله ،،ابوحمزه،،(بالحاء المهملة ثم الميم) دی.سوا د مترجَم له نه، چه دده كنيت ،،ابو جمره،،(بالجيم ثم الميم) دې.بيا ددې علم په دې طريقه هم كيږی. چه كوم ځائې كښې

---

[1]) فتح البارى(١\١٣٠)-
[2]) تهذيب الكمال (٢٩\٣٦٣ ) وسير أعلام النبلاء(٥\٢٤٣)_
[3]) المصادر السابقة)-
[4]) تهذيب الكمال(٢٩\٣٦٤)-
[5]) كتاب الثقات(٥\٤٧٦)_
[6]) الطبقات الكبرى لابن سعد(٧\٢٣٥)-
[7]) تعليقات تهذيب الكمال(٢٩\٣٦٥)_
[8]) تهذيب التهذيب(١٠\٤٣٢)_
[9]) تقرب التهذيب(٥٦١) رقم ٧١٢٢)_
[10]) سير أعلام النبلاء(٥\٢٤٣)_

ابوجمره د حضرت ابن عباس نه روايت كوي.او ددوی کنيت سره څه قيد وغيره نه وی.نو هم دوی مراد وی.اوكله چه د ،،ابو حمزه،، كنيت والا حضرات وی.نو هغوی سره څه ناڅه لواحق يا سوابق وی.لكه ،،ابو حمزة القصاب،،[1]والله اعلم.

په ۱۲۸ھ كښې سرخس كښې ددوی وفات اوشو.[2]،، رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

۴ **ابن عباس:** د حضرت عبدالله بن عباس ﷠ حالات د ،،بدء الوحی،، د څلورم حديث لاندې[3]او د ،،كتاب الإيمان، باب كفران العشير وكفر دون كفر،، لاندې تير شوی دی.

**قوله: كُنْتُ أَقْعُدُ مَعَ ابْنِ عَبَّاسٍ يُجْلِسُنِي عَلَى سَرِيرِهِ:** زه به حضرت عبدالله بن عباس ﷠ سره كيناستم.هغه به زه په پخپل كټ باندې كينولم.

**ددې اعزاز وجه څه وه؟** ددې وجه دا وه.چه په اصل كښې حضرت ابن عباس ﷠ د حضرت علی ﷜ د طرفه د بصرې ګورنر وو.د بصرې په اطرافو كښې فارسی ونيلې شوه.د هغه ځائې خلقو به حضرت ابن عباس ؓ له خپلې مسئلې او مقدمات راوړل.او هغوی به په فارسئ كښې خبرې كولې.حضرت ابن عباس ؓ ته فارسی نه ورتله.او ابو جمره په فارسئ پوهيدو.په دې وجه به دوی د ترجمانئ فرائض پوره كول.[4]هم دا وجه په كتاب العلم كښې مذكور هم ده.ځكه چه هغه ليكی.((كنت أترجم بين ابن عباس وبين الناس))[5]

حافظ ابن الصلاح ﷫ فرمائی.چه ،،ترجمه،، په اصل كښې يو لغت، په بل لغت كښې تعبير كولو ته وائی.خو دلته زياتی عموم دې.چه د يوې ژبې نه په بله ژبه كښې تعبير كولو سره سره نورو خلقو ته د حضرت ابن عباس ﷠ خبره رسول هم مراد دی.يا خو د ازدحام ( د خلقو د ګڼرې او رش) په وجه، يا د فهم د كموالی په وجه، [6]

حافظ ابن حجر ﷫ فرمائی.چه د ،،فهم د كموالی،، په وجه پوهول خو په عقل كښې راځی.د ازدحام وجه صحيح نه ده.ځكه چه هغه به پخپله هم كټ باندې ورسره كيناستلو.البته كه داسې اووئيلې شی.چه حضرت ابن عباس ﷠ به په كټ باندې يو طرف ته كيناستلو.او دې به په هغه طرف كوم ځائې چه به نور خلق ناست وو.والله اعلم.

---

[1] عمدة القاری(۱۱ / ۳۰۳، ۳۰۴)_
[2] الكاشف للذهبی(۲ / ۳۱۹) رقم ۵۸۲۱) وغيره)-
[3] كشف الباری(۱ / ۴۳۵)_
[4] عمدة القاری(۱ / ۳۰۸)_
[5] صحيح البخاری كتاب العلم باب تحريض النبی ﷺ وفد عبدالقيس على أن يحفظو الإيمان والعلم.رقم ۸۷)
[6] عمدة القاری(۱ / ۳۰۸) وفتح الباری(۱ / ۱۳۰)_

**قوله** فَقَالَ أَقِمْ عِنْدِي حَتّٰى أَجْعَلَ لَكَ سَهْمًا مِنْ مَالِي فَأَقَمْتُ مَعَهُ شَهْرَيْنِ:
حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل چه ما سره ايسار شه.چه زه تاته د خپل مال يوه حصه دركرم نو زه هغوى سره دوه مياشتې ايسار شوم.
حضرت ابن عباس رضي الله عنهما چه دوى سره د مال وركولو كومه وعده كړې وه.هغه په كومه وجه وه؟ په دې سلسله كښې د بعضې حضراتو وينا خو دا ده.چه دا د ترجمانۍ اجرت دې.او د ترجمانى تعليم گرخولو سره ابن التين رحمه الله دا اوښائى.چه حديث نه د اجرت على التعليم جواز ثابتيږى.(١)
① خواول ترجمانى تعليم گرځول محل نظر(او قابل غور) دى.نو د اجرت على التعليم جواز ثابتيدو هيڅ سوال نه پيدا كيږى.② دويمه داچه د ابوجمره نه پخپله ددې وجه په صحيح بخارى كښې منقول ده.چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ماته اوفرمائيل.«أقم عندى وأجعل لك سهماً من مالى» امام شعبه رحمه الله تپوس اوكړو.،،لم ؟،، چه دوى تاسره د اقامت اختيارولو او د مال دركولو وعده ولې اوكړله؟ نو دوى جواب وركړو: «للرؤيا التى رأيت»(٢) چه دهغه خوب په وجه كوم چه ما كتلې وو.
دا خوب امام بخارى رحمه الله نقل كړې دې.ابوجمره رحمه الله فرمائى.چه ما د تمتع احرام اوتړلو.نو خلقو منع كړم.ما د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه تپوس اوكړو.نو هغوى اجازت راكړو.ددې نه پس ما په خوب كښې اوكتل.چه څوك سړې ماته وائى.،،حج مبرور عمرة متقبلة،، ما حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ته خوب واورولو.نو ډير زيات خوشحاله شو.او وې فرمائيل. ،،سنة النبى صلى الله عليه وسلم،،(٣)
چونكه ددې خوب په وجه د حضرت ابوجمره شرافت او نجابت معلوميږى.او دا چه ددوى د الله تعالى په نيز يوه مرتبه ده.تردې چه د الله تعالى د طرفه ددوى د عمل مقبول كيدو بشارت او زيرې وركړې شو.په دې وجه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ددوى اقامت اوغوښتل.او دا د الله تعالى د نيكانو بنده گانو قاعده ده.چه كله په يو سړى كښې د نجابت او شرافت د آثارو اندازه اوكړى.نو هغه طرف ته زياته توجه وركوى.والله سبحانه أعلم.

**قوله** ثُمَّ قَالَ إِنَّ وَفْدَ عَبْدِ الْقَيْسِ لَمَّا أَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بيا حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل.چه كله د عبدالقيس وفد د نبى كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې حاضر شو.

---

١) فتح البارى(١٣٠/١)_
٢) صحيح بخارى(٢١٣/١) كتاب الحج باب التمتع والقران والإفراد بالحج)_

وفد..وافد.. جمع ده وفد هغه جماعت ته وائى كوم چه د يو قوم يا جماعت د طرفه يو بادشاه يا حاكم ته اوليگلې شى.[١]

**حضرت ابن عباسh ابو جمره ته دا حديث ولې واورولو؟** ابو جمره ته حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا حديث واورولو.ددې د اورولو سبب امام مسلم د ،،غندر عن شعبة،، په طريق سره روايت كښې نقل كړې دې.او بيان كړې ئې دې.چه ،، **فأتته إمرأة تسأله عن نبيذ الجر.....**،،[٢]

دغه شان امام بخارى رحمه الله په كتاب المغازى كښې روايت نقل كړې دې.چه ابوجمره وائى.(( **قلت لإبن عباس رضي الله عنهما: إن لى جرة ينتبذلى نبيذ فيها، فأشربه حلوا فى جر، إن أكثرت منه، فجالست القوم، فأطلت الجلوس، خشيت أن أفتضح، فقال: قدم.....** ))[٣] گويا په دې مجلس كښې يوې ښځې د نبيذ جره (خاورينې چاټى) په باره كښې سوال اوكړو.نو حضرت ابن عباس رض هغه منع كړله.ددې نه پس پخپله ابوجمره د خپل خان په باره كښې سوال اوكړو.نو حضرت ابن عباس رض دې منع كړو.او دا حديث ئې واورولو.والله اعلم.

**وفد عبدالقيس د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې كله راغلې وو؟** وفد عبد القيس د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې كله راغلې وو؟ په دې سلسله كښې ډير اقوال دى: ① د واقدى [٤] ابن سعد [٥] ابن شاهين [٦] او د قاضى عياض [٧] وغيره رائې دا ده.چه دا وفد په ٨ﻫ كښې د فتح مكې په كال مكې مكرمې ته روانگۍ نه وړاندې راغلې وو.

② د محمد بن اسحاق [٨] ابن هشام [٩] حافظ ابن القيم [١٠] رائې دا ده.چه په ٩ﻫ كښې راغلې وو.ابن كثير رحمه الله هم ددوى د رائې كال ٩ﻫ خودلې دې.[١١] خو په آخر كښې دوى د تردد

---

[١] فتح البارى(١٣٠\١)_

[٢] صحيح مسلم (٣٤\١) كتاب الإيمان باب الأمر بالإيمان بالله تعالى..)_

[٣] صحيح البخارى كتاب المغازى باب وفد عبدالقيس)_

[٤] ذكره صاحب السيرة الحلية فى كتابه ثم رد عليه انظر السيرة الحلبية (٢٢٢\٢) باب ما يذكر فيه ما يتعلق بالوفود التى وفدت عليه ﷺ ونقل الحافظ عن الواقدى فى الإصابة(٥١\١)..كان قدم الأشج ومن معه سنة عشر من الهجرة.....)_

[٥] الطبقات الكبرى لإبن سعد(٣١٤\١)-

[٦] الإصابة (١٧٨\٢) ترجمة صحاربن العباس العبدى)_

[٧] شرح النووى على صحيح مسلم (٣٤\١) كتاب الإيمان باب الأمر بالإيمان بالله تعالى ورسوله ﷺ)_

[٨] السيرة النبوية لإبن هشام (٣٤٠\٢) خوهغوى ددې وفد قدوم د قدوم الجارود سره مقيد كړې دى.،

[٩] حاشيه بالا)_

[١٠] زاد المعاد(٦٠٧\٣)-

[١١] البداية والنهاية (٤٦\٥و ٤٨)_

اظهار هم کړې دې.(١)

③ ابن حبان، صاحب د تاريخ الخميس او ابن الاثير ددې وفد راتلل ١٠هـ ښودلې دې.(٢)

④ د حافظ ابن حجر او علامه انور شاه کشميرى رحمهما الله په نيز ددوى راتګ دوه ځله شوې دې.البته د حافظ رحمه الله په نيز ددوى ړومبې راتګ ٥هـ يا ددې نه وړاندې دې.او دويم ځل راتګ ٩هـ يعنى عام الوفود کښې شوې دې.(٣) حالانکه د حضرت کشميرى رحمه الله په نيز ددوى ړومبې راتګ ٦هـ کښې او دويم راتګ فتح مکې سره يعنى ٨هـ کښې شوې دې.(٤)

په اصل کښې دې حديث کښې چونکه د«إنا لا نستطيع أن نأتيك إلا في الشهر الحرام، وبيننا وبينك هذا الحي من كفار مضر» جمله ده.په دې وجه واقدى، ابن سعد، ابن شاهين او قاضى عياض رحمهم الله وغيره ددې خبرې قائل دى.چه دا واقعه د فتح مکې نه وړاندې ده.ځکه چه د فتح مکې نه پس خو خلق ډلې ډلې اسلام کښې داخليدل.ددې نه روستو اهل اسلام دپاره هيڅ قابل ذکر خطره نه وه پاتې شوې.

کومو مؤرخينو چه ددوى د راتګ کال ٩هـ ذکرکړې دې.هغه په دې بنياد باندې دې.چه دې کال ته عام الوفود وئيلې شى.(٥) په دې کښې خلق د وفدونو په شکل کښې په دربار نبوى ﷺ کښې کثرت سره حاضرشوى وو.هم په دې وفدونو کښې د عبدالقيس وفد هم وو.

د سير کومو اصحابو چه د راتګ کال ١٠هـ ليکلې دې.غالباً ددوى بنياد هم د دې قبيلې د يو کس جارود بن المعلى (٦) په راتګ باندې دې.چه هغه په ١٠هـ کښې حاضر شوې وو.(٧)

خو په دې ټولو صورتونو کښې اشکال پيداکيږى.چه په دې روايت کښې د ،،حج،، هيڅ ذکر نشته.او د اصح قول مطابق د حج فرضيت ٦هـ کښې شوې وو. (٨) که ددې وفد راتګ د ٦هـ نه پس يعنى ٨هـ يا ٩هـ يا ١٠هـ کښې شوې وې.نو دوى ته به نبى کريم ﷺ د اسلام نورو

---

(١) حيث قال ابن كثير (٤٨\٥) قلت لكن فى سياق ابن عباس رضي الله عنهما ما يدل على أن قدوم وفد عبدالقيس كان قبل فتح مكة لقولهم وبيننا وبينك هذا الحى من مضر لا نصل إليک إلا فى شهر حرام والله أعلم.

(٢) الثقات لابن حبان (١١٥\٢) وتاريخ الخميس (١٩٤\٢) والكامل لابن الأثير (٢٠٣\٢)_

(٣) فتح البارى(٨٥\٨ ٨٦) كتاب المغازى باب وفد عبدالقيس)-

(٤) فيض البارى(١٥٥\١)-

(٥) سيرت ابن هشام مع روض الانف(٣٣٣\٢)_

(٦) جارود ددوى لقب وو.اوددوى نوم بشر دې.دپلار په نوم کښې ئې اختلاف دې.بعضې حضراتو عمرو خودلې دې.اوبعضو المعلى اوبعضو العلاء خودلې دې.تهذيب الكمال(٤٤٨\٤) وتهذيب التهذيب(٥٣\٢) والروض الأنف مع السيرة النبوية لابن هشام (٣٤٠\٢) والإصابة (٢١٦\١) رقم ١٠٤٢) وتعليقات الكاشف (٢٨٨\١) وتقريب التهذيب(١٣٧) رقم ٨٨٣) -

(٧) قال الحافظ فى الإصابة (٢١٦\١) وقدم الجارود سنة عشر فى وفد عبدالقيس الأخير)_

(٨) انظر فتح البارى (٣٧٨\٣) كتاب الحج باب وجوب الحج وفضله)_

شرائعو سره سره د حج حکم هم ورکړې وه. (۱)

هم دا وجه ده.چه حافظ ابن حجر رحمه الله ددې خبرې قائل دې.چه ددوی راتګ دوه ځله شوې دې.يو ځل د حج د فرضيت نه وړاندې ۵ھ يا ددې نه هم وړاندې. او په دويم ځل عام الوفود يعنې ۹ھ کښې شوې دې.په حديث باب کښې د ړومبی راتګ ذکر دې.(۲)

غالبا د حضرت کشميری رحمه الله د قول بنياد هم دا خبره ده.چه چونکه د حج فرضيت ۶ھ کښې شوې دې.دا حضرات هم په دې کال د فرضيت د حج نه مخکښې مخکښې راغلل.او په دويم ځل راتګ ۸ھ کښې دې.لکه څنګه چه د قاضی عياض وغيره هم دا قول دې.

د تعدد وفود يو دليل د ابن حبان رحمه الله هغه روايت دې.په کوم کښې چه نبی کريم ﷺ ددوی نه تپوس کړې وو.((مالي أرى وجوهكم قد تغيرت؟ قالوا: يا نبي الله، نحن بأرض وخمة، وكنا نتخذ من هذه الأشربة ما يقطع اللحمان في بطوننا، فلما نهيتنا عن الظروف فذلك الذي ترى في وجوهنا....))(۳)

---

(۱) په بعضې رواياتوکښې د حج ذکر هم شته.اوګورئ السنن الکبری للبيهقی (۱۹۹/۴) کتاب الصيام باب فرض صوم شهر رمضان ومسند أحمد (۳۶/۱۱۱) ددې رواياتو په باره کښې وړاندې بحث راځي.

(۲) فتح الباری (۸۵/۸، ۸۶) کتاب المغازی باب وفد عبدالقيس حافظ رحمه الله په دې مقام کښې ددويم ځل راتلو کال ۹ھ عام الوفود ذکر کړې دې.اودا ئې هم ليکلی دی.چه ((وکان عددهم حينئذ أربعين رجلاً كما في حديث أبي حيوة الصناحي (كذا في الأصل والصواب أبي خيرة بالخاء المعجمة بعدها ياء تحتانية وبعدها راء مهملة الصباحي بضم الصاد المهملة بعدها باء موحدة ثم ألف ثم حاء مهملة كما في فتح الباري (۱۳۱/۱) الذي أخرجه ابن منده وكان فيهم الجارود العبدي.. لکه چه جارود راتګ په ۹ھ کال وو.اووړاندې د الاصابة په حوالې سره مونږ ذکرکړل.چه ددوی راتګ په ۱۰ھ کال شوې وو.اوهغه آخری راتګ وو.نوکه د ،،اصابه،،خبره تيک اوګڼړلې شی.نود جمعې اوتطبيق دپاره به دا ونيلی شی.چه ددوی اولنې راتګ خود حج دفرضيت نه وړاندې شوې وو.اودويم راتګ ئې په عام الوفود يعنې ۹ھ کښې شوې وو.اودريم راتګ ئې په ۱۰ھ کښې شوې وو.په کوم کښې چه د حضرت جارود د راتګ اودهغوی دايمان راوړوذکر دې.په ۹ھ او بيا په ۱۰ھ کښې د راتلو دليل هغه حديث هم دې.کوم چه حضرت رسيم عبدی رضي الله عنه نه منقول دې.اوهغه په متن کښې راځي.دکوم نه چه دومره خبره ضرور معلوميږی.چه د دې حضراتو دوه ځله راتلل داسې وو.چه په دې کښې صرف د يو کال جداوالې وو.نويوقدوم د ټولونه وړاندې وو.اوبل قدوم په عام الوفود کښې وو.اوبيا دريم قدوم په ۱۰ھ کښې منلې شی.والله أعلم)_

(۳) موارد الظمآن (ص،۳۳۸) کتاب الأشربة باب ما جاء في الأوعية رقم ۱۳۹۳) حافظ ابن حجر رحمه الله په دې کښې ((مالي أرى وجوهكم قد تغيرت)) سره استدلال کړې دې.اوفرمائی.((ففيه إشعار بأنه كان رآهم قبل التغيير)) حالانکه ددوی سوال ددې وجې هم ممکن دې.چه چونکه دې کسانو اوږد سفر کړې وو.او راغلی وو.ددې وجې په دوی باندې د سفر آثار وو.نبی ﷺ د دلجوئی دپاره تپوس اوکړو.ددې وجې اصل استدلال ددې جملې په ځائې ددې نه پس روسته جمله ((فلما نهيتنا عن الظروف فذلک الذي ترى في وجوهنا)) باندې چه اوکړې شی.ځکه چه په دې کښې نهی عن الظروف ده.چه تاسو اول چونکه په دې لوښو کښې د نبيذ استعمالولو نه منع کړې وو.ددې وجې مونږ نبيذ نه دی استعمال کړې.او زمونږ زمکه داسې ده.چه هلته د نبيذ استعمال ضروری دې.ددې وجې زمونږ په مخونوباندی دا بدلون دې.والله أعلم)_

ددې سوال او جواب نه معلوميږي چه ددې حضراتو راتګ د نبی کريم ﷺ په بارګاه کښې کم از کم دوه ځله شوې دې والله أعلم بالصواب.

دغه شان په تعدد وفود باندې د مسنداحمد **هغه حديث** هم دلالت کوی.کوم چه دوی د حضرت رسيم ابوزن عظيم وقيل مصغر [1] عبدی رضي الله عنه نه نقل کړې دې. **((وفدنا على رسول الله ﷺ فنهانا عن الظروف، قال: ثم قدمنا عليه فقلنا: إن أرضنا أرض وخمة.......))** [2] دغه شان يو بل روايت کوم چه ددوی د خوئی نه منقول دې.د هغې نه معلوميږي.چه د دوارو راتګ په مينځ کښې صرف د يو کال فصل وو.د هغې الفاظ دا دی. **((كان أبي في الوفد الذين وفدوا إلى رسول الله ﷺ من عبد قيس، فنهاهم عن هذه الأوعية، قال: فأتخمنا، ثم أتيناه العام المقبل، قال: فقلنا يا رسول الله، إنك نهيتنا عن هذه الأوعية فأتخمنا.....))** [3]

**د عبدالقيس قبيلې اسلام** دا قبيله قديم الاسلام ده.دا خلق د بحرين او د عراق د اطرافو اوسيدونکی وو.جواثی هم ددې حضراتو ښار دې.په کوم کښې چه د مدينې منورې نه پس د ټولو نه وړاندې د جمعې مونځ اوکړې شو.[4]

ددې قبيلې په اسلام سره د مشرف کيدو په سلسله کښې ابن شاهين رحمه الله روايت نقل کړې دې.چه د اشج عبدالقيس [چه دده نوم المنذر بن عائذ بن الحارث بن المنذر بن النعمان العبدی دې [5]] دده يو راهب سره دوستی وه.د دوارو به هرکال ملاقات کيدو.يو ځلې راهب دوی ته اووئيل.چه په مکه مکرمه کښې به يو نبی ښکاره کيږي.هغه به صدقه نه خوری البته هديه به قبلوی.د هغه د دوارو اوګو په مينځ کښې به د نبوت علامت وی.هغه به په ټولو دينونو باندې غالب وی.

---

[1]) الإكمال لابن ماكولا (٤\٦٥، ٦٦) والإصابة (١١\٥١٥) رقم ٢٦٥٣ وتعجيل المنفعة (١١\٥٣٢) رقم ٣٢١)

[2]) مسند أحمد (١٣\٤٨١) حديث ابن الرسيم عن أبيه رضي الله عنه)_

[3]) المصدر السابق)_

[4]) عن ابن عباس رضي الله عنهما قال أول جمعة جمعت بعد جمعة جمعت فی مسجد رسول الله ﷺ فی مسجد عبدالقيس بجواثی يعنی قرية من البحرين صحيح البخرای کتاب البمغازی باب وفد عبدالقيس رقم ٤٣٧١٠) په دې روايت سره دحافظ ابن حجر رحمه الله تائيد کيږي چه دا وفد اول ځل په ۵ﻫ يا ددې نه وړاندې راغلې وو.ځکه چه د دې روايت نه دهغوی قديم الاسلام کيدل معلوميږي

[5]) د دوی په نوم کښې ډير اختلاف دې ① بعضې حضراتو خو هم دا ((المنذربن عائذ)) ذکرکړې دې ② بعضې حضرات عبدالله بن عوف ③ بعضو منذربن الحارث.④ اوبعضو عائذبن المنذر خودلې دې.اوګورئ طبقات ابن سعد (٥\٥٥٧، ٥٥٩) ⑤ بعضې حضراتو ددوی نوم منقذبن عائذ خودلې دې اوګورئ الإصابة (١٣\٤٦٠) ترجمة المنذر بن عائذ.رقم(٨٢١٨) ⑥بعضې حضراتو.المنذربن عوف. خودلې دې اوګورئ عمدة القارئ (١١\٣٠٨)_

د راهب د وفات نه پس اشج عبدالقيس خپل زوم عمرو بن عبدالقيس [1] چه دا دده د خورخوني هم وو. د حال تحقيق دپاره اوليګلو هغه ته ئې څه جامې او كجورې وركړې.چه دې د سوداګر په شكل كښې سفر اوكړې شي.نو دې د يو راهنما سره اووتلو.دې مكې مكرمې ته د هجرت په كال رسيدلې وو [2] دوى د نبى كريم ﷺ سره ملاقات اوكړو.ټول علامات ئې معلوم كړل.او بيا هغه مسلمان شو.

په بعضو رواياتو كښې دا هم راغلى دى.چه نبى كريم ﷺ ددې قبيلې د لويو لويو خلقو نومونه واخستل. او ددوى د حالاتو تپوس ئې اوكړو.ددې نه پس نبى كريم ﷺ ده ته د سورۀ فاتحه او سورة العلق تعليم وركړو.هركله چه هغه لاړو.نو هغه ته نبى كريم ﷺ د هغوى د قوم د مشرانو كسانو په نوم يو خط وركړو.او تاكيد ئې اوفرمائيلو.چه خپل ماما او سخر يعنى اشج ته د اسلام دعوت وركړه.كله چه دې خپل كور ته اورسيدو.نو هلته چه اورسيدو. نو دوى په ابتداء كښې خط پټ اوساتلو.په كور كښې ئې په پټه مونځ شروع كړو.ددوى ښځې چه كله دا حالت اوكتلو.نو خپل پلار ته لاړه.او قصه ئې ورته واوروله.چه دې د كوم وخت نه راغلې دې. خپل اندامونه وينځى.او ركوع او سجدې كوى.

اشج د زوم نه تپوس اوكړو.دوى ورته ټوله واقعه واوروله.او دا ئې هم اوښودل.چه نبى كريم ﷺ د يو يو په نوم د ټولو تپوس كولو.چه دا خبرې ئې واوريدلې .نو هغه هم مسلمان شو.يو څو ورځو پورې ئې خپل اسلام پټ اوساتلو.بيا ئې د خپلې قبيلې په وړاندې اعلان اوكړو.نو دغه خلق هم مسلمانان شو.ددې نه پس د وفد په شكل كښې د نبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شو. [3]

---

[1] د دوى نوم ,,عمروبن المرجوم،، رقم ٥٩٥٩ ) الإصابة (٥\١٣) ترجمة عمروبن عبدقيس رقم ٥٩٠١ و(١٥\١٣) ترجمة عمروبن المرجوم رقم ٥٩٥٩ ) دغه شان طبقات ابن سعد (٥٦٣\٥، ٥٦٤)_

[2] ددې نه معلوميږى.چه دا قبيله دهجرت په ابتداء كښې مسلمانه شوې وه.خكه چه د عمروبن عبدالقيس راتګ په مكه كښې هم په هغه كال شوې وو.په كوم كال چه نبى ﷺ دهغې نه هجرت كړې وو.ددې نه پس چه كله دې واپس لاړل نوټوله قبيله مسلمانه شوه.ددې نه هم دحافظ تائيد كيږى.چه ددې خلقو په اول ځل راتګ په ٥هـ يا ددې نه وړاندې وو.والله أعلم.)_

[3] الإصابة (١٧٧\٢، ١٧٨)ترجمة صحات رقم(٤٠٤١) وطبقات ابن سعد(٥٦٤\٥) ترجمة عمروبن عبدقيس وشرح النووى على صحيح مسلم (٣٣\١١) كتاب الإيمان باب بيان أركان الإسلام ودعائمه العظام)

تنبيه: دعبدالقيس قبيلې د اسلام قبلولوسبب څوك ګرځيدلې وو؟اودټولو نه وړاندې نبى ﷺ ته د سوداګرپه حيثيت څوك راغلى وو.ددې كس د نوم په باره كښې اختلاف موجود دې.

صاحب التحرير ددې كس نوم .منقذبن حبان (بالحاء المهملة ثم الباء الموحدة المشددة ثم الألف والنون كما فى شرح الكرمانى (٢١١\١١) خودلې دې.كوم چه امام نووى رحمه الله په شرح صحيح مسلم (٣٣\١١) كښې نقل كړى دى.اوبيا په ظاهره هم ددې دوارو حضراتو په اتباع كښې نوروشارحينو رحمهم الله مثلاً كرمانى رحمه الله په شرح د بخارى كښې (٢١١\١١)، علامه عينى رحمه الله په عمدة القارى (٣٠٩\١١) كښې اوقسطلانى په ارشاد السارى (١٤٥\١١) كښې هم دا نقل كړى دى.دغه شان دا چه منقذبن حبان هم د اشج عصرى

[بقيه حاشيه په راروان مخ..... 

**وفد عبدالقیس په څومره کسانو باندې مشتمل وو؟** صاحب د ،،التحریر،، د وفد د افرادو تعداد څوارلس ښودلی دې خو ددې نې هیڅ دلیل نه دې ذکرکړې بیا ددوی نه هغه صرف د اتو کسانو نومونه ذکرکړی دی.(۱)

د باقی شپږو کسانو نومونه نې نه دی ذکرکړی.هغوی لیکلی دی چه سره د لټون، تتبع او تلاش بل یو نوم هم ملاو نشو.(۲)

البته ابن منده رحمه الله د مزیده رضی الله عنه نه یو روایت نقل کړې دې.«بینما رسول الله ﷺ یحدث أصحابه إذ قال لهم: سیطلع لکم من هذا الوجه رکب هم خیر أهل المشرق، فقام عمر، فلقی ثلاثة عشر راکباً......»(۳)

ددې روایت نه معلومیږی.چه وفد کښې دیارلس کسان وو.

دولابی رحمه الله په ،،کتاب الکنی والاسماء،، کښې د حضرت ابوخیره صباحی رضی الله عنه روایت نقل کړې دې.«کنت فی الوفد الذین قدموا علی رسول الله ﷺ من عبدالقیس، فکنا أربعین رجلاً.»(۴) ددې روایت نه معلومیږی.چه وفد کښې څلویښت کسان وو.

حافظ ابن حجر رحمه الله په کتاب الایمان کښې په دې تعدادونو کښې په دې طریقه د تطبیق کولو کوشش کړې دې.چه صاحب د ،،التحریر،، چه د کومو څوارلسو کسانو تصریح کړې ده.هغې کښې او د ابن منده په روایت کښې چه په دې کښې د دیارلسو کسانو تصریح ده.په دواړو کښې تطبیق په دې طریقه دې.چه افراد د وفد خو اصل کښې څوارلس کسان وو.په دوی کښې دیارلس کسان سواره وو.اویو پیاده یا ردیف وو.د ټول تعداد لحاظ ساتلو سره دوی ته څوارلس اوونیلی شو.او د راکب کیدو لحاظ کولو سره چه کوم پیاده یا ردیف وو.هغه شمار نکړې شو.نو څکه دغه شان (یعنی دیارلس) اوونیلی شو.

---

.....بقیه حاشیه د تیرمخ] اوپه طبقات ابن سعد(۵\۵۶۴) الإصابة (۲\۱۷۸) رقم ۴۰۴۱ او (۳\۵) رقم ۵۹۰۱) کښې دتپولونه وړاندې د تحقیق حال دپاره د راتلونکی کس نوم عمروبن عبدالقیس لیکلې دې.کوم چه د اشج عصری دخور خوئې هم وو.اوخوم هم.اوّد منقذ بن حبان په باره کښې ابن سعد اوحافظ رحمهما الله لیکلی دی چه دا هم د اشج عصری د خور خوئې وو.ددوی خصوصیت دا وو.چه کله دوی د وفد سره راغلو.نو نبی ﷺ ددوی په مخ باندې لاس راښکلې وو.اوګورئ طبقات ابن سعد(۵\۶۳) او الإصابة (۲\۱۷۷، ۱۷۸) رقم (۴۰۴۱) په ظاهره هم دا صحیح معلومیږی.چه تحقیق حال دپاره عمروبن عبدقیس رالیږلې شوې وو.اودهغه د مسلمانیدو او واپس کیدو نه پس ټول مسلمانان شول.اوبیا ددې قبیلې وفد د اشج عصری په قیادت کښې د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شوی وو والله اعلم بالصواب._

(۱)ددې کسانونومونه حافظ رحمه الله دا نقل کړی دی.① المنذربن عائذ (اشج عبدالقیس) ② نقذبن حبان (بالباء الموحدة) ③ مزیدة بن مالک ④ عمروبن مرجوم ⑤ الحارث بن شعیب ⑥ عبیده بن همام ⑦ الحارث بن جندب ⑧ صحاربن العباس ) اوګورئ فتح الباری (۱\۱۳۰)_

(۲) فتح الباری(۱\۱۳۰)-

(۳) فتح الباری(۱\۱۳۱)_

(۴) [illegible] (۱\۲۷)_

بيا د ديارلسو او شلويښتو په مينځ کښې تطبيق کولو کښې ئې فرمائيلي دي.چه دواړو کښې جمع په دې طريقه ممکن ده.چه ديارلس کسان د وفد سرداران (مشران) وو!چه دا سواره وو.باقي ټول افراد اتباع وو.(١)

خو په کتاب المغازي کښې حافظ رحمه الله د ابن منده او دولابي په روايتونو کښې تطبيق کولو دپاره. دا دواړه رواياتونه په جدا جدا وفدونو باندې محمول کړي دي.لکه هغه فرمائي.چه په ړومبي وفد کښې دا خلق په ديارلسو افرادو باندې مشتمل وو.او په دې موقعه باندې د وفد رئيس اشج عبدالقيس رضي الله عنه وو.او په دويم وفد کښې شلويښت کسان وو.چه په دوی کښې جارود رضي الله عنه هم وو.(٢)

**فائده** چونکه صاحب د ،،التحرير،، د وفد تعداد څوارلس ښودلې وو.او بيا ئې صرف د اتو کسانو نومونه ذکر کړي وو.او دا ئې وئيلي وو.چه د ډير زيات تتبع (او تلاش) باوجود نور نومونه ملاونشو.په دې وجه حافظ ابن حجر رحمه الله مخکښې د شپږو نومونو اضافه کړې ده.او څوارلس تعداد ئې مکمل کړې دې.(٣)بيا ئې په دې باندې زياتي د نهو نومونو اضافه کړې ده.(٤)په دې طريقه ټول تعداد دريويشت جوړيږي.

او په طبقات ابن سعد کښې چه کوم نومونه ذکرکړي شوي دي.هغه دا نومونه د حافظ رحمه الله ذکرکړي شوو دريويشتو نومونو سره ملاو کړې شي.او مکررات خذف کړې شي.نو زياتی څوارلس نومونه نور هم جوړيږي.(٥)په دوی کښې د بعضو په باره کښې کلام هم کيدې شي.په دې طريقه ټول تعداد اووه ديرش جوړيږي.،،والله سبحانه وتعالیٰ أعلم،،_

**قوله**: قَالَ مَنِ الْقَوْمُ أَوْمَنِ الْوَفْدُ: نبي کريم صلى الله عليه وسلم تپوس اوکړو.دا کوم يو قوم دې؟ يا نبي کريم صلى الله عليه وسلم تپوس اوکړو.ددې وفد تعلق د کوم خاني سره دې؟

دا شك چه نبي کريم صلى الله عليه وسلم ،،من القوم،،اوفرمائيل.اوکه ،،من الوفد،،؟ دا په راويانو کښې دچا

---

(١) فتح الباری (١٣١/١)-

(٢) فتح الباری(٨٥/٨، ٨٦) کتاب المغازی باب وفد عبدالقيس)_

(٣) دحافظ ابن حجر رحمه الله چه کوم نومونه زياتي کړی دی.هغه شپږ دا دی.① عقبه بن جروه② قيس بن النعمان③ الجهم بن قثم.④ الرسيم العبدی⑤ جويريه العبدی⑥ الزارع بن عامرالعبدی (فتح الباری( ١٣٠/١و ١٣١)_

(٤) نور زياتي نومونه نهه دا دی.① مطر② ابن اخت مطر③ مشمرج السعدی④ جابربن الحارث⑤ خزيمه بن عبدعمرو⑥ همام بن ربيعه ⑦ جاريه بن جابر⑧ نوح بن مخلد⑨ ابوخيره الصباحی (فتح الباری(١٣١/١)_

(٥) دا څورلس نومونه دا دی.① الجارود② سفيان بن خولی③ محارب بن مزيده④ الزارع بن الوازع ⑤ ابان العبدی⑥ جابربن عبدالله ⑦ شهاب بن المتروک⑧ طريف بن ابان ⑨ عمروبن شعيث ⑩ عامربن عبدقيس ⑪ سفيان بن همام ⑫ عمروبن سفيان ⑬ همام بن معاويه ⑭ عبيده بن مالک)_

د طرفه دي![1] ممکن ده. چه ابوجمره ته شك وی او دا هم ممکن ده. بلکه غالب گمان هم دا دي چه دا شك امام شعبه ته شوي وی. ځکه چه د قره وغيره په روايت کښې د شك نه بغير روايت راغلي دي.[1]

علامه کرماني رحمه الله دا د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما شك گرځولي دي.[2]

حافظ ابن حجر او علامه عيني رحمهما الله ددوی ترديد کړي دي.[3] والله اعلم.

ابن ابی جمره رحمه الله فرمائي چه د حديث ددې جملې نه معلومه شوه. چه د راتلونکی نه د هغه پخپله د تعارف کولو نه وړاندې سوال کول مستحب دی. چه د معرفت حاصليدو نه پس ورسره د هغه د مرتبې اوشان مطابق معامله اوکړې شي.[4]

**قوله** قَالُوا رَبِيعَةُ: دوی جواب ورکړو چه مونږ ،،ربيعه،، يو.

دلته مبتدا محذوف ده. ،،**قالوا: نحن ربيعة**،،[5] چه زمونږ تعلق ربيعه قبيلې سره دې. په دې کښې د قبيلې په بعضو افرادو باندې د پوره قبيلې اطلاق شوې دې. ځکه ښکاره ده. چه پوره قبيله خو نه وه راغلي.[6]

بيا دلته د راوی تصرف دې. حالانکه په کتاب الصلاة کښې چه امام بخاري رحمه الله د ،،**عباد عن أبي جمرة**،، په طريق سره کوم روايت نقل کړې دې. د هغې الفاظ د يوې نسخې مطابق ،،**إنا هذا الحيّ من ربيعة**،، دی.[7] په دې کښې ،،**هذا الحي**،، د اختصاص په وجه منصوب دې.[8] او مطلب دا دې. ،،**إنا هذا الحيّ حيّ من ربيعة**،،[9]

،،**حی**،، په اصل کښې پړاو اچولو او د اقامت اختيارولو ځائې ته وائې. بيا ددې اطلاق پخپله قبيلې باندې اوشو. ،،**لأن بعضهم يحيا ببعض**،،[10] بيا دلته په دې هم پوهه شئ چه دا ،،ربيعه،، د معد بن عدنان نمسې دې. د قبيله عبدالقيس نسب نامه دا ده. ،،**عبدالقيس بن أفصى (بالفاء**

---

[1]) فتح الباري(۱۳۰/۱) وعمدة القاري(۳۰۶/۱)_

[2]) شرح الكرماني(۲۰۷/۱) حيث قال شک من الراوی والظاهر أنه من ابن عباس رضي الله عنهما)_

[3]) فتح الباري(۱۳۰/۱، ۱۳۱) وعمدة القاري(۳۰۶/۱)_

[4]) فتح الباري(۱۳۱/۱)-

[5]) عمدة القاري(۳۰۶/۱)_

[6]) فتح الباري(۱۳۱/۱)-

[7]) صحيح البخاري(۷۵/۱) كتاب مواقيت الصلاة باب قول الله تعالى (منيبين إليه واتقوه..._

[8]) فتح الباري(۱۳۱/۱)_

[9]) فتح الباري(۱۳۱/۱)-

[10]) المصدر السابق)_

بن دعمى (بضم الدال المهملة وإسكان العين المهملة، ثم الميم وبعدها ياء النسبة) بن جديلة (بفتح الجيم) بن أسد بن ربيعة بن نزار بن معد بن عدنان،»[1] د نزار څلور خامن وو ① مضر بن نزار ② ربيعة بن نزار ③ اياد بن نزار ④ انمار بن نزار [2] والله اعلم

**قَالَ مَرْحَبًا بِالْقَوْمِ أَوْ بِالْوَفْدِ غَيْرَ خَزَايَا وَلَا نَدَامَى**

نبى کريم ﷺ اوفرمائيل دې قوم دپاره. يا ئې اوفرمائيل دې وفد دپاره. مرحبا او خوش آمديد. چه دا نه ذليل او رسوا شو او نه شرمنده شو

د ،،مرحبا،، لفظ د يو راتلونکى د راتلو په خوشحالئ ښکاره کولو دپاره وئيلې شى. ،،رحب،، شئ واسع، ته وائى نو د ..مرحبا.. معنى شوه ،،أتيت مكاناً رحباً،، يعنى تاسو په وسيع او کلاو ځائې کښې راغلى يئ يعنى داسې خلقو له راغلى يئ چه هغوى ستاسو په راتلو باندې خوشحالې ښکاره کوى.دوى ته ستاسو په راتلو باندې خوشحالى ده.ددوى زړونه خوشحاله دى [3]

دا کلمه د تولو نه وړاندې سيف بن ذى يزن [4] استعمال کړې وه.[5] د نبى کريم ﷺ نه په ډيرو موقعو باندې ددې استعمال منقول دې ① يوه موقعه هم دا د وفد عبدالقيس د راتګ ده.چه نبى کريم ﷺ په دې وخت ،،مرحباً بالقوم أو بالوفد،، فرمائيلى وو ② د فتح مکې په موقعه باندې حضرت ام هانى تشريف راوړو.نو نبى کريم ﷺ اوفرمائيل ،،مرحباً بأم هانئ،،[6] ③ يوځل حضرت فاطمه رضي الله عنها داخله شوه.نو دوى(ﷺ) اوفرمائيل ،،مرحباً بابنتى،،[7] ④ دغه

---

[1] الأنساب للسمعانى (١٣٥/٤) نسبة ..العبدى..)_

[2] الأنساب للسمعانى(٣٠/١١) فصل فى نسب مضر)_

[3] فتح البارى(١٣١/١) وعمدة القارى(٣٠٦/١)_

[4] سيف بن ذى يزن حميرى د يمن په بادشاهانو کښې و.د شپږمې عيسوى صدئ په اول کښې په يمن باندې د حبشو غلبه وه اوهغوى د يمن زيات اميران او بادشاهان قتل کړى وو.په دې موقعه سيف بن ذى يزن اول په انطاکيه کښې د قيصر نه مدد غوستې وو.هغه ورته څه توجه ورنکړه.حيره او عراق ته د کسرى ګورنر نعمان بن المنذر لاړلو اوګيله ئې اوکړه. او حکايت حال ئې ورته بيان کړو.نعمان سيف کسرى ته اورسولو.کسرى د سيف په لاس باندې د اته سوو لښکراوليږل.دا خلق چه يمن ته اورسيدل نودهغه ځائې خلقو هم مدد اوکړو دغه شان حبشيانوباندې غلبه حاصله شوه.اواوس په يمن باندې د فارسيانو حکومت شو.البته براه راست حکمران ئې هم دا سيف بن ذى يزن وو.دد تقريباً پنځويشت کاله حکومت اوکړو.په يمن کښې ئې په څه حبشيانوباندې رحم راغلو.اوهغوى ئې پريخودل هغوى سازش اوکړو.اودې ئې قتل کړلو.دهجرت نه پنځوس کاله وړاندې دا واقعه پيښه شوې وه.والله أعلم الأعلام للزركلى(١٤٩/٣)

[5] قاله العسكرى كذا فى فتح البارى (١٣١/١) وعمدة القارى(٣٠٦/١)-

[6] صحيح البخارى(كتاب الصلاة باب الصلاة فى الثوب الواحد ملتحفا به رقم ٣٥٧)_

[7] صحيح البخارى (٥١٢/١) كتاب المناقب باب علامات النبوة فى الإسلام)_

شان نې د حضرت عكرمه رضي الله عنه په راتلو باندې اوفرمائيل.،،مرحباً بالراكب المهاجر،، (١)

⑤دحضرت عمار رضي الله عنه په راتلو باندې نې اوفرمائيل.،،مرحباً بالطيب المطيب،،(٢)
امام بخارى رحمه الله ددې استحباب طرف ته اشاره كولو دپاره په كتاب الادب كښې يو مستقل باب ،،باب قول الرجل مرحباً،، قائم كړې دې.(٣)

**غير خزايا ولا ندامى** دا خو يا منصوب دې على وجه الحال. او يا مجرور دې.په دې صورت كښې به د ..القوم.. يا ..الوفد.. صفت ګرځولې شي.خو ياد ساتئ:چه د جر صورت دلته صحيح نه معلوميږى.دلته دا حال ګرځول صحيح نه دى.هم دا مشهوره ده.(٤)ددې تائيد دصحيح بخارى په كتاب الادب كښې مذكور روايت سره هم كيږى.د هغې الفاظ دا دى.((مرحباً بالوفد الذين جاءوا غير خزايا ولا ندامى))(٥)

،،خزايا،، د خزيان جمع ده.چه دا د ..خزى.. نه دې.ددې معنى رسوائى او ذلت ده.،،خزيان،، ذليل او رسوا سړى ته وائى.(٦)

**قوله: ،،ندامى،،**:امام خطابى رحمه الله فرمائى.چه دلته قياساً ،،نادمين،، وئيل پكار وو.چه دا د ،،نادم،، جمع ده.او دا د ،،ندامة،، نه مشتق دې.او ،،ندامى،، د ،،ندمان،، جمع ده.او ،،ندمان،، د شرابو او لهو لعب ملګرى (هم نشين) ته وائى.البته دلته د ،،ندامى،، راوړلو وجه ،،خزايا،، سره لفظى مشاكلت دې.او داسې تصرف اهل عرب پخپل كلام كښې كوى.لكه چه وائى.،،إنه ليأتينا بالغدايا والعشايا،، دلته ،،غدايا،، د ،،غدوة،، جمع ده.چه ددې جمع ،،غدوات،، دې.،،غدايا،، نه دې.خو دلته كښې ،،اتباعاً،، ..غدايا.. اووئيلې شو.(٧)

---

(١) المعجم الكبير للطبرانى (١٧\٣٧٣، ٣٧٤) رقم ١٠٢١ و١٠٢٢ وانظر مجمع الزوائد(٩\٣٨٥) كتاب المناقب باب ما جاء فى عكرمة بن أبى جهل رضي الله عنه والمستدرک للحاكم (٣\٢٤٢) كتاب معرفة الصحابة ذكر مناقب عكرمة بن أبى جهل )_

(٢) أخرجه الترمذى فى جامعه فى كتاب المناقب باب مناقب عماربن ياسر رضي الله عنهما وابن ماجه فى سننه (ص.١٤) فى المقدمة باب فضل عماربن ياسر(والحاكم فى المستدرک(٣\٣٨٨) كتاب معرفة الصحابة رضي الله عنهم ذكرمناقب عماربن ياسر رضي الله عنه)_

(٣) (٢\٩١٢)_

(٤) شرح النووى على صحيح مسلم (١\٣٤) كتاب الإيمان باب الأمر بالإيمان بالله ...)_

(٥) صحيح البخارى (٢\٩١٢) كتاب الأدب باب قول الرجل مرحباً)_

(٦) النهاية (٢\٣٠) وفتح البارى(١\١٣١) وأعلام الحديث (١\١٨٥)_

(٧) أعلام الحديث للخطابى(١\١٨٥)_

خو قزاز او جوهرى وغيره اهل لغت چه د ,,ندامة،، نه څنګه ,,نادم،، ذکرکړي دي.دغه شان ئې ,,ندمان،، هم ذکرکړي دي په دې صورت کښې د ,,ندامى،، جمع دځپل اصل مطابق دې. په دې کښې ,,اتباع،، نشته. (١)

اوس ددې جملې مطلب دا شو چه عبدالقیس قبیلې خو نه رسوایئ سره مخ شوه.او نه ورته شرمندګی ملاو شوه څکه چه دا قبیله پخپله ځپل شوق او رغبت سره مسلمانه شوې ده.دوی سره د مسلمانانو هیڅ جنګ اونشو که څه جنګ شوې وې نو نیولی شوی به وو او راوستلی شوی به وو.نو رسوائی به ملاویدله.او که مسلمانان ئې قتل کړې وې.نو شرمندګی او خپیمانتیا به وه.

**قوله** فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا لَا نَسْتَطِيعُ أَنْ نَأْتِيكَ إِلَّا فِي الشَّهْرِ الْحَرَامِ وَبَيْنَنَا وَبَيْنَكَ هَذَا الْحَيُّ مِنْ كُفَّارِ مُضَرَ: دوی عرض اوکړو اې د الله رسوله! مونږ تاسو ته صرف په ,,شهرحرام،، کښې راتلې شو.څکه چه زمونږه او ستاسو په مینځ کښې د مضر کافرانو دا قبیله حائل ده.

په بعضو نسخو کښې دلته د ,,الشهرالحرام،، (مرکب توصیفی) په ځائې ,,شهرالحرام،، (مرکب اضافی) دې.چه دا د ,,مسجدالجامع،، او ,,نساء المؤمنات،، یعنی د ,,اضافة الموصوف الی الصفة،، د قبیل څنې دې.(٢)

په ,,الشهرالحرام،، کښې دوه احتماله دی.① یا خو ددې نه مراد د ,,اشهرحرم،، نه کومه خاص میاشت مراد نه ده.په دې صورت کښې به الف لام د جنس دپاره منلې شی.او په دې کښې به څلور واړه اشهرحرم ذوالقعده، ذوالحجه، محرم او رجب مراد وی.(٣)ددې تائید ددې روایت د بعضو طرق نه کیږی.لکه چه د قره طریق مصنف په کتاب المغازی کښې نقل کړې دې.ددې الفاظ دا دی.,,إلا فى أشهر الحرم،،(٤)دغه شان په کتاب المناقب کښې چه دوی د حماد بن زید په طریق سره کوم روایت ذکر کړې دې.د هغې الفاظ دی.,,إلا فى كل شهر حرام،،(٥)
② دویم احتمال دا دې چه الف لام عهد دپاره وی.په دې صورت کښې به ددې نه مخصوص میاشت مراد وی.هغه مخصوص میاشت د رجب میاشت ده.(٦)چه ددې تصریح د بیهقی په

---

١) فتح البارى(١٣١/١، ١٣٢)_
٢) فتح البارى(١٣٢/١)-
٣) المصدرالسابق)_
٤) صحيح البخارى(٦٢٧/٢) كتاب المغازى باب وفد عبد القيس)_
٥) صحيح البخارى (٤٩٨/١) كتاب المناقب باب (بلاترجمة بعد باب نسبة اليمن إلى إسماعيل)_
٦) فتح البارى(١٣٢/١)_

روایت کښې ده.(١)د رجب میاشت مراد اخستلو وجه خاص طور باندې دا ده.چه مضر قبیلې به ددې میاشت خاص تعظیم کولو.هم په دې وجه بو حدیث کښې د رجب میاشت مضر قبیلې طرف ته منسوب کړې شوې هم ده.«ورجب مضر الذی بین جمادی وشعبان»(٢)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.ددې مطلب دا نه دې چه مضر قبیله د باقی اشهرحرم دحرمت قائل نه وی.او په دې کښې جنګ روا ګڼړی.بلکه مطلب دا دې.چه دا خلق خو د ټولو اشهرحرم د حرمت قائل وو.البته د باقی دریو میاشتو په مقابله کښې به ئې د رجب لږ زیات احترام او تعظیم کولو.تردې چه په دې نورو میاشتو کښې به ئې خو د ،،نسیئ،، جرم هم کولو.خو رجب سره به ئې دا سلوك نه کولو.(٣)

نوکه دوی ټولې اشهرحرم مراد اخستې وی.نو بیا هم صحیح ده.چه د مضر قبیله ددې د حرمت قائل ده.په دې وجه دې میاشتو کښې به دوی سلامتیا سره ستاسو په خدمت کښې حاضریدې شی.او که مخصوص ،،شهرحرام،، یعنی د رجب میاشت مراد وی.نو بیا هم کلام صحیح دې.چه دا خلق د رجب د میاشتې د تعظیم او احترام قائل ،،او دې سره سره به ئې ددې د وړاندې روستو کولو د جرم ارتکاب نه کولو.په دې وجه به صرف په دې میاشت کښې داخلق ستاسو په خدمت کښې حاضریدې شی.

**قوله**: فَمُرْنَا بِأَمْرٍ فَصْلٍ نُخْبِرْ بِهِ مَنْ وَرَاءَنَا وَنَدْخُلْ بِهِ الْجَنَّةَ :نو تاسو مونږ ته داسې ښکاره او واضح حکم راکړئ.چه دا دحق او باطل په مینځ کښې فرق اوکړی.چه مونږ خپل شاته پاتې کیدونکو خلقو ته ددې خبر ورکړو.او په دې باندې عمل کولو سره مونږ جنت کښې داخل شو.

په،،بأمرفصل،، کښې دواړه ،،منون،، دی.دا مرکب توصیفی دې.مرکب اضافی نه دې.(٤)بیا ،،فصل،،په معنی د فاصل هم کیدې شی.لکه څنګه چه عدل په معنی د ،،عادل،، راځی.په دې صورت کښې به مطلب دا وی.«فمرنا بأمر فاصل یفصل بین الحق والباطل» دا هم ممکن ده. چه ،،فصل،،په معنی د ،،مفصل،، وی. چه ددې معنی واضح، ښکاره او ظاهر ده.نو اوس به مطلب دا وی.«فمرنا بأمر واضح مکشوف....»(٥)

---

(١) ولفظه :وإنا لا نصل إلیک إلا فی الشهرالحرام أو قال فی رجب ..السنن الکبری للبیهقی (٣٠٣٩٦) کتاب قسم الفئ والغنیمة باب سهم الصفی)_

(٢) عن أبی بکرة عن النبی ﷺ قال الزمان قد إستدار کهیأة یوم خلق ا لسماوات والأرض السنة إثنا عشر شهراً منها أربعة حرم.ثلاث متوالیات: ذوالقعدة ذوالحجة والمحرم ورجب مضر الذی بین جمادی وشعبان، صحیح البخاری(٤٥٤١١) کتاب بدالخلق باب ما جاء فی سبع أرضین)_

(٣) فتح الباری(١٣٢١١)-

(٤) المصدرالسابق)-

(٥) الکاشف عن حقائق السنن (١٣٨١١) کتاب الإیمان)_

علامه خطابی رحمه الله د ،،فصل،، معنی ،،بین،، کړې ده.(۱)،،وقيل المحكم،،(۲)

بیا په ،،نخبربه من وراءنا،، کښې هم دوه احتماله دی.① یودا چه دا مجزوم اوونیلې شی. په دې صورت کښې به د ،،مرنا....،، جواب وی.② دویم صورت دا دې چه دا مرفوع اوونیلې شی.په دې صورت کښې به دا جمله د ،،امر،، دویم صفت ګرځولې شی.او ړومبې صفت به ،،فصل،، وی.یا بیا دې ته جمله مستانفه وئیلې شی.نو دې وخت به هم دا مرفوع وی.

د ،،ندخل به الجنة،، عطف چونکه په ،،نخبربه من وراءنا،، باندې دې.په دې وجه به په دې جمله کښې هم دا احتمالات جاری کيږی.(۳)والله اعلم.

**وَسَأَلُوهُ عَنِ الْأَشْرِبَةِ فَأَمَرَهُمْ بِأَرْبَعٍ وَنَهَاهُمْ عَنْ أَرْبَعٍ أَمَرَهُمْ بِالْإِيمَانِ بِاللهِ وَحْدَهُ قَالَ أَتَدْرُونَ مَا الْإِيمَانُ بِاللهِ وَحْدَهُ قَالُوا اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ شَهَادَةُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ وَإِقَامُ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءُ الزَّكَاةِ وَصِيَامُ رَمَضَانَ وَأَنْ تُعْطُوا مِنَ الْمَغْنَمِ الْخُمُسَ**

او دوی د اشربه (د څکلو د څیزونو د لوخو) په باره کښې تپوس اوکړو. نو نبی کریم ﷺ دوی ته د څلورو څیزونو حکم اوفرمائیلو.او د څلورو څیزونو نه ئې منع اوفرمائیله.نبی کریم ﷺ دوی ته د الله وحده (په یو حق خدائې) باندې دایمان راوړلو حکم ورکړو.دوی تپوس اوکړو.چه تاسو پوهیږئ.چه په یو خدائې باندې ایمان راوړل څه دی؟ دوی جواب ورکړو.چه الله او دهغه رسول ښه پوهیږی.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.ددې خبرې ګواهی ورکول.چه د الله تعالی نه سوا بل څوك د عبادت لائق نشته.او محمد(ﷺ) د هغه رسول دې.او مونځ قائمول، زکاة ادا کول، د رمضان روژې نیول، او دا چه د غنیمت په مال کښې پنځمه حصه ورکوئ.

په،،فأمرهم بأربع،،کښې به د،،أربع،، معدود ،،خصال،، یا ،،جمل،، راوښکلې شی.یعنی ،،فأمرهم بأربع خصال،، یا ،،بأربع جمل،،_ ،،خصال،، د،،خصلة،، جمع ده.ددې معدود جوړول خو ښکاره دی.د ،،جمل،، معدود جوړولو قرینه د مغازی د روایت دا الفاظ دی.،،حدثنا بجمل من الأمر،،(۴) ددې په جواب کښې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.((آمركم بأربع و أنهاكم من أربع ، أى آمركم بأربع جمل......))(۵)

---

۱) قال الخطابی فی أعلام الحديث (۱۸۵۱۱) وقولهم:مرنا بأمرفصل أی بين واضح ينفصل به المراد ولا يشكل فيه المعنى )_

۲) فتح الباری(۱۳۲۱۱)_

۳) المصدرالسابق)-

۴) صحیح البخاری(۶۲۷۱۲) کتاب المغازی باب وفد عبدالقيس)_

۵) فتح الباری(۱۳۲۱۱)_

**نبي كريمﷺ وفد ته د يو څيز حكم اوفرمائيلو اوكه د متعدد امورو؟** دلته يو سوال دا دې چه دا ټول امور كوم چه نبي كريمﷺ اوښودل دا ټول د ايمان بالله تفسير دى.لكه څنګه چه د نبي كريمﷺ د ارشاد ،،أتدرون ما الإيمان بالله وحده؟،، او بيا ددې د شرح ،،شهادة أن لا إله إلا الله....،، نه ښكاره ده نو اوس ماموراتِ څلور چرته شو.دا خو صرف يو مامور دې؟

**جواب:** ددې جواب دا دې چه دا ټول څيزونه اګرچه د يو څيز تفسير دى.خو د افرادو په اعتبار سره دې ته متعدد وئيلى شوى دى. (١)

**په ماموراتو كښې اجمال او تفصيل كښې تفاوت او ددې وضاحت** دويم سوال دلته كښې دا دې چه په حديث باب كښې اجمالاً د ماموراتو عدد څلور ښودلې شوې دې.چه ،،أمرهم بأربع،، يا ،،آمركم بأربع،،او په تفصيل كښې پنځه مذكور دى. ① شهادتين، ② اقامت صلاة ③ ايتاء زكاة ④ صوم رمضان ⑤ د غنيمتونو نه خمس وركول.

ددې اشكال شارحينو پخپل خپل انداز باندې مختلف جوابونه وركړې دى:

① علامه قرطبي رحمه الله فرمائى.چه اصل مامور به څلور څيزونه دى.چه دا د ،،إقام الصلاة،، نه واخله ،،إعطاء الخمس،، پورې دى.تركومې پورې چه د ،،ايمان،، او شهادتينو تعلق دې.نو دا تبركاً ذكركړې شوى دى.لكه څنګه چه د غنيمت په سلسله كښې د الله تعالى ذكر تبركاً دې.﴿وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ.....﴾ (٢)

② علامه طيبي رحمه الله هم تقريباً دا جواب وركړې دې.هغه فرمائى.چه د بلغاء عادت دا وى.چه د كلام كومه حصه مقصود وى.سياق د كلام هم د هغې تابع ګرځوى.اوكوم څيز چه ضمناً راشى.د هغې نه تعرض نه كيږى.ګويا چه دا غير مذكور دې.دلته چونكه مقصود د ايمان. اعمال اربعه وو.په دې وجه ابتداءً اجمالاً د ماموراتو تعداد څلور بيان كړې شو. چونكه دا خلق مسلمانان وو.په دې وجه ايمان او شهادت دلته مقصود بالذكر نه دې. (٣)

③ قاضى ابوبكر بن العربي رحمه الله فرمائى.كه د شهادتينو نه پس ،،واو،، نه وې.نو دا به وئيلې كيدل.چه دا تفسير دپاره دې.او د ايمان بالله شرح ده.او شهادتين تبركاً تصدير دپاره راوړلې شوې دې.خو د ،،واو،، كيدل. په دې خبره باندې دلالت كوى.چه دا تفسير نه دې.بلكه مستقل مقصود دې.البته داسې وئيلې كيدې شى.چه د ،،وإقام الصلاة،، عطف په ،،شهادة....،، باندې نه دې.بلكه په ،،أمرهم بالإيمان،، باندې دې.اوس به تقدير داشى.،،أمرهم

---

(١) الكاشف عن حقائق السنن(١/١٣٩) كتاب الإيمان)-

(٢) سورة التوبة:(٤١)_

(٣) فتح الباري(١/١٣٢)_

(٤) الكاشف عن حقائق السنن(١/١٣٩)-

بالإيمان مصدراً به و بشرطه من الشهادتين، و أمرهم بإقام الصلاة....الخ» هغه فرمائى.چه ددې حذف تائيد د كتاب الادب په روايت سره كيږي.(۱)چه د هغې الفاظ دا دى.«....أربع وأربع: أقيموا الصلاة.....»(۱)

خو په دې دريو وارو جوابونو باندې دا اشكال كيږي.چه روايت باب به د مصنف د مدعى دپاره مثبت نه وى.ځكه چه ددې دريو وارو جوابونو حاصل دا شو.چه د ايمان ذكر ضمناً راغلي دې.اصل مقصود اعمال اربعه دى.ددې نه د خمس. دايمان شعبه كيدل نه ثابتيږي. حالانكه د امام بخارى رحمه الله دعوى دا ده.چه ،،أداء الخمس من الإيمان،،

④ علامه ابن رشيد رحمه الله ددې جواب دا وركړې دې.چه اصل كښې قوم د ايمان په باره كښې سوال نه وو كړې.بلكه د داسې اعمالو سوال ئې كړې وو.كوم چه جنت ته د تلو ذريعه جوړه شى.او جنت ته د تلو ذريعه هم دا ايمانى اعمال دى.نو په دې لحاظ سره د اداء الخمس د ايمان د شعبو څنې كيدل ثابت شو.(۲)

⑤ علامه تقى الدين سبكى رحمه الله ارشاد فرمائى.چه په ،،وأن تعطوا من المغنم الخمس،، كښې يواحتمال خو دادې.چه دا مجرور وى.او په ،،أمرهم بالإيمان بالله وحده،، كښې ،،الإيمان،، باندې عطف وى.او دويم احتمال دا دې.چه په ،،شهادة أن لا إله إلا الله...،، باندې عطف وى. په رومبى احتمال باندې خو په اجمال او تفصيل كښې څه اشكال نه كيږي. ځكه چه د ،،وأن يعطوا من المغنم الخمس،، حكم به مستقلاً وى.او د امور اربعه مصداق به شهادت. اقامت صلاة. ايتاء زكاة او صوم رمضان وى.البته په دويم احتمال باندې اجمال او تفصيل كښې اشكال كيږي.ځكه چه كله ،،شهادة....،، باندې عطف وى.نو ،،إعطاءِ خمس،، به هم مامورات كښې دننه داخل وى.حالانكه ماموراتو ته اجمالاً ،،أربع،، ونيلى شوى وو.او دلته پنځه جوړيږي.

علامه سبكى رحمه الله فرمائى.چه رومبې احتمال صحيح نه دې.ځكه چه په دې صورت كښې به روايت او ترجمه كښې مطابقت نه وى.ځكه چه ،،أداء الخمس من المغنم،، به شعب ايمانيه كښې داخل نه وى.

دلته هم دويم احتمال مراد دې.تركومې پورې چه د اجمال او تفصيل د اختلاف تعلق دې.نو ددې جواب دا دې.چه اصل كښې نبى كريم ﷺ د هغوى په وړاندې د ايمان تشريح فرمائيلې ده.او د ايمان په تشريح كښې ئې دا فرمائيلى دى.چه ايمان د قول او فعل نوم

---

(۱) صحيح البخارى(۲/۹۱۲) كتاب الأدب باب قول الرجل :مرحباً)_

(۲) فتح البارى(۱/۱۳۲، ۱۳۳)_

(۳) فتح البارى(۱/۱۳۳)-

دي.قول شهادتين دي.او فعل اعمال اربعه دی.او مقصود دلته د اعمال اربعه بيان وو.په دې وجه راوی اجمال كښې د څلورو عدد ذكر كړې دې.د علامه تقى الدين سبكى رحمه الله دا تقرير د ابن رشيد دتقرير نه زيات قوی دې.والله اعلم.
خو ددې ټولو حضراتو دتقرير حاصل دا راوځي.چه دا شهادتين د امور اربعه څخه نه دی.او نه دا مقصود بالذكر دی.د مسند احمد يو روايت سره ددې تائيد كيږي.كوم چه د حضرت ابو سعيد خدری رضی الله عنه نه نقل دې.«فقال آمركم بأربع، وأنهاكم من أربع، أعبدوا الله ولا تشركوا به شيئاً، فهذا ليس من الأربع، وأقيموا الصلاة....»[1] په دې كښې ،،فهذا ليس من الأربع،، ددې خبرې صفا دليل دې.چه شهادتين ضمناً ذكر كړې شوې دې.دا په هغه څلورو كښې شامل نه دې.د كوم چه ابتداء كښې اجمالاً ذكر راغلې دې.

خوښكاره دا ده.چه ،،فهذا ليس من الأربع،، د يو راوی كلام دې.او دا ،،وهم،، دې.ځكه چه امام مسلم رحمه الله دې سند سره هم دا روايت نقل كړې دې.په دې كښې دا زيادت موجود نه دې.[2]ددې نه علاوه پخپله امام بخاری رحمه الله په ،،كتاب اداء الخمس،، كښې هم دا حديث ذكركړې دې.په هغې كښې د شهادتينو ذكر كولو نه پس دی.،،وعقد بيده،،[3] يعنى نبى كريم صلى الله عليه وسلم د ګوتې نه غوټه(ګوا دائره) جوړه كړله.يعنى شمارلو سره ئې اوښودل.ددې نه معلومه شوه.چه ،،شهادتين،، په امور اربعه كښې داخل دی.او مستقل مقصود دی.
خو په دې باندې اعتراض كيدې شی.چه امام بخاری رحمه الله په كتاب الزكاة كښې كوم روايت نقل كړې دې.د هغې الفاظ دی.،،آمركم بأربع وأنهاكم عن أربع: الإيمان بالله و شهادة أن لا إله إلا الله....،،[4] په دې كښې د شهادت نه وړاندې ،،واو،، عاطفه هم موجود دې.نو اعمال مذكوره به څلورو پورې محصور ساتلو دپاره داسې وئيلې شی.چه ،،ايمان بالله،، او ،،شهادت،، دواړه يو څيز دې.او باقى اعمال اربعه ددې تفسير او اصل مقصود دې.په دې صورت كښې به داوئيل صحيح نه وی.چه،شهادت،، د امور اربعه يو فرد او مستقل څيز دې.
ددې جواب دا دې.چه په دې روايت كښې د ،،واو،، اضافه د امام بخاری رحمه الله د استاذ حجاج بن منهال رحمه الله د اوهامو څخه ده.[5] امام بخاری رحمه الله په دې باندې تنبيه هم فرمائيلې ده.لكه چه د حديث مذكور په آخر كښې فرمائی.«وقال سليمان وأبو النعمان عن حماد: الإيمان بالله شهادة أن لا إله إلا الله»[6] او دا د امام بخاری رحمه الله د عاداتو څخه دې.چه كله يو راوی ته ،،وهم،،

---

[1] مسند أحمد(٢٣١٣)_
[2] صحيح مسلم (٣٥/١) كتاب الإيمان باب الأمر بالإيمان بالله تعالى ورسوله صلى الله عليه وسلم_
[3] صحيح البخاري(٤٣٧/١) كتاب فرض الخمس باب أداء الخمس من الدين)-
[4] صحيح البخاري(١٨٨/١) كتاب الزكاة باب وجوب الزكاة)-
[5] فتح الباري(١٣٣/١)-
[6] صحيح البخاري(١٨٨/١) كتاب الزكاة باب وجوب الزكاة)_

اوشي.نو امام بخاري په صحيح او صواب باندې تنبيه فرمائي.
هرکله چه دا خبره ثابته شوه.چه ،،شهادتين،، په امور اربعه کښې دننه داخل دی.نو وړاندې چه څومره جوابونه ورکړې شو.هغه صحيح نه دی.بلکه بل يو جواب به ورکول ضروری وی.
⑥ ابن بطال، قاضی عياض او امام نووی رحمهم الله وغيره دا جواب ورکړې دې.چه په حديث کښې د امور اربعه مصداق شهادتين، اقامتِ صلاة، ايتاءِ زکاة او صوم رمضان دې.خو چونکه دا خلق د کافرانو په ګاوند کښې اوسيدل.او هلته به د جنګ امکانات زيات وو.په دې وجه نبی کريم ﷺ تبعاً او ضمناً د اداءِ خمس مسئله هم بيان کړله.[۱]
⑦ حافظ ابن الصلاح رحمه الله فرمائي.چه د ،،أن تعطوا من المغنم الخمس،، عطف په ،،شهادة....،، باندې نه دې.بلکه ،،أمرهم بأربع،، کښې ،،أربع،، باندې دې.اوس به مطلب دا وی.چه ،،أمرهم بأربع.....و بأن تعطوا من المغنم الخمس،، يعنی د څلورو واړو خبرو حکم ئې ورکړو.او ددې خبرې حکم ئې ورکړو.چه دوی د غنيمت نه خمس اوباسی.[۲]
⑧ د قاضی ابن العربی يو جواب وړاندې تير شوې دې.يو دويم جواب دوی دا ورکړې دې.چه کيدې شی.صلاة او زکاة ئې يو شمار کړې وی.ځکه چه دا دواړه قرآن کريم او احاديثو کښې کثرت سره يوځائې مذکور دی.او دا هم کيدې شی.چه زکاة او اداءِ خمس ئې يو شمار کړې وی.ځکه چه دواړه د مالی حق په اعطاء کښې مشترك دی.[۳]
⑨ قاضی بيضاوی رحمه الله په شرح مصابيح کښې دا جواب ورکړې دې.چه دلته په دې موعوده څلورو کښې صرف د يو امر ذکر دې.په دې وجه چه شهادت وغيره دا پنځه واړه څيزونه د ايمان بالله تفسير دی.نو دا پنځه واړه څيزونه په ايمان بالله کښې دننه داخل دی.او ايمان بالله ددې موعوده اربعه څنې يو امر دې.[۴]

---

۱) شرح نووی علی صحيح مسلم(۳٤۱/۱) کتاب الإيمان باب الأمربالإيمان بالله تعالی .. وفتح الباری(۱۳۳/۱) وإکمال إکمال العلم للآبی(۹۳/۱)_
علامه سندهی رحمه الله هم تقريباً هم دا جواب کړې دې.بلکه دهغوی جواب ددې حضراتو دجواب په مقابله کښې لطيف هم دې.دهغوی دجواب حاصل دا دې.چه نبی ﷺ د ((أربع)) کوم نوم اخستې دی.دا په دې اعتبارسره دې.چه دهغه مامورات اربعه دی.په کوم کښې چه صرف وفدعبدالقيس نه بلکه ټول خلق شريك دی.اوهغه شهادت.اقامت صلاة ايتاء الزکاة او صوم د رمضان ده.البته په ايمانی څيزونوکښې يوڅيز بل هم دې.په کوم کښې چه فی الحال نورخلق شريك نه دی.يعنی اداء الخمس.چه دا دجهاد سره تعلق ساتی.اوچونکه دا خلق د کفارمضر په ګاوند کښې اوسيدل.اودجهاد سره دهغوی پيښه راتله.د دې وجې د اربع وينا نه پس نبی ﷺ د مامورات اربعة حکم ورکړو.اوبيا ئې د يوامرايمانی نور زيادت اوکړو. (حاشية السندی علی صحيح البخاری(۲۷/۱)
۲) إکمال إکمال المعلم للآبی(۹٤/۱)_
۳) فتح الباری(۱۳۳/۱)-
۴) المصدر السابق)-

دا جواب په ظاهره د امام بخاری رحمه الله د مذاق مطابق دې.ځکه چه دوی باب قائم کړې دې ،،أداء الخمس من الإيمان،، او دا باب هغه وخت ثابتيدې شی.کله چه پنځه واړه څيزونه د ايمان بالله تفسير اوګرځولې شی.او ،،أداء الخمس،، په ايمان بالله کښې داخل اوګنړلې شی.او اوس په حديث د جبرنيل په باب کښې امام بخاری رحمه الله فرمانيلی وو.،،وما بين النبی ﷺ لوفد عبدالقيس من الإيمان،،چه د هغې نه مقصود دا وو.چه دلته د ايمان په تفسير کښې نبی کريم ﷺ اقرار بالشهادتين او صلاة او صوم او زکاة ذکر کړی وو.چه دا اعمال دی.چه ددې نوم ،،اسلام،، دې. لکه څنګه چه په حديث د جبرنيل کښې هم دا امور د اسلام په تفسير کښې ذکر شوی دی.معلومه شوه.چه ايمان او اسلام متحد دی.دا مقصود هم هغه وخت حاصليدې شی.کله چه صلاة او صوم وغيره د ايمان په تفسير کښې داخل کړې شی.ګنی دا مقصود نشی حاصليدی.(١)

خو په دې باندې دا اشکال کيږی.چه بيا په موعوده امور اربعه کښې باقی درې امور چرته لاړل؟ قاضی بيضاوی رحمه الله دا اوونيل.چه باقی درې امور نسياناً. يا اختصاراً راوی حذف کړل.(٢)خو دا ډير بعيد او دتعجب نه ډک تاويل دې.چه آيا يو راوی هم داسې نه وو.چه د نبی کريم ﷺ پوره کلام ئې ياد کړې وې.او مکمل ئې بيان کړې وې؟ حالانکه په يو روايت کښې هم ددې مذکوره امورو نه علاوه د څه څيز پته نه لګی.(٣)

حضرت علامه شبيراحمد عثمانی رحمه الله فرمائی.که غور اوکړې شی.نو د امام بخاری رحمه الله او د عامو محدثينو په مذاق باندې دا جواب ممکن هم نه دې. ځکه چه ددوی په مذاق باندې ټول اعمال په ايمان کښې داخل دی.هم په دې وجه خو تاسو دا څيزونه د ايمان تفسير ګرځوئ.او امام بخاری رحمه الله ترجمه هم په دې بنا باندې قائم کړې ده.علامه عثمانی رحمه الله فرمائی.چه لکه څنګه په دې بنا باندې مونځ، روژه، زکاة او اداءالخمس دايمان تفسير ګنړئ.نو ددې نه علاوه نور چه کوم امور مذکور وی.ټول به د اعمالو څنې وی.او هغه ټول به دغه شان د ايمان تفسير وی.داسې به کوم يو څيز راځی.کوم چه د اعمالو نه علاوه وی.او د ايمان قسم جوړ شی.نو دا جواب نه معقول دې.او نه د محدثينو په مذاق باندې منطبق کيدې شی.(٤)

په دې ټولو جوابونو کښې د ټولو نه غوره جواب د حافظ ابن الصلاح رحمه الله دې.او ددوی نه پس د ابن بطال. قاضی عياض او امام نووی رحمهم الله دې.والله اعلم.

---

(١) فضل الباری(٥٥٣/١)_

(٢) فتح الباری(١٣٣/١)_

(٣) فضل الباری(٥٥٣/١)_

(٤) (المصدرالسابق)-

**په حدیث باب کښې د حج ذکر ولې نشته؟** دلته تاسو ګورئ چه نبی کریم ﷺ وفد عبدالقیس ته د ارکان خمسه نه صرف د څلورو تعلیم ورکړو خو ..حج.. چونکه پنځم امر دې.د هغې تعلیم ئې ورنکړو .د دې څه وجه ده؟ ددې جواب هسې خو دا هم ورکیدې شی.چه د حج ذکر اګرچه په حدیث باب کښې نشته.خو په بعضو نورو روایاتو کښې د ..حج.. ذکر هم شته.

لکه چه امام بیهقی رحمه الله په ،،السنن الکبری،، کښې د «أبوقلابة الرقاشی عن أبی زید الهروی، عن قرة، عن أبی جمرة» په طریق سره روایت نقل کړې دې.په هغې کښې د ،،وتحجوا البیت الحرام،، الفاظ هم دی.[1]

دغه شان په مسند احمد کښې د «أبان بن یزید العطار، عن قتادة عن سعید بن المسیب وعن عکرمة عن ابن عباس» په طریق سره روایت منقول دې.په هغې کښې دی.،،وأن یحجوا البیت،،[2]

خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.چه د بیهقی روایت شاذ دې.خکه چه په دې کښې خو یو دعدد ذکر نشته.حالانکه په ټولو روایاتو د عدد ذکر دې.ددې نه علاوه د ..قره.. په طریق سره شیخینو، د صحیحینو مستخرجینو، امام نسائی، ابن خزیمه او ابن خزیمه او ابن حبان رحمهم الله د روایت تخریج کړې دې.په دوی کښې یوکس هم د حج ذکر نه دې کړې.[3]

بیا ددې روایت په سند کښې دا خبره هم قابل دغور ده.چه په دې کښې ابو قلابه رقاشی دې.[4]ددوی په آخری عمر کښې حافظه متغیر شوې وه.[5]ممکن ده. چه دوی دا روایت ددې تغیر نه پس روایت کړې وی.[6]

دغه شان د مسند احمد په روایت کښې هم احتمال دې.چه دا محفوظ نه وی.[7] خکه چه حدیث د وفد عبدالقیس ډیرو حضراتو تخریج کړې دې.په هغې کښې ددې دوو روایتونو نه علاوه چرته هم د حج ذکر نشته.هم دا وجه ده.چه عالمانو د ..حج.. د عدم ذکر مختلف

---

[1] السنن الکبری للبیهقی(۱۹۹|٤) کتاب الصیام باب فرض صوم شهر رمضان)-

[2] مسندأحمد(۲۶۱|۱)-

[3] فتح الباری(۱۳٤|۱)-

[4] هوعبدالملک بن محمدبن عبدالله الرقاشی بفتح الراء وتخفیف القاف ثم معجمة أبوقلابة البصری یکنی أبا محمد وأبوقلابة لقب صدوق یخطئ تغیر حفظه لما سکن بغداد من الحادیة عشرة مات سنة ست وسبعین ومأتین وله ست وثمانون سنة تقریب التهذیب (ص.۳۶۵) رقم ٤۲۱۰) وانظر الکاشف للذهبی(۶۶۹|۱) رقم ۳٤۷۸ ) مع حاشیة السبط وتعلیقات الشیخ محمد عوامة)_

[5] تهذیب الکمال(٤۰٤|۱۸)-

[6] فتح الباری(۱۳٤|۱)_

[7] المصدرالسابق) قال الحافظ فی الفتح : وعلی تقدیر أن یکون ذکر الحج فیه محفوظاً فیجمع فی الجواب عنه بین الجوابین المتقدمین فیقال المراد بالأربع ما عد الشهادتین وأداء الخمس.. والله أعلم)-

توجيهات كړى دى.خو يو كس هم ددې روايتونو ذكر نه دې كړې.

① لكه چه قاضى عياض وغيره فرمائى.چه دحج د عدم ذكر وجه دا ده.چه دغه وخته پورې حج فرض شوې نه وو.دا ددې خلقو په رائې كښې صحيح ده.ځكه چه د حج فرضيت ددې حضراتو په نيز ۹ھ كښې شوې دې.(١)

② جمهور شافعى حضرات فرمائى.چه حج په ۶ھ كښې فرض شوې وو.نو ددوى د مسلك مطابق وئيلې شى.چه حج چونكه على الفور فرض نه دې.بلكه على التراخى فرض دې.په دې وجه نبى كريم ﷺ ددې ذكر اونكړو.(٢)

خوپه دې باندې اشكال دا دې.چه على التراخى فرض كيدو سره دا چرته لازميږى.چه د تعليم په وخت ددې ذكر اونكړې شي.بلكه پكار خو داسې ده.چه تعليم وركړې شى.او كله چه د عمل وخت راشى.عمل اوكړى.(٣)

③ دريم جواب دا وركړې شوې دې.چه ددوى د حج كولو هيڅ صورت نه وو.ځكه چه د مضر كافران حائل وو.په دې وجه نبىكريم ﷺ دحج ذكر اونه فرمائيلو.(٤)

خو په دې باندې اشكال دا دې.چه دا څه ضرورى ده.چه ټول عمر د مضر قبيلې حائل وى.بلكه ددوى دا وينا هم صحيح نه ده.چه دمضر كفار حائل وو.ځكه چه حج خو په اشهر حرم كښې كيږى.او پخپله د عبدالقيس قبيلې حضرات تصريح كوى.چه مونږ په اشهر حرم كښې په امن يو.(٥)

④ څلورم جواب بعضو حضراتو دا وركړې دې.چه حج چونكه مشهور څيز دې.د شهرت په وجه ئې ددې ذكر اونه فرمائيلو.(٦)خودا ډيره كمزورې خبره ده.ځكه چه د حج نه هم زيات مشهور شهادتين، اقامتِ صلاةِ، ايتاءِ زكاةِ او صوم رمضان دى.نو دا ذكر كول او حج پريخودل صحيح نه معلوميږى.(٧)

⑤ پنځم جواب دا وركړې شوې دې.چه نبى كريم ﷺ دلته صرف په هغه اوامرو او افعالو باندې اكتفاء كړې ده.د كومو كول چه هغوى دپاره فى الحال ممكن وو.او په كومو عمل كولو سره چه دوى د جنت مستحق جوړيدې شو.د ټولو اوامرو او افعالو ذكر مقصود نه وو.ځكه چه دوى هم دا سوال كړې وو.چه ،،مرنا بأمر فصل نخبربه من وراءنا وندخل به الجنة،،_

---

(١) فتح البارى(١٣٤/١)_
(٢) المصدرالسابق)-
(٣) المصدرالسابق)_
(٤) المصدرالسابق)_
(٥) المصدرالسابق)-
(٦) المصدرالسابق)_
(٧) المصدرالسابق)-

ددې تائيد ددې خبرې نه هم كيږى.چه نبى كريم ﷺ ددوى په وړاندې كوم منهيه امور ذكر اوفرمائيل په هغې كښې صرف دهغه څيزونو خاص طور باندې ذكردې.په كومو كښې چه هغوى مبتلا وو.ګنې په منهياتو كښې د مذكوره څيزونو نه زيات حرام څيزونه هم شته.(١)

په دې ټولو جوابونو كښې د ټولو نه راجح روميې جواب دې.چه حج دغه وخت پورې فرض شوې هم نه وو.خو دا جواب په دې صورت كښې صحيح كيدې شي .چه د حج فرضيت ۹هـ كښې يا د وفد راتلو نه پس اومنلې شى. دويم غوره جواب دا آخرى جواب دې.چه نبى كريم ﷺ د ټولو افعالو او منهياتو استقصاء نه ده فرمائيلې.بلكه ددوى د حال په مناسبت سره ئې فى الحال د ممكن افعالو او منهياتو ذكر فرمائيلې دې.

او كه د مسنداحمد حديث محفوظ وى.نو بيا ددې ټولو تكلفاتو ضرورت هم نه راپيښيږى.والله اعلم.

**قوله: وَنَهَاهُمْ عَنْ أَرْبَعٍ عَنِ الْحَنْتَمِ وَالدُّبَّاءِ وَالنَّقِيرِ وَالْمُزَفَّتِ وَرُبَّمَا قَالَ الْمُقَيَّرِ:** او نبى كريم ﷺ دوى د څلورو څيزونو نه منع كړل.شنه چاټئ،دد (وچ) كدو د ګريدلى لرګى لوخې،او د تيلو لوخې،

**قوله: حنتم:** [بفتح الحاء وإسكان النون وفتح التاء المثناة من فوق ثم الميم]

امام نووى رحمه الله ددې په تفسير كښې شپږ اقوال نقل كړى دى:

① د ټولو نه صحيح او قوى قول دا دې.چه شين رنګ چاټئ ته وئيلې شى.دا قول په صحيح مسلم كښې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه منقول دې.هم دا د حضرت عبدالله بن مغفل رضي الله عنه قول دې.اكثرو عالمانو، ډيرو لغوى حضراتو، او محدثينو او فقهاء هم دا اختيار كړې دې.(٢)

② دويم قول دا دې.چه ،،حنتم،، هرقسمه چاټئ ته وئيلې شى.دا د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ، د سعيد بن جبير، او ابو سلمه رحمهما الله نه منقول دې.(٣)

③ دريم قول دا دې.چه دا مخصوص قسم چاټئ وې.چه دا به دمصر نه راوړلې كيدې.دا د حضرت انس رضي الله عنه نه نقل دى.ابن ابى ليلى هم د ،،حنتم،، يو تفسير هم دا بيان كړې دې.البته دوى د سور رنګ قيد لګولې دې.(٤)

④ څلورم قول دا دې.چه دا د سور رنګ خاص چاټئ دى.چه ددې خوله په يو اړخ كښې وى.په دې كښې به د مصر نه شراب درآمد (راغوښتلې) كولې شو.دا قول د حضرت عائشه رضي الله عنها نه منقول دې.(٥)

---

(١) فتح البارى (١٣٤/١)-

(٢) شرح نووى (٣٤/١) كتاب الإيمان باب الأمر بالإيمان بالله تعالى ورسوله ﷺ)_

(٣) المصدرالسابق)_

(٤) المصدرالسابق)_

(٥) المصدرالسابق)_

⑤ د ابن ابى ليلى رحمه الله نه يوتفسير هم دا منقول دې چه هغه چاټئ چه د هغې خولې په ډډه کښې وې او په دې کښې به طائف نه شراب درآمد کولی شو.بعضو خلقو به په دې کښې نبيذ تيارول.چه په دې به شرابو سره مشابهت کيدو. (1)

⑥ شپږم قول دا دې.چه دا خاص قسم چاټئ وې.چه دا به خاوره، ويختنه، او وينې ملاوولو سره تيارولې شوې.دا د عطاء رحمه الله نه منقول دې.(2)

**قوله: الدباء:** کدو چه به کله اوچ شو.نو ددې د مينځ نه به ئې زړی (او کچره) اوبنکله.او بعضو وختونو کښې به ئې د کچه نه زړی اوبنکل.او دا به ئې اوچول.او په دې کښې به ئې نبيذ تيارول. (3)

**قوله: النقير:** دا د ،،منقور،، په معنى کښې دې.د کجورې بيخ (تنه) به ئې کنستله.او لوخې به ئې جوړولو.هغې ته ،،نقير،، وائی.(4) بعضې حضرات وائی.چه مطلقاً لرګې يا د ونې تنه به ئې کنستله.او لوخې به ئې جوړولو.هغې ته ،،نقير،، وائی.(5)

**قوله: المزفت:** هغه لوخې په کوم چه ،،زفت،، لګولې شوی وی.(6) ،،زفت،، د تارکولو پشان يو څيز وو.چه دا به ئې په لوخو باندې لګول.او ددې مسامات (او نری سوری) به ئې بندول.

په روايت باب کښې او دغه شان په بعضو نورو رواياتو کښې ،،المقير،، هم راغلې دې. ،،مقير،، په کوم چه قار، يا ،قير،لګولې شوی وی.دا هم د تارکولو پشان يو تور څيز دې.

په مذکوره تولو لوخو کښې به چونکه نبيذ تيارولې شو.او په دې کښې به سکر ډير زر راتلو.په دې وجه د حرمت مسکرات لاندې په دې لوخو کښې د نبيذ جوړولو نه په ابتداء د اسلام کښې منع کړې شوې وه.ددې نه پس هر لوخې کښې د نبيذ جوړولو اجازت ورکړې شو.په دې شرط چه دې کښې دومره وخت ايسار نکړې شی.چه سکر پيدا شی.د ترمذی شريف حديث دې.((وإنى كنت نهيتكم عن الظروف، وإن ظرفاً لا يحل شيئاً ولا يحرمه، وكل مسكر حرام))(7)

دغه شان ابن حبان رحمه الله د اشج عصرى رضى الله عنه نه روايت نقل کړې دې.((فقال النبى صلى الله عليه وسلم إن الظروف لا تحل ولا تحرم ولكن مسكر حرام.....))(8)

---

(1) المصدر السابق)_
(2) المصدر السابق)_
(3) شرح نووی (۳٤/۱۱)-
(4) أعلام الحديث (۱۸۶/۱۱)_
(5) شرح نووی (۳٤/۱۱)_
(6) أعلام الحديث (۱۸۶/۱۱)-
(7) جامع ترمذی(۹/۲) ابواب الأشربة باب ما جاء فى الرخصة أن ينتبذ فى الظروف)_
(8) مواردالظمآن (ص.۳۳۸) كتاب الأشربة باب ما جاء فى الأوعية رقم ۱۳۹۳)_

د حضرت رسيم عبدي رضي الله عنه روايت په مسند احمد کښې دې چه کله د قبيله عبدالقيس خلقو د نبيذ دنه استعمالولو په وجه د خيټې د خرابيدو او بدهضمۍ. او ددې په بنياد باندې د صحت خرابيدو شکايت اوکړو نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل «اشربوا فيما بدالكم ولا تشربوا مسكراً»(١)»، والله سبحانه وتعالى أعلم وعلمه أتم وأحكم.»_

**قوله** وَقَالَ احْفَظُوهُنَّ وَأَخْبِرُوا بِهِنَّ مَنْ وَرَاءَكُمْ: او نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه دا خبرې يادې کړئ. او ستاسو شاته چه کوم خلق دی. يا ستاسو نه روستو چه کوم ستاسو راتلونکې اولاد دې. هغوی ټولو ته دا خبرې اوښايئ.

ددې نه معلومه شوه. چه چاته څومره علم وی. هغه له د هغې تبليغ کول پکار دې. دا ضروری نه ده. چه کوم سړې د دين دټولو امورو عالم وی. هم هغه تبليغ کولې شی. بل څوک نشی کولې! والله اعلم.

## (٣٩) بَاب مَا جَاءَ أَنَّ الأَعْمَالَ بِالنِّيَّةِ وَالحِسْبَةِ وَلِكُلِّ امْرِءٍ مَا نَوَى

فَدَخَلَ فِيهِ الإِيمَانُ وَالوُضُوءُ وَالصَّلاَةُ وَالزَّكَاةُ وَالحَجُّ وَالصَّوْمُ وَالأَحْكَامُ وَقَالَ اللَّهُ تَعَالَى ﴿قُلْ كُلٌّ يَعْمَلُ عَلَى شَاكِلَتِهِ﴾ (الإسراء: ٨٤) عَلَى نِيَّتِهِ ((نَفَقَةُ الرَّجُلِ عَلَى أَهْلِهِ يَحْتَسِبُهَا صَدَقَةٌ)) وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ((وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ)) [ر: ٢٠٤٧]

علامه عيني رحمه الله فرمائي. چه ددې باب ماقبل باب سره مناسبت دا دې. چه په ماقبل باب کښې د هغه اعمالو ذکر دې. کوم چه د جنت د دخول سببونه دی. اوس په دې باب سره دا ښودل مقصود دی. چه يو عمل به هغه وخت د عمل وئيلو قابل وی. کله چه په دې کښې نيت او اخلاص وی. ګنی هغه به نه د عمل وئيلو مستحق وی. او نه په دې باندې د جنت دخول مرتب کيدې شی.(٢)

**د ترجمة الباب مقصد:** ابن بطال رحمه الله فرمائي. چه ترجمة الباب سره د امام بخاری رحمه الله غرض د هغه مرجئه ترديد دې. چه هغوی وائي. «الإيمان قول باللسان دون عقد القلب» يعنی صرف ژبې سره د «لا إله إلا الله» وئيلو نوم ايمان دې. زړه سره يقين او تصديق ضروری نه دې.(٣)

حضرت شيخ الهند رحمه الله فرمائي. چه امام بخاری رحمه الله د ايمان، اعمال، اجتناب عن المعاصی او ايمان سره متعلقه دټولو امورو نه فارغ شو. نو اوس ئې دټولو نه په آخر کښې دوه بابونه قائم کړی دی. په هغې کښې دا رومبې باب دې. ددې غرض دا دې. چه وړاندې ذکر شوی ټول

---

(١) مسند أحمد (٢/٤١٨)_

(٢) عمدة القاری (١/٣١٢)_

(٣) عمدة القاری (١/٣١٢) وشرح الکرمانی (١/٢١٤) وانظر أيضاً المتواری علی تراجم أبواب البخاری (ص: ٥٦)_

اعمال خير، چه په هغې كښې ايمان هم داخل دې.د هغې مدار او منشاء په خالص لوجه الله نيت باندې ده.هم دغه شان معاصى نه اجتناب. او دا پريخودل هغه مطلوب دى.د كوم باعث چه د الله تعالى رضا لټول وى.د صالح او صادق نيت نه بغير هيڅ يو عمل خير مفيد نه دې.او نه هغه په طاعت كښې شمارلې كيږى.په دې وجه ددې اهتمام د ټولو نه اهم امر دې والله اعلم (١)

حضرت گنگوهى رحمه الله فرمائى.چه د امام بخارى رحمه الله غرض په دې باب سره دا بيانول دى.چه د اعمالو د ثواب مدار په نيت باندې دې.(٢)

حضرت شيخ الهند رحمه الله ددې په تشريح كښې فرمائى.چه امام بخارى رحمه الله په ترجمه كښې ،،حسبة،، راوړلو سره اوښودل.چه په دې سره مجرد اراده سره د اخلاص نه مراد ده.يعنى اعمال صرف په نيت او حسبة او د ثواب په اميد باندې كولې شى.او د ثواب اميد هغه وخت كيدې شى.كله چه اعمال خالص لوجه الله وى.چونكه امام بخارى رحمه الله د نيت تفسير ،،حسبة،، سره كړې دې.او حسبه احتساب ثواب طلب كولو ته وائى.نو معلومه شوه.چه پخپله د امام بخارى رحمه الله په نيز د ،،إنما الأعمال بالنيات،، مطلب ،،إنما ثواب الأعمال بالنيات،، دې.او هم دا حنفيه حضرات وائى.(٣)

دا هم ممكن ده.چه د امام بخارى رحمه الله غرض په دې باب سره دا وى.چه تر اوسه پورې دوى چرته د مرجئه په ترديد كښې. او كله د معتزله او خوارجو په ترديد كښې تراجم قائم كړل.او حديثونه ئې ذكر كړل.اوس ددې ايمانى امورو بيانولو نه د فارغ كيدو نه پس دا دواړه بابونه دوى په دې خبره د تنبيه په غرض سره قائم كړل.چه په دې ټولو امورو كښې زمونږ نيت خالص دې.دچا توهين مقصود نه دې.او نه خپل شهرت مقصود دې.بلكه په ،النصح لكل مسلم،، باندې عمل مقصود دې.(٤)والله اعلم.

**د ترجمة الباب تحليل:** دلته چه امام بخارى رحمه الله كوم باب قائم كړې دې.د هغې درې اجزاء دى.،،أن الأعمال بالنية،، ،،والحسبة،، او،، ولكل امرئ ما نوى،،_ په دې كښې رومبئ حصه او دريمه حصه د يو حديث ټكړې دى.او د دويمې حصې تعلق دې حديث سره نه دې.بلكه دا د حضرت ابو مسعود بدرى رضى الله عنه د حديث «إذا أنفق الرجل على أهله يحتسبها فهو له صدقة» په دې كښې د ،،يحتسبها،، د لفظ نه ماخوذ دې.كوم چه په دې باب كښې راروان دې.(٥)

---

(١) الأبواب والتراجم لصحيح البخارى(ص.٣٩)-

(٢) لامع الدرارى(٦١٠/١)-

(٣) حاشية لامع الدرارى(٦١٠/١)_

(٤) إمدادالبارى(٧٩٨/٤)-

(٥) فتح البارى(١٣٨/١) وعمدة القارى(٣١/١)_

دلته سوال پيدا کيږي.چه د ,,الحسبة،، عطف په ,,باب ما جاء أن الأعمال بالنية،، کښې ,,النية،، باندې دې.چونکه معطوف عليه د ,,ماجاء،، ده.نو معطوف به هم ددې لاندې وی.
نو ,,ماجاء،، چه لکه څنګه ,,الأعمال بالنية،، ته شامل دې.دغه شان به ,,الحسبة،، ته هم شامل وی.ددې تقاضه دا ده.چه دا د يو حديث اجزاء وی.حالانکه د يو حديث اجزاء نه دی؟

ددې يو جواب دا دې.چه ددې دواړو د ,,ماجاء،، لاندې داخليدل منو.خو د دواړو په ټولو احکامو کښې مشترک کيدل لازم نه دی.چه دا منل لازمی شی.چه دواړه د يو حديث اجزاء دی.(۱)

بيا سوال دا دې.چه هرکله ,,الأعمال بالنية،، او ,,لکل امرئ ما نوی،، د يو حديث اجزاء دی.نو دا دواړه يوځائې راوړل پکار وو.,,والحسبة،، د دواړو نه مؤخر کول پکار وو.داسې ئې ولې اونکړل؟

ددې① يو جواب دا دې.چه د ظاهر تقاضا هم دا ده.چه هم دغه شان ئې کړې وې.خو چونکه ,,الحسبة،، د ,,احتساب،، نه ماخوذ دې.او ددې معنی د اخلاص ده.نو ددې ذکر د ,,نيت،، نه پس زيات مناسب دې.څکه چه ,,نيت،، هم هغه معتبر او باعث د ثواب دې.په کوم کښې چه اخلاص وی.(۲)

② دويم جواب دا دې.چه دلته امام بخاری رحمه الله درې تراجم قائم کړی دی.رومبی ترجمه ,,إن الأعمال بالنية،، ده.دويمه ترجمه د ,,الحسبة،، ده.او دريمه ترجمه ,,ولکل امرئ ما نوی،، ده.او د دريو واړو تراجمو دپاره ئې د دريو حديثونو تخريج کړې دې. د حضرت عمر رضی الله عنه حديث د ,,الأعمال بالنية،، ترجمه باندې دې.د حضرت ا بومسعود رضی الله عنه حديث د ,,الحسبة،، ترجمه باندې او د حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه د حديث تخريج د ,,ولکل امرئ ما نوی،، ترجمې مطابق دې.

اوس ئې که ,,والحسبة،، مؤخر کړې وې.او داسې ئې وئيلې وې.چه ,,باب ما جاء أن الأعمال بالنية، ولکل امرئ ما نوی والحسبة،، نو په دريو تراجمو چه کومه تنبيه ده.هغه به فوت کيدله.او صرف دوه تراجم به پوهه کښې راتلل.رومبی ترجمه به ,,الأعمال بالنية ولکل امرئ ما نوی،، وه.څکه چه دې دواړو اجزاء باندې به د حضرت عمر رضی الله عنه حديث کافی کيدو.او بيا به دويمه ترجمه ,,الحسبة،، وه.د دريو حديثونو د تخريج په ذريعه چه په دې دريو تراجمو کومه تنبيه

---

(۱) عمدة القاری(۳۱/۱۱)_
(۲) عمدة القاری(۳۱/۱۱)_

مقصود وه.هغه به فوت كيدله په دې وجه ،،الحسبة،،د رومبئ ترجمې نه پس ذكر كړې شوې دې (١) والله اعلم

**قوله فَدَخَلَ فِيهِ الْإِيمَانُ وَالْوُضُوءُ وَالصَّلَاةُ وَالزَّكَاةُ وَالْحَجُّ وَالصَّوْمُ وَالْأَحْكَامُ**:نو په عمل كښې ايمان، اودس، مونځ، زكاة، حج، روژه، او ټول معاملات داخل دى.

امام بخارى رحمه الله په ماقبل باندې تفريع كولو سره تصريح فرمائى چه ،،اعمال،،دخپل عموم په وجه ايمان، اودس، صلاة، زكاة، حج، صوم، او ټولو احكامو ته شامل دې.نو په دې ټولو كښې د ثواب نيت كيدل پكار دې.دلته تاسو ګورئ چه امام بخارى رحمه الله په ايمان كښې هم د نيت اعتبار كړې دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه دا د امام بخارى رحمه الله او دهغه خلقو په مسلك باندې صحيح دې.څوك چه اعمال په ايمان كښې داخل ګڼړى.ګويا د امام بخارى رحمه الله مطلب دا دې.چه ايمان د قول او فعل نوم دې.خو فعل هغه وخت د ايمان جزء جوړيدې شى.كله چه په دې كښې نيت او احتساب اوموندې شى.او په خلوص د زړه سره دا كار شوې وى.كه دنفاق په وجه يو كار اوكړې شى.نوهغه د ايمان جزء نه دې.(٢)

حافظ رحمه الله فرمائى.چه د كومو خلقو په نيز ايمان په معنى د ،تصديق، دې .دهغوى په نيز د نيت ضرورت هم نشته.لكه څنګه چه د قلب (زړه) نورو اعمالو.مثلاً خشيتِ خداوندى، محبتِ الهى، د خالق عظمت د دپاره چه د نيت ضرورت نه وى.څكه چه نيت خو په رياء او اخلاص كښې د فرق كولو دپاره وى.او كله چه سړې د الله تعالى تصديق كوى.نو تصديق خو د الله تعالى نه سوا د بل چا شته هم نه.نو په دې كښې د نيت ضرورت نشته.(٣)

خو وئيلې شى.چه د تصديق په وخت كه د ثواب د نيت استحضار اوكړې شى. چه مونږ د الله سبحانه وتعالى د وحدانيت، په ټولو صفاتو د كمال سره د متصف كيدو، او دنقصان د ټولو شوائبو نه د منزه كيدو تصديق كوو.نو الله تعالى به په دې باندې اجر وثواب راكوى.په دې اعتبار سره تصديق كښې هم نيت كښې څه باك نشته.

ددې نه پس امام بخارى رحمه الله د اودس ذكر كړې دې.چه په دې كښې هم نيت ضرورى دې.د اودس مسئله وړاندې تيره شوې ده.(٤) دلته په خلاصه باندې پوهه شئ. چه د اودس دوه حيثيتونه دى.① يو داچه چه دا د صلاة مفتاح جوړيدو دپاره اوكړې شى.② او يو دا چه د اجر وثواب حاصلولو دپاره اوكړې شى.ـ كه د اجر وثواب حاصلولو دپاره اوكړې شى.نو بې شكه چه نيت ضرورى دې.خو كه د صلاة مفتاح جوړولو دپاره اوكړې شى.نو بيا په دې كښې د ماءِ طهور استعمالولو ضرورت دې.د نيت ضرورت نشته.څكه چه ماءِ طهور مطهر

---

(١) عمدة(٣١١/١، ٣١٢)_

(٢) فتح البارى(١٣٥/١)_

(٣) المصدر السابق)-

(٤) كشف البارى(٢٥٤/١، ٢٦٩)_

دی دا به اندامونو ته طهارت ورکړی.او د مفتاح صلاة جوړیدو په دې عمل کښې به صلاحیت پیدا شی. علی الاطلاق اودس کښې دنیت ضرورت نشته.(۱)
بیا ئې اوفرمائیل چه مونځ هم په دې کښې داخل دې.په دې کښې د نیت په اشتراط باندې اتفاق دې.دهیڅ چا اختلاف نشته.(۲) وې فرمائیل چه په زکاة کښې هم نیت شرط دې.یاد ساتئ! چه په زکاة کښې د نیت شرط کیدل. د آئمه اربعه او جمهور امت په نیز باندې متفق علیه دی.البته د امام اوزاعی رحمه الله نه منقول دی.چه په زکاة کښې نیت شرط نه دې.لکه څنګه چه د عامو دیونو (قرضونو) په اداکولو کښې نیت شرط نه دې.(۳)
د جمهورو په نیز زکاة اداکولو دپاره نیت شرط دې.ځکه چه دا یو عبادت دې.او په عباداتو کښې فرائض هم شته.او نوافل هم شته.نو د تعین ضرورت به وی.چه دا په نیت سره ممکن دې.ترکومې پورې چه دین اداکولو باندې د قیاس تعلق دې.نو دا ځکه صحیح نه دې.چه دین ادا کول څه مستقل عبادت نه دې.(۴)والله اعلم.
البته بعضو محققینو عالمانو حضرات د امام اوزاعی د قول توجیه کړې ده. چه ددوی مطلب دا دې.که د صدقة مطلقة نیت سره زکاة ورکړې شی.نو زکاة به ادا شی.خاص د مفروضه زکاة نیت ضروری نه دې.لکه څنګه چه امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی.که یو سړې خپل ټول مال صدقه کړی.او د زکاة ادا کولو نیت اونکړی. نو ددې په ضمن کښې به مفروضه زکاة هم ادا شی.(۵)حالانکه د شافعیه حضراتو په نیز نه اداکیږی.
وریسې امام بخاری رحمه الله فرمائی.چه حج هم په هغه اعمالو کښې داخل دې.په کوم کښې چه نیت شرط دې.په حج کښې د نیت په اشتراط باندې د ټولو اتفاق دې.البته په یو مقام باندې د حج د نیت په معتبر کیدو کښې اختلاف دې.او هغه دا دې.چه یو سړی خپل حج نه وی کړې.او د بل د طرفه حج بدل کول غواړی.د امام شافعی او امام احمد رحمهماالله په نیز دده د نیت هیڅ اعتبار نشته.بلکه دا حج به هم دده د طرفه واقع کیږی.(۶)
دا حضرات په دلیل کښې د شُبرمه قصه پیش کوی.«عن ابن عباس أن النبی ﷺ سمع رجلاً یقول: لبیك عن شبرمة، قال من شبرمة، قال: أخ لی أو قریب لی، قال: حججت عن نفسك؟ قال: لا، قال: حج عن

---

(۱) إيضاح البخاری(۴۲۸/۱۴، ۴۲۹)_
(۲) فتح الباری(۱۳۵/۱) وعمدة القاری(۳۱۳/۱)-
(۳) المغنی لابن قدامة (۲۶۴/۲) كتاب الزكاة مسألة:قال ولايجوز إخراج الزكاة إلا بنية رقم ۱۷۵۸)_
(۴) المصدر السابق)-
(۵) هدايه (۱۶۸/۱) كتاب الزكاة)-
(۶) المغنی لابن قدامة (۱۰۲/۳،۱۰۳) كتاب الحج مسألة قال ومن حج عن غيره ولم يكن حج عن نفسه رد ما أخذ وكانت الحجة عن نفسه رقم ۲۲۴۴)-

نفسك، ثم حج عن شبرمة))(۱) د ابن ماجه الفاظ دى: ((فاجعل هذه عن نفسك ثم حج عن شبرمة))(۲)

امام مالك او امام ابوحنيفه رحمهما الله فرمائى.چه حج به د آمر د طرفه واقع كيږى.(۳)ددې حضراتو دليل د خثعميه د حديث اطلاق دې.(۴)په دې كښې نبى كريم ﷺ دا تپوس نه دې كړې.چه تا مخكښې حج كړې دې.اوكه نه دې كړې. بلكه مطلقاً ئې د حج حكم وركړې وو.

بهرحال د شُبرمه د واقعې په لحاظ سره حنفيه حضراتو كښې صاحب د بدائع وغيره فرمائى.چه دخپل حج كولو نه بغير حج بدل كول مكروه دى. (۵) والله اعلم.

ددې نه پس امام بخارى رحمه الله د صوم ذكر كړې دې.چه په دې كښې هم نيت شرط دې.د صوم په باره كښې د ائمه اربعه او جمهورو اتفاق دې.چه نيت شرط دې.البته عطاء ، مجاهد او زفر رحمهم الله فرمائى.كه د رمضان مياشت وى.او روژه نيونكې صحت مند او مقيم وى.نو بيا د نيت ضرورت نشته.ځكه چه رمضان كښې نفل صحيح نه دى.نو د نيت ضرورت نشته.

د حفنيه حضراتو په نيز نيت خو د نورو امامانو پشان ضرورى دې.خو د رمضان تعين لازمى نه دې.تردې كه په رمضان كښې د قضاء، نذر، يا تطوع په نيت سره هم كه روژه اونيسى.نو د فرض د طرفه به اداكيږى.د نفل يا قضاء، او د نذر د طرفه به نه ادا كيږى.(۶) والله اعلم.

په آخر كښې امام بخارى رحمه الله فرمائى.،،والأحكام،، يعنى په نورو احكامو كښې هم نيت ضرورى دې.علامه كرمانى رحمه الله فرمائى.چه په دې كښې ټول معاملات داخل دى.نو كه د قصد نه بغير د سبقت لسانى په طور باندې ،،بعتُ،، ،،رهنت،، ،،طلقت،، او ،،نكحت،، اووائى.نو په دې كښې به يوه معامله هم صحيح نه وى. (۷)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.چه په ،،احكام،، كښې هغه ټول معاملات داخل دى.په كومو كښې چه د محاكمې ضرورت راځى.نو په بيوع، نكاح، اقرار وغيره كښې ټولو كښې به د نيت ضرورت وى.(۸) خو علامه عينى رحمه الله په هغه حضراتو باندې رد كړې دې.او ثابته كړې

---

۱) سنن أبى داود كتاب المناسك باب الرجل يحج عن غيره)_

۲) سنن ابن ماجه (ص،۲۰۸) كتاب المناسك باب الحج عن الميت)_

۳) بدائع الصنائع (۲\۲۱۳) والمغنى لابن قدامة (۳\۱۰۳)-

۴) عن عبدالله بن عباس رضى الله عنهما قال كان الفضل بن عباس رضى الله عنهما رديف رسول الله ﷺ وجاءته إمرأة من خثعم تستفتيه فجعل ينظر إليها وتنظر إليه فجعل رسول الله ﷺ يصرف وجه الفضل إلى الشق الآخر فقالت يارسول الله ﷺ إن فريضة الله عزوجل على عباده فى الحج أدركت أبى شيخاً كبيراً لايستطيع أن يثبت على الراحلة أفأحج عنه؟ قال نعم وذلك فى حجة الوداع سنن أبى داود كتاب المناسك باب الرجل يحج عن غيره)_

۵) بدائع الصنائع (۲\۲۱۳)-

۶) عمدة القارى(۱\۲۱٤)_

۷) شرح الكرمانى(۱\۲۱۱)-

۸) فتح البارى(۱\۱۳۶)-

نې ده.چه دومره توسع چه په ټولو احکامو کښې نيت شرط وی.دا دچا په نيز هم نشته.([1])
علامه ابن المنير رحمه الله يوه قاعده ذکرکړې ده.چه نيت په کوم قسم څيزونو کښې شرط دې.او په کومو کښې شرط نه دې.هغه فرمائی چه د کومو اعمالو نه مقصود يوه داسې فائده وی.چه هغه آجله، مستقبله او مطلوبه فی الآخرة وی.نو هلته بالاتفاق نيت شرط دې.او د کوم چه فائده عاجله مقصود وی.هغې کښې نيت شرط نه دې.البته که ددې سره څه داسې خبره ملحوظ وی.چه په هغې باندې ثواب مرتب کيږی.لکه مثلاً يوکس کپړه وينځی.چه پاکه شی او صفا ستره کپړه واغوندی.اوکه کپړې وينځلو سره سره دا نيت اوکړی.چه پاك صفا کپړې اغوستل سنت دی.خلق د تکليف رسولو نه بچ کول دی.نو په دې صورت کښې به ثواب حاصليږی.او ددې ثواب حاصلولو دپاره به نيت شرط وی.
او بعضې اعمال داسې دی.چه هغې کښې اختلاف دې.چه فائده عاجله مقصود ده.اوکه فائده آجله. هم ددې اختلاف په وجه بعضو اعمالو کښې اختلاف شوې دې.چه نيت ضروری دې اوکه نه؟ ([2]) والله اعلم.
خو علامه عينی رحمه الله دا قاعده منقوض ګرځولې ده.هغه فرمائی.چه تلاوت د قرآن، اذان او نور اذکار وغيره داسې اعمال دی.چه په دې سره فائده آجله مطلوبه فی الآخرة مقصود ده.حالانکه بغير د څه اختلاف نه په دې اعمالو کښې نيت شرط نه دې.دغه شان بيع، رهن، طلاق او نکاح وغيره اعمالو نه فائده عاجله مراد ده.خو ددوی د اصل مطابق نيت نه بغير په دې کښې يو څيز هم صحيح نه دې.([3]) والله اعلم.
**نوټ:** په کومو کومو څيزونو کښې نيت ضروری دې؟ او په کومو څيزونو کښې ضروری نه دې؟ په دې سلسله کښې مونږ وړاندې بحث کړې دې.([4]) ،،فارجع إليه إن شئت،،۔

**قوله: وَقَالَ اللَّهُ تَعَالَى ﴿قُلْ كُلٌّ يَعْمَلُ عَلَى شَاكِلَتِهِ﴾:** د الله تعالی ارشاد دې...اووايه! چه هر سړې پخپله طريقه يعنی پخپل نيت باندې عمل کوی..
علامه کرمانی رحمه الله په ،،وقال الله تعالی،، کښې ،،واو،، حاليه ګرځولې دې.يعنی ،،والحال أن الله تعالی قال......،،([5])حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی دا هم ممکن ده.چه دا ،،واو،، په معنی د ،،مع،، وی.مطلب به دا وی.،،مع أن الله تعالی قال.....،،([6])
خو علامه عينی رحمه الله ددوی دواړو ترديد کولو نه پس دوه احتماله ذکرکړی دی: ① يو دا چه

---

[1] عمدة القاری(۲۱۴۱۱)۔
[2] فتح الباری(۱۳۶۱۱) وعمدة القاری(ت ۳۱۴۱۱)-
[3] عمدة القاری(۳۱۴۱۱)-
[4] کشف الباری(۲۶۶۱۱، ۲۶۸)۔
[5] شرح الکرمانی(۲۱۱۱۱)-
[6] فتح الباری(۱۳۶۱۱)۔

دا ..واو.. عاطفه وى.او معطوف عليه محذوف وى.تقدير د عبارت به دا وى. ((فدخل فيه الإيمان.....و.....لأنه ﷺ قال: الأعمال بالنية، وقال الله تعالى: ﴿قُلْ كُلٌّ يَعْمَلُ عَلَىٰ شَاكِلَتِهِ﴾ (٢) دويم احتمال دا دې.چه دا ..واو.. په معنى د لام تعليل وى لكه څنګه چه د علامه مازرى رحمه الله نه منقول دى.چه ..واو.. په معنى د لام تعليل هم استعماليږى.په دې صورت كښې به مطلب دا وى. ((فدخل فيه الإيمان وأخواته، لقوله تعالى ﴿قُلْ كُلٌّ يَعْمَلُ عَلَىٰ شَاكِلَتِهِ﴾ ))[1] والله اعلم.

بيا د ،،شاكلته،، تفسير دلته امام بخارى رحمه الله په ..نية.. سره كړې دې.هم دا تفسيرد حضرت حسن بصرى، قتاده، او معاويه بن قره مزنى رحمهم الله هم منقول دې. حالانكه امام مجاهد رحمه الله ددې تفسير په ..طبيعت..او ..حدت.. سره كړې دې.ابن زيد رحمه الله په ..دين.. سره، او مقاتل رحمه الله ..جبلت.. سره كړې دې.او د امام فراء رحمه الله نه منقول دى.((طريقته و منهبه الذى جبل عليه)) دحضرت ابن عباس رضى الله عنهما نه ،،ناحيته،، منقول دې.هم دا د ضحاك رحمه الله قول دې.[2]

بهرحال د ،،قل كل يعمل على شاكلته،، مطلب دا دې.چه هرسړى كه هغه كافر وى اوكه مؤمن وى.معرض وى اوكه مقبل وى.پخپله خپله طريقه، نيت.طبيعت او مذهب باندې روان وى.او په هغې كښې لګيا وى. ﴿فَرَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَنْ هُوَ أَهْدَىٰ سَبِيلًا﴾ (الاسراء:٨٤) خودا ياد ساتئ:چه د الله تعالى د علم محيط نه دهيڅ يو سړى هيڅ يو عمل بهر نشى كيدې.هغه د هر يو د عمل طريقه، او حركات او سكنات برابر ګورى.او ښه پوهيږى.چه كوم يوكس څومره سيدها روان دې.او په كوم كس كښې څومره كوږوالې دې.او څومره په كږه لاره دې.هر يو سره به د هغه موافق معامله كوى.[3]

ددې تفصيل نه دا هم معلومه شوه.چه د وقال الله تعالى: ﴿قُلْ كُلٌّ يَعْمَلُ عَلَىٰ شَاكِلَتِهِ﴾ ..على نيته.. تعلق ترجمة اولى ،،أن الأعمال بالنية،، سره دې.

**قوله**: <u>نَفَقَةُ الرَّجُلِ عَلَىٰ أَهْلِهِ يَحْتَسِبُهَا صَدَقَةٌ</u>: د سړى پخپل اهل وعيال باندې د احتساب په نيت سره خرچ كول صدقه ده.

ددې تعلق دترجمې دويم جزء ،،والحسبة،، سره دې.مطلب دا دې.چه سړې به عمل كوى.او د ثواب حاصلولو د نيت استحضار به كوى.نو دده دا عمل به صدقه حسابيږى. حالانكه دې د خپل اهل وعيال د كفالت هسې هم ذمه وار دې.خو كه د ثواب د نيت استحضار كوى.نو په دې صورت كښې به اجر كښې اضافه كيږى.ياد ساتئ چه دا جمله د حضرت ابو مسعود بدرى رضى الله عنه د حديث نه ماخوذ ده.كوم چه په دې باب كښې راروان دې.

---

[1] عمدة القارى(١١٤/١، ٣١٥)_
[2] الجامع لأحكام القرآن للقرطبى(٣٢٢/١٠) وفتح البارى(١٣٦/١)_
[3] تفسير عثمانى(ص،٣٨٦) حاشية ٢)_

**قوله وَقَالَ (النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ:** او نبی کریم ﷺ اوفرمائيل.(اوس هجرت نه دې پاتې) جهاد او نيت باقى دې.

ددې جملې تعلق دترجمې دريم جزء ،،ولكل امرئ ما نوى،، سره دې.دا د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د حديث يوه تكره ده.پوره حديث امام بخارى رحمه الله د جهاد وغيره په بابونو كښې نقل كړې دې.((لاهجرة بعد الفتح، ولكن جهاد ونية، وإذا استنفرتم فانفروا))[1] كله چه نبى كريم ﷺ مكه مكرمه فتح كړله.نو اوس ډير خلق مسلمانان شو.هغوى ته افسوس اوشو.چه كاش! مونږه وړاندې اسلام راوړلې وې.او دهجرت فضيلت مو حاصل كړې وې.نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل. ((لاهجرة بعد الفتح، ولكن جهاد ونية)) يعنى د هجرت فضيلت خو اوس باقى نه دې پاتې شوې.او د جهاد په غرض سره د وطن پريخودو فضيلت اوس هم باقى دې.

د ،،ونية،، ① يوه معنى خودا كيدې شى.چه د جهاد نيت كوې.نو فضيلت به ملاويږى. او ثواب به حاصليږى. ② دويمه معنى دا كيدې شى.چه د هر يو د خير علم نيت كوې. نو په هغې به ثواب ملاويږى.③ دريمه معنى دا كيدې شى.چه اوس اګرچه هجرت باقى پاتې نشو.خو كه تاسو دا نيت اوكړئ.چه خدائې دې نكړى.كه په داسې مقام كښې راګير شو.چه هلته د اسلام په احكامو باندې عمل كولو كښې آزادى نه وى.نو مونږ به د هغه ځائې نه هجرت كوو.كه د هجرت دا نيت ساتئ.نو تاسو ته به اجر وثواب ملاويږى. ،،والله سبحانه وتعالى أعلم،،_

٥٠- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ قَالَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَقَّاصٍ عَنْ عُمَرَ[2] أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْأَعْمَالُ

---

[1]) صحيح بخارى كتاب الجهاد باب فضل الجهاد والسير رقم ٢٧٨٣ وباب وجوب النفير وما يجب من الجهاد والنية رقم ٢٨٢٥)_

[2]) الحديث أخرجه البخارى هنا وفى بدء الوحي باب (إنا أوحينا إليک كما أوحينا إلى نوح والنبيين من بعده) رقم ١ وفى كتاب العتق باب الخطا والنسيان فى العتاقة والطلاق ونحوه رقم ٢٥٢٩وفى كتاب فضائل أصحاب النبي ﷺ باب هجرة النبي ﷺ وأصحابه إلى المدينة رقم ٣٨٩٨ وفى كتاب النكاح باب من هاجر أوعمل خيراً لتزويج إمرأة فله ما نوى رقم ٥٠٧٠ وفى كتاب الأيمان والنذور باب النية فى الأيمان رقم ٦٦٨٩ وفى كتاب الحيل باب ترک الحيل وأن لكل إمرئ ما نوى رقم ٦٩٥٣ ومسلم فى صحيحه فى كتاب الإمارة باب قوله ﷺ إنما الأعمال بالنية وأبوداود فى سننه فى كتاب الطلاق باب يما عنى به الطلاق والنيات رقم ٢٢٠١ والترمذى فى جامعه فى كتاب فضائل الجهاد باب ما جاء فيمن يقاتل رياء وللدنيا رقم ١٦٤٧ والنسائى فى سننه فى كتاب الطهارة باب النية فى الوضوء وابن ماجه فى سننه فى كتاب الزهد باب النية رقم ٤٢٢٧)_

بِالنِّيَّةِ وَلِكُلِّ امْرِءٍ مَا نَوَى فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ إِلَى اللّٰهِ وَرَسُولِهِ فَهِجْرَتُهُ إِلَى اللّٰهِ وَرَسُولِهِ وَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ لِدُنْيَا يُصِيبُهَا أَوِامْرَأَةٍ يَتَزَوَّجُهَا فَهِجْرَتُهُ إِلَى مَا هَاجَرَ إِلَيْهِ [ر:١]

## رجال الحديث

① **عبدالله بن مسلمه:** دا عبدالله بن مسلمه بن قعنب قعنبي حارثي بصري رحمه الله دي. د دوی حالات وړاندې د ،،باب من الدين الفرار من الفتن،، لاندې تیر شوی دی.

② **مالك:** دا امام مالك بن انس رحمه الله دي. ددوی حالات هم د ،،بدء الوحی،، په دويم حديث [1] او په کتاب الايمان کښې د ،،باب من الدين الفرار من الفتن،، لاندې تیر شوی دی.

③ **يحيى بن سعيد:** دا يحيي بن سعيد بن قيس انصاري مدني رحمه الله دي. ددوی حالات هم د ،،بدء الوحی،، رومبی حديث لاندې [2] و په کتاب الايمان کښې د ،،باب صوم رمضان احتساباً من الايمان،، لاندې تيرشوی دی.

④ **محمد بن ابراهيم:** [3] دا محمد بن ابراهيم بن حارث بن خالد قرشي تيمي مدني رحمه الله دي. ابو عبدالله ددوی کنیت دي. ددوی نیکه حضرت حارث بن خالد د رسول ﷺ صحابي او د مهاجرينو څنې وو. او د حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه د تره څوني وو. [4] محمد بن ابراهيم تيمي رحمه الله د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه زيارت کړی دي. [5]

دې د حضرت اسامه بن زيد، حضرت اسيد بن حضير نه مرسلاً، د حضرت انس او حضرت عائشه رضي الله عنهما نه علاوه تابعينو حضرات نه هم روايت د حديث کوی. [6]

ددوی نه حديث حاصلونکو کښې يحي بن سعيد انصاري، هشام بن عروه، يحي بن ابي کثير، امام زهري، امام اوزاعي، او اسامه بن زيد ليثي رحمهم الله وغيره ډير حضرات دی. [7]

امام يحي بن معين، ابو حاتم، نسائي، او ابن خراش رحمهم الله فرمائي.،،ثقة،، [8]

---

[1] کشف الباری (٢٩٠\١)۔

[2] کشف الباری (٢٣٨\١)۔

[3] ددوې ډيره مختصره تذکره په کشف الباری (٢٣٨\١) تيرشوې دي. دلته ددوی لږ غوندې په تفصيل سره حالات ليکلی شی.

[4] تهذيب الكمال (٣٠١\٢٤، ٣٠٢) وسير أعلام النبلاء (٢٩٤\٥)_

[5] المصادر السابقة)_

[6] تهذيب الكمال (٣٠٢\٢٤، ٣٠٣) وسير أعلام النبلاء (٢٩٤\٥)_

[7] تهذيب الكمال (٣٠٣\٢٤ و ٣٠٤)_

[8] تهذيب الكمال (٣٠٤\٢٤) وتهذيب التهذيب (٦\٩) وسير أعلام النبلاء (٢٩٥\٥)_

امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائي..،،وكان ثقة كثير الحديث،،.[1]

امام على بن المديني رحمه الله فرمائي.«هو حسن الحديث، مستقيم الرواية، ثقة إذا روى منه ثقة، رأيت على حديثه النور».[2]

يعقوب بن سفيان رحمه الله فرمائي..،،مديني ثقة، يقوم حديثه مقام الحجة،،.[3]

ابن عدى رحمه الله فرمائي.«هو عندي لا بأس به، ولا أعلم له شيئاً منكراً إذا احدث منه ثقة».[4]

يعقوب بن شيبه رحمه الله فرمائي..،،كان ثقة،،.[5]

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائي..،،كان فقيهاً ثقة جليل القدر،،.[6]

او هغه فرمائي..،،من ثقات التابعين،،.[7]

خو ددې ټولو توثيقاتو په خلاف عقيلي رحمه الله ددوى ذكر په كتاب الضعفاء كښې كړې دې.[8] او ددوى په باره كښې ئې د امام احمد رحمه الله قول نقل كړې دې.«في حديثه شئ، يروى أحاديث مناكير، أو منكرة».[9]

خو حقيقت دا دې چه د حديثو عامو ناقدينود امام احمد رحمه الله د تضعيف دا قول نه دې قبول كړې.ددې په خلاف نه صرف دا چه ټولو ددوى توثيق كړې دې.بلكه د صحاح سته ټولو حضراتو او خاص طور باندې شيخينو رحمهما الله ددوى احاديث قابل احتجاج ګرځولى دى.لكه حافظ ذهبى رحمه الله فرمائي.«وثقة الناس، واحتج به الشيخان، وقفز القنطرة».[10] او هم دې فرمائي.«من غرائبه المنفرد بها: حديث ،،الأعمال،، عن علقمه، عن عمر، وقد جاز القنطرة، أي لا يؤثر فيه جرح جارح، واحتج به أهل الصحاح بلا مثنوية».[11]

---

[1] تهذيب الكمال(٢٤\٣٠٥) وتهذيب التهذيب(٩\٦)_

[2] تعليقات تهذيب الكمال(٢٤\٣٠٥) په حواله د المعرفة والتاريخ (١١\٤٢٦)-

[3] المصدر السابق)-

[4] الكامل(٦\١٣١)_

[5] تهذيب التهذيب(٩\٧)_

[6] تذكرة الحفاظ (١\١٢٤)_

[7] ميزان الاعتدال(٣\٤٤٥)_

[8] كتاب الضعفاء للعقيلي (٤\٢٠) رقم (١٥٧٤)-

[9] المصدر السابق دغه شان تهذيب الكمال(٢٤\٣٠٤) وسير أعلام النبلاء(٥\٢٩٥) وميزان الإعتدال(٣\٤٤٥) وهدى السارى(٤٣٧)_

[10] ميزان الإعتدال(٣\٤٤٥)_

[11] سير أعلام النبلاء(٥\٢٩٥)_

بیا حافظ ابن حجر رحمه الله د امام احمد رحمه الله د قول ,,یروی أحادیث مناکیر،، مطلب دا بیان کړې دې چه دلته د ,,منکر،، نه اصطلاحی ,,منکر،، مراد نه دې. کوم چه د ,,معروف،، مقابل دې چه ددې تعریف دادې چه ,, هغه حدیث چه ددې راوی باوجود د ضعیف کیدو، د ثقات دجماعت نه مخالف روایت کوی[1] ،، بلکه د امام احمد رحمه الله په نیز د ,,منکر،، اطلاق په هغه ,,فرد،، حدیث باندې هم کیږی. دکوم دپاره چه هیڅ متابع موجود نه وی.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی. ,,فیحمل هذا علی ذالك،، یعنی امام احمد رحمه الله چه دلته د ,,منکر،، اطلاق کړې دې. دا هم ددې ,,فرد،، په معنی کښې محمول کړې شی.[2] والله اعلم.

په ۱۲۰ ھ کښې ددوی وفات اوشو.[3] ,,رحمه الله تعالی رحمة واسعة،،_

⑤ **علقمه بن وقاص:** دا علقمه بن وقاص بن محصن لیثی عتواری مدنی رحمه الله دې.[4] دا د حضرت عمر، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت معاویه، حضرت عمرو بن العاص، حضرت عائشه او حضرت بلال بن الحارث مزنی رضی الله عنهم نه روایت کوی.[5]

ددوی نه روایت کونکو کښې ددوی خپل دواړه ځامن عمرو بن علقمه، او عبدالله بن علقمه نه علاوه امام زهری، ابن ابی ملیکه، محمد بن ابراهیم تیمی، عمرو بن یحي مازنی رحمهم الله دی.[6]

امام واقدی رحمه الله فرمائی. چه دې د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې پیدا شوې وو.[7] حافظ ابن عبدالبر رحمه الله هم دا ذکر کړی دی.[8]، امام مسلم رحمه الله ده لره په هغه طبقه کښې ذکر کړې دې. کومه چه په عهد نبوت کښې پیدا شوې وه.[9] تردې چه ابن منده رحمه الله دوی لره په ,,اصحابو،، کښې شمارلې دې. او ددې بنیاد یو حدیث دې. چه د هغې سند حسن دې. لکه چه ابن منده رحمه الله په ((عن خیثمه، عن یحی بن جعفر عن یزید بن هارون عن محمد بن عمرو بن علقمه عن أبیه، عن جده)) طریق سره نقل کوی. ((شهدت الخندق مع النبی ﷺ وکنت فی الوفد الذین وفدوا علی

---

[1] نزهة النظر شرح نخبة الفکر (ص۵۱) وخیر الأصول (۱۲۰) مشموله در..آثار خیر.. (مجموعه رسائل حضرت مولانا خیر محمد جالندهری رحمه الله)_

[2] هدی الساری (۷۳)_

[3] الکاشف (۲\۱۵۳) رقم ۴۶۹۵ ) اونور مراجع)_

[4] تهذیب الکمال (۲۰\۳۱۳)_

[5] تهذیب الکمال (۲۰\۳۱۳) وسیر أعلام النبلاء (۴\۶۱)_

[6] تهذیب الکمال (۲۰\۳۱۴) وسیر أعلام النبلاء (۴\۶۱)-

[7] الإصابة (۳\۸۱) رقم الترجمة (۶۲۶۰) القسم الثانی)_

[8] الإستیعاب بهامش الإصابة (۳\۱۲۶)_

[9] تهذیب التهذیب (۷\۲۸۰)

رسول الله ﷺ(٦٧)(١)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی. كه چرې دا حديث ثابت شي.نو علقمه به صحابي وي.خو د ټولو امامانو او عالمانو په دې خبره باندې اتفاق دې.چه علقمه تابعي دې.لكه چه حافظ ابونعيم اصبهاني رحمه الله د ابن منده روايت ،،وهم،، ګرځولې دې.(٢)
پخپله حافظ ابن حجر رحمه الله دوی لره په ،الاصابة،،كښې په،،القسم الثاني،، كښې ذكركړې دې.(٣)او هم دې فرمائی.،،أخطأ من زعم أن له صحبة،،(١)
امام محمد بن سعد رحمه الله فرمائی.،،وكان ثقة قليل الحديث،،(٢)
امام نسائي رحمه الله ددوی توثيق كړې دې.(٣)
امام ابن حبان رحمه الله دوی لره په ،،كتاب الثقات،، كښې ذكر كړې دې.(٤)

---

(١) تهذيب التهذيب(٧\٢٨٠، ٢٨١) والإصابة (٣\٨١)
(٢) الإصابة (٣\٨١)_
(٣) حافظ ابن حجر رحمه الله په الاصابه كښې دصحابه كرامو رضي الله عنهم تذكره په څلورو قسمونوكښې مرتب كړې دې.
① اول قسم:دهغه صحابه كرامو رضي الله عنهم په تذكره كښې دې.چه دهغوی صحابيت ثابت وي.برابره ده چه ثبوت دهغوی دخپل روايت نه وي يا دهغوی نه سوا دبل چا په روايت سره وي.قطع نظرد دې نه چه دغه روايت صحيح دې يا حسن دې يا ضعيف.يا دا چه په روايت كښې مطلقاً په دې خبره دلالت وي.چه دا صحابي دې.
② دويم قسم دهغه صغارصحابه كرامو رضي الله عنهم په تذكره كښې دې.كوم چه د نبي ﷺ په ژوند كښې پيدا شوی وو.او د نبي ﷺ تروفاته پورې سن تميز ته نه وو رسيدلی.اودهغوی په باره كښې څه صريحي روايت هم نه وي.چه دوی ته د نبي ﷺ زيارت نصيب شوې دې.لكه چه ددې حضرات په صحابه كرامو رضي الله عنهم كښې شمارد غالب ګمان په اعتبارسره دی.چه هركله دوی د نبي ﷺ په زمانه كښې پيدا شوی دی.نودوی ته به دهغوی زيارت هم نصيب شوې وی.ځكه چه صحابه كرامو رضي الله عنهم به خپل اولاد د تحنيك او تبرك دپاره نبي ﷺ ته راوستل.
③ دريم قسم دمخضرمينو د تذكرو په باره كښې دې.چاچه دجاهليت او اسلام دواړه زمانې لاندې كړې وي.خودنبي ﷺ سره ئې ملاقات نه وی شوې.دا حضرات په اتفاق سره صحابه رضي الله عنهم نه دی.ددوی تذكره په صحابو رضي الله عنهم كښې د قرب زمان په اعتبارسره كولې شي.
④ څلورم قسم دهغه صحابو رضي الله عنهم په تذكره كښې دی.كوم چه په غلطئ سره بعضې كسانو په صحابو رضي الله عنهم كښې شماركړی دی.اوګورئ ،،الإصابة (٤١١=٦) ددې تفصيل په اعتبارسره د حضرت علقمه بن وقاص رحمه الله تذكره د اصابه په اول قسم كښې يكار وه.دغه شان ددې تفصيل نه دا هم معلومه شوه.چه دحافظ ابن حجر رحمه الله په نيزدوی په صحابه كراموكښې شمارل صحيح دی.والله أعلم)
(١) تقريب التهذيب(ص.٣٩٧) رقم ٤٦٨٥)_
(٢) الطبقات الكبرى(٥\٦٠)_
(٣) سير أعلام النبلاء( ٤\٦١) وخلاصة الخزرجي(٢٧١)_
(٤) الثقات لابن حبان(٥\٢٠٩)_

امام عجلى رحمه الله فرمائى. ,,مدنى تابعى ثقة،،(۱)
حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى. ,,ثقة نبيل،،(۲)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى. ,,ثقة ثبت،،(۳)
د عبدالملك د خلافت په زمانه كښې د ۸۰هـ نه پس ددوى وفات اوشو.(۴) ,,رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

⑥ عمر: د اميرالمؤمنين سيدنا عمر بن الخطاب رضي الله عنه مختصر تذكره وړاندې د بدء الوحى روميى حديث لاندې (۵) او په كتاب الايمان كښې د ,,باب زيادة الإيمان ونقصانه،، لاندې تيره شوې ده. امام بخارى رحمه الله دلته د حضرت عمر رضي الله عنه حديث ,,الأعمال بالنية،، راوړلې دې. په دې حديث باندې مكمل تفصيلى كلام د بدء الوحى په ابتداء كښې شوې دې.(۶)

۵۵- حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ يَزِيدَ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ (۷) عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا أَنْفَقَ الرَّجُلُ عَلَى أَهْلِهِ يَحْتَسِبُهَا فَهُوَ لَهُ صَدَقَةٌ [۴۰۰۶، ۵۰۳۶]

## رجال الحديث

① حجاج بن منهال: دا ابو محمد حجاج بن منهال انماطى بصرى دې.(۸)
دې د قره بن خالد، شعبه بن الحجاج، حماد بن سلمه، حماد بن زيد، سفيان بن عيينه، عبدالعزيز بن عبدالله بن ابى سلمة الماجشون او يزيد بن ابراهيم تسترى رحمهم الله وغيره نه

---

۱) تعليقات تهذيب الكمال(۲۰\۳۱۴)_
۲) تذكرة الحفاظ (۱\۵۳)_
۳) تقريب التهذيب(۳۹۷) رقم ۴۶۸۵)_
۴) تذكرة الحفاظ (۱\۵۳) وطبقات ابن سعد(۵\۶۰) وتهذيب الكمال(۲۰\۳۱۴)_
۵) كشف البارى(۱\۲۳۹)-
۶) كشف البارى(۱\۲۳۳، ۲۸۹)_
۷) الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى كتاب المغازى باب (بلاترجمة بعدباب شهود الملائكة بدراً رقم ۴۰۰۶ وفى فاتحة كتاب النفقات باب فضل النفقة على الأهل رقم ۵۳۵۱ ومسلم فى صحيحه (۱\۳۲۴) فى كتاب الزكاة باب فضل النفقة والصدقة على الأقربين والزوج والأولاد والوالدين ولوكانوا مشركين والنسائى فى سننه (۱\۳۵۳) فى كتاب الزكاة باب أى الصدقة أفضل والترمذى فى جامعه فى كتاب البروالصلة باب ما جاء فى النفقة فى الأهل رقم ۱۹۶۵)_
۸) تهذيب الكمال(۵\۴۵۷)_

روايت كوي.[1]

ددوى نه روايت كونكو كښې امام بخارى، امام دارمى، محمد بن يحي ذهلى، ابومسلم كجى، محمد بن بشار بندار، يعقوب بن سفيان او يعقوب بن شيبه رحمهم الله وغيره دى.[2]

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائى.،،ثقة ما أرى به بأساً،،[3]

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى.،،ثقة فاضل،،[4]

امام احمد بن عبدالله عجلى رحمه الله فرمائى.،،ثقة رجل صالح،،[5]

امام نسائى رحمه الله فرمائى.،،ثقة،،[6]

امام محمدبن سعد رحمه الله فرمائى.،،وكان ثقة كثير الحديث،،[7]

ابن قانع رحمه الله فرمائى.،،ثقة مأمون،،[8]

خلف بن محمد كُردوسى رحمه الله فرمائى.،،كان صاحب سنة يظهرها،،[9]

فلاس رحمه الله فرمائى.،،ما رأيت مثله فضلاً و ديناً،،[10]

ابن حبان رحمه الله دوى لره په كتاب الثقات كښې ذكركړې دې.[11]

ددوى پيشه ،،سمسره،،(دلالى) ([12]) وه.او ددوى معمول وو.چه په څومره قيمت كښې به ني څه څيز چاته اخستلو.د يو دينار په سر به ني صرف يوه حبه ( رتئ) اخستله.يو خلې يو خراسانى مالداره سړې راغې. چه هغه د اصحاب حديث څنې هم وو.هغه دپاره دوى يو قالين واخستلو.دغه سړى دوى ته د اجرت په طور ديرش ديناره وركړل.دوى تپوس اوكړو. چه دا څه دى؟ هغوى جواب وركړو.چه دا ستاسو اجرت دې.دوى اوفرمائيل.،،دنانيرك أهون

---

[1]) تهذيب الكمال(٤٥٧\١٥، ٤٥٨) وسير أعلام النبلاء(٣٥٣\١٠)-

[2]) المصادر السابقة)-

[3]) تهذيب الكمال(٤٥٩\١٥)_

[4]) المصدر السابق وسير أعلام النبلاء (٣٥٣\١٠)-

[5]) المصادر السابقة)-

[6]) تهذيب الكمال(٤٥٩\١٥)_

[7]) الطبقات لابن سعد(٣٠١\٧)_

[8]) تهذيب التهذيب(٢٠٧\١٢)_

[9]) تهذيب الكمال(٤٥٩\١٥) وسير أعلام النبلاء (٣٥٣\١٠)-

[10]) تهذيب التهذيب(ت٢٠٧١)_

[11]) كتاب الثقات لابن حبان(٢٠٢\١)_

[12]) د دلالئ پيشه. په مزدورئ باندې د څيزونو خرڅولوپيشه ده-

علینا من هذا التراب، مات من دینار رحمة،، یعنی ستا د دنانیرو زمونږ په نیز څه وقعت (او عزت) نشته.مونږ ته خو فی دینار صرف یوه حبه (رتی) پکار ده.بس هم هغه راکړه.نو دیرش دیناره ئې واپس کړل.او یو دینار او څه حصه ئې وصول کړله. (۱)

په ۲۱۷ھ کښې ددوی وفات اوشو.(۲) ،، رحمه الله تعالی رحمة واسعة،،_

۲ **شعبه:** دا امیرالمؤمنین فی الحدیث امام شعبه بن الحجاج رحمه الله دې.ددوی حالات وړاندې د ،،باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده،، لاندې تیرشوی دی.(۳)

۳ **عدی بن ثابت:** دا عدی بن ثابت انصاری کوفی دې.ددوی د پلار او نیکه دنوم په باره کښې کافی اختلاف دې.حافظ مغلطای او حافظ ابن حجر رحمهما الله دا اختلاف کافی تفصیل سره لیکلې دې.خو څه متعین نتیجه ئې نه ده راوښکلې.او نه په دې اختلاف کښې څه لویه فائده شته.(۴)

دوی د حضرت براء بن عازب، د خپل نیکه (د مور پلار) عبدالله بن یزید خطمی، د خپل پلار ثابت، زر بن حبیش، سعید بن جبیر.ابو حازم او ابو برده بن ابی موسی اشعری رضی الله عنهم نه روایت کړې دې.(۵)

ددوی نه امام اعمش، امام شعبه، ابو اسحاق سبیعی، مسعر بن کدام او یحي بن سعید انصاری رحمهم الله وغیره روایت کړې دې.(۶)

امام احمد ،نسائی اوامام احمدبن عبدالله عجلی رحمهم الله دوی لره ،،ثقه،، ګرځولې دې.(۷)

ابو حاتم رحمه الله فرمائی.،،صدوق،،(۸)

ابن شاهین رحمه الله د یحي بن معین رحمه الله نه نقل کړی دی.((عدی بن ثابت الجزری لیس به بأس إذا حدث عن الثقات))(۹)

---

(۱) تهذیب الکمال(ت۵\۴۵۹) وسیر أعلام النبلاء(۱۰\۳۵۳)-

(۲) الکاشف (۱\۳۱۳) رقم ۹۴۳)_

(۳) کشف الباری(۱\۶۷۸)_

(۴) تهذیب التهذیب(۲\۱۹،۲۱) ترجمة ثابت الأنصاری والد عدی بن ثابت وحاشیة تهذیب الکمال (۴\۳۸۷) ترجمة ثابت الأنصاری)_

(۵) تهذیب الکمال(۱۹\۵۲۳)_

(۶) المصدر السابق)_

(۷) المصدر السابق)-

(۸) تهذیب الکمال(۱۹\۵۲۴)-

(۹) حاشیة تهذیب الکمال(۱۹\۵۲۴)-

امام دارقطنى رحمه الله فرمائى. ،،وعدى ثقة،،[1]
خو ددې توثيقاتو سره سره په دوى باندې د ..تشيع.. الزام هم دې.لکه چه امام يحي بن معين رحمه الله فرمائى. ،،شيعى مفرط،،[2]
امام جوزجانى رحمه الله فرمائى. ،،مائل عن القصد،،[3]
امام دارقطنى رحمه الله فرمائى. ،،ثقة إلا أنه كان غاليا يعنى فى التشيع،،[4]
امام احمد رحمه الله فرمائى. ،،ثقة إلا أنه كان يتشيع،،[5]
امام طبرى رحمه الله فرمائى. ،،عدى بن ثابت ممن يجب التثبت فى نقله،،[6]
مسعودى فرمائى. ((ما أدركنا أحداً أقول بقول الشيعة من عدى بن ثابت))[7]
ددې اقوالو نه معلوميږى.چه عدى بن ثابت نه صرف شيعى وو بلکه غالى هم وو.خو بل طرف ته دا داسې راوى دې.چه اصحاب د اصول سته دده روايات قبول کړى دى.او دا ئې قابل د احتجاج گنړلى دى.نو ددوى په باره کښې به هم دا وئيلې شى.چه اگرچه دا شيعى وو.بلکه مفرط فى التشيع وو.خو نه داعى وو.او نه ئې د خپل مذهب په تائيد کښې کوم روايت بيان کړې دې.او د مبتدع حکم د جمهورو په نيز هم دا دې.که هغه داعى وى.يا دا روايت د هغه د خپل مذهب په تائيد کښې وى.نو مقبول نه دې.گنى مقبول دې.[8] لکه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى. ((احتج به الجماعة، وما أخرج له فى الصحيح شئ مما يقوى بدعته))[9]
په ۱۱۶ هـ کښې ددوى وفات اوشو.[10] ،،سامحه الله وغفر له،،_

⑳ <u>عبدالله بن يزيد:</u> دا حضرت عبدالله بن يزيد بن زيد بن حصين خطمى انصارى رضى الله عنه دې.[11]

---

[1]) المصدر السابق_
[2]) ميزان الإعتدال(٦٢\٣) وتهذيب التهذيب(١٦٦\٧)_
[3]) ميزان الإعتدال(٦٢\٣) وهدى السارى(٤٢٤)-
[4]) تهذيب التهذيب(١٦٦\٧) وهدى السارى(ص، ٤٢٤)_
[5]) تهذيب التهذيب(١٦٦\٧)-
[6]) المصدر السابق)-
[7]) ميزان الإعتدال(٦٢\٣)_
[8]) هدى السارى(ص،٣٨٥)-
[9]) هدى السارى(ص، ٤٢٤)_
[10]) الكاشف(١٥\٢) رقم الترجمة (٣٧٥٨)_
[11]) تهذيب الكمال(١١٦\٦،٣٠١، ٣٠٢)_

بعضو حضراتو ونيلى دى.چه دوى ته د ،،صحبت،، شرف حاصل نه وو.(١)خو حقيقت دا دې.چه دوى ته نه صرف دا چه د ،،صحبت،، شرف حاصل وو.بلکه دا د اصحاب حدیبيه نه هم وو.اگرچه په دې موقعه باندې دوى صغير السن (كم عمره) وو.(٢)
د جمل. صفين او نهروان په موقعو کښې حضرت علىؓ سره وو.دوى د کوفې گورنر هم پاتې شوې وو. (٣)
دوى د نبى كريمﷺ نه علاوه د حضرت عمر بن الخطاب.حضرت براء بن عازب ،حضرت حذيفه، حضرت خزيمه بن ثابت، حضرت زيد بن ثابت، حضرت عبدالله بن حنظله، حضرت

---

١) قاله مصعب الزبيرى كما فى تهذيب الكمال(٣٠٣\١٦)_
٢) انظر تهذيب الكمال(٣٠٢\١٦) والكاشف للذهبى(٦٠٧\١) رقم ٣٠٥٥)
حافظ مزى او حافظ ذهبى رحمهما الله نقل كړى دى.چه دوى د غزوه حديبيه په موقع باندې موجود وو.اوهغه وخت کښې ددوى عمر اوولس كاله وو.
ابوعبيده اجرىؒ دامام ابوداود نه نقل كړى دى.چه دا عبدالله بن يزيد خطمىؓ هغه دې.دچا مور چه د يو نابينا صحابى عميربن عدى بن خرشهؓ غيرمسلمه ام ولده وه.دې بنځې به نبىﷺ ته کنځل کولو.يوځل عميربن عدىؓ ددې په خيټه کښې چاړه ورخښه کړه.هغه په ځپله مړه شوه.اوعبدالله بن يزيدخطمى هم په دغه حالت کښې پيدا شو.(تعليقات الكاشف (٦٠٨\١) دغه شان ددې واقعه دپاره اوګورئ.سنن أبى داود كتاب الحدود باب الحكم فيمن سب النبىﷺ وسنن نسائى (١٧٠\١٢) كتاب المحاربة باب الحكم فيمن سب النبىﷺ)_
دلته اشكال دا دې.چه دا وينځه د حضرت عميربن عدى ام ولده وه.نوعبدالله ته عبدالله بن عميرونيل پكار وو.عبدالله بن يزيد نه.ددې نه خو معلوميږى.چه دا وينځه د يزيد خطمى سره وه؟
ددې جواب دا دې.چه په اصل کښې ددې وينځې نه دحضرت عميردوه ځامن پيدا شوې وو.(سنن أبى داود وسنن نسائى) ددې نه پس هغوى ددې نكاح د يزيد خطمىؓ سره كړې وه.دهغې نه عبدالله بن يزيد ددې واقعه په نتيجه کښې پيدا شو.
بيا دلته يوه بله خبره د يادولوقابله ده.چه حافظ مزى او حافظ ذهبى رحمهما الله د حضرت عبدالله بن يزيد خطمىؓ عمر د غزوه حديبيه په وخت کښې اوولس كاله ليكلې دې.(تهذيب الكمال(٣٠٢\٦١) والكاشف (٦٠٧\١) رقم ٣٠٥٥) اوحافظ ابن حجرؒ دحضرت عميربن عدىؓ د وينځې دقتل د واقعه تاريخ ٢هـ ليكلې ده.(الإصابة ٣٣\٣) اوغزوه حديبيه په ٦هـ کښې پيښه شوې وه.په دې طريقه دحضرت عبدالله بن يزيدخطمىؓ عمر څلوركاله جوړيږى.ددې وجې حافظ ابن حجرؒ په (تهذيب التهذيب.٧٨\٦) او الاصابة (٣٨٢\٢) کښې ددوى په تذكره کښې ليكلى دى.((وشهد بيعة الرضوان وهو صغير)) هم دا اقراب الى الصواب معلوميږى.والله أعلم)_
فائده د ذكرشوى تفصيل نه د دې بنځې قتل كونكى نابينا صحابىؓ نوم هم معلوم شو.چه دوى حضرت عميربن عدى بن خرشهؓ وو.حضرت علامه سهارنپورىؒ په بذل المجهود (٢٩٩\١٧) كتاب الحدود باب الحكم فيمن سب النبىﷺ) کښې دحديث الفاظ ((إن أعمى كانت له أم ولد)) لاندې د نابينا صحابى په حق کښې ليكلى دى.((لم أقف على تسميته فاغتنم هذه الفائدة)-
٣) تهذيب الكمال (٣٠٢\١٦)-

ابو ایوب انصاري او حضرت ابو مسعود انصاري رضي الله عنه نه روايت کوي.
ددوی نه امام شعبي، عدي بن ثابت انصاري، محارب بن دثار، محمد بن سيرين، محمد بن کعب قرظي، ابو اسحاق سبيعي، او ابوبرده بن ابي موسى اشعري رحمهم الله وغيره نه روايت کوي. [1] د ۷۰ هـ نه پس د حضرت عبدالله بن الزبير رضي الله عنه په عهد خلافت کښې ددوی وفات اوشو.[2] «رضي الله عنه وأرضاه»_

⑤ ابومسعود: دا مشهور صحابي عقبه بن عمرو بن ثعلبه بن اسيره [بفتح الهمزة وكسر السين المهملة وقيل بضم الهمزة و فتح السين] [3] بن عسيره (بفتح العين وكسرالسين المهملتين) [4] بن عطية خزرجي انصاري رضي الله عنه دې.د ابومسعود بدري نوم سره مشهور دې.

دوی په اجله علماء اصحابو کښې وو.[5] په بيعت عقبه ثانيه کښې دوی هم شريک وو.په دې شريکانو کښې کښې دې دټولو نه کشر وو. [6]
دوی د نبی کريم ﷺ نه روايت د حديث کوي.ددوی نه يوسل دوه حديثونه نقل دی.چه په دې کښې نهه حديثونه متفق عليه دی.په يو حديث کښې امام بخاري رحمه الله او په اووه حديثونو کښې امام مسلم متفرد دې.[7]
ددوی نه په روايت کونکو کښې ددوی خوئې بشير، اوس بن ضمعج، علقمه، ابووائل، قيس بن ابي حازم، ربعي بن حراش، عبدالرحمن بن يزيد، عمرو بن ميمون، او امام شعبي رحمهم الله وغيره حضرات دی.[8] دوی په غزوۀ احد او ددې نه پس په ټولو غزواتو کښې شريک شوي دې.[9] په بدر کښې دوی شريک شوې وو.او که نه؟ په دې کښې ډير اختلاف دې.لکه امام ابن شهاب زهري [10] سعد بن ابراهيم [11] موسى بن عقبه [12] واقدي [13] ابن سعد [14] ابراهيم

---

[1]) ددې ټولو شيوخو راويانو رحمهم الله دتفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الکمال(۱۶\۳۰۲)_
[2]) طبقات ابن سعد(۶\۱۸)_
[3]) الإكمال لابن ماكولا (۱\۷۹) وقيل في هذا الإسم يسيرة بضم أوله انظر العمدة (۱\۳۱۷)_
[4]) تهذيب الكمال (۲۰\۲۱۵، ۲۱۶) وسير أعلام النبلاء (۲\۴۹۴)-
[5]) سير أعلام النبلاء(۲\۴۹۴)_
[6]) تهذيب الكمال(۲۰\۲۱۶)-
[7]) خلاصة الخزرجي (ص،۲۶۹) وعمدة القاري(۱\۳۱۷)_
[8]) تهذيب الكمال(۲۰\۲۱۷) وسير أعلام النبلاء (۲\۴۹۴)_
[9]) تهذيب التهذيب(۲۰\۲۴۸) والإصابة(۲\۴۹۱)_
[10]) تهذيب الكمال(۲۰\۲۱۶)_
[11]) المصدر السابق) وسير أعلام النبلاء(۲\۴۹۴)_
[12]) المصادر السابقة)-
[13]) الإصابة (۲\۴۹۱) وسير أعلام النبلاء(۲\۴۹۴)_
[14]) طبقات ابن سعد(۶\۱۶)_

حربی (۱) اسماعیلی (۲) او حافظ ذهبی (۳) رحمهم الله وغیره جمهور اهل سیر او تاریخ ددوی په غزوهٔ بدر کښې حاضریدو نه انکار کوی او وائی چه دوی ته ،،بدری،، د نزیل بدرکیدو په حیثیت سره ویلې شی. حالانکه امام بخاری (۴) امام مسلم (۵) حکم بن عتیبه (۶) ابو عبید قاسم بن سلام (۷) ابن الکلبی (۸) طبرانی (۹) او ابو احمد الحاکم رحمهم الله (۱۰) ددې خبرې قائل دی چه دې په غزوهٔ بدر کښې شریك شوې دې.

مثبتینو سره ددوی په بدر کښې د حاضریدو دلیل یو خو ددوی نسبت ،،بدری،، کیدل دی. دویم دا چه د حضرت عروه رحمه الله قول دې. کوم چه بخاری کښې نقل دې چه ،،شهد بدراً،، (۱۱) اگرچه د اثبات دا دواړه دلیلونه خاص وزن نه لری. خو چونکه نفی کونکو سره څه خاص دلیل نشته. او قاعده ده. چه ،،المثبت مقدم علی النافی،، ددې نه علاوه چه هرکله تول حضرات دا منی. چه دې په بیعت د عقبه ثانیه کښې شریك وو. نو غزوهٔ بدر کښې د شریکیدو نه څه مانع هم نشته. (۱۲) په دې وجه غالب گمان دا دې. چه ددوی په غزوه بدر کښې حاضریدل راجح دی. ،،والله سبحانه وتعالی أعلم،،_

د حضرت ابو مسعود بدری رضی الله عنه وفات د بعضو حضراتو په نیز د ۴۰ هـ نه وړاندې شوې دې. او د بعضو حضراتو په نیز ۴۰ هـ کښې. او د بعضو په نیز ددې نه پس شوې دې. (۱۳)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی. چه د حضرت ابو مسعود رضی الله عنه ملاقات حضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه سره، ددوی د کوفې د گورنرئ په زمانه کښې شوې دې. او حضرت مغیره بن شعبه

---

(۱) فتح الباری(۷\۳۱۸) کتاب المغازی باب (بلاترجمة بعدباب شهودالملائکة بدراً)_
(۲) المصدرالسابق)-
(۳) سیرأعلام النبلاء(۲\۴۹۴)_
(۴) صحیح بخاری کتاب المغازی باب (بلاترجمة بعد باب شهودالملائکة بدراً) رقم ۴۰۰۶. ۴۰۰۸)_
(۵) الإصابة(۲\۴۹۱)_ .
(۶) تهذیب الکمال(۲۰\۲۱۶) وسیرأعلام النبلاء(۲\۴۹۴)_
(۷) ذکره البغوی فی معجمه قاله الحافظ فی الفتح (۷\۳۱۹) ووقع فی الإصابة (۲\۴۹۱) أبوعتبة بن سلام والظاهر أنه تحریف والصواب أبوعبیدالقاسم بن سلام.. فتنبه)_
(۸) فتح الباری(۷\۳۱۹)_
(۹) المصدرالسابق)_
(۱۰) المصدرالسابق)-
(۱۱) صحیح البخاری کتاب المغازی باب (بلاترجمة) رقم ۴۰۰۷)_
(۱۲) فتح الباری (۷\۳۱۹) وعمدة القاری(۱۷\۱۱۲) وتهذیب التهذیب(۷\۲۴۹)_
(۱۳) تهذیب الکمال(۲۰\۲۱۷و ۲۱۸) وسیرأعلام النبلاء(۲\۴۹۶)_

د ۴۰ھ نه پس د كوفې گورنر جوړ شوې وو.په دې وجه راجح دا ده.چه د ۴۰ھ نه پس ئې وفات شوى دې.(۱)،رضى الله عنه وأرضاه،،_

**قوله إِذَا أَنْفَقَ الرَّجُلُ عَلَى أَهْلِهِ يَحْتَسِبُهَا فَهُوَلَهُ صَدَقَةٌ**:كله چه يو سړې پخپل كور والو باندې د ثواب په نيت سره خرچ كړى.نو دا به دده دپاره صدقه وى.ده ته به د صدقې ثواب ملاويږى. دا حديث د ،،ترجمې،، دويم جزء ،،والحسبة،،سره متعلق دې.او په حديث باب كښې موجود لفظ ،،يحتسبها،، دلته مقصود دې.(۲)

امام قرطبى رحمه الله فرمائى.چه ددې حديث منطوق خو دا دې.چه په انفاق كښې به اجر د قربت قصد، او ددې په نيت سره ملاويږى.كه واجب نفقه وى.او كه مباح، ددې مفهوم دا راوخى. كه د قربت قصد نه وى.نو اجر به نه ملاويږى.خو د واجب نفقې نه به دې برى الذمه وى.(۳)

بيا دلته د ،،صدقه،،اطلاق،، نفقه،، باندې مجازاً دې.ددې نه مراد اجر دې. حقيقى معنى يعنى صدقه په دې وجه مراد نشى اخستلې.چه په دې خبره باندې اجماع ده.كه بى بى هاشميه ده.نود هغې نفقه هم واجب ده.حالانكه په دې باندې صدقه حرام ده.(۴)والله اعلم.

۵۲-حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي عَامِرُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ (۵) أَنَّهُ أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّكَ لَنْ تُنْفِقَ نَفَقَةً تَبْتَغِي بِهَا وَجْهَ اللَّهِ إِلَّا أُجِرْتَ عَلَيْهَا حَتَّى مَا تَجْعَلُ فِي فِي امْرَأَتِكَ

[۱۲۳۳، ۲۵۹۱، ۲۵۹۳، ۳۷۲۱، ۴۱۴۷، ۵۰۳۹، ۵۳۳۵، ۵۳۴۴، ۶۰۱۲، ۶۳۵۲]

---

۱) الإصابة(۲\۴۹۱)_

۲) فتح البارى(۱\۱۳۶)-

۳) المصدر السابق)-

۴) المصدر السابق)_

۵) الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى كتاب الجنائز. باب رثاء النبى ﷺ سعد بن خولة رقم(۱۲۹۵) وفى كتاب الوصايا باب أن يترك ورثته أغنياء خير من أن يتكففوا الناس رقم ۲۷۴۲ وباب الوصية بالثلث رقم ۲۷۴۴ وفى كتاب مناقب الأنصار باب قول الله ﷺ اللهم امض لأصحابى هجرتهم ومرثيته لمن مات بمكة رقم ۳۹۴۶ وفى كتاب المغازى باب حجة الوداع رقم ۴۴۰۹ ) وفى فاتحة كتاب النفقات باب فضل النفقة على الأهل رقم ۵۳۵۴ وفى كتاب المرضى باب وضع اليد على المريض رقم ۵۶۵۹ وباب ما رخص للمريض أن يقول:إنى وجع أو وارأساه. او أشتد بى الوجع رقم ۵۶۶۸وفى كتاب الدعوات باب الدعاء برفع الوباء والوجع رقم ۶۳۷۳ وفى كتاب الفرائض باب ميراث البنات رقم(۶۷۳۳) ومسلم فى صحيحه (۳۹۱۲، ۴۰) فى كتاب الوصية وأبوداود فى سننه فى كتاب الوصايا باب ما جاء فيما لا يجوز للوصى فى ماله رقم ۲۸۶۴ والترمذى فى جامعه فى كتاب الجنائز. باب ما جاء فى الوصية بالثلث والربع رقم ۹۷۵) والنسائى فى سننه(۱۲۹۱۲، ۱۳۰) كتاب الوصايا باب الوصية بالثلث ولبن ماجه فى سننه فى كتاب الوصايا باب الوصية بالثلث رقم ۲۷۰۸)_

## رجال الحديث

① **الحكم بن نافع:** دا ابواليمان الحكم بن نافع بهرانى حمصى رحمه الله دي.ددوى حالات د بدء الوحى د شپږم حديث لاندې تير شوې دي.(١)

② **شعيب:** دا ابو بشر شعيب بن ابى حمزه قرشى اموى رحمه الله دي.ددوى حالات هم د بدء الوحى د شپږم حديث لاندې تير شوې دي.(٢)

③ **الزهري:** دا امام ابوبكر محمد بن مسلم عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهرى رحمه الله دي.ددوى مختصر حالات د بدء الوحى دريم حديث لاندې تير شوې دي.(٣)

④ **عامر بن سعد:** دا د حضرت سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه خوئې دي.ددوى مختصر حالات وړاندې د ،،باب إذا لم يكن الإسلام على الحقيقة،، لاندې ذكر شوى دى.

⑤ **سعد بن ابى وقاص:** د حضرت سعد بن ابى وقاص تذكره هم د ،،باب إذا لم يكن الإسلام على الحقيقة....،، لاندې تيره شوې ده.

**قوله إِنَّكَ لَنْ تُنْفِقَ نَفَقَةً تَبْتَغِي بِهَا وَجْهَ اللَّهِ إِلَّا أُجِرْتَ عَلَيْهَا حَتَّى مَا تَجْعَلُ فِي فِي امْرَأَتِكَ:** بې شكه چه ته څه هم د الله تعالى د رضامندئ دپاره خرچ كوئ.په دې به تاسو ته اجر ملاويږى.تردې چه په دې باندې هم كوم چه تاسو د خپلې ښځې په خوله كښې واچوئ.

د مذكوره حديث تعلق د ترجمة الباب دريم جزء يعنى ،،ولكل امرئ ما نوى،، سره دې.او په حديث باب كښې مقصود ،،تبتغى بها وجه الله،، ده.چه ددې ،،ترجمه،، سره مناسبت واضح دې.(٤)

بيا په اكثرو رواياتو كښې ،،فى امرأتك،، دې.حالانكه په بعضو رواياتو كښې ،،فى فم امرأتك،، (٥)دې.قاضى عياض رحمه الله فرمائى.چه د ،،فى امرأتك،، روايت اصوب (اصح) دې.څكه چه په دې لفظ كښې اصل دا دې.چه ،،ميم،، محذوف وى.څكه چه ددې جمع ،،افواه،،او تصغير ،،فويه،، راځى.د ،،ميم،، اثبات هلته اولى دې.چرته چه دا لفظ د اضافت نه بغير منفردا

---

١) كشف البارى(٤٧٩/١و ٤٨٠)_
٢) كشف البارى(٤٨٠/١، ٤٨١)_
٣) كشف البارى(٣٢٦/١)_
٤) فتح البارى(١٣٧/١)_
٥) المصدر السابق)_

راشي خو چرته چه اضافت سره استعمال وي.هلته د ،،ميم،، استعمال مناسب نه دې.،،إلا في لفظ قليلة،،(١)

حديث باب د حضرت سعد بن ابى وقاص ﷺ د يو اوګد حديث حصه ده. حضرت سعد بن ابى وقاص ﷺ بيمار شو.تردې چه هغه پوهيدو چه اجل رانزدې دې.د نبى كريم ﷺ نه ئې هدايت طلب كړو.چه دخپل مال په باره كښې څه طريقه اختيار كړم.نبى كريم دوى ته تسلى وركړله.چه اوس ستا ژوند باقى دې.په دې ضمن كښې ئې دا هدايت هم وركړو.چه نيت ښه ساتې.نوڅه چه خرچ كوې.هغې كښې به د صدقې ثواب ملاويږى.(٢)

امام نووى ﷺ ددې حديث نه استنباط كړې دې.چه كه بربنه ( نورئ) د حق موافق وى.نو په ثواب كښې به قادح نه وى.اوګورئ! يو سړې په بعضو وختونو كښې د يو فقير، مسكين، يتيم يا د يو بچى په خوله كښې لقمه (نورئ) اچوى.او بعضو وختونو كښې ښځې ته وركوى.رومبى ځائې كښې شهوت نه وى.خو دويم ځائې كښې شهوت يقينى وى.خكه دا ډيره لرې خبره ده.چه سړې د خپلې ښځې په خوله كښې نورئ وركوى.او شهوت نه وى.خو دا لقمه د حق موافق او مطابق ده.ددې خلاف نه ده.په دې وجه به دا د اجر وثواب كميدو سبب نه جوړيږى. (٣)

بلكه كه حظ (حصه) په نيت د حق وى.نو دا هم د اجر سبب دې.لكه چه حديث شريف كښې راغلى دى.،،وفي بضع أحدكم صدقة، قالوا يا رسول الله، أيأتي أحدنا شهوته ويكون له فيها أجر؟ قال: أرأيتم لو وضعها في حرام أكان عليه فيها وزر؟ فكذالك إذا وضعها في الحلال كان له أجر،،(٤) يعنى كله چه نبى كريم ﷺ دا اوفرمائيل.چه خپلې ښځې سره جماع كول هم صدقه او ثواب دې.نو صحابه كرامو ﷺ ته تعجب اوشو.او دوى تپوس اوكړو.چه پخپل شهوت پوره كولو باندې هم اجر دې؟ نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.چه آو! خكه كه حرام ځائې كښې ئې دا اوبه خرچ كړې وې.نو آيا ګناه به وه؟ نو كه په حرام ځائې كښې خرچ كول د ګناه موجب دى.نو په مقام د مباح كښې د حرام نه د بچ كيدو په نيت خرچ كول به يقيناً موجب د ثواب وى.(٥)

امام نووى ﷺ فرمائى.چه دلته په ،،ماتجعل في في امرأتك،، فرمائيلو سره د لقمې مثال وركولو كښې، ددې قاعدې ښه وضاحت اوشو.چه كله خپلې بى بى ته چه هغه مجبوره هم نه ده.هغې ته د يوې نورئ وركولو دا ثواب دې.نو هغه كس ته به څومره ثواب ملاويږى.څوك چه محتاج او مجبوره كس ته څه لقمه وركوى.يا د طاعاتو او فرمانبردارئ نه دومره عمل

---

١) المصدر السابق)_

٢) دحديث تخريج لږ غوندې وړاندې شوې دې.دحوالو د تفصيل دپاره هغه اوګورئ-

٣) شرح نووى على صحيح مسلم (٣٩١٢) كتاب الوصية)-

٤) صحيح مسلم (٣٢٥١١) كتاب الزكاة باب بيان أن إسم الصدقة يقع على كل نوع من المعروف)-

٥) شرح نووى على صحيح مسلم(٣٩١٢)_

كوى.چه په هغې كښې د لقمې د قيمت نه زيات مشقت او تكليف وى.[1]
خلاصه دا ده.چه د خاوند خپلې ښځې ته د خوراك وركولو فائده پخپله خاوند طرف ته راجع ده.ځكه چه په دې خوراك سره به ددې د ښځې په بدن باندې ښه اثر پريوځى.او ددې د جسم نه به ددې خاوند نفع اخلى.او غالب دا ده.چه ښځه باندې خرچ كولو كښې د نفس او لذت حاصلولو دخل وى.نوكله چه ښځې ته په نيت د ثواب خوراك وركولو كښې اجر دې.نو نورو خلقو ته د مذكوره دواعى (اوحاجاتو) نه كيدو باوجود خوراك وركولو كښې به اجر ولې نه وى؟ (ضرور به وى). ([2]) والله اعلم.

## (۴۰) بَاب قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الدِّينُ النَّصِيحَةُ

### لِلّٰهِ وَلِرَسُولِهِ وَلِأَئِمَّةِ الْمُسْلِمِينَ وَعَامَّتِهِمْ وَقَوْلِهِ تَعَالَى إِذَا نَصَحُوا لِلّٰهِ وَرَسُولِهِ (التوبة:۹۰)

**مخكنى باب سره ربط او مناسبت:** ددې باب مخكنى باب سره مناسبت دا دې.چه په تيرشوى باب كښې د ،،الأعمال بالنيات،، بيان وو.او ددې خبرې ذكر وو.چه د اعمالو قبوليت به هغه وخت وى.كله چه د الله تعالى رضاء مقصود.وى.او په دې كښې ريا كارى نه وى.په دې طريقه عمل كول په ،،النصيحة لله ولرسوله،، كښې داخل دې.چه سړې د رسول الله ﷺ دتعليماتو مطابق د نواهى نه مجتنب اوسيږى.او عمل كوى.([3])

بيا امام بخارى رحمه الله د كتاب الايمان په اختتام باندې په دې عظيم حديث باندې باب منعقد كړې دې.چه په دې باندې د اسلام مدار دې.لكه چه امام محمد بن اسلم طوسى رحمه الله دا حديث د هغه څلورو احاديثو نه يو حديث ګرځولې دې.په كومو چه د اسلام مدار دې.بلكه امام نووى رحمه الله فرمائى.چه دا يو حديث پوره دين ته حاوى (را چاپيره) دې.([4])

امام بخارى رحمه الله د كتاب الايمان په آخر كښې دا ،،ترجمه،، ايخودې ده.او دې خبرې طرف ته ئې اشاره فرمائيلې ده.چه مونږ په كتاب سره د نصيحت او خيرخواهئ لحاظ ساتلې دې.ددې په لحاظ دا كتاب جمع كړې شوې دې.خاص د يو فرد ترديد مقصود نه دې.

**د ترجمة الباب مقصود:** د امام بخارى رحمه الله مقصود د ايمان مراتب ښودل دى.چه په دې كښې تفاوت راځى.ځكه چه دلته ،،الدين النصيحة،، فرمائيلې شوې دې.د ،،النصيحة،، حمل په ،،الدين،، باندې كيږى.ګويا چه ،،دين،، او ،،نصيحت،، يو دې.بيا چونكه په ،،نصيحت،، كښې مراتب ښكاره دى.چه يو نصيحت ،،لله،، وى.يو ،،لرسول الله ﷺ،،.يو ،،لأئمة المسلمين،، او يو ،،لعامتهم،، وى.او ددې نصيحتونو په كيفياتو كښې هم كمې زياتې كيږى.نو هركله

---

[1] المصدر السابق۔
[2] فتح البارى (۱/۱۳۷)-
[3] عمدة القارى (۱/۳۲۱)۔
[4] فتح البارى (۱/۱۳۸)۔

چه ،،نصيحت،، كښې د مراتبو تفاوت ثابت شو.نو په ،،دين،، كښې به هم تفاوت وى.دين او ايمان چونكه يو څيز دې.په دې وجه به ايمان كښې د مراتبو او زيادت او نقصان ثبوت هم اوشى.
دغه شان دا مقصود هم كيدې شى.چه امام بخارى رحمه الله عمل په ايمان كښې داخل ګرځول غوارى.ځكه چه دلته په ،،الدين،، باندې د ،،النصيحة،، حمل دې.او ،،نصيحت،، عمل دې.معلومه شوه.چه عمل په دين او ايمان كښې داخل دې.والله اعلم.
**قوله الدِّينُ النَّصِيحَةُ لِلّٰهِ وَلِرَسُولِهِ وَلِأَئِمَّةِ الْمُسْلِمِينَ وَعَامَّتِهِمْ**:دين الله تعالى، د الله رسول،دمسلمانانو ائمه اوحاكمانو.او عامو مسلمانانو سره د خيرخواهۍ نوم دې.
**د مذكوره معلق حديث تخريج**:امام بخارى رحمه الله دلته دا حديث معلق ذكر كړې دې.حالانكه نورو حضراتو دا موصولاً نقل كړې دې.لكه چه امام مسلم رحمه الله پخپل صحيح كښې د «سهيل بن أبي صالح عن عطاء بن يزيد عن تميم الدارى» په طريق سره ددې تخريج كړې دې.(۱) دغه شان امام نسائى رحمه الله هم په دې طريق سره ددې حديث تخريج كړې دې.(۲)او امام ابوداؤد رحمه الله هم بعينه هم په دې طريق سره دا حديث پخپل ،،سنن،، كښې نقل كړې دې.(۳)
ددوى نه علاوه ابن حبان، ابن منده، او ابن خزيمه رحمهم الله هم مذكوره طريق سره ددې حديث تخريج كړې دې.(۴)
**امام بخارى رحمه الله موصولاً ولې ددې حديث تخريج اونكړو؟**:دا حديث امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې تعليقاً ذكر كړې دې. موصولاً ئې نه دې نقل كړې.ددې وجه دا ده.چه ددې حديث مدار په سهيل بن ابى صالح رحمه الله (۵)دې.او دا د امام بخارى رحمه الله د شرط مطابق نه دې.(۶)
بيا په دې كښې هم اختلاف دې.چه دا حدث دحضرت تميم دارى رضى الله عنه د مسانيدو څخه دې.اوكه د حضرت ابوهريره رضى الله عنه، لكه چه بعضو حضراتو په ،،ابو سهيل عن ابيه عن أبي هريرة،،

---

(۱) صحيح مسلم (۱\۵٤) كتاب الإيمان باب بيان أن الدين النصيحة)-
(۲) سنن النسائى (۲\۱۸۵) كتاب البيعة باب النصيحة للإمام)-
(۳) سنن أبى داود فى كتاب الأدب باب فى النصيحة رقم ٤٩٤٤)_
(۴) تغليق التعليق (۲\۵٦، ۵۷) وفتح البارى(۱\۱۳۸) وعمدة القارى(۱\۳۲۱)_
(۵) قال الذهبى فى الكاشف (۱\٤۷۱) رقم ۲۱۸۳ قال ابن معين هو مثل العلاء وليسا بحجة وقال أبوحاتم لا يحتج به ووثقه ناس)_
(۶) عمدة القارى(۱\۳۲۱) وأعلام الحديث للخطابى(۱\۱۸۷) وأخرج له البخارى مقروناً بغيره أنظر تهذيب الكمال (۱۲\۲۲۸)_

طریقه سره هم دا نقل کړې دې.(۱)امام بخاری رحمه الله فرمائی.چه ،،لایصح إلا من تمیم،،(۲)ددې اختلاف په وجه هم امام بخاری رحمه الله دا حدیث نقل نکړو.البته چونکه دا حدیث فی الجمله قابل د استدلال دې.په دې وجه ئې دې طرف ته اشاره کولوسره، دوی په دې باندې ترجمه قائم کړله.(۳)والله اعلم.

**قوله: النصیحة:** نصیحت خیر خواهۍ ته وائی.

دا خو یا د ،،نصحت العسل،، نه مشتق دې.چه ددې معنی د شهدو صفا کول دی.لکه چه ،،نصح الشئ،، وائی.کله چه یو څیز صفا، شفاف او خالص شی.دغه شان کله چه اخلاص سره خبره اوکړې شی.نو وئیلې شی چه ،،نصح له القول،،_ او دا یا د ،،النصح،، نه مشتق دې.چه ددې معنی ،،منصحة،، یعنی د ستن په ذریعه ګنډل دی.ګویا لکه څنګه چه د ستن په ذریعه شلیدلې کپړه ګنډلې او صحیح کولې شی.دغه شان د نصیحت په ذریعه د خپل رور خرابوالې ختمولې او لرې کیدې شی.ددې نه ،،توبة نصوح،، هم مشتق ده.ګویا چه ګناه د دین لباس تار تار کوی.او توبه دا ګنډی او ددې اصلاح کوی.(۴)

امام خطابی رحمه الله فرمائی.چه ،،نصیحت،،یوه جامع کلمه ده.چه دا باوجود د مختصر کیدو، خپل مینځ کښې یوه جامع معنی لری.چه ددې خلاصه دا ده.چه د منصوح له دپاره د خیر تولې حصې (او برخې) جمع کول نصیحت دې.(۵)دلته ،،الدین النصیحة،،فرمائیلې شوې دې.د ،،النصیحة،، حمل ،،الدین،، باندې دې. ددې مطلب دې.،،عماد أمر الدین وقوامه إنما هو النصیحة،، یعنی د دین مدار په نصیحت او خیرخواهۍ باندې دې.چه هم ددې په ذریعه دین ته قوت او مضبوطی حاصل ده.دا داسې ده.لکه څنګه چه د نبی کریم ﷺ فرمان دې.،،الأعمال بالنیات،،(۶) او ،،الحج عرفة،، (۷) دغه شان وئیلې شی.،،الناس تمیم،، او ،،المال الإبل،،_(۸)

---

۱) تغلیق التعلیق(۵۸\۲) وسنن النسائی (۱۸۵\۲) کتاب البیعة باب النصیحة للإمام ومسند أحمد (۲۹۷\۲)

۲) فتح الباری (۱۳۸\۱) وتغلیق التعلیق (۶۱\۲)_

۳) انظر الأبواب والتراجم لصحیح البخاری(ص،۴۰)_

۴) فتح الباری(۱۳۸\۱) وأعلام الحدیث (۱۹۰\۱)_

۵) أعلام الحدیث (۱۸۹\۱، ۱۹۰)_

۶) انظر تخریجه قبل هذا الباب باب ما جاء أن الأعمال بالنیة والحسبة ولکل امرئ ما نوی)_

۷) انظر جامع ترمذی کتاب التفسیر ،تفسیر سورة البقرة رقم ۴۰۵۸ وسنن أبی داود کتاب المناسک باب من لم یدرک عرفة رقم ۱۹۵۰ والسنن لابن ماجه کتاب المناسک باب من أتی عرفة قبل الفجر لیلة جمع رقم ۳۰۱۵)_

۸) أعلام الحدیث لخطابی(۱۹۰\۱، ۱۹۱)_

**قوله النصيحة لله:** الله تعالی دپاره د نصیحت مطلب دا دې چه د الله تعالی په ذات او صفاتو باندې، د نبی کریم ﷺ د تعلیماتو او هدایاتو مطابق ایمان راوړل. او شرك او ددې د ټولو انواعو نه اجتناب کول، اطاعت او فرمانبرداری اختیارول. او اخلاص سره ټول احکام پوره کول. د منهیاتو نه مکمل ځان ساتل، د الله تعالی د انعاماتو او احساناتو اقرار کول. اوپه دې باندې شکر کول، او د الله تعالی نیکانو بنده ګانو سره د موالات او محبت تعلق ساتل، او نافرمانو خلقو سره د معادات (دښمنۍ) تعلق ساتل. (۱)

بیا ددې خبرې لحاظ ساتل پکار دی.چه الله تعالی ته د هیڅ یو ناصح د نصیحت، یا د یو مرشد د ارشاد هیڅ حاجت او ضرورت نشته.د مذکوره امورو متعلق اګرچه دا ونیلې شی.چه ،،النصیحة لله تعالی،، دی.خو په حقیقت کښې دا امور ټخپله د بنده منافعو طرف ته راجع دی.(۲)

**قوله النصیحة لکتاب الله:** بیا شارحینو په دې مقام باندې د ،،النصیحة لکتاب الله،، تذکره هم کړې ده.د الله تعالی د کتاب دپاره د ،،نصیحت،، مطلب دا دې.چه په دې باندې ایمان راوړلې شی.چه دا د الله تعالی کلام او دده نازل کړې شوې وحی ده.د مخلوق کلام سره نه مشابه دې.او نه د مخلوق نه یوکس په داسې کلام باندې قادر دې.بیا هم په دې،،النصیحة لکتاب الله،، کښې دا هم داخل دی.چه ددې الفاظ او حروف صحیح کړې شی.د محرفینو د تاویلاتو ابطال اوکړې شی.د بې خایه ژبه چلونکو ژبه بنده کړې شی.ددې د بیان شوو فرائضو، سنتو، او آدابو علم حاصل کړې شی.په دې کښې چه کوم محکمات دی.په هغې عمل اوکړې شی.متشابهاتو ته سر د تابعدارئ ښکته کړې شی.ددې د مواعظو نه عبرت حاصل کړې شی.ددې د وعدو او وعیدونو تصدیق اوکړې شی.د علوم قرآن په حاصلولو کښې کوشش اوکړې شی. (۳)

**قوله النصیحة للرسول ﷺ:** د رسول الله ﷺ دپاره د نصیحت مطلب دا دې چه نبی کریم ﷺ کوم څه راوړلی دی.په هغې کښې ددوی مکمل تصدیق اوکړې شی.دوی چه د کوم خیز دعوت ورکړې دې.هغه قبول کړې شی.دوی چه کوم شرائع او احکام ښودلی دی.او د دین تشریح ئې فرمائیلې ده.د هغې مطابق عمل اوکړې شی.ددوی احکام پوره کړې شی.او د نواهی نه اجتناب اوکړې شی.ددوی حق د ټولو مخلوقاتو په حق باندې مقدم کړې شی.او ددوی د دعوت طریقه اختیار کړې شی.(۴)

---

۱) اعلام الحدیث(۱۱۹۰/۱، ۱۹۱)-

۲) المصدر السابق)-

۳) المصدر السابق)-

۴) أعلام الحدیث (۱۹۲/۱) وشرح النووی علی صحیح مسلم (۵۴/۱) کتاب الإیمان باب بیان أن الدین النصحیة وفتح الباری(۱۳۸/۱)_

**قوله** : النصحية لائمة المسلمين :د ،،ائمة المسلمين،، نه مراد د مسلمانانو امراء (حاكمان او خلفاء دي.دوی سره د نصيحت او د خيرخواهۍ د تعلق مطلب دا دې.چه په ،،معروف،، كښې ددې اطاعت اوكړې شي.دوی پسې مونځ اوكړې شي.دوی سره شريك شي.او د كافرانو په مقابله كښې جهاد اوكړې شي.دوی باندې خروج بالسيف اونكړې شي.اګرچه ددوی نه څه ظلم صادر شي.د غفلت په موقعو باندې دوی خبردار كړې شي.ددوی په دروغه تعريفونو سره دوی په دهوكه كښې وانه چولې شي.او ددوی د اصلاح او هدايت دپاره دعا اوكړې شي.([1])

د ،،أئمة المسلمين،، نه د دين عالمان او د امت مجتهدين هم مراد كيدې شي. دوی سره به د نصيحت د معاملې مطلب دا وی.چه ددوی علوم نشر كړې شي.(خلقو ته اورسولې شي). ددوی مناقب ( او فضائل) بيان كړې شي.دوی سره ښه ګمان اوساتلې شي.او ددې تقليد اوكړې شي.([2])

**قوله** : النصيحة لعامة المسلمين :عامو مسلمانانو سره د ،،نصيحت،، مطلب دا دې.چه دوی ته د دين تعليم وركول. دوی لره ددوی دينی او دنيوی مصلحتونو طرف ته لاره ښودل، امر بالمعروف او نهی عن المنكر كول، دوی سره د شفقت او مهربانۍ معامله كول. لويو سره د احترام او ورو سره د شفقت (او ترحم) رويه (او سلوك) اختيارول.([3])،،والله سبحانه وتعالى أعلم، وعلمه أتم وأصوب وأحكم،،_

**قوله** : إذا نصحوا لله ورسوله :كله چه دوی د الله تعالى، او د الله رسول سره د خلوص او خيرخواهۍ معامله اوكړی.(نو ددوی په شوو كارونو باندې به مؤاخذه نه كيږی)

دا د آيت كريمه يوه حصه ده.پوره آيت دا دې.﴿لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَاءِ وَلَا عَلَى الْمَرْضَى وَلَا عَلَى الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ مَا يُنْفِقُونَ حَرَجٌ إِذَا نَصَحُوا لِلَّهِ وَرَسُولِهِ مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِنْ سَبِيلٍ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾ (التوبه:۹۱) يعنى كمزورو باندې هيڅ ګناه نشته.او نه په بيمارانو باندې، او نه په هغه خلقو باندې، چا سره چه دجهاد سامان په تيارولو كښې خرچ كولودپاره مال نه وی.كله چه دا خلق الله،اودالله رسول سره اوپه احكاموكښې خلوص ساتی.او زړه سره اطاعت كوی.نو په دې نيكى كونكى باندې هيڅ قسمه الزام نشته.څكه چه ﴿لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا﴾ او الله تعالى ډير مغفرت والا، ډير رحمت والا دې.كه دا خلق پخپل علم كښې معذور وی.او د خپل طرفه خلوص او اطاعت كښې كوشش كوی.اوپه واقع كښې څه كمی پاتې شي.نو معاف به كړی.ددې آيت نه د مذكوره حديث تائيد او تاكيد مقصود دې.چه دا بالكل ښكاره ده.([4])والله اعلم بالصواب.

---

[1]) المصادر السابقة)-

[2]) المصادر السابقة)-

[3]) المصادر السابقة)-

[4]) عمدة القاري(۱/۳۲۲)-

٥٨\٥٧- حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ إِسْمَاعِيلَ قَالَ حَدَّثَنِي قَيْسُ بْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ (١) قَالَ بَايَعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى إِقَامِ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَالنُّصْحِ لِكُلِّ مُسْلِمٍ

## رجال الحديث

① مسدد: دا مشهور محدث مسدد بن مسرهد رحمه الله دې.ددوی حالات د ،،باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه،، لاندې تیر شوی دی.

② يحيى: دا مشهور حافظ حديث امام يحيي بن سعيد القطان تميمي رحمه الله دې. د دوی حالات هم د ،،باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه،، لاندې تیر شوی دی.

③ اسماعيل: دا تابعی محدث اسماعيل بن ابی خالد احمسی بجلی کوفی رحمه الله دې. ددوی مختصر تذکره د ،،باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده،، لاندې تیره شوې ده.(٢)

④ قيس بن ابی حازم: دا مشهور مخضرم تابعي قيس بن ابی حازم احمسی بجلی کوفی رحمه الله دې.ددوی کنیت ابوعبدالله دې.(٣) ددوی د پلار او نیکه په نوم کښې لوئې اختلاف دې.(٤)

دوی دِ جاهلیت زمانه موندلې ده.نبی کریم ﷺ طرف ته د هجرت په نیت سره وتلې وو.اوس په لاره کښې وو.چه ددوی وفات اوشو.دغه شان د صحبت په شرف سره مشرف نشو.اګرچه په یو روایت کښې دا هم.نقل د ی.چه دوی نبی کریم ﷺ د خطبې وئیلو په وخت کتلې دې. خو دا روایت ثابت نه دې.البته ددوی پلار حضرت ابوحازم رضي الله عنه صحابی دې.(٥)

---

١) الحديث أخرجه البخاری أيضاً فی کتاب مواقيت اصلاة باب البيعة علی إقامة الصلاة رقم ٥٢٤ وفی كتاب الزكاة باب البيعة على إيتاء الزكاة رقم ١٤٠١ وفی كتاب البيوع باب هل يبيع حاضر لباد بغيرأجر رقم ٢١٥٧ وفی كتاب الشروط باب ما يجوز من الشروط فی الإسلام والأحكام والمبايعة رقم ٢٧١٤ و٢٧١٥ وفی كتاب الأحكام باب كيف يبايع الإمام الناس رقم ٧٢٠٤ ومسلم فی صحيحه (٥٥\١) ففی كتاب الإيمان باب بيان أن الدين النصيحة والنسائی فی سننه (١٨٠\١٢) كتاب البيعة باب البيعة على النصح لكل مسلم (١٨٢\١٢) باب البيعة فيما أحب وكره (١٨٣\١٢) باب البيعة فيما يستطيع الإنسان وأبوداود فی سننه كتاب الأدب باب فی النصيحة رقم ٤٩٤٥ )-

٢) كشف الباری(٦٧٩\١)_

٣) تهذيب الكمال(١٠\٢٤ و ١١)-

٤) المصدرالسابق)-

٥) المصدرالسابق وسيرأعلام النبلاء(١٩٨\٤، ٢٠١)-

دوی د صحابه کرامو د يو لوئي جماعت نه حديثونه روايت کړی دی. حافظ عبدالرحمن بن يوسف بن خراش، او امام حاکم رحمهما الله وغيره فرمائی چه دوی د عشره مبشره نه روايت کړی دی.[١] امام ابو داؤد رحمه الله فرمائی چه دی د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه نه سوا د ټولو عشره مبشره نه روايت کوی.[٢] سبط ابن العجمی رحمه الله رومبی قول ته ترجيح ورکړی ده. يعنی دا چه ددوی روايت د عشره مبشره نه ثابت دی.[٣]

ددوی نه روايت نقل کونکو کښې اسماعيل بن ابی خالد، ابو بشر بيان بن بشر احمسی، حکم بن عتيبه، امام اعمش، مغيره بن شبيل، او ابواسحاق سبيعی رحمهم الله وغيره حضرات دی.[٤]

امام يحيی بن معين رحمه الله فرمائی: ،،ثقة،،[٥] هم ددوی نه نقل دی: ((قيس بن ابی حازم أوثق من الزهری ومن السائب بن يزيد))[٦]

امام عبدالرحمن بن يوسف بن خراش رحمه الله فرمائی: ((قيس بن أبی حازم كوفی جليل، وليس فی التابعين أحد روی عن العشرة إلا قيس بن أبی حازم))[٧]

اسماعيل بن ابی خالد رحمه الله به ددوی نه روايت کولو په وخت ددوی د ثقاهت تاکيد ني په دې طريقه کولو: ((حدثنا قيس بن أبی حازم: هذه الأسطوانة))[٨] يعنی ګويا چه دی په ثقاهت او اتقان کښې د اسطوانه (ستن) پشان وو.

امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی: (اجود التابعين إسنادا قيس بن أبی حازم)[٩]

ابن حبان رحمه الله دوی لره په کتاب الثقات کښې ذکر کړی دی.[١٠]

امام عجلی رحمه الله فرمائی: ،،ثقة،،[١١]

امام ذهبی رحمه الله فرمائی: ،،ثقة حجة كاد أن يكون صحابيا،،[١٢]

---

[١] تهذيب الأسماء واللغات (٦١/٢)_
[٢] المصدر السابق)_
[٣] حاشية الكاشف (١٣٨/٢) رقم ٤٥٩٦)_
[٤] د دوی د شيوخواو تلامذو د تفصيلاتو دپاره اوګورئ تهذيب الكمال (١١/٢٤ - ١٣)_
[٥] تهذيب الكمال (١٥/٢٤) وسير أعلام النبلاء (٢٠٠/١٤)_
[٦] تهذيب الكمال (١٤/٢٤) وسير أعلام النبلاء (٢٠٠/١٤)-
[٧] تهذيب الكمال (١٤/٢٤) وسير أعلام النبلاء (٢٠٠/١٤)_
[٨] تهذيب الكمال (١٥/٢٤) وسير أعلام النبلاء (٢٠٠/١٤ و ٢٠١)-
[٩] تهذيب الكمال (١٣/٢٤) وسير أعلام النبلاء (١٩٩/١٤)-
[١٠] الثقات لابن حبان (٣٠٧/٥ و ٣٠٨)_
[١١] تعليقات تهذيب الكمال (١٦/٢٤) نقلا عن ثقات العجلی)-
[١٢] ميزان الإعتدال (٣٩٢/٣) رقم ٦٩٠٨)_

خلاصه دا چه ددوی په عدالت او ثقاهت باندې اتفاق دې.البته ددوی په باره کښې دوه الزامونه نقل کړې شوی دی:① يو دا چه امام يحي بن سعيد القطان رحمه الله فرمائی.،،قيس بن أبي حازم منكر الحديث،،(¹)

② دويم الزام دا نقل کړې شوې دې.چه ،،كان يحمل على على رضي الله عنه،،(²)

ترکومې پورې چه د رومبی الزام يعنی د ،،منكرالحديث،، کيدو تعلق دې.نو د محدثينو فيصله ده.چه ددې د ،،منكر،،اصطلاحی مراد نه دې.بلکه تفرد مراد دې.لکه چه حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی.،،لاينكر له التفرد فی سعة ماروی،،(³) دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی.

،،ومراد القطان بالمنكر: الفرد المطلق،،(⁴)

او ترکومې پورې چه د دويم الزام تعلق دې.نو ددې ثبوت نشته.زيات نه زيات دومره خبره ثابت ده.چه ده به حضرت عثمان رضي الله عنه مقدم گنړلو.چه ددې په وجه د کوفيينو په قدماء کښې ډيرو حضراتو ددوی د رواياتو نه اجتناب کړې وو.ښکاره ده.چه حضرت عثمان رضي الله عنه مقدم گنړل، د اهل السنة عين مذهب دې.

حافظ يعقوب بن شيبه سدوسی په دوی باندې د عائد شوو الزاماتو تفصيل ښودلې دې.او دهغې دفاع ئې کړې ده.لکه چه هغه فرمائی:«وقيس من قدماء التابعين، وقد روى عن أبي بكر الصديق فمن دونه، وأدركه وهو رجل كامل، ويقال: إنه ليس أحد من التابعين .مع أن روى عن العشرة مثله إلا عبدالرحمن بن عوف، فإنا لانعلمه روى عنه شيئاً، ثم قد روى بعد العشرة عن جماعة من أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم وكبرائهم،وهومتقن الرواية ،وقد تكلم أصحابنا فيه: فمنهم من رفع قدره وعظمه، وجعل الحديث عنه من أصح الإسناد،

ومنهم من حمل عليه، وقال: له أحاديث مناكير، والذين أطروه حملوا هذه الاحاديث عنه على أنها عندهم غير مناكير، وقالوا: هي غرائب، ومنهم من لم يحمل عليه في شئ من الحديث وحمل عليه في مذهبه، وقالوا: كان يحمل على على رضي الله عنه وعلى جميع الصحابة، والمشهور عنه أنه كان يقدم عثمان، ولذالك تجنب كثير من قدماء الكوفيين الرواية عنه،

ومنهم من قال: إنه مع شهرته لم يروعنه كبير أحد، وليس الأمر عندنا كما قال هؤلاء، وقد روى عنه جماعة

---

¹) تهذيب الكمال(١٥\٢٤) وسير أعلام النبلاء(٢٠٠\١٤) والكاشف (١٣٩\٢) رقم ٤٥٩٦ وميزان الإعتدال (٣٩٢\٣)_

²) تهذيب الكمال(١٤\٢٤) وسير أعلام النبلاء(١٩٩\٤)_

³) ميزان الإعتدال(٣٩٣\٣) رقم ٦٩٠٨_

⁴) تهذيب التهذيب(٣٨٩\١)_

منهم، إسماعيل بن أبي خالد، وهو أرواهم عنه، وكان ثقة ثبتاً، و بيان بن بشر، وكان ثقة ثبتاً، وذكر آخرين، ثم قال: كل هؤلاء قد روى عنه»[1]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى «فهذا القول مبين مفصل».[2] يعنى حافظ يعقوب بن شيبه سدوسى رحمه الله تول تفصيل اوښودلو. چه نه خودا منكر الحديث وو. او نه د مذهب په اعتبار سره دوى كښې څه كوږوالې وو. او نه دا خبره وه. چه لويو محدثينو ددوى روايتونه قبول كړى نه وى. هم دا وجه ده. چه حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى. «أجمعوا على الاحتجاج به، ومن تكلم فيه فقد آذى نفسه، نسأل الله العافية وترك الهوى....»[3]

په ۹۸ﻫ كښې ددوى وفات اوشو.[4] «رحمه الله تعالى رحمة واسعة».

⑤ **جرير بن عبدالله:** دا حضرت جرير بن عبدالله احمسى بجلى كوفى رضي الله عنه دې.[5] دوى د نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه علاوه د حضرت عمر بن الخطاب او حضرت معاويه بن ابى سفيان رضي الله عنهما نه هم روايت كوى.

ددوى نه روايت كونكو كښې ددوى خپل خوئې ابراهيم بن جرير، ايوب بن جرير، عبيدالله بن جرير، منذر بن جرير او نمسې ابو زرعه بن عمرو بن جرير نه علاوه زياد بن علاقه، ابو وائل شقيق بن سلمه، عامر بن سعد بجلى، عامر بن شراحيل شعبى او ابو اسحاق سبيعى رحمهم الله وغيره دى.[6]

په رمضان ۱۰ﻫ كښې په اسلام مشرف شو. دوى د خپل قوم سردار وو. كله چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته حاضر شو. نو نبى كريم صلى الله عليه وسلم ددوى اكرام اوكړو. دوى ته ئې څادر وركړو. او ارشاد ئې اوفرمائيلو. «إذا جاءكم كريم قوم فأكرموه».[7] كله چه دوى نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته حاضريدلو. او مدينې منورې ته رانزدې شو. نو دوى لباس بدل كړو. او د نبى كريم صلى الله عليه وسلم په دربار كښې حاضر شو. نبى كريم صلى الله عليه وسلم حضرات صحابه كرامو رضي الله عنهم ته ددې نه وړاندې فرمائيلى وو. «سيدخل عليكم من هذا الفج من خير ذي يمن، ألا وإن على وجهه مسحة ملك»[8]

---

[1] تهذيب الكمال(۱۳\۱۲۴و ۱۴) وسير أعلام النبلاء (۱۹۹\۱۴و ۲۰۰) وهدى السارى(ص.۴۳۶)_

[2] هدى السارى(ص.۴۳۶)_

[3] ميزان الإعتدال(۳۹۳\۱۳) رقم ۶۹۰۸)_

[4] الكاشف (۱۳۹\۱۲) رقم ۴۵۹۶ وغيره كتب رجال)_

[5] تهذيب الكمال(۵۳۳\۱۴)_

[6] د شيوخو اوشاګردانو نومونود تفصيل دپاره اوګورئ تهذيب الكمال(۵۳۴\۱۴)_

[7] تهذب الكمال(۵۳۵\۱۴) وسير أعلام النبلاء(۵۳۲\۱۲) والمعجم الكبيرللطبرانى (۳۰۴\۱۲) رقم ۲۲۶۶ و(۳۲۵\۱۲) رقم ۲۳۵۸)_

[8] مسند أحمد (۳۵۹\۱۴و ۳۶۰و ۳۶۴) والمعجم الكبيرللطبرانى (۲۹۱\۱۲) رقم ۲۲۱۰ ) و(۳۰۱\۱۲) رقم ۲۲۵۸ ومسند الحميدى (۳۵۰\۱۲) رقم ۸۰۰ وتهذيب الكمال (۵۳۶\۱۴) وسير أعلام النبلاء (۵۳۲\۱۲)_

نبی کریم ﷺ دوی لره د قبیله خثعم بت خانې ..ذوالخلصه.. ورانولو دپاره لیګلې وو.دوی د خپل خان سره د احمس قبیلې شهسوار واخستل او دا ئې ورانه کړله.کله چه نبی کریم ﷺ ته خبر ملاوشو نو نبی کریم ﷺ د قبیله احمس دپاره ښه دعاګانې اوکړلې(۱). دوی پخپله نبی کریم ﷺ ته شکایت کړې وو چه زه د اس په شا باندې کلك نشم کیناستلې نبی کریم ﷺ ددوی په سینه باندې لاس مبارك کیخودو.او دعا ئې اوکړله «اللهم ثبته واجعله هادياً مهدياً»(۲)

د حضرت انس رضی الله عنه حضرت جریر رضی الله عنه سره یو ځلې د سفر اتفاق اوشو حضرت جریر رضی الله عنه باوجود ددې چه مشر وو.د حضرت انس رضی الله عنه خدمت به ئې کولو حضرت انس رضی الله عنه دوی لره منع کړل.نو وې فرمائیل.«إني رأيت الأنصار تصنع برسول الله ﷺ أشياء، آليت ألا أصحب أحداً منهم إلا خدمته»(۳)

یوځل حضرت عمر رضی الله عنه دوی ته اوفرمائیل.چه خپل قوم واخله.او عراق ته لاړ شه.هلته جهاد اوکړه.تاته به د ټول غنیمت ربع ملاویږی.دوی هلته لاړل.او جهاد ئې اوکړو.کوم غنیمت چه حاصل شو.په هغې کښې دوی د ربع مطالبه اوکړله .حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه حضرت عمر رضی الله عنه ته اولیکل.او په دې باره کښې ئې استفسار اوکړو.حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل.«صدق جرير، قد قلت ذالك له، فإن شاء أن يكون قاتل هو وقومه على جُعل، فأعطوه جُعله، وإن يكن إنما قاتل لله، ولدينه، وحسبه، فهو رجل من المسلمين، له مالهم، وعليه ما عليهم»کله چه دا خط حضرت سعد رضی الله عنه ته اورسیدو.نو هغوی حضرت جریر رضی الله عنه راوغوښتلو او د خط د لیکلو نه ئې خبر کړو.حضرت جریر رضی الله عنه اوفرمائیل.«صدق أمير المؤمنين، لاحاجة لي به، بل أنا رجل من المسلمين، لي مالهم وعلي ما عليهم»(۴)

وړاندې دوی کوفې ته منتقل شو.اوهلته ئې استوګنه اختیار کړله.روستو دوی ,,قرقیسیا،، نومې علاقې ته منتقل شوې وو.ځکه چه کوفه کښې به بعضو خلقو حضرت عثمان رضی الله عنه پسې بدې ردې وئیلې.نودې دهغه ځائې نه ,,لا أقيم ببلدة يشتم فيها عثمان،، وئیلو سره قرقیسیاته منتقل شو.او ترآخری ژوندپورې هلته مقیم وو.تردې چه هم هلته دفن کړې شو.(۵)

---

۱) صحیح البخاری (۵۳۹\۱) کتاب المناقب باب ذکر جریربن عبدالله البجلی رضی الله عنه وصحیح مسلم (۲۹۷\۲ و ۲۹۸) کتاب الفضائل باب من فضائل جریربن عبدالله رضی الله عنه)_

۲) صحیح مسلم (۲۹۷\۲) کتاب الفضائل باب من فضائل جریربن عبدالله رضی الله عنه وسنن ابن ماجه ۱۵ المقدمة فضل جریربن عبدالله البجلی رضی الله عنه ومسند أحمد (۳۶۲\۴)_

۳) صحیح البخاری کتاب الجهادباب فضل الخدمة فی الغزو رقم ۲۸۸۸ وصحیح مسلم (۳۰۶\۲) کتاب الفضائل باب من فضائل الأنصار رضی الله عنهم)_

۴) تهذیب الکمال(۵۳۹\۴و ۵۴۰)_

۵) تهذیب الکمال(۵۳۵\۴) والمعجم الکبیرللطبرانی(۲۹۳\۲و ) رقم ۲۲۱۷)_

حضرت جرير رضي الله عنه ته الله تعالى د جسمانى صحت او حسن وجمال نه كافى حصه وركړې وه.
حضرت عمر رضي الله عنه به فرمائيل.،،جرير يوسف هذه الأمة،،
كله چه اسلام باندې مشرف شو نو دوى د نبى كريم ﷺ په لاسونو باندې بيعت اوكړو.په دې موقعه د نورو امورو سره د ،،النصح لكل مسلم،، معاهده هم اوشوه.(۱) ددې نتيجه دا وه.چه تول ژوند ئې ددې لحاظ ساتلو.په دې سلسله كښې ددوى يوه دلچسپه واقعه هم منقول ده.چه يو خل دوى خپل وكيل د يو څاروى اخستلو دپاره اوليګلو.او پخپله هم ورسره شو.يو اس دده خوښ شو.ددوى وكيل د دې درې سوه درهم اولګول.د اس مالك انكار اوكړو.وكيل اوونيل چه زما آقا سره خبره اوكړه.ده دا سړې حضرت جرير رضي الله عنه له راوستلو.حضرت جرير رضي الله عنه اوفرمائيل. چه ستا اس د د ريو سوو نه د زيات قيمت دې.دغه شان به دوى قيمت زياتولو تردې چه په اووه يا اته سوه روپۍ كښې دوى دا اس واخستلو.(۲)
يو ځلې د حضرت عمر رضي الله عنه په مجلس كښې د يو سړى باد خارج شو.حضرت عمر رضي الله عنه په بدبو محسوسيدو باندې قسم وركړو.اووې فرمائيل.چه داسړې دې پاسى.او اودس دې اوكړى.حضرت جرير رضي الله عنه اوفرمائيل.اې اميرالمؤمنين! آيا دا غوره نه ده.چه مونږ ټول پاسو. او اودس اوكړو.حضرت عمر رضي الله عنه ته تنبيه اوشوه.او اوچت پاسيدو.او وې فرمائيل: ،،رحمك الله،نعم السيد كنت في الجاهلية،ونعم السيد أنت في الإسلام،،(۳)
د حضرت عثمان رضي الله عنه په زمانه كښې دوى د همدان ګورنر هم پاتې شوې دې. هلته ددوى بينائى (نظر) ختم شوې وو.(۴) دحضرت على او حضرت معاويه رضي الله عنهما په مينځ كښې چه كوم اختلافات پيدا شوى وو.د هغې نه تولو موده بالكل جدا اوسيدلې وو.(۵)
ددوى نه تقريباً سل حديثونه نقل دى.په دې كښې اته حديثونه متفق عليه دى.په يو حديث كښې امام بخارى رحمه الله او په شپږو حديثونو كښې امام مسلم رحمه الله متفرد دې.(۶)

---

(۱) كما فى حديث الباب وغيره )۔
(۲) المعجم الكبير للطبراني(۳۳۴/۲ و ۳۳۵) رقم ۲۳۹۵)۔
(۳) تهيب الكمال(۵۳۹/۴) وسير أعلام النبلاء (۵۳۵/۲)۔
(۴) تهذيب الكمال(۵۳۹/۴) وسير أعلام النبلاء (۵۴۰/۲)۔
(۵) سير أعلام النبلاء (۵۳۶/۲) وتهذيب الأسماء واللغات (۱۴۷/۱)۔
(۶) تهذيب الأسماء واللغات (۱۴۷/۱) وشرح الكرماني(۲۱۸/۱) وخلاصة ذكر الخزرجي(ص،۱۶)۔ هذا وقد قال الذهبي وانفرد البخاري بحديثين .. (السير:۵۳۷/۲) ولعله سبق قلم ثم إن العيني رحمه الله ذكر ههنا نقلاً عن شرح قطب الدين كما نقلنا آنفاً أن لجرير مأة حديث إتفقا منها على ثمانية وانفرد البخاري بحديث،و مسلم بستة ثم حكى عن النووي أن له مائتى حديث ثم حكى عن الكرماني لجرير عن رسول الله ﷺ مائة حديث ذكر البخاري منها تسعة وبعد ما حكاه قال وهذا غلط صريح فكأنه غلط الكرماني مع أن كلامه صواب وواضح ولعل التخطئة ترتبط بما حكاه عن النووي أن له مائتى حديث وعزاه إلى شرح النووي له ولا ندري مدى صحة ما نقله فإنه نوجد لدينا ولكن النووي بنفسه قد ذكر فى تهذيب الأسماء على الصواب كما ذكرنا آنفاً والله أعلم)

په ۵۱ھ يا ۵۴ھ يا ۵۶ھ كښې ددوى وفات اوشو.(۱)، رضى الله تعالى عنه وأرضاه،،_

**قوله بَايَعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى إِقَامِ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَالنُّصْحِ لِكُلِّ مُسْلِمٍ:** ما د نبى كريم ﷺ په لاسونو باندې د مونځ د پابندئ، د زكاة اداكولو. او هر مسلمان سره خيرخواهئ باندې بيعت كړې دې.

په دې روايت كښې تاسو ګورئ چه صرف د اقامت صلاة او ايتاء زكاة ذكر دې نه د شهادتينو ذكر شته او نه د روژو او دحج. حالانكه حضرت جرير ﷺ بالكل متاخر الاسلام وو ددې څه وجه ده؟ ددې جواب دا دې چه هم ددې روايت په بل طريق كښې د شهادتينو ذكر هم شته.او په دې كښې ،،سمع و طاعت،، هم ذكر كړې شوې دې(۲) نو روژه. او حج وغيره ټول امور به په ،،سمع او طاعت،، كښې داخل وى.(۳)

اصل كښې د نبى كريم ﷺ عادت مبارك دا وو چه په بيعت كښې به ئې عام طور باندې ظاهرى اركان شهادتين، او صلاة او زكاة ذكر كول.او بيا به ئې هغه بعضې امور په بيعت كښې ذكر كول.د كوم ضرورت به ئې چه په بيعت كونكى كښې محسوسولو لكه چه بعضو سره ئې بيعت اوكړو.نو وې فرمائيل ،،خير خواهى كوه،،(۴) بعضو سره ئې بيعت كولو كښې اوفرمائيل ،،جهاد كښې مه شا كوه،،(۵) غرض دا چه په چا كښې به ئې كومه خبره محسوسوله.هغې باندې د تنبيه كولو دپاره به ئې بيعت اخستلو.

ددې خائې نه حضرات مشائخ، او صوفية كرام پخپلو بيعتونو كښې هغه خبرې داخلوى.د كومو چه د بيعت اخستلو په وخت ضرورت محسوسيږى.او كومو جرائمو شيوع كيږى.دا حضرات د بيت اخستلو په وخت ددې نه د اجتناب كولو ذكر هم كوى.

دلته هم د حضرت جرير ﷺ نه د ،،نصح،، يعنى د خيرخواهئ عهد اخستې شوې دې.دوى ته ددې عهد دومره قدر او لحاظ وو.چه كله به ئې څه څيز خرڅولو .يا به ئې اخستلو.نو فرمائيل به يې: «اعلم أن ما أخذنا منك أحب إلينا مما أعطيناكه، فأختر»(۶) ددوى داسې قسمه يوه واقعه اوس وړاندې ددوى په حالاتو كښې هم ذكر شوه.

---

۱) تهذيب الكمال(۱۴/۵۴۰)-

۲) صحيح البخارى كتاب البيوع باب هل يبيع حاضر لباد بغير أجر ؟ رقم ۲۱۵۷)-

۳) فتح البارى(۱/۱۳۸، ۱۳۹)_

۴) كما فى حديث الباب)_

۵) عن جابر ﷺ قال لم نبايع رسول الله ﷺ على الموت إنما بايعناه على أن لا نفر سنن النسائى كتاب البيعة باب البيعة على أن لا نفر رقم ۴۱۶۳)_

۶) فتح البارى(۱/۱۳۹) وعمدة القارى(۱/۳۲۳)_

٥٨- حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ زِيَادِ بْنِ عِلَاقَةَ قَالَ سَمِعْتُ جَرِيرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ (١) يَقُولُ يَوْمَ مَاتَ الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ قَامَ فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ وَقَالَ عَلَيْكُمْ بِاتِّقَاءِ اللَّهِ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ وَالْوَقَارِ وَالسَّكِينَةِ حَتَّى يَأْتِيَكُمْ أَمِيرٌ فَإِنَّمَا يَأْتِيكُمُ الْآنَ ثُمَّ قَالَ اسْتَعْفُوا لِأَمِيرِكُمْ فَإِنَّهُ كَانَ يُحِبُّ الْعَفْوَ ثُمَّ قَالَ أَمَّا بَعْدُ فَإِنِّي أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ أُبَايِعُكَ عَلَى الْإِسْلَامِ فَشَرَطَ عَلَيَّ وَالنُّصْحِ لِكُلِّ مُسْلِمٍ فَبَايَعْتُهُ عَلَى هَذَا وَرَبِّ هَذَا الْمَسْجِدِ إِنِّي لَنَاصِحٌ لَكُمْ ثُمَّ اسْتَغْفَرَ وَنَزَلَ [٥٠١، ١٣٣٦، ٢٠٤٩، ٢٥٦٥، ٢٥٦٦، ٦٧٧٨]

## رجال الحديث

① ابوالنعمان: دا ابو النعمان محمد بن الفضل السدوسى البصرى دے.دے د ..عارم.. لقب سره مشهور دے.(٢)

دوى د ثابت بن يزيد الاحول، جرير بن حازم، حماد بن زيد، حماد بن سلمه، عبدالله بن المبارك، عبدالعزيز بن محمد دراوردى، عبدالواحد بن زياد، معتمر بن سليمان، مهدى بن ميمون او ابوعوانه وضاح بن عبدالله رحمهم الله وغيره نه روايت د حديث كوى.

ددوى نه په روايت كونكو كښې امام بخارى، ابراهيم بن حرب عسكرى، امام احمد بن حنبل، حجاج بن الشاعر، عبدالله بن محمد مسندى، عبد بن حميد، ابوزرعه عبيدالله بن عبدالكريم رازى، ابوحاتم رازى، محمد بن المثنى، محمد بن يحي ذهلى او يعقوب بن شيبه سيدوسى، رحمهم الله وغيره په شان كثيرخلائق دى.(٣)

امام محمد بن يحي ذهلى رحمه الله فرمائى.«حدثنا محمد بن الفضل عارم، وكان بعيداً من العرامة، صحيح الكتاب، وكان ثقة»(٤)

امام محمد بن مسلم بن واره رحمه الله فرمائى.«حدثنا عارم بن الفضل الصدوق المامون»(٥)

امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى.«إذا حدثك عارم فاختم عليه، وعارم لا يتأخر عن عفان، وكان سليمان بن حرب يقدم عارماً على نفسه، إذا خالفه عارم فى شئ رجع إلى ما يقول عارم، وهو أثبت أصحاب حماد بن زيد بعد عبدالرحمن بن مهدى»(٦)

---

(١) قد سبق تخريج أصل الحديث فى فواتح هذا الباب)-

(٢) تهذيب الكمال(٢٦\٢٨٧، ٢٨٨)_

(٣) د استاذانواوشاگردانود تفصيلى فهرس دپاره اوگورئ تهذيب الكمال(٢٦\٢٨٨و ٢٨٩)_

(٤) تهذيب التهذيب(٩\٤٠٥)_

(٥) تهذيب الكمال(٢٦\٢٩٠)-

(٦) تهذيب الكمال(٢٦\٢٩٠) وسير أعلام النبلاء(١٠\٢٦٦)_

دغه شان چه کله د امام ابوحاتم رحمه الله نه د ابوسلمه او عارم په باره کښې تپوس اوکړې شو نو وې فرمائیل: ،،عارم أحب إلي،،[1] او هم دوی فرمائی: ،،ثقة،،[2]

امام یحي بن معین رحمه الله فرمائی: ،،عارم كان ما علمت رجلاً صدوقاً مسلماً،،[3]

امام عجلی رحمه الله فرمائی: ،،بصري، ثقة، رجل صالح،،[4]

امام نسائی رحمه الله فرمائی: ،،كان أحد الثقات قبل أن يختلط،،[5]

سعید بن عثمان اهوازی رحمه الله فرمائی: «حدثنا عارم ثقة إلا أنه أحد» [6] [كذا في المطبوع، ولعلها: اختلط] [7] حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی: ،،حافظ، صدوق، مكثر،[8] او هم دوی فرمائی: ،،الحافظ الثبت الإمام،،[9]

په ابو النعمان محمد بن الفضل سدوسی رحمه الله کښې آخری عمر کښې تغیر راغلې وو. بیا دا تغیر د ،اختلاط، حد ته رسیدلې وو. اوکه نه؟ په دې کښې مختلف اقوال ملاویږی.

لکه چه ابوحاتم بن حبان رحمه الله فرمائی: «اختلط في آخر عمره، وتغير حتى كان لا يدري ما يحدث به، فوقع في حديثه المناكير الكثيرة، فيجب التنكب عن حديثه، فيما رواه المتأخرون، فإذا لم يعلم هذا من هذا ترك الكل، ولا يحتج بشيء منها»[10] او هم دوی فرمائی: «اختلط عارم في آخر عمره، وزال عقله، فمن سمع منه قبل الاختلاط فسماعه صحيح، وكتبت عنه قبل الاختلاط سنة أربع عشرة، ولم أسمع منه بعد ما اختلط، فمن سمع منه قبل سنة عشرين ومأتين، فسماعه جيد، وأبوزرعة لقيه سنة اثنتين وعشرين»[11]

او امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی: «بلغنا أن عارماً انكر سنة ثلاث عشرة، ثم راجعه عقله، و استحكم به الاختلاط سنة ست عشرة»[12]

---

[1] المصادر السابقة۔

[2] تهذيب الكمال(۲۶\۲۹۱) وسير أعلام النبلاء (۱۰\۲۶۷)۔

[3] تعليقات تهذيب الكمال(۲۶\۲۹۲)۔

[4] تهذيب التهذيب(۹\۴۰۵)۔

[5] تعليقات تهذيب الكمال(۲۶\۲۹۲)۔

[6] تهذيب التهذيب(۹\۴۰۵)-

[7] تعليقات تهذيب الكمال(۲۶\۲۹۲)۔

[8] ميزان الإعتدال(۴\۷)۔

[9] سير أعلام النبلاء(۱۰\۲۶۵)۔

[10] ميزان الإعتدال (۴\۸) وسير أعلام النبلاء (۱۰\۲۶۷و ۲۶۸)۔

[11] تهذيب الكمال(۲۶\۲۹۰)۔

[12] تهذيب الكمال(۲۶\۲۹۱)۔

هم دغه شان امام عجلى رحمه الله فرمائى.،، خولط قبل أن يموت بسنة أو سنتين،،(١)

او ددوى وفات په ۲۲۳هـ يا ۲۲۴هـ كښې شوې دې.،، كما سيأتي،،

امام عقيلى رحمه الله فرمائى.((اختلط فى آخر عمره، فمن سمع من عارم قبل الاختلاط فهو أحد الثقات المسلمين، وإنما الكلام فيه بعد الاختلاط))(٢)

او د امام بخارى رحمه الله محتاط قول دا دې چه په دوى كښې ..تغير.. راغلې وو.خودا داختلاط حدته نه وو رسيدلې.هم دا د محققينو قول دې.لكه امام بخارى رحمه الله فرمائى چه

،،كان تغير، وكان من عباد الله الصالحين،،(٣)

حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.،،تغير قبل موته فما حدث،،(٤)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.،،ثقة ثبت تغير فى آخر عمره،،(٥)

ددې اقوالو خلاصه دا ده.چه بعضې حضرات ددوى په آخر عمر كښې د .. مختلط..كيدو قائل دى.حالانكه نور بعضې حضرات صرف د..تغير..قائل دى د..اختلاط..قائل نه دى.كه اختلاط وى.او كه تغير وى.په دې دواړو حالتونو كښې چه كوم روايتونه منقول وى.هغه قبلولې نشى.(٦)په دې اعتبار سره كه ددوى روايتونه غير متميز وى.( يعنى بعدالاختلاط او التغير والا روايات. د قبل الاختلاط او التغير والا رواياتو نه جدا نشى) نو قبلول پكار نه دى.حالانكه امام بخارى رحمه الله ددوى روايات قبلوى؟

ددې جواب دا دې.چه په دې كښې هيڅ شك نشته.چه دې په آخر عمر كښې متغير شوې وو.خو دا مونږ نه منو.چه دوى د تغير نه پس څه روايت هم كړې وى. لكه چه حافظ ذهبى رحمه الله تصريح كړې ده.،،تغير قبل موته فما حدث،، (٧)

تركومې پورې چه د ابن حبان رحمه الله ددې دعوې تعلق دې.چه ددوى نه د اختلاط نه پس ډير منكر روايتونه نقل شوى دى.نو دا دعوه د دليل نه بالكل خالى ده.حالانكه امام

---

(١) تعليقات تهذيب الكمال(٢٦/٢٩٢) نقلاً عن ثقات العجلى)_

(٢) الضعفاء الكبير للعقيلى(٤/١٢٢٣) رقم ١٦٨٠)_

(٣) تعليقات تهذيب الكمال(٢٦/٢٩٢) نقلاً عن تاريخ البخارى الصغير(٢/٢١٩) وقال البخارى فى تاريخه الكبير(١/٢٠٨) رقم ٦٥٤ ) تغير بأخرة)-

(٤) الكاشف للذهبى(٢/٢١٠) رقم ٥١١٤)_

(٥) تقريب التهذيب (٥٠٢) رقم ٦٢٢٦)_

(٦) حافظ ذهبى رحمه الله فرمائى.((والذى ينبغى أن من خلط فى كلامه كتخليط السكران أن لا يحمل عنه البتة وأن من تغير لكثرة النسيان أن لا يؤخذ عنه) وقال الشيخ محمد عوامة فى تعليقاته على الكاشف (٢/٢١٠) التغير أخف من الأختلاط كما أن النسيان أخف من التغير حسبما يظهر للمتتبع لأقوالهم...)_

(٧) الكشاف (٢/٢١٠) رقم ٥١١٤)_

دارقطنى رحمه الله فرمائى .،،تغير بآخرة، وما تفرد له بعد إختلاطه حديث منكر وهو ثقة،، [1]

حافظ ذهبى رحمه الله د دارقطنى قول رانقل كړې دې.او ليكلى ئې دى.((فهذا قول حافظ العصر الذى لم يأت بعد النسائى مثله، فأين هذا القول من قول ابن حبان الخساف المهتور فى عارم))[2] او هم دوى فرمائى ((ولم يقدر ابن حبان أن يسوق له حديثاً منكراً، فأين ما زعم؟))[3]

بيا ابو حاتم ابن حبان رحمه الله ۲۲۰هـ پورې د سماع كونكو روايات معتبر گرخولى دى.حالانكه امام ابوداؤد رحمه الله فرمائى.چه په دوى كښې څه تغير په ۲۱۲هـ كښې پيدا شوې وو.خو بيا دوى صحيح شوى وو.روستو په ۲۱۶هـ كښې مكمل اختلاط پيدا شوې وو.گويا په قول د ابن حبان رحمه الله د ۲۲۰هـ او په قول د ابوداؤد د ۲۱۶هـ نه مخكښې مخكښې روايتونه قبلولې شى.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى.((إنما سمع منه البخارى سنة ثلاث عشرة، قبل إختلاطه بمدة.....))[4] نود صحيح بخارى په رواياتو كښې هيڅ قسمه شك نشته. والله اعلم.

ددوى وفات په ۲۲۳هـ يا ۲۲۴هـ كښې شوې دې.([5])،،رحمه الله تعالى رحمة واسعة،،_

④ **ابوعوانه:** دا ابو عوانه وضاح بن عبدالله يشكرى رحمه الله دې.ددوى مختصره تذكره د بدءالوحى د دريم حديث لاندې تيره شوې ده.([6])

⑤ **زياد بن علاقه:** دا ابومالك زياد بن علاقه (بكسر العين المهملة) بن مالك الثعلبى (بالمثلثة قبل العين المهملة) الكوفى دې. ([7])

دې د حضرت جرير بن عبدالله بجلى. حضرت مغيره بن شعبه. د خپل تره حضرت قطبه بن مالك ثعلبى او د حضرت مرداس اسلمى رضي الله عنهم وغيره نه روايت كوى. د حضرت سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه نه روايت كوى.خو دوى ته هغوى سره لقاء حاصل نه دى.([8])دغه شان وئيلې شى. چه دوى د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه زيارت كړې دې.([9]) اگرچه حافظ ابن حجر رحمه الله دا مستبعد گرځولې دې. ([10])

---

[1] ميزان الإعتدال(ت ٨\١٤) رقم ٨٠٥٧) وسير أعلام النبلاء(١٠\٢٦٧)_

[2] ميزان الإعتدال(٨\١٤) وسير أعلام النبلاء(١٠\٢٦٧، ٢٦٨)_

[3] ميزان الإعتدال(٨\١٤) وسير أعلام النبلاء(١٠\٢٦٨)_

[4] هدى السارى(ص.٤٤١)-

[5] تقريب التهذيب(٥٠٢) رقم ٦٢٢٦)_

[6] كشف البارى(١\٤٣٤)-

[7] تهذيب الكمال(٩\٤٩٨) وسير أعلام النبلاء (٥\٢١٥) وتقريب التهذيب (٢٢٠) رقم ٢٠٩٢)_

[8] تهذيب الكمال(٩\٤٩٨)_

[9] تهذيب الكمال(٩\٥٠٠) وسير أعلام النبلاء (٥\٢١٥)-

[10] تهذيب التهذيب(٣\٣٨١)_

